يَهْدِىٓ إِلَى ٱلرُّشْدِ فَـَٔامَنَّا بِهِۦ

په پښتو ژبه کښې آسان، عام فهم او تحقيقي انداز کښې، علمي او الهامي نکاتو باندې مشتمل، لاجوابه علمي تحفه

# رُشدُ القرآن

## فِي تفسيرِ آياتِ القرآن

دريم جلد

له ابتداء دَ سورة اَنفال نه تر آخره دَ سورة نحل پورې


تأليف

شيخ القرآن والحديث حضرت مولانا اُسيدُ الله صاحب رحمه الله



جامعه مکتبه رشيديه

محله جنگى قصه خوانى پشاور

091-2580074

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يَهْدِي إِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهِ وَلَنْ نُشْرِكَ بِرَبِّنَا أَحَدًا

په پښتو ژبه کښې آسان، عام فهم او تحقیقي
انداز کښې، علمي او الهامي نکاتو باندې مشتمل، لاجوابه علمي تحفه

# رشد القران




## فی تفسیر آیات القرآن

دریم جلد

له ابتداء د سورة انفال نه تر آخر د سورة نحل پورې


تالیف
شیخ القرآن والحدیث
حضرت مولانا اُسید الله صاحب رحمه الله



جدید مکتبہ رشیدیہ
محلہ جنگی قصہ خوانی پشاور 091-2580074

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ



د کتاب نوم : **رشد القران فی تفسیر آیات القرآن**

تالیف : شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا **أسید الله** صاحب رحمه الله

تصحیح ونظر ثانی : مولانا تقی الله صاحب

جلد : دریم

صفحات : ۶۸۰

تاریخ : ۲۰۱۶ء

جدید مکتبہ رشیدیہ

محلہ جنگی قصہ خوانی پشاور 091-2580074

د کتاب تر لاسه کولو ځایونه

| | | |
|---|---|---|
| پشاور ٭ | ٭ کندوز | ٭ بغلان |
| اکوړه ختک ٭ | ٭ غزني | ٭ لوګر |
| کوټه ٭ | ٭ جلال آباد | ٭ خوست |
| پروان ٭ | ٭ قندهار | |

| ركوع (۱۰) | سورة الانفال مدنية | اٰيتونه (۷۵) |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| | شروع كوم په نامه د الله چه بيحده مهربانه او ډير رحم كونكې دې | |

**رقمها حسب التسلسل (۸) وحسب النزول (۸۸)**
**نزلت بعدالبقرة**

**ربط**: سورتِ بقره په اعتباردمضامينوسره اصل دې مضمون دتوحيد، نفی دشرک اعتقادی اوفعلی وغيرهما اومضمون درسالت اوامورانتظاميه امورمصلحه او مضمون دجهاد داتپول په كښې بيان شويدی، دسورةِ بقرې نه روستو سورتونوكښې ، دبعض مذكورو مضامينو تفصيل ذكرشوې دې مثلاً په سورت ال عمران كښې دشرک اعتقادی نفی اواثبات رسالت په تفصيل سره مذكوردی اوپه سورت نساء كښې دامورانتظاميو ذكردې په تفصيل سره اوپه سورتِ مائده كښ دشرک فعلی نفی ده په تفصيل سره ليكن مسئله دجهادپه ماقبل سورتونو كښې په زيات تفصيل سره نه وه مذكوره نوپه دې سورت كښې دمسئلې دجهادتفصيل دې

**خلاصه د مضامينو** : دسورت دوه حصې دی په اوله حصه كښې دوه دعوی دی اوله دعوی خصوصی چه ((الانفال لله والرسول)) دويمه دعوی عمومی، چه ((وقاتلو هم حتى لاتكون فتنة)) ، آيت نمبر ۳۹ په اوله حصه كښې، دالانفال لله والرسول اوه ۷ علتونه ذكركيږی اوپنځه قوانين دجهاد ذكركيږی، اوپه دويمه حصه كښې چه د﴿وَاعۡلَمُوۡا اَنَّمَا غَنِمۡتُمۡ﴾ نه شروع كيږی تفصيل داولې دعوې دې اوپه طريقه دلَف نشر مرتب سره اوه ۷ قوانين دجهاداوپنځه علل ذكركيږی

يَسۡـَٔلُوۡنَكَ عَنِ الۡاَنۡفَالِ ۖ قُلِ الۡاَنۡفَالُ لِلّٰهِ وَالرَّسُوۡلِ ۚ

تپوس كوی دوئ ستا نه په باره د غنيمتونو كښ، ته ووايه [۱] اختيار د غنيمتونو الله تعالى او رسول لره دې

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَصۡلِحُوۡا ذَاتَ بَيۡنِكُمۡ ۖ وَاَطِيۡعُوا اللّٰهَ وَرَسُوۡلَهٗۤ اِنۡ كُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ ①

پس يره كوئ د الله تعالى نه او جوړ ساتئ تعلق په مينځ خپل كښ اوتابعداری كوئ د الله او د رسول دهغه كچرې يئ تاسې مؤمنان

---

۱ - د سورة انفال اوله دعوی بالاجمال يعنی د مالِ غنيمت تقسيم د الله تعالى او د رسول د حكم مطابق وكړئ. په خپله رائ سره ئې مه كوئ او (واعلموا — الآيه) د دې دعوې تفصيل دې

إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ

بيشکه مؤمنان هغه کسان دي چه کله ياد کړې شي الله نو وه يريږي زړونه د دوئ اوکله چه لوستلې کيږي په دوئ باندې

اٰيٰتُهٗ زَادَتْهُمْ اِيْمَانًا وَّعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ﴿٢﴾ الَّذِيْنَ

آياتونه د کلام الله نو زياتوی دوئ لره ايمان او خاص په خپل رب باندې دوئ توکل کوی . دا هغه کسان دی

يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿٣﴾ اُولٰٓئِكَ

چه پابندی کوی د مانځه او دهغه مال نه چه مونږ ورکړې دي دوئ ته خرچ کوی په لاره د الله کښې. دغه کسان

هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا لَهُمْ دَرَجٰتٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَمَغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ ﴿٤﴾

هم دوئ مؤمنان دی په حقه سره د دوئ لپاره ډيرې درجې دی په نيزد د رب د دوئ اوبښنه ده او رزق د عزت دې.

﴿يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَنْفَالِ﴾ په جنګ بدر کښې الله تعالى مؤمنانوته فتح ورکړه اوډيرغنيمتونه ئ په لاس کښې راغلل، هرکله چه ددينه مخکښې دغنيمتونوپه باره کښې حکم نه وونازل شوې نوددې وجې نه دصحابؤ په مينځ کښې اختلاف راغلو ځکه چه بعض حضرات ځوانان داسې وو چه هغوئ جنګ کړې وو اوبعض حضرات مشران داسې وو چه دجنګ کونکونه روستو، شاته ولاړوو، دامدادکولوپه نيت اوجنډې ئ په لاسونو کښې وې اوبعض حضرات دنبی ﷺ دحفاظت کولودپاره ولاړوو، نوچاچه جنګ کړې وو نوهغوئ اووئيل چه دامالِ غنيمت صرف زمونږ حق دې اونوروحضراتو اووئيل چه په دې مال غنيمت کښې زمونږ هم حصه ده ځکه چه ((کنالکم رِدْاً))، مونږ ستاسومددګار وو، نودوئ په دې باره کښې دنبی ﷺ نه سوال اوکړو نودا آيت نازل شو، او حکم راغلو چه تقسيم دغنيمتونو ستاسو په اختيارکښې نه دې بلکه صرف دالله تعالى اورسول دحکم موافق به تقسيمولې شی.

**انفال** جمع دنفل ده، نفل يوپه معنى دهغه انعام راځی چه اميراوواۍ چه که چادافلانۍ مورچه فتح کړه ياۍ فلانې کافرقتل کړو نوهغه ته بهٔ داانعام ورکولې شی، بل په معنى دمالِ غنيمت راځی دلته دادويمه معنى مرادده، اومال غنيمت په عرف دشرع کښې هغه مال ته واۍ چه دکفارونه په ذريعه دجهادسره قهراً حاصل شی اوديته نفل ځکه واۍ چه نفل زياتی ته واۍ اومال غنيمت داصل مقصدجهاد نه زائد شئ دې اصل مقصدجهاد اعلاء دکلمة الله ده، غنيمت نه دې، ياداچه دمالِ غنيمت حلال والې ددی امت دپاره زائدخصوصيت دې. کمافی

الحديث ((احلت لناالغنائم ولم تحل لاحدٍ قبلنا))، اوهرچه مالِ فئ دي نوداهغه مال دي چه دکفارو نه صلحًا واغستې شی یاپه کفاروعب راشی اومال پرېږدی دهغې ذکر په سورتِ حشرکښې دې.

﴿فَاتَّقُوا اللَّهَ﴾ يعنې ستاسو دشان سره نزاع اوجهګړه مناسب نه ده بلکه داصفات مناسب دی، تقوی ،اصلاح ذات البين(خپل مينځ کښې تعلق جوړساتل) اطاعت دالله تعالی اودرسول ، اوپه وخت دذکرالله کښې زړه پريدل په وجه دعظمت دالله تعالی سره، اود تلاوت داياتونو په وجه زيادت دايمان، اوتوکل ، اقامت صلوة ، انفاق.

﴿زَادَتْهُمْ إِيمَانًا﴾ امام ابوحنيفه رحمه الله اوماتريديه وائ چه ايمان تصديق قلبی ته وائ، اجزاء ورته نشته دي نوددی وجې نه په ايمان کښې زيات والې کموالې نه شی راتلې، نوپه کوموآياتونوياحاديثو کښې چه دايمان دزيادت ذکردې نودهغې نه مرادزيادت په اعتباردکيفيت سره مراددې، نه دکميت په اعتبارسره يعنې دزيادت نه مراد شدت،اوقوت دې نوپه ايمان کښې قوت اوضعف راځی اوزيات والې کموالې په کښې نه راځی زيات والې کم والې په هغه شئ کښې راځی چه هغه لره اجزاء وی،باقی مسئله شراحُودبخاری په ډيرتفصيل سره ذکرکړې ده.

| |
|---|
| كَمَآ اَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنْۢ بَيْتِكَ بِالْحَقِّ ۠ وَاِنَّ فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ لَكٰرِهُوْنَ ۝ |
| لکه(څکه)[1] چه ويستلې ئ ته رب ستا دکور ستانه،په حقه سره اوبيشکه يوه ډله د مؤمنانو نه راضی نه وو(طبعًا په تلو کښې جنګ له) |

| تَبَيَّنَ | بَعْدَمَا | الْحَقِّ | فِي | يُجَادِلُوْنَكَ |
|---|---|---|---|---|

| |
|---|
| بحث مباحثه ئ کوله ستا سره په باره د حق (جنګ) کښې روستو د هغې نه چه ظاهر شوې وو (فرضيت د هغې) |
| كَاَنَّمَا يُسَاقُوْنَ اِلَى الْمَوْتِ وَهُمْ يَنْظُرُوْنَ ۝ |
| ګويا کښې بوتللې کيدل دوئ مرګ ته او دوئ ورته ګوری. |

﴿كَمَآ اَخْرَجَكَ رَبُّكَ﴾ کاف دپاره دتعليل دي اوداعلت اولی دي ﴿بِالْحَقِّ﴾ دحق نه مراد حکمت اومصلحت دې ای بالحکمة، ﴿لَكٰرِهُوْنَ﴾ دکراهية نه مرادطبعی کراهيت دې څکه

---

۱ - اول علت لپاره د دعوې.

صحابو دجنگ تياري نه وو كړې، دجنگ سامان ورسره نه وواودشمارپه لحاظ سره هم كم وونوميدان جنگ ته په داسې حالت كښې تلل ئ نه وو خوخ ليكن الله تعالى راوويستل اوفتح اوغنيمت ئ ورته وركړو، نوالله تعالى فرمائ چه لكه څه رنگه چه ستاسودخروج نه كراهيت طبعي وو ليكن الله تعالى راؤباسلئ اوپه دې كښې حكمت وو نودغه شان، (الانفال لله والرسول وان كرهتم).

﴿يُجَٰدِلُونَكَ﴾ دوئ ستاسره ددې حكمت اومصلحت په باره كښې، يادجهاد يعنى دلښكر سره په مقابله كولوكښې بحث گفتگو كوله نود ﴿فِي الْحَقِّ﴾ نه مراديا حكمت اومصلحت دې ياترينه مراددلښكرسره مقابله كول دى ياترينه مراد واضحه خبره اوواضح امردې،

﴿بَعْدَ مَا تَبَيَّنَ﴾ روستوددې نه چه دوئ ته داخبره واضحه شوې وه چه نبى ﷺ چه څه وائ نوهغه په ذريعه دوحى سره وائ، جنگ بدرپه سنه ۲ھ كښې شويدې دمشركانوقافله دابوسفيان په امارت كښې دشام نه راتله اوډيرمال اوسرمايه ورسره وه، نونبى ﷺ په دغه قافله باندې دحملې كولوپه نيت روان شو، دلگو كسانو اولگې اسلحې سره، نوابوسفيان چه خبرشو نولار.ئ بدله كړه، اوابوجهل ته ئ اطلاع وركړه نوهغه دډيرلښكر اوډيراسلحى سره، دمسلمانانو مقابلې ته راروان شو، نونبى صلى الله عليه وسلم چه ددى خبرې نه خبرشو، نودصحابو نه ئ مشوره واغسته، چه آياپه قافلې باندې دحملې دپاره لاړشو اوكه دلښكر مقابله اوكړونودبعض صحابو رائ داوه چه چونكه مونږ دجنگ دپاره تيارې نه دې كړې نودلښكر مقابله كول گران دى، نبى عليه الصلوة والسلام ته داخبره نه وه خوخه، نودوئ اوفرمائيل چه الله تعالى ځما سره وعده كړيده، چه په دى دواړو طائفو كښې چه دكومې ډلى سره ستاسومقابله راشى نوهغوئ به الله تعالى زمونږ په مقابله كښې مغلوب كوى نوددې وجې نه دلښكرسره مقابله كول پكاردى چه دمشركينو قوت ختم شى، حضرت ابوبكرصديق اوعمر﷛ اوحضرت مقداد ﷛ اوسعد ﷛ دنبى ﷺ درائ په حق كښې ډير زوردار، پُرجوش تقريرونه اوكړل.

﴿كَأَنَّمَا يُسَاقُونَ﴾ داتمثيل دكراهيت دپاره دې، دظاهراسبابو اوحالاتو په اعتبارسره په دغه وخت كښې دجنگ نقشه داسې وه چه گويا، دوئ يعنى مؤمنان، ((په دې وجه سره چه قليل اوبې سروسامان دى)) بوتللې شى دقتلولودپاره په داسې حال كښې چه دوئ خبروى اوگورى، څوك چه خبروى اوگورى چه مادقتل دپاره بوزى، نوددې تحمل اوبرداشت ډيرگران وى اوډداسې

تللونه طبعاً ډیرنفرت وی لیکن صحابؤ ﷡ په هرحالت کښې دالله تعالی اورسول اطاعت کولو اګرکه ددوی طبیعت به دیو کارنه ډیرنفرت کولو ، رضی الله عنهم اجمعین

| |
|---|
| وَ اِذْ يَعِدُكُمُ اللّٰهُ اِحْدَى الطَّآىِٕفَتَيْنِ اَنَّهَا لَكُمْ وَتَوَدُّوْنَ |
| اوکله چه وعده وکړه ستاسو سره الله تعالی [1] د یو د دوؤ ډلو، چه دا به ستاسو لپاره وی او تاسو غوښتله چه |
| اَنَّ غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ تَكُوْنُ لَكُمْ وَيُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّحِقَّ الْحَقَّ بِكَلِمٰتِهٖ وَيَقْطَعَ دَابِرَ الْكٰفِرِيْنَ ۝ |
| دابې وسلې ډله ستاسو لپاره شی، اود الله تعالی اراده وه چه ښکاره کړی حق په وعدو خپلو سره او پرې کړی جرړې د کافرانو |
| لِيُحِقَّ الْحَقَّ وَيُبْطِلَ الْبَاطِلَ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُوْنَ ۝ اِذْ تَسْتَغِيْثُوْنَ رَبَّكُمْ |
| د دې لپاره چه غالب کړی حق لره او ختم کړی باطل لره اګرکه بد ګڼړی مجرمان کوم وخت چه فریاد کوو تاسو خپل رب ته |
| فَاسْتَجَابَ لَكُمْ اَنِّيْ مُمِدُّكُمْ بِاَلْفٍ مِّنَ الْمَلٰٓىِٕكَةِ مُرْدِفِيْنَ ۝ |
| نو قبول ئ کړو فریاد ستاسو چه بیشکه خه امداد کوم ستاسو په داسې زر فرښتو سره چه په خان پسې به نورې ډلې راولی |
| وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰى وَلِتَطْمَىِٕنَّ بِهٖ قُلُوْبُكُمْ |
| او ندی ګرخولی الله تعالی دا ملائك رالیګل مګر زیرې او د دې لپاره چه کلك شی په دې سره زړونه ستاسو، |
| وَمَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ۝ |
| اوندې مدد مګر د طرف د الله تعالی نه دې ، بیشکه الله تعالی زور آور اوحکمت والا دې |

﴿ وَاِذْ يَعِدُكُمُ اللّٰهُ ﴾ دادویم علت دې داثبات ددعوې اولی دپاره اوددینه تول علتونه په ‹اذ› سره مصدر ‹شروع› کیږی، الله تعالی په ذریعه دوحی سره اودارنګه په ذریعه دخوب سره دوی ته اوښودله چه دکافرانو په یوه ډله باندې به تاسو ته غلبه درکوی، نوصحابؤ ته داخبره خوخه وه چه په قافله دابوسفیان باندې مونږ ته غلبه حاصله شی خکه چه په دې کښې اسانی ده، اوډیرمال غنیمت دحصول توقع ده ، لیکن دالله تعالی اراده وه چه دلښکر سره مقابله اوشی اودحق اودباطل په مینځ کښې فیصله کُن جنګ اوشی اودکفرجرړی کټ شی، نوحاصل داشو چه ستاسو خودانه وه خوخه چه دَ لښکر سره مقابله راشی لیکن الله تعالی ستاسومقابله دابوجهل

---

[1] ـ دویم علت

دلښکر سره راوسته اوفتح اوغنیمت ئ درکړو نوتاسوبهٔ مال غنیمت هم دالله تعالی اورسول الله دحکم مطابق تقسیموئ، ﴿إِحْدَى ٱلطَّآئِفَتَيْنِ﴾ دامفعول ثانی د ﴿يَعِدُكُمُ﴾ دپاره دي ﴿أَنَّهَا لَكُمْ﴾ ترینه بدل اشتمال دي ﴿وَتَوَدُّونَ أَنَّ غَيْرَ ذَاتِ ٱلشَّوْكَةِ﴾ شوکة په لغت کښې ازغی ته وائ اومرادترینه اسلحه اوقوت دي، (ذات شوکت) قافله دابوجهل وه او (غیر ذات شوکت) قافله دابوسفیان وه نومؤمنانوته داخوخه وه چه دابوسفیان دطائفی سره مقابله اوشی، دهغوئ عددکم وواومال غنیمت پکښې ډیروو لیکن دالله تعالی اراده وه چه ددوئ مقابله دلښکرسره اوشی ددی دپاره چه اعلاء ددین اواظهار دحق اوشی اودکفرجرړی کټ شی، ﴿يُحِقَّ ٱلْحَقَّ﴾ غالب کړی دین حق ﴿بِكَلِمَٰتِهِۦ﴾ په آیاتونودقتال یاپه نزول دملائکو سره یاوعده دنصرت دالله تعالی دمؤمنانو سره.

﴿لِيُحِقَّ ٱلْحَقَّ وَيُبْطِلَ ٱلْبَٰطِلَ﴾ داپه ظاهر کښې تکراردي لیکن په حقیقت کښې تکرارنه دې، خکه اول بیان دمراددې، اوبیان دتفاوت دې په مابین دمراددالله تعالی اومرادددوئ کښې اودویم بیان دعلت دې دپاره داختیاردذات الشوکة، ﴿إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ﴾ دادریم علت دې ددعوی دپاره دابن عباس ﷺ نه روایت دې چه نبی ﷺ چه جنګ بدرکښې دُعا اوکړه : اللهم ان شئت (ای غلبة الکفار) لم تعبد، اوپه بل روایت کښې دی : اللهم انجزلی ماوعدتنی، او په بل روایت کښې دی: اللهم اِن تهلك هٰذه العصابة من اهل الاسلام لا تُعبد فی الارض، (لاتعبد) ئ خکه وئیل چه ددوئ داعزم وو چه یابه حق غالب کیږی یابه مونږ خپل ځان قربان کوؤ اونبی ﷺ خوخاتم النبیین دې نوکه دې شهیدشی نوبل نبی خونه راځی نودالله تعالی عبادت به په زمکه کښې نه وی، نوپه دې دعاکښې یواشاره دختم نبوت ته بل کلک اومضبوط عزم ته، نوالله تعالی دعاقبوله کړه فتح اوغنیمت ئ ورته ورکړو نوفرمائ چه دمال غنیمت په تقسیم کښې اختلاف مه کوئ خکه ستاسو دعاخوماقبوله کړه اوغنیمتونه درته مادرکړل، ﴿أَنِّى﴾ دا د ((فاستجاب)) سره متعلق دې اوباء مقدره ده ((ای بانی)) یاد ((اُخبِرُکُمْ)) مقدرسره متعلق دې، ﴿بِأَلْفٍ مِّنَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةِ﴾ دکفارو د فوج تعداد یوزر۱۰۰۰ وونوددی وجې نه د ((الف)) ذکرحتمی اوغیر مشروط طورسره او د (خمسة الاف) ذکرپه شرط سره شویدې باقی تفصیل په سورة ال عمران کښې تیرشویدې ﴿مُرْدِفِينَ﴾ په یوبل پسی راتلونکی، شاه ولی الله رحمه الله ددی ترجمه داسی کوی (جماعت فرشتگان که ازپس خودجماعت دیگر آورند) په داسې طریقه راتلو سره په دشمن

باندې رعب زیات راخی، ﴿ وَمَا جَعَلَهُ اللَّهُ إِلَّا بُشْرَىٰ ﴾ په دې کښې دفع دتوهم ده، هغه داچه چابه داګمان کوۀ چه امداد به دملائکو په اختیارکښې وی نوجواب راغې چه امدادصرف دالله تعالی په قدرت کښې دې ، دلته په دې آیت کښې چه دنصرت حصر په الله تعالی پورې راغلې دې نومراد ترینه هغه نصرت دې، چه ، ،مافوق الاسباب ، ، وی ځکه چه دالله تعالی هیڅ یوصفت هم داسبابو ماتحت نه دې الله تعالی په خپل ذات صفاتوکښې دهیڅ سبب محتاج نه دې، اوکوم نصرت چه مخلوق ته ئ نسبت کیدې شی نوهغه نصرت دې چه ماتحت الاسباب ، ، وی یعنی دظاهری اسبابوماتحت وی، نومطلب دآیت دادې چه حقیقی نصرت چه دالله تعالی صفت دې نوهغه موقوف نه دې په نزول دملائکو اونه بل څه سبب ته محتاج دې البته اسباب ظاهر یه بی فائدی اولغوه هم نه دی، بلکه په دوئ کښې ډیرمصالح اوحِکَم وی، دلته ددوؤ مصلحتونو ذکردې اول، ﴿بُشْرَىٰ﴾ یعنی چه آثاردخوشحالئ په مخ باندې ظاهرشی، اودویم اطمینان دقلب یعنی چه ستاسو زړونه مضطرب اوپریشان نه شی،داسبابِ ظاهریو سره تسلی رازی ځکه چه انسان دأنس نه ماخوذدې.

| إِذْ يُغَشِّيكُمُ النُّعَاسَ أَمَنَةً مِّنْهُ وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُم مِّنَ السَّمَاءِ |
|---|
| کله چه پټ کړئ تاسو الله تعالی په پرکالئ سره د امن لپاره د طرف د هغه نه او را وه ورولې ئ په تاسو د طرف د آسمان نه |
| مَاءً لِّيُطَهِّرَكُم بِهِ وَيُذْهِبَ عَنكُمْ رِجْزَ الشَّيْطَانِ وَلِيَرْبِطَ |
| اوبه، د دې لپاره چه پاک کړی تاسو لره په هغې سره او لرې کړی ستاسو نه پلیتی د شیطان، اوچه کلك والې راولی |
| عَلَىٰ قُلُوبِكُمْ وَيُثَبِّتَ بِهِ الْأَقْدَامَ ﴿١١﴾ إِذْ يُوحِي رَبُّكَ إِلَى الْمَلَائِكَةِ |
| ستاسو په زړونو ، او کلك کړی په سبب د دې سره قدمونه ستاسو. کوم وخت چه وحی وکړه رب ستا ملائکو ته |
| أَنِّي مَعَكُمْ فَثَبِّتُوا الَّذِينَ آمَنُوا ۚ سَأُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا الرُّعْبَ |
| چه زه ستاسو سره یم پس مضبوط کړئ هغه کسان چه ایمان ئ راوړې دې، خامخا به واچوم زه په زړونو د کافرانو کښې یره |
| فَاضْرِبُوا فَوْقَ الْأَعْنَاقِ وَاضْرِبُوا مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ ﴿١٢﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ شَاقُّوا |
| پس وهئ دوئ دپاسه د څټونو او وهئ د دوئ نه هر هر بند د ګوتو. دا په سبب د دې چه دوئ خلاف کړې دې |

| اللَّهَ | وَرَسُولَهُ | وَمَن | يُشَاقِقِ | اللَّهَ | وَرَسُولَهُ | فَإِنَّ | اللَّهَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د الله تعالى | او د رسول د هغه نه، | او چا چه | خلاف وکړو | د الله تعالى | او دهغه د رسول | نو پس بیشکه | الله تعالى |

| شَدِيدُ | الْعِقَابِ ﴿١٣﴾ | ذَٰلِكُمْ | فَذُوقُوهُ | وَأَنَّ | لِلْكَافِرِينَ | عَذَابَ | النَّارِ ﴿١٤﴾ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سخت عذاب | ورکونکي دي | دا عذاب ستاسو | پس وڅکئ دا په دنیا کښې | او پوهه شئ چه بیشکه | د کافرانو لپاره | عذاب | د اور دي |

﴿ إِذْ يُغَشِّيكُمُ ٱلنُّعَاسَ ﴾ داځلورم علت دي په میدان بدرکښې صحابۇ ته دخپل قلت په وجه خوف هم راغي اوبعض صحابۇ ته احتلام هم شوي وو نوشیطان ورته وسوسی واچولې نوالله تعالى په دوئ باندې عین په میدان جنګ کښې (نعاس) پرنا ، ،راوست نودزړه نه ئ خوف زائله شو اوباران ئ اوکړو نودوئ په اوبودباران اودسونه اوغُسلونه اوکړه نوطهارت ورته حاصل شو. وسوسی زائله شوی، اودمیدان جنګ په کومه حصه کښې چه مؤمنان وۇ هغه حصه خالص ریګ وۇ چه ګرځیدل پکښې مشکل وۇ خپې پکښې خخیدلې، نو دَ باران په وجه ډیره نرمه او برابره شوه، او په کومه حصه چه کفاروو نوهغه خاوره وه نوپه باران سره پکښې ختې جوړشوی. نوحاصل دعلت داشو چه ستاسونه په میدان کښې خوف اووسوسی الله تعالى زائله کړیدی نولهذامال غنیمت به هم دهغه دحکم موافق تقسیمولې شی ﴿أَمَنَةً﴾ داحال یامفعول له دي.

﴿لِيُطَهِّرَكُم ﴾ پاک والې په اودس کولواوغسل کولوسره مراددي ﴿ رِجْزَ ٱلشَّيْطَٰنِ ﴾ بی اودسی یاجنابت یاهغه وسوسی چه شیطان دمؤمنانو په زړونوکښې اچولې وې، نُعاس. په جنګ بدرکښې هم راغلي وواوپه جنګ احدکښې هم راغلي وو، دحضرت علی ﷺ نه روایت دي چه نعاس په صحابۇ باندې راغلي وو اوپه نبی ﷺ باندې نه وو راغلي بلکه نبی ﷺ د سحر پورې په مونځ او دعاء کښې مشغول وۇ ځکه چه نعاس د پریشانئ علاج وۇ اونبی ﷺ ته پریشانی نه وه، ﴿وَيُثَبِّتَ بِهِ ٱلْأَقْدَامَ ﴾ مراددادي چه په ریګ کښې قدمونه ، اونه خوئیګی، یادامراددي چه زړه مظبوط شی نوقدمونه هم مضبوط شی، ﴿إِذْ يُوحِي رَبُّكَ ﴾ داپنځم علت دي یعنی الله تعالى تاسولره ملائک په جنګ کښې شریک کړل اودهغې په وجه ئ فتح درکړه لهذاتاسودمال غنیمت تقسیم دهغه دحکم موافق اوکړئ.

﴿فَثَبِّتُوا ٱلَّذِينَ ﴾ تثبیت د مؤمنانو په درې طریقو سره وۇ : اول : قولی یعنی زیرې مؤمنانو ته

، دويم عملي وؤ چه ملائك حاضر شوی وؤ جنګ ته په شکل د انسانانو کښ، دريم په طريقه د الهام سره په زړونو د مؤمنانو کښ، ﴿فَوْقَ ٱلْأَعْنَاقِ﴾ بعض مفسرين وائ چه لفظ دفوق زائد دې اى فاضربوالاعناق، څټ، مذبح دې نوځکه ئ تخصيص اوشو اوبعض وائ چه دا لفظ دفوق زائد نه دې نودڅټ دپاسه دَ سرکپرئ ده د کپرئ په وهلوسره هلاکت يقينًا راځی نوځکه ئ تخصيص اوشو، او ﴿بَنَانٍ﴾ جمع ده اومفرد ورته بنانة راځی، ابن عطيه وائ، يعنى كل مفصلٍ، ابن عباس ﷺ وائ يعنى الاطراف، اطراف الاصابع من اليدين والرجلين، دَ فوق الاعناق ،يعنى دراس تخصيص ځکه اوشوچه دا اشرف الاعضاء دې اودبنان ذکرځکه اوشوچه دااضعف الاعضاء دې نوداخل شوپه کښې ټول اعضاء دجسد، ياداچه دکپرئ په وهلوسره هلاک راځی. اوپه ضرب دبنان ‹بندونه› سره حرکت کول ختميږی نوتوره يابله اسلحه نشی نيولې، اوتختيدلې هم نه شی، ﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ﴾ يعنى داقتل اوضرب په دې سبب سره دې چه دوئ دالله تعالى اودرسول الله ﷺ مخالفت کړيدې، شاق، شقاق، په اصل کښې مجانبة ته وائ يعنى ديوشئ نه دوه ټکړی جوړې شی يو دَبل په مقابله کښې وی، دغه شان هرکافر، مشرک دالله تعالى ددين په مقابله کښې ځان ته لاره جوړه کړيده، ﴿ذَٰلِكُمْ﴾ دااسم اشاره، مبتداءده اودا اشاره مذکوربماقبل ته ده چه ضرب قتل دې، او (كُمْ) خطاب دې کافرانو ته، اوخبرمحذف دې اى العذاب فى الدنيا، يعنى دامذكور عذاب ددنيادې، او(فا) په ﴿فَذُوقُوهُ﴾ کښې استينافيه ده نوداجمله مستانفه ده، يا (ذلکم)، منصوب دې په اضمار على شريطة التفسير سره، اى ذوقواذلکم فذوقوه، ملائکو به کافرانو ته چه سزاورکوله نوويل به ئ چه داعذاب اوڅکئ په دنياکښې اوبه دې بس نه دې بلکه په آخرت کښې دکافرانو دپاره دجهنم دائمى عذاب دناردې، ذوق ئ په طريقه داستهزاءسره ذکرکړيدې ځکه چه ذوق دخوړ شئ دپاره استعماليږی، ﴿وَأَنَّ لِلْكَٰفِرِينَ﴾ ددينه مخکښې واعلموا مقدردې.

| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا لَقِيتُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوهُمُ ٱلْأَدْبَارَ ۝ |
|---|
| اې ايمان والو [1] کله چه مخامخ شئ تا سو د کافرانو سره په حال د جنګ کولو کښ پس مه ګرزوئ دوئ ته شاه ګانې |

---

۱ - اول قانون دجهاد .

| وَمَنْ يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُ إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ أَوْ مُتَحَيِّزًا |
|---|
| اوچا چه وګرزوله دوئ ته په دغه ورځ کښې شا خپله مګر که هُنر کونکې وی لپاره د جنګ یا یوزائ کیدونکې وی |
| إِلَىٰ فِئَةٍ فَقَدْ بَاءَ بِغَضَبٍ مِّنَ اللَّهِ وَمَأْوَاهُ جَهَنَّمُ ۖ |
| د ډلې خپلې سره نو پس په تحقیق سره اخته شو دې په غضب د الله سره او ځائ د اُوسیدلو د ده جهنم دې |
| وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ۝ فَلَمْ تَقْتُلُوهُمْ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ قَتَلَهُمْ ۚ |
| او ډیر بد ځائ د ګرځیدلو دې دا جهنم . پس نه دی قتل کړی تاسو هغوئ لره لیکن الله تعالی قتل کړیدی دوئ لره |
| وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ ۚ |
| اونه دی رسولې تاشکې ستر ګو دکفارو ته هرکله چه تا ګذارې کړې د لاس نه لیکن ورسولی هغه الله تعالی ستر ګو د کفارو ته. |
| وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ بَلَاءً حَسَنًا ۚ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ۝ |
| او د دې لپاره چه انعام اواحسان وکړی په مؤمنانو دخپل طرف نه انعام ښائسته، بیشکه الله هرڅه اوریدونکې او پوهه دې |
| ذَٰلِكُمْ وَأَنَّ اللَّهَ مُوهِنُ كَيْدِ الْكَافِرِينَ ۝ |
| دا کار خو داسې وشو او بیشکه الله تعالی کمزورې کونکې دې تدبیر د کافرانو لره. |

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا ﴾ دا **اول قانون دجهاددې** چه په میدان جنګ کښې کافرانو ته ، شاء مه ګرځوئ، اوتیښته مه کوئ داګناه کبیره ده، ﴿ زَحْفًا ﴾ منصوب دې حال دې یعنی په حالت دجنګ کښې، زحف په اصل کښې مصدردې خړپوسی کولودبچی ته وئیلې شی، زحف الصبی اذا دب علی استه قلیلاً قلیلاً ، په میدان جنګ کښ هم مجموعه لښکر آهسته آهسته په نظر راځی د کثرت په وجه لکه ماشوم بچې چه آهسته آهسته په خړپوسو روان وی نودذی وجه نه لښکرته اوجنګ ته زحف وئیلې شی، یوم الزحف دجنګ ورځې ته وائ، ﴿ وَمَن يُوَلِّهِمْ ﴾ داوعیددې په تولی اوپه تیښته باندې په جنګ کښې، ﴿ وَمَن يُوَلِّهِمْ ﴾ شرط دې او ﴿ فَقَدْ بَآءَ ﴾ ئ جزاء ده،او ﴿ إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ أَوْ مُتَحَيِّزًا ﴾ په درمیان کښې ددوؤحالتونو استثناء ده، اول حالت دادې چه هُنر اوچل ول جوړوی دپاره دقتال په دې شان چه دشمن ته شااوګرځوی اوپه

ظاهر کښې تیښته اوکړی اوناڅاپه بیاواپس شی اوپه دشمن حمله اوکړی (یقال له الکرارفی صف القتال) دویم حالت دادې چه مجاهد دخپل ډلی نه یواځې شوې وی نوخپل ځان یوډلی ته رسوی دپاره ددی چه تقویت حاصل کړی په هغوئ سره نوپه دې صورت کښې تیښته جائزده په ارادې دتقویت حاصلولوسره نه په نیت دتیښتې سره ﴿ فَلَمْ تَقْتُلُوهُمْ ﴾ دامتفرع دې په مذکور علتونوبآندې حضرت مجاهد رحمه الله وائ چه دبدردفتح نه پس بعض مجاهدینو اووئیل چه مافلانې کافرقتل کړو اودغه شان نورو مجاهدینو اووئیل چه مافلانې قتل کړو نوالله تعالی اوفرمائیل چه خبره دغه شان نه ده بلکه په بدرکښې الله تعالی مشرکین قتل کړیدی اوذلیل کړی ئ دی، په ظاهرکښې اګرکه دمؤمنانو دلاس نه دوئ قتل شویدی لیکن دوئ ته الله تعالی توفیق ورکړې دې نوپه حقیقت کښې الله تعالی قتل کړی دی ﴿وَمَا رَمَيْتَ ﴾ داترقی ده دماقبل نه چه په ماقبل کښې نفی وه دمؤمنانو نه اودلته نفی کیږی درسول پاک ﷺ نه روایت دې (کمافی مسلم وغیره) چه په ورځ دبدرکښې نبی ﷺ حضرت علی رضی الله عنه ته اووئیل چه ماته یوموټې شګې راکړه، نوبیانبی ﷺ هغه غوځارې کړې اواوئ وئیل شاهت الوجوه، نوپه میدان هیڅ یوکافر داسې پاتې نه شو مګردهغه سترګواوخولې ته دغه شګې اورسیدلې اودوئ واپس شو اومؤمنان وریسی شونو څنې ئ قتل کړل اوځنې ئ قید کړل ،نوالله تعالی اوفرمائیل ﴿وَمَا رَمَيْتَ ﴾ دلته دیوفعل اثبات هم شویدې رسول الله ﷺ لره اونفی ئ هم شویده نومراد د اثبات نه اثبات دې پحسب دظاهراومراددنفی نه نفی ده په حسب دحقیقت سره یاداچه کوم فعل دبنده په کسب اواختیارکښې وی نوبنده ته ئ نسبت کسبًا کیږی نه خلقًا اوکوم فعل چه دبنده په اختیار کښې نه وی نوبنده ته ئ نسبت مطلقًا نه کیږی نو دلته چه اثبات درمی شویدې نومرادترینه شګی اوکانړی ویشتل دی دلاس نه نوداپه اختیاراوکسب دپیغمبر ﷺ سره دې نواثبات ئ شویدې کسبًا اونفی چه شویده نودهغې نه مرادرَسوَل دی سترګودکافرانوته اوهغه په اختیار دپیغمبرکښې نه وو نو ځکه نفی ئ شویده دپیغمبر نه اواثبات ئ شویدې الله تعالی لره په ﴿وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ ﴾ سره نومعنی داشوه چه تاندی رَسولی شګی سترګو دکافرانو ته کله چه تاؤ ویشتلې ، بلکه الله تعالی رسولی دی ، اوپه قتل کښې ئ ظاهری نسبت اونه کړو بندګانو ته په شان درمی ځکه چه دقتل نه مراد قبض دروح دې اوپه هغې کښې دخل نشته دې اختیار دبنده لره، ﴿وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِينَ ﴾ واؤ زائده دې اوداعلت دې دماقبل دپاره یاواؤ عاطفه دې اومعطوف

عليه مقدردي ای ليمحق الكافرين وليبلى المؤمنين، يبلى په معنى د يعطى سره دي بلاءً په معنى دعطاءً سره ای ليعطى المؤمنين عطاءً حسنًا ای جميلاً بلامشقة، ﴿ ذَٰلِكُمْ ﴾ ددينه مخكښې قلنا مقدردې اوروستوترينه ، فذوقوه مقدردي ای قلنا ذلكم فذوقوه او د ((أنّ)) نه مخكښې واعلموا مقدردي ای واعلمو ان الله موهن – الخ يعنى مونږ اووئيل چه داعذاب اوڅکئ اويقين اوساتئ چه الله تعالى دكافرانو مكرفريب بيكاره كونكې دې، يا د ذلكم نه مخكښې مبتداء مقدره ده اوپه ذالكم كښې اشاره ده ابتلاء المؤمنين ته ، وان الله – الخ، عطف دې په ذلكم باندې معنى داده چه المقصود ذلكم وان الله – الخ يعنى مقصود يوابتلاء دمؤمينو ده اوبل دكافرانو مكراوفريب بيكاره كول دى.

| |
|---|
| إِنۡ تَسۡتَفۡتِحُوۡا فَقَدۡ جَآءَكُمُ الۡفَتۡحُ ۚ وَاِنۡ تَنۡتَهُوۡا فَهُوَ خَيۡرٌ لَّكُمۡ ۚ |
| كه تاسو فيصله غواړئ نو پس په تحقيق سره راغله تاسو ته فيصله، اوكه تاسو منع شئ د كُفر نه پس دا غوره ده تاسو لره. |
| وَ اِنۡ تَعُوۡدُوۡا نَعُدۡ ۚ وَلَنۡ تُغۡنِىَ عَنۡكُمۡ |
| اوكه تاسو واپس كيږئ نافرمانئ ته نو مونږ به واپس شو امداد د مؤمنانو ته، او هيڅ چرې به دفع نه كړى ستاسو نه |
| فِئَتُكُمۡ شَيۡـًٔا وَّ لَوۡ كَثُرَتۡ ۙ وَ اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ ﴿١٩﴾ |
| ډله ستاسو هيڅ تكليف اگر كه ډيره وى، او پوهه شئ چه بيشكه الله ملگرې د مؤمنانو دې |

﴿ إِن تَسۡتَفۡتِحُواْ ﴾ داخطاب دې مشركينو ته اواستفتاح په معنى دطلب دفيصلې دې، مشركينو به هجرت نه مخكښې نبى ﷺ ته ويل ((متى هذا الفتح ان كنتم صادقين)) يعنى زمونږ اوستاسوپه مينځ كښې دصادق اودكاذب اودحق مبطل فيصله به كله كيږى نوپه دې آيت كښې دهغې جواب راغې اودارنگه روايت دې چه ابوجهل اودهغه ملگرو، بدرته دراتلو نه مخكښې دكعبې غلاف اونيولو، اودعائ اوكړه چه ياالله په دې دواړوډلوكښې چه كومه غوره وى اوپه سمه لاره وى نودهغوئ اومداداوكړې، نوچونكه مؤمنان په حق وو نودعاددوئ په حق كښې قبوله شوه اُووئيلې شو چه كه چرې تاسو فيصله غواړئ نو فيصله راغله اوتاسودلگ شاز مؤمنانو دلاسه مغلوب اوذليل شوئ، نوكه ددينه روستو تاسو دكفر اوسركشئ نه منع شوئ نودابه ستاسو دپاره خيروى اوكه تاسو بياهم دسركشئ اوكفر نه منع نه شوئ نومونږ به بيات...

ته عذاب درکړو او دمؤمنانو امداد به او کړو او ستاسو ډله هرڅومره چه زیاته وی لیکن تاسو ته به هیڅ فائده درنه کړی ﴿وَأَنَّ اللَّهَ﴾ ای واعلموا ان الله مع المؤمنین.

| |
|---|
| يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ وَأَنْتُمْ تَسْمَعُونَ ۝٢٠ |
| اې مؤمنانو [۱] تابعداری کوئ دالله تعالی او درسول دهغه. او مخ مه اړوئ دهغه نه او حال داچه اورئ تاسو (قرآن . حدیث. |
| وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ قَالُوا سَمِعْنَا وَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ ۝٢١ |
| او مه کیږئ په شان دهغه خلقو چه وائ، اوریدلی دی مونږ او حال دا چه دوئ ندی اوریدلی په زړه سره |
| إِنَّ شَرَّ الدَّوَابِّ عِنْدَ اللَّهِ الصُّمُّ الْبُكْمُ الَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ ۝٢٢ |
| بیشکه بد ترین په جاندارو کښ، په نیز د الله تعالی باندې کاڼه د حق نه، ګونګیان دی. هغه کسان چه نه پوهیږی په حق |
| وَلَوْ عَلِمَ اللَّهُ فِيهِمْ خَيْرًا لَأَسْمَعَهُمْ ط |
| او که معلوم وې الله تعالی ته په دوئ کښ خیر، یعنی طلب د حق، نو خامخا به ئ اورولې دوئ ته ( دقبول دحق توفیق به ئ ورکړې وې. |
| وَلَوْ أَسْمَعَهُمْ لَتَوَلَّوْا وَهُمْ مُعْرِضُونَ ۝٢٣ |
| او که واوروی الله تعالی دوئ ته ( په داسې حال کښ) نو خامخا به دوئ مخ اړوی او دوئ همیشه مخ اړونکی دی |
| يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيكُمْ |
| ای ایمان والو [۲] حکم قبولوئ د الله تعالی او د رسول کله چه راؤبلی تاسو هغه څیز ته چه ژوندی کوی تاسو (یعنی جهاد، |
| وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَحُولُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهِ وَأَنَّهُ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ۝٢٤ |
| او پوهه شئ چه بیشکه الله حائل کیږی په مینځ د سړی او زړه د ده کښ او دا چه بیشکه خاص هغه ته به جمع کولې شئ تاسو. |

﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ﴾ دا **دویم قانون جهاددې** چه درسول الله ﷺ اطاعت کوئ او دهغه داطاعت نه مخ مه اړوئ او ذکر داطاعت دالله تعالی دپاره دتنبیه دې په دې خبره چه اطاعت دالله تعالی بعینه اطاعت رسول دې ﴿وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ﴾ ضمیر راجع دې رسول ته او ضمیر دمفرد ذکر شو

---

۱ - دویم قانون د جهاد

۲ - دریم قانون د جهاد.

په دې کښې اشاره ده چه تولی یعنی اعراض درسول نه بعینه اعراض دې دالله تعالی نه لکه چه اطاعت درسول بعینه اطاعت دالله تعالی دې ﴿وَأَنتُمْ تَسْمَعُونَ﴾ حال داچه تاسو قرآن، حدیث آورئ نوپه داسې حال کښې اعراض زیات قبیح دې ﴿وَلَا تَكُونُوا﴾ په دې آیت کښې تاکید دعمل کولودې، یعنی ځوک چه داسې وائ چه مونږ واورېده لیکن عمل نه کوی نوداسې آوریدل دنه آوریدلو سره برابر دی ځکه چه غرض دآوریدلو نه عمل کول دی، اودادمنافق خصلت وی چه حق خوواوری لیکن اعتقاد ئ نه وی نوعمل نه کوی ، نوتاسود منافقینو په شان مه کیږئ، ﴿وَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ﴾ نه مراد نفی د سماع په طریقې د قبولیت او اعتقاد سره ده، ﴿إِنَّ شَرَّ الدَّوَابِّ﴾ یعنی د منافقینو په شان مه کیږئ ځکه چه دوئ دالله تعالی په مخلوق کښې بد ترین مخلوق دی ، دوئ کاڼه دی دحق اوریدلو نه او ګونګیان دی دحق بیانولو نه نو پس دوئ په څه نه پوهیږی. ﴿وَلَوْ عَلِمَ اللَّهُ فِيهِمْ خَيْرًا﴾ یعنی که چرې په دوئ کښې خیرموجودوې، ځکه چه کوم شئ موجودوی نودالله تعالی علم وی په هغه باندې نودلته ذکر دلازم دې چه علم دالله تعالی دې اومرادترینه ملزوم دې یعنی وجود، اودخیر نه مرادطلب دحق اوانابت الی الله دې، او (لو) دلته دپاره دانتفاء دثانی دې په وجه دانتفاء داول سره معنی داده چه که چرې ددوئ په زړونو کښې دحق طلب وې اودقبول دحق اراده او جذبه وې نوالله تعالی به دوئ ته په سماع قبول سره اورولې وې اودقبول دحق توفیق به ئ ورته ورکړې وې، لیکن دوئ ته چه الله تعالی اسماع نه ده کړی اودقبول دحق توفیق ئ ورته نه دې ورکړې نودادډی وجه نه چه په دوئ کښې خیرنشته یعنی انابت الی الله اودقبول دحق اراده اوجذبه نشته دې، ﴿وَلَوْ أَسْمَعَهُمْ لَتَوَلَّوْا﴾ یعنی په دې حالت کښې چه په دوئ کښې انابت نشته دې بلکه ضد دې نوکه په دې حالت کښې ورته الله تعالی واوروی لکه کله کله دوئ په ظاهری غوګونو آوری نودوئ بهٔ مخ اړوی اواعراض بهٔ کوی ځکه چه په دوئ کښې دضدپه وجه دقبول دحق صلاحیت نشته دې .

**فائده** : ددینه معلومه شوه چه دادواړه جملی جداجدامستقلی جملی دی صغری کبری نه دی، حتی چه سوال واردشی اوتکلف دجواب ته ضرورت راشی.

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ دا **دریم قانون دې** اوحاصل ئ دادې چه دجهاد دفرضیت په وخت کښې چه کله تاسو ته دعوت دجهاددرکړې شی نودعوت قبول کړئ اوپه جهاد کښې شریک شئ اونورنفلی کارونه پریږدئ ، دنفلی کار په وجه په فرائضو کښې خلل مه راولئ، په حدیث

دبخاری کښې دی، سعید بن معلی وائ چه ماپه مسجد کښې نفل مونځ کوو نوزه رسول الله ﷺ راؤبللم، نومااجابت اونه کړو نوچه دمانځه نه فارغ شوم نوراغلم نونبی ﷺ راته اوفرمائیل مامنعک عن اجابتی ، تالره څه مانع وو څماداجابت نه، نوماعذراوکړو چه انی کنت فی الصلوۃ. زه په مانځه کښې مشغول اوم نونبی ﷺ اوفرمائیل چه آیاتاداآیت نه دې اوریدلې؟ استجیبوالله – الخ نوددینه معلومه شوه چه دفرض کاردپاره نفل پریښودل پکاردی. ﴿لِمَا يُحْيِيكُمْ﴾ لام په معنی دالی سره دې اودا د (دعاکم) سره متعلق دې اود ((ما یحییکم)) نه مرادجهاد دې، ځکه چه جهاددنیااوآخرت دپاکیزه اوپُرسکون زندګئ دپاره سبب دې اودمسلمانانو دشان شوکت اوعزت زندګئ ذریعه وه، اوترک دجهاد سبب دذلت دې، (کمافی الحدیث) یالام په لِمایحییکم کښې په خپل اصلِ معنی سره دې اودامتعلق دې د استجیبوا سره، اود مایحییکم نه مرادټول اوامرنواهی دی چه په دې عمل کول موجب دحیات ابدی دې ﴿يَحُولُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهِ﴾ الله تعالی حائل کیږی، یا ،پرده اچوی په مابین دسړی اودزړه کښې، ددی جملې ډیرمطلبونه بیان شویدی، **یو دا** چه الله تعالی بنده ته ډیرقریب دې، دبنده اودزړه په مینځ کښې حائل اوپرده ده لکه ﴿وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيدِ﴾ ، **دویم مطلب** داچه په قبلولوداحکامو کښې جلدی کوئ، کله دبنده دسستئ اوتاخیر کولو په وجه الله تعالی توفیق نه ورکوی، اوکله دبنده دارادی په درمیان کښې تقدیرالهی حائل شی اوبنده په خپله اراده کښې کامیاب نه شی اراده ئ بدله شی یاعذر اوپریشانی یابیماری راشی چه دهغې په وجه دنیک کاردکولو فرصت نه ملاویږی، **دریم مطلب** دا چه الله تعالی داجابت په برکت سره مؤمن بنده ته کفر، معصیت نه پریږدی، اوتوفیق الهی حائل شی دمؤمن اودکفر اومعصیت په مینځ کښې نودکفر اومعصیت نه محفوظ شی او کافربنده دمعصیت په وجه ایمان او اطاعت دَ ده زړه ته نه پریږدی، نومعلومه شوه چه اجابت ډیراهم اوضروری دې اومخالفت اومعصیت ډیرمضردې، نولهذا اجابت کوئ اومخالفت اومعصیت مه کوئ.

| وَاتَّقُوا فِتْنَةً لَا تُصِيبَنَّ الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْكُمْ خَاصَّةً ۖ وَاعْلَمُوا |
|---|
| اوځان بچ کړئ (په جهاد کولو سره)[1] دداسې عذاب نه چه نه رسی ظالمانوته ستاسونه یواځې، او پوهه شئ |

۱ - تخویف.

| |
|---|
| اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝ وَاذْكُرُوْٓا اِذْ اَنْتُمْ قَلِيْلٌ مُّسْتَضْعَفُوْنَ |
| چه بیشکه الله تعالی سخت عذاب ورکونکې دې. اویادکړئ هغه وخت کله چه تاسو لږوئ کمزوری کړې شوی وئ |
| فِي الْاَرْضِ تَخَافُوْنَ اَنْ يَّتَخَطَّفَكُمُ النَّاسُ فَاٰوٰىكُمْ وَاَيَّدَكُمْ بِنَصْرِهٖ |
| په خمکه کښې یریدئ تاسو چه وبه تختوی تاسولره خلق پس ځای ئ درکړو تاسو لره او قوی ئ کړئ تاسو په مدد خپل سره |
| وَرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَخُوْنُوا |
| اوروزی ئ درکړه تاسو لره د پاکو څیزونو نه، لپاره د دې چه تاسوشکر وکړئ. اې ایمان والو [۱] خیانت مه کوئ |
| اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ وَتَخُوْنُوْٓا اَمٰنٰتِكُمْ وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝ |
| د الله تعالی او درسول سره او خیانت مه کوئ په امانتونو خپلو کښې او حال دا چه تاسو پوهیږئ |
| وَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَآ اَمْوَالُكُمْ وَاَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ ۙ وَّاَنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ۝ |
| اوپوهه شئ چه بیشکه مالونه ستاسو اواولادونه ستاسوامتحان دې،اوبیشکه د الله تعالی سره دې ثواب لوئ |

﴿ وَاتَّقُوْا فِتْنَةً ﴾ دفتنه نه مراد ذنب اوګناه دې یاترینه مرادعذاب دې، یعنی دداسې ګناه نه ځان بچ کړئ چه وبال ئ صرف ګناه کونکی ته نه رسی بلکه عام وی، چه په یوځای کښې ګناه کیږی اونورخلق ئ منع نه کړی نوعذاب په دنیاکښې عام راځی، (ع) :

بی ادب تنهانه خودراداشت بد      بلکه آتش در همه آفاق زد

اوچه خلق دګناه نه منع کول شروع کړی نوعذاب الهی دفع شی، امربالمعروف اونهی عن المنکر ، ،سبب درفع دعذاب دې نوپه دې آیت کښې ترغیب دجهاد دې، ﴿وَاذْكُرُوْٓا﴾ داتذکیر نعمت دې اوترغیب دجهاددې، ﴿اِذْ اَنْتُمْ قَلِيْلٌ﴾ دشماریه لحاظ سره کم وئ ﴿مُّسْتَضْعَفُوْنَ﴾ اوقوت په اعتبارسره کمزوری وئ، اوددې دواړو قسموکمزورئ په وجه، ﴿تَخَافُوْنَ﴾ تاسوته به هم هروخت خوف اوخطروو چه دُشمنان تاسولره ختم کړی، تَخَطُّفْ دیته وئیلې شی چه تپوس ،یاباز، چرګ وغیره ښکارپه خپلو پنجوکښې اوچت کړی اوتختوی، ﴿فَاٰوٰىكُمْ﴾ نو یولوئ انعام ئ په تاسوباندې دااوکړو چه تاسوته ئ ځای، ټکانه درکړه په مدینه منوره کښې اوخوک

---

۱ - خلور قانون د جهاد.

چه دخپل استقلالي مملكت خاوندوي نوجهادپه هغه فرض وي. ﴿وَأَيَّدَكُم بِنَصْرِهِۦ﴾ اوبل لوئ نعمت ئ دااوكړ چه تاسوئ قوي كړئ يعنى مسلمانان دعددپه اعتبارسره هم زيات شو اودمادي سامان په لحاظ سره هم ، انصاروچه ايمان راؤړو نودخان اومال قربانئ ئ وركړې،اوڅوك چه دعدداوسازسامان په اعتبارسره قوي وي نوجهادپرې فرض وي.

﴿وَرَزَقَكُم﴾ اوبل لوئ انعام ئ دااوكړو چه تاسوته ئ په دشمن فتح دركړه اومال غنيمت ئ تاسودپاره حلال كړو، دمخكنو امتونو دپاره نه ووحلال، ﴿لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ ددى مذكوره انعاماتو شكريه داده چه دجهادفريضه په احسنه طريقه سره اداكړئ ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ **داخلورم قانو ن دجهاد دې** چه مجاهدين دِخصوصاً هيڅ قسم خيانت نه كوى، خيانت دالله تعالى سره دا دې چه دهغه په توحيد كښې خيانت اوكړې شى، ياپه نوروحكمونو كښې كمې زياتې اوكړې شى،اوخيانت دسول سره دادې چه دسنت مخالفت اوكړې شى ﴿وَتَخُونُوٓا۟ أَمَٰنَٰتِكُمْ﴾ داپه ((تخونوا)) عطف دې نودلا، ماتحت دې اى لاتخونوا امٰنتكم، داماناتو نه مراد ټول هغه حقوق دى چه انسان په هغې مكلف دې،حقوق الله وى اوكه حقوق العبادوى﴿وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّمَآ أَمْوَٰلُكُمْ﴾ يعنى دكوم مال دوجه نه چه تاسونزاع اوجګړه كوئ نوهغه امتحان دې اوخيانت چه كيږى نويادمال دوجه نه كيږى ياداولاددجه نه كيږى، نوڅوك چه دمال اولاد دمحبت نه مغلوب نه شى، اوخيانت اونه كړى نودغه شان سړې په امتحان كښې كامياب دې اومستحق داجرعظيم دې ، ددى آيت حكم خوعام دې ليكن شان نزول ئ په نيز د ډيرومفسرينو واقعه ده حضرت ابولبابه ﷺ ده، چه په غزوه بنى قريضه كښې نبى ﷺ ددوئ محاصره كړې وه نودوئ درخواست اوكړو چه مونږ ته داجازت راكړې شى چه مونږ جلاوطن شو اوشام ته لاړشو، نبى ﷺ ددوئ دادرخواست قبول نه كړو بلكه اوئ فرمائيل چه دصلح صرف يوصورت كيدې شى هغه داچه حضرت سعد بن معاذ ﷺ ستاسو په حق كښې څه فيصله اوكړى نوتاسو په هغې باندې راضى شئ، نودوئ (بنى قريظه) داعرض اوكړو چه دسعدبن معاذ ﷺ په ځائ دې داكارابولبابه ﷺ ته حواله كړې شى ، دحضرت ابولبابه جائداد. اهل وعيال په بنى قريظه كښې وو، نوديهوديانو داخيال وو چه ابولبابه ﷺ به زمونږ په حق كښې رعايت اوكړى، نونبى ﷺ حضرت ابولبابه ﷺ اوليګلو، نودبنى قريظۇ ټولوښځې بچى جمع شو اوجړاګانې ئ شروع كړى اودابولبابه ﷺ نه ئ داتپوس اوكړو چه كه مونږ دنبى ﷺ په

حکم نزول اوکړو اودخپلو قلاګانو نه باهرشو نوآیانبی ﷺ به زمونږ په معامله کښې څه نرمی اوکړی. نوابولبابه ؓ ته خودنبی ﷺ رایٔ معلومه وه، اودبنوقریظه دفریادنه اودخپل اهل وعیال اوجانداد دمحبت نه متاثره شو، نوهغوئ ته ئ اشاره اوکړه اوپه خپله مرئ باندې ئ دتورې په شان لاس راخکلو، چه نبی ﷺ تاسوذبح کوی، نوګویا، چه دنبی ﷺ رازئ ښکاره کړو ،نوفوراً پښیمانه شو،اولاړدمسجدنبوی په یوستنه (متهه) پورې ئ ځان اوتړلو، اوقسم ئ اوکړو چه ترڅوپورې خماتوبه نه وی قبوله شوی نوترهغې پورې به په دې حالت باندې یم. اګرکه په دې حالت مړشم ،هم، نبی ﷺ چه خبرشو نواوئ فرمائیل که چرې دې اول خما خواته راغلې وې نومابه دده دپاره استغفارکړې وې، لیکن اوس چه ترڅو پورې دالله تعالی دطرفه دده، دتوبې قبولیت نوی راغلې نوزه به دې نه پرانیزم، چنانچه اوه ورځې ئ په داسې حال باندې تیرې کړی، اهل وعیال به ئ دانسانی ضرورت اومونځ دپاره پرانستلو ، اوخوراک سکاک ئ نه کولو، حتی چه غشی اوبیهوشی پرې راغله، داووورځونه پس دده توبه قبوله شوه اورسول ﷺ دې په خپلولاسونو پرانستلو، ؓ .

| يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنْ تَتَّقُوا اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّكُمْ فُرْقَانًا وَّيُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ |
| --- |
| اې ایمان والو! [1] که یره کوئ تاسو د الله تعالی نه نو دربه کړی تاسو لره فتح او لرې به کړی ستاسو نه ګناهونه ستاسو |
| وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۗ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ۝ وَاِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
| او ښښنه به وکړی تاسوته او الله تعالی خاوند د فضل لوئ دې . اوکله چه فریب کوؤ ستا په حق کښې کافرانو |
| لِيُثْبِتُوْكَ اَوْ يَقْتُلُوْكَ اَوْ يُخْرِجُوْكَ ۚ وَيَمْكُرُوْنَ وَيَمْكُرُ اللّٰهُ ۚ |
| چه قید کړی تا لره یاقتل کړی تا لره یاوباسی تا ، اوچل ول کوؤ دوئ اوخفیه تدبیروکړوالله تعالی ستا دبچ کولو |
| وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمٰكِرِيْنَ ۝ وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا قَالُوْا قَدْ |
| اوالله تعالی ډیر ښه تدبیرکونکې دې . اوکله چه ولوستې شی [2] په دوئ باندې آیاتونه زمونږ وائی دوئ چه په تحقیق سره |

1 - پنځم قانون د جهاد.

2 - شکوه

سَمِعْنَا لَوْ نَشَآءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هٰذَآ ۙ اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ۝۳۱

واوریدومونږ، که مونږ وغواړوخامخا ، وبه وایومثل د دې،ندې دا قرآن مګرقصې، افسانې، دمخکنو خلقودی

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنْ تَتَّقُوا اللّٰهَ ﴾ **داپنځم قانون دجهاددې** مطلب ئ دادې چه مجاهدینو لره تقوی ضروری ده یعنی تابعداری د اوامرواو اجتناب دمنهیاتونه او دارنګه ترک دمشتبهاتو.

﴿ فُرْقَانًا ﴾ په اصل کښې مصدردې، فرق اوفرقان دواړه صیغې دمصدردی، خوپه فرقان کښې مبالغه ده، او ددې مختلف تفسیرونه کړې شویدی، نُوردزړه چه په هغې سره دحق اوباطل تمیز راځی، اوفتح، غلبه، نجات نصرت اوامداد ، وغیرذلک.

دلته دتقوی درې فائدی بیان شویدی اول فرقان، دویم تکفیر دسیئاتو یعنی صغیر ګناهونه معاف کیدل یامصیبتونه دفع کیدل، دریم مغفرت دذنُوب ،یعنی کبائر ګناهونه معاف کیدل

﴿ ذُو الْفَضْلِ ﴾ یعنی دامذکورې فائدې دالله تعالی په فضل سره دی

﴿ وَاِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِيْنَ ﴾ دا **شپږم علت دې** ددعوی سورت دپاره حاصل ئ دادې چه هجرت دزسول الله ﷺ سبب دفتح اودحصول دغنائمودې نوثابته شوه چه الانفال لله والرسول اودارنګه په دې کښې بیان ددې خبرې دې چه دتقوی په وجه مصیبتونه اوددشمنانو مکرونه فریبونه دفع کیږی، په دې آیت کښې واقعی دهجرت ذکردې، داآیت مدنی دې اودکومی واقعی ذکر چه په دې کښې دې هغه په مکه کښې راغلې وه، دواقعې تفصیل اهل سیرو اومحدثینو داسې کړیدې

هرکله چه بعض صحابۀ هجرت اوکړو مدینی ته اوانصار په اسلام کښې داخل شو، نوکفارمکه په خطره کښې شو چه اسلام روزانه په ترقئ کښې دې نوددې دبندلوځه تدبیرپکاردې ، نودکفارو سرداران لکه ابوجهل ،عتبه، شیبه، وغیره نورډیر سرداران په دارالندوه کښې جمع شو، مشوری دپاره، نوابلیس لعین هم په صورت دشیخ نجدی کښې راغې. اوئ وئیل چه زه ستاسو ددی مشوری نه خبرشوم نوځکه حاضرشوم، شیخ نجدی په عربوکښې یوتجربه کارمشرو و ،نودوئ مشوره شروع کړه، نویوسرداردوئ ابوالبختری اووئیل چه ځما رائ داده چه نبی ﷺ قیدکړئ ، نوشیخ نجدی اووئیل چه دارائ غلطه ده ځکه چه تاسودې قیدکړئ نودده، دخلاصولو دپاره به دده قوم راشی اوستاسوسره به قتال اوکړی اودې به آزادکړی، اوبل سردار، هشام بن عمرو اووئیل چه ځمارائ داده چه دې دځپل ښار. علاقې نه باهرکړئ، نوشیخ اووئیل چه دارئ هم غلطه ده، دې که دځپل کلي علاقې نه باهرلاړشی نوهلته

نور خلق به خپل تابع کړی اوستاسو سره به قتل وقتال اوکړی نوابوجهل خپل رائ پیش کړه چه دهری قبیلی نه یویومشر، پهلوان راشی، اوهریو دې په ده باندې دتوری حمله اوکړی اوقتل دې ئ کړی، نودده خاندان بنوهاشم خو دټولوقبائلو نه قصاص نه شی اخستلې، اوکه دیت غواړی نودډیرو کسانودیت ورکول هم مونږ ته آسان دې، نوابلیس معلون په شکل دشیخ نجدی کښې راغلې وو، اوئ وئیل چه دارائ صحیح ده، نوټول په دې باندې متفق شو، الله تعالی حضرت جبرئیل رااولیګواوددی ټولو خبرونه ئ نبی ﷺ خبرکړو، اوکفاردنبی ﷺ دقتل په اراده راغلی وو، اودمکان محاصره ئ کړی وه، نبی ﷺ حضرت علی ﷺ په خپله بستره باندې مقررکړواودخلقو امانتونه چه نبی ﷺ سره وو هغه ئ ورته حواله کړل اوورته ئ اووئیل چه خماپه بستره اوده شه اوخماڅادر په ځان واچوه اوتاته به هیڅوک ضررنه شی رسولې، اونبی ﷺ باهرراووتلو اویوموټې خاوری ئ راواغستې اوددغه کفارو په سرونوئ واچولې، اودا آیتونه ئ تلاوت کول، ﴿إِنَّا جَعَلْنَا فِي أَعْنَاقِهِمْ أَغْلَالًا فَهِيَ إِلَى الْأَذْقَانِ فَهُمْ مُقْمَحُونَ ۝٨ وَجَعَلْنَا مِنْ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ سَدًّا وَمِنْ خَلْفِهِمْ سَدًّا فَأَغْشَيْنَاهُمْ فَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ ۝٩﴾ [1]، اوددوئ نظرنه لګیدو په نبی ﷺ باندې، نبی ﷺ ابوبکرصدیق ﷺ دځان سره کړو، غارثورته لاړوکفارودمکان احاطه کړی وه، په انتظارکښې وو، نوچه صباشو نودوئ داخل شو نوحضرت علی ﷺ ئ اولیدو، تپوس ئ ترینه اوکړو چه (این صاحبک) نبی علیه الصلوة والسلام چرته دې نوهغه اوفرمائیل چه هغه باهر درغلې وو، نوپکارده چه تاسوته ئ علم وی، ماته ئ څه علم دې نودوئ دنبی ﷺ نقش قدم معلوم کړو اوغارثورته وریسی لاړل، (الی آخرالقصه) ﴿وَيَمْكُرُ اللَّهُ﴾ مکرخفیه تدبیرته وئیلې شی، دخیروی اوکه دشر، اودالله تعالی په صفت کښې چه استعمال شی نودخیرتدبیر ترینه مرادوی، ﴿وَإِذَا تُتْلَىٰ﴾ دا زجراوشکوی ده مشرکانودډیرضد اوعناد په وجه داسې اووئیل ﴿لَوْ نَشَاءُ﴾ ـ الایه ـ ګنې نواعجازدقرآن دوئ ته واضح شوې وو ﴿أَسَاطِيرُ﴾ جمع داسطورة ده په معنی دلیکلی شوی سره، بعض وائ چه داجمع د اسطورده اوهغه جمع دسطرده.

---

[1] - سورة یس، آیة: ۸ - ۹.

وَاِذۡ قَالُوا اللّٰهُمَّ اِنۡ كَانَ هٰذَا هُوَ الۡحَقَّ مِنۡ عِنۡدِكَ فَاَمۡطِرۡ عَلَيۡنَا حِجَارَةً

اوکوم وخت چه وه ویل دوئ اې الله ![1] که وی دا قرآن هم دا حق دطرف ستا نه پس راوه وروه په مونږ باندې کانړی

مِّنَ السَّمَآءِ اَوِ ائۡتِنَا بِعَذَابٍ اَلِيۡمٍ ۝ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمۡ وَاَنۡتَ فِيۡهِمۡ ؕ

د آسمان نه یا راکړه مونږ ته عذاب دردناك . اونه دې الله چه عذاب ورکړی دوئ ته په داسې حال کښې چه ته په دوئ کښې موجود ئې

وَمَا كَانَ اللّٰهُ مُعَذِّبَهُمۡ وَهُمۡ يَسۡتَغۡفِرُوۡنَ ۝ وَمَا لَهُمۡ

او ندې الله تعالی عذاب ورکونکې دوئ ته اوحال دا چه دوئ بښنه غواړی اوڅه عذر دې دوئ لره

اَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللّٰهُ وَهُمۡ يَصُدُّوۡنَ عَنِ الۡمَسۡجِدِ الۡحَرَامِ وَمَا كَانُوۡۤا اَوۡلِيَآءَهٗ ؕ

چه عذاب به نه ورکوی دوئ ته الله اوحال داچه دوئ منع کوی (مسلمانان) د مسجد حرام نه، او ندی دوئ متولیان د هغې.

اِنۡ اَوۡلِيَآؤُهٗۤ اِلَّا الۡمُتَّقُوۡنَ وَلٰـكِنَّ اَكۡثَرَهُمۡ لَا يَعۡلَمُوۡنَ ۝ وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمۡ عِنۡدَ الۡبَيۡتِ

ندی متولیان دهغې مگر متقیان خلق لیکن ډیر ددوئ نه نه پوهیږی. او ندې مونځ د دوئ د بیت الله په خوا کښې

اِلَّا مُكَآءً وَّتَصۡدِيَةً ؕ فَذُوۡقُوا الۡعَذَابَ بِمَا كُنۡتُمۡ تَكۡفُرُوۡنَ ۝

مگر شپیلئ او لاسونه ټپول، پس وڅکئ عذاب په سبب د دې چه تاسو کفر کوؤ.

﴿ وَاِذۡ قَالُوا اللّٰهُمَّ ﴾ دا **اووم علت دې** دسورت ددعوی دپاره، مشرکانوعذاب اوغوښتلو نوالله تعالی ورته عذاب په بدر کښې ورکړو اومال غنیمت حاصل شو نوتقسیم ئې مفوض دې الله تعالی اورسول ته، دَ مشرکانو داقول هم بناء وو په ډیرضد اوتعصب باندې چه چه نورخلق په شک کښې واچوی ګنی پکارداوه چه داسې ئې وئیلی وې یاالله که داحق وی نومونږ ته ددی دقبول توفیق راکړی لیکن دوئ دډیرو ضددوجې نه اووئیل چه که داحق وی نوپه مونږ عذاب نازل کړې، حضرت معاویه ﷺ یو یمنی کس ته اووئیل چه ستاسو قوم خوډیر جاهلان وو چه ښځه ئې ملکه ګرځولې وه نوهغه اووئیل (اجهل من قومی قومک) څمادقوم نه ستاقوم زیات جاهلان وو چه داسې ئې اووئیل ، (ان کان هذاهوالحق من عندک فامطر علیناحجارة) اوداسې ئې نه وئیل ان کان هذا هوالحق فاهدنا الیه (شربینی).

---

1 - اووم ۷ علت.

﴿ وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ ﴾ داجواب دسوال دې چه هرکله دوئ عذاب اوغوښتلونوولې عذاب مؤخرشو، اوفوراً واقع نه شو ، جواب راغلو چه دوه امره مانع وو دنزول دعذاب نه يووجود دپيغمبر په مكه كښې ځكه چه په يوقوم كښې چه نبى موجود وى.نوعذاب نه راځى اوچه نبى ﷺ ترينه هجرت اوكړو نوبياﺍستغفار مانع وؤ، دحضرت ابوموسى اشعرى ﷛ نه روايت دې چه په دې امت كښې دوه امانَ وو يونبى ﷺ نو هغه خوددنيا نه رخصت شو اودويم استغفار اوداباقى دې دقيامت پورې، او د ﴿ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ ﴾ په تفسير كښې دوه قوله دى يوداچه ددينه مرادمشركين دى چه په حالت دطواف كښې به ئ وئيل ((غفرانک))، نودا مانع وو دعذاب نه نو **سوال** راځى چه دمشركينو اعمال خونه قبليږى نواستغفار دهغوئ څه رنګه دفع دعذاب دې نو**جواب** دادې چه دابن عباس رضى الله عنه نه روايت دې چه استغفار اګركه دكفارو اوفجارو دطرف نه وى خودفع كيږى په هغې سره بعض شرونه اوضررونه ، (قرطبى) اودويم قول اصح دادې چه مراد ددينه استغفار دهغو مؤمنانو دې چه هجرت ئ نه وو كړې دضعف اوكمزورئ په وجه، نوپه عبارت كښې حذف دې : اى وفيهم من يستغفرون (كبير وغيره).

﴿ وَمَا لَهُمْ أَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللَّهُ ﴾ په دې كښې بيان دسبب داستحقاق عذاب دې يعنى دوئ مستحق دعذاب دى يوپه دې وجه چه دوئ مؤمنان منع كوى دمسجدحرام نه، لكه په حديبيه كښې دوئ مسلمانان اوحضور ﷺ دعمرې كولونه منع كړو، اودارنګه چه كوم مؤمنان په مكه كښې وو نوهغوئ به ئ دمونځ نه منع كول په مسجدحرام كښې ، ﴿ وَمَا كَانُوا أَوْلِيَاءَهُ ﴾ يعنى مشركان ددى لائق نه دى چه متوليان دمسجدشى ﴿ إِنْ أَوْلِيَاؤُهُ إِلَّا الْمُتَّقُونَ ﴾ يعنى صرف متقيان داحق لرى چه دمسجدمتوليان شى، ﴿ وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمْ عِنْدَ الْبَيْتِ ﴾ دادويمه وجه ده استحقاق دعذاب ده، يعنى دوئ خومؤمنان دمونځ نه منع كوى اوخپل حال ئ دادې چه ددوئ مونځ صرف مكاء اوتصديه دى مشركانو به چه طواف كؤ دبيت الله نه نوشپيلى به ئ وهلې اولاسونه به ئ ټپول اودادوئ په خيال كښې عبادت وو،يادا كلام په طريقه دتشبيه سره دې يعنى ددوئ مونځونه داسې برباد اوعبث دى لكه شپيلى وهل اولاسونه ټپول ، نوكاف تشبيهى محذوف دې اى كمكاء وتصدية ﴿ فَذُوقُوا الْعَذَابَ ﴾ يعنى هركله چه ددوئ عملونه مستحق دنزول دعذاب وو نو ﴿ فَذُوقُوا الْعَذَابَ ﴾ الخ.

| إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ لِيَصُدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ ۚ |
|---|
| بيشكه هغه كسان چه كفر ئ كړې دي خرچ كوي مالونه خپل لپاره د دې چه منع كړي خلق د لارې د الله نه |
| فَسَيُنفِقُونَهَا ثُمَّ تَكُونُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً ثُمَّ يُغْلَبُونَ ۗ وَالَّذِينَ كَفَرُوا |
| پس زر ده چه خرچ به كړي دوئ مالونه بيا به شي په دوئ باندې ارمان، بيا به كمزوري كړې شي، اوهغه كسان چه كافران دي |
| إِلَىٰ جَهَنَّمَ يُحْشَرُونَ ﴿٣٦﴾ لِيَمِيزَ اللَّهُ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ وَيَجْعَلَ الْخَبِيثَ |
| دوئ به جهنم ته راجمع كړې شي. د دې لپاره چه جدا كړي الله تعالى پليت لره د پاك نه، او كيږده ږدى پليتان |
| بَعْضَهُ عَلَىٰ بَعْضٍ فَيَرْكُمَهُ جَمِيعًا فَيَجْعَلَهُ فِي جَهَنَّمَ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴿٣٧﴾ |
| بعضولره دپاسه د بعضو نه پس دندلئ (جمع) به كړي تولو لره نو پس وابه ئې چوي په جهنم كښې، دغه كسان هم دوئ تاوان والا دي |

﴿ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ دا تخويف دنيوي دې چه كفار خپل مالونه ددې دپاره خرچ كوي چه خلق دالله تعالى ددين نه منع كړي لكه دادكفارو عادت دې عمومًا اوپه جنګ بدر كښې كفارو خپل ډير دولت خرچ كړې وو ددې دپاره چه اسلام اومسلمانان مغلوب شي نو الله تعالى فرمائي چه عنقريب به دوئ خپل مالونه د اسلام په مخالفت كښې خرچ كړي ليكن دوئ ته به دوه قسمه حسرتونه حاصل شي يوداچه دوئ به په خپل تدبير، اومشن كښې ناكام اونامراداومغلوب شي نويوبه داحسرت وي اوبل داچه ددوئ مالونه به ضائع اوبربادشي نوداسلام په خلاف كولو سره دادوه حسرتونه به راځي يومال ضائع كيدل اوبل ددوئ مغلوب كيدل، او دا دواړه ضررونه د دنيادي، اواخروي سزائ داده چه ﴿إِلَىٰ جَهَنَّمَ يُحْشَرُونَ﴾.

﴿ لِيَمِيزَ اللَّهُ ﴾ دامتعلق د ((يُحْشَرُونَ)) سره دې اودخبيث نه مرادكافردې اودطيب نه مراد مؤمن دې يعنى په قيامت كښې به كفارددوزخ ته واچولې شي نودمؤمنانو نه به جداشي، نودپاك پليت امتيازبه راشي چه پاك به جنت ته لاړشي اوپليت به جهنم ته لاړشي، يادا د ﴿يُغْلَبُونَ﴾ سره متعلق دې اودخبيث نه مرادمنافق دې او دطيب نه مرادمؤمن مخلص دې يعنى په جهاد كښې به كفارمغلوب شي اودمؤمن اوكافرامتياز به هم راشي.

| قُل لِّلَّذِينَ كَفَرُوا إِن يَنتَهُوا يُغْفَرْ لَهُم مَّا قَدْ سَلَفَ |
|---|
| ووايه هغه كسانو ته چه كافران دي چه كه دوئ منع شي د كفر اوجنګ نه اوبه بښلې شي دوئ ته تير شوي ګناهونه. |

| وَإِنْ يَعُودُوا فَقَدْ مَضَتْ سُنَّتُ الْأَوَّلِينَ ۞ وَقَاتِلُوهُمْ |
|---|
| اوکه دوئ واپس شو کفر اوجنګ ته نو پس په تحقیق سره تیره شوې ده طریقه دمخکنو خلقو. اوجنګ کوئ د دوئ سره[1] |
| حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ ۚ فَإِنِ انْتَهَوْا فَإِنَّ اللَّهَ |
| تر دې پورې چه پاتې نشي فتنه (شرک، فساد)، او شي دين ټول دالله تعالى، پس که منع شول دوئ نو پس بيشکه الله تعالى |
| بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ۞ وَإِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَوْلَاكُمْ ۚ |
| د دوئ عملونو لره ليدونکې دې. اوکه دوئ مخ واړوؤ پس پوهه شئ چه بيشکه الله تعالى ستاسو مولى دې، |
| نِعْمَ الْمَوْلَىٰ وَنِعْمَ النَّصِيرُ ۞ |
| ډير ښه مولى دې او ډير ښه مددګار دې. |

﴿ قُلْ لِلَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ دادعوت دې کفاروته اودهغوئ رؤساؤ ته لکه چه دآيت دنزول په وخت کښې ابوسفيان هم دَ ائمة الكفر نه وو، په فتح مکه کښې ئ ايمان راوړو ﴿ يُغْفَرْ لَهُمْ ﴾ کافرحربى ته حقوق الله اوحقوق العباد ټول معاف کيږى اوکافرذمى ته حقوق الله معاف کيږى. ﴿ سُنَّتُ الْأَوَّلِينَ ﴾ اضافت دسنت،الاولين ته اضافت مفعول ته دې او فاعل مقدردې ، ((اى سنة الله فى الاولين))، او د دې نه مراد دکفارو مغلوب کول او د پيغمبرانو سره نصرت کول مراددى، ﴿ وَقَاتِلُوهُمْ ﴾ دادسورت دويمه دعوى ده يعنى عمومى دعوئ جهاد ﴿ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ ﴾ حَتَّى په معنى دالِى سره دې اودفِتْنَةٌ نه مرادشرک اوکفردې يعنى دشرک اوکفردختميدلوپورې جهادکوئ، دمشرکين عرب نه جزيه قبلول نشته، يا د فِتْنَةٌ نه مرادفساددې اوفتنه فسادختميږى ياپه اسلام کښې داخليدلوسره ياپه قبلولودجزيه سره نوداحکم دغيردعربو دپاره دې، او ﴿ كُلُّهُ ﴾ ذکرشونويه دې کښې اشاره ده چه دکفروجود په دنيا کښې سبب دفساد او دفتنې دې نو په حقيقت کښې دهشت ګرد، هم کافران دى ﴿ وَإِنْ تَوَلَّوْا ﴾ يعنى که دوئ اعراض اوکړى دايمان نه، يادوئ منع نه شى دقتال نه نوتاسوورسره قتال کوئ، الله تعالى به ستاسو مدداونصرت کوى.

**نهمه پاره ختمه ولله الحمد اولاً واخراً**

---

[1] د سورة دويمه دعوه اجمالاً.

| وَاعْلَمُوْٓا | اَنَّمَا | غَنِمْتُمْ | مِّنْ | شَیْءٍ | فَاَنَّ | لِلّٰهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او پوهه شئ[۱] چه بیشکه هر هغه څه چه تاسو ئ په جنګ سره واخلئ د کفارونه د هر قسم شی نه نو بیشکه الله لره | | | | | | |
| خُمُسَهٗ | وَلِلرَّسُوْلِ | وَلِذِی الْقُرْبٰی | وَالْیَتٰمٰی | وَالْمَسٰکِیْنِ | وَابْنِ السَّبِیْلِ | |
| د هغې پنځمه حصه ده او د رسول لپاره او د خپلوانو د رسول لپاره او یتیمانو او مسکینانو او مسافرو لپاره. | | | | | | |
| اِنْ کُنْتُمْ | اٰمَنْتُمْ | بِاللّٰهِ | وَمَآ اَنْزَلْنَا | عَلٰی عَبْدِنَا | یَوْمَ | الْفُرْقَانِ |
| که یئ تاسو ایمان مو راوړې وی په الله تعالی او په هغه څه «نصرت» چه رالیږلې وو مونږ په بنده خپل په ورځ د فیصلې | | | | | | |
| یَوْمَ الْتَقَی الْجَمْعٰنِ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ﴿۴۱﴾ | | | | | | |
| په هغه ورځ چه مخاخ شوې دوه ډلې، او الله په هر شی قدرت والا دې | | | | | | |

﴿ وَاعْلَمُوْٓا ﴾ دادسورت دویمه حصه ده په دې کښ دسورت دعوه ذکرکیږی په تفصیل اوتشریح سره اوه (۷) قوانین جهاد ذکرکیږی اوپنځه علتونه ددعوی دپاره ذکرکیږی، مال غنیمت هغه مال دې چه د کفارونه واغستې شی په وجه دغلبی سره په قتال کښ، نوددی حکم دادې چه دامال په پنځه حصی کړې شی، څلورحصی به په مجاهدینو تقسیم شی په داسې طریقه سره چه دراکب دپاره دوه حصې ورکړې شی یوه حصه دمالک یوه حصه دفرس. داپه نیزداحنافو، اوپه نیزدنوروائموبه،فارس، ته درې حصې ورکولې شی یوحصه د مالك دوه حصې دفرس، اوخمس یعنی دپنځمی حصی دمصارفو بیان دلته په دې ایت کښ ذکردې، اوهرچه دې مال فئ نوداهغه مال دې چه دکفارو نه په صلح کښ واغستې شی،یاپه کفاروباندې رعب راشی اومال پریږدی ، اوددی حکم په سورت حشرآیت نمبر۷کښ ذکرشوې دې، اومشروعیت داخذدمال غنیمت خاصه ددی امت ده، کمافی الحدیث ، په مخکینو امتونوکښ به په مال غنیمت باندې دقبولیت دپاره داسمان نه اورنازلیدو،﴿اَنَّمَا غَنِمْتُمْ﴾په دې کښ اشاره ده تعمیم ته چه مال غنیمت قلیل وی یاکثیروی نوحکم ئ یوشان دې اود ﴿مِنْ شَیْءٍ﴾ معنی داده چه دهرجنس نه چه وی لکه درهم دنانیروغیره ﴿فَاَنَّ لِلّٰهِ﴾دلته په عبارت کښ تقدیر دې ای فحکمه

۱ - د دعوې ذکر په تفصیل سره.

ان لله خمسه، اوذکرالله دتبرک دپاره دي اواشاره ده چه اختيار مطلقه الله تعالى لره دي. ﴿وَلِلرَّسُولِ﴾ اوحصه د رسول ساقطه شويده په موت سره اوپه نيزدبعض اهل علمو باقى ده اودابه جمع کيږي په بيت المال کښ دپاره دمصالحودمسلمانانو، اودعلماؤ مدرسينو دفقه اوحديث اوتفسير دپاره.(شيربيني) ﴿وَلِذِي الْقُرْبَىٰ﴾مراددخپلوانونه بنوهاشم اوبنوالمطلب دي، نودوئ اګرکه اغنياء وي مستحق دي، دوئ مستحق وو په وجه دنصرت سره کمافى الحديث انمابنوهاشم وبنوالمطلب شئ واحدوشبک بين اصابعه وقدسقط سهم النبى صلى الله عليه وسلم بموته وهکذ اقربائه (کذافى الهدايه) ﴿وَالْيَتَامَىٰ﴾يتيم هغه نابالغ انسان دي چه پلار ئ نه وي. اوپه بهائم کښ يتيم هغه ته وائ چه موري نه وي اوپه طيوروکښ هغه دي چه موريلارئ دواړه نه وي. ﴿وَالْمَسَاكِينِ﴾دلته مسکين عام دي شامل دي فقير ته هم ﴿وَابْنِ السَّبِيلِ﴾ مسافر. ﴿إِن كُنتُمْ آمَنتُم﴾ اى کنتم آمنتم فاعلموا انما غنمتم من شئ فان لله خمسه ، نوداتعليل دماقبل دپاره دي اوجزاء دشرط دپاره مخذوفه ده چه ماقبل پري دلالت کړي دي. ﴿وَمَا أَنزَلْنَا﴾ددي نه مراد نصرت غلبه ده ياملائک دنصرت دي﴿يَوْمَ الْفُرْقَانِ﴾يوم بدر،ورځ دفيصلي ده. ﴿يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ﴾ دابدل دي ديوم الفرقان نه.

| إِذْ | أَنتُم | بِالْعُدْوَةِ | الدُّنْيَا | وَهُم | بِالْعُدْوَةِ | الْقُصْوَىٰ | وَالرَّكْبُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| په کوم وخت چه وئ تاسي [1] په غاړه نږدي، مدينې ته او دوئ وو په غاړه لرې د مدينې نه، او قافله د سوداګرو | | | | | | | |
| أَسْفَلَ | مِنكُمْ | وَلَوْ | تَوَاعَدتُّمْ | لَاخْتَلَفْتُمْ | | | |
| ښکته روانه وه ستاسو نه، اوکه چرې وعده کړې وې تاسو د يوبل سره دجنګ نو خامخا به اختلاف کړې وې تاسو | | | | | | | |
| فِي | الْمِيعَادِ | وَلَٰكِن | لِّيَقْضِيَ | اللَّهُ | أَمْرًا | | |
| په وخت مقرر کښ، ليکن الله تعالى جمع کړئ بغير د وعدې نه د دې لپاره چه پوره کړي الله تعالى هغه کار | | | | | | | |
| كَانَ | مَفْعُولًا | لِّيَهْلِكَ | مَنْ | هَلَكَ | عَن | بَيِّنَةٍ | وَيَحْيَىٰ |
| چه مقرر شوې وؤ. د دې لپاره چه هلاك شى هغه څوك چه هلاك شو پس د دليل نه او ژوندى پاتې شى | | | | | | | |

[1] - اول علت.

| مَنْ حَيَّ عَنْ بَيِّنَةٍ ۗ وَ إِنَّ اللّٰهَ لَسَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٤٢﴾ |
|---|
| هغه څوك چه ژوندی دی پس دَ واضح دلیل نه، اوبیشکه الله تعالی اوریدونکی ، علیم دې |

﴿ إِذْ أَنتُم بِالْعُدْوَةِ الدُّنْيَا ﴾ دااول علت دې حاصل ئ دادې چه ستاسو جنگ الله تعالی دابوجهل دډلی سره په غیردخه وعدی نه الله تعالی اوکړو، اوتاسوته ئ فتح درکړه نوپه تقسیم دمال غنیمت کښ اختلاف مه کوئ ، بلکه دالله تعالی اودرسول دحکم مطابق ئ تقسیم کړئ.

((عُدوة)) غاړه اوکناری ته وائ ، او ﴿ٱلدُّنْيَا﴾ نزدې مدینی ته او﴿ٱلْقُصْوَىٰ﴾ بعید دمدینی نه، ﴿وَالرَّكْبُ﴾ قافله دتجارت، دلته ددری ډلو ذکردې یوه ډله دمؤمنانوه، دوئ نزدې وۀ مدینی ته اودمکې نه لرې وو دویمه ډله دابوجهل وه چه دوئ مکې ته نزدې وو اودمدینی نه لری وو، او دریمه ډله دابوسفیان وه چه تجارت ته تللې وو، اوډیرمال ورسره وو، ﴿أَسْفَلَ مِنكُمْ﴾ یعنی دوئ دسمندرپه غاړه دبدرنه دری میله لری وو، ﴿وَلَوْ تَوَاعَدتُّمْ﴾ یعنی که تاسو دیوبل سره وعده کړې وې په تقرر دوخت اومکان سر، ﴿لَاخْتَلَفْتُمْ﴾ نو اختلاف به واقع شوې وې، مؤمنانو بهٔ په کفارو باندې دکثرت گمان کړې وې نومقرروخت اومکان ته بهٔ نه وې حاضر شوې اوکفار بهٔ مرعوب شوې وې په وجه دتعرض دنبی ﷺ اودمؤمنانو اومقرروخت اومکان ته به نه وې حاضرشوی، ﴿وَلَٰكِن﴾ ای لکن جمعکم بغیرمیعاد ﴿لِّيَقْضِيَ اللّٰهُ أَمْرًا﴾ دامراً نه مراد نصرت اوغلبه ده دمؤمنانو اومغلوبیت دکافرانودې ﴿كَانَ مَفْعُولًا﴾ چه مقررشوې وو.

د ﴿لِّيَهْلِكَ مَنْ هَلَكَ﴾ دری ترجمی دی (۱) هلاک شی یعنی مړشی هغه څوک چه مړشو روستو دبیّنه نه یعنی څوک چه مړشونوپه هغه هم اقامت حجت اواتمام حجت شوې دې اوڅوک چه ژوندی پاتی شوی دی نوپه دوئ باندې هم اتمام حجت شوې دې، (۲) دهلاک نه مراد کفردې اودحیات نه مرادایمان دې یعنی څوک چه کافر پاتی شو نو په هغوئ اتمام حجت شوې دې اوچاچه ایمان راوړې دې نوهغه دحجت اوبیّنه نه بعدپه بصیرت سره ایمان راوړې دې(۳) چه هلاک اوذلیل شی هغه څوک چه کافرشی بعدد بیّنه نه ، اومعزز شی هغه څوک چه ایمان ئ راوړو بعد د بیّنه نه.

| اِذْ يُرِيْكَهُمُ اللّٰهُ فِيْ مَنَامِكَ قَلِيْلًا ؕ وَلَوْ اَرٰىكَهُمْ كَثِيْرًا |
|---|
| کوم وخت چه وښودل تا ته [1] دوئ الله په خوب ستا کښې لږ، اوکه ښودلی ئی وې تاته دوئ ډیر |
| لَّفَشِلْتُمْ وَلَتَنَازَعْتُمْ فِي الْاَمْرِ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ |
| نوخامخا کمزوری شوی به وئ تاسو اوخامخا اختلاف به کړې وؤتاسو په باره د امردجنګ کښې لیکن الله تعالی |
| سَلَّمَ ؕ اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۝ |
| بچ کړئ تاسو (دبزدلئ او اختلاف نه) بیشکه الله تعالی پوهه دې په هغه خبرو چه په سینو کښې پټې دی |
| وَاِذْ يُرِيْكُمُوْهُمْ اِذِ الْتَقَيْتُمْ فِيْٓ اَعْيُنِكُمْ قَلِيْلًا وَّيُقَلِّلُكُمْ |
| اوکوم وخت چه وښودل الله تعالی تاسو ته دوئ کله چه مخاخ شوئ، په سترګو ستاسو کښې لږ، او لږ ئی ښکاره کړئ تاسو |
| فِيْٓ اَعْيُنِهِمْ لِيَقْضِيَ اللّٰهُ اَمْرًا كَانَ مَفْعُوْلًا ؕ وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ۝ |
| په سترګو د هغوئ کښې د دې لپاره چه پوره کړی الله تعالی هغه کار چه وؤ مقرر شوې او خاص الله تعالی ته ورګرزیدلې شی ټول کارونه |

﴿ اِذْ يُرِيْكَهُمُ ﴾ دادویم علت دې ددعوی دپاره حاصل دادې چه الله تعالی خپل نبی صلی الله علیه وسلم ته په خوب کښې اوخودله چه کافران لګ دی،که ډیرئ ورته خودلې وې نوبیادجنګ دنه کیدلو احتما ل وو، دیری په وجه ،لیکن الله تعالی په دې طریقه دسره دجنګ سبب جوړکړو اوفتح اومال غنیمت ئ تاسوته درکړو نولهذاتاسواختلاف مه کوئ په تقسیم مال غنیمت کښې ،که څوک **سوال** اوکړی چه کافران خو په حقیقت کښې ډیروو نودهغوئ کم خودل خلاف شودواقع نه، نوخلاف واقع ځنګه اوشوه حال داچه خوب دنبی خوروحی وی **جواب** دادې چه دخوب دارمدارپه باطنی امورووی نودباطن په اعتبارسره کفارقلیل و یاپه وجه دذلت دهغوئ یاپه دې وجه چه په مستقبل کښې ډیرکافران مسلمانان شو، نوپه حقیقت کښې کافران قلیل وو، نوخلاف واقع نه ده ښکاره شوی،﴿ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ سَلَّمَ ﴾ ای لکن الله سلمکم عن الفشل والنزاع، ﴿ وَاِذْ يُرِيْكُمُوْهُمْ ﴾ دادریم علت دې، په تیرشوی آیت کښې چه دکوم رویت ذکر وو نوهغه په خوب کښې وو اوپه دې آیت کښې چه دکوم رؤیت ذکردې نوهغه دبیدرائ په

---

[1] ۔ دویم علت

حالت کښ دې، اول الله تعالی رسول الله ﷺ ته په خوب کښ د کفارو عدد کم اوخودلو نبی ﷺ چه داخوب اصحابوته بیان کړو نودوئ خوشحاله شو، اوجرات اوحوصله ئ زیاته شو، اوبیا چه کله جنګ شروع شو نوالله تعالی رسول الله ﷺ اومؤمنانو ته کفارپه نظر کښ لګ ښکاره کړل. په دې سره دخوب تائید اوشو اودمؤمنانو جرات نورهم زیات شو، حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه وائ چه په جنګ بدرکښ کفارزمونږ په نظرکښ کم ښکاره شو، حتی چه ځما په څنګ کښ دیوکس نه ماتپوس اوکړو چه آیا داکفاربه اویاکسان وی، هغه اووئیل چه ګمان کوم چه سل کسان به وی اومونږ یوکس دکفارونه قیدکړو نوتپوس موترینه اوکړو چه تاسوڅومره یئ نوهغه اووئیل چه مونږ خوزرکسان یو، ﴿وَيُقَلِّلُكُمْ فِيٓ أَعْيُنِهِمْ﴾ الله تعالی اول مؤمنان دکفارو په نظرکښ قلیل ښکاره کړل ددی دپاره چه دوئ اونه تختی نوکله چه جنګ شروع شو، نوبیائ ورته ډیرښکاره کړل لکه په سورت ال عمران کښ ((یرونهم مثلیهم)) چه کفارو مؤمنانولره خپل دوچند اولیدل، یاپه دې وجه چه په دوئ باندې رعب راغلې وونوقلیل ورته کثیر ښکاریدل یاپه وجه د نزول دَ ملائکوسره، اوقلیل لره کثیرښکاره کول یابرعکس یعنی کثیر لره قلیل ښکاره کول په قدرت دالله تعالی سره دی نوداهیڅ بعیده نه ده چه بغیردڅه سبب نه الله تعالی داسې اوکړی، یائ په سبب سره اوکړی لکه په کفارو رعب راتلل اونزول دملائکو سبب وو دپاره ددې چه قلیل ورته کثیرښکاره شو، اودجنګ شروع کیدلو نه قبل ئ ورته قلیل ښکاره کړل په سبب ددې چه بعض ئ پټ کړی وو په څه پردې سره اوپه بعض روایاتوکښ دی چه ابوجهل اووئیل چه، انما محمد(صلی الله علیه وسلم واصحابه اکلة جزور، یعنی دوئ دومره کم دی چه یو اوښ ددوئ دخوراک دپاره کافی دې، داسې قول به عربو دتقلیل دپاره ذکرکولو ﴿لِيَقْضِيَ اللَّهُ أَمْرًا﴾ دامراً نه مراد جنګ او نصرت د مؤمنانو سره دې، داسې آیت مخکښ هم ذکر شوې وؤ ، دلته ئ ذکر په ظاهر کښ تکرار معلومیږی لیکن په حقیقت کښ تکرار نشته دې ځکه چه په اول کښ مقصود بیان د استیلاء او د غلبې دې نو هلته د (امراً) نه مراد غلبه د دین ده او دلته مقصود بیان د واقع کیدلو د جنګ دې، نو د (امراً) نه مراد جنګ دې چه داسبب دتذلیل دکفارو دې.

| |
|---|
| يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا لَقِيْتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوْا وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا |
| اې ايمان والو ! كله چه مخامخ شئ تاسو د يوډلې د كافرانو سره پس كلك كړئ خپل خانونه او يادوئ الله ډير ډير. |
| لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۞ وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَلَا تَنَازَعُوْا |
| ددې لپاره چه كامياب شئ . اوتابعدارى كوئ دالله اودرسول دهغه اوپه خپل مينځ كښې اختلاف اوجګړه مكوئ |
| فَتَفْشَلُوْا وَتَذْهَبَ رِيْحُكُمْ وَاصْبِرُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ۞ |
| كنې كمزورى به شئ تاسو او لاړه به شي دبدبه ستاسو او صبر كوئ، بيشكه الله تعالى ملګرې د صبرناكو دې |
| وَلَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ خَرَجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ بَطَرًا وَّرِئَآءَ النَّاسِ |
| اومه كيږئ تاسو په شان دهغه كسانو چه راوتل د كورو خپلو نه ، په وجه د سركشۍ سره او لپاره د خودنې خلقو ته |
| وَيَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا يَعْمَلُوْنَ مُحِيْطٌ ۞ |
| اومنع كولئ خلق د لارې د الله تعالى نه، او الله تعالى احاطه كونكې دې د دوئ په عملونو. |

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا ﴾ دادويم مضمون شروع شو په دې كښې قوانين دجهاد ذكر كيږي.

دا اول قانون دې په دې كښې ديوڅوخبرو ذكردې : **اول ثبات** يعنى په ميدان جنګ كښې ثابت قدم شئ **دويم داچه** دالله تعالى ذكرډيرډيركوئ دعاهم په ذكركښې داخله ده، په ذكرسره دالله تعالى معيت راځى ﴿ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾په دې كښې اشاره ده چه دامذكوردوه خبرې دكاميابئ دپاره كافى دى، **دريم داچه** اطاعت دالله تعالئ اودرسول كوئ، دالله تعالى حكم اودنبى صلى الله عليه وسلم سنت، سبب دفتح دې، **څلورم داچه** نزاع اواختلاف مه كوئ، نزاع اوجګړې منحوس عمل دې اوسبب دحرمان دې اوسبب دفشل يعنى بزدلئ دې،﴿ وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ ﴾دريح دوه معنى دى(۱) دبدبه،اورعب، په طوردتشبيه سره چه لكه څه رنګه چه ريح په هرځائ كښې داخليږي نودارنګه رعب اودبدبه تاثيركوى، يعنى هغه رعب دمسلمانانو چه په كفارو باندې راځى نودخپل مابين اختلاف په وجه ختم شى(۲) دويمه معنى داده چه ددې نه مراد هوادنصرت ده لكه په حديث كښې ((نُصرت بالصبا واهلكت عادبالدبور)) يعنى په خپل مابين كښې

۱ - اول قانون د جهاد .

داختلاف په وجه هواکانې دنصرت الهی بندي شی، **پنځم داچه** و﴿ وَاصْبِرُوا ﴾په صبرسره دالله تعالی معیت رازی، **شپږم داچه** ﴿ وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ ﴾ یعنی دکافرانوسره مشابهت مه کوئ په دې صفاتو کښې، چه ﴿ بَطَرًا ﴾تکبردحق نه،﴿ وَرِئَاءَ النَّاسِ ﴾ریاکول په عمل کښې ﴿ وَيَصُدُّونَ ﴾ خلق دالله تعالی ددین نه منع کول، روایت دې چه هرکله چه لښکردمشرکانو دمکې نه راووت اوجحفې مقام ته را اورسیدو نوقاصددابوسفیان ورته راغلو ورته ئې اووئیل چه واپس شئ ستاسو قافله سالمه رااورسیده نوابوجهل اووئیل مونږ نه واپس کیږو بلکه مونږ به بدرمقام ته ضرورځو(دلته به تجارتی منډئ لګیدله) حتی ننحرالجزور ونشرب الخمور وتعزف علینا القینات، مونږ به اوښان ذبح کړو اوشرابونه اوسکو، اودعزل ویوونکوزنانو سره لوبې اوکړو، نوچه لاړل نو په خپله ذبح کړې شو اودمرګ شراب ئې اوسکل اوجړاګانې پرې اوشوې نوالله تعالی مؤمنان دداسې خبروکولو نه منع کړل.

<table>
<tr><td>وَإِذْ زَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَٰنُ أَعْمَٰلَهُمْ وَقَالَ لَا غَالِبَ لَكُمُ الْيَوْمَ مِنَ النَّاسِ</td></tr>
<tr><td>اوکله چه ښائسته کړل دوئ ته شیطان د دوئ عملونه، او وې وئیل چه نشته دې زورآور په تاسې نن ورځ هیڅ څوک د خلقو</td></tr>
<tr><td>وَإِنِّي جَارٌ لَّكُمْ ۖ فَلَمَّا تَرَاءَتِ الْفِئَتَانِ نَكَصَ عَلَىٰ عَقِبَيْهِ وَقَالَ</td></tr>
<tr><td>او بیشکه زه مددګار ستاسې یم، نو پس کله چه یو بل ولیدل دواړو ډلو واپس شو دې په پوندو خپلو، او وه وئیل ده</td></tr>
<tr><td>إِنِّي بَرِيٓءٌ مِّنكُمْ إِنِّيٓ أَرَىٰ مَا لَا تَرَوْنَ إِنِّيٓ أَخَافُ اللَّهَ ۚ</td></tr>
<tr><td>بیشکه زه بیزاره یم ستاسې نه بیشکه زه وینم هغه شې چه تاسو ئې نه وینئ، بیشکه زه یریږم د الله تعالی د عذاب نه</td></tr>
<tr><td>وَاللَّهُ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿٤٨﴾</td></tr>
<tr><td>او بیشکه الله تعالی سخت عذاب ورکونکې دې.</td></tr>
</table>

﴿ وَإِذْ زَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَٰنُ ﴾داخلورم علت دې ، خلاصه ئې داده چه په جنګ بدرکښې الله تعالی کفارخوف زده کړل اوتختیدل اوالله تعالی مال غنیمت تاسوته درکړو نولهذا مال غنیمت به دالله تعالی په حکم تقسیمولې شی، دجنګ بدر اهمیت ابلیس هم محسوس کړو اویقین ئې وو چه که چرې مسلمانانو ته فتح اوغلبه حاصله شی نوددعربونه به دکفراوشرک خاتمه اوشی نوددې وجې نه ابلیس دسراقه بن مالک په شکل کښې سره دفوج نه ښکاره شو، ابوجهل

اودکفارولښکر چه کله دمکی نه ، دمؤمنانو دمقابلې دپاره روان شو نودوئ ته خطره وه د بنی کنانۍ قبیلې نه، ځکه چه دوئ دقریشو دمکی مخالف وو، نوشیطان ورته په صورت دسراقه بن مالک، کنانی ، کښې ظاهرشو اودوئ ئ دجنګ دپاره تیزکړل اواوئ وئیل چه په تاسو هیڅ څوک نشی غالب کیدې اوزه سره دخپل فوج نه ستاسو د مدد لپاره راغلې یم، نو مشرکان ډیر خوشحاله شو او تسلی ئ راغله چه د بنی کنانه بن بکر قبیلې نه خطره ختمه شوه اودتعاون کولوطمع هم پیداشوه ځکه چه سراقه دبنی کنانه بن بکرقبیلی رئیس وو، نوهرکله چه په میدان بدرکښې زوردار جنګ شروع شو اودشیطان په نظرکښې حضرت جبرئیل ﷺ اونوری فرشتې راغلې اوپه دغه وخت کښې ئ دحارث بن هشام په لاس کښې لاس وو نوپه جلدئ سره ئ دهغه دلاس نه خپل لاس وه اوخکل ، اوپه تادئ سره دخپوپه پوندو پښې شا، روان شو، ابوجهل ورته اوازاوکړو چه اې سراقه دجنګ په دې شدت کښې په چل ول فریب سره چرته ځې ، بیرته رااوګرزه، زمونږ لښکرمه بې زړه کوه، شیطان جواب ورکړو چه ﴿إِنِّي بَرِيٓءٌ﴾ زه ستاسی نه بیزاریم ، زه هغه څه وینم چه تاسوئ نه وینئ ، یعنی فرشتې، ﴿إِنِّيٓ أَخَافُ ٱللَّهَ﴾ یعنی ددی حزب الله نه یریږم، یاداچه دالله تعالی دذات نه یریږم.

**سوال** : واردیګی چه دالله تعالی دذات نه خوف خوعلامه دایمان ده اودامستعبد دې دحال دابلیس نه، **جواب** (۱) حضرت قتاده ﷫ وائ چه ابلیس چه وئیلی دی ﴿أَرَىٰ مَا لَا تَرَوۡنَ﴾ دائ رښتیا وئیلی دی اودائ چه وئیلی دی ﴿إِنِّيٓ أَخَافُ ٱللَّهَ﴾ نودائ دروغ وئیلی دی، (۲) حضرت عطاء خراسانی وائ چه دخوف نه دلته مراد خوف دهلاکت دې ځکه چه شیطان چه کله فرشتې اولیدلې چه نازلیدلې داسمان نه نوده ته خوف راغلو چه دابه هغه وخت وی چه ددغه وخت پورې ده ته مهلت ورکړې شوې وو یعنی داخوف طبعی غیراختیاری دې اوداعلامه دایمان نه ده ، امام مالک ﷫ وغیره محدثینو یوروایت ذکرکړیدې چه : ((مارُؤی ابلیسُ یوماً فیهِ اَصغَرَ ولااَدۡحرَولااحقرَولا اغیظَ منه یومَ عرفة، وماذاک اِلاّلِمَا یَرىٰ مِن نُزُولِ الرَّحۡمَةِ وتجاوزَ الله عنِ الذُّنُوبِ العظامِ اِلاّماکانَ من یوم بدرٍ))، یعنی ابلیس په دې دوؤ موقعوکښې ډیرذلیل مطرود، حقیر ډیرغصه ،لیدلې شویدې یوورځ دعرفی، بله ورځ دبدر.

ابن کثیر وغیره داهم نقل کړی دی چه مشرکین چه هرکله مکی ته واپس راغلل، نودسراقه بن مالک سره ئ ملاقات اوشو نوهغه ئ ډیرملامت کړو اواوئ وئیلې چه زمونږ دټول شکست

اونقصان ذمه داری په تاده ځکه چه ته په عین میدان جنګ کښې تختیدلې ئ اوزمونږخوانان دې بې زړه کړې دی هغه اووئیل چه ته زه میدان جنګ ته تللې یم اونه خبروم، زه خو هله خبرشوم چه تاسو ، ،شکست خورده ، دمیدان جنګ نه واپس شوئ.

اوددی آیت نه دامعلومه شوه چه شیطان په مختلفو شکلونو سره متشکل کیدې شی ، اوخلق تیزوی په ګناهونو ، اوداچه شیطان فرشتې هم لیدې شی.

| إِذْ يَقُولُ الْمُنٰفِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَّرَضٌ غَرَّ هٰٓؤُلَآءِ |
|---|
| کله چه وه وئیل منافقانو [۱] اوهغه کسانو چه په زړونو ددوئ کښې بیماری «شك» وۀ، دهوکه ورکړیده دې کسانو لره |
| دِينُهُمْ ۗ وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَإِنَّ اللّٰهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ۝ |
| دین د دوئ، او څوك چه خان وسپاری په الله تعالی نو بیشکه الله تعالی زرواٰورد دې حکمتونو والا دې. |
| وَلَوْ تَرٰىٓ إِذْ يَتَوَفَّى الَّذِينَ كَفَرُوا ۙ الْمَلٰٓئِكَةُ يَضْرِبُونَ وُجُوهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ ۚ |
| اوکه وه وینې ته هغه وخت چه روح قبض کوی د کافرانو نه ملائك، وهی مخونه د دوئ او شاګانې د دوئ |
| وَذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ ۝ ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيكُمْ |
| «ورته وائی» وڅکئ عذاب د سوزیدلو. دا سزا په سبب د هغه عملونو ده چه مخکښې کړیدی لاسونو ستاسو |
| وَأَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيدِ ۝ |
| او بیشکه الله تعالی نه دې هیڅ ظلم کونکې په بندګانو. |

﴿ إِذْ يَقُولُ الْمُنٰفِقُونَ ﴾ داپنځم علت دپاره ددعوی چه منافقینو په تاسو پورې خندل لیکن الله تعالی دهغوئ خنداپه خفګان بدله کړه، اوتاسوته ئ فتح اوغلبه درکړه نوددی وجې نه مال غنیمت دالله تعالی دحکم موافق تقسیموئ،﴿ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم ﴾ مرض نه مرادشک دې اوداعطف تفسیرد ﴿ الْمُنٰفِقُونَ ﴾ دې، اوددی آیت مطلب دانه دې چه په بدرکښې منافقین وو هغوئ دغه کلام کړې وو بدریین ټول اعلی مخلصین وو بلکه مراددادې چه هغه منافقین چه په مدینه کښې په خپلو کورونوکښې وو اوبدرته نه وو تللی، دوئ چه کله خبرشو چه دالګ بې

---

۱ - پنځم علت.

سروسامانه مؤمنان دډیرو کفارومقابلې ته لاړل نودوئ اوونیل ﴿غَرَّ هٰٓؤُلَآءِ﴾ ، ﴿دِيۡنُهُمۡ﴾ فاعل دې د ﴿غَرَّ﴾ او ﴿هٰٓؤُلَآءِ﴾ ورته مفعول دې یعنی دهوکه ورکړیده دوئ ته ددوئ دین چه لګ کسان دی اواسلحه ورسره هم نشته دوئ به څه رنګه جنګ اوکړی، ﴿وَمَن يَتَوَكَّلۡ﴾داصفت دمؤمنان دې. ﴿إِذۡ يَتَوَفَّى ٱلَّذِينَ﴾ دا تخویف دې په عذاب دنزع یعنی ځنکدن ، اوبرزخ سره، ﴿يَضۡرِبُونَ وُجُوهَهُمۡ﴾ ضرب دوجوهو او ادبارو په حالت دنزع کښې دې، اووهل د مخ اوددُبرلګه چه تعذیب دې نودغه شان دانهایت تذلیل اوبی عزتی هم ده، نوځکه داخاص شو یاترینه مراد ټول بدن دې،﴿وَذُوقُواْ عَذَابَ ٱلۡحَرِيقِ﴾ دلته یقال هم مقدردې، اوجواب دلومحذوف دې چه لرایت امراً فظیعاً عظیما، اوپه حذف کولو دجواب کښې اشاره ده دیته چه داعذاب دومره عظیم دې چه بیان ئ نه شی کیدې، اوپه دې کښې دعذاب برزخی ذکردې نودادلیل دې په ثبوت دعذاب برزخی باندې د ((حریق)) معنی داده چه سوزونکې ظاهر باطن دواړولره، اودا آیت اګرچه نازل دې په باره دمقتولینوکافرانو دبدرکښې لیکن حکم ئ عام دې ټولو کافرانو ته﴿ذَٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتۡ﴾ یعنی داعذاب په سبب دبدواعمالو سره دې نوبداعمال سبب دعذاب دې اوعذاب نتیجه دبدواعمالوده، ﴿لَيۡسَ بِظَلَّامٖ﴾ ای واعلموان الله لیس بظلام، ای بذی ظلم ، نفی دمطلق ظلم مقصود ده، اوپه ذکرکولودصیغی دمبالغې کښې اشاره ده دیته که چرې بالفرض الله تعالی ظلم کولې نوهغه به ډیرزیات وې(ځکه دغټو هرڅه غټ وی) اوبعض حضرات وائ چه دانفی دمبالغې نه ده بلکه مبالغه فی النفی ده.

كَدَأۡبِ ءَالِ فِرۡعَوۡنَ ۙ وَٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡ ۚ كَفَرُواْ

حال د دوئ په شان د حال د فرعونیانو دې او دهغه کسانو چه مخکښې وؤ د هغوئ نه ، کفر کړې وؤ هغوئ

بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ فَأَخَذَهُمُ ٱللَّهُ بِذُنُوبِهِمۡ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ قَوِيّٞ

په آیاتونو د الله پس وه نیول دوئ لره الله تعالی په سبب دګناهونو د دوئ بیشکه الله تعالی قوت والا دې

شَدِيدُ ٱلۡعِقَابِ ۝ ذَٰلِكَ بِأَنَّ ٱللَّهَ لَمۡ يَكُ مُغَيِّرٗا نِّعۡمَةً

سخت عذاب ورکونکې دې . دا عذاب په دې وجه دې چه الله تعالی هرګز ندې بدلونکې د هغه نعمت

أَنْعَمَهَا عَلَىٰ قَوْمٍ حَتَّىٰ يُغَيِّرُوا مَا بِأَنفُسِهِمْ ۙ وَأَنَّ اللَّهَ

چه کړې ئ وی په یو قوم باندې، تر څوچه دوئ بدل نه کړی هغه څه چه د دوئ په نفسونو کښې دی او بیشکه الله تعالی

سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٥٣﴾ كَدَأْبِ آلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ

اوریدونکې پوهه دې . حال د دوئ په شان د حال د فرعونیانو دې او دهغه کسانو چه مخکښې وو د دوئ نه

كَذَّبُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ فَأَهْلَكْنَاهُم بِذُنُوبِهِمْ

نسبت د دروغو کړې وو دوئ آیاتونو د رب خپل ته، پس هلاك کړل مونږ دوئ په سبب د گناهونو د دوئ

وَأَغْرَقْنَا آلَ فِرْعَوْنَ ۚ وَكُلٌّ كَانُوا ظَالِمِينَ ﴿٥٤﴾ إِنَّ شَرَّ الدَّوَابِّ عِندَ اللَّهِ الَّذِينَ

او غرق کړل مونږ فرعونیان، او دا ټول ظالمان وو . بیشکه بدترین په زنده سرو کښې په نیز د الله هغه کسان دی

كَفَرُوا فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٥٥﴾ الَّذِينَ عَاهَدتَّ مِنْهُمْ ثُمَّ يَنقُضُونَ

چه کفر ئ کړې دې پس دوئ ایمان نه راوړی ، دا هغه کسان دی چه تا لوظ کړې دې د دوئ سره، بیا ماتوی دوئ

عَهْدَهُمْ فِي كُلِّ مَرَّةٍ وَهُمْ لَا يَتَّقُونَ ﴿٥٦﴾ فَإِمَّا تَثْقَفَنَّهُمْ فِي الْحَرْبِ

لوظ خپل په هر ځل کښې او دوئ ځان نه ساتی (د وعدی خلافئ نه) . پس کچرې ته را لاندې کړې دوئ په جنگ کښې

فَشَرِّدْ بِهِم مَّنْ خَلْفَهُمْ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُونَ ﴿٥٧﴾

پس اویره وه په سبب د قتل د دوئ سره هغه خلق چه روستو د دوئ نه دی، لپاره د دې چه دوئ نصیحت قبول کړی.

﴿كَدَأْبِ آلِ فِرْعَوْنَ﴾ داخبردمبتداء محذوف دې ای داهم کداب ال فرعون، داتشبیه دموجوده کافرانوده، دمخکینو کافرانوسره په عادت کښې او دارنگه په عذاب ددنیااودبرزخ کښې ﴿بِذُنُوبِهِمْ﴾ دمخکینو کفاروهلاکت په سبب دکفر سره وو لیکن هرکله چه کفرمستلزم وو ډیروگناهونولره نوددی وجې نه دذنوبو ذکراوشو، ﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ لَمْ يَكُ مُغَيِّرًا﴾ یعنی داعذاب دوئ ته په دې وجه ورکولې شی چه الله تعالی نعمت، صحت امن ،عافیت ، نه بدلوی ترڅو چه دخلقو اعمال عقائد نوی خراب شوی نوچه اعمال او عقاید خراب شی نو الله تعالی د نعمت په ځائ عذاب ورکړی، **سوال** واردیږی چه ال فرعون اومشرکین مکه والاؤ خپل حال نه وو بدل کړې دوئ خوداول نه ترآخری پورې کافروو، **جواب**، (۱) بعض مفسرین وائ چه تغیر یودادې چه

دایمان اوطاعت په ځای کفر اومعصیت اختیارکړی، نوداتغیر دې دحال حسنه نه حال قبیحه ته اودویم داچه دقبیح نه اقبح (زیات قبیح) ته تغیر راولی لکه په اهل مکه کښې اول صرف کفرو لیکن درسول الله ﷺ دبعثت نه بعد ، تکذیب، ایذاء، انکارددعوت ، مقابله اوعناد دحق سره، ئې شروع کړه نوداتغیر دې دقبیح نه اقبح ته،

(۲) بعض حضرات وائی چه دنعمت نه مرادفطری نیک قوی، اواستعداد دې اوتغیرئ دادې چه په بې اعتدالو اوغلط کارونوکښې خپل دانیک قوی، استعداد، صلاحیتونه صرف کړی،

﴿ كَدَأۡبِ ءَالِ فِرۡعَوۡنَ ﴾ دا تکرار دتاکید دپاره دې یاداتکرار نه دې ځکه چه مخکینی کښې تشبیه وه په کفرکښې اوپه دې آیت کښې تشبیه ده په بدلولو د نعمت کښې او دارنګه په ماقبل کښې ذکر د کفر وؤ او پدې آیت کښې ذکردتکذیب دې ﴿إِنَّ شَرَّ ٱلدَّوَآبِّ ﴾ دازجردې کفاروته،

﴿ٱلَّذِينَ عَٰهَدتَّ ﴾ ددې نه مراد یهود د بنو قریظه دی، داپه مدینه کښې لویه طاقتوره قبیله وه، رسول الله ﷺ چه مدینې ته هجرت اوکړو نوددوئ سره ئې معاهده اوکړه چه تاسویۀ زمونږ په مقابله کښې زمونږ د دشمن سره تعاون نه کوئ اومونږ به ستا ددشمن سره تعاون نه کوؤ، لیکن دوئ څوځله وعده ماته کړه اوبیاپه جنګ احزاب کښې ئې دمشرکینو مکمل حمایت اوتعاون اوکړو، نودجنګ خندق نه بعدمتصلاً نبی ﷺ ددوئ محاصره اوکړه اومشران ئې ورته تول قتل کړل اوزنانه اونابالغ بچی ئې وینځی اوغلامان جوړکړل.

﴿ فَإِمَّا تَثۡقَفَنَّهُمۡ ﴾ دادویم قانون دَ جنګ دې اوخطاب رسول پاک ﷺ ته دې یا هرامیرته دې ﴿فَشَرِّدۡ بِهِم﴾تشرید منتشر کولواو، تسنس کولوته وائ یعنی داسې سزاورکړه چه نورخلق ترینه عبرت واخلی، اویریږی اوتریږی،بنوقریضه ددې نمونه ده.

| وَإِمَّا | تَخَافَنَّ | مِن | قَوۡمٍ | خِيَانَةً | فَٱنۢبِذۡ | إِلَيۡهِمۡ | عَلَىٰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوکه وه یریګې ته (معلوم کړې) د یو قوم نه د لوظ ماتولو، پس وه غورزوه دوئ ته وعده (لوظ) په داسې حال کښې | | | | | | | |
| سَوَآءٍۚ | إِنَّ | ٱللَّهَ | لَا | يُحِبُّ | ٱلۡخَآئِنِينَ | ۞ وَلَا | يَحۡسَبَنَّ |
| چه تاسودواړه برابر یئ په علم کښې په لوظ ختمیدلو، بیشکه الله تعالی نه خوښوی خیانت کونکی اوهرګزدې ګمان نکوی | | | | | | | |

| الَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَبَقُوْا ۭ اِنَّهُمْ لَا يُعْجِزُوْنَ ۝ وَاَعِدُّوْا لَهُمْ مَّا اسْتَطَعْتُمْ |
|---|
| کافران چه دوئ به بچ شی بیشکه دوئ نشی عاجز کولې الله لره. او تیار کړئ د دوئ د مقابلې لپاره څومره چه وس لرئ |
| مِّنْ قُوَّةٍ وَّمِنْ رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُوْنَ بِهٖ عَدُوَّ اللّٰهِ وَعَدُوَّكُمْ |
| سامان د جنګ نه او د ساتلې شوی اسونونه چه یره وئ تاسو په هغې سره دښمن د الله تعالی اودشمن ستاسې، |
| وَاٰخَرِيْنَ مِنْ دُوْنِهِمْ ۚ لَا تَعْلَمُوْنَهُمْ ۚ اَللّٰهُ يَعْلَمُهُمْ ۭ وَمَا تُنْفِقُوْا |
| اونور کسان سوی د هغوئ نه (منافقین) چه نه پیژنئ تاسو هغوئ لره، الله تعالی پیژنی هغوئ لره، اوهغه چه خرچ کوئ تاسې |
| مِنْ شَيْءٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يُوَفَّ اِلَيْكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تُظْلَمُوْنَ ۝ |
| څه شې په لاره د الله تعالی کښې نو پوره به درکړې شی تاسو ته ثواب د هغې او په تاسو به هیڅ ظلم نشې کیدې |

﴿ وَاِمَّا تَخَافَنَّ ﴾ خوف نه مرادعلم یاغلبه دظن ده اومطلب دادې چه کوموخلقو وعده ماته کړه نوهغوئ ته خوعبرتناکه سزاورکړه اوکوموخلقو چه وعده ماته کړی نه وی لیکن ستا علم یاظن راشی چه دوئ وعده اولوظ ماتوی نوداسې خلقوته وعده وغورزوه، یعنی دعهدد ختمیدلو اعلان ورته اوکړه ﴿ عَلٰى سَوَاۗءٍ ﴾ جارمجرور په محل دحال کښې دې یعنی په داسې حال کښې چه تاسو اودوئ برابرئ په علم کښې په ختمولو دعهد، دادی وجې نه چه څوک تهمت اونه لګوی دخیانت . دامانت اود عهد، حفاظت دایمان حفاظت دایمان حصه ده، لاایمان لمن لاامانة له ولا دین لمن لاعهدله.

﴿ وَلَا يَحْسَبَنَّ ﴾ دازجردې کفاروته ﴿سَبَقُوْا﴾ دامفعول د لَايَحْسَبَنَّ دې په معنی د اَنْ يَّسْبِقُوْنَا سره یعنی دوئ دې داګمان نه کوی چه دوئ به زمونږ دعذاب اوګرفت نه بچ شی ځکه چه دوئ نه شی عاجزکولې مونږ لره.

﴿وَاَعِدُّوْا لَهُمْ ﴾ **دادریم قانون** دې یعنی دکفارو دمقابلې دپاره مادی اسباب تیارکړئ ﴿مَّا اسْتَطَعْتُمْ ﴾ یعنی دا ضروری نده چه دهغوئ سره دې برابر وی بلکه د خپل وسع مطابق اسباب تیار کړئ، لږ وی یا ډیر، ﴿مِّنْ قُوَّةٍ ﴾ دا بیان د ﴿مَّا اسْتَطَعْتُمْ ﴾ دې، په حدیث کښې دقوة تفسیر په رمی سره راغلیدې (الاان القوة هی الرمی) دویم معنی ئ حُصون ، قلعه ګانې، مورچې دی، دریم تفسیر ئ دادې چه ددینه مرادتمام اسلحې دی، ﴿ رِبَاطِ الْخَيْلِ ﴾ اضافت دصفت دې

موصوف ته ای الخیول المربوطة، اسونه ترلي شوی دجهاددپاره ، اوپه حدیث کښې دی (الخیل مربوط فی نواصیها الخیر الی یوم القیامة) دقیامت پورې داسونو په تندو پورې خیرترلې شویدې، په دې کښې اشاره ده چه جهاد به دقیامت پورې وی منسوخ نه دی اواسونو ته په جهادکښې په هردور اوزمانه کښې ضرورت دې، ﴿ تُرْهِبُونَ بِهِۦ ﴾ په دې کښې اشاره ده چه فتح په مادی اسبابوسره نه ده، بلکه په صفاتو سره ده، تقوی ، صبر، اطاعت ، دالله تعالی اودرسول الله صلی الله علیه وسلم، دالله تعالی ذکر، اخلاص لللهیت ، وغیرذالک ، او مادی اسباب صرف ددُشمن دتخویف ترهیب دپاره دی، ﴿ وَءَاخَرِينَ ﴾ددې نه مراد منافقین دی یاترینه مراد اهل فارس وغیره دی، ﴿ لَا تَعۡلَمُونَهُمُ ﴾ په سورت توبه کښې (۱۰۱) (لاتعلمهم) دې، داواضح دلیل دې په دې چه نبی ﷺ اوصحابه عالم الغیب نه وو، ﴿ وَمَا تُنفِقُوا۟ مِن شَیۡءٍ ﴾داترغیب دې انفاق فی سبیل الله ته.

| وَإِن جَنَحُوا۟ لِلسَّلۡمِ فَٱجۡنَحۡ لَهَا وَتَوَكَّلۡ عَلَى ٱللَّهِۚ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ |
|---|
| اوکه دوئ مائل شی صلح ته (۱) نو ته هم مائل شه هغې ته او توکل کوه په الله تعالی باندې، بیشکه الله هرڅه اوری |
| ٱلۡعَلِيمُ ۞ وَإِن يُرِيدُوٓا۟ أَن يَخۡدَعُوكَ فَإِنَّ حَسۡبَكَ ٱللَّهُۚ هُوَ ٱلَّذِيٓ |
| په هرڅه پوهه دې . اوکه دوئ اراده لری چه دهوکه درکړی تا ته پس بیشکه کافی دې تا لره الله تعالی، الله تعالی هم هغه ذات دې |
| أَيَّدَكَ بِنَصۡرِهِۦ وَبِٱلۡمُؤۡمِنِينَ ۞ وَأَلَّفَ بَيۡنَ قُلُوبِهِمۡۚ |
| چه قوی کړې ئی ته په خپل مدد سره او په ملګرتیا دمؤمنانو سره. اوهم هغه اُلفت او مینه پیدا کړه په مینځ د زړونو د دوئ کښې، |
| لَوۡ أَنفَقۡتَ مَا فِي ٱلۡأَرۡضِ جَمِيعٗا مَّآ أَلَّفۡتَ بَيۡنَ قُلُوبِهِمۡ |
| که خرچ کړې وې تا هغه څیزونه چه په ځمکه کښې دی ټول، نو تا به اُلفت اومینه نوې راوستې په مینځ د زړونو د دوئ کښې |
| وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ أَلَّفَ بَيۡنَهُمۡۚ إِنَّهُۥ عَزِيزٌ حَكِيمٞ ۞ |
| لیکن الله تعالی اُلفت اومینه پیدا کوی په مینځ د دوئ کښې، بیشکه الله تعالی زوراور اوحکمتونو والا دې. |

﴿ وَإِن جَنَحُوا۟ لِلسَّلۡمِ ﴾ **داخلورم قانون دې** اومطلب ئې دادې چه مؤمنان دې کافرانو ته دعوت

۱ - خلورم قانون.

دصلح نه ورکوی لیکن که کافران صلح طلب کړی نو صلح کول جائزدی، که مصلحت په کښې وی، ﴿فَاجْنَحْ﴾ دا امر دوجوب دپاره نه دی بلکه داباحت اواستحباب دپاره دی ﴿وَإِن يُرِيدُوٓا﴾ دادماقبل سره متعلق دی یعنی که کفار په اظهار دصلح سره دهوکه اراده کوی اودصلح نه ئې غرض ستاسو دمقابلې دپاره تیارې کول وی، نوجزاء مقدره چه فلاتخف ولاتحزن، مه یریږه، اوددې جزاء علت مذکور دی ﴿فَإِنَّ حَسْبَكَ اللَّهُ﴾ الله تعالی تالره کافی دی ﴿هُوَ الَّذِىٓ أَيَّدَكَ بِنَصْرِهِۦ﴾ دا د حسبک الله بیان دی نوددی وجې نه عطف ترک شو، ﴿وَبِالْمُؤْمِنِينَ﴾ انصار اونور صحابه کرام ورنه مراد دی، یعنی په ملګرتیا دَ مؤمنانو سره ئې قوی کړې ، **سوال** واردیږی چه تائید په نصرت الهی سره دی نوبیاڅه حاجت دی بالمؤمنین ته، **جواب** تائید خوصرف دالله تعالی دی خوداپه دوه قسمه دی اول هغه دی چه په غیر دواسطې داسبابو معتادؤ نه وی، دویم هغه دی چه په واسطه داسبابو معتادؤ سره وی نوداول قسم ذکرپه ﴿أَيَّدَكَ بِنَصْرِهِۦ﴾ کښې دی اوددویم قسم په ﴿وَبِالْمُؤْمِنِينَ﴾ سره دی ﴿وَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِهِمْ﴾ دابیان ددی خبرې دی چه الله تعالی په مؤمنانو سره څه رنګه تائید کړې دی یعنی الله تعالی ددوئ په مابین کښې اتفاق، اتحاد پیداکړو، اوپه غیرداتفاق نه تائیدنه شی کیدې، داسلام نه قبل په عربوکښې دقتل قتال جدال بازارونه ګرم وو، په معمولی خبره به جنګونه دشمنئ شروع کیدلې اوقومیت عصبیت داسې غالب وؤ چه که دیوقوم یوکس به صرف په سپیره او وهلې شو نوپوره قوم به دهغې دبدل اخستلو پوره پوره کوشش کولو، دحق ناحق عدل انصاف، هیڅ تصور نه وو، الله جل جلاله په داسې حالاتوکښې حضور ﷺ مبعوث کړو اودالفتونو محبتونو مرکزاومنبع ئې اوګرځوؤ، دتوحید اودرسالت په دعوت سره ظلم عصبیت ختم شو، صرف اسلامی اخوت راغلو، حتی چه صحابه دخپل کافرپلار، رور، خوئ، دقتل دپاره تیارو، ﴿لَوْ أَنفَقْتَ مَا فِى الْأَرْضِ﴾ ددشمنئ دختمولو، اوصلح راوستلو دپاره دوه ذریعې دی اول داچه صلح راوستونکې، حَکَم (مینځ غاړې) ډیر هوښیاردې وی عاقل دې وی، دویم داچه ډیرمال خرچ کوی اوپه هغې سره یوخصم راضی کړی، نوالله تعالی فرمائ چه ددې عربو، عداوت دومره زیات وو چه ته چه په تمام مخلوق کښې زیات عقل اوپوهی والاکه چرې تاددنیاتمام دولتونه خرج کړې وې ددوئ په مینځ کښې دالفت محبت، راوستلو دپاره نوبیا به هم تاددوئ په مینځ کښې محبت نه وې راوستې لیکن الله تعالی ددوئ په مینځ کښې ددین اوایمان په وجه محبت

الفت پیدا کړو نوستاتائید ئې په دوئ سره اوکړو.

ددې آیت نه معلومه شوه چه نبی ﷺ مختارکل نه دې، اوبل دامعلومه شوه چه دصحابه کرامو په مینځ کښې مینه محبت وو، دشمنی نه وه، ددوئ په مینځ کښې عداوتونو خبرې بې سنده دی، البته ددوئ په مینځ کښې اختلافات اوجدالونه واقع شویدی لیکن هغه دعداوت په بنیاد نه وو بلکه دحق داتباع په جذبه ، اوداجتهادی اختلاف په وجه شویدی.

| يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ حَسْبُكَ اللّٰهُ وَمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۶۴﴾ |
|---|
| اې نبی ! (۱) کافی دې تا لره الله تعالی اوهغه چا لره چه تابعدار دی ستا، یعنی مؤمنان |

﴿ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ ﴾ داپنځم قانون دې چه دامیردپاره اودارنګه مامورینو دپاره په هرحالت کښې په الله تعالی باندې توکل اواعتمادپکاردې ځکه چه الله تعالی کافی دې په هرحال کښې، ﴿ وَمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾ په دې کښې څواحتماله دی، (۱) داعطف دې په (ک) باندې،ای حسبک ومن اتبعک الله، یعنی تالره اوستا متبعینولره الله تعالی کافی دې نوپه هغه اعتمادتوکل اوکړئ، (۲) واؤدعطف دپاره نه دې بلکه په معنی دمفعول معه سره دې ای حسبک الله مع من اتبعک ، نو من اتبعک منصوب دې مفعول معه دې (۳)، من اتبعک، مرفوع دې مبتداء ده خبرئ محذوف دې ای ومن اتبعک حسبهم الله ایضاً داتوجیهات داکثروسلفو نه منقول دی(۴)اوبعض وائ چه داعطف دې په لفظ دَ الله باندې معنی ئې داده چه اې نبی ﷺ تا لره په حقیقت کښې یواځې الله کافی دې، اوظاهری اسبابو په اعتبارسره دمخلصینو مسلمانانو جماعت اګرکه لګ هم وی کافی دې، لکه مخکښې ذکرشو ((ایدک بنصره وبالمؤمنین)) لیکن علامه ابن قیم داتوجیه ردکړیده هغه وائ چه حسبیت صفت خاصه دالله تعالی دې لکه حسبناالله ، حسبی الله ،نواسنادئ صرف الله تعالی ته کیږی غیرته نه کیږی په خلاف د ((اید))، نه ، روایت دې دابن عباس ﷺ اوسعیدبن جبیر ﷺ نه چه هرکله درې دیرش نارینو اوشپږو زنانو ایمان راوړو نودایوکم څلویښت عددوؤ نو بیاحضرت عمر ﷺ ایمان راوړو نوڅلویښت پوره شو نودا آیت نازل شو، والله اعلم، داروایت دآخری توجیه مؤیددې، اودغه توجیه اکثرو مترجمینو اختیارکړې ده لکه شاه عبدالقادر دهلوی رحمه الله مولانا اشرف

---

۱ - پنځم قانون.

علی ﷫ وغیره، اومروی ده دحضرت حسن ﷫ نه، ابوحیان وئیلی دی چه داپه معنی دمع سره گرخول مخالف دي دکلام دسیبویه نه هغه وائ چه د کفاک وزیداً درهم، معنی داده چه کفاک درهم وکفی زیداً درهم، دقبیلی دعطف الجمله علی الجمله نه، صاحب دروح المعانی په حواله دابن تیمیه ﷫ سره وائ چه سیبویه خوځه نبی نه دي چه اتباع ئ ضروری شی اومخالفت ئ ناجائز شی.

| يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلَى الْقِتَالِ ۭ اِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ عِشْرُوْنَ صٰبِرُوْنَ يَغْلِبُوْا |
|---|
| اې نبی! تیزی ورکړه مؤمنانو ته په جنگ کولو باندې، که وی ستاسو نه شل کسان صبر کونکی نو غالب کیږی به |
| مِائَتَيْنِ ۚ وَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ مِّائَةٌ يَّغْلِبُوْٓا اَلْفًا مِّنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاَنَّهُمْ |
| په دوو سوو، اوکه وی په تاسو کښی سل ، غالب کیږی به په زرو کسانو د کافرانو نه په سبب د دې چه دوئ |
| قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ ۞ اَلْـٰٔنَ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْكُمْ وَعَلِمَ اَنَّ فِيْكُمْ |
| داسې قوم دې چه نه پوهیږی . اوس آسانتیا راوسته الله تعالی په تاسو، اومعلومه ئ کړه چه بیشکه په تاسو کښی |
| ضَعْفًا ۭ فَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ مِّائَةٌ صَابِرَةٌ يَّغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ ۚ وَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ اَلْفٌ |
| کمزورتیا ده، پس که وی ستاسو نه سل کسان صبرناك غالب کیږی په دوؤ سوؤ، اوکه وی ستاسو نه زر کسان |
| يَّغْلِبُوْٓا اَلْفَيْنِ بِاِذْنِ اللّٰهِ ۭ وَاللّٰهُ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ۞ |
| غالب کیږی به په دوؤ زرو، د الله په حکم سره، او الله تعالی خاص ملګرې دې دصبر کونکو. |

﴿ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾داحکم دې نبی ﷺ ته چه مؤمنانوته دجهاد ترغیب ورکړه خکه چه په دې سره مزید اخلاص راځی ، اواخلاص ددین دهرکاربنیاددې بل داچه کله یوعمل خصوصًاجهاد طبعًا ناگوار اومشکل وی نوپه ترغیب ورکولوسره اسان شی حَرِّض، دتحریض نه مشتق دې اوتحریض دحرض نه مشتق دې په معنی دهلاکت سره زجاج وئیلی دی چه تحریض هغه تیزی ورکولوته وائ چه ترینه معلومه شی چه داکس قریب دې هلاکت ته مقصودترینه مبالغه ده په ترغیب کښ،﴿اِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ عِشْرُوْنَ صٰبِرُوْنَ ﴾په ابتداء کښ په مؤمنانو باندې فرض وه چه یوکس مسلمان به دلسوکافرانو مقابله کوی اوتختیدل ترینه حرام دی اوپه تختیدلو

وعيدراغلې وو، (فقد باء بغضب من الله)، په دې آيت کښې ددی ذکردې، بياځه وخت بعدتخفيف راغلوچه يوکس مسلمان به دوؤ کافرانوپه مقابله کښې نه تختی اوکه دوؤ نه زيات وونوپه تختيدلو کښې خرچ نشته دې، ددی ذکر په مابعد کښې راځی.

﴿ اَلۡـٰٔنَ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنۡكُمۡ ﴾بيادعلماؤ په دې کښې اختلاف دې چه آيا داتخفيف نسخ دې يانه دې، بعض علماؤ لکه مدارک وغيره شو چه دانسخ نه دې ځکه چه نسخ په انشاء اتو کښې راځی نوکلام انشائ خوحرض المؤمنين على القتال دې اودامنسوخ نه دې ﴿اِنۡ يَّكُنۡ مِّنۡكُمۡ عِشۡرُوۡنَ ﴾ کلام خبری دې نوپه دې کښې نسخ نه شی راتلې اوجمهور علماء وائ چه دانسخ دې او ﴿اِنۡ يَّكُنۡ مِّنۡكُمۡ عِشۡرُوۡنَ صٰبِرُوۡنَ ﴾الخ اګرکه لفظًا کلام خبری دې ليکن معنًا انشاء ده، دانشاء نه تعبير کله په کلام خبری سره کيږی، ددی نه مقصود مبالغه اوتاکيد فی الحکم وی، لکه ((فلا فسوق ولاجدال فى الحج)) اوهمدارنګه په کلام خبری سره تعبير کښې خوشخبری دفتح ده بل په دې کښې تسهيل دې ځکه امرفطرةً په طبيعت باندې بوج وی ،پس ثمره دخلاف په دې کښې ظاهريږی چه که يوکس مؤمن دلسوکسانو کافرانومقابله کوله اوقتل کړې شو نو آياګنهګار دې يانه؟ نوبناپه قول اول باندې ګنهګار نه دې بلکه ده عمل کړيدې په عزيمت باندې ، اوبناپه قول ثانی باندې چه دجمهوروقول دې ګنهګاردې(روح).

دآيت مقصود خو دادې چه اول داحکم وو چه يوکس به دلسو کسانو په مقابله کښې ثابت قدم وی، ليکن ذکردواحدنه دې شوې بلکه، ((عشرون)) او ((مائتين)) ذکرشوې دې ، په دې کښې اشاره ده چه امرجهاد موقوف دې په جماعت ،اولښکر ،باندې، داسې نه چه يوکس به يواځې ځی اوقتال به کوی، داطريقه دجهادنه ده، اودارنګه په مابعدکښې د ((مائة)) او ((مائتين)) ذکراود((الف)) او د ((الفين)) ذکرددې نکتی دپاره دې، شيربينی وائ چه ددې حکم تقيد په ((صابرة، صابرون)) سره راغليدې دادلالت کوی چه صبرشرط دې دوجوب ددی حکم دپاره، او صابر هغه ځوک دې چه شديدالاعضاء ، قوی الاعضاء قوی القلب شجاع وی ﴿بِاَنَّهُمۡ قَوۡمٌ لَّا يَفۡقَهُوۡنَ ﴾يعنی سبب دغلبې دادې چه کافران نه پوهيږی اومؤمن پوهيږی، دپوهی نه مراد دادې چه الله تعالى پيژنی اوعقيده لری چه ځمادتولومجاهداتوثمره په آخرت کښې ملاويږی، غالب شم يا مغلوب شم، اوداعلاء دکلمة الله دپاره چه زه هرقسم تکليف برداشت کړم هغه فی الحقيقت ځماددائمی خوشحالئ ذريعه ده، اوموت ځما اصل ژوند دې ، نوددی عقيدې په وجه مؤمن په

ډیرې بهادرۍ سره جنګیږي او د الله تعالی نصرت ورسره وي ﴿وَعَلِمَ أَنَّ فِيكُمْ ضَعْفًا﴾ دا ضعف دایمان نه دی بلکه ضعف دبدن یادهمت دي، ځکه دانسان مزاج اوطبیعت دادي چه سخت کار چه په لګوخلقو واچولې شي نوهرسړي دځپل قوت اوقدرت نه زیات زحمت اوکوشش کوي، اوکله چه دغه کار د ډیرو خلقوپه ذمه شي نوهریو دبل په انتظارکښې وي او ټول داسې فکرکوي چه آخر زه خو یواځې ددې کار مسئول اوذمه وارنه یم نوپه دې وجه سره په عمل کښې سستي اوپه همت کښې قلت محسوس شي.

| مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَىٰ حَتَّىٰ يُثْخِنَ فِي الْأَرْضِ ۚ |
| --- |
| ندی مناسب نبی لره [1] چه وي دې هغه لره قیدیان، تر څو پورې چه وینې ئې نوی توئ کړی په ځمکه کښې، |
| تُرِيدُونَ عَرَضَ الدُّنْيَا وَاللَّهُ يُرِيدُ الْآخِرَةَ ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٦٧﴾ |
| غواړئ تاسو سامان د دنیا اوالله تعالی غواړی آخرت، ستاسولپاره، او الله تعالی زرآور دې حکمتونو والا دې. |
| لَوْلَا كِتَابٌ مِنَ اللَّهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيمَا |
| که نوې حکم د الله تعالی چه مخکښې ئې فیصله شوې ده نو خامخا رسیدلې به وې تاسو ته په وجه دهغه مال |
| أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿٦٨﴾ فَكُلُوا مِمَّا غَنِمْتُمْ حَلَالًا |
| چه واخست تاسو د قیدیانو نه په فدیه کښې عذاب لوئ، پس خورئ دهغه مال نه چه په غنیمت کښې واخست تاسو حلال |
| طَيِّبًا ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿٦٩﴾ |
| پاك ، او یره کوئ د الله تعالی نه بیشکه الله تعالی بښونکې مهربان دې. |

﴿مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَىٰ﴾ داشپږم قانون دې حاصل ئې دادې چه په ابتداء کښې کفار قتلول پکاردی ددې دپاره چه رعب قائم شي په دشمنانو، په جهادکښې مال غنیمت هم په لاس راځي اوقیدیان هم رازی، نو د سورت په ابتداء کښې د مال غنیمت حکم ذکر شوې دې، او دلته د قیدیانوپه باره کښې حکم ذکرکیږي ، دآیت شان نزول دا دې چه دبدرپه غزاکښې اویاکسه دکافرانو نه دمسلمانانو په لاس کښې قیدیان شو چه په هغوئ کښې عباس ﷺ اوعقیل

[1] - شپږم حکم.

بن ابی طالب دحضرت علی ﷺ رورهم وودالله تعالی دطرفه ددوئ په باره کښ دوه صورتونه پیش شو(۱) قتل (۲) فدیه اخستل اوددوئ آزادول خوپه دي شرط سره چه په راتلونکی کال کښ به ستاسو نه اویاکسان قتلیږی ، داپه ظاهر کښ مؤمنانوته اختیار ورکول وو اوپه حقیقت کښ اختیاریعنی امتحان وو، اوددې وجې نه دفدیه په اخستلو باندې وعیدذکرشو خولکه روستو آیت کښ راځی، نورسول الله ﷺ په دې باره کښ دصحابه کرامو نه مشوره واخسته، نوابوبکرصدیق ﷺ اووئیل چه یارسول الله ﷺ داټول قیدیان زمونږ خپلوان اورونړه دی، بهتره داده چه ددوئ نه فدیه واخلو او آزادئ کړو اوددی نرم سلوک اواحسان په وجه کیدې شی چه بعض ددوئ نه مسلمانان شی اوهغه مال چه مونږ ددوئ نه په فدیه کښ واخلو هغه به په جهاد اونورودینی کارونوکښ خرچ کړو اوکه په آئنده کال کښ زمونږ نه اویا کسان شهیدان شی نوشهادت خوزمونږ دپاره سعادت دې اودرسول الله ﷺ میلان دفطری شفقت اوصله رحمئ په بناء، هم په دې لورې وو اودزیاتو صحابؤ رائ دحضرت ابوبکر درائ سره موافق وه اوحضرت عمر ﷺ اوسعدبن معاذ ﷺ اودبعض صحابؤ رائ ددینه خلاف وه، حضرت عمر ﷺ اووئیل چه یارسول الله ﷺ داقیدیان دکفرامامان دی دوئ ستاتکذیب کړیدې اوته ئ دمکی نه اوباسلې ئ، ددوئ سرونه دې قلم شی، چه دکفر زورختم شی اوپه کافرانو رُعب اوهیبت راشی چه مسلمانانو ته دتکلیف رسولو، اوخلقولره دالله تعالی ددین نه منع کولو جرات اونه کړی، علی ﷺ دې خپل رورعقیل لره قتل کړی اوحمزه ﷺ دې عباس ﷺ لره قتل کړی، اوزه دې فلانې قتل کړم، دغسې هرکس دې خپل خپل قریبی رشته دار کافرقتل کړی، چه دالله تعالی په بارګاه کښ دمشرکانو نه زمونږ کمال نفرت اوبیزاری خکاره شی، اودحق په معامله کښ مونږ دخپلوخپلوانو اودمالی فوائدو اودهیڅ څیز پرواونه کړو، اوپه یوروایت کښ دی چه عبدالله بن رواحه ﷺ اووئیل چه یوداسې وادی(ځنګل) چه په کښ خشاک ډیروی په داسې ځائ کښ دوئ داخل کړې شی اوګرم اور دې پرې بل کړې شی چه اوسوزی ، نوحضرت عباس ﷺ ده ته اووئیل چه قطعت رحمک، نبی ﷺ اوفرمائیل چه الله تعالی دبعض خلقو زړونه نرم کړی، حتی دلبنو، (شودو) نه هم زیات نرم وی اودبعض خلقو زړونه سخت کړی حتی چه کانړی نه زیات سخت وی اومثال ستایاابوبکر ﷺ په مثال دابراهیم ﷺ دې چه اوئ وئیل (فمن تبعنی فانه منی، ومن عصانی فانک غفوررحیم) اوپه شان د عیسی ﷺ دې چه ئ اووئیل، (وان تغفرلهم فانک انت العزیز الحکیم) اومثال ستا اې عمره ﷺ په شان دنوح ﷺ

دي دي چه اوئ وئیل (رب لاتذرعلی الارض من الکفرین دیاراً)، اوپه شان دموسی ﷺ دي چه اوئ وئیل (ربنا اطمس علی اموالهم)، بالاٰ خر نبی ﷺ دحضرت ابوبکرصدیق ﷺ رائ ته ترجیح ورکړه، اوفدیه ئ ترینه واخسته اوآزادئ کړل، سوی دیوڅوکسانو نه چه هغه ئ قتل کړل، لکه عقبه اونضر، اوطعمه، اوابوالعاص ﷺ چه دنبی ﷺ دامادوؤ په غیردفداء نه آزادکړې شو اودیته په اصطلاح دشرع کښ (مَنْ) وئیلې شی، نوهرکله چه نبی ﷺ دقیدیانودآزادولو اودفدیه اخستلوفیصله اوکړو نو دا آیت نازل شو اصحابوته عتاب، زورنه راغله، نبی ﷺ دکورنه واپس شو ډیرخفه وو، سترګی ئ دَ اوښکونه ډکی وې اوئ فرمائیل: (والله لونزل العذاب من السماء مانجی غیرعمر وسعد بن معاذ ومقداد) یعنی که عذاب د آسمان نه راغلې وې نوپه غیر دعمر ﷺ اودهغه دملګرونه به بل څوک نه ووبچ شوی.

**سوال**: صحابؤ ته خواختیار ورکړې شوې وو چه که تاسوقیدیان آزادوئ اوکه قتلوئ ئ نوبیاولې عتاب اوزورنه راغله.

**جواب**: داپه ظاهرکښ اختیار وو لیکن په حقیقت کښ اختبار اوامتحان وو لکه ازواج مطهراتو ته چه په ظاهر کښ اختیار ورکړې شوې وو ﴿إِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا وَزِينَتَهَا فَتَعَالَيْنَ﴾ (سورة احزاب، ع ۱۴) دا په حقیقت کښ امتحان وؤ ، یالکه په لیلة المعراج کښ نبی ﷺ ته خمر اولبن پیش کړې شو.

**سوال**: آیادا فیصله یعنی دقیدیانو آزادول که داصولو داسلام نه بالکل مخالف وی نوبیاڅه رنګه نبی ﷺ اواکابر صحابؤ ﷺ اختیار کړه اوکه مخالف نه وی داصول دشریعت نه نوبیاولې په دې باندې دومره عتاب اووعیدراغې.

**جواب**: ددې نه مخکښ دقیدیانو په باره کښ څه حکم نه وونازل شوې، اودقیدیانو آزادول او د فدیه اخستلونه منع هم نه وه راغلې، بلکه دقیدیانوآزادول اخلاقی حیثیت سره اودشریعت داصول کلیو سره عین مطابق وه لیکن دوقتی حالاتو اودوقتی مصلحتونو تقاضا داوه چه دوئ قتل کړې شی ددې دپاره چه په ظالمانو رُعب راشی، اوددیارلس کلونو دسخت ظلم نتیجه دوئ ته مخکښ راشی ، نوددې وقتی مصلحت په وجه باندې دافیصله الله تعالی ته پسنده نه وه اودایواجتهادی غلطی شمارشوه اودارنګه دکومو صحابؤ چه نظر په مالی فائدوباندې لګیدلې وو، اګرکه ددوئ مال ددینی مصالحو دپاره وو لیکن چونکه خپل ذاتی ضروریاتو باندې نظرورسره هم شامل وو نوپه دې وجه داددوئ دپاره اجتهادی غلطی

شمارکړي شوه ځکه چه په خپل ذاتی ضروریاتو باندې نظرکولو سره «بعض فی الله» کښ کمی اودجهاددمقدس اوعالی محنت نه دغفلت احتمال وو، نوپه دې کښې دصحابو ﷺ تربیت هم دې اوددوئ لوئ عالی شان ته اشاره هم ده نوددی وجه نه ئ دوئ ته اووئیل ﴿تُرِيدُونَ عَرَضَ الدُّنْيَا﴾ یعنی ستاسو دپاره دذاتی ضروریاتو فکرسوچ بالکل نه دې مناسب ﴿لِنَبِيٍّ﴾ دا ئ نکره راوړه اشاره ده چه داحکم ټولوانبیاؤ ته دې یاترینه مرادفقط زمونږ نبی ﷺ لکه چه په بعض قراءتونو کښ لِلنَّبِیِّ معرفه راغلې ده نوپه نکره ذکرکولو کښ دنبی ﷺ دادب رعایت کول مقصود دی «تلطف بالخطاب» اوبعض وائ چه دلته مضاف مقدردې ای لاصحاب نبی په قرینه ددې چه روستو ئ تُرِيدُوْنَ، وئیلی دی اوتریدُ ئ نه دی وئیلی ﴿أَسْرَىٰ﴾ دا جمع داسیرده لکه مرضی جمع دمریض ده اومرادددې نه داسې قیدیان دی چه په فدیه ورکولوسره خلاصیږی نوپه دې کښې اشاره ده چه دمشرکانو دبدرقتلول غوره وو، دفدیه نه، دمشرک قیدی قتل اواستعباد یعنی غلام گرزول جائزدی، اوبلا معاوضه پریخودل، یعنی «مَنْ» جائزنه دې، اوفدیه اخستل اوآزادول هم دامام ابوحنیفه رحمه الله په مشهور روایت کښ جائزنه دی البته دسیرکبیر په یوروایت کښ دی چه که مسلمانانو ته دمال ډیرضرورت وی نوفدیه اخستل جائزدی، اودمسلم قیدیانو په تبادله کښ آزادول جائز دی، د حضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه غزوهء بدر اول غزا وه او تر اوسه پورې د کافرانو طاقت او قوت نه وؤ کمزورې شوې نو پدې وجه د قیدیانو نه په فدیه اخستلو اوددوئ پریخودلوعتاب راغی بیاچه کله اسلام اومسلمانانو ته غلبه حاصله شوه اودکفر قوت مغلوب شو نوبیاالله تعالی مسلمانانو ته اختیارورکړو د «من» اود «فداء» چه ددی بیان په سورت محمد کښ شویدی «فامامنابعد وامافداء» نوگویاچه آیت دسورت محمد ناسخ اوآیت دسورت انفال منسوخ دې لیکن بعض حضرات وائ چه سورت محمد اول نازل شویدې حتی چه بعضو ورته مکی وئیلی دې نوآیت دسورت انفال ناسخ دې اوآیت دسورت محمد منسوخ دې، اوتحقیق دادې چه په دې دواړوکښ ناسخ اومنسوخ نشته دې ځکه چه په سورت محمدکښ چه د «من» او «فداء» اجازت چه ذکر شویدې نوهغه بعدداثخان، «خونریزئ» نه دې کماقال تعالی حتی اذااثخنتموهم فشدوالوثاق - الایه اوپه سورت انفال کښ هم حتی یثخن فی الارض، دې یعنی داثخان نه قبل من فداء،، نه وو مناسب، نوددواړو آیتونومفهوم یوشان ته دې لهذاناسخ منسوخ په کښ نشته دې.

﴿ لَوْلَا كِتَٰبٌ ﴾ داجواب دسوال دې چه هرکله فدیه اخستل اوقیدیان آزادول عندالله ناپسند وو نوپه دې عذاب ولی نازل نشو، جواب اوشو چه دعذاب دنزول دپاره مانع موجود وو نوځکه نازل نه شو ، هغه مانع ﴿كِتَٰبٌ مِّنَ ٱللَّهِ ﴾ ای حکم مکتوب فی اللوح المحفوظ، یعنی حکم او فیصله چه مخکښې لیکلې شویده، اوددی مصداق څوامورکیدې شی(۱) دلته نبی صلی الله علیه وسلم اوصحابؤ اجتهاد کړې وو اومجتهد اګرکه غلط شی نوهم ورته عذاب نه شی ورکیدې(۲) ترڅو چه یوحکم منصوصی نه وی نودهغې په خلاف کولوعذاب نه راخی لکه په سورت توبه آیت نمبر ۱۱۵ کښې دی اوپه سورت بنی اسرائیل کښې دی : ((وماکنا معذبین حق نَبْعَثَ رَسُوْلاً))، (۳) الله تعالی داهل بدروغلطی مخکښې معاف کړیده، کمافی الحدیث لعل الله اطلع علی اهل بدرفقال اعملواماشئتم فقدعفرت لکم، (۴) الله تعالی ددې امت دپاره مال غنیمت حلال کړیدې (۵) په دې قیدیانو کښې ډیرو کښې ډیروکسانو دپاره ایمان راوړل مقدروو.

په دې امورو کښې څه منافات نشته ټول اراده کیدې شی غرض داچه که داموانع نه وې نوداغلطی داسې سخته غلطی وه چه په دې به عذاب واقع شوې وې، په یوروایت دحدیث کښې دی چه هغه عذاب نبی ﷺ ته ښکاره کړې شو، نونبی ﷺ اوحضرت ابوبکر ؓ دواړو ژړل حضرت عمر ؓ چه تپوس اوکړو نونبی ﷺ اوفرمائیل چه څما په مخکښې هغه عذاب ښکاره شوې وو، چه په اخذ دَ فداء، راتلووالاوو، دعالم غیب دبعض اموریه عالم مشاهد کښې متمثل کولې شی اومقصود ترینه صرف دعالم غیب دبعض امورونظاره کول وی﴿ فَكُلُوا۟ مِمَّا غَنِمْتُمْ ﴾ هرکله چه په اخذدفدیه عتاب راغې نوصحابؤ دخوف دوجه نه فدیه اخستل پرینښودل، اوفاء په فَكُلُوا کښې دسببیت دپاره ده یعنی هرکله چه مواخذه اونزول دعذاب نشته دې نو فکلوا

يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّمَن فِىٓ أَيْدِيكُم مِّنَ ٱلْأَسْرَىٰٓ إِن يَعْلَمِ ٱللَّهُ فِى قُلُوبِكُمْ

اې نبی ! (۱) وه وایه هغه چا ته چه ستاسو په لاسونو کښې دی د قیدیانو نه. که معلوم کړو الله تعالی په زړونو ستاسو کښې

۱- اووم ۷ قانون.

| |
|---|
| خَيْرًا يُّؤْتِكُمْ خَيْرًا مِّمَّآ اُخِذَ مِنْكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ط |
| خير (ايمان) نو در به كړي تاسو ته ډير غوره دهغه مال نه چه اخستې شوې دې ستاسو نه اوبښنه به وكړي تاسو ته. |
| وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۞ وَ اِنْ يُّرِيْدُوْا خِيَانَتَكَ فَقَدْ |
| او الله تعالى ښنونكې دې رحم كونكې دې . اوكه اراده لرى دوئ د خيانت دهوكه ستاسو سره، پس په تحقيق سره |
| خَانُوا اللّٰهَ مِنْ قَبْلُ فَاَمْكَنَ مِنْهُمْ ط |
| خيانت او دهوكه كړې وه دوئ د الله تعالى سره مخكښې د دينه پس قدرت دركړو تاسو لره الله تعالى په دوئ باندې |
| وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ۞ |
| او الله تعالى عليم حكيم دې. |

﴿يَٰٓأَيُّهَا النَّبِيُّ قُل﴾ **دا اوم قانون دې** حاصل ئ دادې چه په قيديانوكښې څوك دعوه دايمان كوى ددى دپاره چه دفديه وركولونه بچ شى نوهغه ته دې ترغيب وركړې شى اوورته دې اووئيلې شى چه فديه وركول خوپه تالازم دى اوكه دعوه دايمان ستاصحيح وى نوالله تعالى به ډيرعوض دركړى، اووجه داده چه كه يوكس ته صرف په دعوى دايمان سره فديه معاف شى نوبيابه هركس دايمان دعوى كوى، ددى آيت حكم عام دې اونزول ئ خاص دې په باره دحضرت عمر ﷺ كښې دې، په يوروايت كښې دى چه په قيديانو كښې حضرت عباس رضى الله عنه راوستې شو نوحضرت عمر ﷺ ده لره ډير سخت كلك تړلې وو، اودتكليف دوجه نه ئ فريادكولو، نبى ﷺ چه ددوئ فرياد واؤريدلو نوآرام ئ نه شو كولې، نوصحابه ﷺ چه پوهه شو نوددوئ تړل ئ نرم كړل اوبياانصارو صحابو ﷺ اووئيل چه عباس ﷺ زمونږ خوريې دې دوئ ته دې فديه معاف شى، خونبى ﷺ اوفرمائيل چه يو درهم به ورته هم نه شى معاف كولې اوحكم ئ اوكړو چه خپله فديه هم وركړه اودخپل وراره عقيل بن ابى طالب فديه هم وركړه حضرت عباس رضى الله عنه اووئيل، كنت مسلماً لكن استكرهونى، يعنى زه خومسلمان وم كفارو خه جبراً رااوباسلې يم نونبى ﷺ ورته اوفرمائيل كه ستاداخبره حقه، ريشتيا وى نوالله تعالى به تاته جزائ خيردركړى ليكن ستاظاهرامردادې چه ته زمونږ په مقابله كښې راغلې ئ، نوخپله فديه هم وركړه اودنوفل بن حارث اودعقيل بن ابى طالب فديه هم وركړه نودوئ اووئيل چه ماسره خوهيڅ نشته ، اوته مايه داسې حال باندې پريګدې چه دقريشو نه به سوال

کوم، نونبی صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل چه هغه مال څه شوچه تالږوستابی بی، ام الفضل بدرته دراتلوپه وخت کښې دفن کړې وو، اوتاهغې ته اوونیل چه پته نه لګی چه څه به پیخیږی که چرې زه په دې کښې هلاک شم نوداماِل، ستااودعبدالله (بن عباس) اودعبیدالله، اودقثم دې، نوعباس رضی الله عنه اوونیل چه (ومایدریک) تاته څه پته ده، دغه مال خو ماخپلې بی بی ام الفضل ته په توره شپه کښې ورکړې وؤ اوپه غیر دالله تعالی نه پرې بل هیڅ څوک خبرنه وو، نونبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه ماته خمارب خبرراکړو، نوعباس ﷺ وه ونیل : (اشهد انك صادق وان لا اله الا الله وانك رسول الله)، غرض دا چه حضرت عباس ﷺ خپله فدیه هم ورکړه اودعقیل بن ابی طالب فدیه ئې هم ورکړه، حضرت عباس رضی الله عنه فرمائی چه ماسره خمارب دوه وعدې کړی دی یوه داچه ﴿يُؤۡتِكُمۡ خَيۡرٗا مِّمَّآ أُخِذَ مِنكُمۡ﴾ دویمه داچه ﴿وَيَغۡفِرۡ لَكُمۡ﴾اول وعده ئې پوره کړیده چه اوس څما په ملکیت کښې شل غلامان دی اودهریوسره کم ازکم دشلو شلوزرو دراهمو مال تجارت دې،اودویمی وعدی په انتظارکښې یم ﴿إِن يَعۡلَمِ ٱللَّهُ﴾ داکنایه د وجودنه ده څکه چه یوشئ چه موجودوی نولازم ورسره داده چه دالله تعالی علم به پرې وی نوملزوم ذکرشو لازم ترینه مرادشو، نومعنی داده که وی ستا سو په زړونوکښې خیر، اومراد دخیرنه ایمان اورغبت دایمان دې، ﴿يُؤۡتِكُمۡ خَيۡرٗا﴾ ددی خیرنه مراد زیات مال دې لکه حضرت عباس ﷺ ته چه الله ورکړو، اوددې نه معلومه شوه چه ایمان اواطاعت دالله تعالی اودرسول سبب دبرکاتو دنیویؤ اخرویؤ دې، ﴿وَإِن يُرِيدُواْ خِيَانَتَكَ﴾ جزاء دشرط مقدره ده (ای فلاتحزن) یا (یذلهم الله) او ﴿فَقَدۡ خَانُواْ ٱللَّهَ﴾ قائمقام دجزاء دې ﴿فَأَمۡكَنَ مِنۡهُمۡ﴾ ای فامکنک واقدرک علیهم، یعنی ته ئې قادر کړی ددوئ په ګرفتار کولواوقتل کولو.

| إِنَّ | ٱلَّذِينَ | ءَامَنُواْ | وَهَاجَرُواْ | وَجَٰهَدُواْ | بِأَمۡوَٰلِهِمۡ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه هغه کسان چه ایمان ئې راوړې دې اوهجرت ئې کړې دې اوجهاد ئې کړې دې په مالونو خپلو سره | | | | | |

| وَأَنفُسِهِمۡ | فِي | سَبِيلِ | ٱللَّهِ | وَٱلَّذِينَ | ءَاوَواْ | وَّنَصَرُوٓاْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او په نفسونو خپلو سره په لاره د الله کښې اوهغه کسان چه ځائ ئې ورکړې دې مهاجرینوته اوامداد ئې کړې دې | | | | | | |

| |
|---|
| اُولٰٓئِكَ بَعۡضُهُمۡ اَوۡلِيَآءُ بَعۡضٍ ؕ وَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَلَمۡ يُهَاجِرُوۡا |
| دغه کسان بعضی د دوئ دوستان د بعضو دی، اوهغه کسان چه ایمان ئ راوړي دي اوهجرت ئ ندي کړي |
| مَا لَـكُمۡ مِّنۡ وَّلَايَتِهِمۡ مِّنۡ شَىۡءٍ حَتّٰى يُهَاجِرُوۡا ‌ۚ وَاِنِ اسۡتَـنۡصَرُوۡكُمۡ |
| نشته دي تاسو لره د دوستانې د دوئ نه هيڅ حق تر څو چه دوئ هجرت نوی کړي. اوکه دوئ مدد وغواړی ستاسو نه |
| فِى الدِّيۡنِ فَعَلَيۡكُمُ النَّصۡرُ اِلَّا عَلٰى قَوۡمٍۢ بَيۡنَكُمۡ |
| په باره د دین کښ پس لازم دي په تاسو باندې مدد، مګر په مقابله د هغه قوم کښ چه په مینځ ستاسې |
| وَبَيۡنَهُمۡ مِّيۡثَاقٌ‌ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ بَصِيۡرٌ ۝ |
| او په مینځ دهغوئ کښ وعده وی، او الله تعالی ستاسو په هغه عملونو چه تاسو ئ کوئ ليدونکې دي |
| وَالَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا بَعۡضُهُمۡ اَوۡلِيَآءُ بَعۡضٍ‌ ؕ اِلَّا تَفۡعَلُوۡهُ تَكُنۡ |
| اوهغه کسان[1] چه کفر ئ کړي دي بعض د دوئ نه ملګری د بعضو دی ، که ونه کړئ تاسو امداد نو پيدا به شی |
| فِتۡنَةٌ فِى الۡاَرۡضِ وَفَسَادٌ كَبِيۡرٌ ؕ ۝ |
| فتنه په ځمکه کښ او فساد لوئ. |

﴿ اِنَّ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا ﴾ دقوانينودجهادنه بعدترغيب دي هجرت اوجهادته دلته دمؤمنانو درې فرقې ذکرکیږی اویوه فرقه دکفاروذکرکیږی فریق اول مهاجرین یعنی هغه صحابه چه ددین دپاره ئ خپل وطن مکه پریښودلی وه اوجهاد ئ کړي وؤ ، دویم فریق انصار یعنی د مدینې اصل باشندګان چه د مهاجرینو هجرت نه مخکښ ئ ایمان راوړي وو،ددی دواړو فرقوپه باره کښ ئ دااوفرمائیل ﴿ اُولٰٓئِكَ بَعۡضُهُمۡ اَوۡلِيَآءُ بَعۡضٍ ﴾ ددی دوه مطلبه کیدې شی یوداچه دولایت نه مرادنصرت اوتعاون دي یعنی مسلمانان مهاجراوانصاردیوبل ممداومعاونین دی په دوئ کښ دیوسره صلح دټولوسره صلح ده او دَ یو سره جنګ دټولو سره جنګ دي نوپه دي تقدیرداآیت منسوخ نه دي، اودويم مطلب دادي چه دولایت نه مرادعام دي وراثت اوتعاون دواړوته شامل

[1] - د مؤمنانو په مقابله کښ د کفارو ذکر .

دي لکه په ابتداء داسلام کښې به مهاجر دانصاري وارث وو نوپه دې تقديرداآيت منسوخ دې په مابعد آيت سره چه (واولوالاحام بعضهم اولیٰ ببعض) يعني دميراث مدارپه نسب باندې دې نه په هجرت ، دريم فريق چه بيان ئې په دې آيت کښې دی.

﴿ وَالَّذِينَ ءَامَنُوا وَلَمْ يُهَاجِرُوا ﴾ يعني هغه مؤمنان چه هجرت ئې دمجبورئ دوجه نه نه وی کړې دامستضعفين دی نوددوئ حکم دادې چه ﴿ مَا لَكُم مِّن وَلَٰيَتِهِم مِّن شَيْءٍ ﴾ دهغوئ سره داسې ولايت نشته دې چه دهغوئ سره صلح معاهده ستاسوسره صلح معاهده وی اودهغوئ سره دُشمنی ،ستاسوسره دُشمنی وی.

اودويم حکم دادې چه ﴿ وَإِنِ اسْتَنصَرُوكُمْ ﴾ که هغوئ ستاسو نه مددطلب کړی دکفاروپه مقابله کښې نوپه تاسو باندې دهغوئ سره مددکول لازم دی ﴿ إِلَّا عَلَىٰ قَوْمٍ ﴾ مگرداسې کفارو په مقابله کښې دهغوئ مددکول نشته دې چه ستاسو سره ئې معاهده اوصلح وی ﴿ وَالَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ دمؤمنانو په مقابله کښې دکفاروذکردې چه دهغوئ سره ولايت او مدد جائز نه دې بلکه دکفاروسره نصرت مددکول دکفاروخاصيت دی ﴿ إِلَّا تَفْعَلُوهُ ﴾ ضميرمنصوب راجع دې کل ماقبل مذکورفی الايتين ته، يعني ديوبل سره نصرت تعاون کول اودمستضعفينو سره مددنصرت مددکول اودمؤمنين غيرمهاجرين سره دکفارو په مقابله کښې نصرت کول، يعنی که تاسو دغه اونکړئ نو په زمکه کښې به فساد پيدا شي .

| وَالَّذِينَ ءَامَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَٰهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ |
|---|
| اوهغه کسان [1] چه ايمان ئې راوړې دې اوهجرت ئې کړې دې اوجهاد ئې کړې دې په لاره د الله تعالی کښې. اوهغه کسان |
| ءَاوَوا وَّنَصَرُوٓا أُولَٰٓئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا ۚ لَّهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ |
| چه ځاي ئې ورکړې دې مهاجرينو ته او مدد ئې کړې دې دغه کسان دوئ مؤمنان دی په ريشتيا سره ، دوئ لره بښنه ده او رزق |
| كَرِيمٌ ۝ وَالَّذِينَ ءَامَنُوا مِن بَعْدُ وَهَاجَرُوا وَجَٰهَدُوا |
| عزتمند دې. اوهغه کسان چه ايمان ئې راوړې دې دهغې نه روستو، اوهجرت ئې کړې دې او جهاد ئې کړې دې |

۱ - بشارت.

| |
|---|
| مَعَكُمْ فَاُولٰٓئِكَ مِنْكُمْ ؕ وَاُولُوا الْاَرْحَامِ بَعْضُهُمْ اَوْلٰى |
| په ملگرتيا ستاسو كښې پس دغه كسان ستاسې د ډلې نه دي، او يو نسب والا خپلوان بعض د دوئ حقدار دي |
| بِبَعْضٍ فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۝ |
| د ميراث د بعضى، په حكم د الله تعالى كښې، بيشكه الله تعالى په هرڅيز باندې عليم دې. |

﴿ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَهَاجَرُوْا ﴾ په دې آيت كښې صحابۇ ته بشارت دې اودصحابۇ ډيرلوئ لوئ مناقبو (تمغه امتياز) ذكردې **اول** داچه صحابه رضى الله عنهم مهاجرين اوانصارمؤمنان دى او**دويم** داچه ددوئ ايمان په حق اوريښتيا دې دشك اودنفاق نه برى دې، **دريم** داچه دوئ لره مغفرت دې كه څه لغزش اوګناه ترينه شوې وى نودهغې دمعافئ اعلان الله ﷻ په خپله په خپل كلام ازلى كښې كړيدې اوددې وجې نه علماء دعلم كلام وائ چه دصحابۇ كرامو دلغزشونو تذكره كول ناجائز دى يعنى په طوردتوهين يا د اعتراض سره (لانذكراحداً من الصحابة بالسوء) اوقرآن پاک قطعى دې نوددې په مقابله كښې تاريخى روايات هيڅ حيثيت نه لرى، **څلورم** داچه دوئ لره رزق كريم دې چه په دنياكښې مال غنيمت دې اوپه آخرت كښې رزق دجنت دې ﴿ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْۢ بَعْدُ ﴾ په دې آيت كښې دبل قسم مؤمنانو صحابو ذكردې چه ﴿ اٰمَنُوْا مِنْۢ بَعْدُ ﴾ د بَعْدُ نه مراددفتح مكه نه بعدمراددې يادصلح د حديبيه نه بعدمراد دې نوپه دې كښې اشاره ده دې ته چه په دوئ كښې په درجه كښې تفاضل شته دې ليكن په صفت د صحابيت اودايمان حقه اومغفرت اورزق كريم كښې تو ل شريک دى ﴿ وَاُولُوا الْاَرْحَامِ ﴾ مطلب دادې چه ميراث په سبب دنسب سره دې اوپه سبب دموالات مواخات سره ندې نودا آيت ناسخ دې دهغه حكم دپاره چه په ابتداء داسلام كښې ميراث په سبب دهجرت اومواخات سره وو

**تمت تفسير سورة الانفال بفضل الله عز وجل وبكرمه**

**رقمها حسب التسلسل (۹) وحسب النزول (۱۱۳)**

**ربط** : (۱)ماقبل سورت کښې قواعدجهاد بیان شو دلته اعلان دَجهاددې(۲) په سورت انفال کښې دجهادذکروخودانه وه ذکرچه دچاسره جهادکول پکاردي دلته دهغه ډلو ذکرکیږي چه دهغوئ سره قتال کولې شي(۳) په سورت انفال کښې دقواعدو دقتال ذکراوشودلته رفع دموانعو دقتال کیږي.

**خلاصه دمضامینو دسورت** : ددې سورت دوه حصې دي اوله حصه دابتداءدسورت نه ترآیت نمبر۳۷ رکوع (۵) پورې ده، په دې حصه کښې دځلورو فرقوحکم بیانیږي اودځلورو موانعو دقتال رفع او جواب ذکرکیږي، دابتداء نه دآیت نمبر ۲۸ پورې بیا دعوه دَسورت یعنې حکم دقتال اودهغې دپاره اوه علتونه ذکرکیږي اودهغه ډلوذکر کیږي چه قتال ورسره کیدې شي، دآیت نمبر۳۷ پورې اودسورت دویمه حصه دآیت نمبر۳۸ دآخره پورې ده په دې کښې دآیت نمبر ۱۲۲ ع (۱۵) حالات د منافقینو په تفصیل سره او په دوئ زجرونه، وعیدونه بیانیږي او زجرونه په متخلفینو د جهاد عمداً یا خطاءً ذکر کیږي، او اوصاف د مجاهدینو او صحابؤ او د دوئ لپاره بشارتونه دنیوی ، اُخروی بیانیږي او د آیت نمبر ۱۲۲ نه بعددسورت دمضامینو اعاده بالاختصار کیږي، دسورت په ابتداء کښې چه دکوموځلورو فرقوحکم بیانیږي ، دهغې تفصیل دادې چه په سنه ۲ﻫ کښې نبی ﷺ دصحابؤ سره عمرې دپاره دمدینې منورې نه مکې معظمې ته روان شو، نوکفارو دقریشو دوئ لره منع کړل دداخلیدو نه حرم ته اوجنګ ته تیارشو اوالله تعالی دطرفه دجنګ کولوحکم نه وو بلکه په دې موقعه جنګ کول خلاف مصلحت وو نوددې وجې نه نبی ﷺ ددوئ سره په حدیبیه مقام کښې صلح اوکړه چه دیته صلح حدیبیه وئیلې شي چه تفصیل ئې په کُتبُ دحدیث اودسیرت کښې مذکوردې په دې صلح کښې دمختلفو قبائلو دعربوسره معاهدې شوی وی، قریش دمکې چونکه اصل فریق مخالف وو نوددوئ سره دلسوکالو دپاره معاهده شوې وه دجنګ بندئ اوداچه دیوبل ددُشمن سره به دیوبل په مقابله کښې تعاون نه کوؤ، اودیوبل دحلیف دقتل اوجلاء وطن کول به نه کوؤ اوپه دې معاهده کښې خزاعه قبیله دنبی ﷺ حلیفان ملګری وو، اوبنی بکر قبیله دقریشو حلیفان اوملګری وو، دبنی خزاعه اوبنی بکر په مابین کښې

قديمي عداوت وو، دمعاهدى نه بعد ديو كال پورې دمعاهدى څه خلاف ورزى نه وه شوې، اونبى ﷺ په سنه ٧هـ كښ دخپلوصحابۇ سره عمرة القضاء اوكړه، ددې نه بعدپنځه ياشپږ مياشتې تيرې شوى يعنى دمعاهدې نه يونيم كال روستو بنى بكر قبيلى په خزاعه باندې دشپې حمله (شبخون) اوكړه اوډيرظلم ئ ورسره اوكړواوقريش مكه دهغوئ سره تعاون اوكړو، . نوصلح اومعاهده ددوئ دطرفه ماته شوه، بنى خزاعه قبيلى نبى ﷺ ته خپل فريادپه ډيردل سوزالفاظوكښ پيش كړه نونبى صلى الله عليه وسلم ورسره دتعاون وعده اوكړه اواوئ فرمائيل لَأَنۡصُرَنَّكُمۡ إِنۡ لَمۡ انصركم، نولښكرئ تياركړو اومكه ئ فتح كړه، چه تفصيل ئ د حديث اوسيرت په كتابونو كښ مذكوردې، دلته چه دكومو فرقوذكردې په هغې كښ يوفرقه هغه قريش دى چه نقض العهد (وعده خلافى) ئ كړې وه اوايمان ئ نه وو راوړې اوبله فرقه بنى ضمره اوبنى مدلج چه دنبى كنانه دوه قبيلى دى، ددوئ سره هم په حديبيه كښ صلح او معاهده شوى وه اوميعادئ مقررشوې وو اوسورت براءت دنزو ل په وخت كښ نه(٩) مياشتې په ميعادكښ باقى وې اوبله فرقه هغه وه چه صلح اومعاهده ورسره شوى وه خوميعادنه وو مقررشوې ، بله فرقه عامه قبائل دعربو ووچه دهغوئ سره هيڅ معاهده نه وه شوې، خلاصه داده چه مشركين څلورقسمه وو، يوهغه خلق چه هيڅ صلح معاهده ورسره نه وه شوى دويم هغه خلق وو چه معاهده ورسره شوى وه خوميعاد نه ومقرردى دواړوحكم براءت اورفع دامان ده، البته څلور مياشتې مهلت ورته وركړې شوچه دوئ سوچ فكراوكړى اودڅلور مياشتونه بعد به دوئ ته امن نه وى اوداڅلورمياشتې به دلسم دذى الحجه نه شمارېږى اگركه نزول دآيت دبراءت په شوال كښ شويدې لكه دااصح قول دې ځكه چه اعلان دبراءت دوئ ته په ايامود حج كښ شوې دې دسورت په ابتداء كښ په دوؤ اياتونو كښ ددوئ ذكردې، اودريمه فرقه هغه خلق وو چه معاهده ورسره شوى وه اوميعادهم مقررشوې وو، اوڅلورم فرقه هغه مشركين د قريشو وو چه وعده ئ ماته كړې وه نوددى دواړوفرقو مشترك حكم دادې چه الله تعالى اورسول دهغه، مشركينو ته دامان وركولونه برى دى، البته قريشوچونكه وعده خلافى كړى وه نودوئ مستحق دامن وركولو نه وؤ خو د اشهر حرم د وجه نه دوئ ته د اشهر حُرم د ختميدلو پورې امن وركړې شو، او دريمې فرقې وعده خلافى نه وه كړې نوددوئ حكم راغلو چه ﴿ فَأَتِمُّوٓا إِلَيۡهِمۡ عَهۡدَهُمۡ ﴾ اودڅلورمې فرقى حكم دابيان شو چه ﴿ فَإِذَا ٱنسَلَخَ ٱلۡأَشۡهُرُ ٱلۡحُرُمُ فَٱقۡتُلُواْ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ﴾ يعنى دوئ

په وجه دنقض العهد (وعده خلافی) سره مستحق ددی وو چه فی الحال قتل کړې شی لیکن د مصلحت دوجې نه دوئ ته اشهرحرم دختمیدو پورې مهلت ورکړې شو ددی سورت په ابتداء کښې ددی فرقو سره دبرائت اودرفع امن، حکم دې اوهرفرقی ته دمهلت ورکیدلو حکم دې، دا آیتونه په سنه ۹ هـ شوال کښې نازل شویدی، په دې کال نبی ﷺ په خپله حج ته تشریف نه ووړې ځکه چه حرم کښې هم مشرکان وو، اونورقبائل دمشرکانو حج ته راتلل چه په غیرشرعی طریقی سره ئې حج کولو نو ترڅوری چه حرم دمشرکانونه ندې پاک شوې نوپه شرعی طریقی حج کول اوخلقوته دهغې تعلیم ورکول مشکل وو نوددی وجې نه الله تعالیٰ آیتونه دبراءت نازل کړل،اودحرم دصفاکولو اودمشرکانو دحرم نه دمنع کولو انتظام ئې اوکړو نونبی ﷺ حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه امیرمقررکړو اویو جماعت ئې ورسره کړو چه هغوئ کښې ابوهریره رضی الله عنه هم وو حرم روان کړو او د احتیاط دپاره ئې ورپسې روستو حضرت علی رضی الله عنه هم اولیګلو نو دوئ په منی او عرفات اوپه نورومجامعو کښې ددې سورت آیاتونه خلقوته اورول اودا اعلان به ئې کولو ((الالایحجن بعدالعام مشرک ولایطوفن بالبیت عریان)) چنانچه اوله فرقه یعنی هغه قبائل دعربو چه صلح اومعاهده ورسره نه وه شوې دوئ ته ئې څلورمیاشتې مهلت ورکړو چه دوئ سوچ فکر اوکړی نویابه صحیح مسلمانان شی یادې بل چرته لاړشی ، ګنی دڅلورومیاشتونه بعد به دوئ ته امن نه وی بلکه قتل کولې به شی، نوداسې قسم مشرکانو نه حرم په څلورو میاشتو کښې پاک شو، اوداڅلور میاشتې به شروع کیږی دلسم دذی الحجی نه، نوبناپه دې ددوئ میعاد په لسم ربیع الثانی ختم شو اوحرم ددوئ نه پاک صاف شو، اودڅلورمې فرقې یعنی هغه قریش چه وعده خلافی ئې کړې وه. ددوئ سره میعاد داشهر حرم په ختمیدو ، یعنی دمحرم په ختمیدلو سره پوره شو اوددوئ نه حرم پاک شو او د دریمې فرقی یعنی هغه خلق چه معاهده میعادی ورسره شوې وه نودهغوئ میعاد په لسم درمضان پوره شو اوحرم ددوئ نه پاک صاف شو، اومخکښې کال نه هیڅ مشرک حرم ته حج ته رانغلو لکه ددې آیت نه معلومیږی ((فلایقربوا المسجدالحرام)) نوپه لسم دهجرت نبی ﷺ په خپل نفس نفیس سره حج ته راغلو اودمخالفینو سره قتل وقتال اونه شو، ځکه چه بعض مسلمانان شو اوڅوک چه نه مسلمانیدل نوهغوئ لاړل، اورسول پاک ﷺ ددی نه بعد دهیڅ مشرک سره معاهده نه ده کړې بلکه دجزیره عرب نه ئې کفاروداخراج عزم وو، لیکن هرکله چه په قریب زمانه کښې یعنی ۱۱هـ ئې ددنیانه رحلت

اوفرمايه نوداعزم ئ پوره نه شو، اوصحابؤ ته ئ وصيت وكړو چه(اخرجوا اليهود والنصارى من جزيرة العرب) اوصحابه كراموداوصيت پوره كړو

**فائده** : ددى سورت په ابتداء كښ دبسم الله نه ليكلو وجه په خپله دجامع قرآن عثمان بن عفان ﷺ نه مروى ده چه دهغې خلاصه داده چه ابن عباس ﷺ دعثمان بن عفان ﷺ نه دبسم الله دنه ليكلو دوجه سوال اوكړو نوهغوئ اوونيل چه رسول الله ﷺ وفات شو اوهغوئ تصريح اونه فرمائيله چه «دامستقل سورت دې كه دبل سورت جزء دې» اوسورت انفال په مدينه كښ اول نازل شوې وو، «دبدرپه موقعه» اوسورت توبه آخر نازل شوې وو اوددواړو مضمون يوشان، اومناسب وو، نوماځكه دانفال سره يوځائ كړواوبسم الله مى اونه ليكله، حاصل داچه ددې سورت حال مشتبه پاتې شو چه آيادامستقل سورت دې يادبل سورت جزء دې اوچه دبل سورت جزء شى نودكوم سورت جزء دې ، نوكه بسم الله ليكلې شوې وې نوبياخوبه داجزمًا مستقل سورت وى ځكه چه بسم الله ليكل دليل دَ دې دې چه دا مستقل سورة دې، حالانكه داسې نه ده ،اوكه فصل په درميان كښ بالكل نه وې نوبيا به داجزماً دبل سورت جزء وې اوحالانكه داسې هم نه ده نوددى وجې نه فصل پريخودلو اوبسم الله ئ اونه ليكلو،او مضمون ئ دانفال سره مشابه وو نوځكه ئ دهغه سره يوځائ كړو، اودحضرت على ﷺ نه مروى ده چه بسم الله امان دې اوداسورت رفع دامان ده.

**فائده** : څوک چه تلاوت ددى سورت دابتداء نه شروع كوى نواعوذبالله اوبسم الله دواړه به وائ لكه دنورولوسورتونو داجزاؤ داحكم دې چه دهرجزء نه چه تلاوت شروع كوى نواعوذبالله اوبسم الله دواړه به وائ اوڅوک چه دماقبل نه تلاوت كوى دلته راؤرسى نوهغه به اعوذبالله ، بسم الله دواړه نه وائ، اوخود ساخته عبارت، چه اعوذبالله من النار ومن شرالكفارالخ وئيل خلاف سنت دى .

| بَرَآءَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖٓ اِلَى الَّذِيْنَ عٰهَدْتُّمْ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۞ |
|---|
| دا اعلان دبيزارئ [1] اودقطع تعلق دې د طرف دالله اودرسول نه هغه كسانو ته چه تاسوورسره وعده كړې وه د مشركانو نه |

---

۱ - د دويمې فرقې ذكر يعنى هغه كسان چه معاهده ميعادى ورسره شوې وه او د اولې فرقې حكم هم معلوم شو.

| |
|---|
| فَسِيحُوا فِي الْأَرْضِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللَّهِ وَأَنَّ اللَّهَ |
| پس وگرزئ په زمکه کښې څلور مياشتې، او پوهه شئ چه بيشکه تاسو نشئ کمزوري کولې الله لره، او بيشکه الله تعالى |
| مُخْزِي الْكَافِرِينَ ﴿٢﴾ وَأَذَانٌ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ |
| رسوا کونکې دې کافرانو لره . او اعلان دې د طرف د الله او د رسول دهغه نه خلقو ته به ورځ د حج لوئ |
| أَنَّ اللَّهَ بَرِيءٌ مِنَ الْمُشْرِكِينَ وَرَسُولُهُ فَإِنْ تُبْتُمْ |
| چه بيشکه الله تعالى بيزاره دې د مشرکينونه او رسول دهغه هم بيزاره دې، پس که تاسو توبه وه ويستله |
| فَهُوَ خَيْرٌ لَكُمْ وَإِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللَّهِ |
| نو دا به غوره وى تاسو لره او که تاسو مخ واړولو نو پوهه شئ چه بيشکه تاسو نشئ کمزوري کولې الله لره، |
| وَبَشِّرِ الَّذِينَ كَفَرُوا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٣﴾ إِلَّا الَّذِينَ عَاهَدْتُمْ مِنَ الْمُشْرِكِينَ |
| او زيرې ورکړه کافرانو ته په عذاب دردناك سره . مگر هغه کسان[1] چه لوظ کړې وو تاسو د هغوئ سره د مشرکانو نه |
| ثُمَّ لَمْ يَنْقُصُوكُمْ شَيْئًا وَلَمْ يُظَاهِرُوا عَلَيْكُمْ أَحَدًا |
| او بيا ئى کمې ندې کړې ستاسو سره په څه شى کښې،او امداد ئ هم ندې کړې ستاسو په مقابله کښې د هيچا سره |
| فَأَتِمُّوا إِلَيْهِمْ عَهْدَهُمْ إِلَى مُدَّتِهِمْ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ ﴿٤﴾ |
| پس پوره کړئ د هغوئ سره لوظ د هغوئ د مُدې دهغوئ پورې، بيشکه الله تعالى محبت کوى د متقيانو سره . |

﴿بَرَاءَةٌ﴾ داخبر د مبتدامحذوفِ دې (اى هذه برآءة) ، او براءت رفع الامن يعنى امن ختمولو ته وائ ﴿عَاهَدْتُمْ مِنَ الْمُشْرِكِينَ﴾ دلته عهدمطلق ذکرشو نومعلومه شوه چه ددې نه مراددويمه فرقه ده يعنى هغه خلق چه معاهده ورسره شوى وه اوميعاد ئ نه وه مقررشوې اوددې نه دفريق اول حکم هم معلوم شويعنى هغه خلق چه هيڅ معاهده ورسره نه وه شوې، نودوئ دواړوته څلورمياشتې مهلت ورکړې شو چه ياپه اسلام کښې داخل شئ يابل چرته

1 - د دريمې فرقې بيان، يعنى هغه خلق چه معاهده ميعادى ورسره شوې وه او دوئ وعده خلافى نه وه کړې

لاړشئ، دڅلورمیاشتونه بعدبه تاسو ته امن نه وی،﴿ فَسِيحُواْ ﴾دسیاحت نه مرادآزادانه طورسره ګرزیدل راګرزیدل مراددی یعنی څلور میاشتې تاسوته مکمل امن دې،﴿ يَوۡمَ ٱلۡحَجِّ ٱلۡأَكۡبَرِ ﴾ حج اکبرحج ته وائ اوحج اصغرعمرې ته وائ مراددیوم الحج الاکبر نه تاریخونه دحج دی لکه عرفه، یوم النحر، ایام منی، مزدلفه، اوبعض وائ چه حج اکبرهغه دې چه حج کړې وو نبی ﷺ اوددې نه بعد بیادا اصطلاح خوره شوه چه حج اکبرهغه دې چه عرفه دجمعی په ورځ راشی، څکه چه داموافق دې دحج دنبی ﷺ سره چه هغه په حقیقت کښ حج اکبروو،

﴿أَنَّ ٱللَّهَ بَرِيٓءٞ مِّنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ وَرَسُولُهُۥ ﴾ وَرَسُولُهُ په رفع سره دې اودامبتداء ده خبرئ محذوف دې ای ورسوله بریئ نوداعطف دجملې شو په جملې باندې، یاداعطف دې په محل داسم د ﴿أَنَّ﴾ باندې نوداعطف دمفردشو، په مفردباندې، روایت کړیدې شیربینی رحمه الله تعالی وغیره چه یواعرابی راغې په زمانه دحضرت عمر ؓ کښ اوئ وئیل من یقرئنی مماانزل الله علی محمدصلی الله علیه وسلم نویوکس ورته سورت براءت تلاوت کړو نو (ورسوله) ئ په جرسره اولوستلو. نواعرابی اووئیل چه آیا الله تعالی دخپل رسول نه بری شو؟ نوکه داسې وی نوزه هم ترینه بری یم نوحضرت عمر ؓ ته داعرابی دامقاله وراورسیده اوتپوس ئ ترینه اوکړه. نو بیاحضرت عمر ؓ اووئیل چه قراءت دغه شان نه دې اې اعرابی بلکه په رفع سره دې نوعمر ؓ حکم اوکړو چه نه دې لولې قرآن مګرعالم باللغة، اوامرئ اوکړو ابوالاسود دؤلی ته نوهغه وضع کړه علم النحو، ﴿ إِلَّا ٱلَّذِينَ عَٰهَدتُّم ﴾ داددریمې فرقی بیان دې یعنی هغه خلق چه معاهده ورسره شویوه اومیعادهم مقررشوې وو اودوئ دمعاهدی خلاف ورزی نه وه کړې.

| فَإِذَا ٱنسَلَخَ ٱلۡأَشۡهُرُ ٱلۡحُرُمُ فَٱقۡتُلُواْ ٱلۡمُشۡرِكِينَ حَيۡثُ وَجَدتُّمُوهُمۡ وَخُذُوهُمۡ |
|---|
| پس هرکله چه تیرې شی[1] میاشتې محرمې، نو قتلوئ مشرکان کوم ځائ کښ چه مومئ هغوئ لره او نیسئ دوئ لره |

[1] - د څلورمې فرقې بیان. یعنی هغه خلق چه وعده خلافی ئ کړې وه دوئ ته د اشهر الحرام د ختمیدو پورې مهلت ورکړی شو

| وَاحْصُرُوْهُمْ وَاقْعُدُوْا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ ۚ فَاِنْ تَابُوْا وَ اَقَامُوا |
| --- |
| او قید کوئ دوئ لره او کینئ دوئ ته په هره مورچه، پس که دوئ توبه وکړه د شرك نه او پابندی ئ وکړه |
| الصَّلٰوةَ وَ اٰتَوُا الزَّكٰوةَ فَخَلُّوْا سَبِيْلَهُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝ |
| د مانځه او ورکوئ ئ زکوة پس خالی کړئ لاره د دوئ، بیشکه الله تعالی بښونکی، مهربان دی |

﴿ فَاِذَا انْسَلَخَ الْاَشْهُرُ الْحُرُمُ ﴾ دا د خلورمې فرقی بیان دې یعنی هغه قریش چه معاهده ورسره شوی وه اووعده ئ ماته کړی وه، دوئ مستحق دقتل وو فی الحال لیکن داشهر حرم دختمیدو پورې دوئ ته مهلت ورکړې شو، اودلته مراد داشهرحرم نه ذی القعده ذی الحجه محرم دی، رجب نه دې مراد. ﴿ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ ﴾ ددې نه مرادهغه مشرکین دی چه وعده ئ ماته کړی وه ﴿ وَخُذُوْهُمْ ﴾ ای بالاسر، یعنی مراد ددې نه قیدکول دی اودقیدکولونه روستو بیادامیر اوداهل شوری خوخه ده چه قتلوی ئ یاترینه فدیه اخلی اوکه په غیر دمعاوضه ئ آزادوی، یعنی، مَنْ ﴿ وَاحْصُرُوْهُمْ ﴾ یعنی ددوئ دقلعه ګانو محاصره اوکړئ اوراګیرئ کړئ یادامعنی چه دارالاسلام اومسجدحرام ته دداخلیدو نه منع کړئ.

﴿ وَاقْعُدُوْا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ ﴾ مرصد ځائ دانتظارته وائ مراد دادې چه داراسلام ته د داخلیدلو لارې دوئ ته بندې کړئ ﴿ فَاِنْ تَابُوْا ﴾ مرادتوبه ده ﴿ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ ﴾ دادتوبی علامه ده ﴿ فَخَلُّوْا سَبِيْلَهُمْ ﴾ یعنی مه ئ قتلوئ اومه ئ قیدکوئ، ځکه چه دوئ معصوم الدم شو، ځکه چه په ایمان سره انسان معصوم الدم کیږی، امام شافعی رحمه الله وائ چه تارک الصلاة به قتلولې شی حداً. اواستدلال ئ کړې دې په دې آیت سره ځکه چه د ﴿ فَخَلُّوْا ﴾ لپاره شرط دې چه توبه او اقامت د صلوة او ایتاء د زکوة دې نوچه شرط نوی یعنی اقامة د صلوة نو ﴿ فَخَلُّوْا ﴾ حکم به هم مرتب نه وی، نوبیا به هغه حکم سابق چه فاقتلوا دې مرتب وی، او احناف وائ چه «فخلوا» حکم په «تابوا» مرتب دې نوکه توبه نه وی نو «فخلو» به نه وی بلکه ﴿ فَاقْتُلُوْا ﴾ به وی او «فاقتلو» په اقاموا الصلاة نه دې مرتب بلکه داعلامه د صحیح توبې ده.

| وَاِنْ اَحَدٌ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ اسْتَجَارَكَ فَاَجِرْهُ حَتّٰى يَسْمَعَ كَلٰمَ اللّٰهِ |
|---|
| اوكه يو تن د مشركانو نه امن وغواړي ستا نه، پس امن وركړه هغه ته، تر دې چه واوري كلام د الله تعالى. |
| ثُمَّ اَبْلِغْهُ مَاْمَنَهٗ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْلَمُوْنَ ۞ كَيْفَ يَكُوْنُ لِلْمُشْرِكِيْنَ |
| بيا ورسوه هغه ځائ د امن دهغه ته، دا پدې وجه چه دوئ داسې قوم دې چه نه پوهيږي. څنګه به وي مشركانو لره[1] |
| عَهْدٌ عِنْدَ اللّٰهِ وَعِنْدَ رَسُوْلِهٖٓ اِلَّا الَّذِيْنَ عٰهَدْتُّمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ |
| لوظ په نيز د الله تعالى او په نيزد درسول د هغه مګر هغه كسان چه لوظ ورسره كړيدې تاسو د مسجد حرام په خوا كښ |
| فَمَا اسْتَقَامُوْا لَكُمْ فَاسْتَقِيْمُوْا لَهُمْ |
| پس تر څو پورې چه دوئ په خپله وعده كلك وي نو تاسو هم ورسره په وعده كلك ووسئ. |
| اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِيْنَ ۞ |
| بيشكه الله خوښوي متقيان هيچ كيدونكي د وعده خلافي نه. |

﴿وَاِنْ اَحَدٌ﴾ په دې كښ حكم دمستامن بيانيږي، يعنى كه يومشرك امن طلب كړي نو امن ورته وركړه ددې دپاره چه دالله تعالى كلام واوري ، اودكلام الله نه مراد هغه آياتونه دى چه مشتمل په توحيد اوپه نفي دشبه شبيه دى ياترينه مرادسورت براءت دې ياترينه مرادټول قرآن دې، اود ﴿ حَتّٰى يَسْمَعَ ﴾ نه دا معلوميږي چه مستامن دضرورت نه زيات پريخودل په داراسلام كښ نه دى پكار﴿كَيْفَ يَكُوْنُ ﴾دلته دخلورو موانعو دقتال رفع اوجواب كيږي ، داداول مانع جواب دې حاصل داچه مونږ څۀ رنګه ددوئ سره قتال اوكړو او حال داچه مونږ ددوئ سره عهدكړيدې، جواب داچه ددوئ عهد قابل داعتمادنه نه دې په نيزدالله تعالى اودرسول څكه دوئ په خپله وعده ماته كړيده، ﴿اِلَّا الَّذِيْنَ ﴾ددې نه مراد هغه خلق دى چه دهغوئ سره وعده ميعادى شوې وه اوهغوئ په خپله وعده قائم ووچه هغه بنى ضمره اوبنى مدلج دى.

---

١ - د خلور موانعو د قتال نه د اول مانع جواب.

كَيْفَ وَإِنْ يَظْهَرُوا عَلَيْكُمْ لَا يَرْقُبُوا فِيكُمْ

خنګه به وي اعتبار د لوظ د دوئ او حال دا که دوئ غلبه ومومي په تاسو نو لحاظ نکوي دوئ په تاسو کښې

إِلًّا وَلَا ذِمَّةً ۚ يُرْضُونَكُمْ بِأَفْوَاهِهِمْ وَتَأْبَىٰ قُلُوبُهُمْ وَأَكْثَرُهُمْ فَاسِقُونَ ﴿٨﴾

دخپلولئ او نه د وعدې، رضا کوي تاسو په خلو خپلو او انکار کوي زړونه د دوئ او ډیر د دوئ نه فاسقان دي

اشْتَرَوْا بِآيَاتِ اللَّهِ ثَمَنًا قَلِيلًا فَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِهِ ۚ

اغستې دې دوئ په بدله د آیاتونو د الله تعالی کښې عوض لږ پس منع کوي دوئ خلق د لارې د الله تعالی نه،

إِنَّهُمْ سَاءَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٩﴾ لَا يَرْقُبُونَ فِي مُؤْمِنٍ إِلًّا

بیشکه دوئ چه دي ډیر بد دې هغه عمل چه دوئ ئې کوي. لحاظ نکوي دوئ د هیڅ مؤمن په باره کښې د خپلولئ

وَلَا ذِمَّةً ۚ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُعْتَدُونَ ﴿١٠﴾ فَإِنْ تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ

اونه د لوظ او دغه کسان هم دوئ دي د حد نه تجاوز کونکي. پس که دوئ توبه وه ویستله او پابندي ئې کوله د مانځه

وَآتَوُا الزَّكَاةَ فَإِخْوَانُكُمْ فِي الدِّينِ ۗ وَنُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿١١﴾

او ورکوؤ ئې زکوة نو پس دوئ رونړه ستاسو دي په دین کښې، او په تفصیل سره بیانوؤ مونږ آیاتونه لپاره د هغه قوم چه پوهیږي.

وَإِنْ نَكَثُوا أَيْمَانَهُمْ مِنْ بَعْدِ عَهْدِهِمْ وَطَعَنُوا فِي دِينِكُمْ فَقَاتِلُوا

اوکه مات کړل دوئ قسمونه خپل روستو د کلك والی د هغوئ نه او طعن ئې وکړو په دین ستاسو کښې، پس جنګ کوئ

أَئِمَّةَ الْكُفْرِ ۙ إِنَّهُمْ لَا أَيْمَانَ لَهُمْ لَعَلَّهُمْ يَنْتَهُونَ ﴿١٢﴾

د مشرانو د کفر سره بیشکه دوئ چه دي نشته دې هیڅ قسمونه د دوئ، لپاره د دې چه دوئ منع شي.

﴿كَيْفَ وَإِنْ يَظْهَرُوا﴾ دااعاده دپاره دتاکید دحکم ده اوفعل محذوف دې (ای کیف یکون لهم وان یظهروا) ظهورپه معنی دغلبې سره دې ﴿إِلًّا﴾ په معنی دقرابت، خپلولئې سره دې لکه دا روایت دابن عباس رضی الله عنه نه دې او دحضرت قتاده نه مروی ده چه دا په معنی دحلف سره

دي او ﴿ذِمَّةً﴾ په معنى دعهد سره دې دلته دمشركينو قبائح ذكركيږي يو دا چه ﴿لَا يَرْقُبُوا﴾ دويم دا چه ﴿يُرْضُونَكُم بِأَفْوَاهِهِمْ﴾.

﴿وَأَكْثَرُهُمْ فَاسِقُونَ﴾ كه څوك **سوال** اوكړي چه كفر اعلى درجه دفسق ده نو ټول كافران فاسقان دي نو اكثرئ ولې اووئيل.

**جواب** (۱): مراد دفسق نه وعده خلافي كول دي اوبعض كافران وعده خلافي نه كوي (۲) او ابن عباس ﷺ فرمائ چه بعيده نه ده چه بعض كافرانو اسلام راوړې وی اوتوبه ئ كړې وی نو په دې وجه ئ ((اكثرهم)) اووئيل چه دوئ ددی حكم نه خارج شی﴿اشْتَرَوْا بِآيَاتِ اللَّهِ﴾دا دريم قباحت بيان دې ﴿فَصَدُّوا﴾ دالازمی هم راځی يعنی په خپله منع شوی دی دالله تعالى دلارې نه او متعدی هم راځی يعنی دوئ نورخلق منع كوی دالله تعالى دلارې نه﴿ لَا يَرْقُبُونَ فِي مُؤْمِنٍ ﴾ مخكښې آيت كښې (لايرقبو فيكم) وو نوهغه خاص وو، اوپه دې آيت كښې (فى مؤمن) دې، نو دا عام دې نو تكرار نشته دې ﴿وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُعْتَدُونَ﴾ دا دڅلورم قباحت بيان دې.

﴿فَإِن تَابُوا﴾ دا ترغيب دې توبې ته﴿ وَإِن نَّكَثُوا أَيْمَانَهُم ﴾ دا ضمير كه راجع وی هغه كفارو ته چه وعده خلافی ئ نه وه كړې نو ،،ان،، په خپله معنى سره دې، يعنی دشک دپاره دې يعنی كه چرې بالفرض دوئ خپله وعده ماته كړی نوبيا ورسره قتال كوئ، اوكه ضميرراجع وی هغه كفاروته چه وعده خلافی ئ كړی وه نو (ان) په معنى د (اذا) سره دې ځكه چه ان دشک دپاره دې اواذاديقين دپاره دې، اوداآيت دليل دې په دې خبره چه چاطعن اوكړو په دين اسلام باندې نو هغه كافردې اوكه ذمی يامعاهد طعن اوكړی په دين باندې نودهغه سره امن اوعهد ختم دې، اوطعن دادې چه ددين توهين اوكړی يادقرآن توهين اوكړی يا دَ نبی توهين اوكړی نو قتلولې به شی، اوپه دين باندې طعن كونكو ته ئ ائمه الكفر وئيلی دی ځكه چه دا سې خلق دكفربنيادی جوړوی اونورخلق ئ تابعداری كوی،﴿لَا أَيْمَانَ لَهُمْ﴾ په وخت دعهدكولو كښې قسم ذكركيږی نو ددی وجې نه أيمان ذكرشو، اول أيمان ثابت شو، اوبيانفی شو ځكه چه دوئ اول عهد او قسمونه اوكړل اوبياې مات كړل نوپه منزله دمعدوم شو. يعنی ددوئ قسمونو لره هيڅ اعتبارنشته.

| |
|---|
| اَلَا تُقَاتِلُوْنَ قَوْمًا نَّكَثُوْٓا اَيْمَانَهُمْ وَهَمُّوْا بِاِخْرَاجِ الرَّسُوْلِ |
| ولې جنګ نکوئ تاسو د هغې قوم سره چه مات کړی ئ دی قسمونه خپل او کوشش ئ کړې وو د ويستلو د رسول. |
| وَهُمْ بَدَءُوْكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ ؕ اَتَخْشَوْنَهُمْ ۚ فَاللّٰهُ اَحَقُّ |
| او دوئ شروع کړې ده په وعده خلافئ ستاسو سره اول ځل، آيا تاسو يريږئ د دوئ نه، پس الله تعالی زيات حقدار دې |
| اَنْ تَخْشَوْهُ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ⑬ قَاتِلُوْهُمْ يُعَذِّبْهُمُ اللّٰهُ |
| چه دهغه نه يره وکړئ. کچرې تاسو مؤمنان يئ. جنګ کوئ د دوئ سره عذاب به ورکړی دوئ لره الله تعالی |
| بِاَيْدِيْكُمْ وَيُخْزِهِمْ وَيَنْصُرْكُمْ عَلَيْهِمْ وَيَشْفِ صُدُوْرَ قَوْمٍ مُّؤْمِنِيْنَ ⑭ لا |
| په لاسونو ستاسو سره او رسوا به کړی دوئ لره او فتح به درکړی تاسو لره په دوئ باندې، او يخې به کړی سينې دقوم مؤمنانو |
| وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوْبِهِمْ ؕ وَيَتُوْبُ اللّٰهُ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ ؕ |
| او لرې به کړی غصه د زړونو ددوئ، او مهربانی اورحمت به وکړی الله تعالی (په توفيق د ايمان سره) په هغه چا چه وغواړی |
| وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ⑮ اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تُتْرَكُوْا |
| او الله تعالی عليم، حکيم دې. آيا ګمان کوئ تاسو چه تاسو به پريښودې شئ (بغير د امتحان نه) |
| وَلَمَّا يَعْلَمِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ جٰهَدُوْا مِنْكُمْ وَلَمْ يَتَّخِذُوْا |
| او لا تر اوسه پورې ندی ښکاره کړی الله تعالی هغه کسان چه جهاد ئ کړې وی ستاسو نه، اونه ئ وی نيولی |
| مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلَا رَسُوْلِهٖ وَلَا الْمُؤْمِنِيْنَ وَلِيْجَةً ؕ وَاللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ⑯ ع |
| سوی د الله او د رسول دهغه نه او د مؤمنانونه راز دار دوست، او الله تعالی خبردار دې په هغه عملونو چه تاسو ئ کوئ. |

﴿ اَلَا تُقَاتِلُوْنَ ﴾ په دې آيت کښ ترغيب اوتشجيع علی القتال دې په څوجوهاتو سره(۱) ﴿نَّكَثُوْٓا اَيْمَانَهُمْ ﴾ (۲)﴿وَهَمُّوْا بِاِخْرَاجِ الرَّسُوْلِ ﴾ (۳)﴿وَهُمْ بَدَءُوْكُمْ ﴾ (۴) ﴿اَتَخْشَوْنَهُمْ﴾.

﴿ قَٰتِلُوهُمْ ﴾ په دې آيت کښې اعلان دقتال دې ، سره دبيان دمنافعو دقتال نه (١)

﴿يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ بِأَيْدِيكُمْ ﴾مخکينو انبياؤ به دعوت الى الله ورکړو اودالله تعالیٰ پيغام به ئې قوم ته اورسو نوچه هغوئ به سرکشی اختيارکړه نوالله تعالى به په هغوئ اسمانی عذاب راؤليګلو، لکه طوفان ، صيحه ، رجفه، دتورات دنزول نه بعدحکم دقتال راغې نوپه جهاد کښې چه کافران قتلولې شی نوداقتل ددوئ هغه عذاب الهی دې چه په دوئ باندې واقع کيږی په سبب داعراض سره داحکامو دالله تعالى نه نوځکه ئې اووئيل ﴿يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ بِأَيْدِيكُمْ ﴾

(٢) ﴿وَيُخْزِهِمْ ﴾ ذليل به کړی دوئ لره په قيدکولو سره(٣)﴿ وَيَنصُرْكُمْ ﴾ دکفارو دټولو اسبابو په مقابله کښې به دالله تعالى مؤمنان غالب کړی اوقادربه ئې کړی دهغوئ په قتل اوقيدکولوباندې

(٤) ﴿ وَيَشْفِ ﴾ مراددشفاء نه خوشحالی اويخ والې دزړونودې چه درمندشوی وو په سبب دظلم دکفارو سره .

(٥) ﴿ وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوبِهِمْ ﴾يعنی لرې به کړی الله تعالى هغه غصه چه دمؤمنانو په زړونوکښې وه په وجه ددې چه کافرانو به دوئ ته تکليفونه رسول اودوئ قادرنه وو دهغې په دفع کولو (٦)﴿وَيَتُوبُ اللَّهُ ﴾يعنی الله تعالى به بعض کافرانوته توفيق دايمان ورکړی لکه په فتح مکه کښې ډيرلوئ لوئ کافران مسلمانان شو. ﴿ أَمْ حَسِبْتُمْ ﴾ په دې کښې زجردې مؤمنانوته ، مطلب دادې چه الله تعالى په مؤمنانو دوه قسمه امتحان راولی، يوجهاد اوبل برائت دمشرکينو نه ﴿وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ ﴾ مراددعلم نه تميز دې﴿وَلَمْ يَتَّخِذُوا ﴾ ای لمايعلم الله الذين لم يتخذوا ﴿وَلِيجَةً ﴾راز دار دوست نه وائی .

| مَا كَانَ لِلْمُشْرِكِينَ أَن يَعْمُرُوا مَسَٰجِدَ اللَّهِ شَٰهِدِينَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِم |
|---|
| ندی مناسب(١) لپاره د مشرکانو چه دوئ آبادوی جماتونه د الله تعالى حال دا چه دوئ اقرار کونکی دی په خپل ځان باندې |

١ . د دويم مانع جواب

بِالْكُفْرِ ۚ أُولَٰئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ ۚ وَفِي النَّارِ هُمْ خَالِدُونَ ﴿١٧﴾ إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ

د كفر. دغه كسان برباد دي عملونه د دوئ. او په اُور كښې به دوئ هميشه وي. بيشكه آبادوي جماتونه د الله تعالى

مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ وَلَمْ يَخْشَ

هغه څوك چه ايمان لري په الله تعالى اوپه ورځ د آخرت او قائم كوي مونځ او وركوي زكوة اونه يريږي د هيچا نه

إِلَّا اللَّهَ ۖ فَعَسَىٰ أُولَٰئِكَ أَن يَكُونُوا مِنَ الْمُهْتَدِينَ ﴿١٨﴾

سوئ د الله تعالى نه پس اُميد دې چه دغه كسان به وي د هدايت والۇ نه.

﴿مَا كَانَ لِلْمُشْرِكِينَ أَن يَعْمُرُوا﴾ داجواب دې ددويم مانع دقتال نه حاصل داچه چابه داسوال كوۇ چه مشركان خوخدمت دمساجدوكوي، خصوصاً دمسجدحرام اوحاجيانو ته اوبه وركوي نوددوئ سره قتال ولې جائزشو، جواب دادې چه ددوئ عملونه ضائع دی دنيك عمل دقبوليت دپاره ايمان شرط دې، ﴿مَا كَانَ﴾ په معنى د (مَايَصِحُّ) سره دې اوصحت نه مرادقبوليت دې يعنى مشركانو ته په تعميردمسجدثواب نه شي وركولې . اوپه لفظ دَ ماكان كښې اشاره ده دې ته چه مؤمنان به قدرت نه وركوي كفاروته دتعمير دمسجد، ﴿شَاهِدِينَ عَلَىٰ أَنفُسِهِم بِالْكُفْرِ﴾ ددې نه دلفظ دكفر. يادكافر شهادت اواقرار نه دې مرادبلكه هغه اعمال اقوال ښكاره كول مراددی چه هغه كفردې لكه بُتانوته سجدى كول اودهغوئ نه حاجتونه غوختل، اودارنګه دوئ به په خپله تلبيه كښې وئيل : (لبيك اللهم لبيك لاشريك لك الاشريكاً تملكه وماملك)، ﴿إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ﴾يعنى دمؤمنانو نه تعميردمساجدوقبول دې، اومساجد آبادول په دوه قسمه دی يوظاهری آبادول دی داهم عبادت دې اوددېراجر او ثواب وعدى دی پرې، اودويم مساجدآبادول په عباداتو اواعمالو سره دې چه دااصل تعمير دې اوپه منزله دروح دې اول قسم په منزله دجسددې ﴿وَلَمْ يَخْشَ إِلَّا اللَّهَ﴾كه څوك **سوال** اوكړي چه مؤمن خو هم كله دغيرالله نه يريږي لكه دمار. لړم. ليوګانو نه بلكه انبياؤ ته هم دغير الله نه خوف راغلې دې، لكه ابراهيم ﷺ فرشتوته اووئيل چه﴿إِنَّا مِنكُمْ وَجِلُونَ﴾ ، موسى ﷺ اووئيل ﴿وَلَهُمْ عَلَيَّ ذَنبٌ فَأَخَافُ أَن يَقْتُلُونِ﴾، ﴿فَأَوْجَسَ فِي

نَفْسِهٖ خِيفَةً مُّوسَىٰ ﴾ . نو جواب دادې چه داخوف طبعی غیراختیاری دې اوپه دې کښې دمخوف منه تعظیم نه وی. نوداقسم خوف اوخشیة نه دې مراد بلکه خوف . عقلی ،اختیاري، تعظیمی مراددې،﴿ فَعَسَىٰٓ أُوْلَٰٓئِكَ ﴾ عسی په کلام الهی کښې دوعدې دپاره استعمالیږی. په دې آیت کښې دمساجدو آبادونکو دپاره ډېره عظیمه خوشخبری ذکرشویده په دې باره کښې ډېر احادیث واردشوی دی منجمله دهغې نه دادې. (١) عن ابی سعیدالخدری ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال اذارایتم الرجل یعتادالمسجد. وفی روایةٍ يَتَعَاهَدُ المسجد فاشهدُوا لَهُ بالایمان قال الله تعالی : (انما یعمرمسجدالله من امن — الایه) (٢) وعن انس رضی الله عنه مرفوعًا انماعمار المساجد هم اهل الله (٣) وعن انس مرفوعاً یقول الله اذااراداللہ بقومٍ عاهةٍ نظرالی اهل المساجد فصرف عنهم (٤) وفی روایة عن انس مرفوعًا یقول الله وعزتی وجلالی انی لَاَهِمُّ باهل الارض عذابًا فاِذَا نَظَرتُ الی عمار بُیُوتی و الی المتحابین فِیَّ والی الْمُستغفرین بالاسحار صرفت ذالک عنهم (ابن کثیر) وفی الکشاف (٥) قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ان بیوتی فی ارضی المساجد وَاِنَّ زَوَّارِیْ فیها عمارها فطوبی لعبدٍ تُطَهِّر فی بیته ثُمَّ زَارَنِی فی بیتی فحقٌ عَلَی الْمُزَوَّرِ، اَن یکرم زائره، وروی عنه صلی الله علیه وسلم من اَلَّفَ المسجد اَلَّفه الله تعالی وعن انس رضی الله عنه من اسرج فی مسجدٍ سراجاً لم تزل الملئکة وحملة العرش تستغفرله مادام فی ذالک المسجد ضوئه، وروی انه علیه السلام قال من غدا الی المسجد وراح اعدالله تعالی له نزلاً من الجنة کلما غدا و راح، روی انه صلی الله علیه وسلم قال، یاتی فی آخرالزمان ناس من امتی یاتون المساجد فیقعدون حلقا ذکرهم الدنیا وحب الدنیا لاتجالسوهم فلیس لله بهم حاجة، وفی الحدیث، الحدیثُ فی المساجد یاکل الحسنات کماتاکل البهیمةُ الْحَشِیْشَ (السراج المنیر). یعنی په جُمات کښې خبرې کول نیکیانې داسې خوری (ختموی) لکه څناور چه واخه خوری.

| أَجَعَلْتُمْ سِقَايَةَ ٱلْحَآجِّ وَعِمَارَةَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ كَمَنْ ءَامَنَ بِٱللَّهِ |
|---|
| آیا ګرځئ تاسې اوبه څکول په حاجیانو او آبادول د مسجد حرام، په شان د (عمل) دهغه چا چه ایمان لری په الله |

وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَجٰهَدَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ لَا يَسْتَوٗنَ عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي

او په ورځ د آخرت او جهاد کوي په لاره د الله تعالی کښې. ندي برابر دوئ په نيزد الله تعالی. او الله تعالی هدايت نه کوي

الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۞ اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَهَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ

قوم ظالمانو ته هغه کسان چه ايمان ئ راوړې دې اوهجرت ئ کړې دې په لاره د الله تعالی کښې په مالونو خپلو

وَاَنْفُسِهِمْ ۙ اَعْظَمُ دَرَجَةً عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ۞ يُبَشِّرُهُمْ

او ځانونو خپلو سره لوئ درجې والا دی په نيزد دالله تعالی، اودغه کسان خاص دوئ کامياب دی. زيرې ورکوي دوئ ته

رَبُّهُمْ بِرَحْمَةٍ مِّنْهُ وَرِضْوَانٍ وَّجَنّٰتٍ لَّهُمْ فِيْهَا نَعِيْمٌ مُّقِيْمٌ ۞

رب د دوئ په مهرباني خپلې سره او په رضامندئ خپلې سره، او په جنتونو سره چه دوئ لره به په هغې کښې نعمتونه همېشه وی

خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ۞

همېشه به وی دوئ په هغې کښې همېشه، بيشکه الله تعالی سره دې اجر لوئ.

﴿اَجَعَلْتُمْ سِقَايَةَ الْحَآجِّ﴾ دادماقبل جواب سره متعلق دې، په بعضو رواياتو کښې دابن عباس ﷺ نه روايت دې چه هرکله حضرت عباس ﷺ قيدشو په بدرکښې نو (فخراً) ئ اووئيل که چرې تاسوزمونږ نه سبقيت کړې دې په اسلام اوهجرت اوجهادکښې نومونږ ستاسونه سبقيت کړې دې په سقايه الحاج اوتعمير دمسجد حرام کښې نو داآيت نازل شو حاصل ئ دادې چه سقاية الحاج اوتعمير دمسجدخو اگرکه ډيربهترين اعمال دی ليکن ايمان چه نه وی نوداضائع دی.

﴿كَمَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ﴾ دلته مضاف مقدردې ای کعمل من امن ﴿وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي﴾ مراددهدايت نه ثواب ورکول دی، ياترينه مرادپوهه ده دپاره دفرق کولوپه مابين دنفع اودضرر د اعمالو کښې

﴿اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَهَاجَرُوْا﴾ دا بشارت دې په شووجوهاتو سره (۱) ﴿اَعْظَمُ دَرَجَةً﴾ (۲) ﴿هُمُ الْفَآئِزُوْنَ﴾ (۳) ﴿يُبَشِّرُهُمْ رَبُّهُمْ﴾ (۳) ﴿بِرَحْمَةٍ﴾ (۴) ﴿وَرِضْوَانٍ﴾ (۵) ﴿وَجَنّٰتٍ﴾.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُوٓاْ ءَابَآءَكُمۡ وَإِخۡوَٰنَكُمۡ أَوۡلِيَآءَ إِنِ ٱسۡتَحَبُّواْ ٱلۡكُفۡرَ عَلَى ٱلۡإِيمَٰنِۚ

اې ایمان والو [1] مه نیسئ پلاران خپل او رونړه خپل دوستان که دوئ غوره کوی کفر په ایمان

وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمۡ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ۝ قُلۡ إِن كَانَ ءَابَآؤُكُمۡ

او چا چه دوستانه وکړه د دوئ سره ستاسونه پس دغه کسان خاص دوئ ظالمان دی ته وه وایه که وی پلاران ستاسو

وَأَبۡنَآؤُكُمۡ وَإِخۡوَٰنُكُمۡ وَأَزۡوَٰجُكُمۡ وَعَشِيرَتُكُمۡ وَأَمۡوَٰلٌ ٱقۡتَرَفۡتُمُوهَا وَتِجَٰرَةٞ

او خامن ستاسو او رونړه ستاسو او ښځې ستاسو او قبیلې ستاسو او هغه مالونه چه ګټلې ئ تاسو او تجارت

تَخۡشَوۡنَ كَسَادَهَا وَمَسَٰكِنُ تَرۡضَوۡنَهَآ أَحَبَّ إِلَيۡكُم مِّنَ ٱللَّهِ

چه تاسو یریږئ د کوته کیدلو د هغې نه او کورونه چه خوښوئ ئ تاسو هغې لره زیات خواږه تاسو ته د الله تعالی نه

وَرَسُولِهِۦ وَجِهَادٖ فِي سَبِيلِهِۦ فَتَرَبَّصُواْ حَتَّىٰ يَأۡتِيَ ٱللَّهُ

او درسول د هغه نه او د جهاد نه په لار د الله تعالی کښ نو پس انتظار وکړئ تر دې چه را به ولی الله تعالی

بِأَمۡرِهِۦۗ وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلۡفَٰسِقِينَ ۝

فیصله خپله ، او الله تعالی توفیق دَ نیکئ نه ورکوی قوم فاسقانو ته.

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ ﴾ داجواب دمانع ثالث دې دقتال نه هغه داچه چا به دا **سوال** کوؤ چه ددی مشرکانو سره زمونږ خپلولی ده اوصله رحمی ساتل خو واجب دی نو ددوئ سره قتال کول څه رنګه واجب شو، نو **جواب** اوشو چه مشرکان اګرکه خپلوان وی خودوئ په دوستئ سره مه نیسئ، دمشرک سره داسې دوستی چه دهغه تابعداری اوکړې شی یادکفر په کارونو کښ ورسره مدداوکړې شی نوداسې دوستی حرامه ده، داولیاء معنی هم داده.

﴿ قُلۡ إِن كَانَ ﴾ دادماقبل سره متعلق دې اوزجردې،په بعض روایاتو کښ راغلی دی چه بعض خلقو ایمان راؤړې وو اوهجرت ئ نه وو کړې نودوئ اوونیل که مونږ هجرت اوکړو نو زمونږ مال اوتجارت به ضائع شی اوزمونږ کورونه مکانات به خراب شی اوخپلوان بهٔ رانه

---

١ - د دریم مانع جواب

پاتې شي نو دا آیت نازل شو. صاحب. دکشاف وئیلیدی چه دا ډیر سخت آیت دي. هرمسلمان دي خپل ځان سره انصاف اوکړی چه آیا خپل ځان په دین دالله تعالی باندې داسې کلک مومی کوم چه ددی آیت مقتضی ده، علامه شیربینی لیکی چه دا آیت دلیل دي پدې چه هرکله تعارض راشی په مابین دمصلحت ددین اوپه مصلحت ددنیاکښې نوپه مسلمان باندې واجب دی ترجیح ورکول مصلحت ددین ته په مصالحو ددنیا باندې،﴿حَتّٰى يَأْتِيَ اللّٰهُ بِأَمْرِهٖ﴾مراددې نه عذاب دې په دنیاکښې عاجلاً یااجلاً﴿لَا يَهْدِي﴾ ای لایخلق الهدایة فی قلوب الفاسقین.

لَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ فِيْ مَوَاطِنَ كَثِيْرَةٍ ۙ وَّيَوْمَ حُنَيْنٍ ۙ

خامخا په تحقیق سره امداد کړې دې تاسو سره الله تعالی په ځایونو ډیرو کښې او په ورځ د حنین

اِذْ اَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنْكُمْ شَيْـًٔا وَّضَاقَتْ عَلَيْكُمُ الْاَرْضُ

کله چه ښه ولګیدو تاسوته ډیر والې ستاسو پس فائده ئې درنکړه تاسو ته هیڅ فائده، اوتنګه شوه په تاسو باندې ځمکه.

بِمَا رَحُبَتْ ثُمَّ وَلَّيْتُمْ مُّدْبِرِيْنَ ﴿٢٥﴾ ثُمَّ اَنْزَلَ اللّٰهُ

سره د فراخوالی د دې نه، بیا اُوګرزیدئ تاسو د میدان جنګ نه شا کونکی دشمن ته . بیا راوه لیږله الله تعالی

سَكِيْنَتَهٗ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَعَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَاَنْزَلَ جُنُوْدًا لَّمْ تَرَوْهَا ۚ

تسلی دخپل طرف نه په رسول خپل او په مؤمنانو باندې او را وې لیږلې داسې لښکری چه نه لیدلې تاسو

وَعَذَّبَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۭ وَذٰلِكَ جَزَاۗءُ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٢٦﴾ ثُمَّ يَتُوْبُ اللّٰهُ

اوعذاب ئې ورکړو کافرانو لره او دا سزا دکافرانو ده . بیا به مهربانی وکړی الله (په توفیق درکولو د توبې سره)

مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ عَلٰى مَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٢٧﴾

روستو د دینه په هغه چاچه وغواړی ، او الله تعالی بښونکې ، رحم کونکې دې

﴿لَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ﴾ دا ترغیب دې جهادته په بشارت ورکولو سره اواشاره ده دې ته چه په جهادکښې اعتماد په خپل کثرت باندې مه کوئ بلکه صرف په الله تعالی توکل کوئ.

اولام په (ولقد) کښې موطئه للقسم دې(ای والله لقد – الخ) او ﴿مَوَاطِنَ﴾ جمع د موطن دی، موطن هغه موضع ته وائی چه سړې قیام کوی په هغې کښې. دلته ترینه مراد مواطن الحرب یعنی مقامات اومواقف دحرب دی ﴿وَيَوۡمَ حُنَيۡنٍ﴾داعطف الخاص علی العام دې اودی ذکرئ ددې وجې نه اوکړو چه په جنګ حنین کښې داسې تعجب خیزمددونه اوفتح روستو دشکست نه راغله چه دشمنان هم ددې په اقرارکولو مجبور شو ، علامه زمخشری وئیلی دی (وتبعه صاحب الجلالين) چه د (وَيَوۡمَ حُنَيۡنٍ) دپاره عامل مقدرکول ضروری دی چه(اذکریوم حنين)، یا (ونصرکم یوم حنین)، ددې دپاره چه دامستقل جمله شی، ځکه که چرې مستقله جمله نه شی نوددی سره خوداقید (بدل) لګیدلې دې ﴿إِذۡ أَعۡجَبَتۡكُمۡ كَثۡرَتُكُمۡ﴾ نوچه دامستقله جمله نه شی نوواجبه ده چه دا قید به دماقبل سره هم ولګی چه ﴿لَقَدۡ نَصَرَكُمُ ٱللَّهُ فِي مَوَاطِنَ كَثِيرَةٖ﴾ دې ، اوحالانکه چه په مواطن کثیرة کښې اعجاب نه وو ، اونورعلماء دا قانون نه تسلیموی چه کوم قید دکلام په آخرکښې راشی نوهغه به داول دکلام سره لګی نوددی وجې نه هغوئ ددی دپاره عامل نه مقدرکوی.

حُنین، دمکی اوطائف په مینځ کښې وادی ده، په دې کښې دهوازن اوثقیف قبیلوسره مقابله شوی وه، چه دهغې تفصیل اهل سیروکړیدې ، مختصره خلاصه دهغې داده چه سنه ۸ هـ کښې چه هرکله مکه معظمه فتح شوه، نوهوازن ثقیف ، چه ډیر بهادر، په غشو ویشتلو کښې ډیرماهروو، دوئ داخیال اوکړو چه مکه معظمه فتح شوه نواوس به رسول پاک صلی الله علیه وسلم اوصحابه زمونږ طرف ته توجه کوی اوپه مونږ به حمله کوی نوبهتره داده چه مونږ ابتداء اوکړو اوپه مسلمانانو حمله اوکړو. ځکه چه ددوئ تروسه پورې دداسې خلقوسره مقابله راغلې ده چه دجنګ په طریقه اوپه غشو ویشتلو نه پوهیدل نوځکه ئ فتح کړې ده اوکه ددوئ زمونږ سره مقابله راشی نوشکست به اوخوری، اوپوهه به شی، چه صرف مونږ رجال یو، چنانچه دوئ په ډیرجوش خروش اواتفاق اتحادسره راجمع شو، اوخپل بچی ښځې مالونه، اوښان، بیزی، هرڅه ئ دکورونونه میدان ته راؤباسل ، ددی دپاره چه دمیدان جنګ نه دچاکورته دتللوخیال پیدانه شی، نبی ﷺ ته چه دااطلاع ملاؤشوه . نو بعض صحابه ئ دحالاتو معلومولودپاره اولیګل هغوئ چه واپس راغلل نودائ اووئیل چه هوازن ثقیف سره دمالونه اولادونه دمقابلی دپاره راوتلې دی، نونبی ﷺ اوفرمائیل،

(تلک غنیمة المسلمین غداً انشاء الله) نبی ﷺ دولس زره لښکر تیار کړو په دې کښې لس زره هغه انصارمجاهدین صحابه وو چه دفتح مکې دپاره راغلی وو، اودوه زره دمکې نوی مسلمانان وو چه هغوئ ته طلقاء وئیلې شی، په دوئ کښې ضعیف الایمان دادابونه بی خبره کسان وو، بلکه بعض په دوئ کښې داسې کسان وو چه سرسری طورباندې په اسلام کښې داخل شوی وو لیکن په زړه کښې ئ ایمان نه ووراسخ، اودوئ سبب دهزیمت ګرزیدلې وو. نوپه دې موقعه باندې چه هرکله مسلمانانو خپل کثرت اوقوت اولیدو نواوئ وئیل لَنْ نُغْلَبَ الْيَوْمَ مِنْ قِلَةٍ، مسلمانان په دې موقعه دولس زره وو چه ددې نه مخکښې دومره ډیرتعداد په جنګ کښې نه وو برابرشوی اودکفاروتعدادخلورزره وو، ددی کلام نه یونوع فخرپه خپل کثرت اوقوت معلومیږی، اوالله تعالی ته دبنده دعاجزی اظهار خوخ دې، اودغه کلام اګرکه صحابؤ په طریقه دفخر اوکبرسره نه وو وئیلې لیکن فخر ترینه معلومیږی اوپه قانون د،حسنات الابرار سیئات المقربین، سره دخواصوخلقو په معمولی اوادنی لغزش سره ګرفت کیږی ، نوددې وجې نه الله تعالی مسلمانانوته وقتی شکست ورکړو، چه داددوئ دپاره تربیت دې دحضرت براء بن عاذب ﷺ نه روایت دې چه هرکله اول جنګ شروع شو نوکفاروته شکست ملاؤ شو اومسلمانان دَ مال غنیمت په جمع کولوباندې مشغول شو، نوکفارو چه دوئ ته پټ په مورچوکښې ناست وو نوپه دوئ باندې ئ دغشو باران شروع کړو نودوئ پریشان اومنتشر شو، اول نومسلم، طلقاء دمیدان نه اوتختیدل ، بیانور صحابه رضی الله عنه هم ورنه وروسته شو، حتی چه په میدان کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره صرف اتیا (۸۰) یا سل (۱۰۰) کسان پاتې شو او نبی کریم ﷺ په میدان کښې نهایت په حوصله او جرئت سره ولاړوو، او دسورلئ نه راکوزشو، اوفرمائیل ئ : اناالنبی لاکذب انابن عبدالمطلب، صحابؤ ته ئ آوازاوکړو: اِلَيَّ عِبَادَالله ! اوحضرت عباس رضی الله عنه چه ډیر جهیرالصوت وو هم صحابؤ ته ئی آواز ورکړو نوټول دپتنګانوپه شان شمع رسالت ته راجمع شو. اونبی ﷺ دیوموټی خاوړې په لاس مبارک کښې راواخستلې او دکفاروطرف ته ئ اوویشتلې (شاهتِ الوجوه)، ئ اووئیل نودټولوکفارو په سترګو کښې هغه اولګیدلې اوالله تعالی دمؤمنانو دامداداوتقویت دپاره فرشتې راؤلیګلې کفاروشکست اوخوړ، ۷۰کسان ترینه قتل کړې شو، اومشران، لیډران اوتختیدل طائف ته لاړل، اوشپږ زره ترینه قید کړې

شو . چه په هغې کښې زنانه اوماشومان هم وو ، اوشلويريشت زره اوښان اوشلويښت زره بيزې اوڅلورزره اوقيه ترينه په مال غنيمت کښې واغستې شوې .

﴿ ثُمَّ أَنزَلَ ٱللَّهُ سَكِينَتَهُۥ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ ﴾ په رسول ﷺ باندې په دې جنګ کښې څه اضطراب اوپريشانی نه وه راغلې، صرف دملګرو دتللو دوجې نه ورته خفګان پريشانی وه نودلته دنزول دسکينه نه دامراددې چه ملګری واپس شو ميدان جنګ ته ، اومؤمنانوته پريشانی دخپل شکست ليدلوپه وجه وه، او دميدان جنګ نه تختيدلی وو ، ﴿وَعَذَّبَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟﴾ مراددې نه قتل کول اوقيد کول دی،﴿ثُمَّ يَتُوبُ ٱللَّهُ ﴾داحکايت دحال ماضيه دې دپاره ددې چه راتلونکی زمانی ته هم شامل شی، نو (يَتُوبُ) په معنی دماضی سره دې، هوازن ثقيف چه شکست اوخوړنو لاړل طائف ته اوهلته دهغوئ په محکم قلعه کښې ننوتل، نبی صلی الله عليه وسلم دطائف محاصره اوکړه، پنځلس ياشل ورځې دغه محاصره جاري وه، طائف والاؤ ته به ئ دمقابلې ته راوتلو دعوت ورکوؤ ليکن هغوئ باهرته نه راتلل،غشی به ددواړوطرفونه ويشتلې کيدل ليکن دباقاعده جنګ نوبت رانه غلو، صحابهٔ کرامو عرض اوکړو چه يارسول الله دوئ ته ته بددُعا اوکړه ليکن نبی ﷺ دوئ ته دهدايت دُعااوکړه اومکی ته واپس روان شو دجعرانه مقام نه ئ عمره اداکړه اوتقسيم دغنائمو اوشو ، نو د هوازنو دخوارلسو مشرانو وفد حاضرشو اوعرض ئ اوکړو چه يارسول الله ﷺ مونږ په اسلام کښې داخل شوی يو اودرخواست ئ اوکړو چه زمونږ سره احسان اوکړئ اومالونه اوقيديان مونږ ته واپس کړئ ، نونبی ﷺ دوئ ته اوفرمائيل چه څما اوځمادخاندان حصه به زه تاسو ته واپس کړم ليکن ماسره دانورصحابهٔ کرام رضی الله عنهم دی چه تاسو ئ وينئ نودهغوئ نه څه ددواړوڅيزونو (مال، قيديان) دواپس کولو مطالبه مناسب نه ګنړم نو تاسواختيارکړئ يوڅيز، يامال ، ياقيديان نوزه به دهغوئ نه طلب اوکړم نودوئ قيديان خوښ کړل نونبی ﷺ صحابه رضی الله عنهم راجمع کړل، اوترغيب ئ ورکړوچه داستاسوروڼړه تاسوته راغلی دی اوپه اسلام کښې داخل شوی دی دکفرنه ئ توبهٔ کړې ده، نوځمارای داده چه دوئ ته ددوئ قيديان واپس شی نو که څوک دزړه په خوشئ سره تياروی نوډيره ښه اوکه نوی تيارنو هغه دې هم خپله حصه،(قيدی) راکړی اوددې نه بعد چه اول مال فئ مونږ ته په لاس راشی نوهغه ته به معاوضه ورکړې شی، نوصحابه کرامو په جمع سره اجازت ورکړو، ليکن مجمع چونکه ډيره زياته وه نونبی ﷺ د احتياط دپاره اوفرمائيل چه په تاسوکښې کوم عرفاء (ملک، چودهری) دی هغوئ دې دخپل

قوم دهرهرکس نه تحقيق اوکړی اواجازت دې واخلی بيادې ماته حال بيان کړی نوهغوئ دتحقيق نه بعدنبی صلی الله عليه وسلم ته عرض اوکړو چه ټول دزړه په خوشئ سره اجازت ورکوی نودوئ ته قيديان واپس کړې شو اودوئ په اسلام کښې داخل شو اودنبی ﷺ ددعاقبوليت ظهوراوشونوپه دې آيت کښې ((ثم يتوب الله)) دېته اشاره ده

| |
|---|
| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْمُشْرِكُوْنَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هٰذَا |
| اې ايمان والو ! بيشکه مشرکان پليتان دی پس نه دې نزدې کيږی مسجد حرام ته روستو د دې کال نه |
| وَاِنْ خِفْتُمْ عَيْلَةً فَسَوْفَ يُغْنِيْكُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖٓ اِنْ شَآءَ |
| اوکه تاسو يريږئ [1] د فقر نه نو پس زر ده چه مالدار به کړی تاسو لره الله تعالی د خپل فضل نه که وغواړی. |
| اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۸﴾ قَاتِلُوا الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ |
| بيشکه الله تعالی عليم، حکيم دې . جنګ کوئ دهغه کسانو سره [2] چه ايمان نه لری په الله تعالی باندې [3] |
| وَلَا بِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَلَا يُحَرِّمُوْنَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ وَلَا يَدِيْنُوْنَ دِيْنَ الْحَقِّ |
| اونه په ورځ د آخرت باندې او حرام نه ګنړی [4] هغه شې چه حرام کړې دې الله اورسول دهغه اونه قبلوی دين حق |
| مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ حَتّٰى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَّدٍ وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ ﴿۲۹﴾ |
| دهغه کسانو نه چه ورکړې شوې دې دوئ ته کتاب، تر دې چه دوئ ورکړی جزيه په خپل لاس او دوئ به ذليلان وی . |

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا ﴾دادبراءت دبل صورت ذکردې په دې کښې ترقی ده دماقبل نه يعنی دمشرکينو سره معاهده ختم کړئ اوحرم ته ئ مه پريږدئ ، ځکه چه دوئ نجس دی، احناف اودارنګه نورډيرعلماء داوائ چه دمشرکينو نجاست، معنوی دې نولهذاکه چرې

۱ - د ځلورم مانع جواب .

۲ - د رفع د موانعو نه بعد د دعوې ذکر په تفصيل سره او د قتال شپږ وجوهات .

۳ - اوله وجه : يعنی شرك اعتقادی کوی.

۴ - دويمه وجه يعنی شرك فعلی کوی .

ددوئ په جسم باندې حسي نجاست نه وی نوددوئ داخليدل مسجدحرام ته يامسجدنبوی ته يابل مسجدته په اجازت سره جائزدې، اوامام مالک رحمه الله وائ چه دمشرک داخليدل هيڅ يومسجدته جائزنه دی، ځکه چه دوئ نجس دی، امام شافعي رحمه الله وائ چه دمشرک داخليدل صرف مسجدحرام ته منع دی نورومساجدو ته جائزدی، احناف ددی آيت نه داجواب کوی چه ددی مطلب يادادې چه داپيشين ګوئ ده چه دمشرکانو تسلط دحرم نه ختم شو، يادامطلب دې چه مشرکان به ددې نه بعدپه مشرکانو طرزوطريقه سره حج عمره نه اداکوی، دليل ئ دادې چه نبی ﷺ په سنه ۹ هـ کښې دحضرت ابوبکرصديق رضی الله عنه په امارت کښې، حضرت علی رضی الله عنه اونورصحابه حرم ته اوليګل چه هغوئ دسورت براءت اول آياتونه خلقوته واورو اوداعلانات اوکړی، الالايحجن بعدالعام مشرک ولايطوفن بالبيت عريان، ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ عَيْلَةً﴾ په دې کښې جواب دې دځلورم مانع دقتال نه، **سوال** داوؤ چه زمونږ تول تجارت دمشرکانو سره دې اوپه مواسمو الحج کښې دوئ مالونه دتجارت راوړی نوکه مونږ ددوئ سره قتال کوؤ اودحرم نه ئ منع کړو نوتجارت به بندشي اومونږ به دغربت اوافلاس شکارشو، اوحاصل دجواب دادې چه دمشرکانوسره قتال کوئ اودحرم نه، ئ منع کړئ اوپرواه مه کوئ الله تعالی به دبل طرف نه څه سبب جوړکړی ځکه چه غريبي مالداری دبندګانو په اختيارکښې نه ده بلکه صرف دالله تعالی په اختيارکښې ده چنانچه ددې نه بعد الله تعالی ډيرعلاقوملکونو ته په اسلام کښې دداخليدو توفيق ورکړو لکه نجد، قباله، جرش، اوتجارت دمخکينئ نه په چندانو زيات شو اوبارانونه به کثرت سره اوشول اومالی وسعت الله تعالی راوستلو،﴿ قَاتِلُوا الَّذِينَ ﴾ درفع دموانعونه بعددسورت دعوی په تفصيل سره ذکرکيږی، اودفرقومقاتلينو دڅاسره چه قتال کيږی ذکردې اودقتال دپاره داووه وجوه ذکرکيږی(۱)﴿ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ ﴾ يعني دوئ په الله تعالی اوپه ورځ دآخرت ايمان نه لری، يعني څوک چه دالله تعالی په توحيدايمان نه لری، بلکه مشرک وی دهغه سره قتال کوی (۲)﴿ وَلَا يُحَرِّمُونَ ﴾ يعني ځکه ورسره قتال کوئ چه دوئ شرک فعلي کوی(۳)﴿ وَلَا يَدِينُونَ ﴾ يعني ځکه ورسره قتال کوئ چه دوئ دين حق نه قبلوی﴿ حَتَّى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَدٍ ﴾ يعني دوئ به جزيه په خپل لاس ورکوی دنوکر يادبل چا په واسطه به ئ نه ورکوی، او د اعلامه دزلت ده.

وَقَالَتِ الْيَهُودُ عُزَيْرٌ ابْنُ اللّٰهِ وَقَالَتِ النَّصٰرَى الْمَسِيحُ ابْنُ اللّٰهِ ذٰلِكَ قَوْلُهُمْ

او وائ یهودیان[1] عزیر خوې د الله تعالی دې او وائ نصاری چه مسیح (عیسی) خوې د الله تعالی دې دا وینا د دوئ ده

بِأَفْوَاهِهِمْ يُضَاهِئُونَ قَوْلَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ قَبْلُ

په خُلو د دوئ (یعنی بې دلیله) مشابهت کوی د قول دهغه کسانو سره چه کفر ئ کړې دې د دوئ نه مخکښ.

قٰتَلَهُمُ اللّٰهُ أَنّٰى يُؤْفَكُونَ ﴿٣٠﴾ اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ

لعنت دې وکړی په دوئ الله تعالی، څنګه اړولې شی دوئ د حق نه جوړ کړی دی دوئ خپل ملایان[2] او پیران

أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللّٰهِ وَالْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ

خپل خدایان (اختیارمندان د احکامو د حلالو او حرامو) سوی د الله تعالی نه او مسیح خوئ د مریم

وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا إِلٰهًا وَاحِدًا لَا إِلٰهَ

دوئ ته حکم نه وو کړې شوې مګر د دې چه دوئ دې عبادت کوی صرف د یو اله. نشته دې لائق د بندګی

إِلَّا هُوَ سُبْحٰنَهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿٣١﴾ يُرِيدُونَ أَنْ يُطْفِئُوا

سوی د هغه نه پاک دې الله تعالی دهغه نه چه دوئ ورسره څه شریك جوړوی کوشش کوی دوئ چه مړه کړی

نُورَ اللّٰهِ بِأَفْوَاهِهِمْ وَيَأْبَى اللّٰهُ إِلَّا أَنْ يُتِمَّ نُورَهُ وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُونَ ﴿٣٢﴾

رڼا د الله تعالی په خُلو خپلو سره او نه قبلوی الله تعالی مګر دا خبره چه پوره کړی رڼا خپله اګر که بد ئ ګڼړی کافران

هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدٰى وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ

الله تعالی هغه ذات دې چه را لیګلې ئ دې رسول خپل په هدایت سره او په دین حق سره د دې لپاره چه غالب ئ کړی

---

1 - څلورمه وجه : یعنی حضرت عزیر عليه السلام او حضرت عیسی عليه السلام د الله تعالی نائب او مصرف فی الامور او په خدائ صفاتو سره ئ متصف ګڼړی.

2 - د قتال پنځمه وجه .

عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ ۙ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ ﴿۳۳﴾

په ټولو دينونو باندې، اګر که بد ئې ګڼړي مشرکان

﴿۴﴾ ﴿ وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ ﴾ دا څلورمه وجه د قتال ده يعنی ځکه ورسره قتال کوی چه يهوديان عزير ﷺ ته ابن الله وائ اوعيسائيان حضرت عيسی ﷺ ته ابن الله وائ ، د ‹ابن› نه جسمانی ‹ابن› نه دې مراد بلکه مراددادې چه دوئ وائ چه حضرت عزير ﷺ اوحضرت عيسی ﷺ دالله تعالی داسې محبوب دی چه دوئ دالله تعالی نائبين اومتصرف فی الامور دی، په يهودو او نصارٰی کښې دعواموعقيده دا وه چه حضرت عيسی ﷺ اوحضرت عزير ﷺ حقيقةً ځامن د الله تعالی دی او د خواصو عقيده دا وه چه دوئ په شانته د د نازولو ځامنو دی چه پلار د هغوئ خبره منی او هغوئ ته ئ اختيارات حواله کړی وی.

﴿يُضَاهِـُٔوْنَ﴾ يعنی دوئ مشابهت کوی دقول دهغه کسانو سره چه کفرئ کړيدې ددوئ نه مخکښې، ددې نه مراد يامشرکان دی چه ملائکو ته ئ بنات الله ويل ياترينه د دوئ آبا. واجدادمراددی يعنی دوئ دخپلو آباؤ اجدادوتقليد کوی، ﴿قَاتَلَهُمُ اللّٰهُ﴾ يعنی الله تعالی دې په دوئ باندې لعنت اوکړی.

﴿۵﴾ ﴿ اتَّخَذُوْٓا ﴾يعنی ځکه ورسره قتال کوئ چه دوئ خپلو احبارورُهبانو ته ارباب، رب، وئيلی دی، مرادترينه دادې چه دوئ داحبارو رُهبانو اطاعت کوی په تحريم اوپه تحليل کښې لکه په روايت دترمذی وغيره کښې دی چه عدی بن خاتم اووئيل يارسول الله مونږ خواخباراورهبانو ته رب نه دی وئيلی، نونبی ﷺ ورته اوفرمائيل چه آيا،داسې نه وه چه هغوئ به تاسو ته يوشئ حرام کړو، نواګرکه الله تعالی به حلال کړې وو نوآياتاسو ته به ورته حرام نه وئيل ؟يابه يوشئ الله تعالی حرام کړې وو ليکن چه اخبارورهبانو بهٔ ورته حلال اووئيل نوآياتاسو به حلال نه ګڼړلو، نودوئ اووئيل چه هو؟ نونبی صلی الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل چه هم دامطلب دې د ﴿ اتَّخَذُوْٓا ﴾ يعنی دالله تعالی دحکم په مقابله کښې دخپل ځان دطرف نه تحريم تحليل کول يابل څوک مالک دتحليل اودتحريم ګڼړل، شرک دې.

احبارجمع دحِبر ‹بالکسر› يادحَبر‹بالفتح› ده ماخوذدې د (تحبير المعانی بحسن البيان) نه يعنی داسې عالم چه دمعانيو نه تعبير په خائسته طريقی سره کوی، اطلاق ئ په لغت کښې په

هرجيدعالم کيدې شی لکه ابن عباس ﷺ ته حبر الامت لقب ورکړې شوې دې. او **رُهبان** جمع راهب ده په لغت کښ هغه چاته وئيلې شی چه داسې يره کوی دالله تعالی نه چه ظاهروی اثردخوف په چهره اولباس دده باندې، اوپه عُرف کښ اطلاق د احبارو په هغه عالم ديهوديانو باندې کيږی چه داولاد دهارون ﷺ نه وی، په دې آيت کښ اضافت داحبارو اورهبانو ضمير ددوئ ته شوې دې (يعنی احبارهم ورهبانهم) نومعلومه شوه چه مرادترينه احبارسوء اورهبان سوء دی،((ناکاره علماء ناکاره پيران)).

**فايده** ددې نه معلومه شوه چه دالله تعالی اودرسول الله ﷺ دصريح حکم په مقابله کښ بل څوک مالک اواختيارمند دتحليل اودتحريم يادبل حکم، ګڼړل شرک دې دې ته شرک فی الحکم اوشرک فی التشريع وئيلې شی، لکه دلالت کوی په دې باندې داقول دالله تعالی ﴿سُبۡحَـٰنَهُۥ عَمَّا يُشۡرِكُونَ﴾ نوبعض متعصب اوجاهلان غيرمقلدين دائمو تقليد ته شرک فی التشريع وائ، ځکه چه مجتهدينو امامانو دحديث خلاف حکم بيان کړې وی اومقلدين ئ تقليدکوی، داقسم خيال اوعقيده ساتل مبنی دی په محض جهالت اوبی وقوفئ باندې، ځکه چه په کومه مسئله کښ چه دامامانو مجتهدينو اختلاف راغلې وی نودهغې بنياد داوی چه يومسئله کښ به مختلف احاديث واردوی ((لکه رفع اليدين اوترک ئ)) نوهرمجتهد دترجيح دپاره څه اصول مقررکړې وی نوبعض احاديثولره ترجيح ورکوی، اونورمتروک العمل ګرزوی نودلته نه دالله تعالی اودرسول دحکم خلاف وی اونه تشريع وی بلکه مجتهد تشريح کړی وی چه دغه تشريح دخيرالقرون وی، دغيرمقلدينو درای خلاف چه دوئ ته صحيح حديث ياآيت يادخيرالقرون تشريح پيش کړې شی نودوئ دحديث نه انکارکوی او دخيرالقرون تشريح ته دحديث خلاف وائ، حالانکه دوئ په خپله هم په متعارض احاديثوکښ ديوحديث خلاف ضروربالضرور کوی ، اودخپل رائ دخلاف حديث ته بلکل التفات نه کوی، فالی الله المشتکی ﴿وَٱلۡمَسِيحَ ٱبۡنَ مَرۡيَمَ﴾ داىٔ دماقبل نه جدا ذکر کړو ځکه چه داشرک فی الالوهية دې اوپه ماقبل کښ دشرک فی التشريع بيان وو، ﴿يُرِيدُونَ﴾ يعنی دوئ کوشش کوی ﴿أَن يُطۡفِـُٔواْ﴾ داطفاء،نه مرادرداوتکذيب دې او د ((نور)) نه مراد حجج اودين دالله تعالی دې يعنی ددين تکذيب اوانکاردوئ خپل مقصدګرځولې دې، ﴿بِأَفۡوَٰهِهِمۡ﴾ نه مراددادې چه په شبهاتو واهېۀ سره اوپه دروغو پروپيګنډو سره د دين رد او تکذيب کول غواړی، دا تمثيل دې چه دوئ په خپلو شبهاتو

واهيږ سره او په دروغو پرپېنګنډو سره داسلام ختمول غواړي نومثال ئ داسي دې لکه يوبې وقوف چه دنمر يا سپوږمۍ رڼرا په پوکلو سره مړه کوي، ﴿وَيَأْبَى اللَّهُ﴾ ليکن دالله تعالى وعده ده چه دانورهدايت به هرکچه پوخ کورته رسوي اګرکه کافران پرې ډيرغصه کيږي﴿ هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ ﴾په آيت کښ الله تعالى په خپله دنبي ﷺ صداقت اولوئ شان بيانوي ﴿بِالْهُدَىٰ﴾ ددې نه مراد قرآن دې يااصول عقائدمراددی ﴿وَدِينِ الْحَقِّ﴾ددې نه مراددين اسلام دې يافروع، احکام دی﴿لِيُظْهِرَهُ﴾ دظهور نه مراد غلبه ده يعنى چه دين حق غالب کړى په ټولو اديانو ،او داغلبه په اعتبار ددليل سره په هره زمانه کښ ده اوپه اعتبار دتسلط سره په زمانه دنبى ﷺ اوصحابؤ کښ هم وه چه دين اسلام باوجود دبې سروساماني نه غالب شو په يهوديت ، اونصرانيت ، اودجزيرة العرب نه يهود نصارى اوشړلي شو اودارنګه په مشرکينو ، بت پرستانو غلبه راغله اوپه مجوسو غلبه اوشوه، غرض داچه د نبى ﷺ اوصحابؤ زمانه کښ هردين اوهرطاقت ددين اسلام په مقابله کښ مغلوب شو،اوهم دارنګه به په زمانه دنزول دعيسى ﷺ کښ دين اسلام غالب کيږى په اعتباردتسلط سره په هرطاقت باندې اوهر طاقت اوهردين به داسلام په مقابله کښ نيست نابود کيږى.

اوباقى په هردورکښ دغلبى دپاره شرط دادې چه مسلمانان په اصولو داسلام پوره پوره پابندوى اودايمان اودتقوى په لاره باندې مضبوط وى اوپه جهاد باندې ثابت قدم وى نوداشرط چه په هره زمانه کښ موجودشي نوغلبه به ملاويږى اودابن عباس رضى الله عنه نه روايت دې چه ضمير په ﴿لِيُظْهِرَهُ﴾کښ راجع دې نبى ﷺ ته اودظهور نه مراد علم دې اى لِيُعَلِّمَهُ شرائع الدين کلها، يعنى چه علم ورکړى نبى ﷺ ته په ټولوشرائعوداسلام.

| يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوٓا إِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْأَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَأْكُلُونَ أَمْوَٰلَ النَّاسِ بِالْبَٰطِلِ |
|---|
| اې ايمان والو [1] بيشکه ډير د ملايانو نه او د پيرانو نه، خامخا خوري مالونه د خلقو په ناروا طريقې سره |
| وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ ۗ وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنفِقُونَهَا |
| او خلق منع کوى د لارې د الله تعالى نه اوهغه کسان چه جمع کوى سره زر او سپين زر اونه خرچ کوى دا |

1 - د قتال شپږمه وجه .

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۙ | فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ﴿٣٤﴾ | يَّوْمَ يُحْمٰى |
| په لارې د الله تعالى كښې. پس زيرې وركړه دوئ ته په عذاب دردناك سره | په هغه ورځ چه گرم بل كړې شي |
| عَلَيْهَا فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوٰى بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوْبُهُمْ وَظُهُوْرُهُمْ ۭ |
| پدې باندې اُور په جهنم كښې پس داغلې به شي پدې سره تندى د دوئ او اړخونه د دوئ او شاگانى د دوئ. |
| هٰذَا مَا كَنَزْتُمْ لِاَنْفُسِكُمْ فَذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُوْنَ ﴿٣٥﴾ |
| او ويلې كيږي به دوئ ته چه دا هغه شې دې چه تاسو جمع كړې وؤ د خپل خان لپاره پس وڅكئ مزده هغه څه چه تاسو جمع كول |

(٢) ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ الْاَحْبَارِ﴾ داشپږمه وجه دمشروعيت دقتال ده يعنى قتال ورسره څكه كوئ چه په دوئ كښې دوه ډيرعظيم نقصانونه دى اول داچه داخلقونه مالونه په حرامه طريقه سره اخلى، احبارو يعنى ددوئ ملايانو به په رشوت اوپه تغيركولو دحكم دكتاب سره دخلقو نه مالونه اخستل اورهبانو به په نذرلغيرالله او په ناجائزو دمونودخلقو نه مالونه اخستل.

دويم داچه دوئ خلق دالله تعالى ددين او دتوحيد نه اودايمان باالله نه منع كول. نوگويادوئ دمال ډكوان هم دى اودايمان ډاكوان هم دى، داقسم مضر خلق نن صباپه دې امت كښې په كثرت سره موجوددى(فالى الله المشتكى ) حضرت عبدالله بن مبارك رحمه الله وائ . وهل افسدَالدينُ الاالملوكُ واحبارُ سوء ورُهبانها. يعنى ددين دفاسدولو اوخرابولو دپاره درې فرقى لوئ سبب اولويه ذريعه ده (١) گمراه بادشاهان اومالدارطبقه،(٢) علماء سوء(٣) رهبان سوء يعنى گمراه پيران،، ددى اخيرى دوو طبقو ذكر په ماقبل كښې اوشو اوداول طبقې ذكرپه راتلونكى حصه دآيت كښې دې، ﴿وَالَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ﴾ په دې كښې دهغه خلقو دانجام بيان دې چه مال ئ اگركه په حلاله طريقه سره جمع كړې وى ليكن زكوة ئ نوئ ادا كړې، نو چه څوك د خلقُ نه مال په دهوكې اوغلطه طريقه سره اخلى ، اوخلق دحق نه منع كوى نودداسې نذرانو ، شكرانو جمع كونكو به څه حال وى﴿وَلَا يُنْفِقُوْنَهَا﴾ ضمير دها يا راجع دې (فضه) ته اوهغه مفرد مؤنث دې او (ذهب) پرې قياس دې، ياضميرراجع دې (كنوز) ته يا اموالو ته چه دماقبل نه معلوشويدى يا دا چه مراد د ذهب او فضّه نه دنانير ، دراهم دى ، جنسين

ندی مراد. ﴿ يَوْمَ يُحْمَىٰ عَلَيْهَا ﴾ ضمیرد (علیها) اود (بها) راجع دی (کنوز) ته اوامو الوته.
او (علیها) نائب فاعل دیحمی دې په اصل کښې دا (یوم تُحمی النارُ علیها) وو. نوبیا چه اسناد د
(تحمی). (علیها) ته اوشو یعنی جارمجرور ته نو (النار) حذف شو اوصیغه دمؤنث په مذکر سره
بدله شوه. اومراد د ﴿ وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ ﴾ او د ﴿ وَلَا يُنفِقُونَهَا ﴾ نه زکوة
اونور مالی واجبات نه ورکول دی اوداقول دجمهورو صحابؤ دې سوی دابوذر رضی الله عنه
نه. دلیل دجمهورو حدیث دابوداؤد وغیره دې چه هرکله داآیت نازل شو نو داحکم گران شو په
مسلمانانو. نوحضرت عمر ﷺ اوفرمائیل (أَنَا أُفَرِّجُ عَنْكُمْ) نوتپوس ئې اوکړو دنبی ﷺ نه
نونبی ﷺ ورته اوفرمائیل چه الله تعالی زکواة نه دې فرض کړې مگرددې دپاره چه پاک کړی
مابقی دمال ستاسونه. اوداابن عمررضی الله عنه نه روایت دې چه دکوم مال نه زکواة اداکړې
شی نو هغه کنز نه دې. ﴿ فَتُكْوَىٰ بِهَا جِبَاهُهُمْ ﴾ یعنی داغلې به شی په دې سره تندی ددوئ
اوړه دئ ددوئ اوشاگانې ددوئ تخصیص ددی څلوروخکه شویدې چه دډیرمال جمع کونکی
مقصد دډیرمال نه یوخپل جاه اوجلال څکاره کول وی خلقوته ،نوددی سزا داشوه چه تندی به
ئې په دغه مالونو خزانوسره اوداغلې شی نوذلت اورسوائ به ئې څکاره شی اوبل مقصدئ څه
څه عمده او دفخر خوراکونه وی اوبل مقصدئ دفخرلباس اغوستل دی، نوددی دواړو
سزاداشوه چه جنبین (اړخونه) به ئې داغلې شی چه دفخر په خوراکونوسره ئې خیټه ډکه کړی
وه، اودفخر په لباس سره ئې خپله شا خائسته کړې وه، یاوجه دتخصیص داده چه حریص دمال
چه کاله فقیر سائل وینی نوتندې تریو کړی اوچه فقیرورسره کینی نودې دده (اړخ) تاؤکړی
اوبیاشا اوگرځوی، اوبعض وائ چه داجهات اربعه (څلورطرفونه) کنایه ده، دټول بدن نه،
﴿ هَٰذَا مَا كَنَزْتُمْ ﴾ ای یقال لهم هذاما - الخ.

---

إِنَّ عِدَّةَ الشُّهُورِ عِندَ اللَّهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا فِي كِتَابِ اللَّهِ يَوْمَ

بیشکه شمیره د میاشتو [1] په نیزد الله تعالی دولس میاشتې دی په حکم د الله تعالی کښ د هغه ورځې نه

---

1 - د قتال اوومه وجه.

| خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ مِنْهَآ اَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ؕ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ ۙ فَلَا تَظْلِمُوْا |
|---|
| چه پیدا کړی ئ دی آسمانونه او ځمکه، د هغې نه څلور میاشتې د عزت دی. دا دین کلك دې پس ظلم مکوئ |
| فِيْهِنَّ اَنْفُسَكُمْ وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِيْنَ كَآفَّةً كَمَا يُقَاتِلُوْنَكُمْ كَآفَّةً ؕ |
| بدې میاشتو کښې په نفسونو خپلو. اوجنګ کوئ د مشرکانو ټولو سره لکه چه جنګ کوی دوئ ستاسو ټولو سره. |
| وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ ۝ اِنَّمَا النَّسِيْٓءُ زِيَادَةٌ فِي الْكُفْرِ |
| او پوهه شئ چه بیشکه الله تعالی خاص ملګرې دمتقیانو دې. بیشکه روستو کول د حرمت د یومیاشتې زیاتوالې دې په کفر کښې. |
| يُضَلُّ بِهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُحِلُّوْنَهٗ عَامًا وَّيُحَرِّمُوْنَهٗ عَامًا |
| زیات ګمراه کولې شی په دې سره کافران حلال ګڼړی دوئ هغه یو کال او حرامه ئ ګڼړی بل کال |
| لِّيُوَاطِـُٔوْا عِدَّةَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ فَيُحِلُّوْا مَا |
| د دې لپاره چه پوره کړی دوئ شماره د هغه میاشتو چه حرامې کړی دی الله، پس حلالوی دوئ په دې طریقه سره هغه میاشتې |
| حَرَّمَ اللّٰهُ ؕ زُيِّنَ لَهُمْ سُوْٓءُ اَعْمَالِهِمْ ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ ۝ |
| چه الله تعالی حرامې کړی دی. ښائسته کړې شوی دی دوئ لره بد عملونه د دوئ او الله تعالی هدایت نه ورکوی قوم کافرانو ته. |

﴿اِنَّ عِدَّةَ الشُّهُوْرِ عِنْدَ اللّٰهِ﴾ دا اومه (۷) وجه د مشروعیت د قتال ده، یعنی قتال ورسره ځکه کوئ چه دوئ دالله تعالی په ازلی قانون کښې ردوبدل راوستې دې، الله تعالی دابتداء افرینش دمخلوق نه داسمانونو حرکت اودنمرسپوګمئ دورې په داسې اندازه مقررکړې دی چه کال دولس میاشتې دې، په دې کښې څلور میاشتې اشهرحرم دی، اهل عرب دحضرت ابراهیم ﷺ اودحضرت اسماعیل ﷺ دزمانې نه په دې قانون قائم وو، بیا چه کله په دوئ کښې درندګی اوظلم زیات شو، نودوئ په دې قانون کښې ردوبدل شروع کړو، کله به ئ جنګ شروع کړو نولس میاشتې به تیرې شوې نودوئ به اعلان اوکړو چه کال به دې وارې څوارلس میاشتې وی اوکله به په محرم کښې دقتال کولوخواهش وو نواعلان به ئ اوکړو چه دې کال به محرم روستورازی اوصفربه مخکښې رازی، دیته (نسیئ) وائ یعنی مؤخرکول دحرمت دیو میاشتې

نه بلې مياشتې ته. غرض داچه ځلورمياشتې به ئ پوره كولې ليكن دترتيب الهى خيال به ئ نه ساتلو. نوپه دې كښې به داصل مياشتې پته نه لګيده چه آيادامياشت مثلاً په حقيقت كښې درمضان ده يادشوال ده. يادذى الحجه ده يادذى القعده ده. ليكن په كوم كال چه نبى ﷺ حج ته تشريف يوړو. نوپه دغه كال چه دمشركينو په حساب سره ذى الحجه ده نوهغه په حقيقت كښې هم اصلى ذى الحجه وه اوددى وجه نه نبى ﷺ اوفرمائيل (الا انّ الزمانَ قداستدارَكهيئة يوم خلق السّموات والارضَ) يعنى زمانه راواپس شوه خپل زوړحال ته لكه چه څه رنګه وه په هغه ورځ چه الله تعالى پيداكړى دى اسمانونه اوزمكى. نوچه ﴿ عِندَ ٱللَّهِ ٱثۡنَا عَشَرَ شَهۡرًا ﴾ ئ اوونيل نوددوئ ددغه رسم رداوشوچه كله كله به ئ كال څوارلس مياشتې ګرزولو. او د ﴿عِدَّةَ ٱلشُّهُورِ ﴾ نه مراد شمار د مياشتو د كال دې. ﴿مِنۡهَآ أَرۡبَعَةٌ حُرُمٌۚ ﴾ يعنى ځلور مياشتې معينى اشهرحرم دى. چه نبى صلى الله عليه وسلم ددى تشريح په خپله دحجة الوداع په موقعه كړې ده چه ثلث متواليات، درې پې درپې دى،ذوالقعده ذوالحجه، محرم ، اوځلورمه رجب ده. ليكن چونكه بعض اهل عربو، رمضان ته رجب وئيلو، اودقبيله دمضرپه نيزرجب هغه ده چه دجمادى الاخير اوشعبان په درميان كښې ده نوددى وجې نه نبى ﷺ په حديث كښې درجب اضافت مضرته اوكړو، رجب مضرئ اووئيل اووضاحت ئ ورته داسې اوكړو الذى بين جمادى وشوال ﴿ ذَٰلِكَ ٱلدِّينُ ٱلۡقَيِّمُۚ ﴾يعنى دمياشتو تعين اوترتيب په دې طريقه باندې اوخصوصاً داشهرحرم ترتيب دامستقيم دين دې اوددې نه خلاف چه مشركينو ترتيبونه رسومات جارى كړى دى داګاګه اوغلط دى﴿ فَلَا تَظۡلِمُواْ فِيهِنَّ أَنفُسَكُمۡۚ ﴾داحكام الهيو خلاف ورزى كول ظلم دې په خپل ځان نودامه كوئ.

امام جصاص رحمه الله وائ چه په دې كښې اشاره ده چه څوک په اشهرحرم كښې ځان دګناه نه اوساتى نوپه نورو مياشتوكښې ورته دګناهونو نه بچ كيدل اسان دى ﴿ وَقَٰتِلُواْ ٱلۡمُشۡرِكِينَ كَآفَّةً ﴾ د دې معنى يا دا ده چه د هرقسم مشركانو سره جنګ كوئ يا دا معنى ده چه په ټولو مياشتو كښې ورسره جنګ كوئ او پدې دويم احتمال باندې دا آيت ناسخ دې لپاره د حرمت د قتال په اشهر حرم كښې لكه دلالت كوى پدې باندې دا خبره چه غزوه د تبوك په رجب كښې شوې وه .

﴿إِنَّمَا النَّسِيءُ﴾ نسئ مؤخرکولوته وائ یعنی روستو کول دحرمت دیومیاشتې نه بلې میاشتې ته لکه محرم دصفرخائ ته اوړل اوصفردمحرم خائ ته راوړل ﴿زِيَادَةٌ فِي الْكُفْرِ﴾ یوکفردتوحید اودرسالت انکاردې، دویم کفردالله تعالی تحریمات باطلول دی﴿يُحِلُّونَهُ عَامًا﴾ دخپل خواهش دوجه نه یوکال محرم داشهرحل نه گرځوی اوبل کال ئ داشهرحرم نه گرزوی.

﴿لِيُوَاطِئُوا﴾ یعنی دوئ صرف شمارپوره کوی، اوصرف شمار پوره کول تعمیل حکم نه دې

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمُ انْفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ اثَّاقَلْتُمْ

اې ایمان والو [1] څه شوی دی تاسو لره چه وه ویلې شی تاسوته اوځئ تاسو په لاره د الله تعالی کښې نو درانه شئ تاسو

إِلَى الْأَرْضِ ۚ أَرَضِيتُمْ بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا مِنَ الْآخِرَةِ ۚ فَمَا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا

زمکې ته ، آیا خرج کړیدې تاسو ژوند دنیوی په بدله د آخرت کښې پس ندې سامان (نفع) د ژوند دنیوی

فِي الْآخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ ﴿٣٨﴾ إِلَّا تَنْفِرُوا يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا

په مقابله د آخرت کښې مگر کم دې که اونه وځئ تاسو جهاد له نو عذاب به درکړی تاسوته الله تعالی عذاب دردناک.

وَيَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلَا تَضُرُّوهُ شَيْئًا ۗ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٣٩﴾

اوستاسو په بدله کښې به راولی قوم سوا ستاسونه او تاسو به ضرر ونه رسوئ الله (دین) ته هیڅ، او الله تعالی په هرڅیز قادر دې

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَا لَكُمْ﴾ دادسورت دویمه حصه شروع کیږی په دې کښې ترغیب الی الجهاد، اوصاف دمجاهدینو، اوبشارات دوئ ته، اودصحابؤ رضی الله عنهم شان بیانیږی اوزجرذکرکیږی په هغه چاچه دجهادنه عمداًپاتې شوی وویاخطأ پاتې شوی وو. غزوهٔ تبوک دنبی ﷺ په غزاگانوکښې آخری غزاده نبی ﷺ چه هرکله چه دفتح مکه اوغزوهٔ حنین طائف اوطاس نه فارغ شو، په اواخرو د سنه ۸ هـ کښې، نوڅه وخت دقیام نه بعد په رجب ۹هـ کښې ئ عزوه تبوک دپاره تشریف یوړو، چه باعث ئ داوؤ، چه دشام بعض تاجرانوزیتون

1 - د سورت دویمه حصه، د دعوی د سورت (جهاد) نه مخالفت کونکو یعنی منافقینو باندې زجرونه او مؤمنانو ته بشارتونه او ترغیب الی القتال.

راوړی وو ، دتجارت دپاره مؤمنان ئ اوليدل چه بی غمه دی نودوئ اووئيل چه دملک روم بادشاه هرقل خپل يولاکهه فوجونه. دشام په سرحدتبوک مقام کښ جمع کړيدی اوديوکال تنخواه ئ مخکښ ورکړې ده اودعربو دبعض قبائلو ورسره لاز،باز،هم شته دې اوپه مدينه منوره باندې په يوخل دحملی اراده ئ ده . شام په دغه وخت کښ ددوئ حکومت زيراثرپروت صوبه وه چه غسانی بادشاه په تصرف کښ وه نونبی ﷺ صحابؤ ته اوفرمائيل چه بهتره داسې ده چه مونږ په هغوئ اقدام اوکړو ، نوصحابؤ ﷺ په دې باندې لبيک اووئيل ليکن هرکله چه دا د ډيرسخت امتحان موقعه وه ځکه چه يوخوسخته ګرمی وه، بل دقحط سالئ زمانه وه، اوفصلونه پاخه شوی وو . دکټ کولو وقت ئ راغلې وو . په صحابؤ ﷺ باندې دتيری شوی کال قرضې وې اودآئينده تول کال دخرچ دارومدار هم په کهجورو وو، اومسافت ډيرلرې وو، اوديوسخت دُشمن سره مقابله کول وو ، دغسانی بادشاه اود ملک روم د ، تجربه کار (ټرينګ شده) مسلح کثير فوجونو سره مقابله کول وو نوپه دې وجه نبی ﷺ دجهادترغيب هم ورکړو اومسلمانانو ته ئ په ښکاره طورسره اووئيل چه ددشمن دمقابلې دپاره تياري اوکړئ، اوکوم طرف ته چه تلل وو يعنی تبوک نوددغه طرف اوددُشمن نوم ئ په واضحه طورباندې ذکرکړو چه مسلمانان خپل تياري اوکړی، اوددې نه قبل به چه نبی ﷺ جهادته تللو نودطرف اوددشمن ښکاره نوم به ئ نه اخستلو ، بلکه توريه عملی اوقولی به ئ کوله، نوهرکله چه داموقعه ډيرسخته وه نوپه دې وجه مسلمانان يعنی ظاهراً مسلمانان (منافقين) اوحقيقةً مسلمانان، مختلف قسمونه شو ، اول هغه مسلمانان چه په غيردځه ترددنه جهادته دتللودپاره تيارشو، ،ودويم قسمه هغه وو چه اول په تردد کښ وو ليکن بياتيارشو ، ددی دواړو فرقوذکر په دې آيت کښ دې،((الذين اتبعوه فى ساعة العسرة من بعدما كاديزيغ قلوب فريق منهم)) دريم قسم هغه وو چه معذرين وو مالی ياجانی، قوت وسره نه وو ، څلورم قسم هغه مخلصين مؤمنين وو چه په غير دځه عذرنه پاتې شوی وو اوعتاب پرې نازل شوې وو اوډيرندامت اوحسرت نه بعد ددوئ دتوبې دقبوليت بشارت نازل شوې وو چه دهغوئ په دې آياتونوکښ ذکردې (((وأخرون اعترفوابذنوبهم ــ الاية : ۱۰۲ )) ((وعلى الثلثة الذين خلفوا ــ الآية : ۱۱۸)) پنځم قسم هغه منافقين وو چه دنفاق په وجه په غيردځه عذر نه پاتی شوی وو اوشپږم قسم هغه منافقين وو چه دجاسوسئ اوشرارت دپاره په لښکر کښ تلی وو ددی ټولوقسمونوذکر راځی دټولوتکليفونوباوجود اکثرمخلصين جهادته دتللو دپاره تيار شو، سوی دډيرلږ کسانونه

چه هغوئ ته په خپل نه تلوباندې ډیرحسرت افسوس وو. دنبی صلی الله علیه وسلم سره ډیرش زره لښکردمسلمانانو په سخته ګرمی اودفاقی په حالت کښی روان شو. دروم بادشاه هرقل ته چه هرکله دمسلمانانو ددی جذبی علم اوشو، نورعب پرې راغلو او مقابلې ته رانه غلو. اوشام والاؤ. ئې هم څه امداداونه کړو. څه زمانه نبی ﷺ یعنی شل ورځې په تبوک مقام کښې قیام اوکړو. بیاواپس شو.

**فائده (۱)**: په دې جهاد کښې نبی ﷺ دانفاق فی سبیل الله ترغیب ورکړو نوحضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ټول مال په درګاه نبوی کښې پیش کړو نبی ﷺ ترې تپوس اوکړو چه اهل عیال دپاره دې څه پریخودل، دوئ عرض اوکړو چه صرف الله اورسول، حضرت عمرفاروق ﷺ خپل نیم مال پیش کړو. دغه شان حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷺ هم ډیرمال پیش کړو مګرپه دغه وخت کښې حضرت عثمان ﷺ ډیرزیاته صدقه پیش کړه چه دټولونه زیاته وه چه درې سوه اوښان ئې دپوره سامانِ سفر نه ډک پیش کړل اوزراشرفئ نقدئ ئې پیش کړې اودغه شان ټولوصحابو ﷺ دخپل وس طاقت نه زیاته نفقه پیش کړه.

**فائده (۲)**: په تبوک کښې نبی ﷺ شل ورځې قیام کړې وو، دشمن مرعوب شو مقام ته رانه غلو. لیکن نبی ﷺ ته خواؤشاقبائل حاضرخدمت شو، اوتسلیم شو اوصلح ئې اوکړه، جزیه ورکول ئې قبول کړه، اونبی ﷺ دوئ ته صلح اولیکله اوورئ کړه، په تبوک کښې دَ دومة الجندل حاکم اوکیدر بن عبدالملک چه نصرانی سردارو و خالدبن ولید دڅلورسوه شل کسانو سره دمقابلی دپاره اولیږل حضرت خالد بن ولید ﷺ د تللو په وخت کښې نبی ﷺ ته عرض اوکړو چه زه خواوکیدرنه پیژنم نوځنګه به دهغه مقابله اوکړم نبی صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل چه هغه به ښکارکوی اوته به ئې ګرفتارکړې، لیکن قتله وئې مه. زماخواته ئې راوله، خالدرضی الله عنه چه اورسیدو دهغه مکان ته نو د سپوږمئ رڼراوه، دګرمئ موسم وو، اوکیدر دخپلې بی بی سره په چهت وو چه په دې کښې وحشی غواراغله اوددروازې ګیټ ته ئې دهیکه ورکړه، اوکیدرفوراً دخپل رور حسان اونورونوکرانو سره دښکاردپاره راکوزو شو. اوپه اس باندې سورشو، ښکارپسې ئې منډه کړه، نوحضرت خالداودده ملګری راګیرکړو، داوکیدر رورحسان مقابله شروع کړه نومسلمانانودې قتل کړو اواوکیدر ته ئې اووئیل چه تاته دقتل نه پناه درکولئ شی، په شرط ددې که ته زمونږ سره دنبی صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضریږې، نوده داخبره منظوره کړه، اودنبی صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضرشو. اوجزیه ئې قبوله کړه، دوزره اوښان اواته سوه آسونه اوڅلورسوه زغرې

اوځلور سوره نیزې دائې ورکړې اوصلح ئې اوکړه.

**فائده** (۳) واقعه دمسجد ضرارهم په دې غزوه کښې راغلې ده روستوآیت کښې ددې تفصیل راځي.

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ﴾ظاهره داده چه ددې نه مراد دوئيم قسم مؤمنان دی یعنی هغه خلق چه اول ورته ترددراغلئې وو اوبيا ترددختم شو اودجهاد دپاره ئې شرح صدر اوشوه. بعضې وائي چه ددې نه مراد منافقان دی لیکن داتوجیه بعیده معلومیږي. ﴿ٱثَّاقَلۡتُمۡ ﴾ددې نه مراد سستی کول دی په جهاد کښې. اوداپه اصل کښې (تَثَاقلتم) وو، (تاء) بدله شوه په (ثاء) سره نو ادغام اوشوپه کښې اودابتداء بالساکن دوجهې نه همزه راوړې شوه په اول کښې نو (اثاقلتم) ترینه جوړشواو دا ماضی په معنی د مضارع سره ده (ای مالکم تثاقلون)، ﴿مِنَ ٱلۡأٓخِرَةِ ﴾ من په معنی دبدل دې، یعنی په بدل دآخرة کښې. ﴿إِلَّا قَلِيلٌ ﴾ قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ماالدّنیا فی الاخرة اِلّاکما یَجۡعَلُ احدُکُم اِصۡبَعَهٗ هذه فی الیَمِّ فلینظرء بِمَا یَرۡجِعُ (مسلم) ﴿إِلَّا تَنفِرُوا ﴾دا زجراووعید دې په ترک دجهادباندې.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَّا | تَنصُرُوهُ | فَقَدۡ | نَصَرَهُ | ٱللَّهُ | إِذۡ | أَخۡرَجَهُ |

که امداد نکوئ تاسو ددې رسول نو پس په تحقیق سره امداد کړې دې ده سره الله تعالی کله چه ویستلې ووّ ده لره

ٱلَّذِينَ كَفَرُوا ثَانِيَ ٱثۡنَيۡنِ إِذۡ هُمَا فِي ٱلۡغَارِ إِذۡ يَقُولُ لِصَٰحِبِهِۦ لَا تَحۡزَنۡ

کافرانو دویم د دوؤ نه کله چه دواړه په غار کښې وؤ، کله چه وه ویل پیغمبر خپل ملګری ته مه غمژن کیږه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | ٱللَّهَ | مَعَنَا | فَأَنزَلَ | ٱللَّهُ | سَكِينَتَهُۥ | عَلَيۡهِ | وَأَيَّدَهُۥ |

بیشکه الله تعالی زمونږ سره دې، پس راولیږله الله تعالی تسلی په هغه باندې، او قوی ئې کړو ده لره

بِجُنُودٍ لَّمۡ تَرَوۡهَا وَجَعَلَ كَلِمَةَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا ٱلسُّفۡلَىٰ وَكَلِمَةُ ٱللَّهِ هِيَ ٱلۡعُلۡيَا

په داسې لښکر چه تاسو نه لیدلې او اُوګرزوله الله تعالی کلمه د کافرانو لاندې او کلمه د الله هم هغه اُوچته ده،

وَاللّٰهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿۴۰﴾

او الله تعالی زورآورد دي حکمتونو والا دي

﴿إِلَّا تَنصُرُوهُ﴾ داهم زجراوتخویف دي اوجزاء ددي مخذوفه ده، چه فسینصره الله . او ﴿فَقَدْ نَصَرَهُ اللّٰهُ﴾ دال با الجزاء دي، اوخودي جزاء نه ده ځکه چه داماضی ده. ﴿إِذْ أَخْرَجَهُ الَّذِينَ كَفَرُوا ثَانِيَ اثْنَيْنِ﴾ صیغه داسم فاعل د اسم عدد نه، چه راشی لکه ثانی ثالث . نوداکله دبیان دمرتبی دپاره وی نود **ثانی**، معنی داوی چه واقع په مرتبه دویمه کښ اوکله دتصییر دپاره وی نود **ثانی** معنی داوی چه ګرځونکی یولره دوه دوه اودثالث معنی داوی چه ګرزونکی دوؤ لره دري، وهکذا ، نوپه لفظ دثانی اوثالث کښ دمرتبی لحاظ نه وی بلکه معنی ئ داوی چه یوپه دوؤ کښ، یوپه دریؤ کښ، اودالفظ دلیل دي په دي باندي چه ددوؤ نه زیات نه وؤ، اودلیل دي په اولیتٔ دنبی ﷺ باندي یعنی نبی ﷺ اول وو اوابوبکر ﷛ دویم وو، په دي آیت کښ واقعي دهجرت ذکردي چه دهغي مختصر تفصیل دادي چه مسلمانان دمشرکینو دظلم نه ډیرتنګ شو نوهجرت ئ اوکړو، حضرت ابوبکرصدیق ﷛ هم دهجرت اراده اوکړه نودنبی ﷺ نه ئ اجازت طلب کړو چه هجرت اوکړم، نبی صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل چه ته صبراوکړه کیدي شی چه ماته هم دهجرت حکم اوشی، نوځماملګري به شي، نوحضرت ابوبکرصدیق ﷛ دوه اوښاني واغستي اوډیر ډیر اوعمده عمده خوراکونه به ئ ورته ورکول چه قوی مضبوطی شی. اخرنبی ﷺ ته هم دهجرت حکم راغي ، مشرکانو دافیصله اوکړه چه دهري قبیلی نه دي یویوکس نوجوان منتخب شی اوټول دي په یوځل په نبی ﷺ دتوروحمله اوکړی، نوبنی هاشم به دټولوقبیلو نه قصاص نه شی اغستلي اونه دټولو قبیلو سره دُشمنی کولي شی، اودیت، (خون بها) دیوکس بلکه دډیروکسانو هم ، ټولوقبائلو ته څه ګرانه نه ده، مشرکینو سل کسان منتخب کړل اودنبی ﷺ نه ئ ګیره واچوله، جبرئیل ﷺ راغلو اونبی ﷺ ئ خبرکړونبی ﷺ حضرت علی ﷛ په خپله بستره څملوؤ، ددی دپاره چه دخلقو امانتونه مالکانو ته په پوره احتیاط سره حواله کړی، اوتسلی ئ ورته ورکړه چه مشرکان ستایوویښته ته هم هیڅ نقصان نه شی رسولي اوپه خپله دمسلح دشمنانو په مینځ کي راروان شو ، دسورت یٰس اولنی آیتونه دَ (فهم لایبصرون ) پوري ئ تلاوت کړل او، (شاهت الوجوه) ئ اووئیل اوددوئ په سرونوئ

خاورې چاپېر کړې، باهرئ تشریف راوړو، اوحضرت ابوبکرصدیق ﷺ ئ دخان سره کړو په غارثورکښې داخل شو، غارثورته دننوتلو لاردیره تنګه وه، په ولاړې اوناستې سره دداخلیدلو څه صورت نه وو، صرف په څملاستو سره داخلیدل ممکن وو، نوحضرت ابوبکرصدیق ﷺ اوله په غارکښې داخل شو اوځائ ئ صفا کړو، اوپه غارکښې چه څومره سورې وو هغه ئ ټول بند کړه، ددې دپاره چه مار،لړم، نبی ﷺ ته تکلیف اونه رسوی، صرف یوسورې پاتې شو نوپه هغې کښې ئ خپله پونده کیخودله، دپوره انتظام کولونه بعد ئ نبی صلی الله علیه وسلم ته دداخلیدو درخواست اوکړو، حضور ﷺ غارته داخل شو اودابوبکر صدیق ﷺ په زنګنونوئ سرمبارک کیخود آرام ئ کولو، نوپه کوم سوری کښې چه صدیق اکبرپونده ایخودلې وه ،دهغې نه مار راووتلو اوابوبکر صدیق ﷺ ته ئ تک ورکړو اوئ چیچلو، ابوبکر صدیق ﷺ دماردزهرو تکلیف برداشت کړو اوهیڅ قسم حرکت ئ نه کوو، ددې دپاره چه دسیدالکونین صلی الله علیه وسلم په آرام کښې فرق رانه شی، اوهرکله چه دنبی ﷺ سترګی رښراشوی اودابوبکر صدیق ﷺ دتکلیف نه خبرشو دخولې مبارکې لعاب ئ دابوبکرصدیق ﷺ په پونده اولګول چه هغې سره فوراً شفاحاصله شوه، دلته کفاروچه کله نبی کریم ﷺ په بستره اونه موندلو نودحضرت علی ﷺ نه ئ تپوس اوکړو نوهغوئ ورته اووئیل چه باهرخوتاسو ولاړوئ ، تاسوته به ئ علم وی، ماته ئ علم نشته دې، نومشرکینو یوماهر قائف چه دقدمونو په نشان معلومولو کښې ډیرماهر وو، دځان سره کړو دنبی ﷺ په تلاش کښې راووتل، دغارثور پورې ئ دقدمونو نشانات معلوم کړل اودائ اووئیل چه ددې غار دخولې پورې راغلی دی اوبیاددې نه باهر نه دې وتلې، داسې معلومیږی چه په غارکښې دې، اوکله چه دوئ دغارپه خوله اودریدل نوحضرت ابوبکرصدیق ﷺ پریشان شو، اوئ وئیل چه یارسول الله که دوئ خپلو قدموته اوګوری نومونږ به اووینی نبی ﷺ ورته تسلی ورکړه اوئ فرمائیل (ماظنک باثنین ثالثهماالله) ستاڅه ګمان دې په هغه دوؤ کسانو چه دریم ملګرې ئ الله تعالی دې، اودائ ورته اوفرمائیل ﴿لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا﴾ ، نودالله تعالی دعجیب قدرت ظهوراوشو، چه ددوئ دداخلیدلو نه بعد ، دغار په خوله باندې، جولاګې ، خپله جاله جوړه کړه ، اوصحرائ کونترې هلته اګئ واچولې، نومشرکانو چه دااولیدل نودقائف تکذیب ئ اوکړو اوئ وئیل چه داجال خودمحمد ﷺ دپیدائش نه هم مخکینې معلومیږی که چرې غارته دننه څوک داخل شوې وې نودا ، ،جال، او ، ،اګئ ، ،څنګه

صحیح سالم پاتې شوې دی، کفار واپس شو اونبی ﷺ اوابوبکرصدیق ؓ په غارکښې درې ورځې تیرې کړې اوعبدالرحمن بن ابی بکر ؓ به دشپې په تیاره کښې ددوئ څنګ ته راتلو. شپه به ئې ددوئ سره تیروله، مکې والاؤ به دورځې چه ددوئ خلاف څه منصوبې جوړولې نوهغه به ئې دوئ ته بیانولې، بیابه سحر په تیاره کښې مکې ته تلو، څوک به پرې نه خبریدل اوعامربن فهیره ؓ چه دابوبکر صدیق معتق غلام وو، ده به یوه دپیووالابیزه دماسخوتن په تیاره کښې دوئ ته راوستله، دوئ به دهغې پئ استعمالول، اوبیابه سحر وختی مکې ته اورسیدواوداهل مکه ؤسره به ئې خپل څاروی څرول نوپه ده به هم څوک نه خبریدل. ددرې ورځونه بعدنبی ﷺ اوحضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه دواړو دمدینې دروانیدوعزم اوکړو، ابوبکر صدیق ؓ خوداول نه دوه اوښانې اغستې وې اوعمده خوراکونه ئې پرې خورولی وو، اوپه هغې کښې ئې یوه ناقه دنبی ﷺ په خدمت کښې پیش کړه، عرض ئې اوکړو (خذ اِحدٰی رَاحِلتیّ هاتین، قال رسول الله صلی الله علیه وسلم بالثمن). یوه ناقة رسول الله ﷺ په قیمت څکه واخسته چه په خپل مال سره دالله تعالی په لاره کښې هجرت اوشی. نوددغه دواړو اوښانو دپاره نبی ﷺ اوحضرت ابوبکر صدیق ؓ یوکس دبنی الدیل نه اجیر ګرځولې وو چه هغه ته دلارې معلومات حاصل وو، اګرکه په دغه وخت کښې دغه کس په دین دکفارو باندې وو، لیکن نبی ﷺ په ده اعتمادکړې وو، اوددغه کس سره ئې داوعده کړې وه چه درې ورځې بعدبه دادواړه اوښانی مونږ ته غارثورته رارسوی، نوهغه چه اوښانې راؤرسولې نونبی ﷺ اوابوبکر صدیق ؓ اوعامربن فهیره اودغه بل کس دبنی الدیل والا مدینې ته روان شو، په طریق دساحل البحرباندې، نوسراقه بن مالک مدلجی پرې خبرشو اوکفارودمکې چونکه ددوئ په قیدکولو یاقتل کولو باندې ډیرانعام مقرر کړې وو (یعنی سل اوښان) سراقه وائی چه زه ډیر په تیزئ سره روان شوم، نوچه نزدې شوم نوخما فرس (اس) یوټوپ اووهلو اوزه ترینه ارتاؤ شو، اوبیا راپاڅیدم نو د تیرکش نه مې غشی راؤباسل اوفال مې واچو، نوصحیح نه وو، لیکن دمال دلالچ په وجه په فال می عمل اونه کړو اوبیاروان شوم، اوقریب شوم حتی ماواؤریده قرات درسول الله ﷺ چه دوئ هیڅ طرف ته التفات نه کوؤ اوحضرت ابوبکر ؓ به هرطرف ته کتل راکتل، نوپه دې حالت کښې څما داس مخکینئ دواړه خپې په وجه کلکه زمکه کښې خخې شوې حتی چه دزنګنونو پورې په زمکه کښې ډوبې شوې، اودراوتلوئ څه صورت په نظرنه راتلو، خوچه کله دډیرکوشیش نه بعدئ خپې

رااووتلي نودلوګی په شان ګرداوعبارپه طرف داسمان ترینه ظاهرشو، نومادوباره فال واچوؤ. نوهغه بیا هم صحیح نه وو، نوپه دې وجه مې دوئ ته اوازاوکړو اوامان مې طلب کړو. نودوئ اودریدل اوزه په خپل اس باندې سورشوم دوئ ته اورسیدوم اوپه زړه کښې مې یقین راغلو چه ماته څه تکلیف راؤرسیدو، نوداددوئ په وجه رااورسیدو، اودامې یقین راغلو چه عنقریب به نبی ﷺ غلبه اوکړی اودوئ ته مې دَ سفرسامان، خوراک وغیره پیش کش اوکړ ونودوئ قبول نه کړو، اوماته ئ اووئیل، (اِخْفِ عَنَّا) یعنی دومره اوکړه چه زمونږ حال چاته مه وایه. بیاماعرض اوکړو چه یارسول الله ماته دامان خط اولیکه، نونبی ﷺ عامربن فهیره ته امراوکړو هغه ماله رقعه اولیکله اوروان شو مدینی ته ، مزیدتفصیل داحادیثو اودسیرت په کتابونو کښې دی.

﴿إِذْ هُمَا﴾ دابدل دې دماقبل (اذ) نه ﴿إِذْ يَقُولُ﴾ دهم بدل دې دماقبل نه، ﴿لِصَاحِبِهِ﴾ مراددصاحب نه ابوبکر صدیق رضی الله عنه دی اوعلماء اهل سنت وائ چه څوک منکروی دابوبکر صدیق رضی الله عنه دشرف دصحابیت نه نوهغه کافردې ځکه چه دابوبکر صدیق رضی الله عنه صحابیت په نص قطعی سره ثابت دې.

﴿لَا تَحْزَنْ﴾ هرکله چه مشرکان دغارثور په خوله اودریدل نوحضرت ابوبکر رضی الله عنه پریشان شو اوئ وئیل چه یارسول الله که چرې دوئ خپلو قدمونوته اوګوری نوموږ به اووینی نونبی ﷺ ورته اووئیل ﴿لَا تَحْزَنْ﴾ اودابوبکر صدیق رضی الله عنه پریشانئ په وجه د رسول الله ﷺ وه لکه په روایت دبخاری اومسلم کښې دی، (و اَشْفَقَ ابوبکر علی رسول الله صلی الله علیه وسلم وقال: اِنْ تُصِبِ الیوم ذهب دین الله فقال علیه السّلام مَاظَنُّکَ بِاِثْنَیْنِ اللهُ ثَالِثُهُمَا)، ﴿سَكِينَتَهُ عَلَيْهِ﴾ په ضمیر د (علیه) کښې دوه احتماله دی : یودا چه راجع شی نبی ﷺ ته اودسکینه نه مرادخاص قسم سکینه ده چه مناسبهٔ وی دشان دنبی ﷺ سره، اودویم احتمال دادې چه ضمیر راجع دې حضرت ابوبکر صدیق ﷺ ته لکه داتوجیه مروی ده دابن عباس ﷺ نه اودا قول راجح دې ، یوددی وجې نه چه اقرب المذکورات دې ځکه چه د ((صَاحِبِهِ)) نه مراد ابوبکر ﷺ دې اوبل ددې وجې نه چه خوف اوخزن حاصل وو ابوبکر ﷺ ته . نه چه نبی ﷺ ته، ځکه چه نبی ﷺ په سکون اوامن سره وو، اوبل ددې وجې نه چه که ضمیر راجع وې نبی ﷺ نو بیا داسې عبارت مناسب وو : (فانزل الله سکینته علیه فقال لصاحبه

لاتحزن) ځکه چه په دې تقدير به نبي ﷺ خائف وی اوپه خائف چه سکينه نه وی نازله شوی نوبل چاته به څه تسلی ورکړی،﴿ وَأَيَّدَهُۥ بِجُنُودٍ ﴾ داعطف دې په (نصره الله) باندې. اومراددجنود نه ملائکه دی، اوداتائيد په جنود سره عام دې په غارثور. بدر. احزاب. حنين. اوپه ټولو مواطنو دقتال کښ دې، ﴿ كَلِمَةَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ﴾ ددې نه مراددعوت الى الکفردې ياهغه منصوبه ده چه دوئ دنبی صلی الله عليه وسلم دقتل يادقيدکولو دپاره جوړه کړی وه په دارالندوی کښ ﴿ وَكَلِمَةُ ٱللَّهِ ﴾ددې نه مراد کلمه دتوحيد ده يادعوت الى الايمان دې ياترينه مرادهغه وعده ده چه الله تعالى دخپلوانبياؤ سره کړيده لکه په دې قول دالله تعالى کښ ((ولقدسبقت کلمتنا لعبادناالمرسلين انهم لهم المنصورون وان جندنا لهم الغلبون)) .

**فايده** : اهل سنت په دې آيت سره استدلال کوی په افضليت دحضرت ابوبکرصديق ؓ په څووجوه سره، (۱) په دې آيت کښ عتاب دې مؤمنانو ته سوی دابوبکر صديق ؓ نه . روايت کړې دې ابن عساکر د سفيان بن عيينه نه چه عتاب ورکړيدې الله تعالى ټولو مسلمانانو ته په باره د نبی کريم ﷺ کښ سوئ، د ابوبکر ؓ نه، اودحسن ؒ نه روايت دې چه عتاب ورکړې دې الله تعالى ټول اهل الارض ته په غيرد ابوبکر ؓ نه، اوابن عساکر دحضرت علی ؓ نه روايت کړيدې چه الله تعالى ذم کړيدې دټولو انسانانو اومدح ئ کړې ده دابوبکر ؓ (۲) هجرت په امردالله تعالى سره وو اوالله تعالى دصحبت فی الهجرت دپاره حضرت ابوبکر صديق ؓ منتخب کړو حالانکه نبی ﷺ ته په نسب کښ دحضرت ابوبکرصديق ؓ نه زيات اقرب نورحضرات هم موجود وو نومعلومه شوه چه ابوبکر صديق ؓ الله جل جلاله ته ډيرمحبوب وو، حاصل داچه دابوبکر ؓ انتخاب دصحبت دپاره په هجرت کښ داانتخاب الهی دې نودادليل دافضليت دې، (۳) لفظ دثانی اثنين دلالت کوی په افضليت باندې، ځکه چه د، ،اثنين، نه مراد يوذات درسول الله ﷺ اودويم دهغه مقرب ترين اومخلص ترين ملګرې مراددې ، بلکه بعض علماء وائ چه په دې کښ اشاره ده دې ته چه بعددنبی ﷺ نه خليفه اول ابوبکر ؓ دې، لان الخليفة لايکون ابداً الاثانياً، (قرطبی) (۴)﴿ إِذْ هُمَا فِى ٱلْغَارِ ﴾ دا واضح دلالت کوی چه په داسې سخته موقعه کښ دوستی اوصحبت نه

ختمول دليل دكمال تعلق اومحبت دي، (۵) ﴿لِصَاحِبِهِ﴾ څكه چه ددې نه ديني مخکين ملګرتيا مراده ده څكه دغارصحبت خوپه ماقبل كښ ذكرشوې دې(۶)﴿لَا تَحْزَنْ﴾ دادلالت كوي په كمال محبت باندې څكه داتسلي ده ابوبكر صديق ؓ ته ، لكه په روايت دبخاري وغيره كښ دي اشفق ابوبكر صديق ؓ على رسو ل الله ﷺ وقال انْ أُصِيبَ اليومَ ذهب دينُ الله، اوتسلي محبوب ته وركولې شي لكه الله تعالى خپل حبيب ته تسلي وركړې ده ولاتحزن عليهم. نومعلومه شوه چه حضرت ابوبكر صديق ؓ حبيبُ حبيب الله دې.

(۷) ﴿إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا﴾ څكه مراد دمعيت نه معيت دنصرت اودمعونة دې اونبي ﷺ حضرت ابوبكر صديق ؓ دخپل ځان سره په دې معيت كښ شريک كړو اودادېرلوئ فضيلت اومنقبت دې

ملعون شيعه ګان، دلته څه خرافات وائ اواعتراضونه كوي(۱) نبي ﷺ (معاذالله) حضرت ابوبكر ؓ دخپل ځان سره په سفرد‌هجرت كښ په دې وجه ملګرې كړې وو چه که پاتې شي نو څماخلاف به منصوبې جوړې كړي اوشربه جوړكړي نوددفع دشردپاره ئ دځان سره روان كړه

**جواب** كه څوک زنديق په باره دصديق اكبررضى الله عنه كښ دغه ګمان كوي نوصديق رضي الله عنه ته خودېرخه موقعه اوفرصت ملاؤشوې وو په غاركښ نوكفارو دمكي ته به ئ وئيلي وو چه زه خوددي مقصدد‌پاره دمكي نه دمحمد ﷺ ملګرې شوې يم راشئ قتل ئ كړئ يابه ئ دخپل څوئ عبدالرحمن په واسطي سره يادعامربن فهيره په واسطي سره يادخپل لور اسماء رضي الله عنهاپه واسطي سره اهل مكه خبركړي ووو اودېر اعزاز اوانعام بهٔ ورته دكفارو دطرف نه ملاؤ شوې وو، اوكه دغه شان بدګمانئ په باره دصديق ؓ كښ جوړيدلې شي نو(معاذالله) په باره دحضرت علي ؓ كښ هم جوړيدلې شي، چه نبي ﷺ په خپله بستره څكه څملؤ چه كفارراشي قتل ئ كړي، اوماته شرجورنه كړي.

(۲) ﴿ثَانِيَ اثْنَيْنِ﴾ په فضيلت دلالت نه كوي څكه ددې نه صرف دامعلوميږي چه ابوبكررضي الله عنه متمم دعدددې اوپه فضيلت هيڅ دلالت نه كوي.

**جواب** دلالت دثاني اثنين په فضيلت باندې په قرينه دمقام سره دې څكه عادت په دې جاري دې چه څوک چه ددُشمن نه تختي ، نودځان سره، داسې دويم كس ملګرې كوي چه

پوره پوره اعتمادئ پرې وی، نوثانی اثنین، په قرینه دمقام سره په دې دلالت کوی چه دنبی صلی الله علیه وسلم پوره پوره اعتماد ووپه ابوبکر صدیق ﷺ اودې ئ خاص ملګرې وو

(۳) د﴿إِذْ هُمَا فِي الْغَارِ﴾ نه فضیلت نه معلومیږی صرف اجتماع په یومکان کښ ترینه معلومیږی اوپه یومکان کښ اجتماع دصالح اوغیرصالح راتلې شی.

**جواب** په معونة دمقام سره ترینه فضیلت معلومیږی لکه مخکښ ذکرشو.

(۴)﴿إِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهِ﴾داپه فضیلت دلالت نه کوی څکه صحبت په مابین دمؤمن اوکافرکښ هم راتلې شی لکه په دې قول دالله تعالی کښ، ﴿ قَالَ لَهُ صَاحِبُهُ وَهُوَ يُحَاوِرُهُ ﴾ . یالکه په دې قول دالله تعالی کښ ﴿ يَٰصَٰحِبَيِ ٱلسِّجْنِ ﴾ بلکه په مابین دعاقل اوغیرعاقل کښ هم راتلې شی قال الشاعر شعر :

ان الحمار مع الحمير مطية	واذاخلوت به فبئس الصاحب

**جواب** : صاحب په معنی لغوی سره په شرافت دلالت نه کوی لیکن دلته مرادپه قرینه دمقام سره اوپه قرینه داضافت سره ضمیرته چه دااضافت دعهددپاره دې، دلالت په فضیلت کوی یعنی هغه خاص ملګرې چه په ډیره سخته موقعه کښ ئ ملګرتیا نه ده پریخودلې اوهغه ملګرې چه دخپل اهل اوقبیلی نه اواقاربونه ئ جدائ اختیارکړې ده اودخپل پیدایش اودسکونت وطن ئ دنبی ﷺ دملګرتیا دپاره پریخودلې دې (وهوالصدیق الاکبررضی الله عنه وارضاه)

(۵) ﴿لَا تَحْزَنْ﴾، په فضیلت دلالت نه کوی، څکه چه په دې کښ صرف نهی ده، دحزن نه، نوحزن به یاطاعت وی یابه معصیت وی نوطاعت خونه دې څکه که طاعت وې نوالله تعالی به ترینه نهی نه وه کړی اوکه معصیت وی نوداخوفضیلت نه دې بل داچه ددې نه جبن، بزدلی معلومیږی نوداخوفضیلت نه دې.

**جواب** : حزن دغیر اختیاری امورونه دې نوداپه خپله معصیت یاطاعت نه دې، اونهی دامورواختیاریو نه کیدې شی، نود «لَاتَحْزَنْ»، نه حقیقتًا نهی نه ده مراد بلکه مقصودترینه تسلی ده، اوتسلی محبوب ته ورکولې شی ، اونهی دحزن نه دلیل دجبن اودبزدلئ هم نه دې څکه چه الله تعالی خپل حبیب ته فرمائ : ((ولايحزنک قولهم ان العزة لله جميعاً)) دغه شان خوف طبعی دلیل، دجبن نه دې څکه داانبیاؤ ته لاحق شویدې، الله تعالی موسی ﷺ

اوهارون ﷺ ته فرمائ ((لاتخافا انني معكما)) نوپه سيدالكونين ﷺ باندې اودارنګه په
نوروانبياؤ څوک داسې الزام نه شي لګولي چه دوئ ارتکاب دمعصيت کړې وؤ يابزدل وو.
نودغه شان چه صديق اکبر ﷺ باندې هم دغه الزام لګول دعداوت اوشقاوة نه علاوه بل هيڅ
نه دی نولکه چه الله تعالى خپل حبيب ته تسلی ورکړې ده په دې قول سره ﴿وَلَا يَحْزُنكَ
قَوْلُهُمْ﴾ نو دغه شان نبی کريم ﷺ هم خپل حبيب حضرت ابوبکر صديق ﷺ ته تسلی ورکړيده
په ﴿لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا﴾ سره. نوحضرت ابوبکر ﷺ حبيبُ حبيب الله شو.((وذالك
فضل الله يؤتيه من يشاء)).

| |
|---|
| انْفِرُوْا خِفَافًا وَّثِقَالًا وَّجَاهِدُوْا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ |
| اوځئ جهاد له که سپك يئ او که درانه او جهاد کوئ په مالونو خپلو سره او په نفسونو خپلو سره په لاره د الله تعالى کښې |
| ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝ لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيْبًا وَّسَفَرًا قَاصِدًا |
| دا ډيره فائده ده ستاسو لپاره که تاسو پوهيږئ . که وې (غزوه د تبوك) سامان آسان حاصليدونکې او سفر درميانه |
| لَّاتَّبَعُوْكَ وَلٰكِنْۢ بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ الشُّقَّةُ ۚ وَسَيَحْلِفُوْنَ بِاللهِ |
| خامخا به دوئ تلی وې ستا سره ليکن لرې شوې دې په دوئ باندې سفر، او زر ده چه قسمونه به کوی دوئ په الله تعالى |
| لَوِ اسْتَطَعْنَا لَخَرَجْنَا مَعَكُمْ ۚ يُهْلِكُوْنَ أَنْفُسَهُمْ ۚ |
| که طاقت لرلې مونږ خامخا به وتلی وې مونږ تاسو سره ، هلاکوی دوئ ځانونه خپل (په دروغ قسم) |
| وَاللهُ يَعْلَمُ إِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ۝ |
| او الله تعالى عالم دې چه بيشکه دوئ خامخا دروغژن دی |

﴿انفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا﴾ داحکم دجهاددې سره دترغيب الى الجهاد نه. د ((خفافاً)) معنى
داده چه په داسې حال کښې چه اسان دی په تاسو باندې تلل جهادته، او ((ثقالاً)) معنى داده چه
ګران وی اومشکل وی په تاسو باندې تلل جهاد ته، او د دې په تفسير کښې ډيراقوال دی.
راجح معنى داده چه لګ اسلحې والا اوډيرى اسلحې والا يعنى داسلحې دکم والى زيات والى

لحاظ مه کوئ بلکه په هرحالت کښې جهاد ته ځئ اویوتفسیر ئ داکړې شویدې چه فقیران، اواغنیاء اوتندرست، مریضان ټول جهاد ته ځی، په دې تقدیر دا آیت منسوخ دې اودابن عباس ﷺ نه روایت دې چه نشاطًا وغیره نشاط، یعنی که زړه غواړی اوکه نه غواړی، خوشدلئې ،بیدلې دواړوحالتونو کښې جهادته ځی، اویوتفسیر ئ داکړې شویدې ځوانان، بوډاګان، ﴿بِأَمْوَٰلِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ یعنی جهادپه خپلومالونو نفسونوسره کوئ دااعلی درجه ده، لیکن داعلاء دکلمة الله دپاره ئ کوئ،﴿لَوْ كَانَ عَرَضًا﴾ په دې کښې دهغه منافقینو ذکردې چه دجهاد نه پاتې شوی وو، ضمیر په (لوکان) کښې راجع دې ((ماتدعوهم)) ته په قرینه دمقام سره اوعرض سامان ددنیاته وئیلې شی ځکه چه داعارضی څیزونه دی دوام بقاء نه لری په شان دعرض په مصطلح دمنطقیانواوپه حدیث کښې دی:(الدنیا عرض حاضریاکل منه البرّ والفاجر)، اود ﴿قَرِيبًا﴾ نه مراد قریب الحصول سهل الماخذ دې ، ﴿وَسَفَرًا قَاصِدًا﴾ یعنی سفر درمیانه وې ډیر طویل سفر نه وې نوکه چرې داسې وې نودوئ به ضرورستا اتباع کړې وې ﴿وَلَٰكِنۢ بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ ٱلشُّقَّةُ﴾ شُقة، هغه مسافت ته وئیلې شی چه په مشقت سره قطع کولې شی، ﴿وَسَيَحْلِفُونَ﴾ سین داستقبال قریبه دپاره دې اوداچونکه سفری آیاتونه دی نوځکه سین ذکرشو، ﴿يُهْلِكُونَ أَنفُسَهُمْ﴾ددې نه معلومه شوه چه دروغ اوددروغو قسمونه سبب دهلاک اودایقاع فی النار دې.

| عَفَا ٱللَّهُ عَنكَ لِمَ أَذِنتَ لَهُمْ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكَ ٱلَّذِينَ |
| --- |
| معافی کړیده تاته الله تعالی ولې اجازت ورکړو تا دوئ ته، تر هغې چه ښکاره شوی وې تاته هغه کسان |
| صَدَقُوا۟ وَتَعْلَمَ ٱلْكَٰذِبِينَ ۝ لَا يَسْتَـْٔذِنُكَ ٱلَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ |
| چه ریښتیا وائی او پیژندلې وې تا دروغجن. اجازت نه غواړی ستا نه هغه کسان چه ایمان لری په الله تعالی |
| وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ أَن يُجَٰهِدُوا۟ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ ۗ |
| او په ورځ د آخرت (په پرېښودلو دجهاد کښې) چه جهاد وکړی دوئ په مالونو خپلو او نفسونو خپلو سره |

| |
|---|
| وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالْمُتَّقِيْنَ ۝ اِنَّمَا يَسْتَاْذِنُكَ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ |
| او الله تعالی عالم دې په متقیانو باندې . بیشکه اجازت غواړي ستا نه (په ترك د جهاد كښې) هغه كسان چه ایمان نه لري |
| بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَارْتَابَتْ قُلُوْبُهُمْ فَهُمْ فِيْ رَيْبِهِمْ يَتَرَدَّدُوْنَ ۝ |
| په الله تعالی او په ورځ د آخرت او په شك كښې پراته دی زړونه دهغوئ پس دوئ په خپل شك كښې ګوډ سرګردان دی |

﴿عَفَا اللّٰهُ عَنْكَ لِمَ اَذِنْتَ لَهُمْ﴾ عمروبن میمون وائ چه داعتاب لطیف دې یعنی عتاب په نرمی لهجې سره دې نبی ﷺ ته لکه په بدرکښې چه دأساری (قیدیانو) نه په فدیه کښې اخستلو باندې عتاب نازل شوې وو نودلته منافقینو ته په اجازت ورکولو سره عتاب لطیف نازل شو او لطیف ځکه دې چه الله تعالی د عفو ذکر اول کړې دې او بیا ئ عتاب ذکرکړې دې، منافقینو به نبی ﷺ ته ددروغو عذرونه پیش کړل اودجهادنه دپاتی کیدلواجازت به ئ طلب کړو نونبی ﷺ به دعالی اخلاقو په وجه ددوئ دورغو اونفاق نه اعراض اوکړو اواجازت به ئ ورکړو نوپه دې باندې داآیت نازل شو اوقاضی عیاض وئیلی دی چه داعتاب نه دې ځکه چه الله تعالی تراوسه پوری نهی نه وه نازله کړې نو (عفا) په معنی دمغفرت سره نه دې بلکه په معنی د (لم یلزم) سره دې لکه په حدیث کښې دی، (عفاالله لکم عن صدقة الخیل والرقیق) یعنی الله تعالی په تاسو باندې صدقة الخیل اودغلامانو نه ده لازمه کړې، نودلته معنی داشوه چه په تاخه لزوم نشته ، اوونیلی دی مکی چه دااستفتاح دکلام ده ، اومحض ددعااوتعظیم دپاره ده، لکه په عربی محاوره کښې وئیلې کیږی (اصلح الله الامیر، والملك ) اوپه حدیث کښې دی : (رحم الله لوطًا لقدکان یاوی الی رکنٍ شدید)، ﴿وَتَعْلَمَ الْكٰذِبِيْنَ﴾ یعنی که تادوئ ته اجازت دپاتی کیدلونه وې ورکړې نودوئ بیاهم جهادنه تلل، خوصرف تاته به معلوم شوې وې کردار دمنافقینو، ﴿لَا يَسْتَاْذِنُكَ الَّذِيْنَ﴾ په دې آیت کښې دصفاتو دمؤمنو ذکر دې چه دوئ په غیر داجازت نه نه پاتی کیږی دجهادنه، اومنافقین په غیر داجازت نه پاتی کیږی، دلته **سوال** واردیږی چه داآیت په ظاهر کښې معارض دې دسورت نوردآیت ۲۲ سره ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَاْذِنُوْنَكَ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ﴾ ، یعنی اجازت غوښتل دایمان علامه ده اودلته دی چه ﴿اِنَّمَا يَسْتَاْذِنُكَ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ﴾ ، **جواب** دادې چه دلته دخاصې واقعې ذکردې

یعنی په دې خاصه واقعه کښې چه غزوه تبوک ده اجازت غوښتل دلیل دعدم ایمان دې اوپه سورت نورکښې دعام قانون ذکردې، **دویم جواب** دادې چه دلته مراد اجازت غوښتل دی دپاره دپریخودلو دجهاد اوپه سورت نورکښې اجازت غوښتل مراد دی دپاره درخصت کیدلو دمجلس دوعظ او بیان دنبی صلی الله علیه وسلم نه ﴿وَارْتَابَتْ﴾صیغه دماضی دلالت کوی په شدت دشک ددوئ ﴿يَتَرَدَّدُونَ﴾ یعنی حیران دی چه دمؤمنانو سره شی اوکه دکفارو سره شی.

| |
|---|
| وَلَوْ أَرَادُوا الْخُرُوجَ لَأَعَدُّوا لَهُ عُدَّةً وَلَٰكِن كَرِهَ اللَّهُ |
| اوکه دوئ نیت لرلې د وتلو جهاد ته خامخا به دوئ تیارې کړې وې هغې لره د سامان. لیکن ناپسند وؤ الله تعالی ته |
| انبِعَاثَهُمْ فَثَبَّطَهُمْ وَقِيلَ اقْعُدُوا مَعَ الْقَاعِدِينَ ۞ |
| پورته کیدل د دوئ «دجهاد لپاره»پس منع ئ کړل دوئ لره «د تللونه جهاد ته» او ویلې شوی دوئ ته کینئ د کیناستونکو سره |
| لَوْ خَرَجُوا فِيكُم مَّا زَادُوكُمْ إِلَّا خَبَالًا وَلَأَوْضَعُوا |
| که دوئ وتلې وې په لښکر ستاسو کښې نه به وؤ زیات کړې دوئ تاسو لره مګر نقصان او خامخا منډې به وهلې وې دوئ |
| خِلَالَكُمْ يَبْغُونَكُمُ الْفِتْنَةَ وَفِيكُمْ |
| په مینځ ستاسو کښې په چغل خورئ سره غواړی دوئ په تاسو کښې فتنه «اختلاف»، او په لښکر ستاسو کښې |
| سَمَّاعُونَ لَهُمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ ۞ |
| جاسوسان د دوئ شته دې ، اوالله تعالی عالم دې په ظالمانو باندې |

﴿وَلَوْ أَرَادُوا الْخُرُوجَ﴾ یعنی دمنافقینو جهادته دتللواراده نه وه ځکه چه که چرې اراده ئ وې نوچه حکم دجهادراغلو نودوئ به جهادت ته دتللو تیارې کړې وې لیکن دوئ دجهادحکم چه واوریدو نوددروغو دعذرونو دپاره ئ منډې وهل شروع کړل،﴿وَلَٰكِن كَرِهَ اللَّهُ﴾یعنی ددوئ جهادته تلل الله تعالی ته خوښ نه وو، نوتوفیق ئ ورته ورنه کړو نو معلومه شوه چه د بنده په ګناه بورې هم اراده د الله تعالی متعلقه ده، او نیکی په توفیق دالله تعالی

سره کیږی دَ (انبعاث) نه مراد خروج للجهاددې او ﴿فَثَبَّطَهُمْ﴾ په معنی دَ حَبس سره دې ﴿وَقِيلَ اقْعُدُوا﴾ ددې نه مراد یاقول اوحکم تکوینی دالله تعالی دې یاترینه مراد قول درسول الله ﷺ اودصحابؤ دې منافقانو ته په طور دپیغورسره ځکه مراد دقاعدینو نه ،زنانه ، ماشومان گوډان، رانده، دی ،یعنی دجهادنه پاتی کیدونکی په شان دزنانؤماشومانو دی.

﴿ لَوْ خَرَجُوا فِيكُمْ ﴾یعنی که داغټ غټ منافقان وتلې وې په لښکرکښ نودوئ به زیات فساد کړې وو.مراد ترینه سستی بزدلی ده یعنی ددوئ دبزدلئ اوسستئ په وجه به نور مجاهدین سست شوي وې، ﴿ خَبَالًا ﴾ شراوفساد ته وائ اواستثناء په (الاخبالاً) کښ یامتصله ده که موصوف ورته ((شیئًا من الاشیاء)) مقدرشی، یامنقطع ده که موصوف ئ ((خیراً)) مقدرشی. ﴿وَلَأَوْضَعُوا خِلَالَكُمْ ﴾ لام دتاکیددې (اَوضَعُوا) د ایضاع نه مشتق دې (اسراع سیر الابل) یعنی په تیزئ سره اوښان (او آسونه) چَلولوته وائ، خِلل ظرف دې په معنی د (بَیْن) سره او مفعول د (اوضعوا) مقدر دې چه (النمائم) دې یعنی جلت جلت به گرځیدلی وو په چغلئې سره، اوخامخا به ئ منډې وهلی وې په چغلخورئ سره په مینځ ستاسوکښ، نوپه دې کښ استعاره مکنیه ده، ځکه چه تشبیه ورکړې شوه دچغلئې داوښانو سره په منډو وهلوکښ اوایضاع ئ ورته ثابته کړه په طریقه داستعارې تخیلیه سره او﴿يَبْغُونَكُمُ الْفِتْنَةَ ﴾ جمله حالیه ده په داسې حال کښ چه طلب کوؤ ئ ستاسوپه مینځ کښ فساد ﴿ وَفِيكُمْ سَمَّاعُونَ ﴾ یعنی اوس هم څه منافقان جهادته دجاسوسئ اوشرارت په غرض تلی دی، اگرکه دوئ څه شر فسادنه شی کولې، بلکه په یوحیثیت سره ددوئ تلل مفیددی هغه داچه دوئ به مشاهده اوکړی، دمسلمانانو دبهادرئ، اودډیرمضبوط عزم، نوددوئ په زړونوکښ به دمسلمانانو هیبت اورعب قائم شی، که څوک **سوال** اوکړی چه هرکله ددوئ تلل جهادته مضروو نوولی ورته حکم دتللو اوشو اوپه نه تلو باندې وعیدراغلو. **جواب** جهاد ته دتللو حکم امرتشریعی دې اوجهادته دتللو توفیق نه ملاویدل تکوینی امردې اودتکوینی امر اودتشریعی امرمخالفت راتلې شی، یادوئ ته حکم دجهاد لالزم الحجة، یالاظهار النفاق دې.

لَقَدِ ابْتَغَوُا الْفِتْنَةَ مِنْ قَبْلُ وَقَلَّبُوا لَكَ الْأُمُورَ

خامخا په تحقيق سره غوښتلي وه دوئ فتنه مخکښې د دينه اوجوړ کړی ئ وؤ ستا په خلاف ډير تدبيرونه

حَتَّىٰ جَاءَ الْحَقُّ وَظَهَرَ أَمْرُ اللَّهِ وَهُمْ كَارِهُونَ ۝ وَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ

تر دې چه راغې حق او ښکاره شو دين د الله تعالى او دوئ بد ګڼړی او بعضې د دوئ نه هغه څوك دی چه وائی

ائْذَنْ لِي وَلَا تَفْتِنِّي ۚ أَلَا فِي الْفِتْنَةِ سَقَطُوا ۗ

اجازت راکړه ما ته د پاتې کيدلو اومه اچوه ما په فتنه کښې، خبردارشئ په فتنه کښې دوئ غورزيدلی دی.

وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةٌ بِالْكَافِرِينَ ۝ إِنْ تُصِبْكَ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ ۖ وَإِنْ تُصِبْكَ

اوبيشکه جهنم خامخا راګيرونکې دې کافرانو لره که ورسی تاته خوشحالی نو خفه کوی دوئ لره اوکه ورسی تاته

مُصِيبَةٌ يَقُولُوا قَدْ أَخَذْنَا أَمْرَنَا مِنْ قَبْلُ وَيَتَوَلَّوا

مصيبت وائی دوئ په تحقيق سره نيولې وه مونږ لار د مصلحت او د احتياط خپل مخکښې او اوګرزی دوئ ستاسو نه

وَهُمْ فَرِحُونَ ۝ قُلْ لَنْ يُصِيبَنَا إِلَّا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَنَا ۚ

اوحال دا چه دوئ خوشحالی کوی. ته ووايه چه هيڅ کله نه رسی مونږته مګرهغه څه چه مقرر کړيدی الله تعالی مونږ لره.

هُوَ مَوْلَانَا ۚ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ۝ قُلْ هَلْ تَرَبَّصُونَ

هغه مولی زمونږ دې او خاص په الله دې خپل ځان وسپاری مؤمنان. ته او وايه چه انتظار نه کوئ تاسې

بِنَا إِلَّا إِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ ۖ وَنَحْنُ نَتَرَبَّصُ بِكُمْ أَنْ يُصِيبَكُمُ اللَّهُ

په باره زمونږ کښې مګر د يو د دوه خوشحالو نه، او مونږ انتظار کوؤ ستاسو په باره کښې چه وبه رسوی الله تعالی تاسو ته

بِعَذَابٍ مِنْ عِنْدِهِ أَوْ بِأَيْدِينَا ۖ فَتَرَبَّصُوا إِنَّا مَعَكُمْ مُتَرَبِّصُونَ ۝

عذاب د خپل طرف نه يا په لاسونو زمونږ، پس تاسو انتظار کوئ مونږ ستاسو سره انتظار کوونکی يو

﴿لَقَدِ ٱبْتَغَوُا۟ ٱلْفِتْنَةَ مِن قَبْلُ﴾منافقانو دغزوه تبوک نه قبل هم په احد ، حنين وغيرهما مواطنو کښ دشرارت اودفساد کوشش کړې وو ، ﴿وَقَلَّبُوا۟ لَكَ ٱلْأُمُورَ﴾اوستاخلاف ئ ډيرې منصوبې سوچ کړې وې اوستادقتل دپاره ئ وخت په وخت تدبيرونه جوړ کړې وو ، ﴿حَتَّىٰ جَآءَ ٱلْحَقُّ﴾ يعنى تائيد اونصرت الهى راغلو ، ﴿وَظَهَرَ أَمْرُ ٱللَّهِ﴾ اوغالب شو دين دالله تعالى اودوئ پرې په زړه کښ ناخوښه، وو، دامذکور صفات دمنافقينودى، يعنى شرارت اوفسادجوړول اودحق اوداهل حق خلاف منصوبې جوړول اودحق په ظهور اوغلبه باندې خفه کيدل ،﴿وَمِنْهُم مَّن يَقُولُ﴾ داهم زجردې منافقينو ته يومنافق چه دهغه نوم جدبن قيس وو نبى ﷺ ده ته دعوت ورکړو جهادته دتللودپاره ورته ئ اوفرمائيل (هل لک فى قتال بنى الاصفر)، يعنى درومیانو سره دقتال شوق دې شته؟ نوده په خپل نفاق اوجبن باندې دتقوى پرده واچوله اوئ وئيل چه زه عاشق مزاج يم اودروميانو زنانه ډيرې حسينى جميلې دى نوکه زه ئ اووينم نوصبربه نه شم ترينه اوپه فتنه کښ به واقع شم نويارسول الله ماپه فتنه کښ مه اچوه، الله تعالى فرمائى چه په فتنه کښ خو دوئ واقع شوى دى په سبب دمخالفت کولو درسول الله ﷺ نه اودکفر اودنفاق په وجه دجهنم په کندوکښ غورزيدلى دى اوجهنم په دوئ احاطه کړې ده، ﴿إِن تُصِبْكَ حَسَنَةٌ﴾ دا دمنافقينو بل خصلت اوصفت دې، چه اهل حق ته چه خوشحالى اورسى نودوئ پرې خفه کيږى اوکه تکليف اورسى نو دوئ خوشحاله شى اوپه فخر سره وائ﴿قَدْ أَخَذْنَآ أَمْرَنَا﴾ دوئ په خپله رائ فخر کوى چه مونږ (دوراندیش) هوښياران يونومونږ مخکښ تدبير کړې وو اود احتياط لارموخپله کړې وه.

﴿قُل لَّن يُصِيبَنَآ إِلَّا مَا﴾يعنى تکليفونه اوخوشحالئ خومقدر دى نوکوم تکليف چه په تقديرکښ ليکلې شوې وى نوهغه به په هرچاباندې راځى، نافرمان وى اوکه فرمان بردارو ى ليکن فرق دادې چه څوک فرمان بردارو ی نودهغه تکليف ذريعه ګرځى دآخرت د ابدى خوشحالئ دپاره اوکله ددنيا دخوشحالئ ذريعه هم اوګرزى اونافرمان په خساره اونقصان د دارينو کښ وى نوتاسو زمونږ په باره کښ د ﴿إِحْدَى ٱلْحُسْنَيَيْنِ﴾ اميد اوانتظاراوکړئ، يابه مونږ ته دالله تعالى په لارکښ شهادت حاصل شى اودادآخرت ابدى خوشحالى ده، يابه فتح حاصله شى نودواړه خوشحالئ به ملاؤشى په حديث کښ راغلى دى، (تکفل الله لمن جاهدفى

سبیله لایخرجه من بیته الاالجهاد فی سبیله وتصدیق کلمته ان یدخله الجنة اویرجعه الی مسکنه الذی خرج منه مع مانال من اجر اوغنیمة) ﴿وَنَحْنُ نَتَرَبَّصُ بِكُمْ﴾ددې نه روستو احدی السؤنتین مقدردې دهغې تفصیل دادې ﴿أَن يُصِيبَكُمُ اللَّهُ بِعَذَابٍ مِّنْ عِندِهِ﴾ددې نه مرادهغه عذاب دې چه مونږ په کښې سبب نه یو، لکه داسمان نه قارعه نازله شي، ﴿أَوْ بِأَيْدِينَا﴾ ددې نه مرادهغه عذاب دې چه مونږ په کښې سبب یو ، لکه قتل، قید، وغیره.

| |
|---|
| قُلْ أَنفِقُوا طَوْعًا أَوْ كَرْهًا لَّن يُتَقَبَّلَ مِنكُمْ ۖ إِنَّكُمْ كُنتُمْ قَوْمًا فَاسِقِينَ ۝ |
| ته ووایه خرج کوئ په خوښه یا په ناخوښه هیڅ کله به قبول نه کړې شي ستاسونه، بیشکه تاسو یئ قوم نافرمان |
| وَمَا مَنَعَهُمْ أَن تُقْبَلَ مِنْهُمْ نَفَقَاتُهُمْ إِلَّا أَنَّهُمْ كَفَرُوا |
| او ندی منع کړی دوئ لره د دینه چه قبول کړې شي د دوئ نه خیراتونه د دوئ مګر دې خبرې چه دوئ کفر کړیدې |
| بِاللَّهِ وَبِرَسُولِهِ وَلَا يَأْتُونَ الصَّلَاةَ إِلَّا وَهُمْ كُسَالَىٰ |
| په الله تعالی او په رسول دهغه اونه راځی دوئ مانځه ته مګر په داسې حالت کښې چه دوئ ناراست دی |
| وَلَا يُنفِقُونَ إِلَّا وَهُمْ كَارِهُونَ ۝ فَلَا تُعْجِبْكَ أَمْوَالُهُمْ |
| اونه خرج کوی دوئ مګر په داسې حالت کښې چه بد یئ ګڼړی . پس په تعجب کښې دې وانه چوی تا لره مالونه د دوئ |
| وَلَا أَوْلَادُهُمْ ۚ إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُم بِهَا |
| اونه اولادونه د دوئ، بیشکه غواړی الله تعالی چه په دې دیر والی د مالونو اولادونو سره عذاب ورکړی دوئ لره |
| فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَتَزْهَقَ أَنفُسُهُمْ وَهُمْ كَافِرُونَ ۝ |
| په ژوند د دنیا کښې او وځی روحونه د دوئ په داسې حال کښې چه دوئ کافر وی. |

﴿قُلْ أَنفِقُوا﴾ جدبن قیس منافق داهم وئیلی وو چه زه خوبذات خوددرومیانو سره دجهادکولودپاره نشم تلې، البته مالی اعانت کولې شم نودا آیت نازل شو چه دمنافقینو انفاق نه قبلیږی. ((انفقوا)) صیغه دامرده لیکن دلته انشاء په معنی داخبارسره دې یعنی که تاسو انفاق طوعًا کوئ اوکه کراهًا کوئ نو په هرصورت کښې نه قبلیږی . دطوعًا انفاق توفیق دوئ

نه نه ملاويږي لکه په مابعد آيت کښې دي ﴿وَلَا يُنفِقُونَ إِلَّا وَهُمۡ كَٰرِهُونَ﴾ ليکن که بالفرض دوئ انفاق طوعًا، په خپلې رضامندئ سره اوکړي نوبياهم دکفر اونفاق دعقيدې په وجه . ددوئ نفقه نه قبليږي لکه په دې مابعدآيت کښې دي.﴿ وَمَا مَنَعَهُمۡ أَن تُقۡبَلَ ﴾ يعنې ددوئ دانفاق دقبوليت نه مانع بل څه نشته دې سوې دکفرددوئ نه په الله تعالى اورسول الله ﷺ باندې .

﴿إِلَّآ أَنَّهُمۡ كَفَرُواْ﴾ دا په تاويل دمفرد سره فاعل د (منع) دپاره دې. او (هم) ئ مفعول دې او﴿ أَن تُقۡبَلَ ﴾يابدل دې د (هم) نه نومعنې داشوه چه مانع نه دې دوئ لره يعنې قبول دنفقاتوددوئ لره مګرکفر ددوئ. يا ((ان تقبل)) مفعول ثانى دې دمَنَعَ دپاره. په تقدير د (من سره. ځکه (منع) متعدى کيږي مفعول اول ته بالذات اومفعول ثانى ته کله بالذات اوکله په واسطه دحرفِ جرسره نوونيلې شي: (منعه حقه) او (منعه من حقه) نومعنې ئ داشوه چه نه دې منع کړې دوئ لره ددې خبرې نه چه قبول کړې شي نفقات ددوئ، هيڅ شئ داشياؤ نه مګردې خبرې چه دوي کفرکړي دې په الله تعالى اوپه رسول الله ﷺ دهغه، ﴿وَلَا يَأۡتُونَ ٱلصَّلَوٰةَ ﴾يعنې لکه څه رنګه چه ددوئ مالى عبادت په صحيح طريقه سره نه دې نودغه شان بدنى عبادت ئ په صحيح طريقه سره نه دې.

﴿فَلَا تُعۡجِبۡكَ ﴾ داجواب دسوال هم دې اوتفريع هم ده په ماقبل باندې. **سوال** داچه هرکله دوئ داسې مردوداوملعون دى نوالله تعالى ورته ولې نعمت دمال اولادورکړي دې، **جواب** دادې چه دانعمت ددوئ په حق کښې عذاب دې، اوتفريع داسې ده چه هرکله ددوئ نفقات نه قبليږي. نوددوئ مالونه هم بې فائدې دى اواولادونه ئ هم بې فائدې دې، مؤمن چه دخپل مال نه صدقه، خيرات اوکړي، ياورپسې څوک دمرګ نه بعدصدقه اوکړي نوثواب ورته ملاويږي، ليکن کافر اومنافق ته هيڅ ثواب نه ملاويږي بلکه سبب دعذاب اُخروى هم کيدې شي اوپه دنياکښې هم دمال په جمع کولو اوحفاظت کولوسترې، مشقتونه، غمونه برداشت کوى نوداهم يوعذاب دې ، اودغه شان دمؤمن اولادچه صالح وى نووالدينو ته ترينه فائده رسى، په دعا، صدقې کولوسره اومنافق اوکافرددې نه محروم دى، اوهمدارنګه کافراومنافق دالله تعالى نه بې تعلق وى اودمال په محبت کښې غرق وى نواول ددې په جمع کولوکښې غمونه مشقتونه برداشت کوى اوبياچه لګ مالى نقصان ئ اوشي نودمحبت په مقدار ورته غم صدمه اورسى اوپه موت سره چه کومه صدمه اوغم ملاويږي

نو هغه خو دومره ډيروي چه بيان ئ نه شي کيدې

| وَيَحْلِفُونَ | بِاللّٰهِ | اِنَّهُمْ | لَمِنْكُمْ | وَمَا | هُمْ | مِّنْكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|

او قسمونه کوی دوئ په الله تعالى چه بيشکه دوئ ستاسو د ډلې نه دی، او ندی دوئ ستاسو د ډلې نه

| وَلٰكِنَّهُمْ | قَوْمٌ | يَّفْرَقُوْنَ ﴿٥٦﴾ | لَوْ يَجِدُوْنَ | مَلْجَاً | اَوْ | مَغٰرٰتٍ | اَوْ مُدَّخَلًا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

ليکن دوئ داسې قوم دې چه يريږي که چرې دوئ موندلې ځائ د پناه يا غارونه، يا سورې د ننوتلو

| لَّوَلَّوْا | اِلَيْهِ | وَهُمْ | يَجْمَحُوْنَ ﴿٥٧﴾ | وَمِنْهُمْ | مَّنْ |
|---|---|---|---|---|---|

نو خامخا به دوئ متوجه شوي وې هغې ته په داسې حال کښې چه منډې به ئې وهلې او بعضې د دوئ نه هغه څوک دی

| يَّلْمِزُكَ | فِي | الصَّدَقٰتِ ۚ | فَاِنْ | اُعْطُوْا | مِنْهَا | رَضُوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|

چه عيب لګوی په تا باندې په تقسيم د زکاتونو کښې، نو که ورکړې شی دوئ ته د هغې نه نو دوئ خوشحاله وی

وَاِنْ لَّمْ يُعْطَوْا مِنْهَآ اِذَا هُمْ يَسْخَطُوْنَ ﴿٥٨﴾

او که ورنه کړې شی دوئ ته د هغې نه نو دغه وخت دوئ خفګان کوی.

﴿ وَيَحْلِفُوْنَ ﴾ دا هم دمنافقانو دقبائحوذکردې چه دوئ مؤمنانو ته ددهوکې دپاره ددروغو قسمونه کوی چه مونږ دکافرانوسره نه يوبلکه ستاسو ملګری يو ،﴿ يَفْرَقُوْنَ ﴾ يعنی دوئ بزدل دی (يفرقون) دفرق نه ماخوذدې فرق هغه يرې ته وائ چه هيبت اوجزع ورسره ورسره وی نو (فَرَق) دخوف نه زيات وی، مقصوددادې چه په دوئ کښې دروغ اويره دواړه قبائح موجوددی اوديرې دوجې نه ايمان ظاهروی،﴿ لَوْ يَجِدُوْنَ ﴾ ددوئ ددروغو اويرې حالت دادې که چرې دوئ ته ﴿مَلْجَاً﴾ يعنی ځائ دپناهئ ملاؤشی ،﴿اَوْ مَغٰرٰتٍ ﴾ يعنی غارونه ﴿اَوْ مُدَّخَلًا ﴾ يعنی سوری دننوتلو ، يعنی معمولی ، لګ ځائ ورته ملاؤ شی . چه سرې هلته ننوتلې شی نو دوئ به په منډه ورځی، غرض داچه دمسلمانانو . اواسلامی حکومت يره نه وی نودوئ بيااسلام په ښرګنده طريقه سره پريږدی، ليکن چونکه نه ئ داسلامی حکومت دمقابلې طاقت شته دې اونه ورته دپناهئ څه ځائ ملاويږی نوددې وجه

نه ده دروغو په قسمونو کولوسره خپل اسلام ظاهروی ﴿يَجْمَحُوْنَ﴾ دجمح نه مشتق دي جمع هغه منډه داس ده چه په واګې سره هم نه حصاريږي، يقال جمح الفرس ، فرس جموح، هوالذي اذاحمل لايرده اللجام، ﴿ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّلْمِزُكَ ﴾ داهم دمنافقينو دقبائحو ذکردي اوزجردي، يعنی بعض خلق دصدقاتو اودمال غنيمت دتقسيم په وخت کښې، ددنيوی حرص اوخودغرضئ په وجه په تاطعن کوی چه داتقسيم بی انصافه دي، ليکن دااعتراض اوطعن په هغه وخت کښې کوی چه تقسيم دصدقاتو ددوئ خواهش مطابق نه وی، اوکه ددوئ دخواهش اوحرص مطابق دوي ته څه ورکړې شی نوبيادوئ خوشحاله وی نودوئ دنياخپل مقصدګرځولې دي، اوددې نه معلومه شوه چه ددين کارددنيوی مفاداتو، اودخپلو خواهشاتو پوره کولو دپاره، کول دمنافقانو خصلت دي، ﴿مَّنْ يَّلْمِزُكَ﴾ (لمز) په اصل کښې دفع ته وائ ، اومستعمليږي دپاره دعيب لګولو په مخاطب باندې مخامخ، او (همز) عيب لګول دی پشی شاه،اوداراجع قول دي، په (لمز) او (همز) کښې اوبعضو ددي برعکس ذکرکړې دي، باقی ددې آيت سبب نزول په روايت دابوسعيد خدری ﷺ کښې ذوالخويصره دي چه رئيس الخوارج دې په باره دتقسيم دغنائمو دحُنين کښې، اوکلبی وائ چه داآيت نازل دې په باره د،،جواظ،، کښې چه يرلوئ منافق وو، اوابن زيد وائ چه په باره دعامو منافقينو کښې نازل شوې دی.

| |
|---|
| وَلَوْ اَنَّهُمْ رَضُوْا مَآ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ ۙ وَقَالُوْا حَسْبُنَا اللّٰهُ |
| اوکه خوشحال شوی وې دوئ په هغې چه ورکړی دی دوئ ته الله تعالی او رسول دهغه، او دوئ ويلی وې چه پوره دې مونږ لره الله |
| سَيُؤْتِيْنَا اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ وَرَسُوْلُهٗۤ ۙ اِنَّآ اِلَى اللّٰهِ رٰغِبُوْنَ ۝ |
| زر ده چه را به کړی مونږ ته الله تعالی د فضل خپل نه او رسول د هغه بيشکه مونږ خاص الله تعالی ته رغبت کونکی يو |

﴿ وَلَوْ اَنَّهُمْ ﴾ يعنی دمؤمن دپاره دنبی په تقسيم راضی کيدل پکاردی، اوجواب د (لو) محذوف دي چه (لکان خيراً لهم) دي ﴿وَرَسُوْلُهٗ﴾ درسول دورکولونه مراددزکوة اودغنيمت حصی ورکول دی په امرداللّٰه تعالی سره،لکه په حديث کښې دی : (انّما انا قاسِمٌ واللّٰه يُعطِی) نواعطاء يعنی ورکول داللّٰه تعالی مافوق الاسباب ده اودپيغمبر ماتحت الاسباب ده، يعنی په طريقه دتقسيم سره ورکول مراددی، نوپه دې آيت سره دااستدلال کول چه نبی صلی اللّٰه عليه

وسلم مختارکل دي، غلط استدلال دي ﴿إِلَّا ٱللَّهُ﴾ حضرت شیخ الهند رحمه الله ترجمه داسی کوی، (ہم کوتو اللہ ہی چاہئے)، یعني مؤمن لره داسې پکاردی چه په هره معامله کښې دالله تعالی په حکم روان شي اودالله تعالی رضاخپل مقصدگرځوی. لکه روایت دې چه دعیسی علیه السلام تیریدل اوشو په یوقوم باندې چه هغوئ دالله تعالی ذکرکولو نوتپوس ئ ترینه اوکړو. چه تاسو دالله تعالی ذکر ولی کوئ نوهغوئ اووئیل چه دوجه دخوف دعقاب نه مونږ ذکرکوؤ. نواوئ فرمائیل (اصبتم) یعني دا ټهیک خبره ده بیائ په بل قوم تیریدل اوشو نودهغوئ نه ئ هم دغه شان تپوس اوکړو، نوهغوئ اووئیل چه مونږ دالله تعالی ذکر نه دخوف دعقاب دوجې نه کوؤ اونه ئ دثواب درغبت دوجې نه کوؤ، بلکه ذکردبندګئ داظهار عجز دپاره اودربوبیت دعزت داظهار دپاره، اودزړه دتشریف دپاره په معرفت دالله تعالی سره. اودتشریف دژبې دپاره په ذکردالله تعالی سره چه دادلالت کوی په صفاتو قدسیو باندې. کوؤ. نوورته ئ اوفرمائیل: انتم المحققون.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّمَا | الصَّدَقٰتُ | لِلْفُقَرَآءِ | وَالْمَسٰكِيْنِ | وَالْعٰمِلِيْنَ | عَلَيْهَا |

بیشکه صدقې ورکیدې شی فقیرانو ته او مسکینانو ته او کارکونکی چه مقرر وی په هغې باندې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالْمُؤَلَّفَةِ | قُلُوْبُهُمْ | وَفِي | الرِّقَابِ | وَالْغٰرِمِيْنَ |

اوهغه چه آشنائی (الفت) راوستلې شی د زړونو د هغوئ د اسلام سره، او په آزادولو د ستونو کښې او قرضدارو ته

وَفِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَابْنِ السَّبِيْلِ فَرِيْضَةً مِّنَ اللّٰهِ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۝

اوپه لار د الله تعالی کښې او مسافروته، فرض کړې شوې دې د طرف د الله تعالی نه. او الله تعالی علیم حکیم دې

﴿إِنَّمَا ٱلصَّدَقَٰتُ لِلْفُقَرَآءِ﴾ په دې کښې بیان د مصارفو د صدقاتو دې،د پاره د منافقیونو د طمعې د قطع کولو ،اود پاره د دفعې د اعتراض د معترضینو ،او د ددې وجې نه په ابتدا دکلام کښې «انما» ذکر شوې چې په حصر دلالت کوی،یعني صدقات منحصر دی په دې مذکوره مصارفو پورې،بل مصرف ئې نشته دې،او مراد د صدقاتو نه صدقات واجبه دی،نفلی صدقات منحصر نهٔ دی په دې مذکوره مصارفو پورې،

امام شافعی رحمه الله وائی چې (لام) په ﴿لِلْفُقَرَآءِ وَالْمَسٰكِينِ الخ﴾ کښې د پاره د د استحقاق او تملیك دې، نو دا دلالت کوی په دې خبره چې صدقات د دوی حق او ملکیت دې، نو که چرې فقراء او مساکین وغیرهما اصناف موجود وو نو هر صنف ته ورکول ضروری دی، ځکه چې دا د دوی حق دې، او حق ذی حق ته ورکول ضروری دی، دویمه خبره دا ده چې په هر هر صنف کښې درې (۳) کسانو ته ورکول ضروری دی، ځکه چې فقراء وغیره اصناف د جمع په صیغه سره ذکر دی، او اقل افراد د جمعې درې دی،

احناف وائی چې لام د پاره د تملیك او استحقاق نهٔ دې بلکه د پاره د بیان د مصارفو دې، یعنی مصارف د صدقاتو مفروضو صرف دا مذکور دی، او هر صنف کښې درې کسانو ته ورکول هم ضروری نهٔ دی، ځکه چې په جمع باندې چې الف لام داخل شی نو جمعیت ئې باطل شی، او جنس ترې نه مراد وی، او جنس شامل وی واحد او کثیر ټولو ته، لکه چې څوك حلف اوکړی او اووائی (والله لا اتزوج النسآء) نو حانث کیږی په نکاح کولو د یوې ښځې سره ځکه چې په نسآء کښې جمعیت ختم شوې دې، جنس ترې نه مراد دې، نو دلته هم جنس مراد دې،

او په دې آیت کښې اتهٔ مصارف ذکر شوې دی، اول فقراء دویم مساکین، د فقیر او د مسکین حکم په باب د زکوة کښې یو شان دې، چې دواړه مصرف د زکوة دی، او د معنی په اعتبار سره د دواړو په مینځ کښې فرق شته دې، نو په باب د وصیت کښې د دواړو په مینځ کښې فرق شته دې، نو که چا وصیت د فقراؤ د پاره اوکړو نو مساکین په کښې نهٔ داخلیږی، او که مساکینو د پاره ئې اوکړو وو فقراء په کښې نهٔ داخلیږی، او که چا داسې وصیت اوکړو چې زما د مال ثلث د فلانی د پاره او د فقراؤ د پاره او د مساکینو د پاره دې نو دغه مال به درې حصې کولې شی، یو حصه به د فلانی وی بله حصه به د فقراؤ وی او بله حصه به د مساکینو وی، نو که چرې فقراء او مساکین جدا جدا صنفونه نهٔ وې نو نصف مال به د فلانی وو، او نصف مال به د فقراؤ او مساکینو وو، بیا د احنافو او شوافعو رحمهم الله اختلاف دې په تفسر د فقیر او مسکین کښې:

احناف وائی چې مسکین (اسواء حالا من الفقیر) وی ګویا کښې دا ماخوذ دې د سکون نه چې د غریبئ په وجه ساکن وی، هیڅ قدرت نهٔ لری، او فقیر هغه دې چې لږ څه مال ورسره وی خو مالك د نصاب نهٔ وی، نود مسکین د پاره سوال کول جائز دی او د فقیر سره چې (قوتُ یومه) وی نو سوال کول ورله جائز نهٔ دی او زکوة اخستل ورله جائز دی، شوافعو د فقیر او د مسکین معنی په عکس د دې بیانوی نو فقیر د دوی په نیز (اسواء حالا من المسکین) وی.

**داحنافو استدلال:** - استدلال کړې دې احنافو په دې قول د الله تعالی سره (اومسکینًا ذا متربۃ) دَ (ذا متربۃ) معنٰی ده (ملصق بالتراب)، خاك نشین، اوچونکه دا وصف کاشفه دې او صفت کاشفه په حقیقت کښې تعریف دې نو گویا کښې تعریف د مسکین دا شو چه هیڅ څه وسره نۀ وی په خاورو ناست وی، او امامِ لغت اصمعی رحمه الله او ابو عمروبن العلاء رحمه الله او نورو اهل لغتو تفسیر کړیدې ده مسکین ـمن لاشئ لهٔ ـ یعنی مسکین هغه دې چه څۀ ورسره نه وی او ده فقیر تۀ بر ئ کړیدې په ـ(من له بُلغَۃٌ من العیش) ـ سره یعنی هغه څوك چه څه گذاره ده عیش وسره وی،

شوافعو استدلال کړیدې په دې قول دَ الله تعالی سره ـ﴿ أَمَّا السَّفِينَةُ فَكَانَتْ لِمَسَٰكِينَ ﴾ ـ نو مسکین لره ې سفینه ثابته کړه،نو معلومه شوه چه مسکین هغه دې چه څه گذاره وسره وی.او په حدیث کښې نبی ﷺ دَ فقر نه پناه غوښتلې ده او دَ مسکنة سوال ې کړې دې لکه په روایت دَ ترمذی وغیره کښې دی (اللهم اَحیِنی مِسکیناً واَمِتنی مسکیناً واحشرنی فی زمرة المساکین ) او په روایت دَ ابو داؤد وغیره کښې دی (اللهم انی اعوذ بك من الکفر والفقر ) نو معلومه شوه چه فقیر (اسواء حالاً) ته وائی لکه دلالت کوی په دې باند تقدیم دَ فقرآء په مساکینو باند .

جواب کړې دې احنافو چه سفینه دَ هغوئ ملکیت نۀ وو بلکه عاریت وو. یا دا چه اطلاق دَ مساکینو په هغوئ باند ترحمًا شوې دې، لکه په قوله دَ شاعر کښې.

مساکین اهل الحب حتٰی قبورهم　　　　علیها تراب الذل بین المقابر

او دَ حدیث نه جواب دا دې چه نبی ﷺ چه کوم فقر نه پناه غوښتلې ده هغه فقر دَ نفس دې په دلیل دَ دې سره چه نبی ﷺ دَ عفاف او دَ غنٰی سوال کړیدې (اسئلك العفاف والغنٰی ) او دَ غنٰی نۀ مراد غنٰی دَ نفس ده نۀ ډیر والې دَ مال نو دَ فقر نۀ هم فقر دَ نفس مراد دې . او دَ تقدیم دَ پاره ډیرې نکتې کیدې شی صرف دا نکته نۀ ده چه تقدیم په کثرت دَ احتیاج دلا لت کوی .

دریم قسم په مصرف دَ زکٰوة کښې ﴿وَالْعَٰمِلِينَ عَلَيْهَا﴾ دی. عامل هغه دې چه ده بادشاه دَ طرف نه مقرر وی لپاره دَ جمع کولو دَ زکٰوة دَ مالدارو خلقو نه نو عامل اگر که غنی وی نو دَ ته به ورکیدېشی په قدر ده عمل دَ دهٔ، ځکه عامل په حقیقت کښې وکیل وی دَ فقراؤ، او دَ وکیل خپل حالت معتبر نۀ وی نو عامل اگر که غنی وی خو دَ دهٔ خپله غنٰی معتبره نۀ ده، او دَ دې وجه دا ده چه امیر او بادشاه، قدرتی طورسره دَ فقرآؤ غرباؤ وکیل دې ځکه چه دَ غرباؤ دَ ټولو ضروریاتو ذمه داری په امیر باندِ وی اوبیا چه امیر څوك مقرر کړی دَ جمع کولو دَ زکٰوة لپاره

نو هغه هم په حقیقت کښې دَ فقراؤ نائب او وکیل وی، او په عامل کښې لیکونکې او تقسیم کونکې. او ساعی ،او عاشر، او چوکیدار وغیره داخل دی، او بعض علماء دَ مدارسو مهتممین په عاملینو کښې داخل کړی دي، لیکن محققین مفتیان وائی چه په عاملینو کښې داخل نهٔ دی ځکه چه دوئ دَ فقراؤ نائبین او وکیلان نهٔ دی ځکه چه فقراؤ پخپله هم دوئ خپل وکیلان او نائبین نهٔ دی گرځولی او دَ بادشاهٔ دَ طرفه هم مقرر ندی، بلکه صرف دَ مالدارو نائبین دی، چه دَ هغوئ مالِ زکوٰة په مصرف باند لگوی.

او ځلورم قسم په مصرف دَ زکوٰة کښې ،﴿وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ﴾ دی، یعنی هغه خلق چه دَ هغوئ زړونو الفت، آشنائی راوستلې شی دَ اسلام سره، او دا ډیر قسمونه دی ، اول هغه چه اسلام بی راوړې وو. لیکن ایمان بی ضعیف وو، نو دوئ له به زکوٰة ورکیدې شو اگر چه غنی به وو لپاره دَ الفت دَ زړونو دَ دوئ چه محکم شی په ایمان باند، دویم هغه چه کافر وو لیکن امید دَ ایمان تر نهٔ کیدې شو نو دا قسم خلق اگر که اغنیاء وو خو زکوٰة به ورته ورکولې شو. لیکن په قرطبی او مظهری کښې دی چه نبی ﷺ کفارو ته دَ تالیف القلوب لپاره مالِ زکوٰة نهٔ دې ورکړې او په کومو روایتونو کښې چه ذکر دې ( مسلم ترمذی ) چه نبی ﷺ صفوان بن امیه ته په زمانه دَ کفر دَ دهٔ کښې عطیات ورکړی وو نو هغه عطیه دَ مال زکوٰة نهٔ وه ورکړې شوې بلکه دَ خمس نه ورکړې شوه، نو صحیح خبره داده چه دې قسم (مؤلفة القلوب ) ته به اُوس بالاتفاق نشی ورکیدې ، دریم قسم هغه ځوك دی چه دَ هغه دَ وجه نه نور خلق په اسلام کښې داخلیږی ، او ځلورم قسم هغه خلق دی چه دَ هغه په وجه ضرر دَ مسلمانانو نه دفع کیږی، دَ دې قسمونو (سوی دَ دویم قسم نه ) دَ حصو په منسوخ کیدو کښې ورستو دَ وفات دَ نبی ﷺ نه اختلاف دې بعض وائی چه په وخت دَ ضعف دَ اسلام کښې دا حصه ورکول پکار دی او دَ احنافو مشهور قول دا دې چه ، مؤلفة القلوب چه اغنیاء وی نو دوئ ته نهٔ شی ورکیدې، دَ دوئ حصه ساقطه شوی ده او په دې اجماع راغلیده په زمانه دَ حضرت ابوبکر ﷺ کښې، نو بیا سوال رازی چه ناسخ ورله کوم نص دې، نو که ځوك جواب ورکړی چه ناسخ اجماع ده ځکه چه اجماع هم قطعی ده په شان دَ نصِ قرآنی، نو دا جواب صحیح نهٔ دې ځکه اجماع اتفاق دَ آراؤ دې او په رائ سره نسخ نشی راتلې، او بعضُ ویلې دی چه دا سقوط دَ حصې دَ دوئ نسخ نه ده بلکه (انتها ءالحکم بانتهاء علته) دې، لکه روایت دې، چه عیینه ،اواقرع ، ابوبکر ﷺ ته راغلل طلب بی دَ حصې دَ مؤلفة القلوب کوؤ نو ابوبکر ﷺ حضرت عمر ﷺ ته دَ

دوئ دَ پاره خط اولیکو نو دوئ چه خط حضرت عمرؓ ته ورکړو نو هغوی دغه رقعه څیرې کړه او وې فرمائیل چه دا حصه به تاسو ته نبیﷺ دَ تالیف القلوب لپاره درکوله اُوس الله تعالی عزت ورکړې دې اسلام ته نو که تاسو په اسلام باندِ ثابت پاتې کیږې نو ډیره خه ده، ګنی نو زمونږ او ستاسو په منځ کښې توره فیصله ده، او حضرت ابوبکرؓ دَ حضرت عمرؓ سره په دې کښې موافقت اوکړو، او په صحابؤؓ کښې چا هم دَ دِ فیصلې خلاف اونکړو، نو دا اجماع شوه، او دَ حضرت عمرؓ دَ کلام نهٔ معلومه شوه چه دا (انتهاء الحکم لانتهاء علته) دې او نسخ ورته مسامحةً وئیلی شوی دی، او تحقیقی جواب دا دې چه اجماع په څه حکم باندې چه منعقده کیږی نو لابدی وی دَ هغې لپاره دَ دلیل ظنی نه لکه خبرِ واحد وغیره شو چه دې ته داعی دَ اجماع ویلې شی نو هغه داعی اګر که ظنی وی لیکن په اجماع سره قطعی ګرځی، نو چونکه هغه داعی نصِ ظنی وی او په اجماع سره قطعی اوګرځی نو دَ دې وجه نه ناسخ کیدې شی، ۔والله اعلم ۔

او پنځم قسم په مصرف دَ زکٰوة کښې ﴿وَفِي الرِّقَابِ﴾ دلته مضاف مقدر دې (ای فی فك الرقاب) دَ دې نهٔ مراد ورکول دَ زکٰوة دی په بدلِ کتابت کښې، او دا قول دَ جمهورو علماؤ دې او دا قسم یی په ۔ «فی »۔ سره ذکر کړو نو اشاره شوه دې ته چه دا مصرف دَ نورو مصارفو په نسبت سره زیات مستحق دې، ځکه چه ۔ «فی»۔ دَ ظرفیت لپاره ده،ګویا کښې دا مصرف ظرف او اصلِ محل دَ زکٰوة دې، او په نیز دَ بعضِ علماؤ باندې دا شامل دې هغې ته چه غلام واخلی او آزاد یی کړی، یا مالك ته دَ زکٰوة رقم ورکړی او معاهده وسره اوکړی چه دا به آزادوی، لیکن جمهورعلماء او احناف په دی قائل نهٔ دی.

او شپږم قسم په مصرف دَ زکٰوة کښې ﴿وَالْغَارِمِينَ﴾ دَ دې نه مراد هغه خلق دی چه په یو نیك کار کښې یا دَ عامو خلقو دَ فائدې لپاره یا دَ دوؤ ډلو دَ صلحِ کولو لپاره په خپل ځان تاوان راولی او دې پخپله اګر که مالدار، غنی وی خو مال ئ دَ تاوان نه کم وی نو زکٰوة به ورته ورکولې شی، او دا رنګه هغه کس چه په هغه باندِ څه حادثه راشی او مقروض شی یا دَ چا په ضمانت کښې ګیر شی دا ټول په غارمین کښې داخل دی ،

اووم قسم مصرف ﴿وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ دې دلته هم ۔فی ۔ معاده شوه چه اشاره شی دې ته چه دا مصرف دَ ټولو مصارفو نه افضل دې ځکه چه په دې کښې دوه فائدې دی، یو دَ غریب امداد کول دی

بل په دینی خدمت کښې اعانت کول دی، مراد دَ (فی سبیل الله) نه منقطع الغزاة دی یا منقطع الحجاج دی، یعنی هغه خلق چه اغنیاء او مالك دَ نصاب وی خو دومره مال ورسره نهٔ وی چه اسلحه پرې واخلی او ضروریات دَ جهاد پرې پوره شی، نو گویا کښې دا هم یو نوع فقیر دې، او منقطع الحجاج هغه دې چه دَ هغه په ذمه حج واجب شوې وی لیکن بیا ورسره دومره مال نوی پاتې شوې چه حج پرې ادا کړی،نو دغه شان کس اگر که مالك دَ نصاب وی نو ده ته زکوٰة ورکولې شی.

او فقهاؤ په دې کښې طالب علم او دَ دین تعلیم تبلیغ کونکی هم داخل کړیدي په دې معنی سره چه دوئ په (فی سبیل الله) کښې داخل دې نو دوئ چه فقراء وی نو مال زکوٰة به ورته ورکولې شی او په دې کښې دوه فائدې دی یو دَ غریب امداد کول بل په دینی خدمت کښې اعانت کول. او که مالدار صاحب دَ نصاب دا خدمت کوی نو هغه ته به مال زکوٰة نشی ورکولې.

اتم قسم مصرف ﴿وَابْنِ السَّبِيلِ﴾ دې دَ دې نه مراد هغه مسافر دې چه دَ دهٔ سره په سفر کښې په قدر دَ ضرورت مال نوی اگر که په وطن کښې غنی وی نو دهٔ لره زکوٰة اخستل جائز دی.

﴿فَرِيضَةً﴾ دا مفعول مطلق دَ فعل مقدر دې (ای فُرض فریضةً) یعنی زکوٰة فرض کړې شویدې په فرض کیدلو سره دَ طرف دَ الله تعالی نه، یا دا حال دې دَ ضمیر مستتر نه په. «للفقراء» کښې (ای الصدقات کائنةلهم حال کون الصدقات مفروضةً من الله).

| وَمِنْهُمُ الَّذِينَ يُؤْذُونَ النَّبِيَّ وَيَقُولُونَ هُوَ أُذُنٌ ۚ قُلْ |
|---|
| اوبعضی د دوئ نه هغه کسان دی چه تکلیف رسوی نبی ته او وائی دوئ چه دې هره خبره منونکې دې، وه وایه چه |
| أُذُنُ خَيْرٍ لَّكُمْ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَيُؤْمِنُ لِلْمُؤْمِنِينَ وَرَحْمَةٌ لِّلَّذِينَ |
| دې منونکې د خیر د خبرې دې ستاسو، ایمان لری په الله تعالی او خبره منی د مؤمنانو او رحمت دې دهغه کسانو لپاره |
| آمَنُوا مِنكُمْ ۚ وَالَّذِينَ يُؤْذُونَ رَسُولَ اللَّهِ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۞ |
| چه ایمان لری ستاسو نه، اوهغه کسان چه تکلیف رسوی رسول د الله تعالی ته دوئ لره عذاب دردناك دې. |
| يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَكُمْ لِيُرْضُوكُمْ ۚ وَاللَّهُ وَرَسُولُهُ أَحَقُّ |
| دوئ قسمونه کوی په الله تعالی تاسوته د دې لپاره چه تاسو راضی کړی، او الله تعالی اورسول د هغه حقدار دی |

اَنۡ یُّرۡضُوۡهُ اِنۡ کَانُوۡا مُؤۡمِنِیۡنَ ۝

چه راضي کړي دوئ هغوی لره که وي دوئ مؤمنان

﴿ وَمِنۡهُمُ الَّذِیۡنَ ﴾ دا هم زجر دې منافقینو ته او دَ هغوئ دَ قبائحو بیان دې چه دوئ تکلیف رسوی نبی ﷺ ته یعنی دَ نبی په شان کښ داسی خبرې کوی چه هغه ئ کله واوری نو زړه ته یی تکلیف خفګان رسی. بعضِ منافقینو ( لکه حلاس ، رفاعه وغیرهما ) دَ نبی ﷺ په شان کښ او دَ اسلام په حق کښ نامناسب خبرې کولې نو بعضو اووئیل چه دا خبرې مکوئ. داسی نه چه نبیﷺ ته اورسی نو حلاس اووئیل بلکه مونږ به وایوهغه چه زمونږ زړه غواړی بیا چه دَ نبیﷺ څنګ ته لاړ شو . نو دروغ به ورته اُووایو او دهوکه به ورله ورکړو . ځکه چه هغه خو هره خبره منی او تصدیق بی کوی. نو دهوکه ورکول ورلره آسان دی

﴿ هُوَ اُذُنٌ ﴾ اُذن خو په اصل کښ عضوِ مخصوص ( غوګ ) ته وائی او اطلاق یی په سړی باندِ په طریقه دَ مجازِ مرسل سره دې. لکه اطلاق دَ عین .په جاسوس باند یا په طریقه دَ تشبیه سره دې لکه غوګ چه هر قسم خبره آوری، رشتیا ، دروغ ،حق، ناحق، نو دا رنګه معاذالله نبیﷺ تمیز دَ صحیح او دَ غلط کولې نشی کولې نو الله تعالی فرمائی چه ﴿ اُذُنُ خَیۡرٍ لَّکُمۡ ﴾ یعنی نبیﷺ هره خبره آوری خو تصدیق فقط دَ صحیح او دَ حق کوی، او ستاسو په دروغو یقین نهٔ کوی، لیکن اعتراض او تنقید چه پر نهٔ کوی نو دا دَ ډیر شرافت او حسن اخلاق په وجه نکوی، دا وجه نهٔ ده چه دَ صحیح او غلط. او دروغ او رښتیا تمیز نهٔ شی کولې، اضافت دَ (اُذن خیر )ته اضافت دَ موصوف دې صفت ته یعنی نبیﷺ هر څه اوریدونکې دې، خو دا ستاسو په حق کښ ډیر ښه او خیر دې. ځکه چه که ستاسو په درغو ستاسو تنقید اوکړی نو تاسو به رسوا شئ، او سزا به درته ملاؤ شی. یا اضافت دَ (اُذن خیر )ته اضافت بمعنٰی (فی)دې، یعنی (اذن فی الخیر والحق ) دې.

﴿ یُؤۡمِنُ ﴾ تفسیر دَ ما قبل دې . ﴿ وَرَحۡمَةٌ ﴾ دا عطف دې په اُذن باند. یعنی نبیﷺ رحمت دې دَ هغه خلقو دَ پاره چه اظهار دَ ایمان کوی، نو دَ دې وجه نهٔ دَ چا په درغو اعتراض نهٔ کوی .

﴿ یَحۡلِفُوۡنَ ﴾ دا هم زجر دې منافقینو ته،په بعضِ روایاتو کښ وارد دی چه منافقین دَ غزوهٔ تبوك نه پاتې شو نو هر کله چه نبیﷺ واپس شو نو دوئ دَ عذر کولو لپاره راغلل او دَ درغو قسمونه یی کول نو دا آیت نازل شو . او په بعضِ روایاتو کښ داسې وارد دی چه څو منافقین په یو مجلس

کښې وو. او دَ نبیﷺ په شان کښې یې نامناسب خبرې کولې او په دغه مجلس کښې یو انصاری غلام هم ناست وو نو منافقینو اووئیل که چرې حق وی هغه چه محمد (ﷺ) یې وائی نو مونږ به دَ خرو نه هم زیات بد یو، انصاری غلام په غصه شو اووئ وئیل چه په الله قسم چه محمدﷺ چه څه وائی نو هغه حق دی او تاسو دَ خر نه هم زیات بد او قبیح ئی، او بیا راغې نبیﷺ ته ئی دا قصه بیان کړه نو نبیﷺ دغه منافقین راؤبلل او تپوس یې ترې نه اوکړو نو دوئ قسمونه اوکړل چه مونږ دا خبرې نهٔ دی کړی اوعامر قسم اوکړو چه دوئ کړی دی او دعا ئ کوله چه یا الله نه دَ رښتونی تصدیق اوکړې او دَ کاذب تکذیب اوکړې، نو دا آیت نازل شو.

﴿ أَحَقُّ أَن يُرْضُوهُ ﴾ (ای بالارضاء) او دَ الله تعالی او رسول راضی کول په طاعت او اخلاص سره کیږی، او دلته ضمیر دَ مفرد ذکر شو ځکه چه نشته دې تفاوت په مابین دَ رضاء دَ الله تعالی او دَ رسولﷺ کښې بلکه تلازم دې په مابین دَ دواړو کښې او دا ضمیر راجع دې الله تعالی ته په نیز دَ بعضِ مفسرینو ﷬ او رسول ته په نیز دَ امام سیبویه﷫ دَ وجه دَ قرب نه.

| أَلَمْ يَعْلَمُوٓا أَنَّهُۥ مَن يُحَادِدِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَأَنَّ لَهُۥ نَارَ جَهَنَّمَ |
|---|
| آیا نه پوهیږی دوئ چه بیشکه چاچه خلاف وکړو د الله او درسول دهغه نه پس بیشکه ده لره اُور د جهنم دې |
| خَٰلِدًا فِيهَا ۚ ذَٰلِكَ ٱلْخِزْىُ ٱلْعَظِيمُ ۝ يَحْذَرُ ٱلْمُنَٰفِقُونَ أَن تُنَزَّلَ عَلَيْهِمْ سُورَةٌ |
| همیشه به وی په هغې کښې، او دا شرمندګی لویه ده. یریږی منافقان چه نازل به شی په مسلمانانو یو سورة |
| تُنَبِّئُهُم بِمَا فِى قُلُوبِهِمْ ۚ قُلِ ٱسْتَهْزِءُوٓا۟ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ |
| چه خبر به کړی دوئ لره په هغه څه سره چه په زړونو د منافقانو کښې دې، وه وایه توقی کوئ تاسو. بیشکه الله تعالی |
| مُخْرِجٌ مَّا تَحْذَرُونَ ۝ |
| ښکاره کوی هغه څیز چه تاسو ترینه یره کوئ. |

﴿ أَلَمْ يَعْلَمُوٓا ﴾ دا تخویف اخروی دې په مخالفت دَ الله تعالی او دَ رسول اللهﷺ باند، مفسرینو ﷬ وئیلی دی چه داسې تعبیر هغه ځائ کښې کیږی چه چا ته یو شې معلوم وی او بیا ئی هیر کړی پریږدی یې، نو وئیلی شی (الم تعلم انه کان کذا وکذا) او هر کله چه نبیﷺ دوئ ته

احکامات او حدود بیان کړل نو دَ دې وجه نه یې ورسره مخاطبه په (الم یعلموا) سره اوکړه. چه تاسو ته خو معلومه ده چه په نفاق او مخالفت دَ الله تعالی او رسول اللهﷺ اُور دَ جهنم ملاویږی چه همیشه به پکښې وی. نو دا آیت په حق دَ کفارو او منافقینو کښې دې. نه په حق دَ عصاتو کښې. چه حد دَ کفر قطعی ته نهٔ وی رسیدلې

﴿ يُحَادِدِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ﴾ یعنی مخالفت وکړی دَ امر دَ الله تعالی او دَ امر دَ رسول اللهﷺ نه «محادة» دَ باب مفاعله نهٔ دې ماخوذ دې دَ حد نه په معنی دَ جهت او جانب سره یعنی په هغه جهت او جانب کښې راشی چه غیر وی دَ جهت او جانب دَ الله تعالی او رسول الله نه، او دَ دی نه مراد نفاق او کفر قطعی دې، او کلمه دَ «من» په ﴿مَن يُحَادِدِ ٱللَّهَ﴾ کښې شرطیه ده او جواب یې دا دې چه ﴿فَأَنَّ لَهُۥ نَارَ جَهَنَّمَ﴾ او دلته (فحق) مقدر دې (ای فحُق انه له نار جهنم) ځکه «انّ» مدخول خپل په تاویل دَ مفرد سره ګرځوی او جواب دَ شرط جمله وی یا «الامر» مقدر دې (ای الامر ان له نار جهنم).

﴿ذَٰلِكَ ٱلْخِزْيُ ٱلْعَظِيمُ﴾ منافقینو دَ نفاق لار دَ دې دَ پاره اختیار کړې وه چه دَ رسوائی نه بچ شی لیکن بچ نهٔ شو بلکه دَ نفاق په وجه په لویه رسوائی کښې راګلل.

﴿ يَحْذَرُ ٱلْمُنَٰفِقُونَ ﴾ دا هم زجر دې منافقینو ته او بیان دَ قبائحو دَ دوئ دې

﴿أَن تُنَزَّلَ عَلَيْهِمْ﴾ دلته «من» مقدر دې، (ای من ان تنزل) او «علی» په معنی دَ «فی» سره دې او ضمیر راجع دې منافقینو ته. او مضاف مقدر دې (ای فی شانهم) یا ضمیر دَ (علیهم) او دَ (تنبئهم) راجع دی مؤمنانو ته او دَ (قلوبهم) ضمیر منافقانو ته راجع دې یعنی منافقان دَ دې خبرې نه خطره کوی چه نازل شی په مؤمنانو باندِ یو داسې سورت چه خبر کړی دوئ لره دَ هغه نفاق او حسد، او عداوت، نه چه دې منافقانو په زړنو کښې دې، حضرت قتادهؒ وائی چه دَ دې سورت یو نوم فاضحه دې یعنی دَ منافقانو عیوب یې ظاهر کړیدی نو هغوئ یې شرمولی دی او ابن عباسؓ وائی چه الله تعالی نازل کړې وو ذکر دَ آویا (۷۰) کسانو دَ منافقینو نه سره دَ اسماؤ دَ دوئ او دَ اسماؤ دَ آباؤ دَ دوئ نه، بیا یې منسوخ کړو ذکر دَ اسماؤ لپاره دَ دحمت په مؤمنانوځکه چه دَ دوئ په اولاد کښې مخلصین مؤمنان پیدا شوی وو. منافقانو به په خپلو مجلسونو کښې په نبیﷺ پورې او په اسلام پورې مسخرې او توقې کولې، لیکن دا به یې هم

خیال راتلو چه دا خبري نبیﷺ ته اُوونهٔ رسی، نو دَ هغوئ په باره کښې دا آیت نازل شویدې. او ابن کیسانﷺ ونیلی دی چه دا آیت نازل شوې دې په باره دَ هغه دولس (۱۲) کسانو منافقانو کښې چه دَ تبوك نه هر کله چه نبیﷺ واپس راتللو نو دوئ ورته په شپه کښې په یوه غونډۍ ناست وو. چه دَ نبیﷺ ناقه دَ کمر نه ښکته اوغورزوی، دَ نبیﷺ سره حضرت عمارﷺ او حضرت حذیفهﷺ وو. حضرت عمارﷺ دوئ راګیر کړل لیکن حذیفهﷺ چه راغې نو دَ هغوئ دَ اوښانو مخونه یې بل خواه ته واړول. دوئ اوتښتدل. نبیﷺ چه کله منزل ته راؤرسیدو نو دوئ ته یې دَ دغه منافقانو نومونه اوخودل. لیکن بیا نبی کریمﷺ دوئ منع کړل دَ نومونو ښکاره کولو نه. دا قول دَ ابن کیسانﷺ علامه شربینیﷺ نقل کړې دې، لیکن مشهور قول دا دې چه دا شان نزول دَ آیت نمبر ۷۴ دې. او دَ دې آیت سره زیات موافق اول قول دې یعنی دا چه منافقانو به په خپلو مجلسونو کښې په اسلام او نبیﷺ پورې مسخرې کولې.

﴿قُلِ اسْتَهْزِءُوا﴾ دا امر دَ تهدید لپاره دې. ﴿إِنَّ اللَّهَ مُخْرِجٌ﴾ (ای مظهر)

| |
|---|
| وَلَئِن سَأَلْتَهُمْ لَيَقُولُنَّ إِنَّمَا كُنَّا نَخُوضُ وَنَلْعَبُ ۚ |
| او که ته تپوس وکړې د دوئ نه (چه تاسو څه ویل، خامخا به وائ دوئ بیشکه مونږ خان مشغولو او لوبې (ګپ شپ) مو کولې. |
| قُلْ أَبِاللَّهِ وَآيَاتِهِ وَرَسُولِهِ كُنتُمْ تَسْتَهْزِءُونَ ۝ لَا تَعْتَذِرُوا |
| ته ووایه آیا په الله تعالی پورې اوپه آیتونو دهغه پورې او په رسول دهغه پورې تاسو ټوقې کولې. بهانې مه کوئ |
| قَدْ كَفَرْتُم بَعْدَ إِيمَانِكُمْ ۚ إِن نَّعْفُ عَن طَائِفَةٍ مِّنكُمْ |
| په تحقیق سره تاسو کفر ښکاره کړې دې روستو د ایمان ښکاره کولو نه، که معافی وکړو مونږ د یو ډلې ستاسو نه، |
| نُعَذِّبْ طَائِفَةً بِأَنَّهُمْ كَانُوا مُجْرِمِينَ ۝ |
| عذاب به ورکړو بلې ډلې ته په وجه د دې چه دوئ مجرمان دی |

﴿وَلَئِن سَأَلْتَهُمْ﴾ حضرت قتادهﷺ وائی چه نبیﷺ په غزوهٔ تبوك کښې روان وو، او مېنځې ترې نه دری کسان منافقان وو چه استهزاء یې کوله په نبی کریمﷺ پورې او په قرآن پورې، او بعضو به دوئ کښې اوونیل چه محمدﷺ دَ شام دَ محلاتو او دَ روم دَ شهرونو دَ فتح کولو خوب وینی، لیکن دا ډیره بعیده ده، دَ رومیانو دَ مسلح تجربه شوی فوجونو مقابله آسانه نه ده، نو نبی کریمﷺ دا کسان

راوبلل او سپوس يې ترې نه اوکړو نو دوئ دا عذر پيش کړو چه مونږ ګپ شپ لګوو . لار مو لنډوله ﴿نَخُوضُ وَنَلْعَبُ﴾ يعنې ګپ شپ او ټوقې مو کولې

﴿قُلْ أَبِاللَّهِ﴾ يعنې په الله تعالى او رسول الله ﷺ او اسلام پورې مسخره کول اګر که محض په ژبه وي او د زړه نه نه وي نو بيا هم کفر عظيم دې. او منافقين خو د شرارت او خبث باطن په وجه کوي ﴿قَدْ كَفَرْتُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ﴾ دا آيت دليل دې په دې چه ټوک په الله تعالى. او رسول الله ﷺ او قرآن پورې ټوقې اوکړي هو هغه کافر. او مرتد دې. او د (کفرتم) نه مراد اظهار د کفر دې او د (بعد ايمانکم) نه مراد اظهار د ايمان دې ﴿إِن نَّعْفُ عَن﴾ منافقانو کافرانو نه د مرګ نه بعد معافي نشي کيدې نو دلته توفيق د توبې او اخلاص په ايمان کښې مراد دې ﴿مُجْرِمِينَ﴾ يعنې هغه کسان چه په نفاق او کفر باند کلك دی توبه نهٔ کوی د نفاق نه .

| ﴿الْمُنَافِقُونَ وَالْمُنَافِقَاتُ بَعْضُهُم مِّن بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمُنكَرِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمَعْرُوفِ﴾ |
|---|
| منافقان سړي او منافقاني ښځې بعضې د دوئ د بعضو نه دی. حکم کوی د ناروا کارونو او منع کوی د نیکئ نه |
| وَيَقْبِضُونَ أَيْدِيَهُمْ ۚ نَسُوا اللَّهَ فَنَسِيَهُمْ ۗ |
| او بندساتي لاسونه خپل. هير کړي دي دوئ الله تعالى لره، نو الله تعالى هير کړي دی دوئ لره (په محروم کولو سره دخیرنه) |
| إِنَّ الْمُنَافِقِينَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ﴿٦٧﴾ وَعَدَ اللَّهُ الْمُنَافِقِينَ وَالْمُنَافِقَاتِ |
| بیشکه منافقان خاص دوئ لوئ نافرمان دی . وعده کړیده الله تعالى د منافقانو سړو سره او د منافقانو ښځو سره |
| وَالْكُفَّارَ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا ۚ هِيَ حَسْبُهُمْ ۚ وَلَعَنَهُمُ |
| او د کافرانو سره د اُور دجهنم همیشه به وی دوئ په هغې کښې. هغه پوره سزا د دوئ ده. او لعنت کړي دی په دوئ باندی |
| اللَّهُ ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيمٌ ﴿٦٨﴾ كَالَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ |
| الله تعالى، او د دوئ لپاره عذاب همیشه دی . تاسې په شان دهغه کسانو یئ چه مخکښې وو ستاسو نه. |
| كَانُوا أَشَدَّ مِنكُمْ قُوَّةً وَأَكْثَرَ أَمْوَالًا وَأَوْلَادًا فَاسْتَمْتَعُوا |
| وو هغوئ زیات ستاسې نه په طاقت کښې او ډیر وو په مالونو کښې او په اولاد کښې. پس فائده واخسته هغوئ |

| بِخَلَاقِهِمْ فَاسْتَمْتَعْتُمْ بِخَلَاقِكُمْ كَمَا اسْتَمْتَعَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ |
|---|
| په برخه خپله پس تاسو هم فائده واخسته په برخه خپله لکه چه فائده اخستې وه هغه کسانو چه مخکښې ستاسو نه وو |
| بِخَلَاقِهِمْ وَخُضْتُمْ كَالَّذِي خَاضُوا ط |
| په برخه خپله . او مشغوله شوئ په مسخرو کښې په شان دهغه کسانو چه مشغوله شوی وو هغوئ |
| أُولَٰئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ ۝ |
| دغه کسان برباد شویدی عملونه د دوئ په دُنیا او آخرت کښې، او دغه کسان هم دوئ تاوانیان دی |

﴿ الْمُنَافِقُونَ وَالْمُنَافِقَاتُ ﴾ په دې آیت کښې هم زجر دې منافقینو ته او دَ هغوئ دَ قبیح صفاتو بیان دې او اشاره ده دې ته چه په دې قبیحه صفاتو کښې نارینه او زنانه برابر دی ﴿ بَعْضُهُم مِّنْ بَعْضٍ ﴾ یعنی دوی متشابه دی په نفاق اوپه صفاتو قبیحؤ کښې پشان دَ تشابه دَ اجزاؤ دَ شئ واحد. او صفات قبیحه یې دا دی

(۱) ﴿ يَأْمُرُونَ بِالْمُنكَرِ ﴾ یعنی په منکر یعنی دَ شرك او دَ تکذیب دَ نبی کریمﷺ ،

(۲) ﴿ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمَعْرُوفِ ﴾ یعنی توحید او تصدیق دَ نبی کریمﷺ نه منع کول،

(۳) ﴿ وَيَقْبِضُونَ أَيْدِيَهُمْ ﴾ انفاق په خیر کښې نهٔ کوی لکه زکوٰة، صدقات، او انفاق په جهاد کښې

(۴) ﴿ نَسُوا اللَّهَ فَنَسِيَهُمْ ﴾ دَ الله تعالی هیرول نه مراد دا دې چه دوئ ترك کړې دې ذکر دَ الله تعالی او اطاعت دَ الله تعالی قصداً، اوحقیقی معنی مراد نهٔ ده ځکه چه په نسیان باندې مؤاخذه نهٔ وی .

﴿ وَعَدَ اللَّهُ ﴾ دا تخویف دې، دَ وعد استعمال په خیر کښې کیږی او دلته په قرینې دَ ﴿ نَارَ جَهَنَّمَ ﴾ سره استعمال یې په شر کښې شوې دې . ﴿ كَالَّذِينَ ﴾ دا خبر دَ مبتداء مقدر دې چه ،انتم، دې او په دې کښې تشبیه دَ منافقانو ده، دَ مخکښو کافرانو سره .

﴿ فَاسْتَمْتَعُوا بِخَلَاقِهِمْ ﴾ یعنی هغوئ نفع حاصله کړی وه دَ دنیا دَ فانی متاع او دَ انجام نهٔ غافل وو .خلاق حصې ته وائی او اصل معنی یې دا ده (ما خُلق للانسان و قُدر له من خیر او شر) (فاستمتعوا) باب استفعال ذکرشو او باب تفعل یعنی (تمتعوا) ذکر نهٔ شو لپاره دَ دلالت په زیادة

استفادة او دوام باند ﴿وَخُضۡتُمۡ﴾ يعنى تاسو ننوتى يى په تكذيب او خواهشاتو او په شبهاتو كښې ﴿كَٱلَّذِي خَاضُوٓاْ﴾ (الذى) مصدريه هم رازى او موصوله اكثر رازى نو كه دلته مصدريه شى نو معنىٰ دا ده (كخوضهم) پشان دَ ننوتلو دَ هغوئ په شبهاتو او خواهشاتو كښې. او كه موصوله شى نو يا په دې كښې تخفيف شوې دې په حذف دَ نون سره نو په اصل كښې داسى وو (كالذين) نو دَ (الذى) په اصل كښې صيغه دَ جمعې ده. يا صيغه دَ مفرد ده او موصوف ورله داسې لفظ مقدر دې چه صورةً مفرد او معنىٰ جمع ده (اى كالفريق الذى خاضو ا) ﴿فِي ٱلدُّنۡيَا وَٱلۡأٓخِرَةِۖ﴾ په دنيا كښې حبط دا دې چه دَ دوئ اعمال دَ دوئ لپاره استدراج دې او خير ندې او دا رنګه دَ دوئ مدح په دغه اعمالو سره نۀ كيږى، متقى، مصلى، مجاهد ورته نشى وئيلې، او په آخرت كښې حبط دا دې چه اجر به ورته نشى وركولې

| |
|---|
| أَلَمۡ يَأۡتِهِمۡ نَبَأُ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡ قَوۡمِ نُوحٖ وَعَادٖ وَثَمُودَ وَقَوۡمِ إِبۡرَٰهِيمَ |
| آيا ندي راغلي دوئ ته خبر دهغه كسانو چه مخكښې د دوئ نه وؤ قوم د نوح او عاديان او ثموديان او قوم د ابراهيم |
| وَأَصۡحَٰبِ مَدۡيَنَ وَٱلۡمُؤۡتَفِكَٰتِۚ أَتَتۡهُمۡ رُسُلُهُم |
| او اوسيدونكى د مدين او اوسيدونكى د اُلټه شوى كلو (قوم د لوط) راغلى وؤ دوئ ته رسولان د دوئ |
| بِٱلۡبَيِّنَٰتِۖ فَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيَظۡلِمَهُمۡ وَلَٰكِن كَانُوٓاْ أَنفُسَهُمۡ يَظۡلِمُونَ ۝٧٠ |
| په واضحه معجزاتو سره، پس نه وؤ الله تعالى چه ظلم ئ كولو په دوئ ليكن وؤ دوئ په خپلو نفسونو ئ ظلم كولو |
| وَٱلۡمُؤۡمِنُونَ وَٱلۡمُؤۡمِنَٰتُ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٖۚ يَأۡمُرُونَ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَيَنۡهَوۡنَ |
| اومؤمنان سړي او مؤمنانې ښځې بعضې د دوئ نه دوستان د بعضو دى، حكم كوى په نيكئ سره اومنع كوى |
| عَنِ ٱلۡمُنكَرِ وَيُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤۡتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَيُطِيعُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓۚ أُوْلَٰٓئِكَ |
| د بدئ نه او قائم كوى مونځ او وركوى زكوة او تابعدارى كوى د الله تعالى او د رسول دهغه، دغه كسان |
| سَيَرۡحَمُهُمُ ٱللَّهُۗ إِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٞ ۝٧١ وَعَدَ ٱللَّهُ |
| خامخا رحم كوى په دوئ باندې الله تعالى، بيشكه الله تعالى زروآور دې حكمتونو والا دې وعده كريده الله تعالى |

الۡمُؤۡمِنِيۡنَ وَالۡمُؤۡمِنٰتِ جَنّٰتٍ تَجۡرِىۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ خٰلِدِيۡنَ فِيۡهَا

د مؤمنانو سړو اومؤمنانو ښځو سره د جنتونو چه بهيږي به د هغې د لاندې ولې هميشه به وی دوئ په هغې کښې

وَمَسٰكِنَ طَيِّبَةً فِىۡ جَنّٰتِ عَدۡنٍ ‌ؕ وَرِضۡوَانٌ مِّنَ اللّٰهِ اَكۡبَرُ‌ ؕ ذٰ لِكَ هُوَ الۡفَوۡزُ الۡعَظِيۡمُ

او به ځايونو مزيدار و کښې به جنتونو دهميشه والی کښې او رضا مندی د الله تعالى ډير لوئ نعمت دي او دا کاميابی لويه ده

﴿ اَلَمۡ يَاۡتِهِمۡ ﴾ دا دَ تخويف دنيوی نمونه ده. ﴿ وَالۡمُؤۡمِنُوۡنَ وَالۡمُؤۡمِنٰتُ ﴾ دَ منافقينو په مقابله کښې دَ مؤمنانو ذکر او بشارت دي ﴿ بَعۡضُهُمۡ اَوۡلِيَآءُ بَعۡضٍ ﴾ اولياء جمع دَ ولی ده په معنی دَ محبت کونکی سره نو معنی دا شوه چه دوئ دَ يو بل سره محبت کونکی. الفت لرونکی دی. يعنی محبت يی دَ يو بل سره ظاهراً باطناً دي. او دَ منافقانو په حق کښې يی ﴿ بَعۡضُهُمۡ مِّنۡۢ بَعۡضٍ ﴾ ونيلی وو. نو اشاره وه ظاهری مشابهت ته. ﴿ يَاۡمُرُوۡنَ بِالۡمَعۡرُوۡفِ ﴾ دا په مقابله دَ ﴿ يَاۡمُرُوۡنَ بِالۡمُنۡكَرِ ﴾ کښې دي. او ﴿ وَيَنۡهَوۡنَ عَنِ الۡمُنۡكَرِ ﴾ په مقابله دَ ﴿ وَيَنۡهَوۡنَ عَنِ الۡمَعۡرُوۡفِ ﴾ کښې دي. او ﴿ وَيُقِيۡمُوۡنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤۡتُوۡنَ الزَّكٰوةَ ﴾ په مقابله دَ ﴿ وَيَقۡبِضُوۡنَ اَيۡدِيَهُمۡ ﴾ کښې دي، او ﴿ وَيُطِيۡعُوۡنَ اللّٰهَ وَرَسُوۡلَهٗ ﴾ په مقابله دَ ﴿ نَسُوا اللّٰهَ ﴾ کښې دي. او ﴿ سَيَرۡحَمُهُمُ اللّٰهُ ﴾ په مقابله دَ ﴿ وَعَدَ اللّٰهُ الۡمُنٰفِقِيۡنَ ﴾ کښې دي. او ﴿ وَعَدَ اللّٰهُ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ ﴾ دا هم په مقابله دَ ﴿ وَعَدَ اللّٰهُ الۡمُنٰفِقِيۡنَ ﴾ کښې دي.

﴿ وَمَسٰكِنَ طَيِّبَةً ﴾ يعنی پاکيزه او عمده مکانات. حضرت عمران بن حصين رضی الله عنه او حضرت ابوهريرة رضی الله عنه دَ دې تفسير دَ نبی کريم ﷺ نه ذکر کوی، چه په جنت کښې دَ يوې بې جوړه، ملغلرې نه به يو داسې بنګله وی چه پکښې اويا (۷۰) داره (کورونه) وی دَ سرو ياقوتو نه. او په هر دار (کور) کښې اويا (۷۰) کمرې وی دَ شنو زمردو نه، او په هر کمره کښې به اويا (۷۰) تختونه وی او په هر تخت باندې به اويا (۷۰) فراشه (بسترې) وی، دَ جدا جدا رنګونو نه او په هر فراش باندې به حورالعين وی او په هره کمره کښې به اويا (۷۰) دسترخوانونه وی او په هر دسترخوان به اويا (۷۰) نوعې دَ طعام وی او په هره کمره کښې به اويا (۷۰) خادمان او اويا (۷۰) خادمانې وی او مؤمن ته به دومره قوة ورکړې شی چه هر يوې ته به راتله کولې شی

﴿ فِىۡ جَنّٰتِ عَدۡنٍ ﴾ جنت عدن يا اسم دې لپاره د مخصوص طبقې دَ جنت. يا عدن په معنی دَ

اقامت سره دي یعنی هغه جنتونه چه دَ «اقامت علی وجه الخلود» لپاره دی

﴿وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللَّهِ أَكْبَرُ﴾ ( ای اکبرمن کل شئ وکل نعمة) «رضوان» مصدر دی لکه «رضا» چه مصدر دې فرق دومره دې چه په «رضوان» کښې مبالغه ده په نسبت سره «رضا» ته په حدیث دَ شیخینو ﷺ کښې روایت دې دَ ابو سعید خدری ﷺ نه چه نبی کریم ﷺ فرمائیلي دی چه الله تعالی به په ورز دَ قیامت جنیانتو ته آواز اوکړی اُووبهٔ فرمائی (یا اهل الجنة) نو دوئ به اووائی (لبیك وسعدیك والخیر فی یدیك) نو الله تعالی ﷻ به اوفرمائی چه آیا تاسو راضی یی ؟ نو دوئ به عرض اوکړی چه ولې به راضی نه یو حال دا چه تا مونږ ته هغه څه راکړې دی چه په مخلوق کښې هیچا ته نهٔ دی ورکړې، نو الله کریم به اوفرمائی چه آیا دَ دې نهٔ زیات غوره در نه کړم ؟ نو دوئ به اووائی چه دَ دې نهٔ زیات غوره څه شئ دې ؟ یا ربه ، نو الله تعالی ﷻ به اووفرمائی هغه زما رضا ده. زهٔ ستاسې نه همیشه لپاره راضی یم، هیڅ کله به ناراض نه شم، نو مؤمنان چه دا واؤری نو ټولې خوشحالې به ترې نهٔ دې په مقابله کښې هیرې شی (اللهم انا نسئلك رضاك والجنة ونعوذ بك من سخطك والنار)

| |
|---|
| يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنَافِقِينَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ ۚ وَمَأْوَاهُمْ |
| اې نبی جهادکوه دکافرانو سره او دمنافقانو سره او سخت شه په مقابله د هغوئ کښې او ځائ د استوګنې د دوئ |
| جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ۞ يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ مَا قَالُوا ۚ |
| جهنم دې اوډیربد ځائ د ورتلو دې دا جهنم قسمونه کوی دوئ په الله تعالی سره چه څه ندی ویلی دوئ ستا په باره کښې |
| وَلَقَدْ قَالُوا كَلِمَةَ الْكُفْرِ وَكَفَرُوا بَعْدَ إِسْلَامِهِمْ |
| او په تحقیق سره ویلی ده دوئ خبره د کفر او کفر ئ ښکاره کړیدې روستو د اسلام ښکاره کولو د دوئ نه |
| وَهَمُّوا بِمَا لَمْ يَنَالُوا ۚ وَمَا نَقَمُوا إِلَّا أَنْ أَغْنَاهُمُ اللَّهُ |
| او قصد ئ کړیدې دهغه کار چه حاصل نه کړو دوئ او بد نه ګڼړی دوئ مګر دا خبره چه مالدار کړل دوئ لره الله |
| وَرَسُولُهُ مِنْ فَضْلِهِ ۚ فَإِنْ يَتُوبُوا يَكُ خَيْرًا لَهُمْ ۖ |
| اورسول د هغه «په تقسیم کولو سره» د فضل د الله تعالی نه، پس که دوئ توبه ویستله نو وی به غوره د دوئ لپاره |

وَ إِنْ يَّتَوَلَّوْا يُعَذِّبْهُمُ اللّٰهُ عَذَابًا اَلِيْمًا ۙ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ

او كه دوئ مخ وګرځولو نو عذاب به ورکړي دوئ لره الله تعالى عذاب دردناك په دنيا او آخرت كښ

وَ مَا لَهُمْ فِي الْاَرْضِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ۝

او نه به وي ددوئ لپاره په ټوله ځمکه کښ څوك دوست او نه مددګار

﴿يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ﴾ په دې آيت کښ حکم دَ جهاد دې دَ ټولو کافرانو سره. دَ کفارو سره جهاد په توره هم دې او په لسان هم دې او دَ منافقينو سره په لسان سره دې او دا رنګه هغه منافقان چه بهر دَ مديني نهٔ وو، او هر منافق چه دَ دار الاسلام نه بهر وي نو دَ هغوئ سره جهاد په توره سره کيدې شي . ﴿وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ﴾ غلظت مقابل دَشفقت دې نو دلته مراد دا دې چه دې دواړو ډلو سره هيڅ نرمي او شفقت مه کوه دَ جهاد په مقابله کښ او دا رنګه په اظهار دَ هغه عيوبو دَ دوئ کښ چه نازل شويدي په دې سورت کښ، او دَ غلظت نه دَ خلې غلظت کنځل وغيره مراد نهٔ دي .

﴿يَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ﴾ منافقينو به پشي شا دَ پيغمبر ﷺ او دَ اسلام توهين کوؤ او مسخرې ټوقې به يې وريسې کولې. لکه منافقينو په غزوهٔ تبوك کښ هم داسې کړې وو ، اوعبد الله بن ابی ابن سلول . رئيس المنافقين هم دغسې کار کړې وو ، لکه په سورت منافقون کښ يې ذکر دې ﴿يَقُوْلُوْنَ لَئِنْ رَّجَعْنَآ اِلَى الْمَدِيْنَةِ﴾ نو مؤ منانو به دا خبرې نبی کريم ﷺ ته ورسولې نو نبی کريم ﷺ به چه دَ منافقانو نه تپوس اوکړو نو دوئ به قسمونه اوکړل چه موږ دغه شان خبرې نهٔ دی کړې، نو الله تعالى به دَ مؤمنانو تصديق اوکړو او دَ منافقانو تکذيب به يې اوکړو، په دې آيت کښ هم دَ دې بيان دې ﴿وَلَقَدْ قَالُوْا كَلِمَةَ الْكُفْرِ﴾ دَ کلمة الکفر نهٔ مسخرې په اسلام پورې او توهين دَ رسول الله ﷺ مراد دې او دَ. کفروا. نهٔ مراد اظهار دَ کفر دې او دَ اسلام نهٔ مراد اظهار دَ اسلام دې .

﴿وَهَمُّوْا بِمَا لَمْ يَنَالُوْا﴾ په دې کښ اشاره ده هغه واقعې دَ دولس (۱۲) کسانو منافقينو ته چه ارادهٔ يې کړې وه دَ نبی کريم ﷺ دَ قتل ليکن کامياب نهٔ شو . ﴿وَمَا نَقَمُوْٓا﴾ دا دَ منافقانو په کمينه حرکت او خُلق باندِ طنز دې چه دوئ دَ محسن سره بد کوی (نقموا) په معنى دَ (کرهوا،عابوا) سره دې

﴿اِلَّآ اَنْ اَغْنٰهُمُ اللّٰهُ﴾ دا استثناء مفرّغه ده دَ عموم الا فعال نه، نو (شيئًا) مقدر دې يعنی دوئ هيڅ

عيب او بد ، نهٔ دی لیدلی سوئ دَ دې نهٔ چه الله تعالی او رسول اللهﷺ دوئ لره غنیان کړیدی او دا خو احسان دې او دَ احسان بدله شکریه پکار وی لیکن دوئ په ځائ دَ شکر بې مخالفت شروع کړو . منافقین په مدینه کښی عموماً غریبانان وو ، او دَ نبی کریمﷺ په راتلو سره دوئ ته مالداری. خوشحالی ملاؤ شوه، دَ بارانونو په کثرت سره کیدلو په وجه دَ زمکې پیداوار زیات شو او په مالِ غنیمت کښی به دوئ ته حصه ورکولې شوه، او دَ منافقانو یو مشر چه جلاس نوم یې وو چه بیا ورستو مخلص مسلمان شوې وو ، په دهٔ باند دَ نبی کریمﷺ خصوصی احسان دا وو . چه دَ دهٔ معتق غلام چا قتل کړې وو ، نو نبی کریمﷺ دَ دهٔ لپاره دَ دولس زرو (۱۲۰۰۰) روپو دیت حکم کړې وو . چه په هغې سره دَ دهٔ قرضه اداء شوه او غنی شو . په دې آیت کښی چه نسبت دَ اغناء (غنی کولو) الله تعالی ته شوې دې نو دا (ما فوق الاسباب) او په طریقه دَ ورکولو سره دې او رسول اللهﷺ ته چه نسبت شویدې نو دا په طریقې دَ تقسیم کولو سره او (ما تحت الاسباب) دې لکه په حدیث کښی دې (انما انا قاسم والله یعطی) .

﴿ فَإِن يَتُوبُوا ﴾ په روایت کښی دی چه دَ دې آیت دَ نزول نهٔ بعد جُلاس په اخلاص سره توبه اُوکړه او خپله تمامه زندګی یې دَ اسلام دَ خدمت لپاره وقف کړه، او علماؤ په دې آیت سره استدلال کړیدې چه که زندیق په اخلاص سره توبه اُوکړی نو قبلیږی .

| وَمِنْهُمْ | مَّنْ | عٰهَدَ | اللّٰهَ | لَئِنْ | اٰتٰىنَا | مِنْ | فَضْلِهٖ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوبعضې د دوئ نه هغه څوک دی چه لوظ ئ کړیدې د الله تعالی سره که رائ کړه مونږ ته د فضل خپل نه | | | | | | | |
| لَنَصَّدَّقَنَّ | وَلَنَكُوْنَنَّ | مِنَ | الصّٰلِحِيْنَ ﴿٧٥﴾ | فَلَمَّآ | اٰتٰىهُمْ | | |
| نو خامخا به مونږ صدقې ورکوو . اوخامخا شو به مونږ د نیك عمل کونکونه پس هرکله چه ورکړو الله تعالی دوئ ته | | | | | | | |
| مِّنْ | فَضْلِهٖ | بَخِلُوْا | بِهٖ | وَتَوَلَّوْا | وَّهُمْ | مُّعْرِضُوْنَ ﴿٧٦﴾ | |
| دفضل خپل نه څه مال نو بُخل وکړو دوئ په هغې سره او وګرځیدل دوئ د خپل عهد نه او دوئ مخ اړونکی دی | | | | | | | |
| فَاَعْقَبَهُمْ | نِفَاقًا | فِيْ | قُلُوْبِهِمْ | اِلٰى | يَوْمِ | يَلْقَوْنَهٗ | |
| پس وګرځو الله تعالی انجام د دې عمل د دوئ نفاق په زړونو ددوئ کښی تر هغې ورځې چه ملاقات به وشی د دوئ د هغه سره | | | | | | | |

بِمَآ اَخۡلَفُوا اللّٰهَ مَا وَعَدُوۡهُ وَبِمَا كَانُوۡا يَكۡذِبُوۡنَ ﴿٧٧﴾

به سبب د دې چه دوئ خلاف کړيدې د الله تعالی دهغه وعدې نه چه کړې ئ ده د هغه سره او پدې وجه چه دوئ دروغ ويل

اَلَمۡ يَعۡلَمُوۡٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعۡلَمُ سِرَّهُمۡ وَنَجۡوٰىهُمۡ

آيا نه پوهيږی دوئ په دې چه بيشکه الله تعالی عالم دی په پټو خبرو د دوئ او په جرګو د دوئ

وَ اَنَّ اللّٰهَ عَلَّامُ الۡغُيُوۡبِ ﴿٧٨﴾

او بيشکه الله تعالی ډير ښه پوهيدونکې دی په پټو خبرو

﴿وَمِنۡهُمۡ مَّنۡ عٰهَدَ اللّٰهَ﴾ په دې کښې د بعضِ منافقينو د نورو صفاتو قبيحو ذکر دې چه نذر يې کړې وو او هغه يې پوره نه کړو. او وعده يې کړې وه، د الله تعالی سره او د هغې خلاف يې اُوکړو

**فايده**: بهتره خبره دا ده چه دا آيت په خپل عموم او ابهام باندې پريخودې شی، ليکن تقريباً ټولو جديد او قديم مفسرينو ﷺ د دې شان نزول ثعلبه بن حاطب انصاری ﷺ ليکلې دې چه ده نبی کريم ﷺ ته عرض اُوکړو چه زما په حق کښې د مالدارئ دعا اُوکړه نو نبی کريم ﷺ اووفرمائيل چه اې ثعلبه ! لګ مال چه د هغې شکر اداء کولې شی ډير غوره دې د هغې ډير مال نه چه د هغې حقوق نشی ادا کولې. نو ده بيا درخواست اوکړو، نو نبی کريم ﷺ اووفرمايیل چه اې ثعلبه ! تا ته دا خبره خوښه نه ده چه زما په نقش قدم روان شی ؟ ليکن د ډير اصرار کولو. بالاخر نبی کريم ﷺ ورته دعا اوکړه. او په بيزو کښې يې دومره ډير برکت پيدا شو چه په مدينه کښې اوسيدل ورته مشکل شو. نو د مدينې نه بهر لاړو او د جماعت مونځ ترې پاتې شو، صرف د جمعې مونځ ته به حاضريدو ليکن بالاخر ترې نه د جمعې مونځ هم پاتې شو، څه وخت ورستو چه زکوٰة وصول کونکې ورته لاړو نو د زکوٰة نه يې انکار اوکړو او وې وئيل چه دا خو جزيه معلوميږی نبی کريم ﷺ چه خبر شو نو اوئ فرمائيل چه (ويح ثعلبه) او دا آيتونه نازل شو، د ثعلبه بعضِ خپلوانو دې خبر کړو نو د بد نامې نه د بچ کيدلو لپاره ئ خپل زکوٰة د نبی کريم ﷺ په حضور کښې حاضر کړو. نبی کريم ﷺ ورته اووفرمائيل چه الله تعالی زۀ منع کړې يم ستا د زکوٰة اخستلو نه، چه دا يې واؤريدل نو واويلا ئ شروع کړه، محض د عار (شرم) نه د بچ کيدلو لپاره، او په زړه کښې يې نفاق پټ وو. د نبی کريم ﷺ د وفات نه بعد د ابوبکر صديق ﷺ په خدمت کښې يې خپل مال زکوٰة حاضر کړو، هغه هم قبول نۀ کړو. بيا يې د حضرت عمر ﷺ په خلافت کښې خپل مالِ زکوٰة پيش کړو نو هغوئ هم قبول نۀ کړو. او حضرت

عثمان ﷺ په خپل زمانه خلافت کښې قبول نهٔ کړو. بالاخر په نفاق باندې په زمانه دَ خلافت دَ عثمان ﷺ کښې مړ شو. ډیرو علماؤ ﷭ دَ دې قصې رد کړې دې، او وئیلی یې دي چه دا حدیث یو په دې وجه صحیح نهٔ دې ثعلبه بن حاطب بدری صحابی دې او بدریان په اتفاق اهل علمو سره منافق نسې کېدې، او دَ دوئ په حق کښې (فقد غفرتُ لكم) او (وجبت لكم الجنةُ) وغیره بشارت وارد دي. او دویم دا چه دا حدیث دَ روایت په اعتبار سره ډیر ضعیف دې، ډیرو حضراتو دَ دې روایت په رجالو بحث کړې دې، او دا یې ثابته کړیده چه په سند کښې یې ډیر راویان ضعیف دی. او ویلي دی کمالین په حواله دَ ابن حجر ﷫ چه په دې روایت کښې دَ کوم ثعلبه ذکر دې دا غیر دې دَ ثعلبه بن حاطب ،اوسی، بدری ﷺ نه ، ځکه چه ثعلبه بدری شهید شوید ې په اُحد کښې. نو دا قصه دَ ثعلبه بن حاطب بدری ﷺ نه ده، بلکه دا بل ثعلبه دې چه منافق وو. او په حواله دَ ابن مردویه سره لیکی. چه په دې آیت کښې چه دکوم ثعلبه قصې ته اشاره ده نو دَ هغه نوم ثعلبه بن ابی حاطب دې. نه ثعلبه بن حاطب بلکه هغه بدری دې، او دغه شان خبره په (میزان الاعتدا ل في مراتب الرجال) کښې هم ده. او صاحب دَ روح المعانی وائی چه دا آیت نازل دې په باره دَ ثعلبه بن حاطب کښې او ده ته ثعلبه بن ابی حاطب وئیلی شی، او دا دَ بنی اُمیه بن زید نهٔ دې، او دا بدری نه دې ځکه هغه اوسی دې او په اُحد کښې شهید شوې دې، او دا دَ بنی امیه بن زید نهٔ دې، او په زمانه دَ خلافت دَ حضرت عثمان ﷺ کښې مړ دې، نو معلومه شوه چه دواړه جدا جدا دی، باقی دَ روایت دَ ضعف جبیره کیدې شی. په تعدد دَ روایاتو سره، او دا توجیه غوره ده، دَ نسبت دَ غلطئ نه اکابرو مفسرینو ته لکه بعض حضرات دَ دې خبرې ډیر شوق لری او ډیر جراءت لری دَ توهین او دَ تغلیط دَ اکابرو . . (فالی الله المشتکی) البته که ﴿وَمِنْهُم مَّنْ عَٰهَدَ ٱللَّهَ﴾ په خپل ابهام پرېښودې شی نو دا زیاته دَ احتیاط خبره ده

﴿فَأَعْقَبَهُمْ نِفَاقًا﴾ ضمیر دَ اعقب راجع دې الله تعالی ته او اعقب په معنی دَ (جعل عاقبة فعلهم) سره دې، دَ دې معنی دا شوه چه الله تعالی اوګرځو عاقبت او انجام دَ دې فعل دَ دوئ نفاق، دَ قیامت پورې یعنی نفاق دائمی ، یا ضمیر راجع دې بخل ته معنی دا شوه چه اوګرځؤ بخل انجام دَ دوئ نفاق دائمی، یعنی دَ بخل په سبب سره نفاق دائمی حاصل شو ، او لکه چه څه رنګه یو طاعت دَ بل طاعت سبب ګرځی نو دا رنګ یو ګناه دَ بل ګناه سبب ګرځی، او په دې تقدیر چه ضمیر دَ اعقب راجع شی بخل ته نو ضمیر دَ ﴿يَلْقَوْنَهُۥ﴾ هم راجع دې بخل ته او مضاف مقدر دې (ای يلقون جزاء البخل) ﴿بِمَآ أَخْلَفُواْ ٱللَّهَ﴾ خلاف وعده کول او کذب، سبب دَ دوام دَ نفاق شو ﴿أَنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُ سِرَّهُمْ﴾ منافقین په ظاهر کښې هرڅه چه وائی خو الله تعالی ته دَ باطنی او خفیه هر علم دې

اَلَّذِيۡنَ يَلۡمِزُوۡنَ الۡمُطَّوِّعِيۡنَ مِنَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ فِى الصَّدَقٰتِ وَالَّذِيۡنَ

(دامنافقان) هغه کسان دی چه عیب لگوی په رغبت کونکو د مؤمنانو په صدقو ورکولو کښ او په هغه کسانو

لَا يَجِدُوۡنَ اِلَّا جُهۡدَهُمۡ فَيَسۡخَرُوۡنَ مِنۡهُمۡ‌ؕ سَخِرَ اللّٰهُ مِنۡهُمۡ

چه نه مومی هغوئ مگر مزدوری خپله پس دوئ مسخری کوی په هغوئ پورې، الله تعالی به سزا د مسخرو ورکړی دوئ له،

وَلَهُمۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ ۝ اِسۡتَغۡفِرۡ لَهُمۡ اَوۡ لَا تَسۡتَغۡفِرۡ لَهُمۡ‌ؕ اِنۡ تَسۡتَغۡفِرۡ

او دوئ له عذاب دردناك دې که بښنه غواړې ته دوئ له او که نه غواړې بښنه دوئ له (يو شان ده) که ته بښنه وغواړې

لَهُمۡ سَبۡعِيۡنَ مَرَّةً فَلَنۡ يَّغۡفِرَ اللّٰهُ لَهُمۡ‌ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمۡ كَفَرُوۡا بِاللّٰهِ

دوئ له اويا خله نوهيچرې بښنه نکوی الله تعالى دوئ ته ، دا په دې وجه چه دوئ کفر کړيدې په الله تعالى

وَرَسُوۡلِهٖ‌ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهۡدِى الۡقَوۡمَ الۡفٰسِقِيۡنَ ۝

او په رسول دهغه او الله تعالى توفيق د هدايت نه ورکوی قوم نافرمانو ته

﴿ اَلَّذِيۡنَ يَلۡمِزُوۡنَ ﴾ دا هم زجر دې منافقينو ته (الذين ) مبتداء ده او خبر ورله ﴿ سَخِرَ اللّٰهُ مِنۡهُمۡ ﴾ دې. يو ځل نبی کريم ﷺ مؤ منانو ته د صدقې کولو ترغيب ورکړو نو حضرت عبد الرحمٰن بن عوف رضی الله عنه څلور زره (۴۰۰۰) اشرفئ صدقه کړې، او يو بل صحابی عاصم بن عدی رضی الله عنه سل وسق (وؤ. ستې) کجهورې چه د هغې قيمت څلور زره (۴۰۰۰) روپې وؤ. صدقه کړې، او يو بل صحابی ابو عقيل چه غريب وؤ نو مزدوری يې اوکړه نو يو صاع کجهورې يې صدقه کړې نو منافقانو طعن شروع کړو چا چه ډيره صدقه کړې وه نو په هغوئ باند د رياکارې طعن اولګوو ، او چا چه لږه صدقه ورکړې وه نو په هغوئ پورې يې مسخرې شروع کړې، چه دې په دومره لګو پيسو جنت اخلی يا د شهد اؤ په زمره کښ ځان داخلوی وغيره، د دې آيت نه معلومه شوه چه طعن کول په صحابؤ باند د منافقينو کار دې، شيعه، روافض په دې کښ داخل دی.

﴿ اِسۡتَغۡفِرۡ لَهُمۡ اَوۡ لَا تَسۡتَغۡفِرۡ لَهُمۡ ﴾ په دې آيت کښ منافقينو ته تخويف ورکول دی چه د دوئ مغفرت نشی کيدې اگر که سيد الکونين ﷺ ورله استغفار اوکړی، او دا آيت نازل شويدې په حق د عبد الله بن ابی بن سلول کښ لکه ورستو د دې تفصيل راځی. استغفر. امر دې لفظًا او خبر دې

معنٰی. دَ مفسرینو حضراتو دَ دې آیت په باره کښې دوه قوله دې. یو قول دا چه مقصود دَ آیت نه نا اُمیده کول دې دَ مغفرت دَ منافقانو نه. نو دَ هغوی لپاره استغفار بې فائدې دې ، او مقصود ترې نه تخیر ورکول نهٔ دی، او بعض مفسرین وائی چه مقصود دَ دې نه اختیار ورکول دی. چه استغفار کوئ او که نکوئ، لکه چه په حدیث دَ بخاری کښې دی (انی خُیِّرتُ　فاخترتُه، ای الاستغفار) او بیا دا تخیر منسوخ شویدې په روستنی آیت سره چه ﴿ وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰٓ أَحَدٍ ﴾الخ

﴿إِن تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِينَ مَرَّةً﴾ بعض وائی چه دَ دې نه مراد تکثیر دې او عدد مخصوص نهٔ دې مراد په دلیل دَ حدیث دَ بخاری سره (لو اعلم　انی لو زدتُ علی السبعین　غُفِرَ　لزدتُ علیها) دَ دې حدیث نه معلومیږی چه نبی کریمﷺ تکثیر فهم کړې وو، نه تحدید، او بعض وائی چه دَ دې نه مراد عدد مخصوص دې په دلیل دَ بخاری سره همدارنگه (وَسَاءَ زِيدُ　علی السبعین) نو دَ بخاری په دواړو حدیثونو کښې بظاهر معارضه ده، نو بعض محدیثنو دا توجیه کړیده چه اولاً تکثیر اراده کړې شویدې ځکه چه استعمال دَ دې عدد په تکثیر کښې شائع او کثیر دې او بیا نبی کریمﷺ عزم او کړو په زیات دَ سبعینو، لوجه دَ شفقت او رحمت نهٔ په اُمت باندې نو سبعین یې محمول کړو په تحدید باند ځکه چه دا هم محتمل دَ لفظ دې، او بله توجیه دا ده چه مراد دَ دې نه تکثیر دې او په بل حدیث کښې چه (وساءزید علی السبعین) راغلې دې نو دَ دې نه حرف شرط محذوف شویدې　(ای لو غفر　له ساء زید　علی السبعین) په دلیل دَ ذکر دَ شرط سره په بل حدیث کښې.

| فَرِحَ الْمُخَلَّفُوْنَ بِمَقْعَدِهِمْ خِلٰفَ رَسُوْلِ اللّٰهِ وَكَرِهُوْٓا |
|---|
| خوشحاله شویدی دا پاتې شوی د جهاد نه په کیناستلو خپلو باندې په خلاف او جُدا کیدلو د رسول الله نه اوبد گنړی دوئ |
| اَنْ يُّجَاهِدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَقَالُوْا |
| چه جهاد وکړی دوئ په مالونو خپلو سره او نفسونو خپلو سره په لارې د الله تعالی کښې، او وائی دوئ نورو خلقو ته |
| لَا تَنْفِرُوْا فِي الْحَرِّ ؕ قُلْ نَارُ جَهَنَّمَ اَشَدُّ حَرًّا ؕ لَوْ كَانُوْا يَفْقَهُوْنَ ﴿۸۱﴾ |
| مه اُوځئ په گرمئ کښې جهاد له ، ته ووایه چه اُور دجهنم ډیر سخت گرم دې که دوئ پوهیدې (نو داسې به ئ نه کول) |
| فَلْيَضْحَكُوْا قَلِيْلًا وَّلْيَبْكُوْا كَثِيْرًا ۚ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۸۲﴾ |
| پس اُودې خاندی دوئ لږ زمانه ؤدې ژاړی ډیره زمانه، بدله ورکیدلې شی په سبب دهغه عملونو چه دوئ ئ کوی |

فَإِنْ رَّجَعَكَ اللهُ إِلٰى طَآئِفَةٍ مِّنْهُمْ فَاسْتَأْذَنُوْكَ لِلْخُرُوْجِ

پس که واپس راوستي ته الله يوې ډلې ته د دوئ نه پس اجازت وغواړي ستا نه لپاره د وتلو د جهاد دپاره

فَقُلْ لَّنْ تَخْرُجُوْا مَعِيَ اَبَدًا وَّلَنْ تُقَاتِلُوْا مَعِيَ عَدُوًّا

پس ورته وه وايه هرګز مه اوځئ خما سره هيڅ چرې. او هيڅ کله جهاد مه کوئ خما په ملګرتيا کښ د دشمن سره.

اِنَّكُمْ رَضِيْتُمْ بِالْقُعُوْدِ اَوَّلَ مَرَّةٍ فَاقْعُدُوْا مَعَ الْخٰلِفِيْنَ ۝

بيشکه تاسو رضا شوي يئ په کيناستلو اول ځل پس کينئ د روستو پاتې کيدونکو سره

﴿ فَرِحَ الْمُخَلَّفُوْنَ ﴾ دا هم زجر دې منافقانو ته، او بيان دَ قبائحوُ دَ دوئ دې چه اول پاتې کيدل دَ جهاد نه. دويم مخالفت دَ رسول الله ﷺ، دريم خوشحاله کيدل په دې پاتې کيدلو. دَ (مخلّف) معنٰی دا ده چه روستو پاتې کړې شوې وی، او دوئ خو په خپل اختيار سره پاتې شوی وو. بل چا نهٔ وو پاتې کړې، نو دوئ (متخلّفون) وو. نو دوئ ته (مخلّفون) ځکه اووئيلې شو چه دَ دوئ پاتې کيدل اثر دَ قهر او غضب دَ الله تعالى دې، نو دوئ پاتې کړې شوی وو، په قهر او غضب دَ الله تعالىٰ سره. ﴿ بِمَقْعَدِهِمْ ﴾،، مقعد ،، مصدر ميمی دې په معنٰی دَ قعود سره، او ﴿ خِلٰفَ ﴾ په معنٰی دَ مخالفت سره دې په قول دَ امام زجاج رحمه الله کښې او منصوب دې بنا په دې چه دا مفعول له دې (يعنی قعدوا لاجل مخالفة رسول الله ﷺ) او امام احفش رحمه الله وائی چه ،، خلاف ،، په معنٰی دَ (خَلْفَ او بَعد) سره دې، او منصوب بنا بر ظرفيت دې يعنی په کيناستلو خپلو ورستو دَ رسول الله ﷺ نه.

﴿وَقَالُوْا لَا تَنْفِرُوْا﴾ الخ معنٰی دا ده چه بعضِ منافقينو نورو منافقينو ته داسې وئيل، يا دا چه منافقينو مؤمنانو ته وئيل چه په ګرمئ کښې جهاد له مهٔ ځئ.

﴿قُلْ نَارُ جَهَنَّمَ اَشَدُّ حَرًّا﴾ په حديث کښې دی چه دَ جهنم اُور دَ دنيا دَ اُور نهٔ اويا (۷۰) درجې زيات ګرم دې. نو دَ کومې ګرمئ نه چه تاسو ځان بچ کوئ نو دَ هغې نهٔ هغه ګرمئ ډيره زياته ده کومې ته چه تاسو روان يی ﴿ فَلْيَضْحَكُوْا ﴾ امر په معنٰی دَ اخبار سره دې، ﴿قَلِيْلًا﴾ دَ قليل نه مراد دنيا ده او دَ کثير نه مراد زمانه دَ جهنم ده، معنٰي دا ده چه دوئ به لګه خندا او خوشحالي اوکړی په دنيا کښې

لیکن بیا به ډیره جړا اوکړی. او ډیر تکلیفونه غمونه به په جهنم کښې تیروی.

﴿ فَإِن رَّجَعَكَ ٱللَّهُ ﴾دا هم زجر دې منافقینو ته او دا آیاتونه سفری آیاتونه دی، یعنی که ته واپس شی مدینی منورې ته او دوئ بیا ستا نه اجازت اُوغواړی جهاد له دَ وتلو نو ته ورته اُووایه﴿ لَن تَخْرُجُواْ ﴾ ﴿وَلَن تُقَٰتِلُواْ مَعِىَ ﴾یعنی زما په ملګرتیا کښې، او﴿ إِلَىٰ طَآئِفَةٍ ﴾ یې ځکه اووفرمائیل چه کیدې شی چه بعضِ منافقین دَ نبی کریمﷺ دَ واپس کیدو نه مخکښې مړه شی او جهنم ته اورسی. او دَ﴿ ٱلْخَٰلِفِينَ ﴾ نه مراد (متخلفین)دی لکه زنانه، بچی.

| وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰٓ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِۦٓ ۖ |
|---|
| اومونځ د جنازې مکوه په هیڅ یو کس باندې د دوئ نه چه مړشی هیچرې اومه اودریږه (لپاره د استغفار) د دهٔ د قبر په خوا کښې |
| إِنَّهُمْ كَفَرُواْ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَمَاتُواْ وَهُمْ فَٰسِقُونَ ۝ |
| بیشکه دوئ کفر کړیدې په الله تعالی او په رسول دهغه او مړه شویدی په داسې حال کښې چه دوئ نافرمان وو |

﴿ وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰٓ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ ﴾په دې کښې زجر او تخویف دې منافقانو ته، دا آیت نازل شویدې په حق دَ عبدالله بن اُبی ابن سلول کښې. چه دَ هغې تفصیل په روایت دَ شیخینو وغیرهما کښې دا دې، چه هر کله عبدالله بن اُبی ابن سلول، رئیس المنافقین مړ شو، نو دَ دهٔ ځوئې چه نوم یې عبدالله بن عبدالله بن اُبی ابن سلول وو او ډیر مخلص صحابی وو. هغه نبی کریمﷺ ته عرض اوکړو چه خپل قمیص راکړه چه زهٔ یې دَ خپل پلار کفن جوړ کړم نو نبی کریمﷺ ورله خپل قمیص ورکړو. هغه بیا درخواست اوکړو چه زما په پلار جنازه اوکړه نو نبی کریمﷺ دا درخواست هم قبول کړو او دَ هغه دَ جنازې دَ پاره اودریدو. نو حضرت عمرؓ دَ نبی کریمﷺ کپړه اونیوله، عرض یې اوکړو چه یارسول الله ته په دهٔ دَ جنازې مونځ کوې؟ حالانکه الله تعالی تاسو منع کړې یې په منافقینو باندِ دَ مونځ کولو نهٔ (یعنی په دې آیت کښې (استغفر لهم او لا تستغفر لهم الخ) نو نبی کریمﷺ ورته اُووفرمائیل (انی خیّر تُ) ما ته اختیار راکړې شوې دې، او فرمائیلی یې دی (استغفر لهم او لا تستغفر لهم ان تستغفر لهم سبعین مرةً الخ) او زهٔ به دَ سبعینو نه زیات ځله استغفار اوکړم، غرض دا چه نبی کریمﷺ په هغه جنازه اوکړه، نو دا آیت نازل شو. (ولا تصلّ علی احدٍ منهم مات – الخ) دَ دې نه بعد نبی کریمﷺ په هیڅ یو منافق جنازه نهٔ ده کړې.

حضرت عمر﷜ به په خپل دورِ خلافت کښې په جنازه کولو ډير احتياط کولو. دَ چا جنازې له به چه تللو نو اول به يې تپوس اوکړو چه حضرت حذيفه﷜ په دې جنازه کښې شرکت کوی او که نه. ځکه چه دې رازدار دَ رسول الله ﷺ وو، او نبی ﷺ دهٔ ته دَ منافقينو نومونه خودلی وو. دَ دې آيت شانِ نزول په باره کښې چه کوم حديث ذکر شو په دې کښې په ظاهر اشکال دې هغه دا چه (استغفر لهم – الخ) مفيد دَ (نهي عن الاستغفار) دې او که نه؟ که مفيد وی لپاره دَ نهی دَ استغفار نه. نو بيا ولې نبی کريم ﷺ جنازه کوله چه مقصود ترې نه استغفار وی او تخيير يې ترې نه ولې فهم کړو. او که مفيد نهٔ وی لپاره دَ نهی دَ استغفار نه، نو حضرت عمر﷜ صاحبِ لسان وو هغه ولې نهی فهم کړه. او تائيد يې په دې آيت سره اوشو، نو جواب دَ دې اشکال نهٔ دا دې چه (استغفر او لا تستغفر) دَ تسويه لپاره دې پخپله مفيد دَ نهی هم نهٔ دې او دَ امر هم نهٔ دې، بلکه امر يا نهی به دَ دليل خارجي نهٔ معلوميږی، لکه (وسواءٌ عليهم ءَ اَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُم) دَ تسويه لپاره دې. ليکن دَ دليلِ خارجي نه معلوميږی امر دَ انذار چه هغه دليلِ خارجي دا قول ده الله تعالى دې (بلّغ ما اُنزل) نو دلته کښې هم (استغفرلهم او لا تستغفر لهم – الخ) لپاره دَ استواء دې نو دا مفيد دَ نهی پخله نهٔ دې بلکه دَ دليلِ خارجي نهٔ به معلوميږی، دَ دليلِ خارجي په باره کښې دَ حضرت عمر﷜ او دَ حضور ﷺ دَ رائې اختلاف وو. دَ حضرت عمر﷜ دَ (لن يغفر الله لهم) نه دا فهم کړه چه دَ منافق جنازه عبث فعل دې او دَ منافقانو حوصله افزائی پکښې راځی او دَ (بغض في الله) تقاضا هم دا ده چه دَ ده جنازه اُوونکړې شی. نو دَ دې وجه نهٔ يې اووئيل (نهاك ربك) او دَ نبی کريم ﷺ په نظر کښې په جنازه کولو کښې څه حکمتونه وو. نو دَ هغې وجه نه يې جنازه اوکړه، يو حکمت پکښې هغه دې چه روايت دې ده قتاده﷜ نه چه نبی کريم ﷺ اُووفرمائيل (ما يُغنی عنه قميصی والله اِنّی لارجو اَن يسلم به اكثر من الف من بنی خزرج) يعنی ځما په قميص سره دَ ده نجات نه ملاويږی ليکن ما ته اُميد دې چه په دې سره به زرو (۱۰۰۰) نهٔ زيات منافقان ايمان راؤړی لکه دغه شان اوشو، چه منافقانو دَ نبی کريم ﷺ داسې عالی اخلاق او دَ بدخواهانو سره داسې لطف او شفقت او رحمت اوليدو نو دَ زرو نهٔ زيات منافقان مخلصين مؤمنان شو، او بل حکمت پکښې دا وو، چه دَ دې نهٔ يو لوئ قانون شرعی معلوم شو هغه دا چه څوك دَ زړه نهٔ ايمان او عقيده دَ توحيد، او رسالت نهٔ لری نو هغه ته هيڅ تبرك، توسل فائده نشی ورکولې، دې منافق ته په خوله کښې نبی کريم ﷺ خپل لعاب (لاړې) مبارك اچولې وو او دَ نبی کريم ﷺ په قميص کښې کفن شوې وو او داسې جنازه يې اوشوه چه سيّد الکونين ﷺ امام وو او دَ انبياؤ نه بعد په تمام مخلوقاتو کښې افضل ترين مخلوق او پاکيزه انسانان، صحابهٔ کرام﷡ مقتديان

وو، خو دَ دې باجود دَ هغه مغفرت نه کيږي او په (في الدرك الاسفل من النار) کښې به وي. نو بل چا ته به تبرك او توسل څه فائده ورکړي

﴿وَلَا تَقُمْ عَلٰى قَبْرِهٖ﴾ (على) په معنىٰ دَ (عند) سره دې څکه دَ قبر دَ پاسه اودريدل هسې منع دي. دَ نبي کريم ﷺ عادت دا وو چه کله به مړې دفن شو نو دَ قبر په خوا کښې به اودريدلو او دعا او استغفار به يې دَ مړي لپاره کوله، او همدارنګه چه کله به يې زيارت دَ يو قبر کولو نو په ولاړې به يې دعا او استغفار کول نو دلته دَ (لاتقم) نه مراد نهي دَ هغه قيام ده چه لپاره دَ دعا او استغفار وي دَ منافقينو لپاره دا منع دي.

| |
|---|
| وَلَا تُعْجِبْكَ اَمْوَالُهُمْ وَاَوْلَادُهُمْ ۭ اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّعَذِّبَهُمْ |
| اوپه تعجب کښې دې نه واچوي تا لره مالونه د دوئ او اولادونه د دوئ بيشکه غواړي الله تعالى چه عذاب ورکړي دوئ لره |
| بِهَا فِي الدُّنْيَا وَتَزْهَقَ اَنْفُسُهُمْ وَهُمْ كٰفِرُوْنَ ۝ وَ اِذَآ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ |
| په هغې سره په دنيا کښې او وخې روحونه د دوئ په داسې حال کښې چه دوئ کافر دی . اوکله چه نازل شي يو سورت |
| اَنْ اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَجَاهِدُوْا مَعَ رَسُوْلِهِ اسْتَاْذَنَكَ |
| «پدې مضمون» چه ايمان راوړئ په الله تعالى او جهاد کوئ په ملګرتيا د رسول دهغه کښې نو اجازت غواړي ستا نه |
| اُولُوا الطَّوْلِ مِنْهُمْ وَقَالُوْا ذَرْنَا نَكُنْ مَّعَ الْقٰعِدِيْنَ ۝ رَضُوْا |
| طاقت والا خلق د دوئ نه اووائي دوئ چه پريږده مونږ چه شومونږ دکيناستونکوسره . رضا، خوشحاله دی دوئ |
| بِاَنْ يَّكُوْنُوْا مَعَ الْخَوَالِفِ وَطُبِعَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ ۝ |
| په دې خبره چه شي د پاتې کيدونکو ښځو سره اومهر لګولې شويدې په زړونو د دوئ پس دوئ نه پوهيږي |
| لٰكِنِ الرَّسُوْلُ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ جٰهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ ۭ |
| ليکن رسول اوهغه څوك چه ايمان ئ راوړې دي د ده سره . جهاد کوي په مالونو خپلو سره او نفسونو خپلو سره |
| وَاُولٰۗىِٕكَ لَهُمُ الْخَيْرٰتُ ۡ وَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝ اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ |
| او دغه کسان د دوئ لپاره ډيرې خوشحالئ دی او دغه کسان هم دوئ کامياب دی تيار کړيدی الله تعالى دوئ دپاره |

جَنّٰتٍ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ خٰلِدِیۡنَ فِیۡهَا ؕ ذٰلِكَ الۡفَوۡزُ الۡعَظِیۡمُ ﴿۸۹﴾

جنتونه چه بهيږي لاندې دهغې نه ولې هميشه به وي دوئ په هغې كښ ، دا كاميابي لويه ده

﴿ وَلَا تُعۡجِبۡكَ اَمۡوَالُهُمۡ ﴾ دا سي آيت مخكښ آيت نمبر ۵۵ تير شويدې، دلته كښ يې ذكر دَ تاكيد لپاره دې او بعض حضرات وائي چه دَ مخكښ تير شوي آيت تعلق دَ حيات دَ يو حالت سره وو. هغه دا چه دَ دوئ نفقات نهٔ قبليږي په قرينه دَ ماقبل سره چه په هغې كښ دَ عدم قبول دَ نفقاتو ذكر دې او دلته يې تعلق دَ موت دَ يو حالت سره دې هغه دا چه دَ دوئ مغفرت نشي كيدې.

﴿ وَاِذَاۤ اُنۡزِلَتۡ سُوۡرَةٌ ﴾ دا هم زجر دې منافقانو ته او دَ هغوئ دَ قبائحو بيان دې چه دَ دوئ عادت دا دې چه كله حكم دَ جهاد اُوشي نو دوئ ترې نهٔ دَ پاتې كيدلو كوشش كوي، دَ سورة نهٔ مراد يا خو حصه دَ سورة ده يا ترې نهٔ مراد ټول سورة توبه دې. ﴿ اَنۡ اٰمِنُوۡا ﴾ (أن مفسره دې دَ «انزلت» تفسير كوي يا مصدريه دې او باء مقدر ده (اى بسورةٍ أمرة بالايمان) او دَ (آمنوا) حكم كه مؤمنانو ته وي نو مراد ترې نه دوام دې په ايمان او كه منافقانو ته وي نو مراد ترې نهٔ اخلاص دې په ايمان كښ او دَ ﴿ اُولُوا الطَّوۡلِ ﴾ تخصيص ځكه وشوچه دوئ جهاد له دَ تللو وسعت او طاقت لري. ﴿ نَكُنۡ مَّعَ الۡقٰعِدِیۡنَ ﴾ دَ قاعدين نهٔ مراد هغه دي چه جهاد له نشي تلې دَ عذر دَ وجه نه. ﴿ رَضُوۡا بِاَنۡ يَّكُوۡنُوۡا مَعَ الۡخَوَالِفِ ﴾ دا زجر دې منافقانو ته چه دوئ په دې خبره خوشحالي كوي چه دَ ښځو سره وي، دَ جهاد نهٔ پاتې كيدونكي يې ښځو سره مشابه كړل.

﴿ لٰكِنِ الرَّسُوۡلُ ﴾ دَ منافقينو په مقابله كښ دَ رسول الله ﷺ او دَ صحابو ؓ ذكر او هغوئ ته دَ بشارت ذكر دې په څلورو وجوهُ سره اول ذكر دَ ﴿ لَهُمُ الۡخَیۡرٰتُ ﴾ دَ دې نه مراد دَ دنيا او اٰخرت خير او منافع دى يا ترې نه مراد دَ جنت حورې دى لكه په سورت رحمٰن كښ (خيرا ت حسان) مذكور دې، دويم .﴿ هُمُ الۡمُفۡلِحُوۡنَ ﴾ يعنى مطلوب او مقصود موندونكي. او دَ عقاب او عتاب نهٔ نجات موندونكي. دريم ﴿ اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمۡ ﴾ څلورم ﴿ ذٰلِكَ الۡفَوۡزُ الۡعَظِیۡمُ ﴾

وَجَآءَ الۡمُعَذِّرُوۡنَ مِنَ الۡاَعۡرَابِ لِيُؤۡذَنَ لَهُمۡ وَقَعَدَ

او راغلل په دروغه عذر كونكي د باندچيانونه د دې لپاره چه اجازت وكړې شي دوئ ته، او بغير دعذر نه، كيناستل

الَّذِیۡنَ كَذَبُوا اللّٰهَ وَرَسُوۡلَهٗ ؕ سَيُصِيۡبُ الَّذِیۡنَ كَفَرُوۡا مِنۡهُمۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ ﴿۹۰﴾

هغه كسان چه دروغ ئ ويلي وو الله تعالى ته او رسول دهغه ته، زر ده چه وبه رسى هغه كسانو ته چه كفر ئ كړې دې عذاب دردناك

﴿ وَجَآءَ الۡمُعَذِّرُوۡنَ ﴾ دا هم زجر دې او بيان دَ حال دَ اعرابو منافقينو دې. په مدينه منوره كښ لكه

چه مخلصین او منافقین دواړه قسمه خلق وو، نو دغسې په باندو کښې (اعراب) هم دوه قسمه وو. دواړه قسمونو ذکر دلته راغلې دې، دلته دَ اعرابو دَ دوؤ قسمونو ذکر دې، (۱) يو معذرون، او (۲) قاعدون بلا عذر ﴿وَقَعَدَ الَّذِينَ كَذَبُوا﴾ نو دَ اول قسم معذرون په مصداق کښې دَ مفسرينو سلفو دوه قوله دی. **القول الاول** دا چه دَ دې نه مراد په دروغه بهانې جوړونکی منافقين دی، نو دلته دَ منافقينو دَ دوؤ قسمونو بيان اوشو، (۱) يو قسم هغه چه هغوئ دَ جهاد نه دَ پاتې کېدلو لپاره بهانې او عذرونه کړې وو، اگر که په دروغه وو. (۲) او دويم قسم هغه دې چه دَ جهاد نه پاتې شوې وو او هېڅ عذر يې نه وو پيش کړې نو ﴿سَيُصِيبُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ دواړو قسمونو ته شامل دې. **القول الثاني** دويم قول دا دې چه دَ دې نه مراد معذرين دې يعنی هغه مؤمنين مخلصين چه دَ عذر دَ وجه نه پاتې شوی وو، او دَ قاعدون نه مراد منافقين دی، نو په دې کښې دَ دوؤ قسمونو اعرابوذکر اُوشو. مخلصين اومنافقين، نودَ ﴿سَيُصِيبُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ نه مرادصرف قاعدين دې.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَاءِ وَلَا عَلَى الْمَرْضَىٰ وَلَا عَلَى الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ مَا يُنفِقُونَ | | | | | | |
| نشته په کمزورو باندې اونه په مريضانو باندې اونه په هغه کسانو چه نه مومی هغه شې چه خرچ کړی | | | | | | |
| حَرَجٌ | إِذَا | نَصَحُوا | لِلَّهِ | وَرَسُولِهِ ۚ | | |
| څه گناه (په کيناستلو کښې د جهاد نه) کله چه زړه ئ صفا وی لپاره د الله تعالی او د رسول دهغه | | | | | | |
| مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِن سَبِيلٍ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٩١﴾ وَلَا عَلَى الَّذِينَ | | | | | | |
| نشته دې په احسان کونکو باندې هېڅ لاردملامتيا، اوالله تعالی ښنونکې،مهربان دې. اونشته گناه په هغه کسانو باندې | | | | | | |
| إِذَا | مَا | أَتَوْكَ | لِتَحْمِلَهُمْ | قُلْتَ | لَا | أَجِدُ مَا |
| چه کله راشی تاته. د دې لپاره چه ته سورلئ ورکړې دوئ لره نو ته ورته وه وايې چه نه مومم زه هغه څيز | | | | | | |
| أَحْمِلُكُمْ | عَلَيْهِ | تَوَلَّوا | وَّأَعْيُنُهُمْ | تَفِيضُ | مِنَ الدَّمْعِ | حَزَنًا |
| چه تاسوسواره کړم په هغې، نودوئ واپس شی په داسې حال کښې چه سترگې ددوئ بهوی اُوښکې دوجه دغم نه | | | | | | |
| أَلَّا يَجِدُوا مَا يُنفِقُونَ ﴿٩٢﴾ إِنَّمَا السَّبِيلُ عَلَى الَّذِينَ يَسْتَأْذِنُونَكَ وَهُمْ أَغْنِيَاءُ ۚ | | | | | | |
| بدې خبره چه نه مومی هغه څيز چه خرچ کړی. بېشکه ملامتيا په هغه کسانو ده چه اجازت د پاتې کېدو غواړی او دوئ مالدار وی | | | | | | |

رَضُوْا بِاَنْ يَّكُوْنُوْا مَعَ الْخَوَالِفِ وَطَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝

خوشحاله دی په دې خبره چه شی دوئ د پاتې کيدونکو ښځو سره اومهر لګولی دې الله تعالی په زړونو د دوئ پس دوئ نه پوهيږي

﴿ لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَآءِ ﴾ په دې آيت کښ دَ معذرينو بيان دې او دَ هغه عذرونو ذکر دې چه دَ هغې په وجه دَ جهاد نهٔ پاتې کيدل جائز وی چه دوه قسمه معذورين دي يو فاقدين دَ قوتِ جسمانی. لکه بوډاګان، ګډان، وغيره او دا قسم عذر لازمی او هميشه لپاره دې، يا وقتی طور سره مريض وی نو دا عذر وقتی دې، او دويم قسم فاقدين دَ قوتِ مالی دی، چه دَ سفر خرچه او اسباب دَ سفر ورسره نهٔ وی. نو په دې قسم معذور خلقوباندې څه الزام او ګناه نشته دی ليکن دَ درې شرطونه دی.

اول شرط (نُصح لله) دويم شرط (نصح للرسول) دريم شرط (احسان) ﴿مَا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ﴾

دَ ﴿نَصَحُوْا لِلّٰهِ﴾ نه مراد (فی توحيده) دې يعنی اخلاص دَ عقيدې دَ توحيد او عمل په اوامرو دَ الله تعالی او ترک دَ منهياتو، ﴿وَرَسُوْلِهٖ﴾ نه مراد (فی سنيته) يعنی دَ سنت اتباع او دَ رسول الله ﷺ توقير و تعظيم او محبت، ﴿مَا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ﴾ احسان دا دې چه که پخپله جهاد له نشی تلې نو د مجاهدينو سره دِ تعاون کوی، په لسان سره يا دَ حالاتو اطلاع ورکولو سره يا دَ هغوئ دَ کورونو او مالونو په حفاظت سره.

﴿وَلَا عَلَى الَّذِيْنَ﴾ دا هم دَ فاقدينو دَ قوتِ مالی بيان دې، دَ رسول الله ﷺ صحبت په صحابوٴ کښ دَ عشقِ الهی داسی نشه پيدا کړې وه چه دَ هغې مثال په هيڅ قوم او ملت کښ نه ملاويږی. قدرت او طاقت والا خو دَ الله تعالی په لاره کښ جان، مال، هر څه قربانول لوئ سعادت ګڼړی. او بې طاقته او بې وسه دَ جهادنهٔ په پاتې کيدلو سره دومره خفه دې چه دَ سترګو نهٔ يی اوښکې بهيږی. او په ژړيدلو سره پاتې کيږی.

﴿اِنَّمَا السَّبِيْلُ﴾ يعنی ګناه او الزام او په هغه خلقو دې چه دَ طاقت لرلو باوجود جهاد ته نهٔ ځی ﴿مَعَ الْخَوَالِفِ﴾ (ای مع النسآء الخوالف) دَ جهاد نهٔ پاتې کيدونکی يی دَ زنانو سره مشابه کړل ﴿فَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ﴾ منافقين نهٔ پوهيږی چه په جهاد کښ دَ دنيا او آخرت څومره ډيرې نفعې او خير دې

لسمه پاره ختمه شوه ولله الحمد اولاً واخراً

يَعْتَذِرُوْنَ اِلَيْكُمْ اِذَا رَجَعْتُمْ اِلَيْهِمْ ؕ قُلْ لَّا تَعْتَذِرُوْا

دوئ به د دروغو عذرونه پیش کوی تاسو ته کله چه واپس شئ تاسې دوئ ته. ته ورته وه وایه عذرونه مه کوئ

لَنْ نُّؤْمِنَ لَكُمْ قَدْ نَبَّاَنَا اللّٰهُ مِنْ اَخْبَارِكُمْ ؕ

هرګز یقین نه کوؤ مونږ په تاسو، په تحقیق سره خبر راکړیدې الله تعالی مونږ ته ستاسې د حالاتو نه

وَسَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمْ وَ رَسُوْلُهٗ ثُمَّ تُرَدُّوْنَ اِلٰى عٰلِمِ

اوعنقریب چه وبه وینی الله تعالی ستاسو عمل اورسول دهغه بیا به تاسو واپس ګرزولې شئ هغه ذات ته چه عالم دې

الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝ سَيَحْلِفُوْنَ

په هر پټ ښکاره باندې پس خبر به کړی تاسو په هغه عملونو چه تاسو به کول زرده چه قسمونه به کوی دوئ

بِاللّٰهِ لَكُمْ اِذَا انْقَلَبْتُمْ اِلَيْهِمْ لِتُعْرِضُوْا عَنْهُمْ ؕ فَاَعْرِضُوْا

په الله تعالی باندې تاسو ته کله چه واپس شئ تاسې دوئ ته د دې لپاره چه تاسې مخ واړوئ ددوئ نه، پس تاسې مخ واړوئ

عَنْهُمْ ؕ اِنَّهُمْ رِجْسٌ ز وَّمَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۚ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ۝

د دوئ نه، بیشکه دوئ پلیت دی او ځائ د دوئ جهنم دې ، بدله به ورکیدې شی دهغه عملونو چه دوئ ئ کوی

يَحْلِفُوْنَ لَكُمْ لِتَرْضَوْا عَنْهُمْ ۚ فَاِنْ تَرْضَوْا عَنْهُمْ

دوئ قسمونه کوی تاسوته د دې لپاره چه تاسې راضی شئ د دوئ نه، پس که تاسو راضی شئ د دوئ نه

فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يَرْضٰى عَنِ الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ ۝ اَلْاَعْرَابُ اَشَدُّ كُفْرًا

پس بیشکه الله تعالی نه راضی کیږی د قوم نافرمان نه بانډه چیان منافقان [1] ډیر سخت دی په کفر کښ

وَّنِفَاقًا وَّاَجْدَرُ اَلَّا يَعْلَمُوْا حُدُوْدَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ

او په منافقت کښ او لائق دی د دې خبرې چه نه پوهیږی په احکامو د شریعت، چه نازل کړیدی الله تعالی

[1] - د اعرابو منافقینو ذکر.

﴿عَلٰى رَسُوْلِهٖ ۚ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ﴾

په خپل رسول، او الله تعالى عليم ، حكيم دي

﴿يَعْتَذِرُوْنَ اِلَيْكُمْ اِذَا رَجَعْتُمْ﴾ دا زجر دي منافقينو ته او بيان د نورو قبائحو ددوى دي.او دا آيتونه په سفر د تبوك كښې نازل شوى دى او په دې آيت كښې پيشين ګوئى ده چې تاسو واپس شئ نو دوئ به د دروغو عذرونه كوى،دلته درې تعبيرونه شول اول ﴿يَعْتَذِرُوْنَ﴾ دويم ﴿سَيَحْلِفُوْنَ﴾ اودا بدل دې د يعتذرون نه، دريم ﴿يَحْلِفُوْنَ لَكُمْ﴾ دا بدل ثانى دې، د ﴿يَعْتَذِرُوْنَ﴾ علت نه دې ذكر شوې چې د څه دپاره دوى عذر كوى. ليكن د جواب نه علت معلوميږى څكه جواب دادې : (لا تعتذروا لن نؤمن لكم) ددې نه معلوميږى چې د عذر كولو مقصد دا ووچې رسول اللهﷺ او مؤمنان زمونږ په خبره يقين اوكړى،نو الله تعالى اوفرمائيل چې يقين پرې مۀ كوئ،او د (سيحلفون) مقصد دا دې چې ﴿لِتُعْرِضُوْا﴾ تاسو د دوئ نه اعراض اوكړئ،او طعن او پيغورورنه مه وركوئ، نو ددې جواب دا راغې چې ﴿فَاَعْرِضُوْا عَنْهُمْ﴾ يعنى دوئ ته طعن او پيغور څه فائده نه كوى، پېغور هغه چا ته فائده كوى چه لګ شان غيرت پكښې وى ،نو په پيغور سره د غلط كار نه منع شى،او په چا كښې چې ايمان نه وى نو هغه ته پيغور فائده نه وركوى ،او په دريم ځل چه ذكر شويدى يعنې (يحلفون) نو د دې مقصد دادې چه ﴿لِتَرْضَوْا عَنْهُمْ﴾ چه تاسو د دوئ نه راضى شئ نو د دې جواب دا راغې چه ﴿فَاِنْ تَرْضَوْا﴾. يعنې الله ترينه راضى نه دې ،نو تاسو ترېنه مه راضى كېږئ،چه الله د چا نه ناراض وى نو د بل چا راضى كيدل اوخوشحالېدل څه فائده نه وركوى، نو دا مقصدونه چه ذكر شول نو دا احتمال لرى چه د ټولو منافقينو دغه مقصدونه وى. يا د بعضو يو مقصد وې او د نورو بل مقصد وى.

﴿قَدْ نَبَّاَنَا اللّٰهُ﴾ د پټو خبرو نه خبرولو ته انباء وائى،نو دا علم غيب نه دې بلكه دا يت دليل دې په دې چه عالم الغيب صرف الله دې،هغه د بعضې غيبونو خبر وركوى خپل رسول او صحابو ته. ﴿وَسَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمْ﴾ ،سين د استقبال د پاره دې، نو معلومه شوه چه د ﴿عَمَلَكُمْ﴾ نه مراد راتلونكى اعمال دى ،يعنى توبه كول د نفاق نه او يا نه كول ،لكه مفسرينو تقريبا ټولو داسې ليكلي دى، (التوبون من نفاقكم ام تقيمون عليه) بعض جاهلان چه د دې آيت نه چه

استدلال کوی چه نبی حاضر ناظر دي ، دا غلط دي مخالف دي د سابق نه هم چه ﴿نَبَّأَنَا اللَّهُ﴾ دي او د ما بعد نه هم چه ﴿ثُمَّ تُرَدُّونَ إِلَىٰ عَالِمِ الْغَيْبِ﴾ دي بل دا چه آيت نمبر ۱۰۵ کښې ورسره د (المومنون) هم ذکر دي نو لازمه شوه چه ټول مومنان دي هم عالم الغيب او حاضر ناظر شي.او صاحب د روح المعاني وائي چه (ورسوله) چه معطوف دي په فاعل نو دا ئ د مفعول نه چه (عملکم) دي مؤخر کړو. په دي کښې ايذان دي چه په ما بين د رؤيت د الله او رؤيت د رسول الله کښې فرق دي او اختلاف دي.

﴿الاعراب اشد﴾ دا د اعرابو منافقينو ذکر دي، چه دوئ د سخت مزاجئ د وجې نه په کفر او نفاق کښې ډيرسخت دی ،او د اهل علم او د اهل عقل نه د بُعد د وجې نه جاهل او بې خبره دی د احکامو او آدابو د شريعت نه ،اوجهل، سخت مزاجی او بې خبری د شريعت نه دا دليل دي د شدت د نفاق ،

وَمِنَ الْأَعْرَابِ مَنْ يَتَّخِذُ مَا يُنْفِقُ مَغْرَمًا وَيَتَرَبَّصُ بِكُمُ الدَّوَائِرَ ۚ

اوبعضې د باندچيانو نه هغه څوك دی چه تاوان ګڼری خرڅه کول په جهاد کښې او انتظار کوی په تاسو باندې د آفتونو ،

عَلَيْهِمْ دَائِرَةُ السَّوْءِ ۗ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٩٨﴾ وَمِنَ الْأَعْرَابِ

په دوئ باندې دي وی مصيبتونه بد، او الله تعالی هرڅه اوريدونکې اوپوهه دې. اوبعضې د باندچيانونه [1]

مَنْ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَيَتَّخِذُ مَا يُنْفِقُ قُرُبَاتٍ عِنْدَ اللَّهِ

هغه څوك دی چه ايمان لری په الله تعالی او په ورځ د آخرت او ګڼری خرچ کول په لاره د الله تعالی کښې سبب د نزديکت الله تعالی ته

وَصَلَوَاتِ الرَّسُولِ ۚ أَلَا إِنَّهَا قُرْبَةٌ لَهُمْ ۚ سَيُدْخِلُهُمُ

او ذريعه د دعاګانو د رسول، خبردار ! بيشکه دا خرچ کول سبب د نزديکت د دوئ دي، عنقريب چه داخل به کړی دوئ لره

اللَّهُ فِي رَحْمَتِهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿٩٩﴾ وَالسَّابِقُونَ الْأَوَّلُونَ

الله تعالی په خاص رحمت خپل کښې، بيشکه الله تعالی بښونکې ، رحم کونکې دی او سبقت کونکی مخکنی

1 د منافقينو په مقابله کښې د اعرابو مؤمنانو ذکر.

مِنَ الۡمُهٰجِرِيۡنَ وَالۡاَنۡصَارِ وَالَّذِيۡنَ اتَّبَعُوۡهُمۡ بِاِحۡسَانٍ ۙ رَّضِيَ اللّٰهُ

دمهاجرينو او انصارو نه. اوهغه كسان چه تابعداري كوي د دوئ، په ښه طريقه اوخلوص نيت سره، راضي دې الله تعالى

عَنۡهُمۡ وَرَضُوۡا عَنۡهُ وَاَعَدَّ لَهُمۡ جَنّٰتٍ تَجۡرِيۡ تَحۡتَهَا الۡاَنۡهٰرُ

د دوئ نه. او دوئ راضي دى د الله تعالى نه او تيار كړي ئ دي دوئ لره جنتونه چه بهيږي لاندې دهغې نه نهرونه.

خٰلِدِيۡنَ فِيۡهَاۤ اَبَدًا ؕ ذٰلِكَ الۡفَوۡزُ الۡعَظِيۡمُ ۝

هميشه به وی دوئ په هغې كښ هميشه، دا كاميابي لويه ده.

﴿ وَمِنَ الۡاَعۡرَابِ ﴾ دا د بل قسم دَ اعرابو د منافقينو بيان دې ،چه د كفر او د جهالت نه علاوه په بخل او عداوت هم موصوف دی ، بخل دا چه په جهاد كښ كومه چنده يا زكوة وركړی نو تاوان ئی شماری ،او عداوت دا چه دوی انتظار كوی د دې چه كله به په تاسو څه حادثه راځی .(دوائر) جمع د دائرة ده په اصل كښ هغه حالت ته وائی چه نعمت په مصيبت بدل شی.اودلته ترينه عامې حادثې مراد دی، ﴿عَلَيۡهِمۡ دَآئِرَةُ السَّوۡءِ ﴾ دابدعاده دوئ ته نو انشاء ده معنٰی يا اخبار دې د حوادثو واقع كيدونه په دوئ باندې، چه فتوحات به اوشی او كفار به ذليل اومغلوب شی . نو منافقان به په حسرت كښ پاتې شی، ﴿ وَمِنَ الۡاَعۡرَابِ مَنۡ يُّؤۡمِنُ ﴾د منافقينو اعرابو په مقابله كښ د مومنانو اعرابو ذكر دې .چه دوئ په اخلاص سره ايمان راوړی په الله او په رسول باندې او چه څه خرچ كړی په جهاد كښ هغه سبب د قرب الهی گنړی او ذريعه د دعاگانو د رسول الله ئ گرځوی،ځكه چه د نبی كريم ﷺ عادت دا وو چه صدقه وركونكی ته به ئی دعا كوله (اللهم صل علي آل فلان) به ئي ويل ، ﴿اَلَاۤ اِنَّهَا قُرۡبَةٌ لَّهُمۡ ﴾ يعني د دوئ صدقه ذريعه د دعاگانو د رسول ﷺ ده او حصول د قرب الهی دې ، دلته صرف د قربت ذكر ځكه اوشو چه د صلوات الرسول مقصد قرب الهی دې ، نو د دې وجې نه د قربت ذكر په ډيرو تاكيداتو سره اوشو ،او بشارت ورته ذكر شو ﴿سَيُدۡخِلُهُمُ اللّٰهُ فِيۡ رَحۡمَتِهٖ﴾، د رحمت نه مراد جنتونه دی. ﴿وَالسّٰبِقُوۡنَ الۡاَوَّلُوۡنَ ﴾ داد صحابو مهاجرينو او انصارو شان بيانيگی اوهغوئ ته بشارت ذكر كيږی .الله دوئ ته د خپلې رضا اود جنتونو اعلان كوی

روايت دې د حميد بن زياد نه هغه وائی چه ما يو ورځ د محمد بن كعب القرظی نه تپوس اوكړو چه آيا ته ما ته خبر نه راكوې د اصحابو د رسول صلی الله عليه وسلم نه . د هغه فتنو او جنګونو نه چه د دوئ په مينځ كښې شوی وو؟ نو هغوئ ماته ووېل چه الله بخنه كړې ده ټولو ته او واجب كړې ئ دې په خپل كتاب كښې جنت د دوئ د پاره مُحسن ته «احسان اونيكی كونكی ته» او مسئ ته «يعنی هغه څوك چه ګناه ترينه شوې وی». نو ماورته ووېل چه په كتاب الله كښې په كوم ځائ كښې دوئ د پاره جنت واجب كړې شوې دې؟ نو هغوئ وفرمائل چه سبحان الله آيا ته نه لولې دا قول د الله ﴿وَٱلسَّـٰبِقُونَ ٱلْأَوَّلُونَ﴾.چه د دې نه معلومه شوه چه الله د ټولو صحابوؤ پاره جنت او خپله رضا واجب كړې ده ، او د نورو خلقو د پاره ئې شرط لګولې دې، نو ما ورته اوئيل چه هغه څه شرط دې ؟ نوهغوئ اوفرمائيل چه اتباع باحسان .يعنی دوئ به اتباع كوی د صحابؤ په اعمال حسنؤ كښې نه په غير كښې ، او دا چه دوئ به د صحابؤپه باره كښې بدې خبرې نه كوی ،او طعن به نه كوی په هغوئ باندې . په هغې كښې چه د هغوئ په مابين كښې شوی دی ، «يعنی په دې شرط به ورته جنت ملاويږی».

**فائده** دمفسرينوسلفو اقوال په باره دَ تعين د سابقينو اولينو كښې مختلف دی .«اګر كه تعارض پكښې نشته » (۱) بعض وائی چه دا هغه دی چه د هجرت نه مخكښې په اسلام مشرف شوی وؤ . (۲) بعض وائي چه هغه دی چه قبلتينو كعبه شريفه او بيت المقدس ته ئې مونځ كړې وی (۳) بعض وائی چه هغه دی چه د جنګ بدر پورې په اسلام كښې داخل شوی وی . (۴) بعض وائی دا هغه دی چه د حديبيی پورې په اسلام كښې داخل شوی وی . او بيعت الرضوان ته حاضر شوی وی . (۵) امام رازی وائی چه سبقيت د امورو اضافيو نه دې دلته الله سبقيت ذكر كړې دې خو دا ئی نه دی ذكر كړی چه د كوم وخت پورې. البته د هجرت او د نصرت ذكر ئې كړې دې . نو معلومه شوه . چه سبقيت په هجرت او نصرت كښې مراد دې . نو څوك چه د بل ځا نه په هجرت او دنصرت كښې مخكښې وی نو هغه د سابقين اولين نه دې اګر كه د بعضو نه روستو هم وی . او هم دارنګه هجرت او نصرت چونكې په نفس باندې ګران دې نو دا اطاعت عظيمه دې نو څوك چه سبقيت اوكړی په كښې نو هغه د دغه غيردپاره نمونه اوګرځی او داخل شی په (من سن سنة حسنة فله اجرها واجرمن عمل بها) كښې.

وَمِمَّنْ حَوْلَكُمْ مِّنَ الْأَعْرَابِ مُنٰفِقُوْنَ ۛ وَمِنْ اَهْلِ الْمَدِيْنَةِ ۛ

اوبعضې دهغه چانه چه ګيرچاپيره دی ستاسو نه د بانده چيانونه منافقان دی، او بعضې د دمدينې والؤ نه

مَرَدُوْا عَلَى النِّفَاقِ ۗ لَا تَعْلَمُهُمْ ۗ نَحْنُ نَعْلَمُهُمْ ۗ سَنُعَذِّبُهُمْ مَّرَّتَيْنِ

کلك دی په منافقت باندې، نه پيژنې ته دوئ لره، مونږ پيژنو دوئ . زرده چه مونږ به عذاب ورکړو دوئ لره دوه ځله

ثُمَّ يُرَدُّوْنَ اِلٰى عَذَابٍ عَظِيْمٍ ۞ وَاٰخَرُوْنَ اعْتَرَفُوْا بِذُنُوْبِهِمْ خَلَطُوْا عَمَلًا صَالِحًا

بيا به وګرځولې شی عذاب لوئ ته . اونور کسان دی چه اقرار ئ کړې دې په ګناهونو خپلو، ګډ کړيدې دوئ ځه نيك عمل

وَّاٰخَرَ سَيِّئًا ۗ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّتُوْبَ عَلَيْهِمْ ۗ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۞

او نور بد عمل، قريبه ده چه الله تعالى توبه قبوله کړی د دوئ، بيشکه الله تعالى بښونکې مهربانه دې

﴿ وَمِمَّنْ حَوْلَكُمْ مِّنَ الْأَعْرَابِ ﴾ داد هغه منافقينو ذکر دې چه د مدينې ګرد ونواح کښ اوسيدل ،چه دا بعض منافقين دومره کمال درجې ته رسيدلی دی چه ته ئی هم د ډير فطانت او ذهانت نه په قطعی طور سره نه پيژنې ، صرف په علاماتو سره به ئی پيژنې ، يعنې په علم ظنی سره لکه په سورة محمد کښ دی ﴿وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِيْ لَحْنِ الْقَوْلِ ﴾ ، ﴿سَنُعَذِّبُهُمْ مَّرَّتَيْنِ ﴾ . يو ځل عذاب د قبر دې او بل ځل عذاب د دنيا او د دې هم ډير صورتونه دی ، رسوا کيدل د دوئ په اظهار د نفاق سره لکه د ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې چه نبی کريم صلی الله عليه وسلم يو ځل په ممبر ولاړ وو، او د شپږ ديرش منافقانو نومونه ئی واخستل او دا به ئی ويل چه (اخرج يا فلان فانك منافق) او حضرت عمر په دغه وخت په مسجد کښ حاضر نه وو، نو چه دوئ بهر ته راووتل نو حضرت عمر مسجد ته راروان وو، نو عمر ګمان اوکړو چه د جمع مونځ رانه اوشو نو د شرم نه پټيدلو او دوئ چه عمر اوليدلو نو ګمان ئی اوکړو چه عمر په مونځ کښ حاضر وو، او زمونږ په حال خبر شو نو د يرې نه پټيدل . بيا چه حضرت عمر مسجد نبوی ته راغې نو جمع نه شوې وه ، نو يو کس ورته اوويل (ابشر ياعمر فقد فضح الله المنافقين اليوم) يعنې تاته زيرې دې چه الله منافقين رسوا کړل ، (۲) د دوئ مالونه اولاد ونه الله د دوئ په حق کښ عذاب ګرزولی دی ، لکه مخکښ آيتونو کښ تير شول ﴿ فَلَا تُعْجِبْكَ اَمْوَالُهُمْ وَلَآ

أَوْلَٰدُهُمْ ﴾ (۳)عذاب د لوګې او د تندې لکه په بعض رواياتو د بخاری کښې د بعض منافقينو په باره کښې دی چه دوئ که اوبه څکی نو هم ئی تنده نه ماتيږی ، (۴) بيماريئ او تکليفونه چه د مؤمن دپاره کفاره د ګناهونو ده نو د منافقينو د پاره عذاب دې ، (۵) د اسلام او د مسلمانانو ترقی ته چه منافقان ګوری دا د دوی د پاره عذاب دې . ﴿ثُمَّ يُرَدُّونَ ﴾ د دې نه مراد عذاب د قيامت دې .

﴿ وَءَاخَرُونَ ٱعْتَرَفُوا۟ ﴾ په دې کښې د مخلصينو صحابؤ کرامو ذکر دې ، چه د غزوه تبوك نه پاتې شوی وو ،اوبيا ورته د خپلې غلطئ احساس اوشو نو د ډير ندامت په وجه ئی خپل ځانونه د مسجد نبوی په ستنو پورې ترلی وو او عهد ئی کړې وو چه تر څوپورې زمونږ توبه نه وی قبوله شوې او نبی کريم ﷺ مونږ په خپل لاس نه يو پرانستی نو مونږ به هم دغسې قيد يان ترلی يو ، نبی کريم ﷺ چه د دوئ دا حال وليدلو نو دا ئی وفرمائل چه والله چه څو پورې الله د دوئ د آزادولو حکم نه وی کړې ، نو زه به ئی آزاد نه کړم نو دا آيت نازل شو ، نو نبی کريم ﷺ بيا پرانستل او د توبې قبليدو بشارت ئ ورته ورکړو ، او د دوئ په عدد کښې مختلف روايات دی ، ۱۳،۸،۵،۳ ،يو په دوئ کښې حضرت ابو لبابه بن عبد المنذر وو ، ﴿ وَءَاخَرُونَ ﴾ مبتداء ده او خبر ورله مقدم مقدر دې (ای منهم آخرون )،او د ذنوب نه مراد د جهاد نه پاتې کيدل دی ،اود عمل صالح نه مراد نورو جهادونو کښې شرکت او نور اعمال صالحه دی .

﴿عَسَى ٱللَّهُ ﴾ ،عسی په کلام الهی کښې د وعدې د پاره راځی ، يعنی کومو خلقو چه د خپلې ګناه اعتراف اوکړو او ندامت ئی ښکاره کړو ،او دا اصل حقيقت د توبې دې ، نو دوئ سره د الله وعده ده چه په خپل رحمت سره د دوئ توبه قبلوی ، مفسرين وائی چه دا آيت اګر چه په باره د خاص واقعې کښې نازل شوې دې ، ليکن حکم ئی د قيامت پورې د مسلمانانو د پاره دې ، ابو عثمان وائ چه دا آيت د دې امت د پاره ډير د اميد پيدا کونکې دې ،په صحيح بخاری کښې د معراج نبوی په باره کښې د يو طويل حديث يوه قطعه کښې داسې دی چه په اوم (۷) اسمان کښې چه کله د ابراهيم ﷺ سره ملاقات اوشو نو د څه خلقو سره ئی ملاقات اوشو چه مخونه ئی سپين وو ، او د بعض خلقو په مخونو باندې داغونه وو ، دوئ ته حکم اوشو چه په دغه نهر باندې داخل شئ ، او غسل اوکړی او واپس راشی نو چه دوئ غسل اوکړو نو د دوئ مخونه هُم بالکل سپين شو ، جبرائيل ﷺ نبی ﷺ ته اوويل چه دا سپين مخونو والا هغه خلق دی

چه ايمان ئې راوړو او د ګناهونو نه پاك پاتې شو . او دا دويم هغه خلق دي چه دوئ نيك او بد اعمال خلط كړي دي ، او الله ﷻ د دوئ ګناهونه معاف كړل او توبه ئې ورله قبوله كړه.

| خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِمْ بِهَا |
|---|
| واخله دمالونو د دوئ نه صدقه چه ته پاك وګرځوې دوئ لره او چه زيات او بركتي كړې د دوئ مال په سبب د هغې |
| وَصَلِّ عَلَيْهِمْ ۖ إِنَّ صَلَاتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ ۗ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١٠٣﴾ أَلَمْ يَعْلَمُوا |
| او دعا كوه دوئ ته بيشكه دعا ستا آرام دې د زړونو د دوئ، او الله تعالى اوريدونكې عليم دې آيا دوئ نه پوهيږي |
| أَنَّ اللَّهَ هُوَ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِ وَيَأْخُذُ الصَّدَقَاتِ وَأَنَّ اللَّهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴿١٠٤﴾ |
| چه بيشكه الله تعالى قبلوى توبه د بندګانو ، او قبلوى زكاتونه او بيشكه الله تعالى ډير توبه قبلونكې دې. مهربان دې |
| وَقُلِ اعْمَلُوا فَسَيَرَى اللَّهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُولُهُ وَالْمُؤْمِنُونَ ۖ |
| او وه وايه عمل كوئ پس خامخا به وه وينى الله تعالى عمل ستاسو او رسول دهغه اومؤمنان. |
| وَسَتُرَدُّونَ إِلَىٰ عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُم |
| او زرده چه تاسو به وګرځولې شئ الله تعالى ته چه عالم دې په پټ او په ښكاره ، پس خبر به كړى تاسو لره |
| بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿١٠٥﴾ وَآخَرُونَ مُرْجَوْنَ لِأَمْرِ اللَّهِ إِمَّا يُعَذِّبُهُمْ |
| په هغه عملونو چه تاسو ئې كوئ اونور كسان دي چه روستو كړې شوى دى فيصلې د الله تعالى ته يا به عذاب وركړى دوئ لره |
| وَإِمَّا يَتُوبُ عَلَيْهِمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿١٠٦﴾ |
| او يا به توفيق د توبې وركړى دوئ لره، او الله تعالى عليم.حكيم دې |

﴿خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً﴾ د كومو خلقو چه توبه قبوله شوه او الله ﷻ د هغوئ د آزادولو حكم اوكړو او نبى ﷺ دوئ په خپل لاس مبارك سره پرانستل، نو دوئ د شكرئې د پاره خپل ټول مال د صدقې د پاره پيش كړو، نو نبى ﷺ دوئ ته اؤفرمائل چه ماته دمال د اخستو حكم نه دې شوې نو دا آيت نازل شو او نبى ﷺ د دوئ د مال ثلث يعنى دريمه حصه قبوله كړه لكه په دې آيت كښې په لفظ ده (من) كښې دې ته اشاره شوې ده . ﴿تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا﴾ .د دې دواړو په

مینځ کښې فرق دا دې چه د (تطهرهم) نه مراد پاکول دی د ګناهونه یا د محبت د مال نه . او د (تزکیهم) نه مراد نماء او زیادت د حسناتو او وصول دې د مراتبو د مخلصینو ته. یاترینه مراد مبالغه په پاکوالی کښې ده او ،(تطهر)،یا صیغه د مخاطب ده او خطاب نبی ﷺ ته دې یا صیغه د واحد مؤنث غائب ده او (تطهر) صفت دې د (صدقة) د پاره او (تزکیهم) صیغه د مخاطب ده قطعا. **سوال** واردیږی چه ګناه خو په توبې سره معاف کیږی نو توبه ذریعه د تطهیرده نو بیا صدقه اخستل د تطهیر د پاره څه مطلب لری ،**جواب** دادې چه په توبې سره اګر که ګناه معاف شی خو څه ظلمت او نحوست ئې پاتې وی ، لکه د یوې کپړې نه چه صرف په وینځلو سره پلیتی زائله شی لیکن د پلیتئ رنګ او اثر پاتې وی، نو په صدقې سره دغه ظلمت او نحوست زائله شی ﴿وَصَلِّ عَلَيْهِمْ﴾ .د صلوة نه مراد دعا د رحمت ده، نبی ﷺ ته چه به چا صدقه راوړه نو عادت کریمه ئې دا ؤو چه دعا به ئې ورته کوله او په لفظ د صلوة سره به ئې دعا کوله لکه په روایت د صحیحینو وغیره کښې مذکور دی ، (اللهم صل علی آل ابی اوفی )، لیکن دعا په لفظ د صلوة سره د انبیاؤ د پاره مخصوص علامه او حق دې نو د دې وجې نه که نبی ﷺ د چا په حق کښې دعا کوی نو کولې شی . لیکن دعامو خلقو لپاره دُعاء په لفظ د صلوة سره صرف د نبی کریم صلی الله علیه په حق کښې ده او د بل چا لپاره نشته دې . ﴿أَلَمْ يَعْلَمُوٓا﴾ .دا ترغیب دې د توبه کولو او صدقه ورکولو ته او په حدیث کښې راغلی دی (رواه احمد . مالك .دارمی) چه نشته دې یو بنده چه صدقه اؤکړی د کسب حلال نه او نه قبلوی الله مګر پاك حلال او نه خیجی آسمان ته مګر پاك حلال مال مګر رحمن ئې په خپل لاس کښې کیدی . او بیا ئې تربیت کوی لکه تاسو یوکس چه د آس د بچی تربیت کوئ، نو حتی چه یوه وړه لقمه به د قیامت په ورځ د لوئ غر په شان حاضره شی ، او بیا ئی دا آیت تلاوت کړو ، ﴿وَقُلِ اعْمَلُوا﴾ . مخکښې آیت کښې ترغیب ؤو،او دا ترهیب دې چه تاسو څه عمل اؤکړئ نو اول به هغه په دنیا کښې الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ او مومنان اؤوینی نو د بد عمل نتیجه په دنیا کښې رسوائی ده او بیا په آخرت کښې تاسو د عالم الغیب وشهادة په حضورکښې پیش کیږئ . نو هغه به د بدو عملونو بدله تاسو له درکړی، په دې آیت کښې د مؤمنین نه مراد صحابه کرام دی او دلته هم ﴿وَرَسُولُهُ وَالْمُؤْمِنُونَ﴾ عطف دې په لفظ دَ الله باندې نو (عملکم) چه مفعول دې دا مقدم شو نو په دیکښې اشاره ده تفاوت ته په مابین د رؤیت د الله ﷻ اوپه رؤیت د رسول ﷺ او په رؤیت د

مومنانو کښې، او رؤيت د الله ﷻ مافوق الاسباب دې ، او رؤيت د رسول په واسطه د وحې سره دې ، او رؤيت د مؤمنانو په واسطه داطلاع د نبي ﷺ سره دې مومنانو ته. او بعض ملحدين او روافض وائي چه د ﴿وَالْمُؤْمِنُوْنَ﴾ نه دولس امامان معصومين مراد دی او بعض اهل بدعت وائي چه د دې نه اولياء كرام مراد دی ، دا ټول خرافات او زنديقيت دې.

﴿ وَءَاخَرُوْنَ مُرْجَوْنَ ﴾ ،د غزوه تبوك نه چه كوم لس كسان مخلصين مسلمانان پاتې شوی وو ، د نبي ﷺ په راتلو سره اووه كسانو خپل ځانونه په ستنو پورې تړلي وو ، بيا د هغوئ توبه قبوله شوه لكه مخكښې ئې ذكر تير شو ، او درې كسانو خپل ځانونه نه ؤو تړلي او د دروغو عزرونه ئې هم نه ؤو پيش كړی په دې آيت كښې د هغوئ ذكر دې ، (مرجون) په معنی : (مؤخرون) او موقوفٌ أَمرَهُمْ سره دې، يعنې د دوئ توبه مؤخره شوې ده او دوئ معامله موقوفه ده ،﴿ إِمَّا يُعَذِّبُهُمْ وَإِمَّا يَتُوبُ عَلَيْهِمْ ﴾ ،دا ترديد په دې اعتبار سره دې چه كه دوئ توبه په اخلاص اؤنه كړی نو عذاب به ورته وركړې شی ، او كه توبه په اخلاص سره اوكړی نو توبه به ئې قبوله شی ، نو دا ترديد په نسبت سره بندګانو ته دې ، نه په نسبت سره الله ﷻ ته .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالَّذِيْنَ | اتَّخَذُوْا | مَسْجِدًا | ضِرَارًا | وَّ كُفْرًا |

اوبعضې د منافقينو نه هغه كسان دی چه جوړ كړې ئې دې مسجد د ضرر وركولو لپاره او د وجه د كفر نه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَّتَفْرِيْقًا | بَيْنَ | الْمُؤْمِنِيْنَ | وَإِرْصَادًا | لِّمَنْ | حَارَبَ | اللهَ |

او لپاره د تفريق پيدا كولو په مينځ د مؤمنانو كښې او مورچه لپاره د هغه چا چه جنګ او خلاف ئې كړې دې د الله تعالی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَرَسُوْلَهٗ | مِنْ | قَبْلُ ؕ | وَلَيَحْلِفُنَّ | اِنْ | اَرَدْنَاۤ | اِلَّا | الْحُسْنٰى ؕ |

اود هغه د رسول نه، مخكښې د دينه، اوخامخا به دوئ قسمونه كوی چه مونږ اراده نه وه كړې پدې سره مګر نيكی كول

وَاللّٰهُ يَشْهَدُ اِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿١٠٧﴾

او الله تعالی ګواه دې چه بيشكه دوئ خامخا دروغژن دی .

﴿وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مَسْجِدًا﴾ ،دا عطف دې په ما سبق باندې ، (ای ومنهم الذين اتخذو ).او دا آيتونه سفری دی په سفر د تبوك كښې نازل شوی دی ، په باره د مسجد ضرار كښې چه د هغې

تفصل مفسرینو داسې لیکلي دي چه په مدینه منوره کښې یو کس چه ابو عامر نوم ئې وو په زمانه د جاهلیت کښې نصرانی راهب شوې وو. او دې د مشهور صحابی حضرت حنظله غسیل الملائکه پلار وو. هر کله چه نبی ﷺ مدینې ته تشریف راوړونو ابو عامر حاضر شو. او په اسلام ئې اعتراض اوکړو، نبی ﷺ ورته جوابونه ورکړل. لیکن دا بد بخته مطمئن نه شو. بلکه دا بد دعاء ئې اوکړه (مات الکاذب منا وحیدا طریدا غریبا) یعنی دروغژن دې د اقاربو نه په لرې وطن کښې یواځې مړ شی. نو نبی ﷺ آمین اونیل او ده ته ئې د ابو عامر الفاسق نوم اووئیلو، نوده دا اوئیل چه تاسوکوم دشمن سره مقابله کښې راشئ نوزه به دهغه سره مدد کوم، نو دې په ټولوغزاګانوکښې د مسلمانانو خلاف د دشمنانو سره په جنګ کښې شریك وو. لیکن چه هر کله د فتح مکې نه بعد هوازن او ثقیف هم شکست وخوړلو نو دې مایوس شو، او ملك شام ته لاړو ځکه چه شام د نصرانیانو مرکز ؤو، او هلته کښې بې وطنه د اقاربو نه لرې مردار شو چه څوك ئې د پرسان حال نه وو. بدبخت په خپله ټوله زندګئ کښې د اسلام خلاف سازشونه کول، یو سازش ئې دا هم جوړ کړې وو چه منافقینو د مدینې ته ئې خط اولیږلو چه زه قیصر روم ته ځم چه په مدینه باندې حمله وکړی نو تاسو په مدینه کښې یو مکان د مسجد په نوم جوړ کړئ د دې دپاره چه د مسلمانانو شك او شبه رانشی او په دې کښې ډیره اسلحه جمع کړئ. او د مسلمانانو خلاف ترتیب په مشوره سره شروع کړئ، نو منافقینو په قباء کښې د مسجد په نوم مکان جوړ کړو، او مسلمانانو ته د دهوکې ورکولو دپاره او د مطمئن کیدلو د پاره ئ دا کار اوکړو چه یو وفد مدینې ته د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او درخواست ئې اوکړو، چه چونکې ضعیفانو او بیمارانو د پاره هر وقت مسجد قباء ته په تلو کښې تکلیف وی او بل دا چه مسجد قباء ډیر وسیع هم نه دې چه ټول خلق پکښې ځائې شی نو د دې وجې نه مونږیو بل مسجد جوړکړې دې چه ضعیفانو ته سهولت وی، نو تاسو تشریف راوړئ او د برکت د پاره هلته مونځ اوکړئ، رسول ﷺ د غزوه تبوك په تیاریٔ کښې مشغول وو نو دوئ ته ئې اویل چه فی الحال زه په سفر روان یم او چه را واپس شم نو بیا به هلته مونځ اوکړم، نو د غزوه تبوك نه په واپسئ کښې چه نبی ﷺ مدینې ته قریب یو ځائ ته راورسیدلو نو دا آیتونه نازل شول او د منافقینو سازش ښکاره شو، نو نبی ﷺ یو څو کسان صحابه اولیږل او دغه مکان ئې اونړولو، او اور ئې ورته واچولو.

**فائده (۱)** قادیانانو خپل عبادت ګاه ته مسجد اوئیل نو مسلمانانو په دې حکومت ته

اپيل اوكړو ، چه دي ته مسجد ويل ناجائز او د مسجدونو توهين دې ، او په هائي كورټ كښې
ئى كيس شروع كړو نو قاديانانو په استدلال كښې دا آيت راوړو چه د منافقينو هغې ته مسجد
ويلي شوې دي نو زمونږ دې ته هم مسجد ويل صحيح دى، يو عالم د دې جواب اوكړو چه د
منافقينو هغې ته مسجد ضرار ويلې شوې دې نو كه تاسو خپل ته مسجد ضرار وايئ نو زمونږ
څه اعتراض نشته . قاديانانو جواب اوكړو چه ضرار په آيت كښې مفعول له دې او مفعول له
قيد نه وى حتى چه صفت جوړشي ، نو په آيت كښې اطلاق د مسجد اوشو بغير د قيد د ضرار
نه نو يو عالم دا جواب اوكړو چه په آيت كښې اگر كه ضرارا مفعول له دې خو په دې كښې صفت
ته اشاره ده نو ضرار صفت د مسجد جوړيږى نو ويلې شى چه دا مسجد ضرار دې ، يو بل
عالم جواب اوكړو چه دلته اطلاق د مسجد نه دې شوې بلكه (اتخذو) ويلې شوى دى ،او
اتخاذ په هغه ځائ كښې استعماليږي چه څوك اخبار كوى د هغه شى نه چه خلاف حقيقت وى
لكه (وقالو اتخذالله ولدا )، نو دلته معنى د (اتخذو مسجدا) ،دا شوه په حقيقت كښې مسجد نه
وو ، او دوئ ورته مسجد وائى دا خلاف حقيقت دې. والله اعلم .

**فائده** (٢) : په دې آيت كښې د دې مسجد څلور غرضونه ذكر شوى دى ،اول ، ضرارا يعنې
مسلمانانو ته د نقصان رسولو په غرض،ضراراو ضرر يوه معنى ده او بعض وائى چه ضرر هغه
نقصان ته وائى چه د كونكى په كښې فائده وى خو بل چاته نقصان رسى ، او ضرار هغه نقصان
ته وائى چه د كونكى په كښې فائده نه وى او بل چا ته نقصان وى او دويم ﴿وَكُفْرًا﴾ يعنى
جوړونكو دا مسجد د كفر د وجې نه جوړ كړې وو ، او دريم ، ﴿وَتَفْرِيقًا بَيْنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ ،
يعنى په مسلمانانو كښې د تفريق پيدا كولو دپاره ئى جوړ كړې دې ،او څلورم ، ﴿وَإِرْصَادًا لِّمَنْ
حَارَبَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ﴾ ، يعنى د الله او رسول ﷺ دشمنانوته د پناه وركولو د پاره ئى جوړ كړې
وو ، دَ دينه مراد ابو عامر راهب دې، نو د دې نه دا معلومه شوه چه دا په اصل كښې مسجد نه
وو ، او نه د مونځ دپاره جوړ شوې وو ، نو كه چا ديو مسجد په څنگ كښې بل مسجد جوړ كړو
د مونځ د ادا كولو د پاره او په دې سره دې اول مسجد ته نقصان رسيدلو يا تفريق پيدا كيدلو
يا بل څه اغراض فاسده په كښې وو ، لكه ريا ، ضد ، عناد ، نوداسې كول گناه ده او جوړونكى
ته ثواب نه ملاويږي ، بلكه گناه ده ، البته حكم به پرې د مسجد جاري كيږي ، او آداب د
مسجد ساتل ئې ضرورى دى ، او مونځ په كښې جائز دې او د مسجد ضرار حكم پرې نه جارى
كيږى نو نړول او اور ورته اچول جائز نه دى ، او مسجد ضرار ورته ويل هم جائز نه دى ، البته

د مسجد ضرار مشابه دي . او علامه شربيني دا قول په قيل سره ذکر کړي دي ، او ملحق بمسجد ضرار ئ ورته ويلي دي او ده نړولو او اور اچولو حکم جمهورو علماؤ نه دي کړي .

﴿إِلَّا ٱلْحُسْنَىٰ﴾ يعني دوئ د دروغو قسمونه خوری چه زمونږ نيك نيتی اراده وه يعني سهولت معذورو او بوډاګانو ته .

| |
|---|
| لَا تَقُمْ فِيهِ أَبَدًا ۚ لَّمَسْجِدٌ أُسِّسَ عَلَى التَّقْوَىٰ |
| مه اودريګه ته په دې جماعت کښ د مونځ لپاره هميشه، خامخا هغه جماعت چه بنياد ئ اېښودلې شويدې په تقوی باندې |
| مِنْ أَوَّلِ يَوْمٍ أَحَقُّ أَن تَقُومَ فِيهِ ۚ فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَن يَتَطَهَّرُوا ۚ |
| د اولې ورځې نه لائق دې د دې چه ته ودرېږې د مونځ لپاره په هغه کښ، پدې جماعت کښ داسې سړی دی چه خوښوی پاکوالې خپل |
| وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ ﴿١٠٨﴾ أَفَمَنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَىٰ تَقْوَىٰ مِنَ اللَّهِ |
| او الله تعالى محبت کوی د داسې پاکانو سره . آيا پس هغه څوك چه اېښودلې ئ دې بنياد د آبادئ په يره د الله تعالى |
| وَرِضْوَانٍ خَيْرٌ أَم مَّنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ |
| او په رضا د الله تعالى نو دا غوره دې اوکه هغه څوك چه اېښې ئ وی بنياد د آبادئ او د عمارت خپل |
| عَلَىٰ شَفَا جُرُفٍ هَارٍ فَانْهَارَ بِهِ فِي نَارِ جَهَنَّمَ ۗ وَاللَّهُ |
| په غاړه د يوکندې (ډډکمر) باندې چه غورزيدونکې وی پس وغورزيږی سره د ده نه په اور دجهنم کښ، او الله تعالى |
| لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ﴿١٠٩﴾ لَا يَزَالُ بُنْيَانُهُمُ الَّذِي بَنَوْا |
| توفيق د نيکی نه ورکوی قوم ظالمانو ته . هميشه به وی نړول د آبادی د دوئ هغه چه دوئ جوړه کړې وه |
| رِيبَةً فِي قُلُوبِهِمْ إِلَّا أَن تَقَطَّعَ |
| سبب د لوئ شك او تردد او خوف په زړونو د دوئ کښ، تر هغه وخته پورې چه ټکړې ټکړې شی |
| قُلُوبُهُمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿١١٠﴾ |
| زړونه د دوئ يعنې مړه شی، او الله تعالى عليم، حکيم دې |

﴿ لَا تَقُمْ فِيهِ ﴾ د دينه مرادنهى دقيام د مونځ ده يعنى مونځ په كښې مه كوه، ﴿لَّمَسْجِدٌ﴾ لام ابتدائيه تاكيديه دي يا لام د قسم دې ، او مراد ترينه مسجد قباء دې ، لكه دا ظاهره دى سياق او د سباق نه او د دې مسجد په فضيلت كښې دير روايات وارد دى، لكه په روايت د ترمذى وغيره كښې دى چه نبى ﷺ فرمائلى دى چه صلوة په مسجد قباء كښې پشان د عمرې دې. او په بعض صحيح رواياتو كښې دى چه د دې نه مراد مسجد نبوى دې ، لكه د ابو سعيد خدرى ﷺ نه روايت دې چه ما تپوس اوكړو چه هغه كوم مسجد دې چه بنياد ئې په تقوىٰ ايخودې شوې دې ،نو نبى ﷺ اوفرمائل چه هغه دا مسجد دې ، يعنې مسجد د مدينې (مسجد نبوى ) علماؤ تطبيق كړې دې چه د آيت مدلول صريحى (عبارت النص ) مسجد قباء دې ، او مسجد نبوى پكښې داخل دې ، په طريقې د دلالت النص سره نو په حديث كښې اشاره ده عموم د حكم ته او دفع د توهم د اختصاص ده په مسجد قباء پورې ، ﴿ أُسِّسَ عَلَى التَّقْوَىٰ ﴾ دا د اساس نه ماخوذ دې چه د(أس ) جمع ده (أسس) په معنى د وضع الاساس ده يعنى بنياد كيخودل او د دې دوه ترجمې دې : (۱)﴿ أَفَمَنْ ﴾ (مَنْ) نه مراد شخص دې او د ﴿بُنْيَانَهُ﴾ نه مراد دين او عقيده ده معنې دا چه آيا هغه څوك چه ايخودلې ئې دې بنياد د دين او عقيدې په تقوى او اخلاص اوپه حق باندې (۲) د (مَنْ) نه مراد شخص دې او د بنيان نه مراد مسجد دې معنى دا ده چه هغه كس چه ايخودلې ئې وى بنياد د مسجد په تقوى سره، تقوى ته بنياد ويل مبالغه ده په مدح كښې، ﴿مِنْ أَوَّلِ يَوْمٍ﴾ د دې دوه ترجمې دى : د ﴿أَوَّلِ يَوْمٍ﴾ (۱) نه مراد اوله ورځه د هجرت ده نبى ﷺ ده نبى ﷺ چه كله مدينې منورې ته هجرت اوكړو او راغې نو اول ئې د مسجد قباء بنياد كيخودو ، (۲)د (اول يوم ) نه مراد اوله ورځ د وجود ده يعنى د دې مسجد بنياد د ابتدا او اول سر نه په تقوىٰ دې ، داسې نه چه اولابناء ئې په غير تقوىٰ لكه رياء وغيرا شوې وؤ او بيا په تقوى شو . ﴿فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَن يَتَطَهَّرُوا ﴾ ،دا په باره د اهل قباء كښې نازل شوې دې او تطهر نه مراد باطنى تطهر يعنى د شرك او گناهونو نه بچ كيدل هم دې او ظاهر پاكوالې هم مراد دې ، يعنى استنجاء كول ،اودس كول ،روايت كړې دې ابن خزيمه ﷺ عويمر بن ساعده نه چه نبى ﷺ تشريف راوړو اهل قباء ته ئى اوفرمائل چه بيشكه الله ﷻ ستاسو تعريف او صفت كړې دې په باره د پاك والى كښې نو هغه كوم پاكوالې دې چه تاسو ئې كوئ نو دوئ عرض اوكړو چه مونږ ته نور څه نه دى معلوم مگر دا چه زمونږ گاونډيان وو، د

يهودو نه نو هغوئ به استنجاء كوله په اوبو سره نو مونږ هم دغه شان كوو . او په بل روايت كښ دي چه اهل قباؤ اويل چه استنجاء په كانړو سره اوكړو نو بيا استنجاء كوو په اوبو سره . نونبي ﷺ اوفرمائل چه دا كار په ځان لازم كړئ ، هم دا خبره ده چه الله ﷻ ستاسو صفت كوى

﴿ أَفَمَنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ ﴾ دا تقابل بيانول دى په مابين د بنائينو كښ او دا رنګه په مابين د بانيانو كښ او تمثيل بيانول دى د دواړو دپاره . او تاسيس وضع الاساس ته وائى (بنياد ايخودل) او بنيان مصدر مبنى للمفعول دې په معنى د مبنى سره يعني عمارت .حاصل دا چه يو داسې عمارت وى چه بنياد ئي ډير مظبوط وى ، يعني تقوىٰ او حق . بل دا سې عمارت وى چه بنياد ئى ډير كچه او ضعيف وى ، او چه بانى (جوړونكى) پرې اودريږى نو دواړه را غورزيږي په اور كښ نو دا دواړه چرته برابر كيدې شى . ﴿ عَلَىٰ شَفَا جُرُفٍ ﴾ . شفا كنارې طرف (غاړې) ته وائى او ماخوذ دې د (اشفى علي الهلاك) نه . يعنى د هلاكت په كناره دې او دارنګه (شفى المريض) مريض په غاړه د برائت او سلامت باندې اوګرزيده ، او (جرف) هغې كندې ته وائى چه د هغې نه سيلابونو د ويخ نه خاوره اوړې وى او د پاسه نه پاتې وى نو دغه ډير كچه او ضعيف وى ، چه څوك پرې د پاسه اودريږى نو نړيږى ، او﴿ هَارٍ ﴾ په اصل كښ هَاوِرٌ، يا هَايِرٌ وو ، بيا قلب اوشو نو هارِوٌ ،يا هَارِىٌ شو ، اخر ترې نه حذف شو نوهار پاتې شو ، په معنى د(مشرف على السقوط )،سره يعنى نړيدونكې ﴿ فَانْهَارَ ﴾ ،(ضمير مستتر) راجع دې بنيان ته ، او﴿ بِهِ ﴾ ،ضمير راجع دې بانى ته يعنى دا عمارت چه اوغورزيږى نو بانى او عمارت به دواړه ارتاؤشى په اور د جهنم كښ . ﴿ بَنَوْا رِيبَةً فِي قُلُوبِهِمْ ﴾ ، هر كله چه نبى ﷺ د مسجد ضرار د نړولو حكم اوكړو او صحابه كرامو هغه اونړو ،نو منافقين ډير غصه وو. ليكن هيڅ مقابله ئى نه شوه كولې ، او دا رنګه دوئ په ډير خوف او شك كښ راغلل چه زمونږ مسجد ئى خو اونړولو ، نو آيا اوس به زمونږ كورونه هم نړوى او زمونږ مالونه به لټ كوى؟ .
نو په دې آيت كښ دې ته اشاره ده ﴿ بُنْيَانُهُمُ ﴾ دلته مضاف مقدر دي (اى هدم بنيانهم ).
﴿ رِيبَةً ﴾ ،د دې نه مراد غصه يا خوف او شك دې ، يا په (بنيانهم )كښ مضاف مقدرنه دې .او مراد ترينه آبادول د مسجدضرار دى .او د( ريبة ) نه زيات شك او نفاق مراد دې يعنى مسجد ضرار سبب شو د زيادت د منافقت ﴿ إِلَّا أَن تَقَطَّعَ ﴾دا استثناء ده د عموم الاوقات والاحوال

نه او د (تقطع). نه مراد موت دي يعني نفاق يا خوف به د دوئ نفسونو كښې د مرګ پورې وي . نجات ترې نه نشي موندلې.

| إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ |
|---|
| بيشكه الله تعالى اغيستي دى [1] د مؤمنانونه نفسونه د دوئ اومالونه د دوئ په بدله د دې كښې چه بيشكه |
| لَهُمُ الْجَنَّةَ ۚ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ ۖ |
| ددوئ لپاره جنت دې،جنګ به كوى په لاره د الله تعالى كښې نو قتل كوى كافران او دوئ به هم وژلې كيدې شى. |
| وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنجِيلِ وَالْقُرْآنِ ۚ |
| وعده كړيده دوئ سره الله تعالى وعده ريشتنې چه ذكر شويده په تورات او په انجيل كښې او په قرآن كښې. |
| وَمَنْ أَوْفَىٰ بِعَهْدِهِ مِنَ اللَّهِ ۚ فَاسْتَبْشِرُوا بِبَيْعِكُمُ |
| او څوك زيات ښه پوره كونكې دې وعدې خپلې لره د الله تعالى نه نو خوشحاله شئ پدې خرڅولو خپلو |
| الَّذِي بَايَعْتُم بِهِ ۚ وَذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿١١١﴾ |
| هغه خرڅول چه سودا كړيده تاسو په هغې د الله تعالى سره، او دا كاميابى لويه ده. |

﴿إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ ،په دې آيت كښې ترغيب دې جهاد ته په ډيره بليغه طريقې سره ، يو دا چه الله ﷻ (چه په حقيقت كښې هغه زمونږ مالك دې) خپل ځان مشترى اوګرزولو ،او مؤمنان ئې بائعين اوګرزول بل دا چه جان او مال د مؤمنينو ئې مبيعه اوګرزوله چه په عقد بيع كښې هغه مقصود بالذات وى ، او بل دا چه د جنت دائمى نعمتونه ، داسې نعمتونه چه (لاعين رئت ولا اذن سمعت ولا خطر على قلب بشر)، ئې ورله ثمن اوګرزولو ، او ثمن په عقد بيع كښې دا وسيله او ذريعه وى دپاره د حصول د مبيعې ، او بل دا چه (بالجنة) ئې ورته اونه فرمائل . بلكه ﴿بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ﴾ . ئې ورته اوفرمائل نو په دې كښې اشاره ده دې ته چه جنت د دوئ دپاره خاص دې ، او د دوئ ملكيت دې ، ﴿يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾په

---

١ - ترغيب جهاد ته او بشارت

بیع کښې د محل استیفاء بیان پکار وی چه دا مبیعه به مشتری ته په کوم ځائ کښې حواله کولې شی ، نو دا د هغې بیان دې او دا ظاهر ده چه محل استیفاء په هغه ځائ کښې بیانیږی چه مبیعه ډیر خطیر او عظیم څیز وی ، د معمولی او حقیر څیز د پاره محل استیفاء نه ذکر کیږی ، نو دا یوه بله وجه مخې ته راغله د پاره د بلاغت ، او هم دا رنګه په دې آیت کښې اشاره اوشوه دې ته چه هر کله سودا د جان او مال اوشوه نو فورا ئې د قبضې نه ویستل ضروری ندی ، بلکه چه کله موقع راشی نو بیا بخل مه کوئ، ﴿فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ﴾ دا د یقاتلون فی سبیل الله بیان دې ، او په دې کښې اشاره ده چه دا ضروری نه ده چه مومن به هله مشتری ګرزی چه مقتول شی ، بلکه چه جهاد ته لاړشی او قاتل د کفارو اوګرزی او سالم غانم راشی نو بیا هم مشتری دې .او د دې وجې نه صیغه د معلوم مخکښې ذکر شوه اود مجهول روستو ذکر شوه .

﴿حَقًّا فِي التَّوْرَىٰةِ وَالْإِنجِيلِ وَالْقُرْءَانِ﴾ ، سودا چه دَ ډیر قیمتی څیز اوشی نو په سرکاری دستاویزاتو ،شاهي رجسترو ، او سټامپ کښې لیکلې شی ، نو دا ددې بیان دې چه دا په ټولو اسمانی کتابونو کښې لیکلې شوې وعده او فیصله ده . ﴿وَمَنْ أَوْفَىٰ بِعَهْدِهِۦ مِنَ ٱللَّهِ﴾ ، دا دفع د توهم ده چه ثمن یعنی جنت په دنیا کښې فی الحال خو نشته نو آیا جنت به ملاؤ شی که نا؟ نو جواب اوشو چه د الله نه زیات څوك وعده پوره کونکې نشته نو دهغه ادهار یعنې قرض د نقد نه ډیر خه دې ﴿فَٱسْتَبْشِرُوا۟ بِبَيْعِكُمُ ٱلَّذِى﴾ ،استبشار هغه سرور او خوشحالی ظاهرولو ته وائي ، چه ښکاره شی اثر د خوشحالئ په بشره او چهره باندې ، عبدالله بن رواحه ﷺ اوفرمائل چه دا داسې بیع ده چه (لانقیل ولانستقیل )،چه د دې اقالې هیڅ صورت نشته دې ،او حسن بصري ﷺ ویلی دی ،چه والله نشته دې په مخ د زمکه مګرهغه داخل دې په دې بیعه کښې (قرطبی).

| ٱلْحَٰمِدُونَ | ٱلْعَٰبِدُونَ | ٱلتَّٰٓئِبُونَ |
|---|---|---|
| د الله تعالی حمد ویونکی دی. | عبادت کونکی دی، | دا مؤمنان توبه کونکی دی ، |
| ٱلسَّٰجِدُونَ | ٱلرَّٰكِعُونَ | ٱلسَّٰٓئِحُونَ |
| سجده کونکی دی الله تعالی ته ، | رکوع کونکی دی | سفر کونکی په لاره د الله تعالی کښې (د جهاد او د طلب علم لپاره) |

ٱلْءَامِرُونَ بِٱلْمَعْرُوفِ وَٱلنَّاهُونَ عَنِ ٱلْمُنكَرِ وَٱلْحَٰفِظُونَ لِحُدُودِ ٱللَّهِ ۗ وَبَشِّرِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۝

حکم کونکی په نیکئ سره اومنع کونکی دی د بدئ نه، اوساتنه کونکی دی د پولو د الله تعالی او زیرې ورکړه داسې مؤمنانو ته .

﴿التَّائِبُونَ الْعَابِدُونَ﴾ ،د كومو مومنانو سره چه دالله ﷻ بيع او سودا اوشوه نو د هغوئ صفات بيانيږي ، (۱) (تائبون ).د توبې نه مراد د كفر. شرك او د ټولو معاصی ؤنه كه صغيره دی او كه كبيره دی كه حقوق الله دی او كه حقوق العباد ټولو نه توبه مراد ده، او د (۲) (عابدون) نه مراد ټول عبادات دی كه مالی وی كه بدنی، ظاهری وی كه باطنی وی (۳) ﴿الْحَامِدُونَ﴾ دالله ﷻ حمدويونكی په هر حال كښې . (۳) ﴿السَّائِحُونَ﴾ . د ابن مسعود ﷺ او ابن عباس ﷺ نه روايت دې ، چه ددې نه روژه دار مراد دی ځكه چه روژه دار سرې خپل خوراك سكاك او شهوات پريږدی ، او په روايت د ابوهريره ﷺ كښې مرفوعا ذكر دی چه (سياحة امتي الصيام) ، او دغه شان روايت د حضرت عائشه ﷺ او په روايت د عطاء كښې دی چه (سائحون مجاهدين في سبيل الله) دی ، روايت كړې دې ابو امامه ﷺ چه يو كس د نبی ﷺ نه اجازت طلب كړو ، د سياحت دپاره نو نبی ﷺ ورته اوفرمائل چه (سياحة امتي الجهاد في سبيل الله)، (رواه ابوداؤد ) او چا ويلی دی چه سائحين مهاجرين دی ، او چا ويلی دی چه سائحين نه مراد طالبان د علم دی ، لكه دا قول د عكرمه ﷺ او د عطاء ﷺ دې، علامه شربينی ﷺ ويلی ئې دی چه د علم د پاره سياحت كول امر عظيم دې ، په تكميل د نفس كښې ځكه چه په دې كښې ملاقات اوشی د مختلفو علماؤ سره او استفاده اوكړی د يو بل نه او كله د خپل ځان نه لوئ عالم سره ملاقات اوشی نو د استفادې نه علاوه خپل ځان ورته حقير ښكاره شی ،او تواضع پكښې پيدا شی ، اوكله مشاهده اوكړی داختلاف د احوالو د اهل دنيا نو قوی شی معرفت د ده ، وغير ذالك.

﴿الرَّاكِعُونَ السَّاجِدُونَ﴾ دا پنځم ، شپږم صفت دې، د دې نه مونځ كونكی مراد دی او تخصيص اوشو د ركوع او سجدې ځكه چه دا امتيازی علامه دَ مصلی ده په خلاف دقيام او قعود نه ځكه چه هغه حالت د مصلی او غير مصلی دواړو دې ، او بل د دې وجې نه چه قيام اولی مرتبه د تواضع ده، ركوع اوسط مرتبه د تواضع ده او سجده انتهائی مرتبه د تواضع ده نو تخصيص د ركوع او سجدې اوشو د پاره د دلالت په نهايت تواضع باندې ، او په دې كښې تنبيه ده چه مقصود په مونځ كښې نهايت خضوع ده ، ﴿الْآمِرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّاهُونَ﴾ ،دا اووم ، اتم صفت دې، امر بالمعروف او نهي عن المنكر د مؤمن مخصوص علامه او امتيازی وصف دې ، دلته په (والناهون) باندې واو د عطف داخل شوې دې ، په

خلاف د ما قبل نه یو د دې وجې نه چه اشاره شی دې ته چه دا دواړه په منزله د خصلتِ واحده سره دی نو یواځې یو نه کافی کیږی، او بل د دې وجه نه چه عرب عطف کوی په واؤ سره په سبعه باندې لکه پدې قول د الله تعالی کښ ((وثامنهم کلبهم)) ،یا په دې قول د الله ﷻ کښ ((وفتحت ابوابها)) او په دې عطف کښ اشاره وی دې ته چه عدد پوره شوې دې ، او اتم تعداد آخر دې معطوف دې په دې باندې او د دې وجې نه دې واو نه واو ثمانیه ویلې شی ، ﴿وَالْحَافِظُونَ لِحُدُودِ اللَّهِ﴾ په دې کښ دمخکښ صفاتو نه علاوه د نورو تمامو صفاتوذکر دې . چه په هر کار کښ برابره خبره ده چه که اعتقادیات وی یا عبادات وی یا اخلاقیات وی یا معاملات وی لکه بیع، شراء نو په دې ټولو کښ د الله ﷻ د حدودو رعایت کوی ، دغه مخکنی اته (۸) صفات ئې په تفصیل سره ذکر کړل ځکه چه مکلف د هغې نه، نهٔ خالی کیږ په اغلب اوقاتو کښ ، او د هغې نه علاوه د نورو نه مکلف خالی کیدې شی لکه احکام د بیع او شراء او احکام د جنایاتو ﴿وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ﴾ په دې کښ د مومنانو تخصیص وشو دپاره د تنبیه په دې خبره چه بشارت په دې قول د الله ﷻ کښ ، (فاستبشروا)، دا ندې شامل مگر هغه مؤمنانو ته چه موصوف دی په دغه مخکنو صفتونو باندې .

| مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَنْ يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ |
|---|
| ندی جائز د نبی لپاره اونه دهغه کسانو لپاره چه ایمان ئې راوړې دې دا خبره چه دوئ بښنه غواړی-مشرکانو لره |
| وَلَوْ كَانُوا أُولِي قُرْبَىٰ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُمْ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ ﴿۱۱۳﴾ |
| اگر که وی دا خپلوان د دوئ روستو دهغې نه چه ښکاره شویده دوئ ته چه بیشکه دوئ جهنمیان دی. |
| وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ إِبْرَاهِيمَ لِأَبِيهِ إِلَّا عَنْ مَوْعِدَةٍ وَعَدَهَا إِيَّاهُ |
| اونه وه بښنه غوښتل د ابراهیم لپاره د خپل پلار، مگر دوجه د وعدی نه چه دغه وعده ئې کړې وه دهغه سره، |
| فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ أَنَّهُ عَدُوٌّ لِلَّهِ تَبَرَّأَ مِنْهُ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ |
| پس هرکله چه ښکاره شوه ده ته داخبره چه بیشکه دې دښمن د الله تعالی دې نو بیزاره شو ترینه، بیشکه ابراهیم |
| لَأَوَّاهٌ حَلِيمٌ ﴿۱۱۴﴾ وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِلَّ قَوْمًا بَعْدَ إِذْ هَدَاهُمْ |
| نرم زړې اوصبرناك وؤ. اوندې الله تعالی چه گمراه شمار کړی یوقوم روستو د دینه چه هدایت ئې کړې وی دوئ ته |

حَتَّىٰ يُبَيِّنَ لَهُم مَّا يَتَّقُونَ ۚ إِنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ۝

ترهغې چه واضح بيان کړې دوئ ته هغه څه چه ځان بچ کوي دوئ د هغې نه، بيشکه الله تعالى په هرڅه عليم دې

﴿ مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ ءَامَنُوٓا ﴾، مخکښې مسئله د جهاد ذکر شوه او روستو هم ذکر کيږي .نو په درميان کښې د دې خبرې ذکر دې چه چه د مشرکينو سره جهاد کوه او که چرې څوك به شرك باندې مړ شې يا د مهر جباريت د لاندې راشى نو د هغوئ دپاره استغفار هم مه کوه ليکن د مهر جباريت علم صرف پيغمبر ته کيدې شى په ذريعه د وحى سره - د مفسرينو د دې آيت شان نزول په باره کښې درې قوله دى : يو دا چه دا نازل شوې دې په باره د استغفار د نبى ﷺ کښې د پاره د ابوطالب ، دويم قول دادې چه نازل شوې دې په باره د استغفار د نبى ﷺ کښې د پاره د خپل ابوينُ (مور،پلار) ، او دريم قول دادې چه نازل شوې دې په باره د استغفار د بعض صحابؤ کښې د پاره د بعض اقاربو خپلو ،﴿ مِنۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ ﴾، د دې نه مراد دا دې چه مرگ ئې په کفرکښې اوشى ،يا دا چې مهر جباريت پرې لگيدلې وى ، باقى په حديث کښې چه راغلى دى، چه نبى ﷺ په غزوه احدکښې دا دعا ؤکړه چه (اللهم اغفر لقومى فانهم لايعلمون). نو د دينه مراد دادې چه يا الله ځما قوم ته هدايت ورکړه چه مغفرت ئى اوشى ، نودا په حقيقت کښې دعا د هدايت اود توفيق د ايمان ده ، قرطبي وائى چه په دې نيت سره کافر ته د مغفرت دعا کول چه توفيق د ايمان او د هدايت ورته اوشى او د مغفرت مستحق شى ، نو دا جائز دى ، ﴿ وَمَا كَانَ ٱسْتِغْفَارُ إِبْرَٰهِيمَ ﴾، دا جواب د يو سوال دې هغه دا چه ابراهيم ﷺ خو د خپل مشرك پلار د پاره د مغفرت سوال کړې دې لکه په سورة شعراء کښې (واغفر لابى انه كان من الضالين) دى او په سورةٔ ابراهيم آيت نمبر ۴۱ کښې (ربنا اغفرلى ولوالدي) راغلى دى نو د دې جواب راغې چه ابراهيم ﷺ د هغه سره وعده کړې وه لکه په سورة ممتحنه کښې دى ، ( الا قول ابراهيم لابيه لاستغفرن لك )، او په سورة مريم آيت نمبر ۳۷کښې هم دى نو هغه وعده ئى پوره کړه ليکن هر کله چه ورته دا معلومه شوه چه دې د الله ﷻ دشمن دې يعنى موت ئى په کفر راغلې دې يا دا چه مهر جباريت پرې لگيدلې دې نو﴿ تَبَرَّأَ مِنْهُ ﴾، بيا ترې نه بيزاره شو او استغفار ئى پريخودو ، حاصل دا چه ابراهيم ﷺ لره قبل د استغفار د خپل پلار دپاره علم نه وو په دې خبره چه هغه قطعا جهنمى دې ځکه چه هغه په کفر مړ دې ، او بعد د علم نه ئى ورله

استغفار ندې غوختی .

﴿إِنَّ إِبْرَٰهِيمَ لَأَوَّٰهٌ حَلِيمٌ﴾ ، یعنی ابراهیم ﷺ د خپل پلار دپاره ځکه استغفار غوختلو چه ابراهیم ﷺ ډیر نرم مزاج وو ، پلار ورته ډیرې سختې خبرې کولې لیکن ابراهیم ﷺ به ورسره ډیره نرمی کوله ، او ډیر په تضرع او په عاجزی به ئی ورله د هدایت سوال کولو ، د «اواه» ډیرې معنی کړې شوی دی ، منجمله دهغې نه دا دی «کثیر التضرع ، کثیر الدعاء» . ﴿وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِلَّ قَوْمًا﴾ ، په دې آیت کښې تسلی ده هغه بعض مؤمنانو ته چه د خپلو اقاربو مشرکانو د پاره ئی استغفار کړې وو ، او د تیر شوی آیت په نزول سره هغوئ ته هم فکر لاحق شو او خیال ئی راغی چه مونږ به په دې سره ګمراه شوی یو ، حاصل د جواب دادې چه قانون الهی دادې چه څو پورې یو حکم ئی صراحة یا دلالة نه وی بیان کړې نو د هغې پورې مخالفت کونکی ته ګمراه نه وائی ، ځکه چه معصیت خو خلاف د مامور به ته ، یا ارتکاب د منهی عنه ته وائی نو تر څو چه امر . نهی نه وی راغلې نو مخالفت د مامور به یا ارتکاب د منهی عنه نه دې متصور او د ﴿لِيُضِلَّ﴾ نه مراد حکم کول د ګمراهئ دی ، او موصوف ګرځول دی په ګمراهئ سره ، یا ترینه مراد سزا ورکول د ګمراهئ دی او د ما ﴿يَتَّقُونَ﴾ نه مراد «مایجب اتقاه» دې چه ځان بچ کول ورنه واجب او ضروری دی .

| |
|---|
| إِنَّ اللَّهَ لَهُ مُلْكُ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ ۖ يُحْيِۦ وَيُمِيتُ ۚ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ |
| بیشکه الله تعالی خاص هغه لره بادشاهی د آسمانونو او د ځمکې ده، ژوندی کوی مړه کوی اونیشته تاسو لره سوی د الله تعالی نه |
| مِن وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴿١١٦﴾ لَّقَد تَّابَ اللَّهُ عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهَٰجِرِينَ |
| هیڅ دوست او نه مددګار. خامخا په تحقیق سره الله تعالی خصوصی رحمت اومهربانی کړیده په نبی او په مهاجرینو |
| وَالْأَنصَارِ الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ فِي سَاعَةِ الْعُسْرَةِ مِنۢ بَعْدِ مَا كَادَ يَزِيغُ قُلُوبُ |
| او په انصارو، هغه کسان چه تابعداری ئ کړې ده دَ ده په وخت د تنګسیا کښې روستو د هغې نه چه قریب وُو چه کاږه شوی وې زړونه |
| فَرِيقٍ مِّنْهُمْ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ ۚ إِنَّهُۥ بِهِمْ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿١١٧﴾ |
| د یوې ډلې د دوئ نه، بیا الله تعالی خپل رحمت وکړو په دوئ. بیشکه الله تعالی شفقت کونکې مهربان دې. |

﴿ إِنَّ اللَّهَ لَهُ مُلْكُ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ ﴾ دا علت دما قبل دي يعني قانون بيانول د الله ﷻ اختيار دي خکه چه بادشاهي د الله ﷻ د پاره ده ، ﴿ لَقَد تَّابَ اللَّهُ عَلَى النَّبِيِّ ﴾ دا بشارت دي نبي ﷺ ته او صحابه مهاجرينو او انصارو ته ،او د توبې نه مراد توبه د خواصو ده ، چه رفع د درجاتو دپاره وي ، حضرت الشيخ ﷫ به د دې ترجمه داسې کوله ، (بیشک اللہ نے خصوصی مہربانی کی نبی ﷺ پر ۔الخ) ، ﴿ وَالْمُهَٰجِرِينَ وَالْأَنصَارِ ﴾ ، دا د صحابؤ دپاره ډير عظيم منقبت دې ، چه الله ﷻ په خپل ازلي کتاب کښ د دوئ د معافی اعلان اوکړو ، ( اللهم ارزقنا اتباعهم وحبهم) او لعنت دې وی په هغه چا چه تنقيص کوی د شان د دوئ يا حسد لری د دوئ سره ، ﴿ فِي سَاعَةِ الْعُسْرَةِ ﴾ ، د سختئ په حال کښ اتباع کول او خپل مال او جان قربانول د ريشتينی محبت لوئ دليل دې ، او د ساعة العسر نه مراد د غزوه تبوك زمانه وه ، چه په هغې کښ مختلف قسم مشکلات جمع شوی وو ، سخته گرمی ، طويل مسافت ، د کجورو موسم ، او د دغه زمانې د عظيم الشان سلطنت مقابله کښ ميدان ته راتلل، او بيا داسې بې سر او سامانی چه يوه کهجوره به د دوو کسانو خوراك وو ، بلکه دې ته هم نوبت رسيدلې وو چه يوه کهجوره به ډيرو کسانو چوپله ، او اوبه به ئې ورپسې اوڅکلې ، او بيا دا چه اوبه نه ملاويدې ، حتٰی چه بعض صحابؤ به اوښان ذبح کړل او د خيټې نه به ئ لوندوالې نچوړ کړو او په هغې به د هلاکت نه بچ شو . او بيا د سورلئ کموالې چه په يو يو اوښ به لس لس کسانو په نمبر سورلی کوله ، دا هغه جذبه او خلوص للّهيت، ايثاراو قربانی وه ، چه لگ کسان به په تولو اقوامو د عالم غالب شول . او لوئ لوئ بادشاهان ترينه سره د اسلحې او د لښکرو به يريدل، ﴿ مِن بَعْدِ مَا كَادَ يَزِيغُ قُلُوبُ فَرِيقٍ مِّنْهُمْ ﴾ مخکښ تير شو چه نبی ﷺ کله غزوه تبوك ته د تلو حکم اوکړو نو بعض مؤمنان فورا تيار شو ، د مشکلاتو د سفر ، او د نورو رکاوټونو د هيڅ څيزخيال ئې اونه ساته او بعض مؤمنانو ته ابتداءً د مشکلاتو او د اسبابو د فقدان خيال په زړه کښ راغې ، او قريبه وه چه د نبی ﷺ د رفاقت نه پاتې شی ، ليکن الله ﷻ بيا مهرباني وکړه او د دغه قسم خيالاتو او په وساوسو باندې دَعمل کولو نه ئې محفوظ اوساتل ، او د دوئ همتونه ئې مضبوط کړل ﴿ يَزِيغُ قُلُوبُ فَرِيقٍ مِّنْهُمْ ﴾ ،نه هم دغه خيالات او وساوس مراد دي .

| وَّعَلَى | الثَّلٰثَةِ | الَّذِيْنَ | خُلِّفُوْا | ط | حَتّٰٓى | اِذَا | ضَاقَتْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوتوبه ئې قبوله کړه | د هغه درې کسانو | چه | روستو کړې شوې وه معامله د | | هغوئ | تر دې پورې کله | چه تنګه شوه |

عَلَيْهِمُ الْاَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ اَنْفُسُهُمْ وَظَنُّوْٓا اَنْ لَّا مَلْجَاَ

پدوئ باندې ځمکه سره د اَرت والی نه او تنګ شو په دوئ باندې زړونه د دوئ او یقین وکړو دوئ چه نشته دې ځائ د پناهې

| مِنَ | اللّٰهِ | اِلَّآ | اِلَيْهِ | ط | ثُمَّ | تَابَ | عَلَيْهِمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دعذاب د | الله تعالی | نه | مګرپه توبه او رجوع سره هغه ته | | بیا | الله تعالی توفیق | د توبې ورکړو دوئ ته |

لِيَتُوْبُوْا ط اِنَّ اللّٰهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۱۸﴾

لپاره د دې چه دوئ توبه وباسی ، بیشکه الله تعالی توبه قبلونکې رحم کونکې دې

﴿وَعَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِيْنَ﴾ ، دا د درې کسان کعب ابن مالك، هلال ابن امیه او مراره ابن الربیع دی ، دوئ کامل مخلص مؤمنان وو او بغیر د عذر شرعی نه دغزوه تبوك نه پاتې شوی وو، او نبی ﷺ ته ئې د دروغو عذر هم نه وو پیش کړې ، او د هغه نورو اووه(۷) صحابؤ پشان ئې ذان ستنې پورې هم نه وو تړلې ، د دوئ د توبه تادیب دپاره پنځوس (۵۰) ورځې مؤخر کړې شوه ، د پنځوست ورځو نه بعد د دوئ توبه قبوله کړې شوه ، د ﴿خُلِّفُوْا﴾ معنی هم داده چې د دوئ توبه روستو کړې شوې ده ، او دا معنی ئې نه ده چه دوئ روستو کړې شوی وو د جهاد نه ، او دا معنی په بخاری کښې د کعب بن مالك نه نقل ده،حضرت کعب بن مالك ﷺ په خپله دا قصه بیانوی ، چه په بخاری کښې په تفصیل سره مذکور ده او اختصار ئې دادې چه : کعب ابن مالك ﷺ وائی چه غزوه تبوك چونکه په سخته ګرمئ کښې وه، مسافت هم بعید وو ، او ډیر لوئ دشمن سره مقابله وه ،نو د دې وجې نه نبی ﷺ مومنانو ته د تیاری حکم ورکړو ، صحابه کرام د سفر دسامان په تیارئ کښې مشغول شول ، مګر زه بې فکره وُم ، چه کله تلل غواړی نو فورا به تیار شم ، ځکه چه ماسره سامان د سفر هم موجود وو ، او سورلئ هم راسره دوه وې ، خه بې فکرئ کښې وُم چه نبی ﷺ دیرش زره مجاهدینو ته د روانیدو حکم اوکړو او روان شو نو مادا خیال اوکړو ،چه نبی ﷺ چه اول منزل ته رسی نو زه تیار به شم او لاړبه شم ، خو داسی اونه شو بیا مې داخیال اوکړو چه سبا به لاړشم ، خو د هغې هم توفیق ملاؤ نه شو ،

دغسي مانن سبا كول .چه خبر شوم چه نبي ﷺ تبوك ته اورسيدو ، نو نبي ﷺ څما تپوس اوكړو ، چه كعب ﷺ څه اوكړل ، چا عرض اوكړو چه هغه دعيش پسندئ په وجه نه دې راغلې . معاذ ابن جبل ﷺ اويل چه دا ډيره بده خبره ده په خدائ قسم چه په هغه كښ مونږ سوا د نيكئ او اخلاص نه بل څه نه دی ليدلی ، نبی ﷺ دا ګفتګو واريدله او خاموش شو ،كعب ﷺ وائي چه د نبی ﷺ تبوك ته تلو نه بعد ماته ډير وحشت د دې خبرې وؤ ،چه په مدينه كښ به يا معذورين خلق وو. يا منافقين، د دې نه علاوه څوك نارينه په نظر نه راتلل ،كعب ﷺ وائی چه بيا خبر شوم چه نبی ﷺ د تبوك نه واپس كيدونكي دې ، نو ماسره غم اوفكر پيدا شو .او سوچ مې كولو چه په څه خبره به زه د نبی ﷺ د غصې نه بچ شم ،او د دروغو بهانې مې جوړولې .او د خپلو نه مې رائی اخستلې ، او څه په خپله د دروغو بهانو جوړولو كښ او غلط او بې حقيقته څيز خائسته شكل او صورت ښكاره كولو كښ ډير ماهر ؤم ، پس كله چه ماته اويلې شو چه نبی ﷺ تشريف راؤړواو مدينې ته په خير او عافيت سره را ورسيدلو ، نو څما د زړه نه هغه ټول د دروغو بهانې زائله شوې ، او يقين مې راغې چه په دروغو سره زه د نبی ﷺ د غصې نه نشم بچ كيدې او عزم مې اوكړو د صدق د نبی ﷺ په مخكښ، بيا هر كله چه نبی كريم صلی الله عليه وسلم مسجد نبوی ته تشريف راؤړواو تحية المسجد ئې اوكړل او د اصحابو په مجمع كښ رونق افروز شو ، نو منافقان به راتلل او د دروغو عذرونه به ئې كول ، نو نبی ﷺ به د هغوئ ظاهر قبلوو او باطن به ئې ورله الله ته پريخودو ،او كله چه زه حاضر شوم نو د تبسم په صورت كښ ئې راته د غصې اظهار اوكړو ،او د نه تلو وجه ئې تپوس كړه چه ته ولې د جهاد نه پاتې شوې آيا تا سورلئ نه وه اخستې، نوما عرض اوكړو چه يارسول الله ﷺ كه زه نن د يو دنيا دار مخكښ ناست وې نو تاسو به ليدلی وؤ چه زه څرنګه دهغه د غصې او ناراضګئ نه ځان بچ كوم ځكه چه زه په چالاكئ او بهانه جوړولو كښ ډير ماهر يم ليكن په الله تعالی مې دې قسم وی چه څما علم دې چه كه زه نن تاسوته دروغ وه وايم او په ظاهر كښ تاسو راضی كړم نو قريبه ده چه الله تعالی تاسو په ريشتياؤ باندې مُطلع كړی نو تاسو به څما نه ناراض شئ او كه زه في الحال ريشتيا اوايم ،نو لګ وخت دپاره به تاسو ناراضه شئ خو اميد د الله نه د بخښې لرم ، او ما ته به عفو اوكړی نو د دې انجام به ښه وی ، يارسول الله ﷺ واقعه داده چه ماسره د غير خاضرئ هيڅ وجه نشته ، بلكه ماسره په دې موقع دومره فراخی وه چه په بله موقع دجهاد كښ ماسره نه وه ، واقعي زه مجرم يم ستاسو اختيار دې ، چه څما په حق كښ څه فيصله كوئ نو هغه اوكړئ ، نو نبی ﷺ اوفرمائل چه دې سری رشتيا اوئيل ،او راته ئې

اوفرمائيل چه ته اوس لاړشه او د الله ﷻ د فيصلې انتظار کوه نو زه لاړم ، او د تحقيق نه دا معلومه شوه چه هلال ابن اميه ،او مراره ابن الربيع دا دواړه هم څما پشان د جهاد نه پاتې شوی دی ، او نبی ﷺ ته ئی رشتيا ويلی دی ، او هغوئ ته هم دغه جواب ورکړې شوې دې کوم چه ماته راکړې شوې دې ، زمونږ د دريواړو مطابق نبی ﷺ دا حکم اوکړو چه هيڅ څوك دَ دوئ سره خبرې مه کوئ، او ټول ورسره قطع کلامی وکړئ، نو هيچا به زمونږ سره خبرې نه کولې، څما دواړه ملګری خو په خپلو کورونو کښې کيناستل اوپه ژړا ژړا به ئی وخت تيرؤو او زه څو چُست، چالاك او قوی ؤم ، نو جماعت ته به د مونځ د ادا کولو دپاره راتلم او په جمع کښې به مې شرکت کولو، او نبی ﷺ ته به مې سلام کولو، اوکتل به مې چه آيا نبی ﷺ خپلو شوندو مبارکو ته حرکت ورکوی اوکه نه؟ کله به چه ما نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته کتل نو هغوئ به مخ مبارك بل طرف ته اړولو، اوچه زه به مونځ کښې مشغول وم نو ما ته به ئی نظر کولو ټول خپلوان ياران دوستان زمونږ نه بيګانه وو، په دې کښې د «غسانی» بادشاه يو خط ماته چا راؤړو چه په هغې کښې ئی څما د همدردئ نه بعد ماته دعوت راکړې وو،چه څما خواته راشه مونږ به ستا ډير قدر او اکرام کوو، دا خط چه ما اوکتلو نو ما وه وئيل چه دا يوه بله فتنه او امتحان دې ، کورته لاړم او هغه خط مې په تنور کښې اوسيزلو ،څلويښت ورځو پورې دا حال وو بيا نوې حکم د نبی ﷺ د طرفه راغې چه د خپلو ښځو نه جدا شئ ، نو ما خپله بی بی د پلار کره اوليږله چه زه هلته اوسيږه تر څو پورې چه الله بل حکم نه وی نازل کړې ، کعب ﷺ وائی چه ماته ډير غم او پريشانی د دې خبرې وه چه که دې وخت کښې ماته مرګ راشی نو هسی نه چه نبی ﷺ څما جنازه اونه کړی ، او که بالفرض نبی ﷺ وفات شی نو دا مسلمانان به ټول عمر ما سره دا سلوك کوی ، پنځوست ورځې په دې حالت کښې تيرې شوې، او په ما باندې دا ځمکه تنګه شوه سره د فراخئ نه، او زندګی راته د مرګ نه زياته سخته وه په پنځوستمه ورځ سحر چه ما مونځ اوکړو او حالت دغه وؤ چه الله په خپل کلام کښې بيان کړې دې ، چه ﴿ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْأَرْضُ﴾ ، نو ناساپه د جبل سلع د طرف نه اواز راغې چه «يا کعب ابن مالك ابشر»، اې کعب ﷺ تاته زيرې دې ، نو زه فوراً په سجده شوم ،د شکر د پاره، اود خپل بدن کپړې مې په زيری کښې ورکړې او بيا چه مسجد نبوی ته راغلم ، نو ټول خلق مبارکئ د پاره راتلل ،او په مهاجرينو کښې حضرت طلحه ﷺ راپورته شو مصافحه ئی راسره اوکړه دا به زه هيچرې هير نه کړم ، او د نبی ﷺ حضور ته چه حاضر شوم ، نو دَحضور ﷺ چهره مبارکه دَ خوشحالئ نه دَ

سپوږمئ پشان پرق کوۀ ، وې فرمائل «ابشر بخير يوم »، الله ستاسو توبه قبوله کړه . ما عرض اوکړو چه د دې توبې قبليدلو تتمه او شکريه داده چه زه خپل ټول مال او جايداد د الله ﷻ په نوم صدقه کوم ، نو نبی ﷺ اوفرمايل چه داسې مه کوه څه حصه پريږده ، نو ما د خيبر د حصې نه علاوه ټول مال صدقه کړو ، حضرت کعب رضی الله عنه فرمائی چه ماته نجات په صدق باندې ملاؤ شو نو ما دا عهد اوکړو چه څومره امتحانات هم راشی نو زه به د رشتيا نه علاوه بل هيڅ نه وايم.

﴿ حَتَّىٰٓ ﴾ دا غايه د ﴿ خُلِّفُوا ﴾ ده ،او ﴿ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ ﴾ ، عطف دې په ضاقت باندې. يعنی توبه د دوئ مؤخره شوه تر دې پورې چه په دوئ زمکه تنګه شوه ، او تنګ شو زړونه د دوئ نو الله ﷻ د دوئ توبه قبوله کړه ، زمکه په دوئ د دې وجې تنګه شوې وه چه د خلقو ناسته پاسته او خبرې پرې بندې وې ، او زړونه ئې د غم او حزن د وجې نه تنګ وو ، ﴿ وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ أَنفُسُهُمْ ﴾ ،کښې ترقی ده دماقبل نه او زياته مبالغه ده يعنی غم او حزن په دوئ دومره غالب شو چه په بدن کښې ئې ساه نه ځائی کيده﴿ لَا مَلْجَأَ مِنَ ٱللَّهِ ﴾(ای من سخط الله ).﴿ إِلَّآ إِلَيْهِ ﴾ (ای الا باالتوبة اليه ).

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ٱتَّقُوا ٱللَّهَ وَكُونُوا مَعَ ٱلصَّٰدِقِينَ ۝ مَا كَانَ لِأَهْلِ ٱلْمَدِينَةِ وَمَنْ

اې ايمان والؤ ! يره کوئ د الله تعالی نه او شئ د رېشتنی خلقو سره . مناسب نده مدينې والؤ لپاره اوهغه چا لره

حَوْلَهُم مِّنَ ٱلْأَعْرَابِ أَن يَتَخَلَّفُوا عَن رَّسُولِ ٱللَّهِ وَلَا يَرْغَبُوا بِأَنفُسِهِمْ

چه د دوئ چاپيره دی د بانډه چيانو نه چه روستو پاتې شی د رسول الله نه اونه دې غوره کوی خپل ځانونه

عَن نَّفْسِهِۦ ۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ لَا يُصِيبُهُمْ ظَمَأٌ وَلَا نَصَبٌ وَلَا مَخْمَصَةٌ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ

د نفس د رسول الله نه، دا په سبب د دې چه نه رسی دوئ ته تنده اونه ستړې والې اونه لوږه په لاره د الله تعالی کښې

وَلَا يَطَـُٔونَ مَوْطِئًا يَغِيظُ ٱلْكُفَّارَ وَلَا يَنَالُونَ مِنْ عَدُوٍّ نَّيْلًا إِلَّا كُتِبَ لَهُم

اونه ګرځی دوئ په يو لارې چه غصه کوی کافرانو لره اونه حاصلوی د دشمن نه څه شئ مګر ليکلی کيږی دوئ لره

بِهِۦ عَمَلٌ صَٰلِحٌ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ ٱلْمُحْسِنِينَ ۝

په سبب د دې سره ثواب د نيك عمل ، بيشکه الله تعالی نه ضائع کوی عمل د ښائسته عمل کونکو

| وَلَا يُنْفِقُوْنَ نَفَقَةً صَغِيْرَةً وَّلَا كَبِيْرَةً وَّلَا يَقْطَعُوْنَ وَادِيًا إِلَّا كُتِبَ لَهُمْ |
|---|
| اونه خرچ کوی دوئ څه خرچ لږ اونه ډیر اونه سفر کوی دوئ په یو میدان مگر لیکلې کیږی دوئ لره |
| لِيَجْزِيَهُمُ اللّٰهُ أَحْسَنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۲۱﴾ |
| د دې لپاره چه بدله به ورکړی دوئ لره الله تعالی ډیره ښائسته دهغې عملونو چه دوئ ئې کوی |

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ ﴾ ،هغه درې کسانو صحابه ﷺ د صدق د وجې نه نجات اوموندلو او د هلاکت نه بچ شو ، نو دلته حکم کیږی د تقوٰی چه په دې سره اصلاح انفرادی رازی ،اوحکم کیږی په صحبت د صادقینو نو په صحبت د صادقینو سره په سړی کښې د صادقینو صفات او اخلاق پیدا کیږی ،ځکه چه صحبت لره ډیر اثر دې ، حتٰی چه د حیواناتو په صحبت کښې هم اثر وی ، د ګډو چیلو سره تواضع راځی ، د اوښانو ساتلو او صحبت سره سخت مزاجی او تکبر راځی . لکه دا په حدیث کښې مذکور دی، د نوح ﷺ خوی د بدو خلقو دَ صحبت په وجه د ایمان نه محرومه شو ، او د اصحاب کهف سپې د نیکانو د صحبت په وجه قابل مدح شو ، **شعر**:

پسر نوح با بدان بنشست خاندان نبوتش گم شد
سگ اصحاب کهف روز چند پی نیکان گرفت مردم شد

ویلې شوی دی چه د اصحاب کهف سپې به د قیامت په ورځ د انسان په شکل شی او جنت ته به ځی ، (ع)

په مجلس د عالمانو به سره زر شی که وی ګټه او یا لوټه د صحرا

او په صادقینو کښې ټول اصحاب که مهاجرین دی او که انصار داخل دی ،لکه د سورة صف د آیت نمبر ۸ نه معلومیږي . چه هجرت او نصرت دلیل د صدق د ایمان دې . نو دا آیت دلیل دې په دې چه صحابه معیار حق دی ، ﴿ مَا كَانَ لِاَهْلِ الْمَدِيْنَةِ ﴾ ،په دې آیت کښې ترغیب دې د جهاد او زجر دې په پاتې کیدو د جهاد نه ، په دې طریقې سره چه جهاد خو دومره افضل عمل دې چه نبی ﷺ په نفس نفیس سره جهاد کوی ، او په ځان تکلیفونه تیروی ، نو تاسو ولې جهاد له نه ځئ ، او ولې ځان د جهاد د مشقتونو او تکلیفونو نه بچ کوئ ، او بل دا چه په

جهاد كښې هر يو تكليف تيرول سبب دَ ثواب دى، ﴿ وَلَا يَرْغَبُوا بِأَنفُسِهِمْ ﴾ دا عطف دې په (ماكان) باندې او (لايرغبوا) صيغه د نهى ده، يا عطف دې په (يتخلفوا) باندې چه منصوب دې په (أن) سره او (لا) د تاكيد نفى لپاره معاد شوې دې، او مراد د نفى نه نهى ده او (يرغبوا) په معنى د غوره كولو او مينه كولو سره دې ، نو معنى په اول تقدير دا شوه چه نه دې غوره كوى خپل نفس د نبى ﷺ د نفس نه ، يا دا چه محبت دې نه كوى د خپل نفس سره زيات د محبت د نبى ﷺ د نفس نه ، او په دويم تقدير معنى دا چه مناسب نه ده چه غوره كړى خپل ځان يا محبت اوكړى د خپل ځان سره - الخ، د غوره كولو او د مينې كولو مطلب دادې چه خپل ځان د تكليفونو نه اوساتى حالانكه نبى ﷺ ئې برداشت كوى نو دا اوله وجه د ترغيب الى الجهاد او د زجر په پاتې كيدلو د جهاد نه شوه او دويمه وجه داده چه ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ ﴾ (باء) سببيه ده او معنى داده چه په جهاد كښې هر تكليف موجب د ثواب دې ، ﴿ وَلَا يَطَـُٔونَ مَوْطِئًا ﴾ (موطئا) ظرف مكان دې ، او (وطئا) په خپو باندې پيمال كولو ته وائي او مراد دا دې چه مجاهدين په ځمكه ګرځى او كافران ورته ګورى او غصه كيږى نو دا هم ثواب دې، اوپه ﴿ يَغِيظُ ٱلْكُفَّارَ ﴾ كښې مضاف مقدر دې ، (اى يغيظ وطئاه الكفار) ، ﴿ وَلَا يَنَالُونَ ﴾ نيل موندلو او حاصلولو ته وائى ، او مراد دادې چه كافران قتلوئ يا شكست وركوئ ، يا ترينه مال غنيمت اخلئ نو دا ټول ثواب دې . ﴿ إِلَّا كُتِبَ لَهُم بِهِۦ عَمَلٌ ﴾ ، مضاف مقدر دې (اي ثوابُ عمل صالح ). يا عمل صالح كنايه ده د ثواب نه او تنوين په كښې دپاره د تعظيم دې ، او په (كتب) كښې اشاره ده . دې ته چه دوئ لازمامستحق دى د ثواب ، په مقتضٰى د وعدې د الله ﷻ سره ، او په الله ﷻ هيڅ وجوب نشته ، ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُضِيعُ ﴾ ، يعنى دالله ﷻ وعده مضبوطه وعده ده ، ﴿ نَفَقَةً صَغِيرَةً ﴾ لكه يوه كوره چه چاته وركړى ، ﴿ وَلَا كَبِيرَةً ﴾ ،لكه عثمان ؓ چه ډيره زيانه چنده وركړې وه ، ﴿ وَادِيًا ﴾ ، مراد د دې نه سفر كول دى په نيت د جهاد سره، وادى په اصل كښې ((مسيل الماء بين الجبلين)) ته وئيلې شى، يعنى د دوو غرونو مينځ كښې چه كوم فراخ ځائ وى ، او چه سيلاب راشى په هغې كښې اُوبه بهيږى . نو هغه ميدان هم وى او كنده هم وى ، نو د وادى ترجمه په ميدان او كنده دواړه سره كيږي .

| وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُوْنَ لِيَنْفِرُوْا كَآفَّةً ۚ فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ |
|---|
| اوندی مناسب مؤمنانو لره چه ټول اُوځي ټول (په يو ځل جهاد يا د علم لپاره) پس ولې نه اُوځي دهرې ډلې د دوئ نه |
| طَآئِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوْا فِي الدِّيْنِ وَلِيُنْذِرُوْا قَوْمَهُمْ اِذَا رَجَعُوْا اِلَيْهِمْ |
| څه کسان چه کامله پوهه حاصله کړي په دين کښې اوچه وه يروي دوئ قوم خپل کله چه هغوئ واپس شي دوئ ته |
| لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُوْنَ ﴿١٢٢﴾ |
| د دې لپاره چه هغوئ ځان بچ کړي د ګناه نه |

﴿وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُوْنَ لِيَنْفِرُوْا كَآفَّةً﴾ هر کله چه په ماقبل آياتونو کښې ترغيب ذکر شو جهاد ته او زجر ذکر شو په پاتې کيدو د جهاد نه ، نو دا توهم پيدا شو چه جهادبه هميشه فرض عين وی ، نو په دې آيت کښې د دې توهم دفع ده ، يعنی جهاد هميشه فرض عين نه دې . بلکه فرض کفائی دې، نو ټول دې جهاد له نه ځی ځکه چې په دې کښې د نورو مهماتو او ضرورياتو دينيو تعطل راځی ، او دارنګه دې ټول خلق د دين علم حاصلولو پسې نه ځی ځکه چې په دې کښې هم د نورو مهماتو د دين او دنيا تعطل راځی ، بلکه دوئ دې تقسيم د کارونو اوکړی ، او په دې آيت کښې دوه توجيه دی : اوله توجيه داده چه مراد د (لينفروا) نه وتل دی د پاره د جهاد لکه چه دا موافقه ده دما قبل سره ، نو په دې تقدير په ضمير د ﴿لِيَتَفَقَّهُوْا﴾ . کښې دوه احتماله دی ، يو دا چه دا ضمير راجع شی دغه طائفې ته ، چه جهاد له تللې ده ، او دا په دې صورت کښې چه نبی ﷺ ورسره په خپله جهاد له تللې وو، نو دا طائفه به د نبی ﷺ نه د دين علم زده کړی ،او چه کوم خلق پاتې شوی دی نو هغوئ ته دې تعليم ورکړی . او بل احتمال دادې چه ضمير د (ليتفقهوا) راجع دې هغه ډلې ته چه پاتې شوې وی، نو په آيت کښې تقدير دې او هغه دادې ، (فلولا نفر من کل فرقة طائفة وبقيت طائفة) يعنی د لوئې فرقې نه دې وروکې ډله جهاد ته لاړه شی او بله ډله دې پاتې شی چه علم حاصل کړی ، او بيا چه مجاهدين واپس راشی نو هغوئ ته دې تعليم اوکړی ، او دويمه توجيه داده چه د (لينفروا) نه مراد وتل دی دپاره د علم يا د بل دينی کار ، يعنی ټول خلق دې نه ځی تحصيل د علم پسې ، بلکه څه خلق دې لاړشی او څه دې بل دينی کار اوکړی يا دې څه معاش اوکړی چه معاش ته

ئې نقصان اونه رسی ﴿فَلَوۡلَا نَفَرَ﴾ (لولا) د تحضيض دپاره راځی ، او چه په ماضی داخل شی نو فائده کوی د توبيخ د ترك د فعل ، نو دلته هم زجر او توبيخ دې په ترك د وتلو ، او (فرقة) نه مراد لويه قبيله ده ، او د طائفې نه مراد وړوکې جماعت دې ﴿لِّيَتَفَقَّهُواْ فِى ٱلدِّينِ﴾ ، فقه هغه عميق او جور علم ته وائی چه احاطه ئی کړې وې ، په دقائقو او دلائلو د مسائلو باندې. او د دې وجې نه اصوليان وائی ، چه اطلاق د فقه په مجتهد کيږی ، او مقلد ته فقيه نه ويلې کيږی . اګر که اطلاق د فقيه په عرف کښې شائع دې ، په هغه چا چه علم د هغه حاوی وی په فروعو باندې مطلقا برابره خبره ده که په دليل سره وی او که بغيرد دليل نه وی ، نو معلومه شوه چه مطلوب په شرع کښې جور او عميق علم دې ، او د دې وجه نه دلته (ليتعلموا الدين) نه دې راغلې ، بلکه (ليتفقهوا) ذکر دې او بيا صيغه د باب تفعل ذکر ده ، د هغې يو خاصيت تکلف دې . په دې کښې اشاره ده چه دعلم دحصول دپاره صعوبتونه او مشقتونه برداشت کول دی . څکه چه : شعر

**بقدر الكد تكتسب المعالي ومن طلب العلى سهر الليالي**

﴿وَلِيُنذِرُواْ قَوۡمَهُمۡ﴾ د دينه مراد مطلق تبليغ د احکامو دې ، ليکن د انذار تخصيص څکه اوشو چه دا اهم دې د دې نه معلومه شوه چه الله ﷻ ته مقبول هغه علم دې چه مقصود ترينه تبليغ او اشاعت د دين وی ، اوکه د بل څه مقصد دپاره چا علم حاصل کړلو نو هغه مردود دې . ﴿لَعَلَّهُمۡ يَحۡذَرُونَ﴾ يعنی هغه قوم چه عالم ورته تبليغ د احکامو اوکړی ، نو هغوئ دې پرې عمل اوکړی او خپل ځان دې د ګناه او نافرمانئ نه بچ کړی او نافرمانی دې نه کوی ، ددې آيت نه دا معلومه شوه چه د متفقه عالم خبره منل د عوامو دپاره ضروری ده او نافرمانی کول ترې ناجائز دی ، او دې ته تقليد ويلې شی ، او د تقليد معنی دا نه ده چه دچا قول بې دليله منل ، بلکه معنی ئی داده چه د فقيه مجتهد قول منل بې د مطالبې د دليل نه، د دليل پيش کولو طاقت هرڅوك نه لری بلکه دا خاصه د مجتهد ده چه استنباط د حکم کوی د نصوصو نه او غيرمجتهد د دې قدرت نه لری نو د غير مجتهد دپاره د مجتهد اتباع پکار ده ، په غير مقلدينو کښې چه کوم عوام دی، نو هغوئ د قرآن ، حديث په صحيح تلفظ او ترجمه باندې قدرت نه لري، نو استنباط او اجتهاد خو ډيره لويه خبره ده ،او د غير مقلدينو ملايانو قول منی ، نو دا هم تقليد دې ، نو که کچرې تقليد ناجائز وی نو پکار ده چه دا غير مقلدين ملايان

دې دا خپل عوام د تقليد نه منع كړي . (الله الهادي الي سبيل الصراط) .

| |
|---|
| يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا قَٰتِلُوا الَّذِينَ يَلُونَكُم مِّنَ الْكُفَّارِ وَلْيَجِدُوا فِيكُمْ |
| اې ايمان والو جنګ كوئ د هغې كسانو سره چه نزدې دی تاسو ته د كافرانو نه او ودې مومی هغوئ په تاسو كښې |
| غِلْظَةً ۚ وَاعْلَمُوٓا أَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ ۝ وَإِذَا مَآ أُنزِلَتْ سُورَةٌ |
| سختی (كلكوالې) او پوهه شئ چه بيشكه الله تعالی ملګرې د متقيانو دې اوكله چه نازل شی يو سورت |
| فَمِنْهُم مَّن يَقُولُ أَيُّكُمْ زَادَتْهُ هَٰذِهِۦٓ إِيمَٰنًا ۚ فَأَمَّا الَّذِينَ |
| پس بعضې د دې خلقو هغه څوك دی چه وائی چه چا لره زيات كړو دې سورت ايمان . پس هرچه هغه كسان دی |
| ءَامَنُوا فَزَادَتْهُمْ إِيمَٰنًا وَهُمْ يَسْتَبْشِرُونَ ۝ |
| چه ايمان ئ راوړې دې پس زيات ئ كړو هغوئ لره ايمان اوهغوئ خوشحاليږی (په نزول د سورت) |
| وَأَمَّا الَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ فَزَادَتْهُمْ رِجْسًا |
| اوهرچه هغه كسان دی چه په زړونو كښې ئ مرض د نفاق دې پس زياتوی دا سورت هغوئ لره پليتی |
| إِلَىٰ رِجْسِهِمْ وَمَاتُوا وَهُمْ كَٰفِرُونَ ۝ |
| د هغوئ د پليتئ سره او مره كيږی دوئ په داسې حال كښې چه كافر دی. |

﴿يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا قَٰتِلُوا الَّذِينَ﴾ د علم د تحصيل نه بعد د هغې انذار او تبليغ دې . او بيا قتال دې، په دې آيت كښې د قتال طريقه او تعليم ذكر كيږی . چه د قريب كفارو سره اول جهاد اوكړئ .او دا ترتيب طبعی دې ، او بيا دغه شان درجه په درجه د جهاد دائره وسيع كولې شی . دا په اقدامی جهاد كښې ، او په دفاعی جهاد كښې به اول دَ هغه كفارو سره جهاد كولې شی چه په مسلمانانو حمله كوی.﴿وَإِذَا مَآ أُنزِلَتْ﴾ دا زجردې منافقينو ته چه كله يو.سورت يا حكم د جهاد نازل شی، نو دوئ په طور د مسخرې سره وائی چه په دې كښې څه فائده ده او د چا ايمان زيات شو نو الله ﷻ فرمائي چه په دې سره د مسلمانانو ايمان زياتيږی .﴿فَزَادَتْهُمْ إِيمَٰنًا﴾ ايمان تصديق دې .او هغه بسيط دې ، زيادت او نقصان نه قبلوي، نو دلته د زيادت ايمان نه

مراد شدت قوت د ايمان دي ،او ايمان زيادت قبلوي په اعتبار د كيفيت سره ،او ديته شدن او قوت ويلي شي ،او په اعتبار د كميت سره زيادت نه قبلوي ځكه هغه په اعتبار د اجزا سره وي. اوايمان تصديق بسيطه دې ،اجزاء ورله نشته دې يا مراد زيادت دې په اعتبار دمؤمن به سره ، ﴿يَسۡتَبۡشِرُوۡنَ﴾ ،ايمان عظيم الشان دولت دې ،او د قرآني آياتونو نزول او دا رنګه تلاوت ئې د زيادت او د قوت او د ترقي سبب دې ، نو ددې وجې نه مؤمنان پرې خوشحاليږي . ﴿فَزَادَتۡهُمۡ رِجۡسًا﴾ ، د سورت د نزول نه مخكښې چه كومه حصه د قرآن نازله شوې وه ، نو منافقانو په هغې كفر اوكړو نو دا يوه ګندګي شوه ،او چه دا سورت نازل شو نو بيا ئې كفر اوكړونو دا بله ګندګي شوه ،﴿ وَمَاتُوۡا وَهُمۡ كٰفِرُوۡنَ﴾ يعني څوك چه په نفاق اصرار كوي نو خاتمه به ئې په كفر شي، حاصل دا چه بيشكه قرآن د ايمان د ترقئ ذريعه ده ، ليكن چه په محل كښې قابليت وي نو هغه ترقي كوي او چه په محل كښې خباثت او ګندګي وي نو هغه خباثت زياتيږي.

| |
|---|
| اَوَلَا يَرَوۡنَ اَنَّهُمۡ يُفۡتَنُوۡنَ فِيۡ كُلِّ عَامٍ مَّرَّةً اَوۡ مَرَّتَيۡنِ ثُمَّ لَا يَتُوۡبُوۡنَ |
| آيا دوئ دا فكر نكوي چه بيشكه په دوئ باندې امتحان راځي په هر كال كښې يو ځل يا دوه ځله، بيا هم دوئ توبه نكوي |
| وَلَا هُمۡ يَذَّكَّرُوۡنَ ﴿۱۲٦﴾ وَ اِذَا مَاۤ اُنۡزِلَتۡ سُوۡرَةٌ نَّظَرَ بَعۡضُهُمۡ اِلٰى بَعۡضٍ ؕ |
| او نه دوئ نصيحت قبلوي . اوكله چه نازل كړې شي يو سورت نو ګوري بعضې د دوئ نه بعضو ته (اشاره كوي يوبل ته په سترګو) |
| هَلۡ يَرٰىكُمۡ مِّنۡ اَحَدٍ ثُمَّ انۡصَرَفُوۡا ؕ صَرَفَ اللّٰهُ قُلُوۡبَهُمۡ |
| آياويني تاسو لره څوك، بيا وګرځي دوئ ستاسو د مجلس نه، ګرځوي الله تعالى زړونه د دوئ |
| بِاَنَّهُمۡ قَوۡمٌ لَّا يَفۡقَهُوۡنَ ﴿۱۲۷﴾ |
| په وجه د دې چه دوئ داسې قوم دې چه نه پوهيږي. |

﴿ اَوَلَا يَرَوۡنَ اَنَّهُمۡ يُفۡتَنُوۡنَ ﴾ ،دا زجر دې منافقينو ته چه په دوئ باندې دنفاق په وجه هر كال څو څو وارې امتحان راځي ، د دوئ نفاق ظاهريږي او نور مصيبتونه پرې راځي خو بيا هم دوئ د خپل جرم نه توبه نه كوي ،او نصيحت نه حاصلوي ،﴿ وَاِذَا مَاۤ اُنۡزِلَتۡ سُوۡرَةٌ ﴾ ،داهم

زجر دي منافقینو ته او د هغوئ د قبائحو بیان دي . چه دوئ کله د نبی ﷺ په مجلس کښې ناست وی نو دوئ ته د کلام الهی اوریدل ډیر ګران وی . خصوصا د هغه آیاتونو اوریدل چه په هغې کښې د منافقانو د غیوبو ذکر وی ، نو په دغه وخت کښې دوئ یو بل ته د سترګو په اشارو سره وائی چه ﴿هَلْ يَرَىٰكُم مِّنْ أَحَدٍ﴾ نو دلته (یشیرون) مقدر دي ،یعنی دوئ د سترګو په اشارو سره د یوبل نه تپوس کوی چه صحابه کرام ﷺ مونږ ته ګوری اوکه نه؟ .لیکن صحابه کرام به د نبی ﷺ په مجلس کښې چپ چاپ ناست وو ، او سرونه به ئې داسي ټیټ کړي وو ، چه په یو روایت کښې راځی (کَاَنّ علی رؤسهم الطیر) لکه د دوئ په سرونو مارغان ناست دی ، نو سرونه ئې بالکل نه خوزول ، نو دوئ به د سترګو په اشارو سره یوبل ته وه وئیل چه مونږ ته څوك نه ګوری نو دوئ به پاسیدل او د بابرکت مجلس د نبی ﷺ نه به محروم شول﴿ثُمَّ انصَرَفُوا﴾ددینه مخکښې دغه عبارت مقدر دي چه (لایراکم احد) ، ﴿صَرَفَ اللَّهُ قُلُوبَهُم﴾ دا یا انشاء ده او دعا د شر ده یعنی خیرې دی منافقانو ته یا جمله خبریه ده ،چه الله ﷻ د دوئ زړونه اړولی دی د قبول د ایمان نه او د معرفت نه د دوئ د ډیر ضد او جهالت په وجه .

| لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِّنْ أَنفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ |
|---|
| په تحقیق سره راغلي دي تاسوته رسول [۱] چه ستاسو د جنس نه دي، ګران دي په هغه باندې تکلیف ستاسو ، |
| حَرِيصٌ عَلَيْكُم بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿۱۲۸﴾ |
| حرص کونکي دي ستاسو په ایمان راوړلو، خاص په مؤمنانو باندې ډیر مینه کونکي رحم کونکي دي. |
| فَإِن تَوَلَّوْا فَقُلْ حَسْبِيَ اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ |
| پس که دوئ مخ واړولو [۲] ، پس وه وایه کافی دي ما لره الله تعالی، نیشته هیڅوك لائق د عبادت سوی د هغه نه |
| عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ ﴿۱۲۹﴾ |
| په هغه ما ځان سپارلي دي اوهغه مالك د عرش لوئ دي . |

۱ - ترغیب اتباع د رسول صلی الله علیه وسلم ته .

۲ - په آخر کښې مسئله د توحید .

﴿لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُولٌ﴾ .دا په آخر ده سورت کښې بيان د صداقت د نبی ﷺ دي او ترغيب دې اتباع ته . دلته د نبی ﷺ په صفاتو کښې اول صفت د رسول دې ،دې کښې اشاره ده دې ته چه دې د خپل ځان نه خبرې نه جوړوی ، بلکه د ده ﷺ هر کلام وحی وی ،وحی د الله ﷻ د طرفه ده (ومايَنطق عن الهوي) نو ځکه ئې اتباع پکار ده،او دويم صفت ئې ﴿مِّنْ أَنفُسِكُمْ﴾ دې يعنی ستاسو د جنس نه بشر دې او عربو د هرې قبيلې سره ئې د قرابت تعلق شته دې ،او د دوئ ﷺ د حسب او نسب نه پوره پوره واقف يئ نو په (من انفسكم ) کښې اشاره ده شرافت د نسب ته او علم حاصلول په اسانتيا سره د دوئ ﷺ نه ، ځکه چه د خلاف الجنس نه استفاده ګرانه وی ،او د همجنس نه آسانه وی . ﴿عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ﴾ ،ګران دې په ده ستاسو تکليف. په احکاماتو او اعمالو کښې ستاسو دپاره اسانتيا خوخوې ﴿حَرِيصٌ عَلَيْكُم﴾ حريص دې ستاسو په نفع او ستاسو په ايمان او هدايت . ﴿بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ﴾ په مومنانو ډير شفقت کونکې دې .﴿رَّحِيمٌ﴾ رحمت کونکې دې ،د رافت او رحمت په مينځ کښې دا فرق دې چه په رؤف کښې مبالغه زياته ده د رحيم نه ،او (ابلغ ) مخکښې ذکر شو د پاره د رعايت د فواصلو . ﴿فَإِن تَوَلَّوْا فَقُلْ﴾ .دا په آخر کښې مسئله د توحيد بيانوی په څو وجوهاتو سره (١) ﴿حَسْبِيَ اللَّهُ﴾ (٢) ﴿لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ (٣) ﴿عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ﴾ (٤) ﴿وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ﴾

**فائده** : په ابوداؤد کښې د حضرت ابودرداء رضی الله عنه نه روايت دې چه څوك ، صبا ، ماښام اوه اوه (٧) کرته دا ولی (حسبي الله) د آخر پورې . نو الله ﷻ به د ده دتمامو همونو او غمونو دپاره کافی شی

**(تم سورة التوبة بفضل الله وكرمه)**

**٢٣ ذی الحجه ، سنه ١٤٢٩ هـ ، ٢٢ دسمبر ٢٠٠٨ ع**

| رکوعاتها (۱۱) | سورة یونس مکیة | آیاتها (۱۰۹) |
| --- | --- | --- |
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکې دې شروع کوم | |

**ترتیبها حسب التسلسل (۱۰) وحسب النزول (۵۱)**

دترتیب قرآنی په لحاظ سره لسم سورت دې اود ترتیب نزولی په لحاظ سره یو پنځوستم دې ، زمانه د نزول یې د مکې معظمې دور اخیر دې ، (نزلت بعد بني اسرائیل وقبل الهود ) .

**ربط** : د سورة بقرې د مضامینو اعاده ده، نفی د شفاعت قهری، په ما قبل سورة کښې د سورت بقرې دمضامینو نه د مضمون جهاد تفصیل اوشو ،او د توحید تمام پهلوګانې. په ما قبل سورتونو کښې لکه اٰل عمران ،مائده ،انعام ، کښې ذکر شوې وې لیکن یوه پهلو چه نفی د شرك فی الشفاعت ده پاتې وه چه د دې تفصیل نه ووشوې نو دلته د دې مسئلې تفصیل کیږی ، او د سورة یونس نه تر سورة کهف دا مضمون بیانیږی .

**خلاصه د مضامینو ده سورة** : په ابتدا کښې یو آیت تمهید دې او بیا زجر دې ،اوبیا دعوی د سورة درې خلې بیانیږي اول اجمالا ، ﴿ مَا مِن شَفِيعٍ إِلَّا مِنۢ بَعۡدِ إِذۡنِهِۦ ﴾ ،آیت (۳) ، دویم وارې ضمنا. ﴿ وَيَقُولُونَ هَٰٓؤُلَآءِ شُفَعَٰٓؤُنَا عِندَ ٱللَّهِ ﴾ ،آیت نمبر ۱۸ ،دریم وارې تفصیلا ، ﴿ قُلۡ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِن كُنتُمۡ فِي شَكٍّ مِّن دِينِي ﴾ ،آیت نمبر ۱۰۴ ، د دې دعوې دپاره یوولس دلیلونه ذکر شوی دی ، یو دلیل د وحی او لس عقلی، په دې لسو کښې یو دلیل د نفی د شرك فی العلم د پاره دې ،آیت ۴۱ ، اویو دلیل د نفی د شرك فعلی دپاره دې ،آیت نمبر(۶۰) .او باقی اته دلائل د نفی د تصرف دپاره دی ،اول دلیل عقلی ، ﴿ إِنَّ رَبَّكُمُ ٱللَّهُ ٱلَّذِي - الایه : ۳ ﴾، دویم دلیل عقلی ﴿ هُوَ ٱلَّذِي جَعَلَ ٱلشَّمۡسَ - الایه : ۵ ﴾ ،دریم دلیل عقلی عقلی ﴿ وَيَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَضُرُّهُمۡ وَلَا يَنفَعُهُمۡ - الایه : ۱۸ ﴾ ﴿ هُوَ ٱلَّذِي يُسَيِّرُكُمۡ فِي ٱلۡبَرِّ وَٱلۡبَحۡرِ الایه : ۱۲ ﴾ ، پنځم دلیل عقلی (علي سبیل الاعتراف من الخصم) ﴿ قُلۡ مَن يَرۡزُقُكُم الایه : ۳۱ ﴾ شپږم دلیل عقلی ﴿ أَلَآ إِنَّ لِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ - الایه : ۵۵ ﴾ ،اووم دلیل عقلی ﴿ قُلۡ أَرَءَيۡتُم مَّآ أَنزَلَ ٱللَّهُ لَكُم مِّن رِّزۡقٍ - الایه : ۵۹ ﴾، اتم دلیل

عقلي ﴿ وَمَا تَكُونُ فِي شَأْنٍ - الايه : ۶۱ ﴾ نهم دليل عقلي ﴿ أَلَآ إِنَّ لِلَّهِ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ - الايه ۶۶ ﴾ لسم دليل عقلي ﴿ هُوَ ٱلَّذِي جَعَلَ لَكُمُ ٱلَّيْلَ - الايه : ۶۱ ﴾. د دلائلو په درميان کښې: دلائلو ثمره، زجرونه تخويفونه، هم مذکور دی ، ددلايلو عقليونه بعد قصه د نوح ﷺ او دموسی او هرون ﷺ د تخويف دنيوي د نموني د پاره ذکر کيږي او په آخر کښې يولسم دليل وحی ذکر کيږي.

| |
|---|
| الٓر ۚ تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْكِتَٰبِ ٱلْحَكِيمِ ① أَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا أَنْ |
| (الر) دا آياتونه [۱] دی د داسې کتاب چه حکمتونو والا دې . آيا دې خلقو لره [۲] تعجب دې په دې خبره چه |
| أَوْحَيْنَآ إِلَىٰ رَجُلٍ مِّنْهُمْ أَنْ أَنذِرِ ٱلنَّاسَ وَبَشِّرِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ |
| وحی کړيده مونږه يو سړی ته د دوئ نه چه ته وه ويره وه [۳] خلق (نه منونکی) او زيرې ورکړه [۴] ايمان والو ته |
| أَنَّ لَهُمْ قَدَمَ صِدْقٍ عِندَ رَبِّهِمْ ۗ قَالَ ٱلْكَٰفِرُونَ إِنَّ هَٰذَا لَسَٰحِرٌ مُّبِينٌ ② |
| چه بيشکه ده دوئ لپاره مرتبه اُوچته ده په نيز د رب د دوئ ، وائی کافران چه بيشکه دا خوجادوګر ښکاره دې |

﴿ الٓر ۚ تِلْكَ ﴾ تلك اشاره ده آياتونو د قرآن ته يا دې سورت ته ،او ﴿ ٱلْحَكِيمِ ﴾ په معنی د ذی حکمت (حکمتونو والا) سره دې ،او ديته اسم فاعل نسبتی يا اسم فاعل ذی کذا ويلې شی ، لکه لابن، لبن والا ، يا (حکيم) په معنی د مفعول يعنی محکم سره دې چه منسوخ نه دې په بل کتاب سره ، يا دا صفت بحال متعلقه دې ،(اي حکيم منــزله) يعنی دا کتاب د حکيم ذات د طرفه دې ،حضرت شيخ به فرمائل چه کله توصيف د کتاب په حکيم سره اوشی نو هلته زيات زور ددلائل عقليو وی ، دلائل نقليه نه وی يا ډير کم وی او چرته چه توصيف د کتاب په (مبين) سره ؤشی نو هلته زيات زور د دلائل نقليؤ وی او دلائل عقليه يا نوی يا ډير کم وی لکه په

۱ - تمهيد مع ترغيب الی القرآن.
۲ - زجر
۳ - تخويف
۴ - بشارت

سورة شعراء كښې توصيف د كتاب په (مبين) سره شوې دې، نو صرف يو عقلي دليل په كښې دې نور تمام دلائل نقليه دى دغه شان په سورت حم زخرف كښې او په صورت لقمان كښې توصيف د كتاب په (حكيم) سره راغلې دې نو هلته دليل نقلي صرف يودې باقي دلائل عقليه دى نو دلته هم په ذكر د حكيم كښې دلائل عقليو ته اشاره ده ، نقلي دلائل نشته دې او قصه د نوح ﷺ او د موسى ﷺ لپاره د بيان د نمونې د تخويف دنيوى ده .

﴿ أَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا أَنْ أَوْحَيْنَا ﴾ ،همزه د استفهام تعجبي دپاره راځي په معنى د نفي سره يعنى دا خبره څه د تعجب خبره نه ده چه مونږ وحى اوْكړه يو رجل ته د دوئ دَ جنس نه لكه مشركان چه دا تعجب كوى ، ﴿عَجَبًا﴾ خبر دَ (كان) دې ،او ﴿لِلنَّاسِ﴾ ئې د متعلقاتو نه دې او اسم د كان ﴿أَنْ أَوْحَيْنَا﴾ دې په تاويل ده مفرد سره (اى ايحائنا الي رجل) ،او خبر د كان يا د دې وجې نه مقدم شوې دې چه تنبيه راشى په دې چه مقصود په استفهام تعجبي سره نفى د تعجب ده د نفى دَ ايحاء نه او بل د دې وجې نه چه اسم د كان د متعلقاتو او معطوفاتو په وجه سره طويل شو ،نو د دې وجه نه مؤخرشو ، ﴿أَنْ أَنذِرِ النَّاسَ﴾ دا بيان د (ما يوحٰى) دې او انذار اخبار ته وائى ، سره د يرولو نه په شفقت سره ، د دې وجه نه پيغمبر ﷺ په صفاتو كښې منذر او نذير راځى او مخوّف نه راځى ، ﴿قَدَمَ صِدْقٍ﴾ دا اضافت د موصوف دې صفت ته، په اصل كښې (قدمٌ صدقٌ) په تنوين سره ووپه معنى د صادق ، حضرت مجاهد رحمه الله د(قدم صدق) ترجمه كوى په اعمال صالحه ،حسنه سره يعنى ثواب د اعمالو حسنو سره ، قدم چونكه آله او ذريعه ده دپاره د اعمالو نو په طريقه د مجاز مرسل سره ترينه اعمال اراده كړې شو،او صدق په معنى دحسن سره راځى، اوحضرت عطاء رحمه الله ئې ترجمه كوى په (المنـــزلة الرفيعه) سره ، يعنى لويه مرتبه، قدم سبب دې دپاره دَسبقيت د مراتبو عاليو ته ، نو دا مجاز مرسل شو او صدق په معنى دَ الرفيعة، سره دې .

﴿قَالَ الْكَافِرُونَ﴾ دا شكوه ده ، ﴿هَٰذَا﴾ اشاره ده رسول ﷺ ته، مشركين مكه ؤ چه كله د نبى ﷺ نه امر خارق للعادة (معجزه ) اوليدله او د نبى ﷺ نه به ئې قرآن واوريدلو نو ويل به ئې چه دا جادوګر دې ، حال دا چه دوئ پوهيدل چه جادوګر نه دې ، دا ددروغو الزام د دوئ د عجز ښكاره دليل وؤ ، چه كله څوك د خپل مد مقابل د كلام معقول جواب نه شى وركولې نو بيا د دروغو الزامات لګول شروع كړى ، نو مشركينو به هم داسې ويل ،چه مونږ د دوئ ﷺ

مقابله څکه نشو کولې چه دا ساحر دې .

إِنَّ رَبَّكُمُ ٱللَّهُ ٱلَّذِي خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ

بيشکه رب ستاسو الله تعالى دې[1] هغه ذات چه پيدا کړی ئ دی آسمانونه او زمکه په مقدار د شپږو ورځو کښ

ثُمَّ ٱسۡتَوَىٰ عَلَى ٱلۡعَرۡشِۖ يُدَبِّرُ ٱلۡأَمۡرَۖ مَا مِن شَفِيعٍ إِلَّا مِنۢ بَعۡدِ إِذۡنِهِۦۚ

بيا ئې استوى کړيده په عرش،تدبير کوی د ټولو کارونو ، نشته دې هيڅ شفاعت کونکې[2] مگر پس د اجازت دهغه نه.

ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ رَبُّكُمۡ فَٱعۡبُدُوهُۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٣﴾

دا صفتونو والا الله رب ستاسې دې نو صرف دهغه عبادت کوئ، آيا پس تاسې نصحيت نه قبلوئ

إِلَيۡهِ مَرۡجِعُكُمۡ جَمِيعٗاۖ وَعۡدَ ٱللَّهِ حَقًّاۚ إِنَّهُۥ يَبۡدَؤُاْ ٱلۡخَلۡقَ

خاص هغه ته گرځيدل ستاسې د ټولو دی، وعده کړيده الله تعالى وعده حقه، بيشکه هغه اول پيدا کوی مخلوق

ثُمَّ يُعِيدُهُۥ لِيَجۡزِيَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ

بيا به ئې دوباره پيدا کوی. د دې لپاره چه بدله ورکړی هغه کسانو ته چه ايمان ئ راوړې دې او عملونه ئ کړيدی نيک

بِٱلۡقِسۡطِۚ وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لَهُمۡ شَرَابٞ مِّنۡ حَمِيمٖ وَعَذَابٌ أَلِيمُۢ

په انصاف سره اوهغه کسان چه کفر ئ کړيدې دوئ لره سکل دی د يشيدلو اُوبو نه او عذاب دردناك دې

بِمَا كَانُواْ يَكۡفُرُونَ ﴿٤﴾

په سبب د دې چه دوئ کفر کولو.

﴿ إِنَّ رَبَّكُمُ ٱللَّهُ ﴾ ، دا اول دليل عقلي دې ، د توحيد دپاره او د مشرکينو د تعجب ازاله ده چه تعجب مه کوئ ،چه دا رسول هم بشر او هم رسول څرنگه کيدې شی ، بلکه په غور سره دا خبره واورئ ، دوئ ﷺ چه څه وائی دا دعقل او فطرت سره عين برابر دی ، رب په معنی د مَالِكُ

١ - دليل عقلی په توحيد.

٢ - دعوی د سورت

اُمُوْرِكُمْ . سره دي يعنى ستاسو كار ساز او حاجت روا صرف يو الله دي چه هغه زمكه اسمان پيدا كړى دى ، او د دي نظام په خپله چلوى . چاته ئى هيڅ حاجت نشته .د ﴿سِتَّةِ أَيَّامٍ﴾ نه مراد مقدار دشپږ ورځو دي ، ځكه خود شپه او ورځ د اسمان او زمكي د پيدا كيدو نه مخكښ نه وؤ موجود ، ﴿ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ﴾ ، دا كنايه ده دَ حكومت او سلطنت نه (يقال استوي فلان علي سرير الملك ويراد منه ملك وان لم يقعد علي السرير اصلا)، (روح المعاني) او (ثُمَّ) د پاره د تراخى ذكر دي . مطلب دادي چه الله ﷻ د زمكي او اسمانونو خالق هم دي خو متصرف هم دي ، او د زمكي آسمان تصرف ئى هيچا ته نه دي حواله كړي .

**فائده** : لكه څرنګه چه مخكښ ذكر شوى دى چه ﴿اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ﴾ د متشابهاتو نه دي او په دي كښ دوه قوله دى . يو د متقدمينو او بل د متاخرينو اهل سنت والجماعت . د متقدمينو اهل سنت مذهب دادي چه د دي صفاتو (استواء على العرش، ساق، يَد وغيره) نه ظاهرى معنى نده مراد يعنى اعضاء، اجزا، نه دى مراد بلكه مراد ترينه يو صفت د الله ﷻ دي ، چه مونږته په قطعى طريقې سره نه دي معلوم او د دي وجه نه به تفويض د علم د دي كيدي شى الله ﷻ ته لكه حافظ ابن حجر په فتح الباري كښ په صـــــ٣٠٦، ٣٠٧، جـ١٣ .كښ د امام مالك مشهوره مقوله نقل كوى ، او وائى چه (اخرج البيهقي بسند جيد عن عبدالله بن وهب قال كنا عند مالك فدخل رجل فقال يا اباعبدالله (الرحمن على العرش استوي) كيف استوى فاطرق مالك فاخذته الرحضاء ثم رفع رأسه فقال : (الرحمن على العرش استوى)، كما وصف به نفسه ولايقال كيف وكيف عنه مرفوع وما اراك الا صاحب بدعة) يعنى د امام مالك نه چا تپوس اوكړود .(الرحمن على العرش استوي) په باره كښ نو دوئ سكوت اوكړو د تفسير اوتفصيل نه . او صرف كما وصف به نفسه ئى اووئيل او كيفيت چه د اجسامو صفت دي هغه ئى نفي كړو او دغه شان د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه روايت دي چه كله د دوئ نه په دي باره كښ تپوس وُكړې شو نو دوئ اوفرمائيل : (نؤمن بها ونصدق بها بلا كيف ولامعنى) ، (كتاب الاسماء والصفات ص ٤٠٨) دا واضح دليل دي چه دامام احمد په نزد دَ دينه ظاهرى معنى نه ده مراد . او حافظ ابن حجر . په صفاتو كښ يو مذهب داسې نقل كوى ،(الثالث امرارها على ما جاءت مفوضا معناها الى الله ،فتح الباري ، ج١٣، ص٣٩٠) امام ترمذى رحمه الله په حديث دَ نزول الرب تبارك وتعالى كښ وائى .

(نومن بها ولايقال كيف وهذا الذي اختاره اهل الحديث ان تري هذه الاشياكما جاءت ويؤمن بها ولاتفسر ولاتتوهم ولايقال كيف) امام ترمذی رحمه الله تصريح اوکړه ،چه ظاهری معنی نه ده مراد او دې ته ئې مذهب د سفيان ثوری او د سفيان بن عيينه ، مالك بن انس ، ابن مبارك ، وكيع ، وغيره ويلې دي.

او متاخرين (چه د هغوئ دور بنا په راجح قول ده سـ ٣٠٠ هجری نه بعد شروع کيږي) د داسې احاديثو تاويل کوي ، دپاره د دفع د هغه فتنو چه په زمانه د متقدمينو سلف کښې نه وې ، لکه مشبهة ، مجسمه ، او دا تاويل کول بدعت يا خروج نه دې د مذهب د اهل سنت او دَ مذهب د سلفُ نه ،ځکه چه تاويل په خير القرون کښې ثابت دې ،او د صحابؤ نه ثابت دې لکه ابن عباس ﷺ د ساق تاويل کوی په شدت سره ، (کما في البخاري ،صـــ٤٣٨ جـــ١٣)او دغه شان حضرت قتاده ﷺ نه مروی ده ، اودغه شان د ابن عباس ﷺ نه تفسير د (والسماء بنينها بايد) په قوت سره مروی دې ،دغه شان په بيهقی په الاسماء والصفات صـ٤٧ کښې، د امام بخاري رحمه الله نه په روايت د فربری رحمه الله سره نقل کړی دی ، چه په حديث کښې د (ضحك) نه مراد رحمت دې ، د دې نه علاوه د سلفو اقوال پدې باره کښې ډير شته دې ، ﴿يُدَبِّرُ الْأَمْرَ﴾ يعنې د ټولو کارونو انتظام په خپله کوی ، هيچا ته ئې هيڅ کار نه دې حواله کړې ، نو دا جمله تفسير دې د ،(استوي علي العرش) دپاره، ﴿مَا مِن شَفِيعٍ﴾، دا ذکر د دعوې دې او دمشرکينو د عقيدې رد دې چه دوئ ويل : مونږ د خپلو معبودانو ، او بزرګانو عبادت ددې دپاره کوؤ، چه مونږ الله ﷻ ته قريب کړی ، او د هغه د عذاب نه به مو بچ کړی ، ﴿ذَٰلِكُمُ اللَّهُ﴾ ، دا ددليل مذکور ثمره ده ﴿إِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ﴾ دا تمهيد دې مابعد ته او تخويف دې ، چه د الله ﷻ درګاه ته د ټولو حاضری ده ، ﴿لِيَجْزِيَ الَّذِينَ﴾ دا بشارت دې او لام للعاقبت دې او دا متعلق دې د (مرجعكم) سره يا دا (يُعيده) سره، ﴿بِالْقِسْطِ﴾ ،متعلق دې د (يجزی) سره ﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا﴾ دا تخويف دې.

| هُوَ | الَّذِي | جَعَلَ | الشَّمْسَ | ضِيَاءً | وَالْقَمَرَ | نُورًا | وَقَدَّرَهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

الله تعالی هغه ذات دې چه ګرځولې ئې دې نمر پړقيدونکې او سپوږمۍ روښانه او مقرر کړی ئې دی

| |
|---|
| مَنَازِلَ لِتَعْلَمُوْا عَدَدَ السِّنِيْنَ وَالْحِسَابَ ؕ |
| لپاره د رفتار د هر يو منزلونه، لپاره د دې چه معلوکړئ تاسو شمار د کلونو او حساب د مياشتو. او ورځو. |
| مَا خَلَقَ اللّٰهُ ذٰلِكَ اِلَّا بِالْحَقِّ ۚ يُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ۝ |
| ندي پيدا کړي الله تعالى دا څيزونه مګر دحق د ظاهرولو لپاره، په تفصيل سره بيانوي دليلونه هغې قوم ته چه پوهيږي |
| اِنَّ فِي اخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَمَا خَلَقَ اللّٰهُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ |
| بيشکه په تلوار تلو تلو د شپې او ورځې کښې او په هغه څيزونو کښې چه پيدا کړيدى الله تعالى په آسمانونو او زمکه کښې |
| لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَّقُوْنَ ۝ |
| خامخا ډير دليلونه دي هغې قوم لره چه يريږي د الله تعالى نه. |

﴿ هُوَ الَّذِىْ جَعَلَ الشَّمْسَ ضِيَآءً ﴾ ،دا دويم دليل عقلي دې ، ضياء بمعنى ذاتُ ضياءِ ،او (نُورًا) په معنى دَ (ذَا نُورٍ) سره دې، بعض وائى چه ضياء او نور کښې فرق نشته دې ،او بعض مفسرين د فرق قائل دى چه ضياء هغه رڼا ته وائى چه کامله وى، چمك او پړق په کښې وى او نو رنفس رڼا ته وائى ،او بعض وائى چه ضياء هغه رڼا وى چه اصلي وى او د بل څه نه نوى حاصله شوې او نور هغه رڼا ده چه د بل څيز نه حاصله وى. او د شمس رڼا په عالم اسباب کښې د بل څيز نه نده حاصله او د قمر رڼا د شمس نه حاصله ده ، لکه . منطقيان وائى چه (نور القمر مستفاد من نورالشمس) مثال د حدسياتو دې چه عبارت دې د تصديق نه په ثبوت د محمول د پاره دموضوع په مشاهدې د حال د موضوع سره څکه مونږ کله چه مشاهده اوکړو چه نور د قمر (دَ سپوږمئ رڼا) کله زياتيږي او کله کميږي نو معلومه شوه چه رڼا دقمر خپله نه ده بلکه مستفاد ده د شمس نه ، په محاذات او مخامخ کيدلو سره چه محاذات ئى ورسره لږ راشى نو نورکم وى اوچه ډير راشي نو نور ډير وى ، ليکن دا فرق د ضياء او نور په مينځ کښې ثابت نه دې ، د لغت نه ، او اختلاف د نور القمر کيدې شى چه د بل څه وجه نه وى ، لکه مثلاقمر دې کروى شکل وى او نيمه حصه دې ئ مضئ وى ،اوبله نيمه حصه ئى مضى نه وى نو دا چه ګول حرکت کوى، نو کله دې هلال وى او کله دې بدر ، او کله دې نه ښکاريږي ، والله اعلم

﴿وَقَدَّرَهٗ مَنَازِلَ﴾ دلته مضاف مقدر دې (اى قدرمسيره) يعنى اندازه کړيدې الله ﷻ رفتار

د قمرپه منزلونو کښې او منازل دَ منزل جمع ده، د شمس اودقمر دطلوع او د غروب ځایونه ته ویلې شي (لکه د ریل ګاډی سټیشن) او دا منزلونه اته ویشت دی ، نومونه ئی دادی (سرطان ، بطین ، الثریا ،الدبران ، الهقعه، العنهة ، الذراع .النثره، الطرف ، الجبهة ،الزبره الصرفه ، العوّا ، السمّاك ،الغفر ،الزبانی ،الاکلیل، القلب ،الشولة ،النعائم،البلدة،سعد الذابح ، سعد بلع ،سعد السعود ،سعد الاخبیه ، فرع الدلول المقدم ، فرع الدلول المؤخر . بطن الحوت) او دا منازل تقسیم دی ، په دولس بروجو ، برج دَ (حمل ، ثور ، جوزا ، سرطان . اسد ، سنبله ، میزان ، عقرب ،قوس ، جدی ، دلو ،حوت) نو د هر برج دپاره دوه نیم منزله دی نو سپوږمئ په هر منزل کښې یوه شپه کوی ، او بیا دوه شپې پټه وی که چرې میاشت د پوره دیرش ورځو وی ، یا یوه شپه پټه وي کچر ي میاشت دیو کم دیرش ورځو وي ،نو قمر خپله دوره په میاشت کښې پوره کوی ،شمس په هر منزل کښې دیارلس ورځې وی ﴿ عَدَدَ ٱلسِّنِينَ ﴾ . یعنی وخت د شروع کیدو او ختمیدو د کالونو ﴿وَٱلْحِسَابَ ﴾ دا عطف دې په (عَدَدَ) باندې. (ای لتعلموا الحساب) مراد حساب د میاشتو اودَ ورځو دې ، ﴿إِلَّا بِٱلْحَقِّ ﴾ ، یعنی داد کائناتو نظام عبث نه دې ، بلکه دپاره د اظهار د قدرت د الله ﷻ او د دلائلو د وحدانیت د الله ﷻ دې

﴿ إِنَّ فِي ٱخْتِلَـٰفِ ٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ ﴾ ، دا دریم دلیل عقلی دې په توحید باندې ، او مراد : اختلاف د لیل او نهار نه دادې چه کمیږی او زیاتیږی او دا رنګه تیاره او رڼا ، او په یوبل پسې راتلل چه په مینځ کښې هیڅ وقفه نشته دې، مراد ددې ﴿لَـَٔايَـٰتٍ ﴾ مراد دَ دینه دلایل: توحید دی او د ﴿لِّقَوْمٍ يَتَّقُونَ ﴾ نه مراد اهل ایمان دی ځکه چه څوك په کفر او شرك باندې کلك وی نو هغه په دلائلو د توحید د باری تعالی او په قدرت د الله ﷻ کښې فکر نه کوی .

| إِنَّ ٱلَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَآءَنَا وَرَضُوا۟ بِٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَٱطْمَأَنُّوا۟ بِهَا |
|---|
| بیشکه هغه خلق چه عقیده نه لری د ملاقات زمونږ، او رضا شویدی په ژوند د دنیا او په دُنیا مطمئن شوی دی |
| وَٱلَّذِينَ هُمْ عَنْ ءَايَـٰتِنَا غَـٰفِلُونَ ۝ أُو۟لَـٰٓئِكَ مَأْوَىٰهُمُ ٱلنَّارُ بِمَا كَانُوا۟ يَكْسِبُونَ ۝ |
| اوهغه کسان چه دوئ زمونږ د آیاتونونه بی پرواه دی. دغه کسان ځائ د دوئ اُور دې په وجه د هغه عملونو چه دوئ ئ کوی |

| إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ يَهْدِيهِمْ رَبُّهُمْ بِإِيمَانِهِمْ |
|---|
| بېشکه هغه کسان چه ايمان ئې راوړې دې او عملونه کوي نېك، ؤبه رسوي دوئ لره جنت ته رب د دوئ په سبب د ايمان د دوئ |
| تَجْرِي مِنْ تَحْتِهِمُ الْأَنْهَارُ فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ ۞ دَعْوَاهُمْ فِيهَا |
| چه بهيږي به لاندې د بنګلو د دوئ نه ولې، اوسی به دوئ په جنتونو د نعمتونو کښې. بلنه د دوئ به په دې جنتونو کښې |
| سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَتَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَامٌ ۚ وَآخِرُ دَعْوَاهُمْ أَنِ |
| «داوي» چه پاکي ده تا لره يا الله، او ملاقات دَ دوئ به په جنت کښې سلام وي او آخري بلنه به د دوئ دا وي چه |
| الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۞ |
| ټول صفتونه د الوهية د يو الله لپاره دي چه رب د عالمينو دې. |

﴿إِنَّ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ﴾ دا تخويف اخروی دې (لايرجون) په معنی د (لايخافون) هم راځی او په معنی د طمع او اعتقاد سره هم راځی ، دلته دواړه اراده کيدې شی ، يعنی کوم خلق چه د قيامت او بعث بعد الموت عقيده نه لري او راضی شوی وی په ژوند د دنيا باندې په مقابله د آخرت کښې نو هغوئ عمل فقط د دنيا دپاره کوی ، نو په ﴿وَرَضُوا بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾ ، کښې اشاره ده چه د قيامت عقيده او اميد نه لري ، او په ، ﴿وَاطْمَأَنُّوا﴾ کښې اشاره ده چه خوف نه لری د ﴿وَاطْمَأَنُّوا﴾ معنی داده چه په دنيا کښې داسې منهمك شوی وی چه د الله ﷻ حضور ته د تللو نه هيڅ خبر نه وی ، غم او فکر ئی صرف د دنيا وی ، او د آياتونو نه غافل وی يعنی بالکل بی پروا وی ، اعراض کوی، نو د دغه شان خلقو ځائ د استوګنی اور د جهنم دې ، (اعاذنا الله منها) او دا د دوئ د هغه عملونو سزا ده چه دوئ په خپل دل او دماغ ، لاسونو خپو ، سره کول ﴿ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ﴾ دا بشارت دې ﴿يَهْدِيهِمْ رَبُّهُمْ﴾ دلته **سوال** واريدېږی چه هر کله دوئ ايمان راوړو او اعمال صالحه ئی اوکړل ، نو دوئ ته هدايت وشو نو بيا د (يهديهم ربهم) څه مطلب دې ، **جواب** (۱) : مراد په ايمان باندې استقامت دې ، لکه مدارك ليکلی دي (يسددهم بسبب ايمانهم للاستقامة علي سلوك الطريق السديد) ، (۲) يا دا مراد دې چه دوئ ته به د ايمان په وجه په آخرت کښې د جنت لارې اوخايي ، او جنت ته به ئی داخل کړی (قال المجاهد يهديهم علي الصراط الى لجنة) ، (خازن) ﴿ دَعْوَاهُمْ فِيهَا سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ ﴾

(١) بعض حضراتو د دې تشريح داسې کړې ده ، چه جنتيان هرکله جنت ته لاړشی او عجائبات اووينی نو داسې به اوائی چه (سبحانك اللهم )لکه په دنيا کښ چه څوك عجائبات اووينی نو سبحان الله وائی ، او بيا چه د يو بل سره ئی ملاقات اوشی نو يو بل ته به تحفه دَ سلام پيش کړی ، بلکه الله ﷻ به ورته سلام وائی ، (سلام قولا من رب الرحيم) ،او فرشتې به ورته سلام کوی (والملئكة يدخلون عليهم من كل باب سلم عليكم بما صبرتم) او بيا چه کله په خپل مينځ کښ مجلس شروع کړی او د دنيا د مصيبتونو او تکليفونو موازنه اوکړی د جنت دَ دائمی خوشحالئ او انعاماتو سره نو وبه وائی (الحمد لله رب العالمين) . دَ ﴿وَءَاخِرُ دَعْوَىٰهُمْ﴾ مطلب دا نه دې چه د دې نه روستو به نورې خبرې نه کوی بلکه مراد دا چه په دغه وقت کښ به د مجلس په آخر کښ الحمد لله وائی، (٢) او بعضِ حضراتو داسې تشريح کړيده چه د جنتيانو په زړه کښ چه کله د څه څيز دخوړلو ، سکلو خواهش او شوق پيداشی ، نو دوئ به (سبحانك اللهم) اووائي، نو هغه به ورته حاضر شی ، او اهل مجلس به يو بل ته تحفه دَ سلام اوکړی او دالله ﷻ او ملائکو د طرف نه به هم دوئ ته سلام راشی ، نو په هر قسم جسمانی او روحانی غذا باندې ئ چه خواهش پوره شی نو (الحمدلله رب العالمين) به اوائی نو مجلس به برخاست شی ،(٣) او بعض حضرات وائی چه هر وخت کلام د دوئ به شروع کيږي په ﴿سُبْحَٰنَكَ ٱللَّهُمَّ﴾ سره او ختميږي به په ﴿أَنِ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ سره.

| بِالْخَيْرِ | اسْتِعْجَالَهُمْ | الشَّرَّ | لِلنَّاسِ | اللَّهُ | يُعَجِّلُ | وَلَوْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوکه زر رسولې الله تعالی خلقو ته تکليف (د دوئ د غوښتلو په وجه) په شان د زر غوښتلو د دوئ خير لره (چه هغه زر قبلوی) | | | | | | |
| لِقَاءَنَا | لَا يَرْجُونَ | الَّذِينَ | فَنَذَرُ | أَجَلُهُمْ | إِلَيْهِمْ | لَقُضِيَ |
| خامخا پوره شوې به وې د دوئ سره نيته د دوئ، پس پريږدو مونږ هغه کسان چه عقيده نه لری دملاقات زمونږ | | | | | | |
| دَعَانَا | الضُّرُّ | الْإِنْسَانَ | مَسَّ | وَإِذَا | ﴿١١﴾ يَعْمَهُونَ | فِي طُغْيَانِهِمْ |
| په سرکشئ د دوئ کښ سرگردان او کله چه ورسی [1] يو انسان ته تکليف ، نو سوال کوی زمونږ نه | | | | | | |

١ - شکوه.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لِجَنۢبِهِۦٓ | أَوْ | قَاعِدًا | أَوْ | قَآئِمًا ۚ | فَلَمَّا | كَشَفْنَا | عَنْهُ | ضُرَّهُۥ |

په داسې حال کښې چه پروت وی په ډډه یا ناست وی یا ولاړ وی. پس هر کله چه لرې کړو مونږ د ده نه تکلیف د ده.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَرَّ | كَأَن | لَّمْ | يَدْعُنَآ | إِلَىٰ | ضُرٍّ | مَّسَّهُۥ ۚ |

نو روان وی دې په نافرمانئ ، ګویا کښې چه سوال ئ نه وو کړې زمونږ نه د هغه تکلیف د دفع کولو چه رسیدلې وو ده ته.

كَذَٰلِكَ زُيِّنَ لِلْمُسْرِفِينَ مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ۝

دغسې ښائسته کړې شوې دې مشرکینو ته هغه عمل چه دوئ ئ کوی

﴿وَلَوْ يُعَجِّلُ ٱللَّهُ﴾ دا زجر دې ، مشرکینو اووئیل چه که دین محمد ﷺ او دا قران حق وې نو په مونږ دې کاڼی د اسمان نه نازل شی ، دا دعا دوئ په خانه کعبه کښې غوختې وه . ﴿إِن كَانَ هَٰذَا هُوَ ٱلْحَقَّ مِنْ عِندِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ ٱلسَّمَآءِ أَوِ ٱئْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ نو الله ﷻ فرمائی چه کله انسان د ځان دپاره خیر غواړی نو الله ئ زر ورکوی ، او چه کله شر غواړی نو الله ﷻ دادعا زرنه قبلوی ،اوکه الله ﷻ زر قبلولې نو دوئ به ئ اوس ټول هلاک کړی وو. د حضرت قتاده او ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه پدې کښې دَ غصې په وخت کښې خپل مال. اولاد ته خیرې کول هم داخل دی (لابارك الله، لعنكم الله) په عامو حالاتو کښې چه لکه څنګه انسان روزی ، صحت، رحمت غواړی ، نو الله ﷻ ئې زر قبلوی نو که خیرې ئی هم داسې زر قبلولې نو دوئ به هلاك شوی وې ، او په حدیث کښې ترینه منع راغلې ده . چه تاسو بد دعا مه کوئ خپل مال ته او اولاد ته هسې نه چه برابرې اوخوری د داسې وخت سره چه په هغې کښې دعاګانې قبلیږی بیا به تاسو نادم (پښیمانه) شئ، **سوال** واردیږی چه په دې آیت کښې تقابل د تعجیل . د استعجال سره شویدې . حالانکه تقابل دَ تعجیل د تعجیل سره او د استعجال د استعجال سره پکار دې ، **جواب** : صاحب د کشاف ویلیدی چه (استعجالهم) په معنی د تعجیل سره دې لیکن د تعجیل په ځائ کښې استعجال ذکر شو په دې کښې اشاره ده سرعت د اجابت ته

﴿فَنَذَرُ ٱلَّذِينَ﴾ ددې عطف په ماقبل شرط ﴿وَلَوْ يُعَجِّلُ﴾ او جزا باندې نه دې صحیح ځکه چه لو د انتفاء د پاره راځی ، نو که دا په هغې عطف شی نو په نفی به دلالت کوی او حال دا چه دلته مقصود اثبات دې ، نو د دې وجه نه د دې دپاره معطوف علیه مقدر دې . چه (بل نمهلهم)

يا (لكن غهلهم) دي ﴿ وَإِذَا مَسَّ ٱلۡإِنسَٰنَ ﴾ دا شكوه ده ، او ددې بيان دې چه انسان احسان فراموش دې . چه كله تكليف پرې راشي نو بيا الله ﷻ يادوى او توبې اوباسي او چه كله مصيبت ترينه لرې شى نو بيا په گناهونو كښ شروع شى ﴿مَرَّ﴾ په معنى د (استمر ومضى علي كفره ومعصيته) ، سره دې ، ﴿كَأَن لَّمۡ يَدۡعُنَآ﴾ په اصل كښ (كَأَنَّه) دې ، يعنى يا دغه حال وو ، چه مضطجعًا او قايمًا ،قاعدًا ، يعنى په ټولو احوالو كښ ئى دعا غوختله ، يا دا حال ئى دې چه الله ﷻ ئي داسې هير كړو لكه چه ټول عمر ئى ورته چرته سوال نه دې كړې . اود ﴿لِلۡمُسۡرِفِينَ﴾ نه مراد مشركين دى ، او معلومه شوه چه د ﴿ٱلۡإِنسَٰنَ﴾ نه مراد انسان مشرك دى

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدۡ | أَهۡلَكۡنَا | ٱلۡقُرُونَ | مِن | قَبۡلِكُمۡ | لَمَّا | ظَلَمُواْ | ۙ |
| او په تحقيق سره هلاك كړى دى مونږ [1] . پيړئ (قومونه) مخكښ ستاسونه، هركله چه دوئ ظلم (شرك) كړې وو | | | | | | | |
| وَجَآءَتۡهُمۡ | رُسُلُهُم | بِٱلۡبَيِّنَٰتِ | وَمَا | كَانُواْ | لِيُؤۡمِنُواْ | ۚ | |
| او راغلى وو دوئ ته رسولان د دوئ په واضحو بياناتو او معجزاتو سره اونه وو دوئ چه ايمان ئ راوړې وې، | | | | | | | |
| كَذَٰلِكَ نَجۡزِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلۡمُجۡرِمِينَ ۝ ثُمَّ جَعَلۡنَٰكُمۡ خَلَٰٓئِفَ فِي ٱلۡأَرۡضِ مِنۢ بَعۡدِهِمۡ | | | | | | | |
| دغسې سزا وركوؤ مونږ قوم مجرمانوته. بيا وگرزولئ مونږ تاسو اوسيدونكى په زمكه كښ روستو د هغوئ نه | | | | | | | |
| لِنَنظُرَ | كَيۡفَ | تَعۡمَلُونَ | ۝ | وَإِذَا | تُتۡلَىٰ | عَلَيۡهِمۡ | ءَايَاتُنَا |
| د دې لپاره چه وگورو مونږ چه څرنگه عمل كوئ تاسو. او كله چه لوستلې شى په دوئ باندې آيتونه زمونږ [2] | | | | | | | |
| بَيِّنَٰتٍ ۙ قَالَ ٱلَّذِينَ لَا يَرۡجُونَ لِقَآءَنَا ٱئۡتِ بِقُرۡءَانٍ غَيۡرِ هَٰذَآ أَوۡ بَدِّلۡهُ | | | | | | | |
| صاف صاف نو وائ هغه خلق چه عقيده نه لرى د ملاقات زمونږ، راوړه يو قرآن غير د دې نه ، يا تبديل ، ترميم وكړه په دې كښ | | | | | | | |

۱ - تخويف دنيوى

۲ - شكوه.

| |
|---|
| قُلْ مَا يَكُونُ لِيٓ أَنْ أُبَدِّلَهُۥ مِن تِلْقَآئِ نَفْسِيٓ ۖ إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا |
| ووایه ته [۱] ! ندی جائز ما لره چه تبدیل وکړم پدې کښې د خپل طرف نه، زه تابعداری نکوم مګر د هغې |
| يُوحَىٰٓ إِلَيَّ ۖ إِنِّيٓ أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ۝ |
| چه وحی کیدې شی ماته ، بیشکه زه بریږم که نافرمانی وکړم د رب خپل، د عذاب دَ ورځې لوئ نه |

﴿ وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا الْقُرُونَ ﴾ ، دا تحویف دنیوي دې ، یعني چه کوم حلق د توحید رسالت نه انکار کوي او د دنیا په زندګئ باندي مطمئن شوي دي ، نو دوئ دې سوچ اوکړی چه د دوئ نه مخکښې قومونو څه حشر شوې دې ، ﴿لَمَّا ظَلَمُوا﴾ یعنی هرکله چه دوئ کفر، شرك اوکړو نو د دوئ هلاکت او عذاب د شرك او د انکار د رسولانو په وجه راغې ، ﴿وَجَآءَتْهُمْ رُسُلُهُم﴾ دا جمله حالیه ده ، او (لکذبوهم) مقدر دې ﴿كَذَٰلِكَ نَجْزِي﴾ یعنی د مجرمانو هلاکول زمونږ سنت جاریه دې ، نو که اهل مکه د عادیانو ثمودیانو وغیرهم پشان په انکار باندې مصر شی نو په دوئ باندې به هم عذاب راشی، ﴿ ثُمَّ جَعَلْنَاكُمْ ﴾ دا خطاب ټول اُمت ته دې ، یعنی د مخکنی قومونو نه روستو اوس ستاسو دهر چا خپل خپل وخت او نمبر دې ، الله ﷻ ګوری چه تاسو څرنګه عملونه کوئ ، ﴿وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ﴾، دا شکوه ده یعنی کله چه مشرکینو ته څما پیغمبر څما آیاتونه بیانوی چه په هغې کښې د دوئ دشرك او د دوئ دباطلو معبودانو ذم اوعجز په کښې بیانیګی ، او د توحید رسالت اثبات په کښې په واضحه طریقه کیږی نو دوئ وائی . ﴿قَالَ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ﴾ دا دَ ضمیر په ځائ اسم موصول ذکر شوې دې دپاره داشارې علة ته چه د انکار وجه د آخرت نه غفلت او د قیامت عقیده نه لرل دی ، یعنی مشرکین چه د قرآن نه انکار کوی نو وجه ئ دا وائی چه دا قرآن زمونږ د مزاج سره موافق نه دې ، بل کتاب راوړه یا په دې کښې ترمیم اوکړه نو مونږ به ئی اومنو ،﴿ائْتِ بِقُرْآنٍ غَيْرِ هَٰذَا﴾ یعنی بل یو داسې کلام راوړه چه په هغې کښې زمونږ د معبودانو ذم او عجز نه وی بیان ، او بعث بعد الموت مسئله په کښې هم نه وی ﴿أَوْ بَدِّلْهُ﴾ یعنی یا په دې قرآن کښې تبدیل اوکړه او د توحید مسئله ترینه اوباسه

﴿قُلْ مَا يَكُونُ لِي﴾ او دا اول جواب دَ شکوې دې یعنی قطع نظر د دینه چه تبدیلی په قرآن کښې

۱- جواب شکوه.

بدكار دي څما دا طاقت نشته دي چه تبديل پکښې اوکړم او چه تبديل کولې نشم نو دا قرآن بدلول او
بل راوړل په طريق اولى سره نشم کولې ﴿إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰ إِلَيَّ ﴾ زه خو صرف د وحى اتباع کوم. د
امت د پاره هم دا حکم دي چه صرف د وحى اتباع به کوى ، ليکن د دينه استدلال کول دپاره د ابطال د
قياس صحيح ندي ځکه اِتباع د قياس په حقيقت کښې اتباع د وحى ده ځکه چه علت په قياس کښې
مستنبط وى د وحى نه ، اوقياس په حقيقت مثبت د حکم دپاره ندي بلکه مظهر د حکم دي ﴿إِنِّي
أَخَافُ ﴾ ، يعنى که چرې زه نافرمانى اوکړم او تبديل ترميم اوکړم په دې قرآن کښې نو ماته خوف او
خطره ده چه کوم عذاب ستاسو دپاره مقدر دي هغه به په ما راشى .

| قُلْ لَّوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا تَلَوْتُهٗ عَلَيْكُمْ وَ لَآ اَدْرٰىكُمْ |
|---|
| ته ووايه که غوښتلې الله تعالى نو نه به لوستلې ما دا قرآن په تاسې او نه به خبر درکړې وې الله تعالى تاسو ته |
| بِهٖ ۖ فَقَدْ لَبِثْتُ فِيْكُمْ عُمُرًا مِّنْ قَبْلِهٖ ۗ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ⑯ |
| پدې سره، پس په تحقيق سره ما تير کړې دې په تاسو کښې ډير عمر د دينه مخکښې، آيا پس عقل نه لرئ تاسو. |
| فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِهٖ ۗ |
| پس څوک لوئ ظالم دي [1] دهغه چا نه چه جوړوى په الله تعالى باندې دروغ ، يا دروغ گڼړى آياتونه د هغه، |
| اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْمُجْرِمُوْنَ ⑰ وَيَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا |
| بيشکه نه شى بچ کيدې مجرمان د الله تعالى د گرفت نه . او عبادت کوى دا خلق [2] سوى د الله تعالى نه، د هغه چا |
| لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ وَيَقُوْلُوْنَ هٰٓؤُلَآءِ شُفَعَآؤُنَا |
| چه نه ضرر رسولې شى دوئ ته او نه نفع رسولې شى دوئ ته او وائى دوئ چه دا (معبودان زمونږ) سفارشان زمونږ دى |
| عِنْدَ اللّٰهِ ۗ قُلْ اَتُنَبِّئُوْنَ اللّٰهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ |
| په دربار د الله تعالى کښې، ووايه ته آيا تاسو خبر ورکوئ الله تعالى ته د هغه څه چه ندې معلوم الله تعالى ته |

---

۱ - زجر

۲ - زجر او دريم دليل عقلى په توحيد.

فِي السَّمٰوٰتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ ۚ سُبْحٰنَهُ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ⑱

په آسمانونو کښې اونه په زمکه کښې، پاك دې الله تعالی او لوئ دې دهغې نه چه دوئ ئې شریکوی د الله سره

﴿ قُلْ لَّوْ شَآءَ اللّٰهُ ﴾ دادویم جواب دې ، او د ﴿لَّوْ شَآءَ اللّٰهُ ﴾ مفعول مقدر دې ، (ای عدم تلاوتی له علیکم) ، مطلب دادې چه د قرآن بیانول ماد خپل ځان د طرفه نه دې شروع کړې . بلکه د دې کتاب بیان او تعلیم درکول په مشیت او ارادې دالله ﷻ سره دی . ﴿فَقَدْ لَبِثْتُ ﴾ دا د ماقبل دپاره استشهاد دې ، مطلب نې دادې ، چه ما څلویښت کاله ستاسو سره یو ځائ تیر کړی دی (څکه چه نبی ته نبوت د څلویښت کالو په عمر کښې ورکولې شي) نو تاسو ځما د صداقت او د دیانت او اخلاقو نه ښه واقف یئ ، او دا هم درته معلومه ده چه څه لیکل او لوستل نه شم کولې ،نو زه څنګه داسې کتاب د ځان نه جوړولې شم ، یا ترمیم تبدیل کولې شم ، او دڅلویښت کالو نه قبل انسان سره د قیادت او د قائد جوړیدلو څه جذبه وی ، (زنده باد مرده باد نعری لګوی) لیکن د څلویښت کالو نه بعد دغه جذبات هم نه وی، نو ځوك چه په داسې عمر کښې دیو عظیم انقلاب کار شروع کوی . نو هغه خامخا مجبور یا مامور وی ، او دارنګه تاسو ته داهم معلومه ده چه ما په دې څلویښت کاله کښې دالله ﷻ هیڅ نافرمانی نه ده کړې نو اوس به څنګه زه دا ګناه او نافرمانی اوکړم ، ﴿ فَمَنْ أَظْلَمُ ﴾ دا زجر دې یعنی د داسې شخص نه زیات ظالم به ځوك وی ، چه یو طرف ته شرك او کفر هم کوی ، او بیا دا وائی چه په دې باندې الله ﷻ راضي کیږی ، دا لویه افتراء په الله ﷻ باندې ده ، ﴿ وَيَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ﴾ دا زجر دې او ذکر د دعوې دې ثانیًا ضمنًا ، مشرکینو د ارتکاب د شرك دپاره معذرت پیش کولو چه مونږ د دې خپلو معبودانو (لکه لات منات وغیرهما شو) عبادت کوو، نو مونږ دوئ ته مستقل نفع رسونکی یاضرررسونکی نه وایو بلکه مونږ چه د دوئ عبادت کوو او د دوئ نه خپل حاجتونه غواړو یا د دوئ دنوم نذرانې شکرانې ورکوو نو دا د دې وجې نه چه دا دالله ﷻ نازولی او محبوبان دی ، نو الله ﷻ د دوئ درخواست خامخا قبلوی ، نو دوئ زمونږ سفارش کونکی دی ، مونږ به دوئ ته سجدې لګوو او نذر او شکرانې به ورله وړو او خپل حاجات به دوئ ته پیش کوو او دوئ به نې الله ته پیش کوی ، نومقصدونه او حاجتونه به پوره کیږي په دنیا کښې ، څکه د آخرت نه عام مشرکان منکروو ، او بعض لږ ئ قائل وو ، او ځوك چه د قیامت قائل نه وؤ ، نو هغوئ به ویل چه دا معبودان به زمونږ حاجتونه په دنیا کښې پوره کوی او که بالفرض قیامت راشی نو زمونږ شفاعت قهری (یعنی شفاعت بلا اذنه) به کوی ، اومونږ به جنت ته داخل کړی، دمشرکینو ددې عقیدې پشان عقیده د ډیرو عیسایانو هم ده ، او په امت محمدی ﷺ کښې داهل بدعة هم دغسې عقیده ده ، قبر

پرستى او د قبرونو نه طواف كول اوقبرونو ته سجدې كول ، او دهغوئ په نوم نذرانې كول په دې نيت چه دا د الله نازولى دى ، نو زمونږ كار به په الله اوكړى . نو دا هم د مشركينو د عقيدې نظير دې . مشركينو چه دبتانو عبادت كولو نو مقصود ئ صرف د بې روحه مجسمې عبادت نه وو بلكه د دوئ مقصد دَ ارواحو دَ انبياؤ او اولياؤ د ارواحو نه خپل حاجتونه غوختل ، او تصويرونه او مجسمې ئ خپلې قبلة التوجه گرزول ، لكه علامه ابوسعود ليكى ،(انهم وضعوا هذه الاصنام علي صور انبياءهم واكابرهم وزعمو انهم مىٰ اشتغلوا بعبادة هذه التماثيل فَاِنَّ اولئك الاكابر يشفعون لهم عندالله ،ابوسعود ج ۴ص۸۰۷) د قبر پرستئ دا بلا د ډير مخكښ نه په دې امت باندې مسلطه ده . چنانچه امام رازي رحمه الله چه په ۶۰۶هجرى كښ وفات شو دې ،دخپلې زمانې او د عربو د مشركينو موازنه كوى. او وائى ، (انهم وضعوا هذه الاصنام والاوثان على صور انبيائهم واكابرهم وزعموا انهم متى اشتغلوا بعبادة هذه التماثيل فان اولئك الاكابر تكون شفعاء لهم ونظيره في هذه ا لزمان اشتغال كثير من الخلق بتعظيم قبور الاكابر على اعتقاد انهم اذا عظموا قبورهم فانهم يكونون شفعاءلهم عندالله) د شفاعت يعنى د سفارش درې صورتونه دى : **اول** دا چه شفيع يعنى سفارش كونكې به مشفوع اليه (يعنى چاته چه سفارش كولې شي) ته ډير محبوب وى،نو چه دې سفارش اوكړى نو مالك (مشفوع اليه) مجبوره شى او خپله اراده پريږدى، او خپل قانون باندې عمل هم پريږدى ، **دويم** دا چه شفيع عزت مند او صاحب د وجاهت وى ،نو چه شفاعت اوكړى، نو مشفوع اليه مجبور شى او خپله اراده پريږدى اوقانون باندې عمل ترك كړى ، مشركان چه د كوم شفاعت قائل وو نو هغه دا دواړه قسمونه ؤو ،چه دوئ به ويل چه دا زمونږ بُتان او مفروضه خدايان د الله تعالى محبوبان او نازولى دى، او ډير عزت او وجاهت والا دى نو مونږ هر قسم جرم كفر فسق چه كوو، خو دوئ به مونږ د الله ﷻ د عذاب نه بچ كوى ،او جنت ته به مو داخلوى، د الله ﷻ قانون چه هر څه وى ،اودا دواړه قسمونو ته شفاعت قهرى او شفاعت بلا اذن وائى . **دريم** قسم شفاعت دې پس داذن نه يعنى چه مشفوع اليه (مالك) اجازت د شفاعت اوكړى ، نوشفاعت كونكې ترې نه سوال د خير اوكړى د غير دپاره ،نومالك به خپله مقتضې د رحم او فضل سره سوال قبول كړى، داقسم شفاعت په شرع كښ جائز دې ، په دې آيت كښ دمشركانو د عقيدې رد دې په دريوطريقو سره : اول داچه ،﴿مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنفَعُهُمْ﴾ يعنى داستاسو مفروضه خدايان مالك د نفع اونقصان نه دى، نه چاته نفع رسولې شى اونه ضرر دفع كولې شى او دا دريم دليل عقلى هم دې په توحيد او په رد د شرك باندې، دويم داچه ﴿قُلْ أَتُنَبِّئُونَ اللَّهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ﴾ يعنى الله ﷻ ته خو داسې څوك نه دى معلوم چه هغه شفيع قهرى وى ، ﴿لَا يَعْلَمُ﴾ كنايه ده

،دعدم وجود نه څکه چه کوم شئ موجود وی، نولازمه ورسره داده چه دالله ﷻ علم به پرې وی ، او

دريمه وجه داده ﴿سُبْحَـٰنَهُۥ﴾ یعنی داعقیده خو شرک دې اوالله ﷻ ددې قسم شریك نه منزه دې

| وَمَا كَانَ النَّاسُ إِلَّآ أُمَّةً وَّاحِدَةً فَاخْتَلَفُوا ۚ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ |
|---|
| اونه وو خلق د دینه مخکښې مگر یوه ډله وه په توحید ، پس اختلاف وکړو روستنو خلقو اوکه نه وې یو فیصله «د تاخیر د عذاب» |
| سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ فِيمَا |
| چه مخکښې شویده د طرف د رب ستا نه، نو خامخا به فیصله په دُنیا کښې شوې وې په مابین د دوئ کښې په هغه څه کښې |
| فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ۞ وَيَقُولُونَ لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْهِ ءَايَةٌ |
| چه دوئ پکښې اختلاف کوی . او دوئ وائ ولې نه شی نازلیدلې پدې پیغمبر یوه معجزه «چه مونږ ئې غواړو» |
| مِّن رَّبِّهِۦ ۖ فَقُلْ إِنَّمَا الْغَيْبُ لِلَّهِ فَانتَظِرُوٓا ۖ |
| د طرف د رب د ده نه ، پس ته وه وایه چه بیشکه علم غیب خاص الله تعالی لره دې پس انتظار کوئ |
| إِنِّي مَعَكُم مِّنَ الْمُنتَظِرِينَ ۞ |
| بیشکه زه ستاسې سره د انتظار کونکو نه یم. |

﴿ وَمَا كَانَ النَّاسُ إِلَّآ أُمَّةً وَّاحِدَةً ﴾ یعني عقیده د توحید او دنفی د شرك فی الشفاعت ډیره قدیمی او زړه مسئله ده ،اومخکښې انبیاؤ بیان کړې ده ،دا نه نوې مسئله ده او نه نوی ملایانو راویستې ده ، د آدم ﷺ او د نوح ﷺ د زمانې پورې ټول خلق په توحید وو، اوپه زما نه د آدم ﷺ کښې قابیل، هابیل لره قتل کړو نو دا معصیت وو،اوکفر نه وو او د ابن عباس ﷺ نه روایت دې، چه خلق د اول نه په حق او توحید وو،تر دې چه قابیل هابیل قتل کړو ،اوچا ویلی دی چه د زمانې د آدم ﷺ نه تر زمانې د ادریس ﷺ پورې خلق په توحیدوو،او چاویلی دی چه خلق روستو د طوفان نوح نه په توحید وو،او بیا روستو شرك او كفر شروع شو، غرض دا چه توحید فطری او متفقه خبره ده،نو دا جواب شو د یوسوال نه هغه دا چه ممکنه ده ،چه مشرکین اووائی چه ستاسو په ملت کښې دې شرك منع وی،او زمونږ په ملت کښې دې منع نوی، حاصل د جواب دادې چه دالله ﷻ دین د همیشه نه یودې په اعتقادیاتو کښې هیڅ فرق نشته ، اختلاف روستنو خلقو جوړ کړې دې ،او دلته ﴿ وَمَا كَانَ النَّاسُ إِلَّآ أُمَّةً وَّاحِدَةً ﴾ نه روستو ،(فبعث الله النبين) مقدر دې په قرینې دسورة بقرې آیت : ۲۱۳ سره،

يعنى هر كله چه خلقو اختلاف وكړو نو د اختلاف رفع كولو دپاره الله ﷻ انبياء مبعوث كړل او په سورت بقره آيت ۲۱۳ كښې ﴿فَاخۡتَلَفُوۡا﴾ نشته دې نو هلته ﴿فَاخۡتَلَفُوۡا﴾ مقدر شى ،ديته صنعت احتياك ويلې شى ،او دا مسئله چې اول ټول خلق په توحيدو و،اوبيا ئې اختلاف اوكړو .دا په ډيرو مقاماتو كښې په قرآن كښې مذكوره ده او په دې كښې درې خبرې ذكر كيږى : (۱) اختلاف چا اوكړو (۲) كله ئې اوكړو ، (۳)او ولې ئې اوكړو، **جواب** : اختلاف علماء سوء او ضديانو معتصبانو خلقو اوكړو. (۲) بعد د علم نه ئې اوكړو (۳) د ضد او تعصب دوجې نه ئې اوكړو، ﴿وَلَوۡلَا كَلِمَةٌ﴾ دا جواب د سوال دې ، هغه دا چه هر كله دا عقيده د كفر، شرك ده نو د دې په وجه عذاب ولې نه راځى . **جواب** د الله ﷻ فيصله ده چه دا امت به په دنيا كښې قيامت پورې نه هلاكوى،او كچرې دغه فيصله نه وې نو فى الحال به ئې دوئ هلاك كړى وې د فيصلې او د عذاب ځائى قيامت دې ،﴿وَيَقُوۡلُوۡنَ﴾ دا زجر دې ، مشركانو ويل چه كه ته په حق يې نو مونږ ته زمونږ مطلوبه فرمائشى معجزه ولې نه ښكاره كوې ، نو جواب اوشو چه د اثبات نبوت دپاره مطلق معجزه ضرورى ده ،مخصوصه معجزه او فرمائشى معجزه ظاهريدل ضرورى نه ده ، د معجزې ښكاره كيدل او نه ښكاره كيدل ، د غيب خبره ده ،او ماته د غيب علم نشته ، دغيب علم صرف الله ﷻ لره دې ، نو بس تاسو انتظار كوئ ،چه معجزه كله راځى. او زه هم تاسو سره د انتظار كونكو نه يم.

| وَاِذَآ اَذَقۡنَا النَّاسَ رَحۡمَةً مِّنۡۢ بَعۡدِ ضَرَّآءَ مَسَّتۡهُمۡ اِذَا لَهُمۡ |
|---|
| اوكله چه وڅكوو مونږ خلقو ته رحمت پس د تكليف نه چه رسيدلې وى دوئ ته نو په دغه وخت كښې دوئ لره |
| مَّكۡرٌ فِيۡۤ اٰيَاتِنَا ؕ قُلِ اللّٰهُ اَسۡرَعُ مَكۡرًا ؕ |
| چل ول او تدبير كول وى په مقابله د آيتونو زمونږ كښې، ووايه چه الله تعالى ډير زر تدبير كونكې دې ، |
| اِنَّ رُسُلَنَا يَكۡتُبُوۡنَ مَا تَمۡكُرُوۡنَ ﴿۲۱﴾ |
| بيشكه فرښتې زمونږ ليكى هغه چه تاسو چل ول كوئ |

﴿وَاِذَآ اَذَقۡنَا النَّاسَ رَحۡمَةً﴾ دا زجر دې ،او د ناس نه مراد مشركين دى ،په اهل مكه باندې الله ﷻ اوه كاله قحط مسلط كړو ،نو چه كله هلاكت ته قريب شو نو دعا او درخواست ئې اوكړو ،او وعده ئې اوكړه چه دا عذاب لرې شى مونږ به ايمان راوړو (ربنااكشف عنا العذاب انا مؤمنون) ، نو كله چه د نبى ﷺ په دعا عذاب لرې شو او قحط او بلاګانې ختمې شوې نو دوئ بيا تكذيب او شرارت شروع

کړو. او چل ول ئې شروع کړو د آیاتونو د تکذیب دپاره .الله ﷻ فرمائی چه تاسو خو په خپل مکر تدبیر مغرور یئ ،خو الله ﷻ مکر (خفیه تدبیر) ستاسو د تدبیر نه ډیر سریع الاثر او زیات دې. او ستاسو ټولې حیلې اومکرونه الله تعالی ته معلوم دی او فرشتو لیکلی دی په خپل وخت به ستاسو گرفت کیږی او عذاب به درکوی.

هُوَ الَّذِیْ یُسَیِّرُکُمْ فِی الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ؕ حَتّٰۤی اِذَا کُنْتُمْ فِی الْفُلْكِ ۚ

خاص الله تعالی هغه ذات دې [1] چه گرځوی تاسو په وچه او دریابونو کښې، تر دې پورې چه کوم وخت چه یئ تاسې په کشتو کښې

وَجَرَیْنَ بِهِمْ بِرِیْحٍ طَیِّبَةٍ وَّفَرِحُوْا بِهَا جَآءَتْهَا رِیْحٌ عَاصِفٌ وَّجَآءَهُمُ

او روان کړی دا کشتئ دوئ لره په هوا نرمی خوشگوارې سره او خوشحاله شی دوئ په هغې نو راشی هغې ته هوا تیزه او راشی دوئ ته

الْمَوْجُ مِنْ کُلِّ مَکَانٍ وَّظَنُّوْۤا اَنَّهُمْ اُحِیْطَ بِهِمْ ۙ دَعَوُا اللّٰهَ

موجونه (چپې) د هر طرفه او گمان وکړی دوئ چه بیشکه دوئ راگیر کړې شو پدې چپو سره نو دوئ سوال کوی د الله تعالی نه

مُخْلِصِیْنَ لَهُ الدِّیْنَ ۚ لَئِنْ اَنْجَیْتَنَا مِنْ هٰذِهٖ لَنَکُوْنَنَّ

خالص کونکی وی هغه لره خپل عبادت، دا وائی کچرې خلاصې راکړو تا مونږ ته د دې مصیبت نه خامخا شو به مونږ

مِنَ الشّٰکِرِیْنَ ﴿۲۲﴾ فَلَمَّاۤ اَنْجٰىهُمْ اِذَا هُمْ یَبْغُوْنَ فِی الْاَرْضِ

د شکرکونکو نه. پس هرکله چه بچ کړی الله تعالی دوئ لره نو دغه وخت دوئ سرکشی کوی په زمکه کښې

بِغَیْرِ الْحَقِّ ؕ یٰۤاَیُّهَا النَّاسُ اِنَّمَا بَغْیُکُمْ عَلٰۤی اَنْفُسِکُمْ ۙ مَّتَاعَ الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا ۫

په ناحقه سره ، اې خلقو ! بیشکه ظلم ستاسو وبال دې په نفسونو ستاسو، فائدې واخلئ فائدې د ژوند د دنیا

ثُمَّ اِلَیْنَا مَرْجِعُکُمْ فَنُنَبِّئُکُمْ بِمَا کُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۲۳﴾

بیا مونږ ته را گرځیدل ستاسو دی پس مونږ به خبر کړو تاسو لره په هغه عملونو چه تاسو ئې کوئ

﴿هُوَ الَّذِیْ یُسَیِّرُکُمْ﴾ دا څلورم دلیل عقلی دې په توحید باندې ، حاصل ئې دادې چه په اوچه او په دریاب کښې تاسو ته د تللو قدرت صرف الله ﷻ درکړې دې ، لیکن تاسو ددې شکریه نه ادا کوئ ،او

---

۱- څلورم دلیل عقلی په توحید باندې.

د غیرالله نذرونه ورکوئ ،او د هغوئ نه حاجتونه غواړئ ، لیکن چه کله په تاسو باندې سختي راشي په دریاب کښ نو بیا صرف الله ﷻ ته ندا کوئ ،او د خپلو معبودانو نوم نه اخلئ ،او د الله ﷻ سره وعدې کوئ چه که مونږ الله ﷻ د دې مصیبت نه بچ کړو نو مونږ به د الله ﷻ شکریه ادا کړو په منلو د توحید سره . لیکن چه کله الله ﷻ تاسو ته نجات درکړي،نو تاسو بیا په خپله وعده قائم نه پاتې کیږئ .
لکه روایت دې چه په فتح مکه کښ عکرمه بن ابی جهل مسلمان شوې نه وو ،او د مکې نه اوتختیدلو په دریاب کښ کشتئ کښ ناست وو ، نو طوفان راغې ، عکرمه چه خپلو بتانو ته سوالونه شروع کړل نو کشتئ والا اوئیل چه صرف د یو الله ﷻ نه سوال وکړئ او دا نور معبودان دلته څه مدد نشي کولې . نو حضرت عکرمه اوئیل چه د محمد ﷺ سره خو زمونږ اختلاف په دې خبره دې چه هغوئ ﷺ فرمائي چه ستاسو معبودان مدد نشي درکولې ، او وعده ئې اوکړه چه کچرې الله ﷻ ما ته نجات راکړو نو زه به په محمد ﷺ باندې ایمان راؤړم ،او د هغه په لاس کښ به خپل لاس ورکوم امید دې چه هغه به د خپلو اخلاقو کریمو په وجه زما تقصیرات معاف کړي ، نو چه کله ورته نجات ملاؤشو ،نو د نبی ﷺ په خدمت کښ حاضر شو ،او په اسلام باندې مشرف شو.

﴿فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ﴾ ، یعنی په اوچه دتللو طاقت صرف الله ﷻ درکړې دې ،او دارنګې د وچې تولې سورلئ الله ﷻ تاسو ته مسخر کړي دی ،او دارنګې د دریاب هرقسم سورلئ صرف الله ﷻ مسخر کړي دی. ﴿حَتَّىٰ إِذَا كُنتُمْ فِي الْفُلْكِ﴾ ،دلته **سوال** راځی چه (حتی) د غایه دپاره راځی ،او غایه مؤخره وی او دلته ﴿كُنتُمْ فِي الْفُلْكِ﴾ مقدم دې ، د تسییر في البحر نه (راوانول په دریاب کښ) نو دا به څرنګه غایه صحیح شی ،نو **جواب** دادې چه مراد د ((یسیرکم)) نه قدرت ((علی التسیر)) دې ،او((کنتم في الفلك)) مؤخر دې ،د اقتدار (قدرت) علی التسییر نه ،نو دا غایه صحیح شوه ،او حضرت تهانوي ﷫ فرمائي چه حتی د غایه دپاره ندې ،بلکه د ترتب دپاره دې ،یعنی په تسییر باندې ، دا مجموعه مرتبه ده چه ((کنتم في الفلك وجرین بهم)) او با په ﴿وَجَرَيْنَ بِهِم﴾ کښ د تعدیت لپاره ده . او په ﴿بِرِيحٍ طَيِّبَةٍ﴾ کښ د سببیت دپاره ده ،او دوه حروف جر چه متحد المعنی وی نو تعلق ئې په یو متعلق پورې نه وی صحیح ،او که متحد المعنی نه وی (لکه دلته) نو بیا صحیح کیږی ،اوپه ﴿وَجَرَيْنَ بِهِم﴾ کښ التفات (نقل) دې د خطاب نه غیبوبت ته ،او په دې کښ ډیرې فائدې دی ، یوه فائده داده چه د دوئ حال نورو خلقو ته بیان شی ،او هغوئ ترینه عبرت واخلی ،او ریح طیبة (خوشګواره هوا) هغه ده چه درمیانه هوا وی نه ډیره تیزه وی چه موجونه ترینه پیدا شی اونه ډیره کمزورې وی او په موافق سمت باندې وی ،او د ﴿وَفَرِحُوا﴾ نه مراد فرح د تکبر دې ،﴿جَاءَتْهَا﴾ دا جواب د (اذا) دې او ضمیر یا راجع دې

فلك ته او یا راجع دی ریح طیبة ته ،﴿رِيحٌ عَاصِفٌ﴾ هغه تیزی هوا ته وایی چه کشتئ غرقوی .او ﴿عَاصِفٌ﴾ اسم فاعل نسبتی دی ،لکه لابن او تامر ،اوپه دی کښ مذکر او مونث یوشان وی . نو ریح اگر که مؤنث لفظ دی خو عاصف ئی صفت راتلی شی .﴿أُحِيطَ بِهِمْ﴾ دا کنایه ده .د هلاکت نه اوهر کله چه دوئ قریب ؤؤ هلاکت ته او هلاك شوی نه ؤؤ نو د دی وجی نه ئ ﴿وَظَنُّوٓا﴾ اونیلو . ﴿مُخْلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ﴾ یعنی د الله ﷻ سره بل خوك نه شریکوی .او دا اخلاص جبری او فطری اخلاص دی .او اختیاری اخلاص او ایمانی اخلاص نه دی.

**فائده** :افسوس دی د زمانی په بعض جاهلانو چه داسی حالاتو کښ صرف داولیاء الله نه مدد غواړی او د الله ﷻ نوم نه اخلی او وائی چه دالله ﷻ نوم ثقیل دی نو کشتئ په دی سره غرقیږی .صرف د اولیاءالله نه مدد غواړی ،دا حال د قدیم مشرکانو نه هم ډیربد دی ،صاحب د روح المعانی د سورة نحل د آیت نمبر ۵۵ په تشریح کښ هم دغسی لیکلی دی . ﴿دَعَوُا۟ ٱللَّهَ﴾ دا جزا د شرط مقدر ده ((ای لما ظنوا انهم احیط بهم دعوالله)) یا جمله مستانفه ده ،دپاره دبیان دحال ددوئ ،په دغه وقت کښ ،او بعض وائی چه جائز ده چه جواب د (اذا) شی ،او (جاءها) جمله حالیه شی .﴿بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ﴾ دا متعلق دی د (یبغون) سره ،او یا دا حال مؤکده دی، د (غیر الحق) نه مراد شرك دی .نو معنی داشوه چه دوئ فساد کوی په زمکه باندی ،په سبب دشرك کولو سره ،یا دا معنی ده چه دوئ بغی کوی په ناحقه سره نو دلته احتراز راغلی د بغی بحق نه چه هغه استیلاء دمؤمن ده په مال د کافرانو په غزا کښ ﴿عَلَىٰٓ أَنفُسِكُم﴾ یعنی ستاسو د ظلم وبال په تاسو دی .﴿مَّتَٰعَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا﴾ مفعول مطلق دی د فعل محذوف دپاره (ای تمتعوا متاع الحیوٰة الدنیا) یا منصوب بنزع الخافض دی ، (ای فی متاع الحیوة الدنیا) یعنی ستاسو بغی او فساد لگه زمانه ده ، فانی به شی .

| إِنَّمَا مَثَلُ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا كَمَآءٍ أَنزَلْنَٰهُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ فَٱخْتَلَطَ بِهِۦ |
|---|
| بیشکه مثال د ژوند د دنیا[1] په شان د اوبو دی چه راوه وروؤ مونږ هغی لره د آسمان نه، پس گنړ راوخیژی |
| نَبَاتُ ٱلْأَرْضِ مِمَّا يَأْكُلُ ٱلنَّاسُ وَٱلْأَنْعَٰمُ حَتَّىٰٓ إِذَآ أَخَذَتِ ٱلْأَرْضُ |
| په هغی سره گیاه د زمکی دهغه قسمونونه چه خوری ئ بنی ادم او څاروی، تر دی پوری چه کله واخلی زمکه |

۱- د دنیا د حقارت مثال.

| زُخۡرُفَهَا وَازَّيَّنَتۡ وَظَنَّ اَهۡلُهَآ اَنَّهُمۡ قٰدِرُوۡنَ عَلَيۡهَآ |
|---|
| خپل رونق، تازګي، او ښائسته شي، او ګمان وکړي مالکان د هغې چه بيشکه دوئ قادر دي په نفع اخستلو د دې نه. |
| اَتٰىهَآ اَمۡرُنَا لَيۡلًا اَوۡ نَهَارًا فَجَعَلۡنٰهَا حَصِيۡدًا |
| نو راشي په هغې امر (عذاب) زمونږ د شپې يا د ورځې پس وګرځوو مونږ هغه لوکړې شوی (دل دول |
| كَاَنۡ لَّمۡ تَغۡنَ بِالۡاَمۡسِ ؕ كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الۡاٰيٰتِ لِقَوۡمٍ يَّتَفَكَّرُوۡنَ ﴿۲۴﴾ |
| ګويا نه وؤ دغه فصل پرون، دغسې مونږ په تفصيل سره آياتونه، مثالونه بيانوؤ لپاره د هغه قوم چه فکر کوي |
| وَاللّٰهُ يَدۡعُوۡۤا اِلٰى دَارِ السَّلٰمِ ؕ وَيَهۡدِىۡ مَنۡ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيۡمٍ ﴿۲۵﴾ |
| او الله تعالى رابلي خپل بندګان کور د سلامتيا ته ، او روانوي هغه چا لره چه خوښه ئې شي په نيغه لار باندې |
| لِلَّذِيۡنَ اَحۡسَنُوا الۡحُسۡنٰى وَزِيَادَةٌ ؕ وَلَا يَرۡهَقُ وُجُوۡهَهُمۡ |
| لپاره د هغه کسانو [1] چه نيک عمل ئې کړې دې ښائسته بدله ده او زياتي نعمتونه دي، اونه به پټوی مخونه د دوئ لره |
| قَتَرٌ وَّلَا ذِلَّةٌ ؕ اُولٰٓئِكَ اَصۡحٰبُ الۡجَنَّةِ ۚ هُمۡ فِيۡهَا خٰلِدُوۡنَ ﴿۲۶﴾ |
| تور والې اونه ذلت، دغه کسان جنت والا دي دوئ به په هغې کښې هميشه وي. |

﴿اِنَّمَا مَثَلُ الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا﴾ دا د دنيا حقارت او بې ثبوتئ دپاره تمثيل دې ،حاصل ئې دادې چه کله الله ﷻ باران راؤروی او زمکه زرغونه شي او ښائسته شي په مختلف قسم ګياه او ګلونو سره،او مالك ئې اميد اولرى چه فصل تيار شوې دې .او زه قادر يم په نفع اخستلو د دې نه .نو په هغې د الله ﷻ د طرف نه عذاب او بلا راشي او بلکل تباه ش نو دغه شان انسان په خپل دنيوی ژوند باندې مغرور وی او مختلف اميدونه لرى ليکن ناساپه پرې مرګ راشي نو اميدونه ئې ختم شي او دې لاړ شي (خلق وائ هائ نيمګرې دنيا) ﴿فَاخۡتَلَطَ﴾ په معنى د (اشتبك) سره دې يعنى ګنړ راوزی . ګياه چه ګنړه وی نو اجزاء د ګياه په يوبل کښې ورننوځی او د بل سره خلط شي او ﴿بِهٖ﴾ باء د سببيت دپاره

[1] . بشارت اخروی

د ﴿زُخْرُفَهَا﴾ (زخرف) حسن او تازګی ته وائی، په اصل کښې زخرف سرو زروته وائی او هغه شال ته وائی چه په ناوې باندې ئی اچوی او مختلف قسم ګلونه پرې جوړوی نو دلته تشبیه د زمکې اوشوه د ناوې سره ، وجه د شبه میلان د قلوبو دې او مشبه به حذف شو ،او مشبه د هغه په ځائ قائمقام شو او ذکر ده (زخرف) تخیلیه ده او دا روستو ورله ترشیح ده ، ﴿كَأَن لَّمْ تَغْنَ﴾ په معنی د لم تکن سره دې او د ﴿بِالْأَمْسِ﴾ نه مراد زمانه ماضی قریب ده ﴿وَاللَّهُ يَدْعُوا﴾ دا ترغیب دې جنت ته او بشارت دې . دعوت دالله ﷻ دادې چه رسولان ئی رالیږلی دی اوکتابونه ئی نازل کړی دی ،او دلیلونه ئی قائم کړی دی ،اوپه دې کښې اشاره ده اهمیت د عمل د دعوت ته ،چه دا کار دالله ﷻ دې ،او دعوت ذریعه دهدایت ده ،نو د دې وجې نه ئی اوفرمائل : ﴿وَيَهْدِي مَن يَشَاءُ﴾ .

﴿لِّلَّذِينَ أَحْسَنُوا﴾ دا هم بشارة دې او د الحسنی نه مراد جنت حسنی دې او د ﴿وَزِيَادَةٌ﴾ نه مراد دیدار الهی دې (النظر الی وجه تعالی) ، (مسلم) .

وفي رواية لمسلم والترمذي،وغيرهما عن صهيب ﷺ اَنَّ رسول الله ﷺ تلا هٰذِه الأية : (للذين احسنوا ....) فقال اِذَا دَخَلَ اَهلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ واهل النَّارِ النَّارَ ، نادٰی منادي : يا اهل الجنة اِنَّ لَكُمْ عندالله موعدًا يريد ان ينجزكموه فيقولون وَمَا هُو ؟ اَلَمْ يثقل موازيننا وَيَبِّضَ وُجُوْهَنَا ويدخلنا الجنة وَيُزَحْزِحْنَا من النار ،قال فيكشف لهم الحجاب فينظرون اليه سبحانه فوالله ما اعطاه شيئًا احبّ اليهم مِنَ النَّظر اليه ولا اقر لِاَعْيُنِهِمْ)

**ترجمه** : یعنی د حضرت صهیب ﷺ نه روایت دې چه نبی ﷺ دا آیت تلاوت کړو او وې فرمائل چه کله الله ﷻ جنتیان جنت ته بوځی او جهنمیان جهنم ته داخل کړی نو یو اعلان کونکې به اعلان ؤکړی چه اې جنتیانو ستاسو یو وعده الله ﷻ سره باقی ده ،هغه پوره کول غواړي نو دوئ به دا وائی چه هغه څه وعده ده؟ آیا الله ﷻ په خپل فضل سره زمونږ د حساناتو طرف نه دې درونده کړې؟ آیا زمونږ مخونه ئی سپین او نورانی کړی نه دی ،او د جهنم نه ئی نه یو خلاص کړی ،او جنت ته ئی نه یو داخل کړی ، یعنی دا ټول انعامات ملاؤشویدی نو څه پاتې دی، نو حجاب به لرې کړې شی او جنتیان به دالله ﷻ دیدار اوکړی ، نوپه الله قسم چه هیڅ یو نعمت چه دوئ ته ورکړې شوې وو، ددیدار نه به زیات محبوب نه وی ،اونه به د دینه زیات سترګې یخونکې خوشحاله کونکې بل څه شې وی، رزقناالله بمنه وفضله . ﴿قَتَرٌ﴾ توروالې لکه د کافرانو مخونه به چه تور وی ﴿وَلَا ذِلَّةٌ﴾ رسوائی او ذلت .

وَالَّذِيْنَ كَسَبُوا السَّيِّاٰتِ جَزَآءُ سَيِّئَةٍۢ بِمِثْلِهَا ۙ وَتَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ؕ مَا لَهُمْ

اوهغه کسان چه کوی بد کارونه [١] ، بدله د بدئ پشان د بدئ وی، او پټوی به دوئ لره ذلت ، رسوائی، نه به وی دوئ لره

مِّنَ اللّٰهِ مِنْ عَاصِمٍ ۚ كَاَنَّمَاۤ اُغْشِيَتْ وُجُوْهُهُمْ قِطَعًا مِّنَ الَّيْلِ مُظْلِمًا ؕ

د عذاب د الله تعالى نه هيڅوك بچ کونکې، ګويا چه اغوستلې شوې به وی مخونو د دوئ ته ټکړې د تورې شپې.

اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝ وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا

دغه کسان اور (جهنم) والا دی دوئ به په هغې کښ هميشه وی . او په هغه ورځ چه راجمع به کړو [٢] دوئ ټول

ثُمَّ نَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا مَكَانَكُمْ اَنْتُمْ وَشُرَكَآؤُكُمْ ۚ فَزَيَّلْنَا

بيا به وه وايو هغه کسانو ته چه شرك ئ کړيدې ودريږئ په خپل ځائ، تاسو او شريکان ستاسو ، پس جدا ئ به راولو

بَيْنَهُمْ وَقَالَ شُرَكَآؤُهُمْ مَّا كُنْتُمْ اِيَّانَا تَعْبُدُوْنَ ۝ فَكَفٰى بِاللّٰهِ

په مينځ د دوئ کښ او اوبه وائ شرکاء د دوئ نوئ تاسو چه زمونږ بندګی مو کوله . پس کافی دې الله تعالى

شَهِيْدًاۢ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ اِنْ كُنَّا عَنْ عِبَادَتِكُمْ لَغٰفِلِيْنَ ۝ هُنَالِكَ تَبْلُوْا

ګواه په مينځ زمونږ او ستاسو کښ، بيشکه وو مونږ ستاسو د بندګئ نه خامخا ناخبره . دغه وخت به معلوم کړی

كُلُّ نَفْسٍ مَّآ اَسْلَفَتْ وَرُدُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ مَوْلٰىهُمُ

هر نفس حقيقت د هغه عمل چه مخکښ ئ ليکلې دې ، او وبه ګرځولې شی د دوئ الله تعالى ته چه مالك د دوئ دې

الْحَقِّ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ۝

په ريشتيا سره او ورك به شی د دوئ نه هغه چه دوئ څه دروغ جوړول .

﴿وَالَّذِيْنَ كَسَبُوا السَّيِّاٰتِ﴾ دا تخويف دې ، د دې په ترکيب کښ يو څو احتماله دی : (١) (والذين)

---

١ - تخويف اخروی.

٢ - تخويف اخروی.

مبتدا ده او ﴿جَزَآءُ سَيِّئَةٍۭ﴾ په حذف د مضاف سره ئ خبر دې (۲) (ای جزائهم جزاء سيئة) . يا مضاف په جانب د مبتداء كښ مقدر دې (ای جزاء الذين كسبوا السيئات جزاء سيئة بمثلها) (۳) يا (والذين) په حذف د لام سره خبر مقدم دې او (جزاء سيئة) ئ مبتداء مؤخره ده (اي جزاء سيئة بمثلها، للذين كسبوا السيئات) ﴿بِمِثْلِهَا﴾ مماثلت په سخت والی .او غلاظت كښ مراد دې يعنی چه څومره جرم سخت وی او ناكاره وی لكه شرك، كفر نو عذاب به ئ دغه شان سخت او ناكاره وی .﴿مَّا لَهُم مِّنَ ٱللَّهِ مِنْ عَاصِمٍ﴾ . په دې كښ اشاره ده نفی د شفيع قهری ته .﴿كَأَنَّمَآ أُغْشِيَتْ﴾ يعنی مخونه د كافرانو به د قيامت په ورځ داسې تك تور وی لكه د توری شپې ډيرې ټكړې چه ورته اغوستلې شوې وی. دا مبالغه ده په توروالی كښ﴿وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ﴾ دا تخويف اخروی دې او ثمره د مخكنی دلائلو ده ، د مخكنو دلائلو نه دا خبره واضحه شوه چه مشركان چه دكومو خپلو معبودانو عبادت كوی او شفعاء ئی گنړی نو هغه معبودان عاجزه دی ،او د دوئ په اختيار كښ نفع نقصان نشته ، نو دلته په طور د نتيجې او ثمرې د آخرت منظر پيش كولې شی چه وگورئ چه چا ته چه تاسو خپل شفيعان وايئ نو هغوئ خو ستاسو سفارش خود نشی كولې ،بلكه هغوئ به ستاسو د عبادت او بلنې نه هم انكار اوكړی او په ميدان محشر كښ به علي رؤس الاشهاد اعلان اوكړی چه مونږ ستاسو د عبادت او بلنې نه بالكل خبر نه ؤو چه څوك زمونږ قبر له راغلې دې او سوالونه ئ كړی دی .او سجدې ئ كړی دی .او نذرانې ئ پيش كړی دی .او ضمير د ﴿نَحْشُرُهُمْ﴾ هم راجع دې فريقينو ته يعنی هالكين او ناجيينو ته .او عابدينو او معبودينو ته ﴿مَكَانَكُمْ﴾ اي الزموامكانكم ، په خپل خپل مكان كښ ودريږئ انتظار كوئ د فيصلې د الله ﷻ ﴿فَزَيَّلْنَا﴾ اي فرقنا يعنی جدائی به راؤلو مونږ په مابين د عابدينو او معبودينو كښ﴿فَزَيَّلْنَا﴾ د زال يزيل (يائ) زيلاً نه مضاعف دې او مراد د جدائی نه يا قطع د تعلقاتو ده لكه دا ظاهر ده ، يا ترينه مراد دا دې چه په جدا جدا ځايونو كښ به ؤدرولې شی د نيكانو او مجرمانو صفونه به جداجدا شی ،(وامتازواليوم ايها المجرمون) .

﴿وَقَالَ شُرَكَآؤُهُم﴾ ، د شركاؤنه څوك مراد دی؟ په دې كښ اختلاف دې ، بعض وائی چه فرشتې او عيسیٰ ؑ مراد دې لقوله تعالی : ﴿وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ يَقُولُ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ أَهَٰٓؤُلَآءِ إِيَّاكُمْ كَانُوا۟ يَعْبُدُونَ﴾ ،وقوله تعالی ﴿قُلْتَ لِلنَّاسِ ٱتَّخِذُونِى وَأُمِّىَ إِلَٰهَيْنِ مِن دُونِ ٱللَّهِ﴾ په دې قول باندې دا سوال

واردیږی چه ﴿مَكَانَكُمْ أَنتُمْ وَشُرَكَاؤُكُمْ﴾ تهدید دې او دا مناسب نه دی د انبیاء او فرشتو سره. او بعض وائی چه بتان مراد دی نو په دې دا سوال واردیږی چه د هغوئ حشر نه کیږی او سوال جواب نشی کولې نو دا د (یوم نحشرهم) سره منافی دې نوجواب دادې چه الله ﷻ قادر دې په حشر د دوئ یا په دې طریقې سره چه الله ﷻ په کښې عقل ، حیات، نطق پیدا کړی یا په غیر د حیوة نه پکښې طاقت د ګویایئ پیدا کړی او په دې تقدیرچه حیوة پکښې پیدا کړی نو احتمال دې چه دَ سوال ، جواب نه وروستو باقی شی یا فانی شی، امام رازی اوصاحب د روح المعانی وائی چه زیاته ظاهره ده چه مراد ترینه تمام (ماعبد من دون الله) دی ﴿ فَكَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا ﴾ دا په معنی د قسم سره دې چه دا معبودان به قسم اوخوری چه مونږ ستاسو د عبادت او بلنې نه بالکل نه وُؤ خبر ، صاحب د روح المعانی په تفسیر د سورة احقاف کښې لیکی چه بتان خوبهر حال بې خبره دی او هر چه ملائك دی نو هغه خو لرې دی ځکه چه مشرکینُ د آسمانی ملائکو عبادت کولو او هر چه انبیاء او اولیاء دی نو بعض خو لرې دی د عابدینو نه او علم غیب ئ نشته او چه څوك قریب وو نو هغه مړه دی،او مړی په هر وقت کښې خبرې نه اوری ، یا د الله ﷻ دمشرکانو د شرکی اقوالو او افعالو نه دوئ بې خبره ساتی ، چه په حزن او غمونو کښې پریشان نه شی ﴿هُنَالِكَ﴾ یعنی په موقف الحساب کښې ﴿تَبْلُوا﴾ بلاء امتحان ته وائی او په امتحان سره پوره حقیقت معلومیږي نو (تبلوا) په معنی د تعلم سره دې، ﴿ مَوْلَاهُمُ الْحَقِّ ﴾ مولی په معنی د مالك حقیقی سره راځی نو په دې معنی سره الله ﷻ مولی د مؤمنانو او کفارو ټولو دې او بل په معنی د ناصر او مددګار سره راځی نو په سورة محمد آیت نمبر ۱۱ (ان الكافرين لامولى لهم) کښې دا دویمه معنی مراد ده .

| قُلْ مَنْ يَرْزُقُكُم مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أَمَّن يَمْلِكُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ |
| --- |
| وه وایه ! څوك روزی درکوی تاسو ته [1] د آسمان او د زمکې نه ، یا څوك مالك دې د غوږونو او د سترګو. |
| وَمَن يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَمَن يُدَبِّرُ الْأَمْرَ |
| او څوك راوباسی ژوندې، د مړ نه، او راوباسی مړ د ژوندی نه، اوڅوك تدبیر کوی د ټولو کارونو. |

۱ - پنځم دلیل عقلی په توحید ، علی سبیل الاعتراف من الخصم.

| فَسَيَقُوْلُوْنَ اللّٰهُ ۚ فَقُلْ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ۞ فَذٰلِكُمُ |
|---|
| نو زر ده چه دوئ به وه وائي چه الله تعالى ، پس ووايه ته ! آيا تاسو خان نه بچ کوئ د شرك نه. پس دغه دي' تاسو ته وايم. |
| اللّٰهُ رَبُّكُمُ الْحَقُّ ۚ فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ اِلَّا الضَّلٰلُ ۚ |
| الله تعالى رب ستاسو دي په ريشتيا سره پس څه شي دي پس د ريشتياؤ نه يعنى نشته مگر گمراهي. |
| فَاَنّٰى تُصْرَفُوْنَ ۞ |
| پس د کوم خائ نه اړولي شئ تاسو |

﴿قُلْ مَنْ يَّرْزُقُكُمْ﴾ دا په توحيد باندې پنځم دليل عقلي دې (علي سبيل الاعتراف من الخصم ، كما قيل اصح الشهادات ما يشهد به الاعداء) – ع : (الفضل ما شهدت به الاعداء) مشركينو د دې مذکوره صفاتو مالك صرف الله ﷻ منلو او دا صفات د الوهيت (خدائ توب) دی نو الله ﷻ فرمائی چه دا هم تاسو د تعجب خبره کوئ چه د الوهيت صفات صرف الله ﷻ لره ثابتوئ اوبيا غيرالله ته معبود او اله وائی په چا کښ چه دالوهيت صفات نه وی نو څرنگه اله کيدې شی اومخکښ تير شو چه دوئ شفعاء هم نشی کيدې ، رزق د اسمان نه په باران ورولو سره دې او د زمکې نه په پيداکولو د فصلونو او بوټو سره دې ، د سمع او ابصار نه مراد طاقت د اوريدلو او ليدلو دې او د حی او ميت نه مراد (۱) حيوان او نطفه ده (۲) چرگ اگئ .(۳) تازه فصلونه ،زمکه (۴) مؤمن او مشرك (۵) عالم او جاهل مراد دی ﴿وَمَنْ يُّدَبِّرُ الْاَمْرَ﴾ لام د استغراق دپاره دې يعنی د ټولو کارونو ،حالاتو انتظام بغير د اسبابو نه کوی او انسانان چه تدبير انتظام کوی نو په اسبابو سره کوی ،او دا تعميم بعد التخصيص دې ،او په حديث کښ چه د ابدالو ذکر راغليدې لکه په ابو داؤد کښ اتاه ابدال الشام يا نورو ډيرومحدثينو لکه ابن عساکر ذکر کړی دی نو د هغې مقصد هغوئ دا نه دې ذکر کړې چه دوئ د عالم تدبير انتظام کوی، بلکه معنی داده چه د اعمالو صالحؤاو دعاگانو په وجه په عالم کښ انقلابات راځی اوځوك چه دا عقيده لری چه دالله ﷻ نه علاوه د بل چا په اختيار کښ خير او شر او تصرفات دی نو دا صريح شرك دې لکه داهل بدعت مقتدا د حضرت شيخ عبدالقادر جيلاني رحمه الله په باره کښ وائی چه :

ذی تصرف بھی ھیں

ماذون بھی ھیں مختار بھی ہے

کار عالم کا مدبر بھی ھیں

(حدائق بخشش)

اوپه بل ځای کښ وائی احد سے احمد واحمد سے تجھ کو - ملا یہ کن، مکن یا غوث اعظم

((نعوذ باالله))

﴿فَسَيَقُولُونَ اللَّهُ﴾ سين د استقبال قريبه د پاره دې، يعنې د سوال کولو نه بعد متصلا په غير دتوقف او تردد نه به دوئ وائي چه دا کارونه صرف الله ﷻ کوي ﴿أَفَلَا تَتَّقُونَ﴾ همزه دپاره داستفهام انکاري ده په معنی د لاينبغي سره دې، او فاء د پاره د عطف ده معطوف عليه ورله مقدر دې اتعلمون ذالك فلا تتقون ﴿فَذَٰلِكُمُ اللَّهُ﴾ (ذا) اسم اشاره ده او مبتدا ده . او (کم) دپاره د دلالت دې په حال دمخاطب اولفظ د الله ﷻ ئې خبر دې نو ترجمه دا شوه (پس دغه تاسوته واثم الله دې) ،اسم اشاره وی محسوس ته ،او ذات دالله ﷻ اگر که مخاطبينو ته محسوس نه دې ليکن د تميز بالاوصاف په وجه په منزله د محسوس گرزولې شوې دې . نو خکه ويلې شوو چه دغه دې (الله) ﴿رَبُّكُمْ﴾ بدل دې يا عطف بيان دې ، د لفظ د الله ﷻ دپاره يا (ذالکم) مبتدا ده او لفظ د الله ترينه بدل دې . يا عطف بيان دې ،او (ربکم) خبر دې ﴿الْحَقُّ﴾ خبر بعد الخبر دې يا صفت د (ربکم) دې .ترجمه دا شوه چه دغه الله ﷻ رب ستاسو دې په رشتيا او دا توجيه راجحه ده .﴿فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ﴾ ما استفهاميه په معنى د نفي سره ده او (ذا) موصوله ده .او دا مبتدا ده . ﴿بَعْدَ الْحَقِّ﴾ ورله خبر دې ،او بعد په معنی د غير سره دې او د حق نه مراد توحيد او د ضلال نه مراد شرك او عبادة د غيرالله دې . يعنې دحق نه علاوه خو صرف گمراهي ده نو ځوك چه حق (توحيد) پريږدی نو په گمراهئ کښې به واقع شي ﴿فَأَنَّىٰ تُصْرَفُونَ﴾ (صرف) گرزيدلو ، اوړيدلو ته وائي د توحيد نه ﴿فَأَنَّىٰ﴾ (انی) په معنی دکيف سره دې د تعجب دپاره .په دې آيت کښ د حق نه مراد هغه دې چه قطعا ثابت وی لکه مفسرينو مثال په توحيد سره ذکرکوی او په کوم ځای کښ چه دَ يو مسئلې يوجانب قطعًا نوی ثابت اگر که تعلق ئې د عقيدې سره وی نو هلته يو جانب ته باطل نشی ويلې لکه مسئله د سماع الموتی وغيره، نورمسائل شو په دې کښ مقابل ته گمراه او ناحق ويل جهالت او تعصب دې

البته د يو جانب ترجيح په دليل سره د علمي تدقيق علامه ده.

كَذٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِيْنَ فَسَقُوْٓا اَنَّهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ۞ قُلْ

دغسې پوره شويده فيصله د رب ستا، په هغه چا چه نافرمان دي، چه دوئ ايمان نه راوړي ته ووايه [1]

هَلْ مِنْ شُرَكَآئِكُمْ مَّنْ يَّبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ ؕ قُلِ

آيا شته دي د شركاؤ ستاسو نه داسې څوك چه اول پيدا كول وكړي، بيا دوباره پيدايش وكړي (نشته). ته ووايه [2] چه

اللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ ۞ قُلْ

الله تعالى اول پيدا كوي مخلوق او بيا به ئې دوباره پيدا كوي پس په څه اړولې شئ تاسو د توحيد نه ته ووايه

هَلْ مِنْ شُرَكَآئِكُمْ مَّنْ يَّهْدِيْٓ اِلَى الْحَقِّ ؕ قُلِ اللّٰهُ يَهْدِيْ لِلْحَقِّ ؕ

آيا شته ستاسو په شريكانو كښې هغه څوك چه لار وښائې د حق، ته ووايه چه الله تعالى لار ښائې طرف د حق ته

اَفَمَنْ يَّهْدِيْٓ اِلَى الْحَقِّ اَحَقُّ اَنْ يُّتَّبَعَ اَمَّنْ

آيا پس هغه څوك چه لار ښائې طرف د حق ته هغه ډير حقدار دې د دې چه تابعداري ئې وكړې شي، يا هغه څوك

لَّا يَهِدِّيْٓ اِلَّآ اَنْ يُّهْدٰى ۚ فَمَا لَكُمْ ۗ كَيْفَ تَحْكُمُوْنَ ۞

چه پخپله لار نه مومي مگر په هغه وخت كښې چه لار ورته وښودلې شي، پس څه دي تاسو لره څرنگه حكم كوئ تاسو،

وَمَا يَتَّبِعُ اَكْثَرُهُمْ اِلَّا ظَنًّا ؕ اِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِيْ مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا ؕ

او تابعداري نكوي زيات د دوئ نه مگر د وهم، بيشكه وهم پرستي فائده نه وركوي د حق په باره كښې هيڅ،

اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِمَا يَفْعَلُوْنَ ۞

بيشكه الله تعالى پوهيږي په هغې چه دوئ څه كوي

---

۱- زجر.

۲- زجر.

﴿ كَذَٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ ﴾ يعنى ځوك چه سره د ظهور د حق نه په باطل باندې مصر وى نو دا علامه ده ددې خبرې چه پده دَ مهر جباريت لګيدلې دې ﴿ أَنَّهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ تفسير د ﴿ كَلِمَتُ رَبِّكَ ﴾ دې . ﴿ قُلْ هَلْ مِن شُرَكَائِكُم ﴾ داهم داخل دې په دليل عقلى على سبيل الاعتراف من الخصم كښ. يعنى ته د دوئ نه تپوس وکړه چه آيا ستاسو په مفروضه معبودانو كښ صفات د الوهية شته دى؟ هغه دا چه اول ځوك پيدا كړى يا دوباره پيدا كړى، ظاهره ده چه دا كارونه خو هغوئ نشى كولې بلكه صرف الله تعالى ئ كوى نو معلومه شوه چه معبود بر حق صرف الله تعالى دې ﴿ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ ﴾ يعنى ځرنګه تاسو اړولې شئ د حق نه باطل ته . ﴿ قُلْ هَلْ مِن شُرَكَائِكُم مَّن يَهْدِي ﴾ دا هم داخل دې په دليل كښ او مراد (يهدى الى الحق) نه هدايت كول دى په ارسال د رسل او انزال د كتابونو سره، يعنى آيا ستاسو مفروضه الٰهه داكولې شى؟ چه رسولان راوليګى يا كتابونه نازل كړى يا چا ته د فهم د حق دپاره عقل وركړى او توفيق د غور اوتدبر وركړى .او ظاهره ده چه داكارونه خو صرف الله ﷻ كوى ﴿ اللَّهُ يَهْدِي لِلْحَقِّ ﴾ دلته حصر مراد دې يعنى صرف الله جل جلاله داسى كوى ﴿ أَفَمَن يَهْدِي ﴾ نو اوس تاسو سوچ فكر اوكړئ چه آيا د هغه ذات د احكاماتو اتباع پكار ده چه د فهم اوحق دپاره ئ عقل، فكر وركړې دې اورسولان ئ راليګلى دى ،او كتابونه ئ نازل كړى اوكه د هغه چاچه هغه ته په خپله حقه لار نوى معلومه ترڅو چه بل چا ورته لار نه وى خودلې ﴿ أَمَّن لَّا يَهِدِّي ﴾ دا په اصل كښ (لايهتدي) وو، تاء په دال سره بدله شوه او ادغام په كښ اوشو .

﴿ وَمَا يَتَّبِعُ أَكْثَرُهُمْ إِلَّا ظَنًّا ﴾ دلته د ظن نه مراد وهم دې يعنى شرك پرستى بل هيڅ شې ندې سوى د وهم پرستى نه .نو د ظن نه مراد وهم دې ،او كوم ظن چه معتبر دې په شرع كښ هغه نه دې مراد . نو استدلال د منكرينو د خبر واحد په دې آيت سره باطل دې ، تفسير قرطبى كښ دى چه دا آيت دليل دې په دې چه ظن نه دې كافى په باب د عقائدو كښ ، دغه شان په شرح العقائد كښ دى ،(ولاعبرة با الظن في باب الاعتقاديات) ، داهله چه د ظن په مقابله كښ دليل قطعى يقينى موجود وى لكه د دې آيت نه معلوميږي ،او چه په مقابله كښ ئ دليل قطعى يقينى نه وى موجود نو هلته دليل ظنى معتبر دې په باب دَ اعمالو كښ ،او هر چه دې په باب د اعتقادياتو كښ دې نو مشهوره داده چه په دليل ظنى سره د عقيدې اثبات نشى كيدې

مطلقًا ليکن صاحب د نبراس په دې خبره رد کړې دې او ويلي ئ دي چه مشائخو ذکر کړي دي چه ظنيات په باب د عقائدو کښې لکه تفاضل د مَلَك او دبشر شو ،او دا رنګه سلف تابعينو ، تبع تابعينو ، محدثينو ذکر کړي دي اخبار احاد په باره د احوالو دمعراج کښې.او دارنګه په باره د حشر ،قبر ،او دا رنګه په باره د جنت او د نار ، کښې او ظاهره ده چه د دې تعلق د عمل سره نشته دې بلکه صرف د اعتقادسره ئ تعلق دې . نو که په دغه اخبار آحادو سره عقيده نه ثابتيږي نو د دوئ روايت به عبث شي ، بلکه مردود به شي بلکه حق دادې ،چه مذموم ظن فاسد دې ياهغه ظن دې چه په مقابله کښې ئ دليل قطعي يقيني وي .فاحفظه فكثيرًا ما يقع فيه الخطاء عن النحارير .

او علماؤ ددې آيت نه ډيرې مسئلې مستنبط کړي دي مثلا (۱) يقين نه زائل کيږي په شك سره ،(۲) د نص په مقابله کښې قياس نه دې معتبر، (۳) د مطلق د کتاب الله تقييد په خبر واحد سره صحيح نه دې ،وغير ذلك .

| |
|---|
| وَمَا كَانَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ اَنْ يُّفْتَرٰى مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلٰكِنْ تَصْدِيْقَ الَّذِيْ |
| اونه دې دا قرآن [۱] چه جوړ کړې شي د طرف د ماسوی د الله نه ليکن نازل شوې دې لپاره د تصديق دهغې کتابونو |
| بَيْنَ يَدَيْهِ وَتَفْصِيْلَ الْكِتٰبِ لَا رَيْبَ فِيْهِ مِنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٣٧﴾ |
| چه دده نه مخکښې دي او لپاره د تفصيل د فرض شوي حکمونو ، نشته هيڅ شك پدې کښې، د طرف د رب العالمين نه دې |
| اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ؕ قُلْ فَاْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّثْلِهٖ وَادْعُوْا مَنِ |
| آيا وائ دوئ چه دا قرآن ئ د خان نه جوړ کړې دې ، او وايه پس راوړئ يو سورة د ده پشان او راوبلئ هر هغه څوك |
| اسْتَطَعْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿٣٨﴾ بَلْ كَذَّبُوْا |
| چه تاسو طاقت لرئ د بلنې دهغوئ ماسوی د الله تعالی نه که يئ تاسو ريشتني بلکه دوئ دروغ ګڼړي |
| بِمَا لَمْ يُحِيْطُوْا بِعِلْمِهٖ وَلَمَّا يَاْتِهِمْ تَاْوِيْلُهٗ ؕ |
| هغه (قرآن) چه دوئ ندې حاصل کړې علم د هغې او تر اوسه پورې ندې راغلې دوئ ته انجام د نه منلو د قرآن. |

۱- تمهيد شکوي نه .

كَذٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظّٰلِمِيْنَ ۝

دغه سي نسبت د دروغو كولو هغه كسانو چه د دوئ نه مخكښ وو پس وګوره څرنګه شو انجام د ظالمانو

وَمِنْهُمْ مَّنْ يُّؤْمِنُ بِهٖ وَمِنْهُمْ مَّنْ لَّا يُؤْمِنُ بِهٖ ؕ

او بعضي د دوئ نه هغه خوك دي چه ايمان راؤړي پدې قرآن او بعضي د دوئ نه هغه خوك دي چه ايمان نه لري پدې قرآن

وَرَبُّكَ اَعْلَمُ بِالْمُفْسِدِيْنَ ۝

او رب ستا ښه پوهه دې په حال د فساد كونكو .

﴿ وَمَا كَانَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ ﴾ دا تمهيد دې شكوې ته ، يعني دا قرآن چه لفظًا او معنًى بى نظيره او معجز دې ، څوك انسان پرې هم قادر نه دې چه د اسې كتاب جوړ كړي نو دا مفترىٰ (دَ ځان نه جوړ كړې شوې) نه دې بلكه په دې كښ دا كمالات او خصوصيات او صفات دى (۱) چه د مخكنو كتابونو تصديق كوى (۲) او دَ كتاب يعنى د فرض كړې شوى احكامو ضرورى تفصيل كوى (۳) په دې كښ هيڅ شك اوشبه نشته دې ، هره هره خبره ئ قطعى اويقينى ده ،او د تمامو مخلوقاتو د رب د طرف نه راغلې دې .﴿ اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ﴾ (ام) منقطعه دې په معنىٰ دَ (بل أ) سره. حضرت شيخ به د (ام) منقطعه ترجمه داسى كوله : (اجھا یہ لوگ یہ کہتی ہیں - الخ) يعني خا ؛ دوئ دا خبره كوى چه د خپل ځان نه ئ جوړ كړې دې.(افترٰى) ضمير راجع دې محمد ﷺ ته ﴿ قُلْ فَأْتُوْا ﴾ داجواب د شكوه دې يعنى كه دا كتاب حضرت محمد ﷺ د ځان نه جوړ كړې وې نو تاسو هم فصحا او بلغاء يئ نو تاسو د دې په شان كتاب جوړ كړئ ،او ﴿مِّثْلِهٖ﴾ ضمير قرآن ته راجع دې او مراد د مثليت نه په الفاظو او معنى . فصاحت . بلاغت او په صداقت كښ مثليت دې.﴿ بَلْ كَذَّبُوْا بِمَا لَمْ يُحِيْطُوْا بِعِلْمِهٖ ﴾ يعنى دوئ د قرآن په اعجاز، فصاحت او بلاغت كښ سوچ او تحقيق نه دې كړې بلكه په غير د سوچ او غور نه ئ تكذيب شروع كړې دې . پكار خو داسې ده چه سړې سوچ اوكړي نو بيا روستو دهغې په باره كښ فيصله اوكړي (بما لم يحيطوا بعلمه) ، په اصل كښ (لم يحيطوا به علما) وؤ نو دغه عبارت نه عدول اوشو دې مذكور كلام ته ،ځكه دا ابلغ دې .﴿وَلَمَّا يَأْتِهِمْ تَأْوِيْلُهٗ﴾ ، ضمير راجع دې قرآن ته

او د تاويل نه مراد تفسير او بيان د معانيو دي .او دا اتيان مجاز دي د علم او وقوف نه. يعنى د دوئ دل او دماغ ته د قرآن معانى، حقائق نه دى راغلى. يا ضمير راجع دي تكذيب ته چه په ضمن د (كذبو) كښې دي او د تاويل نه مراد وقوع د مدلول دي يعنى عاقبت او انجام د تكذيب دي يعنى دوئ ته لا تراوسه پورې د دوئ د تكذيب انجام .او د وعدې سزا عملى ظهور نه دې راغلې . ﴿كَذَٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ﴾ يعنى دغسې بې سوچه تكذيب مخكنو اقوامو هم كړې وو د خپلو انبياؤنه ﴿فَانْظُرْ﴾ سوچ اوكړه چه دهغې انجام څه وو. ﴿وَمِنْهُم مَّن يُؤْمِنُ بِهِ﴾ يعنى په موجوده كفارو كښې بعض خلق ايمان راوړى او بعض نه راوړى نو څوك چه ايمان نه راوړى په قرآن باندې نو دغه مفسد دى او ستا رب په دې ډير خه خبردار دې . سزا به ورته وركوى

| |
|---|
| وَ اِنْ كَذَّبُوْكَ فَقُلْ لِّيْ عَمَلِيْ وَ لَكُمْ عَمَلُكُمْ ۚ |
| اوكه دوئ تا دروغژن گڼړى پس وه وايه : خما د پاره بدله د عمل خما ده او تاسو لره بدله د عمل ستاسو ده |
| اَنْتُمْ بَرِيْٓئُوْنَ مِمَّآ اَعْمَلُ وَاَنَا بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تَعْمَلُوْنَ ۝ |
| تاسو بيزاره او بى تعلقه يئ د هغه عمل نه چه زه ئ كوم او زه بى تعلقه يم دهغې عملونونه چه تاسو ئ كوئ |
| وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّسْتَمِعُوْنَ اِلَيْكَ ؕ اَفَاَنْتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ وَلَوْ كَانُوْا لَا يَعْقِلُوْنَ ۝ |
| او بعضې د دوئ هغه څوك دى چه غوږ ايږدى تاته، آيا پس ته اوروَل كولې شى كڼړو ته، اگر كه دوئ عقل نه لرى |
| وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّنْظُرُ اِلَيْكَ ؕ اَفَاَنْتَ تَهْدِى الْعُمْىَ وَلَوْ كَانُوْا لَا يُبْصِرُوْنَ ۝ |
| او بعضې د دوئ نه هغه څوك دى چه گورى تا ته آيا پس ته لار ښودلې شې ړندو ته ؟ اگر كه دوئ بصيرت . بوهه نه لرى |

﴿وَإِن كَذَّبُوكَ﴾ دا زجر دې منكرينو ته يعنى د دومره دليلونو نه بعد بياهم تكذيب كوى نوته ورته اووايه چه ما ته خو ستاسو د كفر نه هيڅ ضرر نشته، زه ستاسو د بدواعمالو نه برئ يم . ﴿وَمِنْهُم مَّن يَسْتَمِعُونَ إِلَيْكَ﴾ دا هم زجر دې ﴿أَفَأَنتَ﴾ دا تمثيل دَ مهر جباريت دې . ﴿الصُّمَّ﴾ جمع د اصم ده . ﴿وَلَوْ كَانُوا لَا يَعْقِلُونَ﴾ كوڼړ چه عاقل وى نو په اشارو سره يا په حركت د شونډو يا فراست سره څه لگ ډير پوهيدې شى ليكن څوك چه كوڼړ هم وى او لايعقل هم وى . نو هغه بالكل نشى پوهيدې نو دلته د كفارو تشبيه ئ دهغه كڼړو سره وركړه چه لايعقل وى نو

دلته مشهور **سوال** واريديږي ،چه (لو) وصليه کښې قانون دادې چه نقيض د مدخول د ده اولى بالحکم وي لکه په دې مشهوره مقوله کښې ،(نعم العبد صهيب لولم يخف الله لم يعصه) او دلته خو امر بالعکس دې ځکه استفهام انکاري دې په معنی دنفی سره .نو معنی دا شوه چه ته نشې اوروليې کڼړو ته ،اګر که لايعقل وي ، نو د دې نه فهميږي چه کوڼ چه يعقل وي نو په طريق اولی ورته اورول نشي کيدې ، حالانکه داسې خو نه ده ، نو **جواب** دادې چه دلته د استفهام انکاري لحاظ روستو دې او د (لو) وصليه لحاظ مخکښې دې (اَىْ تسمع الصم ولو کانوا لايعقلون) او ظاهره ده چه اسماع سره د عقل نه بالطريق الاولی ده (روح) ،او واو په (ولو)کښې دپاره د عطف دې ، معطوف عليه ورله مقدر دې ،(اي لوکانوا يعقلون ولو کانو لايعقلون) او مقصود دنفی نه قدرت د اسماع ده په هر حال کښې ،﴿وَمِنْهُم مَّن يَنظُرُ إِلَيْكَ﴾ يعنی تاته ګوري او ستا کمالات ، او معجزات ويني په ظاهری سترګو سره، ليکن د ضد او تعصب اومهر جباريت لګيدو په وجه د زړه سترګی ئ ړندې دی، نو دوئ په شان د هغه ړندو دی چه بصارت (سترګې ) ئ هم نه وی ،او بصيرت (عقل او فراست ) ئ هم نه وی ، نو داسې ړوند ته به څوک لار اوښايي ﴿لَا يُبْصِرُونَ﴾ د بصيرت نه ماخوذ دې ، د ړوند چه بصيرت ئ وی نو څه لږ ډير لارخودل ورته کيږي ،او چه بصيرت ئ هم نه وی نو بيا خو ورته بالکل لار خودل ممکن نه وی،دلته هم داستفهام لحاظ وروستو دې اودَ(لو)اودَ مدخول دَ ده لحاظ مخکښې دې،او دلته هم مقصود نفي د عموم ده ،يعنی نفی د قدرت په هدايت باندې په عامو احوالو کښې کما مر.

﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ النَّاسَ شَيْئًا وَلَٰكِنَّ النَّاسَ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ﴾ ۝

بيشکه الله تعالی ظلم نه کوی په خلقو هيڅ ظلم ليکن خلق په خپلو ځانونو په خپله ظلم کوی

| وَيَوْمَ | يَحْشُرُهُمْ | كَأَن | لَّمْ | يَلْبَثُوا |
|---|---|---|---|---|

او په کومه ورځ چه راجمع به کړی دوئ لره دوئ به ګمان وکړی ګويا کښې دوئ درنګ نه وؤ تير کړې

﴿إِلَّا سَاعَةً مِّنَ النَّهَارِ يَتَعَارَفُونَ بَيْنَهُمْ ۚ قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ كَذَّبُوا﴾

مګر يو ساعت د ورځې ، پيژندګلی به کوی په مينځ خپل کښې، په تحقيق سره تاوانيان دی هغه خلق چه تکذيب کوی

| |
|---|
| بِلِقَآءِ اللّٰهِ وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ ۝ وَاِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِيْ |
| په پیش کیدلو الله تعالی ته اُونه دی دوئ هدایت موندونکی. اوکه وښایو مونږ تا ته بعضې هغه عذاب |
| نَعِدُهُمْ اَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَاِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ |
| چه وعده ئ کوؤ د دوئ سره یا وفات کړو تا لره (مخکښې د عذاب د دوئ نه) پس زمونږ طرف ته راګرځیدل د دوئ دی |
| ثُمَّ اللّٰهُ شَهِيْدٌ عَلٰى مَا يَفْعَلُوْنَ ۝ |
| بیا الله تعالی خبر دې په هغه کارونو چه دوئ ئ کوی |

﴿ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ النَّاسَ ﴾ دا جواب د يو **سوال** دې چه الله جل جلاله دوئ نه صلاحيت د اوريدلو او دَ ليدلو واخستلو نو آيا دا ظلم ندې، **جواب** : دا ظلم ندې بلکه دا د دوئ د ظلم نتيجه ده ځکه چه دوئ په خپل ضد او عناد باندې کلك وواو په باطل باندې مصر ووسره د علم نه ، نو الله ﷻ ترې نه صلاحيتونه سلب کړل ﴿ وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ ﴾ دا تخويف اُخروی دې ،او عامل د يوم دپاره ، يا مقدر (اذكرهم) دې يا دا متعلق دې د روستو (يتعارفون) سره ﴿ كَاَنْ لَّمْ يَلْبَثُوْا ﴾، دا جمله حال دې د ضمير د هم نه په (يَحْشُرُهُم) کښې او اسم د (كَاَنْ) مقدر دې (اي كانهم لم يلبثوا ، اي يحشر هم مشبهين لم يلبث الا ساعة) يعنی الله ﷻ چه دوئ لره راجمع کړی د قيامت په ورځ اوحال به داوی چه دوئ ګمان کوی چه مونږپه دنيا کښې يا په عالم برزخ کښې د ورځې يو ساعت تير کړې دې ، ځکه قانون دا دې چه کله په چا باندې ډيره سختی راشی نو د خوشحالئ وخت يا د لګې سختئ وخت ورته ډير کم ښکاری ﴿ يَتَعَارَفُوْنَ ﴾ مشرکان به يوبل پيژنی او سره د تعارف نه د يوبل مدد به نه شی کولې نوپه دې سره به غم او صدمه نوره هم زياتيږی ځکه چه د آشنا سړی نه د نفع توقع وی ﴿ قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا ﴾ د دائمی خسارې سبب تکذيب د قيامت او د هدايت په لار باندې نه تلل دی ،﴿ وَاِمَّا نُرِيَنَّكَ ﴾ دا تسلی ده پيغمبر ﷺ ته اوتخويف دې منکرينو ته، مقصد دادې چه که ستا په زندګی کښې مونږ دوئ ته سزا ورکړو اوته ئ وه وينې اويا تالره مونږ وفات کړو برابره خبره ده چه بيا ورته سزا ورکړو په دنيا کښې يا ورنه کړو ، نو په هر حال کښې د دوئ راتلل مونږ ته دی ،او الله ﷻ د دوئ په اعمالو خبر دې نوپه قيامت کښې به ورته

سزاوركړي يعني اصل ځاىٔ د سزا قيامت دې ، هلته به ورته كافي سزا وركړې كيږي برابره خبره ده چه په دنيا كښې ورته سزا وركړې شي يا نه .

وَلِكُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولٌ فَإِذَا جَاءَ رَسُولُهُمْ قُضِيَ بَيْنَهُمْ

او لپاره د هر امت رسول دې ، پس هركله چه راشي دوئ ته رسول د دوئ نو فيصله وكړې شي په مينځ د دوئ كښې

بِالْقِسْطِ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿﴾ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿﴾

په انصاف سره او به دوئ به هيڅ ظلم نشي كولې واثي دوئ چه كله به وي دا وعده كه يئ تاسې رېښتني

قُل لَّا أَمْلِكُ لِنَفْسِي ضَرًّا وَلَا نَفْعًا إِلَّا مَا

وه وايه ته چه زه اختيار نه لرم د خپل ځان لپاره د هيڅ ضرر دفع كولو اونه د نفعې حاصلولو ليكن هغه

شَاءَ اللَّهُ ۗ لِكُلِّ أُمَّةٍ أَجَلٌ ۚ إِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ

چه وغواړي الله تعالى (نو هغه كيږي) د هرې يوې ډلې لپاره ميعاد دې پس هركله چه راشي ميعاد د دوئ

فَلَا يَسْتَأْخِرُونَ سَاعَةً ۖ وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ ﴿﴾ قُلْ أَرَأَيْتُمْ إِنْ أَتَاكُمْ

پس نه روستو كيږي يو ساعت اونه دوئ مخكښې كيږي د خپل ميعاد نه . وه وايه ، خبر راكړئ ما ته، كه راشي تاسو ته

عَذَابُهُ بَيَاتًا أَوْ نَهَارًا مَّاذَا يَسْتَعْجِلُ مِنْهُ الْمُجْرِمُونَ ﴿﴾ أَثُمَّ إِذَا مَا وَقَعَ

عذاب د الله تعالى د شپې يا د ورځې نو څه څيز دې د عذاب نه چه زر ئې غواړي مجرمان، آيا بيا هركله چه راشي عذاب

آمَنتُم بِهِ ۚ آلْآنَ وَقَدْ كُنتُم

نو تاسو به ايمان راوړئ پدې ، وه به ويلې شي چه آيا اوس ايمان راوړئ تاسو، او به تحقيق سره وئ تاسو (مخكښې د دينه)

بِهِ تَسْتَعْجِلُونَ ﴿﴾ ثُمَّ قِيلَ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذُوقُوا عَذَابَ الْخُلْدِ

په تلوار سره مو طلب كولو (دا عذاب) بيا به وه ويلې شي ظالمانو ته، وڅكئ عذاب د هميشوالي،

هَلْ تُجْزَوْنَ إِلَّا بِمَا كُنتُمْ تَكْسِبُونَ ﴿﴾ وَيَسْتَنبِئُونَكَ أَحَقٌّ هُوَ

نه شي دركيدلې تاسو ته بدله مگر د هغه عملونو چه تاسو به كول. او تپوس كوي دوئ ستا نه چه آيا حق دې دا عذاب؟

| قُلْ اِيْ وَرَبِّيْٓ اِنَّهٗ لَحَقٌّ ۚ وَمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ ﴿۵۳﴾ |
|---|
| ووایه هاؤ ! قسم دې په رب ځما چه بیشکه دا خامخا حق دې او نه یئ تاسې بچ کونکې خپل ځان لره |

﴿وَلِكُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوْلٌ﴾ دا تحویف دنیوی دې یعنی د هرامت د پاره رسول مقرر شوې دالله ﷻ د طرف نه ، نو چه کله به نبی دغه قوم ته راغې او دوئ به انکار اوکړو نو په دوئ به دالله ﷻ د طرف نه عذاب راغې ،﴿وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ﴾ دا شکوه ده، مشرکینو دمکې به د ډیر ضد د وجې نه نبی ﷺ نه د عذاب دجلدئ مطالبه کوله اوویل به ئ چه د کوم عذاب نه ته مونږ یروې نو هغه به کله راځی؟ ﴿قُلْ لَّآ اَمْلِكُ﴾، دا جواب د شکوې دې . یعنی زه خپل ځان لره اختیار د نفع حاصلولو یا د ضرر دفع کولو نه لرم ، نو د عذاب د متعین تاریخ ماته څه پته ده ؟. البته دا خبره یقینی ده چه دمجرمانو د عذاب دپاره معینه نیټه مقررده چه د هغې نه مخکښ کیدې یا روستو کیدې نه شی ﴿اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ﴾ دا استثناء منقطع ده، یعنی الله ﷻ چه څه غواړی هغه کیږي ،﴿وَلَا يَسْتَقْدِمُوْنَ﴾ دا عطف دې ، په معطوف علیه کښ ئ یوځو اقوال دی . (۱) عطف دې په شرط باندې نو د ﴿اِذَا جَآءَ﴾ ماتحت نه دې بلکه د (لکل امة اجل) ماتحت دې یعنی د هرې ډلې د مجرمانو دپاره نیټه وی د عذاب چه دغه نیټې نه، نۀ مخکښ کیږي. او چه کله دغه نیټه راشی نو بیا نه روستو کیږی (۲) بعض وائی چه که دا عطف شی په جزاء باندې نو ذکر د (لایستقدمون) دپاره د مبالغې دې په تحدید اوپه تعین د وقت د عذاب کښ اوپه نفی د تاخرکښ لکه مثلا ځوك چه دوکان دار نه دڅه څیز د قیمت تپوس کوی اوهغه ورته اوښائی نو اخستونکې ترې نه طلب دکمولو اوکړی نو دوکان دار وائی چه په دې کښ کمې بیشې نه کیږی نو ظاهره ده چه اخستونکې خو د کمی طلب کړې وو ،او د زیاتولو طلب ئی نه ووکړې نو د زیاتی نفی د مبالغې دپاره ده، (۳) علامه زمخشری وائی چه (لایستقدمون ساعة ولایستاخرون) کنایه ده د دې نه چه عذاب په خپل وقت راتلل یقینی دی ،او په کنایه کښ د لفظ حقیقی معنی نه وی مقصود ، نو دلته هم د تقدم او تاخر نفی ،اثبات لره اعتبار نشته ،او (۴) حضرت شیخ ؒ فرمائی چه جزا د شرط محذوفه ده (اي اذا جاء اجلهم یعذبون) یعنی چه نیټه دعذاب راشی نو دوئ ته به عذاب ورکولې شی او بیا نه یو سیکنډ روستو کیږی او

نه مخکښې کيږي ﴿قُلۡ أَرَءَيۡتُمۡ﴾ دا زجر او تخويف دې ، يعنې که د الله تعالى عذاب دشپې په وخت کښې راشي چه تاسو اوده يئ ، يا د ورځې راشي چه تاسو خپلو دنياوي دهندو کښې مشغوله يئ نو دا مجرمان چه د الله تعالى عذاب په جلدئ سره غواړي ، نو د دوئ به څه بچاؤ اوکړي ، هر کله چه بچاؤ نه شي کولې نو د عذاب په جلدې سره د راتلو مطالبه څه فائده نه لري ، په ﴿مَّاذَا يَسۡتَعۡجِلُ﴾ کښې مختلف توجيهات دي : (١) (ماذا) په معنى د (اى شئ) سره دې. ضمير د (منه) راجع دې (ماذا) ته، معنى داده چه څه تدبير دې د دفع د عذاب دپاره ،چه د هغې د وجې نه دامجرمان عذاب زرغواړي (٢) (ماذا) په معنى د (اي شئ) سره دې او استفهام دپاره د تعظيم دې او ضمير د (منه) راجع دې لفظ د الله ﷻ ته او معنى دا شوه چه څومره عظيم شي دې چه دوئ ئ د الله ﷻ نه زر غواړي ، (٣) (ماذا) په معنى د (اى شئ) سره او (منه) ضمير راجع دې عذاب ته ، يعنى (اى شئ من العذاب) يعنى کوم يو قسم د عذاب دې چه د زر غوختلو دې ، دغذاب هيڅ قسم د غوختلو څيز نه دې بلکه د پناه غوختلو څيز دې ﴿أَثُمَّ إِذَا مَا وَقَعَ ءَامَنتُم بِهِۦٓ﴾ دلته تقديم او تاخير دې (اى اذا وقع ثم آمنتم) يعنى که دوئ دا تدبير اختيار کړي چه عذاب کله راشي نو دوئ به ايمان راوړي ﴿ءَآلۡـَٰٔنَ﴾ دلته (يقال لهم) مقدر دې يعنى ملائك به ورته اووايي چه آيا تاسو اوس ايمان راوړئ؟ او تر اوسه پورې خو تاسو عذاب زر غوختلو ، ﴿ثُمَّ قِيلَ لِلَّذِينَ ظَلَمُواْ﴾ دا تخويف اخروى دې ﴿وَيَسۡتَنۢبِـُٔونَكَ﴾ دا شکوه ده يعنى که دوئ ستا نه تپوس اوکړي چه آيا دا عذاب حق دې ،او ريشتيا دې ﴿قُلۡ إِي﴾ دا جواب دې د شکوى ، (اى) حرف ايجاب دې يعنى (هاؤ) حق دې او د تاکيد دپاره ورسره قسم ذکر کيږي ﴿وَرَبِّيٓ﴾ څما دې په خپل رب قسم وى چه حق دې ﴿بِمُعۡجِزِينَ﴾ بچ کونکې د عذاب نه خپل ځان لره.

| وَلَوۡ أَنَّ لِكُلِّ نَفۡسٖ ظَلَمَتۡ مَا فِي ٱلۡأَرۡضِ لَٱفۡتَدَتۡ |
|---|
| اوکه شى لپاره دهغه نفس [١] چه ظلم (شرك) ئ کړيدې هر هغه څه چه په زمکه کښې دى خامخا به دې په خپله فديه کښې ورکړى |

---

١ . تخويف اخروى

| بِهٖ ۚ وَاَسَرُّوا النَّدَامَةَ لَمَّا رَاَوُا الْعَذَابَ ۚ وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ |
|---|
| هغه ، او پټ به زړه کښې به ولرې دوئ پښیماني کله چه دوئ وه ویني عذاب، او فیصله به وکړې شي په مینځ د دوئ کښې |
| بِالْقِسْطِ وَ هُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۵۴﴾ |
| په انصاف سره او په دوئ به هیڅ ظلم نشي کیدې |

﴿وَلَوْ أَنَّ لِكُلِّ نَفْسٍ﴾ دا تخویف اخروی دې او د ظلم نه مراد کفر او شرك دې .مشرك به د قیامت په ورځ دا تمنی کوی چه که د دنیا دا ټول دولتونه .مال جواهر . ځما سره شی نو دا ټول به ځه په فدیه کښې ورکړم خو چه د عذاب نه خلاص شم ، لیکن داسې نشی کیدې ﴿وَأَسَرُّوا النَّدَامَةَ﴾ مشرك چه د قیامت عذاب اووینی نو په خپل شرك او بدواعمالو به ډیر نادم شی (اسروا) په معنی د اخفاء سره هم راځی اوپه معنی د اظهار سره هم راځی دلته دواړه اراده کولې شی ، مشرك به اول خپل ندامت پټ ساتی د پیغورنه د بچ کیدو دپاره لیکن بیا به بی اختیاره شی نو د ندامت اظهار به اوکړی ، چغې به کړی ، (یحسرتٰی علي ما فرطت من جنب الله) او (یاویلنا قد کنا في غفلة من هذا)، او مراد د پټولو او ظاهرولو د ندامت نه پټول او ظاهرول د آثارو د ندامت دی لکه ژړا ، فریاد ، خپل لاسونه چیچل وغیره ، ځکه چه ندامت په خپله د باطنی امورو نه دې نو هغه خو همیشه پټ دی، اود ﴿وَأَسَرُّوا﴾ دریمه معنی هم کړې شوې ده ، یعنی اخلاص یعنی دوئ به په اخلاص سره ندامت اوکړی په کفر او معصیت باندې .لیکن په دې وخت کښې ندامت نفع نه ورکوی .

| اَلَآ اِنَّ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ اَلَآ اِنَّ |
|---|
| خبردار ! [1] بیشکه خاص الله تعالی لره دې اختیار دهغه څه چه په اسمانونو کښې دی او په زمکه کښې دی ، خبردار ! بیشکه |
| وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۵۵﴾ هُوَ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ |
| وعده د الله تعالی ریشتیا ده لیکن اکثر دخلقو نه، نه پوهیږی . خاص الله تعالی ژوندی کول کوی اومړه کول کوی |

[1] - شپږم دلیل عقلی په توحید .

وَإِلَيۡهِ تُرۡجَعُونَ ۝ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ قَدۡ جَآءَتۡكُم مَّوۡعِظَةٞ مِّن رَّبِّكُمۡ

او خاص هغه ته به ورگرځولې شئ تاسو اې خلقو ! په تحقيق سره راغلې دې تاسو ته نصيحت[1] د طرف د رب ستاسو نه

وَشِفَآءٞ لِّمَا فِي ٱلصُّدُورِ وَهُدٗى وَرَحۡمَةٞ لِّلۡمُؤۡمِنِينَ ۝ قُلۡ بِفَضۡلِ ٱللَّهِ

اوشفاء، دهغه مرضونوچه په سينوكښ دى، اوهدايت او رحمت لپاره د مؤمنانو. ووايه په فضل د الله تعالى

وَبِرَحۡمَتِهِۦ فَبِذَٰلِكَ فَلۡيَفۡرَحُواْ هُوَ خَيۡرٞ مِّمَّا يَجۡمَعُونَ ۝

او په رحمت د هغه سره پس پدې دې خوشحاله شي خلق، دا ډير غوره دې د هغه مال نه چه جمع كوى ئ دوئ

﴿ أَلَآ إِنَّ لِلَّهِ ﴾ دا شپږم عقلي دليل دې په توحيد باندې ،يعنى د زمكې او د اسمان دهر څيز تصرف او اختيار د الله ﷻ په قدرت كښ دې ﴿ هُوَ يُحۡيِۦ وَيُمِيتُ ﴾ او داسې قادر، متصرف دې چه مرگ او ژوندد ده په قبضه كښ دې ﴿أَلَآ إِنَّ وَعۡدَ ٱللَّهِ ﴾ هر كله چه مالك او مختار دې ،نو په خپله وعده پوره كولو هم قادر دې، ﴿ هُوَ يُحۡيِۦ ﴾ حيوة هغه دركړې دې او بيا به موت راولى او خپل ځان ته به تاسو راؤبلى ، اومومنانو ته به نيكه بدله وركړى ،او منكرينو ته به سزا وركړى .﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ﴾ دا ترغيب دې اتباع د قرآن ته څكه اتباع د قرآن ذريعه د نجات ده د عذاب دائمى نه ، دلته د قرآن څلور صفات ذكرشوى دى : (۱) موعظة من ربكم ، (۲) شفاء لما فى الصدور ،(۳) وهدي ،(۴) ورحمة ، صاحب د روح المعانى د بعض محققينو نه نقل كړې دى چه په دې آيت كښ مراتبو د كمال د نفس انسانى ته اشاره ده ، نو څوك چه تمسك بالقرآن اوكړى نو په دغه تمامو مراتبو به فائز شى : **اول** : خپل ظاهر د نالائقه افعالو نه پاكول، دې ته اشاره ده په لفظ د ﴿مَّوۡعِظَةٞ ﴾ سره ،څكه چه وعظ زجر عن المعاصى ته وائى ، **دويم** باطن د عقائدو فاسدؤ او ملكاتو ردى نه پاكول ، دې ته اشاره ده په ﴿ وَشِفَآءٞ لِّمَا فِي ٱلصُّدُورِ ﴾ سره ، اودې دواړو مرتبو ته تخلى ويلې شي ، **دريم** : نفس خائسته كول په عقايدو حقو سره ،او په اخلاقو فاضلو سره ،او دې ته اشاره ده په ﴿وَهُدٗى ﴾ سره ، څكه بغير د ﴿وَهُدٗى ﴾ نه نفس نه

---

۱ - ترغيب الى القرآن.

خائسته كيږي ، **خلورم** د ظاهر او د باطن د درست كولو نه بعد په انوارو الهيو باندې فائز كيدل او د انواراتو او تجلياتو الهيو مستحق گرزيدل او دې ته اشاره ده په لفظ د ﴿وَرَحْمَةٌ﴾ سره ،او دې دوارو مراتبو ته تحلي ويلې شي ،او امام رازي رحمه الله وائي چه په دې كښې اشاره ده شريعت ،طريقت ،حقيقت ،نبوت ،خلافت ته ،څكه ﴿مَّوْعِظَةٌ﴾ اشاره ده تطهير د ظاهر ته او دا شريعت دې او ﴿وَشِفَآءٌ﴾ اشاره ده تطهير د ارواحو ته .د عقائدو فاسدو اخلاقو ذميمو نه او دا طريقت دې او ﴿وَهُدًى﴾ اشاره ده ظهور دحق ته په قلوبو د صديقينو كښې ،او دا حقيقت دې او ﴿وَرَحْمَةٌ﴾ اشاره ده رسيدلو د كمال اواشراق ته، حتى چه غير لره كامل كړي .او دا نبوت او خلافت دې

﴿بِفَضْلِ ٱللَّهِ وَبِرَحْمَتِهِۦ﴾ مجاهد او قتاده وائي (۱) چه د فضل نه مراد قرآن دې او د «رَحْمَةٌ» نه مراد دادې چه مونږئې اهل د قرآن اوگرځولو (۲) او د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه فضل د الله ﷻ اسلام دې او رحمة دالله ﷻ قرآن دې (۳) او بعض وائي چه فضل قرآن دې او رحمت سنت دې (۴) او چاويلي دی چه فضل اسلام دې او رحمة جنت دې ،او نشته دې منافات په دې اقوالو كښې، اودا جارمجرور متعلق دی د محذوف سره (اي ليفرحوا بفضل الله وبرحمته) ،او بيا جار مجرور مقدم شو دپاره دَ دلالت په حصر او اختصاص باندې ،او په ﴿فَلْيَفْرَحُوا۟﴾ باندې فاء جزائيه داخله شوه دپاره د دې چه په معنى د سببيت باندې دلالت اوكړي ، نو (بفضل الله وبرحمته فليفرحوا) ترې نه جوړ شو ، بيا په درميان كښې ﴿فَبِذَٰلِكَ﴾ راوړې شو ،د تاكيد دپاره او فاء په (فليفرحوا) كښې په قول د بعضو باندې زائده ده ،او بعض وائي چه ﴿فَبِذَٰلِكَ﴾ كښې فاء زائده ده ليكن راجحه داده چه يوه فاء هم زائده نه ده .بلكه فاء جزائيه ده او په كلام كښې تكرار دې د پاره د تاكيد ، نو اصل طويل عبارت داسې شو (ان فرحوا بشئ فبذالك ليفرحوا ،فليفرحوا بذالك) نو د (فبذلك) دپاره جارمجرور عامل محذوف دې ،او د (ليفرحوا) دپاره معمول يعنى جار مجرور محذوف دې او (ذالك) اشاره ده مجموعې دَ فضل او رحمة ته. يعنى د خوشحاله كيدلو شئ صرف او صرف قران، سنت او جنت دې ،اللهم اجعلنا فرحين بفضلك ورحمتك يا ارحم الراحمين. ﴿مِّمَّا يَجْمَعُونَ﴾ نه مراد د دنيا هر رنگه مالونه ،عزتونه او ډگرئ دی

| قُلْ اَرَءَيْتُمْ مَّآ اَنْزَلَ اللّٰهُ لَكُمْ مِّنْ رِّزْقٍ فَجَعَلْتُمْ |
|---|
| وه وايه ته آيا فكر كړيدې تاسو[1] چه هغه څه چه پيداكړيدى الله تعالى ستاسودپاره څه رزق پس تاسوګرزوئ |
| مِّنْهُ حَرَامًا وَّحَلٰلًا ؕ قُلْ آٰللّٰهُ اَذِنَ لَكُمْ اَمْ عَلَى اللّٰهِ تَفْتَرُوْنَ ۞ |
| بعضى دهغې نه حرام او بعضى حلال وه وايه ته ! آيا الله تعالى اجازت كړيدې تاسوته يا په الله دروغ جوړوئ تاسو. |
| وَمَا ظَنُّ الَّذِيْنَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ |
| اوڅه ګمان دې[2] دهغه كسانو چه جوړوى په الله تعالى باندې دروغ، (چه څه به وكړې شى د دوئ سره) په ورځ د قيامت |
| اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُوْنَ ۞ |
| ، بيشكه الله تعالى خاوند د فضل دې په خلقو، ليكن ډير خلق شكر نه كوى. |

﴿ قُلْ اَرَءَيْتُمْ مَّآ اَنْزَلَ اللّٰهُ ﴾ دا په توحيد باندې اووم دليل عقلى دې ، يعنى هر كله چه ثابته شوه چه د زمكې او د آسمان د هرڅه مالك صرف الله دې نو اوايئ چه تاسو په خپلې مرضئ سره د هر څه تحريم او تحليل ولې كوئ ، آيا الله ﷻ تاسو ته اجازت دركړې دې ، يا دا خپل فعل الله ﷻ ته منسوب كوئ ،او په الله ﷻ باندې افتراء كوئ ، مشركانو به په بعض اوقاتو كښې خپل مشركانه كارونه الله ﷻ ته منسوب كول ،اوويل به ئ (ان الله امرنا به)،﴿مَّآ اَنْزَلَ اللّٰهُ﴾ نه مراد پيدا كول دى او تعبير په (انزل) سره ځكه اوشو چه د بركاتو نزول اسمان ته منسوب كولې شى، او د رزق نه مراد فصلونه ،څاروى ،غله وغيره دى ، مشركانو به كله د خپلو معبودانو خوشحاله كولو دپاره فصلونه غلې مقرر كولې ، او كله به ئ حيوانات ، بحيره سائبه مقرر كول ،او د دې خوراك به ئ حرام ګڼړلو ، دا تحريمات د غيرالله دى ﴿ وَمَا ظَنُّ الَّذِيْنَ ﴾ دا تخويف دې ﴿يَوْمَ الْقِيٰمَةِ﴾ د ظَنُّ دپاره مفعول فيه دې يعنى د قيامت په باره كښې د افتراء كونكو څه خيال دې ، آيا د دوئ مواخذه به نه كيږى؟.

---

۱ - اووم دليل عقلى په توحيد.

۲ - تخويف.

| وَمَا تَكُونُ فِي شَأْنٍ وَمَا تَتْلُوا مِنْهُ مِنْ قُرْآنٍ وَلَا تَعْمَلُونَ مِنْ عَمَلٍ |
|---|
| اونه یې ته په یو حال کښې [1] او نه لولې ته د الله تعالی د طرف نه څه قرآن. اونه کوئ تاسو څه کارونه |
| إِلَّا كُنَّا عَلَيْكُمْ شُهُودًا إِذْ تُفِيضُونَ فِيهِ ۚ وَمَا يَعْزُبُ |
| مګر یو مونږ په تاسو باندې حاضر ناظر، کله چه تاسو ورننوځئ (شروع کوئ) په هغې کښې اونه شي پټیدې |
| عَنْ رَّبِّكَ مِنْ مِّثْقَالِ ذَرَّةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ وَلَا أَصْغَرَ مِنْ ذَٰلِكَ وَلَا أَكْبَرَ |
| د رب ستا نه په مقدار د زرې، په زمکه کښې اونه په آسمان کښې، اونه ډیر وړوکې دې دینه او نه لوئ |
| إِلَّا فِي كِتَابٍ مُّبِينٍ ﴿٦١﴾ |
| مګر په کتاب ښکاره کښې دی. |

﴿وَمَا تَكُونُ فِي شَأْنٍ﴾ او دا اتم دلیل عقلی دې په توحید باندې دپاره د نفی د شرک فی العلم او (شان) هغه کار او عمل ته ویلې شي چه معتنی بهٖ او مهتم وی ﴿وَمَا تَتْلُوا مِنْهُ مِنْ قُرْآنٍ﴾ شان عام وو ،او تلاوت د قران خاص او امتیازی علم دې ، نو دا تخصیص بعد التعمیم دې . او ضمیر د ﴿مِنْهُ﴾ ضمیر مبهم دې او ﴿مِنْ قُرْآنٍ﴾ ورله بیان دې ، یاضمیر د منه راجع دې لفظ دَ الله ﷻ ته او من ابتدائیه دې ،او ﴿مِنْ قُرْآنٍ﴾ کښې من تبعیضیه دې ،معنی داشوه چه نه لولې د الله ﷻ د طرف نه بعض قران ﴿وَلَا تَعْمَلُونَ﴾ دا تعمیم بعد التخصیص دې، یعنی ستا او ستا د تلاوت څه خصوصیت نشته ، بلکه تمام مخلوق چه هر قسم عمل کوی ﴿إِذْ تُفِيضُونَ﴾ کله چه تاسو په هغې کښې همه تن مصروف یئ نو الله ﷻ ستاسو دهر فعل نه او په هر وقت او هر مکان کښې باخبر او حاضر اوناظر دې ﴿وَمَا يَعْزُبُ﴾ دا بیا تعمیم بعد التخصیص دې ، یعنی صرف د بندګانو اعمال نه ، بلکه په زمکه او اسمان کښې هره هره ذره او د دې نه کم مقدارهم د الله ﷻ نه پټ نه دې ، بلکه دهغه په علم محیط او کتاب مبین کښې دی (ذره) هغه وړوکی جزء ته ویلې شي چه په نظر نه راځی مګر داچه په ضوء دشمس کښې په محاذات د سوری کښې

[1] ـ اتم دلیل عقلی.

راشی نو هله لیدې شی ﴿ أَصۡغَرَ ﴾ صیغه د اسم تفضیل ده یعنی د ذرې نه ډیر زیات وړوکې.
جزء چه تقسیم نه قبلوی ، (جز لایتجزي).

| |
|---|
| أَلَآ إِنَّ أَوۡلِيَآءَ ٱللَّهِ لَا خَوۡفٌ عَلَيۡهِمۡ وَلَا هُمۡ يَحۡزَنُونَ ۝ ٱلَّذِينَ |
| خبردار بیشکه دوستان د الله تعالی نه به وی هیڅ یره په دوئ باندې اونه به دوئ غمژن کیږی دا هغه کسان دی |
| ءَامَنُواْ وَكَانُواْ يَتَّقُونَ ۝ لَهُمُ ٱلۡبُشۡرَىٰ فِي ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا وَفِي ٱلۡأٓخِرَةِ |
| چه ایمان ئ راوړې دې اوځان ساتی د ګناه نه د دوئ لپاره زیرې دې په ژوند دنیوی کښ او په آخرت کښ |
| لَا تَبۡدِيلَ لِكَلِمَٰتِ ٱللَّهِۚ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ ۝ وَلَا يَحۡزُنكَ قَوۡلُهُمۡۘ |
| نشته بدلیدل کلیمو (وعدو) د الله تعالی لره، هم دا کامیابی لویه ده اوغمژن دې نه کړی تا لره وینا د دوئ |
| إِنَّ ٱلۡعِزَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًاۚ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلۡعَلِيمُ ۝ |
| بیشکه عزت د الله تعالی په اختیار کښ دې ټول، هغه هرڅه اوری او په هرڅه پوهه دې. |

﴿ أَلَآ إِنَّ أَوۡلِيَآءَ ٱللَّهِ ﴾ دا بشارت دې دالله ﷻ دوستانو ته، ابن کثیر او نورو محققینو لیکلی دی چه د دې نه مراد نفی د خوف او د حزن اخروی ده ،او ډیرو مفسرینو په کښ تعمیم کړې دې یعنی مراد نفی د خوف او حزن دنیوی او اخروی دواړه دی ، د اخروی خوف حزن نفی د اولیاء نه خو ظاهره ده، او هرچه نفی دَ دنیوی خوف ، حزن ده نو د دې مطلب یا دا دې چه په دوئ باندې الله ﷻ داسې سخت تکلیف او امتحانات نه راولی چه دوئ ته خوف، حزن لاحق شی. یا دا مطلب دې چه ددوئ زړونه د خپل الله ﷻ محبوب سره لګیدلی دی،نوکه امتحانات تکالیف راشی نو د دوئ توجه ټوله خپل محبوب حقیقی ته وی ،او د هغه په انواراتو او تجلیاتو کښ مستغرق او مست وی. نو د دنیا د هیڅ قسم حالاتو نه متاثرنه وی ،**شعر :**

**نه شادي داد ساماني نه غم آورد نقصاني به پیش همت ماهر چه آمد بود مهماني**

﴿ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ﴾ دا د اولیاءالله نشانی او تعریف بیانول دی، یعنی ولی هغه دې چه دا دوه صفتونه او علامې پکښ موجودې وی : اول ایمان او دویم تقوی یعنی ځان بچ کول دَ معاصیو او بدعاتو نه نو که د چا په عقیده کښ شبهه د شرک وی یا په معاصیو او بدعاتو

کښې مبتلا وی نو هغه ولی نه دې، روح المعانی د دوئ په حق لیکی چه (لیس له منها سوي الدعوي) اوعلامه شربینی لیکی : (فکل من کان باالشرع علیه اعتراض فهو مغرور مخادع ، وفی المظهری لَیْسَتْ علامة الولایة ما زعمت العوام من خرق العادة ولاعلم المغیبات فانها لاتوجب في کثیر من اولیاءالله تعالي وقد یوجد في غیرهم علي سبیل الاستدراج وقد قال الصوفیة الکرامة حیضة الرجال یجب استارها) او ولی ته ولی ځکه ویلې شی چه ولی قرب ته وائی او په ایمان او تقوی سره الله ﷻ ته قرب بلا کیف راځی او په شرکیاتو او معاصیو سره بُعد رازی نه قرب .حضرت مولانا شبیر احمد عثمانی رحمه الله وائی چه د ایمان او د تقوی ډېر مدارج او مراتب دی نو چه کومه درجه ایمان اوتقوی په چا کښې موجوده وی نو په دغه درجه کښې به ولایت ورته هم حاصل وی ، نو هر مؤمن متقی د الله ﷻ ولی دې، لیکن په عرف کښې چه څه رنګه د لګ مال مالك (لکه لس شل روپئ ) ته مالدار نشی ویلې ، اګر که د لغوی معنی په اعتبار سره مالدار دې ،نو دغه شان دلګ ایمان او تقوی خاوند ته په عرف کښې ولی نشی ویلې تر څو پورې چه یوه خاصه ممتازه درجه د تقوی ئ نه وی موندلې ، او په احادیثوکښې د هغوئ څه آثار اوعلامات ذکر شوی دی ، لکه په یو روایت کښې راغلی دی چه اولیاء هغه خلق دی چه د دوئ په لیدلو سره الله ﷻ په یاد راځی او په یو روایت کښې د حضرت عمر رضی الله عنه نه مذکور دی ، (هم قوم تحابوا في الله علي غیر ارحام بینهم ولا اموال یتعاطون) یعنی اولیاء هغه خلق دي چه د یو بل سره محبت صرف دالله ﷻ د وجې نه کوی، بغیر د څه لالچ نه ، امام نووي رحمه الله د امام ابوحنیفه رحمه الله او امام شافعي رحمه الله نه نقل کړی دی (اذا لم تکن العلماء اولیاء الله فلیس لله ولي) یعنی که علماء اولیاء نه وی نو بیا به په مخ د زمکه هیڅ خوك ولی هم نه وی ، جاهلان اولیاء نشی کیدې ﴿لَهُمُ الْبُشْرَىٰ﴾ اولیاءالله ته د بشارت په دنیا کښې مختلف صورتونه دی : (۱) په قرآن او حدیث کښې په ایمان او اعمال صالحو د بشارت ذکر راغلیدې ،(۲) په زنکدن کښې ورته فرشتې بشارت ورکوی ، (وابشرو بالجنة التي کنتم توعدون)، (۳) رویای صالحه، نیك او خائسته رشتینی خوبونه، لکه په حدیث کښې دی (هي الرؤیا صالحه یراها المؤمن او تُرأی له) او په بل روایت کښې دی (ذهبتِ النبوة وبقیت المبشرات) په حدیث د مسلم کښې دی چه یو سړې نیك عملونه کوی او نور خلق ئ تعریفونه په هغې سره کوی (تلك عاجل بشرٰی من الله) اوهرچه بشارت دې په آخرت کښې نو هغه دادې چه په قبر او حشر کښې به ورته فرشتې بشارت

ورکوی د جنت ﴿لَا تَبْدِيلَ﴾ د الله ﷻ په خبرو کښ تبديل نشته ،کومه وعده ئ چه کړې ده نو هغه به خامخه پوره کيږي . ﴿وَلَا يَحْزُنكَ قَوْلُهُمْ﴾ ، داتسلی ده نبی ﷺ ته يعنی د مشرکانو د تکليف رسولونه او د توهين آميز اقوالو نه غمژن کيږه مه ځکه چه ﴿إِنَّ الْعِزَّةَ لِلَّهِ﴾ يعنی عزت او ذلت د الله ﷻ په اختيار کښ دې او هغه ستا د عزت د دنيا او آخرت فيصله کړې ده ، اوهغه هرڅه اووری او په هر څه پوهه دې.

| |
|---|
| أَلَآ إِنَّ لِلَّهِ مَن فِي السَّمٰوٰتِ وَمَن فِي الْأَرْضِ ؕ |
| خبردار ! د الله تعالی په اختيار کښ دی هغه څوك چه په آ سمونو کښ دی او هر هغه څوك چه په زمکه کښ دی |
| وَمَا يَتَّبِعُ الَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ شُرَكَآءَ ؕ |
| او تابعداری نه کوی هغه کسان چه رابلی او عبادت کوی د ماسوی د الله تعالی نه د شرکاؤ (حقيقة) |
| إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ﴿٦٦﴾ |
| تابعداری نه کوی دوئ مگر د گمان، اونه دی دوئ مگر اټکل کارونه کوی (دروغ وائی). |

﴿أَلَآ إِنَّ لِلَّهِ مَن فِي السَّمَوَاتِ﴾ دا نهم دليل عقلی دې يعنی دا ټول انسانان، فرشتې او تمام مخلوق دالله ﷻ مملوك او محکوم دې ، او عاجز بندگان دی او په دوئ کښ هيڅوك هر څه اوريدونکې نشته نو د دې وجې نه د بلنې مستحق نه دی ﴿وَمَا يَتَّبِعُ الَّذِينَ﴾ دا زجر دې (الذين) موصول سره د صلی نه فاعل د (يَتَّبِعُ) دې او (شركاء) مفعول د (يتبع) دې او د (يدعون) مفعول محذوف دې چه (شُرَكَاء) دې مطلب دا شو چه کوم خلق ماسوا د الله ﷻ نه شرکاء بلی او د هغوئ نه مرادونه مقصدونه غواړی نو دوئ په حقيقت کښ د شرکاؤ اتباع نه کوی ، ځکه چه په حقيقت کښ خو شرکاء نشته دی بلکه دوئ په حقيقت کښ د خپل ظن او وهم اتباع کوی په خپل ظن ، تخمين سره ، دالله ﷻ مخلوق د الله شريك گرځوی .او د هغوئ عبادت کوی. او حاجتونه، مرادونه ترينه غواړی ، حالانکه په حقيقت کښ د الله ﷻ دپاره هيڅ څوك شريك نشته ، مشرکان صرف په خپل ځانی اټکل پسې روان دی .

هُوَ الَّذِیْ جَعَلَ لَكُمُ الَّیْلَ لِتَسْكُنُوْا

خاص الله تعالی هغه ذات دې [۱] چه گرځولې ئ ده ستاسو لپاره شپه (تیاره) د دې لپاره چه تاسو آرام وکړئ

فِیْهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ؕ اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰیٰتٍ لِّقَوْمٍ یَّسْمَعُوْنَ ۝ قَالُوا

پهٔ کښ او گرځولې ئ ده ورځ رڼرا ، بیشکه پدې کښ دلائل د توحید دی دپاره دهغه قوم چه څه آوری وائ دوئ

اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ ؕ هُوَ الْغَنِیُّ ؕ لَهٗ

چه نیولې دې [۲] الله تعالی ځان لره څوې ، پاك دې الله تعالی د ولد نه هغه بی حاجته دې خاص هغه لره دی

مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ؕ اِنْ عِنْدَكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍۭ بِهٰذَا ؕ

هر هغه څه چه په آسمانونو کښ دی اوهغه څه چه په زمکه کښ دی، نشته دې تاسو سره هیڅ دلیل پدې خبره باندې.

اَتَقُوْلُوْنَ عَلَی اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ قُلْ اِنَّ الَّذِیْنَ یَفْتَرُوْنَ عَلَی اللّٰهِ

آیا وایئ تاسو په الله تعالی هغه خبره چه نه پوهیږئ په هغې. وه وایه ! بیشکه هغه کسان چه جوړوی په الله تعالی باندې

الْكَذِبَ لَا یُفْلِحُوْنَ ۝ مَتَاعٌ فِی الدُّنْیَا ثُمَّ اِلَیْنَا مَرْجِعُهُمْ

دروغ، نه شی خلاصیدې د عذاب د الله تعالی نه. دوئ لره لږې مزې دی په دنیا کښ ، بیا مونږ ته را گرځیدل د دوئ دی

ثُمَّ نُذِیْقُهُمُ الْعَذَابَ الشَّدِیْدَ بِمَا كَانُوْا یَكْفُرُوْنَ ۝

بیا به وڅکوؤ دوئ ته عذاب سخت په سبب د هغې چه دوئ کفر کولو

﴿ هُوَ الَّذِی جَعَلَ لَكُمُ الَّیْلَ ﴾ دا لسم دلیل عقلی دې په توحید باندې ، د (جعل لکم اللیل) دپاره مفعول ثانی محذوف دې چه مظلمًا دې ،او د ﴿ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ﴾ دپاره علت حذف شوې دې چه (لتبتغوا من فضله) دې دمعطوف علیه په جانب کښ د علت ذکر قرینه ده د پاره د علت معطوف، او په جانب د معطوف کښ دمفعول ثانی ذکر قرینه ده دپاره دَ مفعول ثانی په

۱ ـ لسم دلیل عقلی.

۲ ـ شکوه، اوجواب ئ په پنځه وجوهاتو سره .

معطوف عليه كښ او دا ايجاز ، بلاعت دقران اعجاز دي ﴿ قَالُوا اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا ﴾ دا شکوه ده او تعبير په ﴿ اتَّخَذَ ﴾ سره دلالت کوی په دې چه دوئ خپل معبودانو لره حقيقی ولد نه دي ويلې بلکه پشان د ولد ئ ورته ويلی دی يعنی محبوبان ،او نازولی دی پشان د ولد. نو ځکه ئ دوئ ته شفعاء ويلی دی .او همدارنګه لکه څنګه چه د پلار آثار او صفات په ځوئ کښ وی نو دغسې دالله ﷻ صفات د الوهيت زمونګ په دې معبودانو کښ شته. نو الله ﷻ د دوئ د دې قول رد په پنځه وجوهاتو سره کوی: (١) ﴿سُبْحَانَهُ﴾يعنی الله ﷻ پاك دي د عيب. او دَ اولاد نه ،(٢) ﴿هُوَ الْغَنِيُّ ﴾ ،الله ﷻ غنی دې اولاد ته ئ هيڅ ضرورت نشته دې

(٣) ﴿لَهُ مَا فِي السَّمَوَاتِ ﴾ د ټولو اسمانو اختيار هم هغه سره دې دَ هيڅ کار اختيار ئ چاته نه دې حواله کړې، (۴) ﴿إِنْ عِندَكُم ﴾ ،تاسو سره په دې خپله خبره هيڅ دليل نشته بلکه دا باطله او بې دليله دعوٰى ده، (۵) ﴿أَتَقُولُونَ ﴾ يعنی تاسو الله ﷻ ته داسې خبره منسوب کوئ چه هغه ستاسو په جهالت باندې مبنی ده ، ﴿ قُلْ إِنَّ الَّذِينَ ﴾ دا زجر او تخويف دې يعنی څوك چه داسې بی سنده خبرې الله ﷻ ته منسوب کوی نو هغه به هيڅ کله فلاح نه مومی ، اونه به د عذاب نه بچ شی ﴿ مَتَاعٌ فِي الدُّنْيَا ﴾ يعنی د دنيا کاميابی متاع قليل دې اوپه حقيقت کښ او دالله ﷻ په نزد داکاميابی نه ده ، نو ځکه ئ کفارو ته ورکړې ده : (لوكانت الدنيا عندالله تزن جناح بعوضة ماسقي الكافر منها شربة ماء) .

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ نُوحٍ إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ يَا قَوْمِ إِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكُمْ

او واوروه دوئ ته [١] حال د نوح کله چه ئ وه وئيل خپل قوم ته اې قومه ځما ! که ګران وی په تاسو باندې

مَقَامِي وَتَذْكِيرِي بِآيَاتِ اللَّهِ فَعَلَى اللَّهِ تَوَكَّلْتُ

ودريدل ځما، او نصيحت کول ځما تاسو ته په آياتونو د الله تعالی سره پس په الله تعالی باندې ځما توکل دې

فَأَجْمِعُوا أَمْرَكُمْ وَشُرَكَاءَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُنْ أَمْرُكُمْ عَلَيْكُمْ غُمَّةً

نو پس تاسو ټول کلك کړئ تدبير خپل او راؤبلئ خپل شرکاء ، بيا دې نه وی تدبير ستاسو په تاسو باندې پټ،

---

١ - د تخويف دنيوی اوله تفصيلی نمونه .

| |
|---|
| ثُمَّ اقْضُوٓا اِلَیَّ وَلَا تُنْظِرُوْنِ ﴿۷۱﴾ فَاِنْ تَوَلَّیْتُمْ فَمَا سَاَلْتُكُمْ مِّنْ اَجْرٍ |
| بیا تکلیف راؤرسوئ ما ته او مهلت مه راکوئ ماته . پس که تاسو مخ واړولو ، نو ما ندې غوښتلې ستاسونه څه اُجرت |
| اِنْ اَجْرِیَ اِلَّا عَلَی اللّٰهِ ۙ وَ اُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ ﴿۷۲﴾ فَكَذَّبُوْهُ |
| ندې اجر څما مگر په الله تعالی دې او ماته حکم شوې دې چه یم زه د منونکو نه پس دوئ تکذیب کولو د هغه |
| فَنَجَّیْنٰهُ وَمَنْ مَّعَهٗ فِی الْفُلْكِ وَجَعَلْنٰهُمْ خَلٰٓئِفَ |
| نو بچ کړو مونږ هغه لره اوهغه چا لره چه د ده ملگری وو په کشتئ کښې او وگرځول مونږ دوئ لره جانشین |
| وَ اَغْرَقْنَا الَّذِیْنَ كَذَّبُوْا بِاٰیٰتِنَا ۚ فَانْظُرْ كَیْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنْذَرِیْنَ ﴿۷۳﴾ |
| په زمکه کښې اوغرق کړه مونږ هغه کسان چه دروغ ئ گڼړل زمونږ آیتونه، پس وگوره چه څرنگه شو انجام د یرولو شوؤ |

﴿ وَاتْلُ عَلَیْهِمْ نَبَاَ نُوْحٍ ﴾ دا دتخویف دنیوی اوله تفصیلی نمونه ده،یعنی حال د قوم د نوح ﷺ ته اوگورئ ،کله چه ئ زما دپیغمبر نافرمانی اوکړه او توحید ئ قبول نه کړو نو مونږ هلاك کړل ، نو که تاسو ئ هم نه منئ نوتاسوبه هم هلاك شئ ﴿كَبُرَ ﴾ (ای شق وعظم) ﴿مَّقَامِیْ ﴾ مقام په اصل کښې اسم مکان دې او دا کنایه ده د نفس نه ،یا مصدر میمی دې په معنی د اقامت او لبث سره ، یعنی وخت تیرول ، یاترینه مراد قیام دپاره د دعوت او وعظ دې ،او ﴿وَتَذْكِیْرِیْ ﴾ ورله عطف تفسیر دې اوپه دې کښې اشاره ده چه هغه به دعوت او وعظ په ولاړې سره کولو،او دغه شان روایت دې چه عیسیٰ ﷺ به حوارینو ته وعظ په ولاړه باندې کولو،او دغه شان به نبی ﷺ اکثر وعظ په ولاړه باندې کولو،﴿فَعَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلْتُ ﴾ داجواب د شرط دې ، او دا عبارت دې د عدم مبالات او التفات نه (ای لا ابالی بکم) یعنی زه ستاسو هیڅ پروا نه کومه ، او نه ستاسونه خوف او یره کوم ،یا جواب د شرط محذوف دې ،او دا مذکور په هغې دال دې (ای ففعلو ماشئتم فلا ابالی بکم) یعنی که په تاسو وعظ بد لگی نو چه تاسو څه کوئ نو هغه کوئ ، څما پروانشته ،څکه چې څما توکل په الله ﷻ دې ﴿فَاَجْمِعُوْٓا اَمْرَكُمْ ﴾ داعطف دې په جواب د شرط یا دا جواب د شرط دې ،او مخکښې ﴿فَعَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلْتُ ﴾ داجمله معترضه ده ، په درمیان کښې او اجماع اتفاق دآراء ته وائی یعنی تاسو ټول خپلې رای راجمع کړئ ،

يعنى كلك عزم اوكړئ په هغه امر او كار باندې چه تاسو ئ كوئ ماته د تكليف رارسولو په باره كښ، ﴿وَشُرَكَآءَكُمْ﴾ واو په معنى د مع سره دې ، نودا مفعول معه دې يافعل محذوف دې (اي وادعو شركائكم) يعنى راوغواړئ خپل شركاء ماته د تكليف رارسولو دپاره ﴿غُمَّةً﴾ يعنى تاسو چه ځما د هلاك او ايذاء څه تدبير كوئ نوڅرنګند ئى اوكړئ ځكه چه زه خو ستاسو نه څه تيخته نه كوم نو پټ تدبير ته ضرورت نشته ، او دارنګه ښكاره تدبير د پټ تدبير نه زر كاميابيږي ﴿ثُمَّ اقْضُوا إِلَيَّ﴾ يعنى بيا ماته تكليف راؤرسوئ قضا په اصل كښ دَين (قرض) وركولوته وائى ، نو څه رنګه چه قرض وركول ضرورى وى نو دغه رنګ په تاسو دې ضرورى وى چه ماته ضرر راؤرسوئ، نودلته استعاره مكنيه او تخييليه ده ﴿فَإِن تَوَلَّيْتُمْ﴾ يعنى كه تاسو ځما د نصيحت قبلولو نه مخ اړوئ نو ځما هم څه پرواه نشته ،ځكه چه زه ستاسو نه څه اجرت او تنخوا نه غواړم، د حق د بيانولو دپاره مانع او ركاوټ دوه خبرې دى يو يره او دويمه طمع ، نو حضرت نوح ﷺ د دواړو نفى اوكړه. ﴿فَكَذَّبُوهُ﴾ ماضى د استمرار د پاره ده ، يعنى دوئ په تكذيب باندې مستمر وو، نو دالله ﷻ د طرف نه پرې طوفان راغې ، او ټول نافرمان خلق ئى هلاك شول،او نوح ﷺ ته الله ﷻ نجات وركړو﴿خَلَٰٓئِفَ﴾ يعنى صرف د نوح ﷺ اولاد په زمكه كښ آباد شو ،او د دې وجې نه نوح ﷺ ته آدم ثانى ويلې شى .

| ثُمَّ بَعَثْنَا مِنۢ بَعْدِهِۦ رُسُلًا إِلَىٰ قَوْمِهِمْ فَجَآءُوهُم بِٱلْبَيِّنَٰتِ |
|---|
| بيا ليګلى وؤ مونږ [1] روستو دهغه نه ډير رسولان قومونو دهغوئ ته پس راوړل هغوئ دوئ ته ښكاره دليلونه، |
| فَمَا كَانُوا۟ لِيُؤْمِنُوا۟ بِمَا كَذَّبُوا۟ بِهِۦ مِن قَبْلُ ۚ كَذَٰلِكَ نَطْبَعُ |
| پس نه وؤ هغوئ چه ايمان ئ راوړې وې په هغه خبره چه اول ئ ورته د دروغو نسبت كړې وؤ ، دغه شان مونږ مهر لګوؤ |
| عَلَىٰ قُلُوبِ ٱلْمُعْتَدِينَ ۝ ثُمَّ بَعَثْنَا مِنۢ بَعْدِهِم مُّوسَىٰ وَهَٰرُونَ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ |
| په زړونو د تجاوز كونكو باندې بيا وليګل مونږ روستو د دوئ نه [2] موسى اوهارون ، فرعون ته |

۱ - د تخويف دنيوى اجمالى نمونه.

۲ - د تخويف دنيوى دويمه تفصيلى نمونه

وَمَلَإِيْهٖ بِاٰيٰتِنَا فَاسْتَكْبَرُوْا وَكَانُوْا قَوْمًا مُّجْرِمِيْنَ ۝ فَلَمَّا جَآءَهُمُ

او غټانو د قوم د هغه ته په معجزاتو زمونږ سره پس لوئی وکړه هغوئ او وو دوئ قوم مجرمان. پس هرکله چه راغي دوئ ته

الْحَقُّ مِنْ عِنْدِنَا قَالُوْٓا اِنَّ هٰذَا لَسِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۝ قَالَ مُوْسٰٓى اَتَقُوْلُوْنَ لِلْحَقِّ

حق د طرف زمونږ نه وه وئيل دوئ يقينًا دا جادو ښکاره دې. وه ويل موسى ايا وايئ تاسو په باره د حق کښ

لَمَّا جَآءَكُمْ ؕ اَسِحْرٌ هٰذَا ؕ وَلَا يُفْلِحُ السّٰحِرُوْنَ ۝ قَالُوْٓا اَجِئْتَنَا

هرکله چه راغې تاسو ته، آيا جادو دې دا، اونه شی کاميدلې ساحران وه ويل دوئ آيا ته راغلې ئې مونږ ته

لِتَلْفِتَنَا عَمَّا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا وَتَكُوْنَ لَكُمَا

د دې لپاره چه ته واړوې مونږ د هغه طريقې نه چه موندلی دی مونږ په هغې باندې مشران خپل او شی دې تاسو دواړو لره

الْكِبْرِيَآءُ فِى الْاَرْضِ ؕ وَمَا نَحْنُ لَكُمَا بِمُؤْمِنِيْنَ ۝ وَقَالَ فِرْعَوْنُ ائْتُوْنِىْ بِكُلِّ سٰحِرٍ عَلِيْمٍ ۝

بادشاهی پدې زمکه کښ، اونه يومونږ تاسو لره منونکی. او وه ويل فرعون چه را ولئ ما ته هر جادوګر ماهر

فَلَمَّا جَآءَ السَّحَرَةُ قَالَ لَهُمْ مُّوْسٰٓى اَلْقُوْا مَآ اَنْتُمْ مُّلْقُوْنَ ۝

پس هرکله چه راغلل ساحران نو وه ويل دوئ ته موسى وغورزوئ هغه شې چه تاسو غورزونکی يئ

فَلَمَّآ اَلْقَوْا قَالَ مُوْسٰى مَا جِئْتُمْ بِهِ ۙ السِّحْرُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

پس هرکله چه دوئ وغورزول وه ويل موسى هغه چه راوړې دې تاسو هغه خو جادو دې، بيشکه الله تعالى به

سَيُبْطِلُهٗ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُصْلِحُ عَمَلَ الْمُفْسِدِيْنَ ۝

زر ختم کړی اثر د دې، بيشکه الله تعالى نه کاميابوی عمل د مفسدانو.

﴿ ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْ بَعْدِهٖ رُسُلًا ﴾ داد تخويف دنيوی اجمالی نمونه ده، يعنی د نوح ﷺ نه بعد الله ﷻ نور انبياء کرام راؤليګل خپلو قومونوته او هغوئ هم ضد شروع کړو، اوتکذيب ئ اوکړو ﴿ بِمَا كَذَّبُوْا بِهٖ مِنْ قَبْلُ ﴾ د دينه مراد د شريعت تمام اصول، فروع دی چه پيغمبر خپل قوم ته راؤړی وو، نودوئ د دغه احکاماتونه اول انکار اوکړو، نو بيا چه به پيغمبر باربار پوه کول

نو دوئ به په انکار باندې کلك وو (بما) کښ باء سببيه ده يعني په سبب د دې چه اول ئ انکار کړې وو ، نو بيا په انکار باندې کلك شو ، يا باء صله د (يؤمنو) ده ، او ضمير د (کذبوا) راجع دې قوم د نوح ﷺ ته يعنى د کوم پيغام چه انکار قوم د نوح ﷺ کړې وونو دغه پيغام د منلو دپاره روستنى خلق هم تيار نه وو ، بلکه تکذيب ئ اوکړو ﴿كَذَٰلِكَ نَطْبَعُ﴾ يعنى د ضد د وجې نه الله ﷻ مهر جباريت لګوى .

﴿ثُمَّ بَعَثْنَا مِنۢ بَعْدِهِم مُّوسَىٰ﴾ دا دويمه تفصيلى نمونه د تخويف ده ﴿بِـَٔايَـٰتِنَا﴾ نه نهه معجزې مراد دى . ﴿قَالَ مُوسَىٰٓ أَتَقُولُونَ لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَكُمْ ۖ أَسِحْرٌ هَـٰذَا﴾ په دې کښ حذف دې (اي اتقولون للحق لما جآءکم هو سحر ،اسحرهذا) يعنې تاسو حق ته وايئ چه دا سحر دې .آيا دا سحر دې ﴿وَلَا يُفْلِحُ ٱلسَّـٰحِرُونَ﴾ يعنى ساحران د نبى په مقابله کښ نه کاميابيږى ، لکه چه د حضرت موسى ﷺ په مقابله کښ ساحران کامياب نشول بلکه سحر ئ ختم شو ، يا دا چه که ساحر د نبوت دعوى اوکړى نو نه کاميابيږى ،ا و امر حارق للعادة موافق د دعوى سره د ده په لاس نه ظاهريږى ،ځکه چه که ظاهر شى نو بيا خو اشتباه او التباس راځى د خلقو په مابين د نبى صادق او ساحر کښ ، نو ددې وجې نه د الله ﷻ عادت کريمه دادې چه د کاذب په لاس امر خارق للعادت چه موافق وى دهغه د دعوې سره نه ښکاره کوى .نو د ريشتينى نبى علامه داده چه د ده په لاس ظهور د معجزاتو رازى ، نو د حضرت موسى ﷺ معجزات د ده د صداقت دليل دې، ﴿قَالُوٓا۟ أَجِئْتَنَا﴾ داد فرعون او د هغه دقوم د غټانو دويم الزام دې ، اول الزام د دوئ دا ووچه ته ساحر ئى ، نوچه موسى ﷺ ورته جواب ورکړو نو دوئ الزام ولګولو چه ته زمونږ د آباؤ. اجدادو نه مخالف ئى او په حکومت باندې قبضه کول غواړې ، ستا د دې تحريك مقصد صرف دادې چه دمصر په بادشاهئ باندې قبضه اوکړې ، يعنى نوم د اسلام او د مذهب اخلې او مطلب دې اقتدار دې ، لکه په دې زمانه کښ خلق د علماؤ په شان کښ هم دغه شان خبرې کوى ﴿وَقَالَ فِرْعَوْنُ﴾ فرعون په موسى ﷺ باندې دا الزام اولګولو چه موسى ﷺ په حکومت باندې قبضه کول غواړى ،او معجزو ته ئ سحر اوويلو،او د ده په مقابله کښ ئ لوئ لوئ جادوګران جمع کړل اواو حکم ئ اوکړو چه د ټول مملکت خلق دې خاضر شى چه اووينى چه (معاذالله) موسى ﷺ جادوګر دې ، ﴿أَلْقُوا۟ مَآ أَنتُم مُّلْقُونَ﴾ سوال واريديږى چه القاء

: سحر خو حرامه ده او بیا خصوصاً د پیغمبر په مقابله کښ، نو موسی علیه السلام د دې امر څنګه اوکړو ، دا خو امر بالباطل دې ، جواب دادې چه دا تخییر د احد الشقین دې .څکه چه دوئ ویلی وو .(اما ان تلقي واما ان نکون نحن الملقین) نو دا الْقُوْ معنی داده چه القو اولاً. ﴿مَا جِئْتُمْ بِهِ السِّحْرُ﴾ ما موصوله ده (جئتم به) ئ صله ده .او موصول سره د صلې نه مبتدا ده او ﴿السِّحْرُ﴾ ورله خبر دې یا (ما) په معنی د (ای شئ) سره مبتدا ده .او ﴿مَا جِئْتُمْ بِهِ﴾ ورله خبر دې او ﴿السِّحْرُ﴾ په حذف د همزه استفهامی سره دې ،(ای ءَالسحر) اودا بدل د (ما) نه دې ﴿سَيُبْطِلُهُ﴾ یعنی اثر به ئ ختم کړی ﴿لَا يُصْلِحُ عَمَلَ الْمُفْسِدِينَ﴾ یعنی عمل د مفسدانو په مقابله د پیغمبر کښ نه کامیابیږی (وفی القرطبی عن ابن عباس رضی الله عنه من اخذ مضجعه ثم تلا هذه الأیه لم یضره کید الساحر ولاتکتب علی مسحور الارفع عنه السحر) . یعنی څوك چه دَ اُوده کیدلو په وخت کښ دا آیت تلاوت کړی نو ده ته به هیڅ سحر ضرر نه ورکوی، اوچه په چا سحر شوې وی ، هغه ته اولیکلې شی نو دَ سحر اثر به ترینه لرې شی .

| |
|---|
| وَيُحِقُّ اللّٰهُ الْحَقَّ بِكَلِمٰتِهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُوْنَ ﴿٨٢﴾ فَمَآ اٰمَنَ لِمُوْسٰى |
| او ښکاره کوی الله تعالی حق لره په خپل حکم سره اګر که بد ګنړی مجرمان پس ایمان را نه وړو په موسی |
| اِلَّا ذُرِّيَّةٌ مِّنْ قَوْمِهٖ عَلٰى خَوْفٍ مِّنْ فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ىِٕهِمْ اَنْ يَّفْتِنَهُمْ ؕ |
| مګر یو څو ځوانانو د قوم د ده نه، سره د یرې نه د فرعون نه او د غټانو د قوم د هغوئ نه. چه سزا به ورکړی دوئ ته |
| وَاِنَّ فِرْعَوْنَ لَعَالٍ فِى الْاَرْضِ ۚ وَاِنَّهٗ لَمِنَ الْمُسْرِفِيْنَ ﴿٨٣﴾ وَقَالَ مُوْسٰى |
| او بیشکه فرعون سرکش وؤ په زمکه کښ او بیشکه دې خامخا د حد نه د تجاوز کونکو نه وؤ . او وه ویل موسی |
| يٰقَوْمِ اِنْ كُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ بِاللّٰهِ فَعَلَيْهِ تَوَكَّلُوْٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّسْلِمِيْنَ ﴿٨٤﴾ |
| چه اې خما قومه ! که یئ تاسو ایمان مو راوړې وی په الله تعالی باندې نو خاص په هغه توکل کوئ که یئ تاسو حکم منونکی |
| فَقَالُوْا عَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلْنَا ۚ رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٨٥﴾ |
| پس وه ویل دوئ خاص په الله تعالی باندې زمونږ توکل دې ، اې ربه زمونږ مه ګرځوه مونږ ځائ د عذاب د قوم ظالمانو لپاره |

وَنَجِّنَا بِرَحْمَتِكَ مِنَ الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۸۶﴾ وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰى وَاَخِيْهِ

اوبچ کړې مونږ په رحمت او فضل خپل سره د قوم کافرانو نه. او وحی وکړه مونږ موسی ته او رور د هغه ته

اَنْ تَبَوَّاٰ لِقَوْمِكُمَا بِمِصْرَ بُيُوْتًا وَّاجْعَلُوْا بُيُوْتَكُمْ قِبْلَةً

چه اُسوئ تاسو دواړه قوم خپل لره په مصر کښې په کورونو کښې، او جوړ کړئ کورونه خپل قبلې ته مخ

وَّ اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ ؕ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۸۷﴾

او پابندی کړئ د مونځ، او زيرې ورکړه مؤمنانو ته (د کاميابئ)

﴿وَيُحِقُّ اللّٰهُ الْحَقَّ﴾ يعنى الله ﷻ حق لره غلبه ورکوی په خپلو وعدو سره ﴿اِلَّا ذُرِّيَّةٌ مِّنْ قَوْمِهٖ﴾ د ابن عباس ؓ نه روايت دې چه (ذرية) په معنى د (قَلِيْلٌ) سره دې چه کمزورې وی، برابره خبره ده چه ماشومان وی يا ځوانان يا بُډاګان وی ، نارينه وی يا زنانه او ضمير راجع دې فرعون ته يعنى لګ کسانو ايمان راوړې وو، د قوم د فرعون نه ، لکه آسيه ؓ ماشطه او مؤمن د آل فرعون يا (ذرية) په معنى د نوجوانانو سره دې ،او ضمير کښې دوه احتماله دی : يو دا چه راجع شی فرعون ته او بل دا چه راجع شی موسی ؑ ته ، يعنى لګ نوجوانانو د بنى اسرائيلو نه ايمان راوړې وو په اول کښې بيا روستو زيات شو، هرکله چه موسی ؑ بني اسرائلو ته دعوت ورکړو نو مشرانو د خوف د وجې نه ايمان نه راوړو ،او ځو ځوانانو ايمان راوړو ، ﴿عَلٰى خَوْفٍ﴾ ای مع خوف من فرعون وملائهم ، ضمير د جمع (۱) يا راجع دې فرعون ته ،او د عظماؤ او کبراؤ دپاره ضمير د جمع ذکر کيدې شی ،اګر که تعظيم ئ نه وی قصد کړې شوې ، (۲) يا دا ضمير راجع دې ،آل د فرعون ته ،او آل يا مقدر دې يا د فرعون نه آل فرعون مراد دې ، لکه ويلې شی ربيعه ،مضر (۳) يا دا ضمير راجع دې (ذرية) ته يا قومِهٖ معنى دا شوه چه دې لګ کسانو چه ايمان راوړې وو، نو سره د خوف د فرعون نه ،او د غټانو د بنى اسرائلو نه ځکه چه غټانو دوئ لره منع کول د ايمان نه د وجې د خوف د فرعون نه يا سره د خوف نه د غټانو د قبطيانو نه ،ځکه چې دې غټانو د فرعون حمايت کولو ﴿اَنْ يَّفْتِنَهُمْ﴾ دا بدل الاشتمال دې ، د ﴿عَلٰى خَوْفٍ مِّنْ فِرْعَوْنَ﴾ نه او د فتنې نه مراد عذاب او بلا ده، يعنى دې لګ کسانو يا نوجوانانو ايمان په داسې حالت کښې راوړې ووچه د فرعون او د غټانو نه يريدل چه مونږ ته به

سزا راکړی ، ځکه چه فرعون ﴿لَعَالٍ﴾ زوررور وو ، په زمکه د مصر کښې ﴿ٱلْمُسْرِفِينَ﴾ او په ظلم کښې ئ د حد نه تجاوز کړې وو ، یعنی بې حده زیات ظالم وو ﴿وَقَالَ مُوسَىٰ يَٰقَوْمِ﴾ موسی ﷺ چه هر کله د دوئ خوف اولیدلو نو د تسلی دپاره ئ ورته اووئیل چه غم ، فکر مه کوئ او په الله ﷻ باندې توکل کوئ ﴿إِن كُنتُم مُّسْلِمِينَ﴾ د دې شرط د پاره جزا مقدره ده (اي فاصبروا واتبعوا) یا د دې شرط دپاره جزا (فتوكلو) دې ، نو پدې آیت کښې ئ ایمان او اسلام دواړه جمع کړل ، ایمان صفت د زړه دې او اسلام ظاهری اعمال او تابعداری ده ، نو د دې آیت نه معلومه شوه ،چه د ایمان او د اسلام کمال په توکل کولو سره راځی نو بنی اسرائیلو د خپل توکل علی الله اظهار اوکړو او دعاء ئ اوکړه ،﴿رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً﴾ اي موضع فتنة و عذاب ، یعنی د کافرانو د عذاب ځائ مونږ مه ګرځوه ،ځکه چه دوئ مونږ له عذاب راکوی ، بیا نور خلق په فتنه کښې واقع کیږي ، او وائی به چه دوئ کچرته په حق وې ، نو دا عذابونه به پری نه راتلل،﴿أَن تَبَوَّءَا لِقَوْمِكُمَا بِمِصْرَ بُيُوتًا﴾ جمهور مفسرین د دې مطلب دا بیانوی ، چه الله ﷻ وحی رالیږله موسی ﷺ ته او هرون ﷺ ته چه ستاسو قوم دې په مصر کښې په خپلو کورونو کښې برقرار اوسیږی ،او د فرعون د خوف د وجې نه دې خپل کورونه، نه پریږدی اوهجرت دې نه کوي (تبوء اتخاذ د مباءت یعنی منزل ته وائی نو ﴿تَبَوَّءَا﴾ په معنی د لزوم او برقرار پاتې کیدلو سره په منزل کښې دې ،او حضرت شاه عبدالقادر ﷫ د دې دا معنی کوی ، چه خپل کورونه د آبادئ د فرعونیانو نه جدا کړئ ، ددې دپاره چه کوم وخت په هغوئ عذاب راشی نو تاسو به بچ یئ ﴿وَٱجْعَلُوا۟ بُيُوتَكُمْ قِبْلَةً﴾ قبله په معنی د مصلی (جائ نماز) سره ده ، دبنی اسرائیلو دپاره مونځ په مسجد کښې کول ضروری وو ، لیکن فرعون دوئ ډیرتنګ کړل ،او مونځ کولوته ئ نه پریخودل ،او جماتونه ئ ورله وران ویجاړ کړل ، نو دوئ ته رخصت ورکړې شو چه مونځونه په کورونو کښې کوئ ، لیکن په کورونو کښې خاص مکان دمونځونو دپاره مقررکړئ ، د امت محمدی خصوصیت دادې چه په مسجد کښې او د کورونو په هره حصه کښې او په هر پاک مکان کښې ئ مونځ جائز او صحیح دې او د مخکنو امتونو دپاره مونځ په مسجد کښې کول لازمی وو ، لیکن بنی اسرائیلوته د عذر په وجه اجازت ورکړې شو چه په کورونو کښې مونځ کوئ ﴿وَأَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ﴾ یعنی په مساجدو کښې حاضری ضروری نه ده لیکن پابندی د مونځ

ضروري ده ،او هر كله چه په مونځ سره مصيبتونه دفع كيږي نو خكه ئ اوفرمائل چه ﴿وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ يعني زيرې وركړه مومنانو ته چه عنقريب به مصيبتونه ختم شي . نو په ﴿وَأَقِيْمُوا الصَّلَوٰةَ﴾ كښې ئ تدبير د نجات اوخودو ،او په (بشر)كښې ئ وعده د نجات اوكړه

وَقَالَ مُوْسٰى رَبَّنَآ إِنَّكَ اٰتَيْتَ فِرْعَوْنَ وَمَلَأَهٗ زِيْنَةً وَّأَمْوَالًا

او وه ويل موسى اې ربه زمونږ ! بيشكه تا وركړيدې دې فرعون ته او غټانو د قوم دهغه ته ښائست او مالونه

فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ رَبَّنَا لِيُضِلُّوْا عَنْ سَبِيْلِكَ ۚ رَبَّنَا اطْمِسْ

په ژوند د دنيا كښې ، اې ربه زمونږ ! انجام ئ دا شو چه واړوى خلق ستا د لارې نه . اې ربه زمونږ هلاكت راولې

عَلٰٓى أَمْوَالِهِمْ وَاشْدُدْ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوْا حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ الْأَلِيْمَ ﴿۸۸﴾

په مالونو د دوئ او سختى راولې په زړونو د دوئ چه پس دوئ ايمان رانه وړى تر دې پورې چه وه وينى عذاب دردناك

قَالَ قَدْ أُجِيْبَتْ دَّعْوَتُكُمَا فَاسْتَقِيْمَا

وفرمايل الله تعالى چه په تحقيق سره قبوله شوه دعا ستاسو دواړو پس كلك شئ په خپله طريقه (تبليغ)

وَلَا تَتَّبِعٰٓنِّ سَبِيْلَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۸۹﴾

او تابعدارى مه كوئ د لارې دهغه كسانو چه نه پوهيږى .

﴿وَقَالَ مُوْسٰى﴾ موسى عليه السلام فرعونيانو ته بددعا كول شروع كړل ،چه يا الله تاخو دوئ ته موجب د زينت لباس، سورلئ، عمده مكانات او مالونه وركړى دى ، ليكن دوئ د دې څه شكريه ادا نه كړه بلكه دوئ په خپله هم گمراه دى ، او نور خلق هم د حق نه اړوى په ﴿لِيُضِلُّوْا﴾ كښې لام د عاقبت دې ﴿رَبَّنَا اطْمِسْ﴾ يا ربه ! د دوئ مالونه، روپئ اشرفئ او فصلونه هلاك او بيكاره كړې . نو په بعضو رواياتو كښې دى چه د دوئ څيزونه كانړى گتې شول ،﴿وَاشْدُدْ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ﴾ او يا ربه ! د دوئ زړونه سخت كړې چه ايمان رانه وړى ﴿فَلَا يُؤْمِنُوْا﴾ داعطف يا په (ليضلوا) دې او مقصود اظهار د حسرت دې ، يعنى يا الله دوئ خو ايمان نه راوړى ترڅو چه عذاب اونه وينى ، يا دا جواب امر دې چه (واشدد) دې ، يعنى يا ربه ! د دوئ زړونه داسې سخت كړې چه ايمان رانه وړى ، **سوال** وارديږي چه موسى عليه السلام مبعوث وود هدايت دپاره نو

بيا څه رنګه سوال کوي چه يا الله د دوئ زړونه سخت کړې چه ايمان رانه وړي . **جواب** (١) حضرت موسى عليه السلام ته د تجربې نه او دا رنګه په وحى سره معلومه شوې وه .چه دوئ ازلى بدبختان دي .او هدايت ئې په قسمت کښې نشته . نوځکه ئې دغه بد دعا اوکړه . لکه د ابليس په باره کښې (لعنة الله) او د ابوجهل په باره کښې (لعنة الله عليه) ويلې شي. جواب (٢) . حضرت شاه عبدالقادر رحمه الله وائي چه د دوئ نه د ريشتينى ايمان راوړلو توقوع نه وه ليکن چه کله به آفت راغې ، نو دوئ به وې چه مونږ ايمان راوړو ، نو چه عذاب اوآفت به دفع شو نو بيا به ئې سرکشي کوله ، نو دا دعا دې دپاره وه چه دوئ دا لساني ايمان هم را نه وړي . او فيصله کن عذاب پرې راشي ﴿دَّعْوَتُكُمَا﴾ تثنيه ځکه راغله چه موسى عليه السلام دعا کوله او هرون عليه السلام امين ويل نو دې هم داعى شو ، ﴿فَاسْتَقِيمَا﴾ يعنى په عمل دعوت او تبليغ باندې قائم شئ او دا خيال مه کوئ چه د فرعونيانو فيصله خو شوې ده نو دعوت ورته څه فائده نه رسوى . لهذا دعوت او تبليغ نه چُهټى شوه ﴿وَلَا تَتَّبِعَانِّ﴾ دا عطف دې په (فاستقيما) باندې او دا صيغه د نهى ده يعنى دهغه خلقو په لاره مه ځئ چه هغوئ نه پوهيږي .او استعجال جلتى کوي په قبوليت د دعا کښې ځکه چه کله دعا قبوله شوې وي ليکن اثر ئې روستو ظاهريږي . ابن جريج ويلى دي چه فرعون د دې نه روستو څلويښت کاله تير کړي وو.يعنى د څلويښت کالونه روستود دعا اثر ښکاره شو.

| وَجٰوَزْنَا بِبَنِىٓ اِسْرَآءِيْلَ الْبَحْرَ فَاَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ وَجُنُوْدُهٗ بَغْيًا وَّعَدْوًا ؕ |
|---|
| او پورې ويستل مونږ بنى اسرائيل د درياب نه پس وروسې روان شو فرعون او لښکر د هغه په ظلم او زياتى سره |
| حَتّٰىٓ اِذَآ اَدْرَكَهُ الْغَرَقُ ۙ قَالَ اٰمَنْتُ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ |
| ترهغې پورې چه کله را ګير کړو ده لره غرقيدلو نو وې ويل چه ما ايمان راوړو پدې خبره چه نشته دې حقدار د عبادت |
| اِلَّا الَّذِىٓ اٰمَنَتْ بِهٖ بَنُوْٓا اِسْرَآءِيْلَ وَاَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ۞ |
| مګر هغه ذات دې چه ايمان راوړې دې په هغه باندې بنى اسرائيلو. او زه يم د فرمان بردارو نه. |
| آٰلْـٰٔنَ وَقَدْ عَصَيْتَ قَبْلُ وَكُنْتَ مِنَ الْمُفْسِدِيْنَ ۞ |
| (وه ويلې شو چه) آيا اوس ايمان راوړې او حال دا چه نافرمان وې ته مخکښې د دينه او وې ته د فساد کونکو نه. |

فَالْيَوْمَ نُنَجِّيْكَ بِبَدَنِكَ لِتَكُوْنَ لِمَنْ خَلْفَكَ اٰيَةً ۭ وَ اِنَّ

پس نن پورته راغورزوم بدن ستا، د دې لپاره چه شې ته د روستو خلقو لپاره ننبه د عبرت، او بيشكه

كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ عَنْ اٰيٰتِنَا لَغٰفِلُوْنَ ۝

ډير د خلقو نه زمونږ د آيتونو نه غافل دي.

﴿ وَجٰوَزْنَا بِبَنِيْٓ اِسْرَاۗءِيْلَ الْبَحْرَ ﴾ دا د بني اسرائيلو د نجات او د فرعون د هلاكت ذكر دې، موسى ﷺ چه دبني اسرائيلو سره د مصر نه روان شو نوفرعون خبر شو، نودې هم د خپلو لښكرو سره هلته اورسيدو، نو بني اسرائيل ډير پريشان شول، موسى ﷺ دوئ ته تسلي وركوله او د الله ﷻ په حكم باندې ئ درياب په عصا باندې اووهلو ،نو دولس خشكې لارې په كښ جوړې شوې ،او بني اسرائيل پورې وتل چه فرعونيانو دا وچې لارې اوليدلې ، نودوئ هم د خپلو سورلو سره داخل شول، نو چه د درياب مينځ ته اورسيدل نو الله ﷻ اوبو ته حكم اوكړو چه جاري شئ ، پس فرعون د خپل لښكر سره غرق شو﴿ بَغْيًا وَّعَدْوًا ﴾ بغي ظلم ته وائ، او عدواً زياتي ته وائ او دا دواړه منصوب بنا بر حاليت دي په تاويل د اسم فاعل سره ،اي باغين وعادين .

﴿ حَتّٰٓى اِذَآ اَدْرَكَهُ الْغَرَقُ ﴾ أدرَكَ په معني د لحِقَ يا أحاطَ سره دې، د فرعون غرقيدل چه شروع شول نو دې ګبراؤشو ،او دايمان اقرار او اظهار ئ اوكړو، په درې قسمه عبارتونو سره اول ﴿ اٰمَنْتُ ﴾ ، دويم ﴿ لَآ اِلٰهَ اِلَّا الَّذِيْٓ اٰمَنَتْ بِهٖ بَنُوْٓا اِسْرَاۗءِيْلَ ﴾ او دريم ﴿ وَاَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ﴾ ليكن د ده توبه او ايمان قبول نشول او غرق شو، تاريخ د غرقيدوئ لسم د محرم وو، (او ددې آيتونو تفسير په يولسم محرم (۱۴۳۰) ليكلې شوې دې،(وفقنا الله لاتمامه وتقبله الله بفضله العظيم).

**سوال**: واريدېږي چه فرعون درې ځله اظهار د ايمان اوكړو نو په څه سبب سره د ده ايمان قبول نه شو ،**جواب**: علماؤ ډير وجوهات ذكر كړي دي ، په هغې كښ زياته قوي وجه داده چه په وقت د قبض كيدلو د روح كښ او په وخت د معائنې د عذاب كښ او د ليدلو دعالم غيب كښ ايمان راوړل نه قبليږي او توبه نه قبليږي ، ديته ايمان د غرغرې يا ايمان د ياس، يا ايمان د باس ويلې شي، لكه په سورة حٰم مؤمن،(ع۹) كښ دي ،(فلم يك ينفعهم لما راءوا باسنا) ، **دويم جواب** دادې چه د فرعون غرض ايمان راوړل او اقرار د وحدانيت دالله ﷻ نه وؤ ، بلكه

مقصود ئ د موجوده عقوبت لرې کول وؤ ، لکه دا طریقه د ده مخکښې معمول وو، **دریم جواب** دادې چه دلته اګر که د الله ﷻ د وحدانیت د اقرار ذکر راغلیدې لیکن د موسی ﷺ د رسالت اقرار نه دې راغلې ، او دلته د توحید اقرار یواځې کافی نه دې د پاره دایمان ، نو که یو کافر (لااله الاالله) اقرار د زړه نه کوی لیکن چه (محمد الرسول الله) اقرار نه کوی نوهغه مسلمان نه شی کیدې ﴿ ءَآلۡـَٰٔنَ ﴾ استفهام دپاره د توبیخ دې ،او دا ظرف متعلق دې د محذوف مؤخر سره (اي الأن تؤمن) اوقیل دلته مقدردې (ای قیل له) او قائل د دې یا الله دې په واسطه د ملك سره یا میکائیل ﷺ دې یا جبرائیل ﷺ دې ، لکه د حدیث د ترمذی نه معلومیږي چه قائل جبرائیل ﷺ دې ، فرعون چه کله اویل ﴿ءَامَنتُ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱلَّذِيٓ ءَامَنَتۡ بِهِۦ بَنُوٓاْ إِسۡرَٰٓءِيلَ وَأَنَا۠ مِنَ ٱلۡمُسۡلِمِينَ ﴾ نو جبرائیل ﷺ خټه راواخسته او د فرعون په خُله کښې ئ او ویشتله او وې وئیل چه﴿ ءَآلۡـَٰٔنَ ﴾ داد دې دپاره چه دالله ﷻ رحمت ورته راؤنه رسیږی، نو **سوال** واردیږی چه په دغه حال کښې به یا د ده توبه قبلیږي یانه، نوکه نه قبلیږي نو فائده نشته دې په خُله کښې په خټه ویشتلو سره ،اوکه قبلیږي نو ولې ئ منع کوی د توبې نه ، **جواب** دادې چه جبرائیل ﷺ د خپل طرف نه څه کارنه کوی بلکه هرڅه په امر او مشیت دَ الله سره کوی ، د دې آیت او د حدیث واضحه نه معلومه شوه ،چه د فرعون ایمان نه دې قبول ، شیخ عبدالوهاب شعرانی مشهور صوفی او صاحب د کشف دې ، لیکن د ده د بدنام کولو دپاره بعض ملحدینو د ده په کتابونو کښې عبارتونه د خپل طرف نه لګولی دی ،چنانچه د ده په کتاب ، فتوحات ، کښې بعض ملحدینو داسې عبارات درج کړې دې چه ماته په کشف سره معلومه شوې ده چه د فرعون توبه قبوله شوې ده ،اونجات ورته حاصل شوې دې، او حضرت مولانا شبیر احمد عثماني ؒ وائ چه د فتوحات صحیحه او معتمده نسخه ماسره شته په هغې کښې د دې عبارت نوم نشان نشته دې .

﴿ فَٱلۡيَوۡمَ نُنَجِّيكَ بِبَدَنِكَ ﴾ په روایت کښې راغلی دی چه د بنی اسرائلو شك وو په غرقیدلو د فرعون کښې نو الله ﷻ دریاب ته حکم اوکړو نو دریاب دې په یوې چپې سره باهر راؤغرزولو، نو ددوئ شك ختم شو(ننجی) د نجات یا د نجوته ماخوذ دې نو معنی داشوه چه دده بدن ته بغیر د روح نه مونږ نجات ورکړو ، لکه څرنګه چې د ده ایمان بې فائدې شو نو دغه رنګ د ده بغیر د روح نه د بدن نجات هم بې فائدې شو (نجوه) بلند مکان ته وائ نو بیا معنی داشوه چه

ستا بدن مونږ اُوچت مکان ته راؤغرزؤ چه بني اسرائيل دې او ويني، او بله معنى ئ داهم کړې شوي ده چه (نخرجك من البحرعريانا من غير لباس) يعنى ستا بدن د درياب نه بربنډ راؤباسو

| |
|---|
| وَلَقَدْ بَوَّأْنَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ مُبَوَّاَ صِدْقٍ وَّرَزَقْنٰهُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ۚ |
| او په تحقيق سره ځاۍ ورکړې وؤ مونږ بني اسرائيلو ته ځاۍ مزيدار او رزق ورکړې وؤ مونږ دوئ ته د پاکو څيزونو نه |
| فَمَا اخْتَلَفُوْا حَتّٰى جَآءَهُمُ الْعِلْمُ ۭ اِنَّ رَبَّكَ يَقْضِيْ |
| پس اختلاف نه وؤ کړې دوئ په توحيد کښې تر هغې چه راغې دوئ ته علم، بيشکه رب ستا به عملى فيصله وکړي |
| بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ۝ فَاِنْ كُنْتَ فِيْ شَكٍّ |
| په مينځ د دوئ کښې په ورځ د قيامت په هغه څيز کښې چه دوئ په هغې کښې اختلاف کوى. پس که ئ ته په شك کښې |
| مِّمَّآ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ فَسْئَلِ الَّذِيْنَ يَقْرَءُوْنَ الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكَ ۚ |
| د هغه نه چه رالېږلې دې مونږ تا ته پس تپوس وکړه د هغه کسانو نه چه لوستې ئ وى کتاب مخکښې ستا نه (حق پرست علماء) |
| لَقَدْ جَآءَكَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ۝ وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الَّذِيْنَ |
| په تحقيق سره راغليدې تا ته حق د طرف د رب ستا نه، پس مه کيږه ته د شك کونکو نه. او مه کيږه د هغه کسانو نه |
| كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَتَكُوْنَ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ۝ |
| چه دروغ گنړى آياتونه د الله تعالى، کنئ پس شې به ته د تاوانيانو نه |

﴿ وَلَقَدْ بَوَّأْنَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴾ په دې آيت کښې د بني اسرائيلو حال بيانيږى ، روستو د هلاکت د فرعون نه او په دوئ باندې د انعاماتو ذکر او ددوئ د ناشکرئ بيان دې، الله ﷻ په دوئ باندې يو دا انعام اوکړو چه خه خائسته مکان ئ ورته ورکړو ﴿ مُبَوَّاَ صِدْقٍ ﴾ زمکه د مصر او دشام مراد ده . فرعون چه هلاك شو نو په مصر باندې بني اسرائيل قابض شو او بيا ورته الله جل جلاله په عمالقو باندې فتح او غلبه ورکړه ،او په زمکه د شام قابض شو(مبؤا) په معنى د مکان سره دې او صدق په معنى د حسن سره دې ،او دويم انعام پرې الله ﷻ دا اوکړو چه ډير عمده او مزيدار رزق الله ﷻ ورکړو، په مصر کښې باغونه چيني او په شام کښې عمده ميوه

جات وو، ﴿فَمَا اخْتَلَفُوا حَتّٰى جَآءَهُمُ الْعِلْمُ﴾ یعنی بنی اسرائیلو ته الله ﷻ د مادی انعام سره روحانی انعام هم ورکړو چه تورات ئ ورته ورکړو ، په هغې کښې د عقائدو او د اصولو فروعو مکمل بیان وو ، او د نبی آخرالزمان ﷺ دنبوت واضح بیان په کښې وو ، د دې واضح حقائقو د علم نه بعد مناسب داوه چه دوئ اختلاف نه وې کړې ، لیکن دوئ باوجود د علم نه اختلاف اوکړو ، بعضو په حیلو کولو سره داحکاماتو د تورات نه خلاف اوکړو ،او بعضې د فانی دنیا د حصول دپاره پکښې تحریف اوکړو او بعضو د نبی ﷺ تکذیب اوکړو ،حالانکه د نبی آخرالزمان ﷺ د راتلو دمخکښې نه دوئ منتظر وو چه کله به نبی آخر الزمان رازی ﴿إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِي﴾ دا تخویف اخروی دې او د (یقضی) نه مراد عملی فیصله ده ﴿فَإِن كُنتَ فِي شَكٍّ﴾ دا زجردې او په دې آیت کښې متعدد توجیهات دی (۱) دا خطاب نبی ﷺ ته دې لیکن کلمه دا (انّ) دلالت نه کوی په وقوع باندې بلکه په محالاتو باندې هم داخلیږي لکه (ان کان للرحمٰن ولد) او د دې وجې نه د دې آیت د نزول نه بعد نبی ﷺ اوفرمائل چه (لا اشك ولااسئل) نو د دې قسم خطاب مقصد دادې چه مخاطب تصریح اوکړی په جواب حق باندې لکه عیسٰی ؑ ته به الله ﷻ اوفرمائی (اءنت قلت للناس اتخذونی وامی الٰهین من دون الله) او مقصود ددې نه داوو چه عیسٰی ؑ تصریح اوکړی په براءت باندې ،او دا رنګه الله ﷻ به ملائکونه تپوس اوکړي په ورځ د قیامت چه (اهٰولاء ایاکم کانو یعبدون) ،(۲) داخطاب نبی ﷺ ته دې ، لیکن مقصد نورو خلقو ته اورول دی ،یعنی الله ﷻ عامو خلقوته وائی چه که ستاسو شك وی نو د شك د ازالې علاج دا دې چه د اهل حق علماؤنه تپوس اوکړئ ،(۳) شك په معنی د (ضیق) یعني زړه تنګیدو سره دې، یعنی که ستاسو زړه تنګ شی په مخالفت د خلقو سره نو صبر کوه او تپوس اوکړه د مخکنو علماء حق نه چه خبردرکړی تاته په صبر کولو د مخکنو انبیاء کرامو ﴿فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِينَ﴾ دا خطاب دې نبی ﷺ ته او مراد ترینه امت دې ﴿وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الَّذِينَ كَذَّبُوا﴾ شك سبب د تکذیب دې ، او تکذیب سبب د خسارې دې .

| إِنَّ الَّذِينَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٩٦﴾ وَلَوْ جَاءَتْهُمْ |
| --- |
| بیشکه هغه کسان چه ثابته شویده پدوئ باندې فیصله د رب ستا ایمان نه راوړی دوئ اګر که راشی دوئ ته |

| |
|---|
| كُلُّ اٰيَةٍ حَتّٰى يَرَوُا الۡعَذَابَ الۡاَلِيۡمَ ۝ فَلَوۡلَا كَانَتۡ قَرۡيَةٌ اٰمَنَتۡ |
| هر قسم معجزه تر دې چه دوئ وه وينى عذاب دردناك. پس ولې نه وؤ يو اهل د كلي چه ايمان ئ راوړې وې |
| فَنَفَعَهَاۤ اِيۡمَانُهَاۤ اِلَّا قَوۡمَ يُوۡنُسَ ؕ لَمَّاۤ اٰمَنُوۡا كَشَفۡنَا |
| پس نفع به وركړې وې هغوئ ته ايمان دهغوئ مگر قوم د يونس، هركله چه دوئ ايمان راوړو نو لرې كړو مونږ |
| عَنۡهُمۡ عَذَابَ الۡخِزۡيِ فِى الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا وَمَتَّعۡنٰهُمۡ اِلٰى حِيۡنٍ ۝ وَلَوۡ شَآءَ رَبُّكَ |
| د دوئ نه عذاب د رسوايئ په ژوند د دنيا كښې او نفع وركړه مونږ دوئ ته تر يو وخت پورې. او كه غوښتې رب ستا |
| لَاٰمَنَ مَنۡ فِى الۡاَرۡضِ كُلُّهُمۡ جَمِيۡعًا ؕ اَفَاَنۡتَ تُكۡرِهُ النَّاسَ |
| نو خامخا به ايمان راوړې وې هر هغه چا چه په زمكه كښې دى ټولو په جمع سره، آيا پس ته مجبوره كولې شى خلق |
| حَتّٰى يَكُوۡنُوۡا مُؤۡمِنِيۡنَ ۝ |
| د دې لپاره چه شى دوئ مؤمنان. |

﴿ اِنَّ الَّذِيۡنَ حَقَّتۡ عَلَيۡهِمۡ ﴾ دا هم زجر دې اود ﴿ كَلِمَتُ رَبِّكَ ﴾ نه مراد فيصله د الله ﷻ ده چه په بل مقام كښې الله ﷻ فرمائلى دى (لاملئن جهنم من الجنة والناس) ، يعنى د انسانانو د بدو اعمالو په وجه دا خبره په علم الهى كښې ثابته شوې ده چه جهنم به په دوئ سره ډكولې شى ،او دا د دوئ په تقدير كښې ليكلې شوې ده ، نو داسې خلق ايمان نه راوړى اگر كه دوئ ته هرقسم معجزه راشى، خو په دوئ باندې مهر جباريت لګولې شوې دې ﴿ فَلَوۡلَا كَانَتۡ قَرۡيَةٌ ﴾ لولا د تحضيض دپاره دې او په دې كښې معنى د توبيخ ده، يعنى داسې ولې نه ده چه اهل د قرئى په وخت ايمان راوړې وې ،او ايمان ورته نفع وركړې وې ،او د عذاب د دنيا او آخرت نه بچ شوى وې ، فرعون او نورو تباه شوى كافرانو داسې ولې اونه كړل ﴿ اِلَّا قَوۡمَ يُوۡنُسَ ﴾ دا استثناء منقطع ده (الا) په معنى د لكن سره دې او (قوم يونس) ورله اسم دې ،او (لما امنو كشفنا ـــ الآيه) جمله ورله خبر دې ، د فرعون د قصې سره د قوم د يونس ﷺ قصه ذكر كولو كښې دې ته اشاره ده ، چه فرعون بر وقت ايمان نه وو راوړې او قوم د يونس ﷺ بر وقت ايمان راوړې وو، په قوم د يونس ﷺ چه كله عذاب راغې نو توبه ئ اوكړه ، نو توبه ئ قبوله شوه او عذاب دفع شو ،

دلته دا **سوال** دې چه آیا په قوم د یونس ﷺ باندې عذاب راغلی وو.او شروع شوي وو؟ یا دوئ صرف علامات د عذاب لیدلی وو او عذاب پرې راغلی نه وو، طبري او ډیرو مفسرینو ویلی دی چه په دوئ باندې عذاب واقع شوې اوشروع شوې وو، لکه دلالت کوی په دې باندې لفظ د ﴿كَشَفْنَا﴾ او کله چه دوئ توبه اوکړه نو قبوله شوه، او دا قبولیت د توبې د دوئ خصوصیت دې ،ځکه چه ایمان د کافرانو روستو د مشاهدې د عذاب نه ایمان د باس دې .او دا نافع نه دې ،لقوله تعالي (فلم يك ينفعهم ايمانهم لما راؤباسنا) او زجاج ویلی دی چه په دوئ باندې عذاب نه وؤ واقع شوې ځکه چه په دې وقت کښې بیا توبه نفع نه ورکوی لکه دلالت کوی په دې باندې قصه د فرعون بلکه دوئ صرف علامات د عذاب لیدلی وو.او داسې روایات د ابن مسعود ﷺ نه منقول دی ، نو بناء په دې باندې د دوئ قبولیت د توبې د دوئ خصوصیت نه دې بلکه د عام قانون سره موافق دې ، او دا قول زیات قوی او راجح دې (کما حققه القرطبی) او د (کشفنا) معنی داده چه د کوم عذاب علامات ښکاره شوي وو، هغه واپس شو، مودودی په خپل تفسیر تفهیم القرآن سورة صٰفٰت جلد۲ص۳۱۲ اوپه رسائل مسائل ج۳ص۸۳ کښې لیکلی دی چه د هغې خلاصه داده : (۱) چه د قوم یونس نجات او د دوئ د توبې قبولیت د عام قانون الهی نه خلاف دې (۲) او د دې وجه دا معلومیږي چه د قرآن د اشاراتو او د صحیفه یونس د تفصیلاتو نه معلومیږي چه یونس ﷺ په فریضه د رسالت کښې کوتاهی کړې ده (نعوذ بالله) او د خدائ د دستور یوه دفع داده چه یو قوم ته د هغه وخت پورې عذاب نشی ورکړې کیدې چه په هغوئ حجت نه وی تام شوې ، د اتمام حجت نه قبل د الله ﷻ انصاف د دې خبرې گواره نه کوی چه دوئ له عذاب ورکړی (انتهی) ، اهل حق د دې قول رد په ډیر شدت سره کړې دې ،اول دا چې د قوم د یونس ﷺ د توبې قبولیت او ددوئ نه د عذاب دفع کید ل د عام قانون الهی نه خلاف نه وو، لکه په قول د زجاج کښې چې تیر شو، دویم دا چه کومو مفسرینو چه دا خبره کړې وه چه د دوئ نجات د عام قانون نه حلاف وو، نو هغوئ ویلی دی چه دا د قوم یونس خصوصیت ووا وهیچا دا نه دی ویلی چه دا د یونس ﷺ د کوتاهی په وجه وو، دریم دا چه کوتاهی په فریضه د رسالت کښې د نبی دپاره گناه کبیره ده ،او انبیاء ﷺ د دې نه منزه دی الله ﷻ فرمائی : (الذين يبلغون رسالات الله ويخشونه ولايخشون احدا الا الله) ،الاحزاب آیت ۳۹ – (رسالات) صیغه د جمع ده ،او اضافت د جمع د استغراق دپاره وی ، یعنی انبیاء هغه دی چه د الله ﷻ تول رسالات پیغامات رسوی خلقوته ،انبیاء ﷺ د هرقسم

ګناه نه منزه دی ،لکه په دې باند اجماع د امت ده ،او په فريضه د رسالت کښې کوتاهی کول داخو په فرض منصبی کښې خيانت دې ، نه دی مناسب د شان د انبياؤسره.

**د حضرت يونس ﷺ قصه** مفسرينو داسې ليکلې ده چه يونس ﷺ د عراق په مشهور علاقه موصل کښې د نينوا په کلی کښې آباد وو،او دغه علاقې والا په شرک کښې مبتلا وو. يونس ﷺ ورته د ايمان دعوت ورکړو ،ليکن دوي انکار کوو، الله ﷻ يونس ﷺ ته حکم اوکړو چه دې قوم ته خبر ورکړه چه په درې ورځو کښې په دوئ عذاب راتلونکې دې، يونس ﷺ چه دا اعلان اوکړو، نو قوم مشوره اوکړه چه يونس ﷺ دروغ نه دی ويلی ، نو د ده خبره نظر انداز کول نه دی پکار او د دوئ د قوم عادت داووچه په چا به ثابته شوه چه دروغ ئې ويلی دی نو هغه به دوئ قتل کولو، نو قوم دا مشوره اوکړه چه اوګورئ چه که يونس ﷺ خپل کلی علاقې نه بل خوا ته لاړنشی نو بيا به عذاب نه راځی او که بل خوا ته لاړشی نو بيا کيدې شی چه عذاب راشی ، حضرت يونس ﷺ دالله ﷻ په اذن سره د خپلې علاقې نه هجرت اوکړو نو په دريمه ورځ د صبا وخت د عذاب اثر ښکاره شو، او تور لوګې د وريځې پشان د اسمان د طرف نه زمکې ته راروران شو نو قوم پوهه شو چه عذاب الهی راغې نو د يونس ﷺ تلاش ئې شروع کړو چه ايمان پرې راؤړی ليکن يونس ﷺ نه وو، نو دوئ په خپله ډېر اخلاص سره توبه استغفار شروع کړل او د آبادئ نه يو لرې ميدان ته لاړل، نارينه، زنانه، ماشومان حتی چه څاروی ئې هم د ځان سره بوتلل، او په ژړا اوزارئ باندې شروع شول نو الله ﷻ د دوئ توبه قبوله کړه او عذاب ئې ترينه لرې کړو ،او دا ورځ د محرم لسمه وه، يونس ﷺ ته دومره معلومه شوه چه په قوم باندې عذاب نه دې راغلې ليکن د دوئ د ايمان راؤړلو علم ورته نه وو، نو دا خطره ورته راغله چه که زه قوم ته واپس لاړشم نو ماته به دروغژن او وائی، او د دوئ د عادت او قانون مطابق به مې قتل کړی او که قتل مې نه کړی نو بيا به هم دوئ نه ملامت يم ،او کوز سترګې به يم ، نو د دې وجې نه ئ د دغه ځائ نه هجرت شروع کړو او چه د بحيره روم کنارې ته اورسيدلو او کشتئ کښې سور شو ، کله چه کشتئ د درياب مينځ ته اورسيده نو غرقيدلو ته قريبه شوه کشتئ والا اعلان اوکړو چه په دې کشتئ کښې څوك داسې غلام دې چه د آقا د اجازت نه بغير راغلې دې هغه دې خپل ځان ظاهر کړی چه هغه مونږ درياب ته اوغرزوو چه دا نور خلق بچ شی،ګنې نو ټول به غرق شو، حضرت يونس ﷺ اويل چه هغه زه يم ، ما درياب ته اوغرزوئ چه تاسو نور خلق به بچ شئ، نو کشتئ والاخلقو يونس ﷺ پيژندلو نو هغوئ ډير په تعجب کښې شو او دې ته نه وو تيار چه يونس ﷺ درياب ته

اوغرزوی نو دوئ قرعه اندازی اوکړه او ډیر وار ئی اوکړه نو په هر وار د یونس ﷺ نوم راغي نو دریاب ته ئی اوغرزولو ،او یو لوئ ماهی لقمه کړو ، لکه په سورة صفت کښې مذکور دی

د دې تفصیل نه معلومه شوه .چه د حضرت یونس ﷺ اول هجرت باذن الله وو او دویم هجرت ئې په خپل اجتهاد سره کړې وو. نو هجرت اګر که معصیت نه دې بلکه سنت د انبیاؤ دې لیکن هر کله چه په خپل اجتهاد سره وو او د الله ﷻ د طرفه صریحی اذن نه وو نو ځکه ترینه تعبیر په آیت کښې اباق سره شوې دې (اذ ابق الی الفلك) اباق دې ته وائی چه غلام بغیر د اذن د مولی نه لاړ شی او دا معنی ئې نه ده چه په فرض منصبی کښې کوتاهی اوکړی . او د انبیاؤ په معمولی لغزش باندې تنبیه راځی ، قانون د (حسنات الابرار سیئات المقربین) سره ، ددې وجې نه په یونس ﷺ باندې امتحان راغې،او دوئ معافی اوغوختله .او (لااله الا انت سبحانك انی کنت من الظالمین) ، ئې اووئیل ﴿وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ﴾ دا تسلی ده نبی ﷺ ته . یعنی که الله ﷻ .غوختلې چه خلق جبراً مسلمانان کړی نو ټولو خلقو به ایمان راوړې وو. لیکن جبری ایمان د الله ﷻ په بارګاه کښې منظور نه دې نو ځکه جبر نه کوی په چا باندې د ایمان راوړلو ، بلکه خلق ئې خپل اختیارته پریخی دی ﴿أَفَأَنتَ تُكْرِهُ النَّاسَ﴾ یعنی چه الله ﷻ ثوك نه دی مجبور کړی په ایمان راوړلو نو ته ئې هم نشې مجبور کولې په ایمان .

| وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَنْ تُؤْمِنَ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ ۚ وَيَجْعَلُ الرِّجْسَ |
|---|
| اونشی کیدې د هیڅ چا لپاره چه ایمان راوړی مګر په توفیق د الله تعالی سره او اچوی الله تعالی پلیتی |
| عَلَى الَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ ۞ قُلِ انظُرُوا مَاذَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ |
| په هغه کسانو باندې چه عقل نه لری. وه وایه اوګورئ چه څنګه دلیلونه دی د توحید په اسمانونو کښې او په زمکه کښې |
| وَمَا تُغْنِي الْآيَاتُ وَالنُّذُرُ عَن قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُونَ ۞ فَهَلْ يَنتَظِرُونَ |
| او فائده نه ورکوی دلیلونه او یره ورکونکی هغه قوم ته چه ایمان نه راوړی. پس انتظار نکوی دوئ |
| إِلَّا مِثْلَ أَيَّامِ الَّذِينَ خَلَوْا مِن قَبْلِهِمْ ۚ قُلْ فَانتَظِرُوا |
| مګر په شان د واقعاتو ، مصیبتونو د هغه کسانو چه تیر شوی دی مخکښې د دوئ نه، ته وه وایه پس انتظار کوئ تاسو |

إِنِّي مَعَكُم مِّنَ ٱلۡمُنتَظِرِينَ ﴿١٠٢﴾ ثُمَّ نُنَجِّي رُسُلَنَا وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ

بېـــکه زه ستاسو سره د انتظار کونکو نه یم بیا واورئ بچ کړی دی مونږ رسولان خپل او هغه کسان چه ایمان ئې راوړی دی

كَذَٰلِكَۚ حَقًّا عَلَيۡنَا نُنجِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴿١٠٣﴾

دغه شان، وعده مې کړیده وعده حقه په ذمه زمونږ، نجات ورکوو مؤمنانو لره

﴿وَمَا كَانَ لِنَفۡسٍ﴾ یعنی که څوك خپل اختیار سره ایمان راوړی نو هغه هم دالله ﷻ په فضل او توفیق سره وی ﴿وَيَجۡعَلُ ٱلرِّجۡسَ عَلَى ٱلَّذِينَ﴾ یعنی د کفر او دشرك گندگی ده دهغه چا په غاړه کښې الله ﷻ غورزوی چه عقل نه لری، یعنی غور، فکر نه کوی په آیاتونو د الله ﷻ کښې او انابت الی الله نه کوی ، نو داسې خلق اگر که وائی چه مونږ ډیر عاقلان یو خو دوئ لایعقل دی ﴿قُلِ ٱنظُرُواْ﴾ دا دعوت دې منکرینو ته یعنی څوك چه غور نه کوی په آیاتونو د الله ﷻ کښې نو داسې نه ده چه آیت نشته یا کم دې یا مخفی دی ، بلکه په اسمانونو او زمکو کښې د الله ﷻ د توحید او د کمال قدرت ډیر زیات او واضحه دلائل موجود دی : شعر :

ففي كل شئ له آيت تدل علي انه واحد

﴿وَمَا تُغۡنِي ٱلۡأٓيَٰتُ﴾ لیکن کوم خلق چه انابت الی الله نه کوی او په ضد عناد کښې منهمك دی نو هغوئ ته د ډیر واضحه دلائلو او د رسولانو د ډیر فصیح بلیغ موثر دلسوز بیاناتو نه هیڅ فائده نه رسی ، د آیاتونو او د رسولانو د کلام نه فائده هغه چا ته رسی چه هغه د خپل اصلاح نیت اوکړی ،او ضد او تعصب پریږدی ﴿وَمَا تُغۡنِي﴾ کښې یا(ما) نافیه ده ،یا استفهامیه ده ، او استفهام انکاری دې .په معنی د نفی سره ﴿فَهَلۡ يَنتَظِرُونَ﴾ دا تخویف دې ،او (هل) په معنی د نفی سره دی ،او د (ایام) نه مراد هغه واقعات د عذاب دی چه په مخکنو قومونو راغلی وو، یعنې تاسو ترهغه وخته پورې ایمان نه راوړئ ترڅو چه په تاسو باندې د مخکنو قومونو په شانتې عذاب نه وی راغلې، نو پس تاسو د دغه وقت انتظار کوئ ، او مونږ به هم انتظار کوو، لیکن چه عذاب راشی نو الله ﷻ رسولانو او د هغوئ تابعدارانو ته نجات ورکوی ﴿حَقًّا عَلَيۡنَا﴾ دا د الله ﷻ د طرفه ډیره مؤکده وعده ده ،چه مؤمنانو ته د ایمان او اعمال صالحوپه وجه په دنیا او آخرت کښې د عذاب نه نجات ورکوی

، معتزله د وجوب علی الله قائل دی ،او اهل سنت وائی چه په الله ﷻ باندې هیڅ وجوب نشته دې ،او د دې آیت نه دا جواب کوی چه حق دوه قسمه دې. یو حق تفضلی دې . یعنی د وعدې په وجې سره الله ﷻ په خپل ځان مقرر کړې دې،او دویم حق وجوبی استحقاقی دې . دلته د حق نه اول قسم مراد دې.

قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِن كُنتُمْ فِى شَكٍّ مِّن دِينِى فَلَآ أَعْبُدُ ٱلَّذِينَ

ووایه چه ای خلقو ! [1] كه يئ تاسو په شك كښې د دين خما نه پس زه عبادت نه كوم د هغه معبودانو

تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَلَٰكِنْ أَعْبُدُ ٱللَّهَ ٱلَّذِى يَتَوَفَّىٰكُمْ

چه تاسو ئې عبادت کوئ سوی د الله تعالی نه لیکن زه عبادت کوم د الله تعالی هغه الله چه مرگ به راولی په تاسو

وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۝ وَأَنْ أَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ

او حکم شویدې ما ته چه یم دې زه د مؤمنانو نه. (او ویلی شوی دی ما ته) چه برابر کړه ځان خپل په دین باندې.

حَنِيفًا وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ۝ وَلَا تَدْعُ مِن دُونِ ٱللَّهِ

مستقیم په حق ، پریښودونکې هر باطل لره او مه کیږه د مشرکانونه . اوبلنه مه کوه په غیر د الله تعالی نه

مَا لَا يَنفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ فَإِن فَعَلْتَ فَإِنَّكَ

دهغه چا چه نفع نشی رسولې تاته اونه ضرر رسولې شی تاته پس كه وكړو تا دا كار پس بيشكه ته به

إِذًا مِّنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ۝ وَإِن يَمْسَسْكَ ٱللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُۥٓ

په دغه وخت کښې د ظالمانو نه ئې. اوکه ورسوی تا ته الله تعالی څه تکلیف پس نشته هیڅ څوك لرې كونكې دهغې

إِلَّا هُوَ وَإِن يُرِدْكَ بِخَيْرٍ فَلَا رَآدَّ لِفَضْلِهِۦ يُصِيبُ

سوی د هغه نه، اوکه وغواړی تا ته خیر رسول نو نشته هیڅوك واپس كونكې د هغه د فضل، رسوی الله تعالی

---

۱- ذکر د دعوی د سورت په تفصیل سره.

بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖؕ وَهُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ۞

دا ضرر او خیر هغه چاته چه وه غواړي د بندګانو خپلو نه. او الله تعالی بښونکي دي مهربانه دي

﴿ قُلْ يَآيُّهَا النَّاسُ اِنْ كُنْتُمْ فِىْ شَكٍّ ﴾ دا ذکر د دعوې د سورة دې . دريم خلې بالتفصيل (اِنْ كُنْتُمْ) شرط دې او ﴿فَلَآ اَعْبُدُ الَّذِيْنَ﴾ په اعتبار دمضمون سره ورله جزا ده، يا جزامقدره ده (چه اخبركم به بالتفصيل) ده او ﴿ فَلَآ اَعْبُدُ ﴾ د مقدرجزا تفصيل دې ،مطلب ئ دادې چه که زما دين او طريقه ستاسو په سمجهـ او عقل کښې نه راځی او د دغې وجې نه تاسوپه شك او شبه کښې پراته يئ نو زه تاسو د خپل دين په اصل الاصول توحيد باندې خبروم او صاف صاف وايم چه زه ستاسو د مفروضه معبودانو عبادت نه کوم نه مالي عبادت ، نه قولي عبادت، نه بدني عبادت. يعنى د غيرالله په نوم نذر او نياز نه ورکوم د غيرالله نه مددنه غواړم . دالله ﷻ نه ماسوا بل چاته رامدد شه نه وايم دالله ﷻ نه ماسوا بل چاته سجده نه کوم بلکه دا ټول کارونه صرف دالله ﷻ دپاره کوم﴿ فَلَآ اَعْبُدُ الَّذِيْنَ ﴾ د (لا اله) بيان دې ،﴿وَلٰكِنْ اَعْبُدُ اللّٰهَ ﴾ ، د (الا الله) بيان دې﴿وَلَا تَكُوْنَنَّ ﴾ دلته قيل مقدر دې يعنى ماته داويلې شوى دى چه د مشرکينو سره هيڅ تعلق مه ساته﴿ وَلَا تَدْعُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ﴾ په دې کښې نفى د شرك فى الدعا ده ،او هر كله چه د عبادت اهم فرد دعا وه بلكه په حديثو كښې (الدعاء هو العبادة) راغلى دى او دا قسم شرك ډير عام دې او په هر وقت كښې ئ مشركان كوى، د دې وجې نه ئ تخصيص اوشو، بله دا چه مخكښې﴿وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴾ ذكر شو، او مشرك د اشتراك قائل وى، چه كله دالله ﷻ نه مدد غواړى او كله د ماسوا الله نه مدد غواړى نو توهم پيداكيدو چه څوك دائمًا او هميشه د غيرالله عبادت كوى نو هغه خو مشرك نه شو، نو په دې آيت كښې عمومى نفى اوشوه چه د غيرالله بلنه په طريقه د اشتراك او استقلال دواړو سره مه كوه﴿مَا لَا يَنْفَعُكَ ﴾ يعنى كه ترينه مدد غواړې نو تاته نفع نشى دركولې او كه مدد ترينه نه غواړې او عبادت ورله نه كوې نو تاته ضررنه نشى دركولې، او دا جمله عطف ده (فلا تكونن) باندې ،﴿فَاِنْ فَعَلْتَ ﴾ يعنى كه بفرض محال تا داسې اوكړل يعنى د ماسوا الله نه دې خپل مرادونه، مقصدونه طلب كړل، يا دا خطاب نبى ﷺ ته دې ،او مراد ترينه نور خلق دى﴿وَاِنْ يَّمْسَسْكَ اللّٰهُ ﴾ ، داعلت د ماقبل دې

يعنى دالله ﷻ نه ماسوا بل څوك لائق د عبادت نشته. ځکه چه ضررلرې کول اوخير ورکول صرف دالله ﷻ کار دې که الله ﷻ چاته څه لګ شان تکليف اورسوى نو د هغې لرې کونکې هيڅ څوك نشته بغير دالله ﷻ نه او که چاته د خير اراده اوکړى نو هيڅوك ئ منع کولې نشى.
دضرر سره ئ «مس» ذکر کړې دې او خير سره ئ اراده ذکر کړې ده. په دې کښې اشاره ده دې ته چه ضرر په سبب د ګناهونو سره رسيږى نونه منسوب کيږى ارادې ته. اګر که په ارادې سره واقع کيږى، اوخير محض په فضل سره رسيږي، نومنسوب کيږي ارادې ته ﴿يُصِيبُ بِهِۦ مَن يَشَآءُ﴾ په دې کښې اشاره ده، چه خير رسيدل په مشيت د الله ﷻ سره دى. نوکه چاته خير اونه رسى نوهغه به په دې وجه وى چه مشيت او اراده د الله ﷻ به نه وى شوې. داسې نه چه د ماسوا الله قدرت دې په بندولو د خير باندې.

| |
|---|
| قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ قَدْ جَآءَكُمُ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ ۖ فَمَنِ ٱهْتَدَىٰ |
| ووايه چه اې خلقو [1] په تحقيق سره راغليدې تاسو ته حق د طرف د رب ستاسې نه، پس څوك چه په حق روان شو |
| فَإِنَّمَا يَهْتَدِى لِنَفْسِهِۦ ۖ وَمَن ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ |
| نو بيشکه دې په حق روان دې د نفع د خپل ځان لپاره، اوڅوك چه واوړيدو د حق نه، پس بيشکه اوړى د حق نه |
| عَلَيْهَا ۖ وَمَآ أَنَا۠ عَلَيْكُم بِوَكِيلٍ ﴿١٠٨﴾ وَٱتَّبِعْ مَا |
| چه وبال اوتاوان ئ په خپل ځان دې، اونه يم زه په تاسو نګران «ذمه دار». او تابع اوسه [2] د هغه څه |
| يُوحَىٰٓ إِلَيْكَ وَٱصْبِرْ حَتَّىٰ يَحْكُمَ ٱللَّهُ ۚ وَهُوَ خَيْرُ ٱلْحَٰكِمِينَ ﴿١٠٩﴾ |
| چه وحى کيدې شى تا ته او صبر کوه ترهغې چه فيصله وکړى الله تعالى اوهغه غوره فيصله کونکې دې |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ﴾ دا ترغيب دې، اتباع د قرآن ته، دحق نه مراد قرآن او دين دې ﴿وَٱتَّبِعْ مَا يُوحَىٰٓ﴾، دا دليل وحى دې په توحيد باندې ﴿وَٱصْبِرْ﴾ تسلى ده نبى ﷺ ته.

«اختتام، ۱۴محرم، ۱۴۳۰هجرى ۱۲جنورى ۲۰۰۹عيسوى».

---

۱- ترغيب توحيد ته.
۲- دليل وحى په توحيد.

| آیاتها (۱۲۳) | سورة هود مكية | ركوعاتها (۱۰) |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |

خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکې دې شروع کوم

**داسورة مکی دې، او د ترتیب قرانی په لحاظ سره یوولسم سورة دې، او د نزول په لحاظ سره ۵۲ سورة دې**

**ربط السورة** : یوربط اسمی دې، بل مضمونی دې، ربط اسمی دادې، لکه څرنګه چه حضرت یونس ﷺ خپل قوم ته مسئله دتوحید بیان کړې وه ،او خلقو پرې طعنونه لګولی وو. نو دغه شان حضرت هود ﷺ خپل قوم ته مسئله دتوحید بیان کړې وه ،او خلقوپر طعنونه کړی وو.

**ربط مضمونی** : (۱) د سورة یونس په آخر کښ ئ ﴿وَاتَّبِعۡ مَا يُوحٰىٓ﴾ اوئیل او د دې سورة په اول کښ د مایوحی مقصد ذکر کیږی چه ﴿أَلَّا تَعۡبُدُوٓا إِلَّا اللّٰهَ﴾ ،(۲) مخکښ سورة کښ دلائل عقلیه وو په توحید باندې ،او دلته دلائل نقلیه ذکر کیږی ، (۳)مخکښ سورة کښ دا ثابته شوه چه شفیع قهری او شفیع بلا اذن څوك نشته ، نو په دې سورة کښ پرې تفریع ذکر کیږي چه ﴿أَلَّا تَعۡبُدُوٓا إِلَّا اللّٰهَ﴾ .

**خلاصه د سورة** : په دې کښ څلور دعوې دی : اوله دعوی أَلَّا تَعۡبُدُوٓا إِلَّا اللّٰهَ ،آیت ۲. دویمه دعوی داچه عالم الغیب صرف الله دې دا دویمه دعوه ۮ اولې دپاره علت دې ، أَلَآ إِنَّهُمۡ يَثۡنُونَ صُدُورَهُمۡ لِيَسۡتَخۡفُواْ مِنۡهُۚ ...... تا ....عَلِيمُۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ، آیت : ۵ دریمه دعوی دا چه د ټول مایوحی تبلیغ کوه ، په جرأت سره او د مشرکینو د اعتراضاتو د وجې نه په زړه کښ تنګی مه راوله چه د بعض مایوحی تبلیغ ترك کړې، فَلَعَلَّكَ تَارِكُۢ بَعۡضَ مَا يُوحٰىٓ إِلَيۡكَ .....تر أَوۡ جَآءَ مَعَهُۥ مَلَكٌۚ آیت : ۱۲ پورې ، څلورمه دعوی دا چه مسئله بالکل واضحه ده ، لیکن مشرکین ئ د ضد د وجې نه، نه منی أَفَمَن كَانَ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّهِۦ .....تا ... وَلٰكِنَّ أَكۡثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يُؤۡمِنُونَ ، د دینه بعد مشرکینو ته زجرونه تخویفونه ذکر کیږی ،او بیا اوو(۷) قصې د انبیاء سابقو ذکر کیږی چه اول درې دعوو سره متعلق دی په طریقه د لف نشر مرتب سره، اوله قصه، د حضرت نوح ﷺ ده چه

متعلق ده د دعوې اولی سره وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا .. تا .... أَن لَّا تَعْبُدُوا إِلَّا اللَّهَ يعنی نوح ﷺ هم دغه شان خبر کړيده کوم چه قرآن وائ ،ان لاتعبدو الاالله ، دويمه قصه د هود ﷺ ده داهم متعلق ده د دعوی اولی سره ، وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ . دريمه قصه د حضرت صالح ﷺ ده داهم متعلق ده د دعوی اولی سره وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَالِحًا قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ، څلورمه قصه د حضرت ابراهيم ﷺ د دعوی ثاني سره متعلق ده ، وَلَقَدْ جَاءَتْ رُسُلُنَا إِبْرَاهِيمَ بِالْبُشْرَىٰ ، حضرت ابراهيم ﷺ جليل القدر پيغمبر او دالله ﷻ خليل دې . دوئ ته فرشتې راغلې وې د بشارت دپاره او دوي ترينه خوف اوکړو ،او دوي ته علم نه ووچه دا فرشتې دي ،نو طعام ئي ورله تيار کړو ،او دا علم ورته هم نه وؤ چه دا زما د بشارت دپاره راغلی دی، يا د نقصان دپاره ، نو هر کله چه پيغمبر ته علم الغيب نشته نو نورو خلقوته خو په طريقه اولی سره نشته دې ، پنځمه قصه د حضرت لوط ﷺ داهم د دعوی ثانی سره متعلق ده ،وَلَمَّا جَاءَتْ رُسُلُنَا لُوطًا فرشتې چه کله لوط ﷺ ته راغلې په شکل د خائسته انسانانو باندې نو لوط ﷺ اونه پيژندلې او د دوئ په راتلو پريشان شو ، نو معلومه شوه چه دې عالم الغيب نه وو، شپږمه قصه د حضرت شعيب ﷺ متعلق د دعوی اولی سره چه دوئ هم خپل قوم ته ﴿يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ﴾ ويليدی ،اوومه قصه د حضرت موسی ﷺ ﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ بِآيَاتِنَا﴾ دا متعلق ده د دريمې دعوې سره چه موسی ﷺ څومره تکليفونو او مصيبتونه برداشت کړيدي او د چا داعتراض په وجه ئ زړه نه دې تنګ کړې ، نوته هم زړه مه تنګوه اوپه فريضه د تبليغ کښې کوتاهی مه کوه د دينه بعد زجرونه تخويفات ذکر کيږی او بيا په آخرت کښې د ټولو دعوو اعاده کولې شی .

| الٓر | كِتَٰبٌ | أُحْكِمَتْ | ءَايَٰتُهُۥ | ثُمَّ | فُصِّلَتْ | مِن | لَّدُنْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

(الر) دا داسې کتاب دې [1] چه محکم کړې شوی دی آيتونه د ده، بيا ئ تفصيل کړې شوې دې نازل دې د طرف

---

۱ - تمهيد اصل مضمون ته .

حَكِيمٍ خَبِيرٍ ﴿١﴾ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا اللَّهَ ۚ إِنَّنِي لَكُم مِّنْهُ

د حكمت والا خبردار ذات نه چه بندګي مه کوئ[١] د هيچا سوی د الله تعالى نه. بيشکه زه ستاسو لپاره دهغه د طرف

نَذِيرٌ وَبَشِيرٌ ﴿٢﴾ وَأَنِ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ يُمَتِّعْكُم

سرونکی او زیري ورکونکي يم او دا چه بښنه وغواړئ د رب خپل نه او بيا توبه وباسئ هغه ته . نفع به درکړي تاسو ته

مَّتَاعًا حَسَنًا إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى وَيُؤْتِ كُلَّ ذِي فَضْلٍ فَضْلَهُ ۖ وَإِن تَوَلَّوْا

نفع ښائسته تر نيټې مقررې پورې او وربه کړي هر خاوند د غوره عمل ته. غوره جزاء د هغه. او که تاسو روګردانه شوئ

فَإِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ كَبِيرٍ ﴿٣﴾

نو پس بیشکه زه ویریږم په تاسو د عذاب راتللو د لوئ ورځې

﴿الر كِتَابٌ أُحْكِمَتْ آيَاتُهُ﴾ داتمهید دي مضامينو دَ سورة ته (کتٰب) خبر د مبتداء محذوف دپاره دي (اي هذا کتاب) او تنوين پکښ د تعظيم دپاره دي يعني دا عظيم الشان، جليل القدر کتاب دي ﴿أُحْكِمَتْ﴾ د کتاب دپاره اول صفت دي او د (اُحْکِمَتْ) يوه معنى داده چه نه منسوخ کيږی په بل کتاب سره ، او بله معنى ئ داده چه حکمت نه ډك دی آياتونه د ده ، بله معنىٔ داده چه محفوظ دي د تناقض او د نفس الامرد مخالفت نه، او په اعلى درجه د فصاحت او د بلاغت او په لفظي او معنوی خو بيانو سره مزين او خائسته کړي شوي دي ﴿ثُمَّ فُصِّلَتْ﴾ داد کتاب دپاره دويم صفت دي .او (ثم) د تراخي ذکري دپاره راخی او د (فصلت) يوه معنى داده چه په دي کتاب کښ دلائل د توحيد نصيحوتونه او واقعات جدا جدا ذکر کړي شوي دي .لکه څرنګه چه په قيمتی هار کښ قيمتی ملغلري جواهر جدا جدا پيلي شي، يا دا چه سورتونه آيتونه ئ جدا جدا کړي شويدی په نزول کښ او جمله نه دی نازل شوی اوبله معنى ئ داده چه توحيد او د مسائلو د اصولو تفصيل په کښ شوي دي ﴿مِن لَّدُنْ حَكِيمٍ﴾ دا دريم صفت دي يعني دا کتاب انسانانو ندي جوړ کړي بلکه د حکيم خبير ذات د طرفه راغلي دي . نو څکه معجز

---

١- اوله دعوى

اوپه بي انتها کمالاتو مشتمل دي ،﴿أَلَّا تَعْبُدُوٓا۟ إِلَّا ٱللَّهَ﴾ دا اوله دعوی د سورت ده .او د «أن» نه مخکښې حرف جر باء مقدره ده او جار مجرور د فُصلَتْ سره متعلق دی . نو تقدير دا رنګه شو .(فصلت بان لا تعبدوا الا الله) يعنی دا کتاب د دې خبرو تفصيل کوی چه (لاتعبدوا الاالله) يعنی دا کتاب د مسئله توحيد او د نفی د شرك تفصيل دې يا حرف جر په دې کښې لام مقدر دې نو دا مفعول له دې د (ای فصلت لاجل ان لاتعبدوا الا الله) امام رازی وائی : (واقول هذا التاويل يدل علي انه لامقصود من هذاالکتاب الشريف الاهذا الحرف الواحد فکل من صرف عمره الی سائر المطالب فقد خاب وخسر) ﴿إِنَّنِى لَكُم مِّنْهُ﴾ دا بيان د رسالت دې ﴿وَأَنِ ٱسْتَغْفِرُوا۟ رَبَّكُمْ﴾ استغفار د تيرې شوې ګناه د معافئ طلب ته وائی ، او توبه په آينده کښې د ترك د معصيت عزم ته وائی ﴿يُمَتِّعْكُم مَّتَـٰعًا حَسَنًا﴾ متاع حسن داطمينان اودسکون ژوند دې ﴿إِلَىٰٓ أَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ يعنی د وقت د وفات کيدلو پورې ﴿وَيُؤْتِ كُلَّ ذِى فَضْلٍ فَضْلَهُۥ﴾ يعنی د استغفار او توبې يوه فائده داده چه سکون او اطمينان والا ژوند به نصيب شی په دنيا کښې او بله فائده ئې په آخرت کښې ده هغه دا چه چا زيات خائسته عمل کړې وی ، نوهغه ته به زيات خائسته جنت ورکړې شی، د ﴿كُلَّ ذِى فَضْلٍ﴾ نه خائسته عقيده او عمل مراد دې او د (فضله) نه مراد د خائسته عمل جزا ده چه جنت دې ﴿وَإِن تَوَلَّوْا۟﴾ دا په اصل کښې «تتولو» دې،او يوه تاء حذف شوې ده نو داصيغه د مخاطب مضارع ده يا تاء په کښې محذوفه نه ده نو داصيغه د ماضی غائب ده او دا التفات دې دخطاب نه غيبوبت ته .

| إِلَى ٱللَّهِ مَرْجِعُكُمْ ۖ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴿٤﴾ أَلَآ إِنَّهُمْ يَثْنُونَ صُدُورَهُمْ |
| --- |
| خاص الله تعالی ته ګرځيدل ستاسو دی او دې په هرڅيز قادر دې . خبردار ! بيشکه دوئ تاوه وی سينې خپلې، |
| لِيَسْتَخْفُوا۟ مِنْهُ ۚ أَلَا حِينَ يَسْتَغْشُونَ ثِيَابَهُمْ ۙ يَعْلَمُ |
| د دې لپاره چه ځان پټ کړی د هغه نه، خبردار[1] اکوم وخت چه دوئ ځان پټوی په جامو خپلو کښې نو پوهيږی الله تعالی |

۱- دويمه دعوی .

مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعۡلِنُونَ ۚ إِنَّهُۥ عَلِيمُۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ۝

په هغې چه پټوی دوئ او په هغې چه ښکاره کوی دوئ بیشکه هغه عالم دې په رازونو د سینو باندې

﴿إِلَى ٱللَّهِ مَرۡجِعُكُمۡ﴾ یعنی مجرمان او غیر مجرمان ټول به د الله ﷻ حضورته حاضریږی .او الله ﷻ قادر دې په سزا او جزا ورکولو باندې ﴿أَلَآ إِنَّهُمۡ يَثۡنُونَ صُدُورَهُمۡ﴾ دادویمه دعوی ده چه عالم الغیب صرف الله دې ﴿يَثۡنُونَ﴾ په اصل کښې (یثنیون) وو، لکه یرمون په اصل کښې یرمیون وو. نو بیا په کښې هغه مشهور اعلال اوشو نو (یثنون) پاتې شو، او ثنی یثنی په معنی د اړولو او رانغښتلو سره راځی (من ثنیت الثوب اذا طویته) ددې آیت په شان نزول کښې دوه قوله دی (۱) په بخاري شریف کښې د ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه په بعض مسلمانانو باندې حیاء دومره غالبه وه چه د استنجاء او جماع وغیره ضروریات بشریو په وقت به ئې د بدن بربنډولونه شرمیدل چه اسمان والا مونږ ته ګوری، نو د عورت پټولو دپاره به ئې کوشش کولو.او په تکلیف سره به ئې دخپل عورت پټولو دپاره سینه تاؤ راتاؤکړه ،دې قسم خلقو ته په اصطلاح د صوفیاؤکښې مغلوب الحال ویلې کیږی ،او هر کله چه داسې غلو د امت دپاره مشقت ذریعه وه نود دې وجې نه قران د دوئ اصلاح اوکړه او وې فرمائل ﴿أَلَا حِينَ يَسۡتَغۡشُونَ ثِيَابَهُمۡ﴾ یعنی که په وخت د ضرورت کښې تاسو ته عورت ښکاره کول شرم لګی نوتاسو فکر اوکړئ چه آیا تاسو چه کپړې اغوندئ په دغه حالت کښې الله ﷻ ته نه ښکاریږئ څه؟ (۲) او خازن د ابن عباس نه نقل کړی دی چه دا آیت نازل شوې دې په باره اخنس بن شریق او نورو منافقینو کښې اخنس ابن شریق به په ظاهر کښې د نبی ﷺ سره خوږې خبرې کولې او د محبت اظهار به ئې کولو ،او په زړه کښې به ئې بغض او عداوت وو. نو دا آیت نازل شو ﴿يَثۡنُونَ صُدُورَهُمۡ﴾ رانغاړی سینې خپلې یعنې پټوی په سینو کښې بغض او عداوت او حضرت شاه صاحب رحمه الله وائی چه (یثنون) نه مراد معنوی اثناء ده یعنی انحراف د حق نه ﴿لِيَسۡتَخۡفُواْ مِنۡهُ﴾ دامتعلق دې د مقدر سره (اي یریدون لیستخفوا منه) ،(کشاف) یا همزه استفهامیه په کښې محذوف ده .یا دا صیغه د امر غائب ده .او امر دپاره د تعجیز دې ﴿يَعۡلَمُ مَا يُسِرُّونَ﴾ یعنی د الله ﷻ په علم کښې تفاوت په مابین د پټ او د ظاهر کښې نشته دې ، اوپه هر ځائ ئی علم یوشان دې

**یوولسمه پاره ختمه شوه ولله الحمد اولاً واخراً**

| |
|---|
| وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللّٰهِ رِزْقُهَا وَيَعْلَمُ |
| او نشته دي هيڅ زنده سر په زمکه کښې مګر په الله تعالی باندې ده روزی دهغوئ. اومعلوم دي الله تعالی ته |
| مُسْتَقَرَّهَا وَمُسْتَوْدَعَهَا ۚ كُلٌّ فِي كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ۝ وَهُوَ الَّذِيْ |
| ځائ د آرام دهغوئ او ځائ د امانت کولو دهغوئ ، دا ټول په کتاب روښانه کښې دی. او الله تعالی هغه ذات دې |
| خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ وَّكَانَ عَرْشُهٗ عَلَى الْمَآءِ |
| چه پيدا کړی ئ دی اسمانونه اوزمکه په اندازه د شپږو ورځو کښې او وو عرش دهغه په اوبو باندې. |
| لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا ۗ وَلَئِنْ قُلْتَ إِنَّكُمْ |
| ددې لپاره چه ازمينښت وکړی ستاسو چه کوم يو په تاسو کښې ښائسته عمل والا دې، اوکه ته ووائې چه بيشکه تاسو به |
| مَّبْعُوْثُوْنَ مِنْ بَعْدِ الْمَوْتِ لَيَقُوْلَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا إِنْ هٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۝ |
| پورته کيدې شئ پس د مرګ نه نو خامخا به وائې کافران چه نده دا خبره مګر جادو «دروغ» ښکاره دی |
| وَلَئِنْ أَخَّرْنَا عَنْهُمُ الْعَذَابَ إِلٰٓى أُمَّةٍ مَّعْدُوْدَةٍ لَّيَقُوْلُنَّ مَا يَحْبِسُهٗ ۗ |
| اوکه روستو کړو مونږ د دوئ نه عذاب د دنيا د يو مُدی لږې پورې نو خامخا به دوئ وائی چه څه شيز بند کړو عذاب لره |
| أَلَا يَوْمَ يَأْتِيْهِمْ لَيْسَ مَصْرُوْفًا عَنْهُمْ وَحَاقَ بِهِمْ |
| خبردار ! په کومه ورځ چه راشی دا عذاب دوئ ته نو وابه نه ړولې شی دوئ نه او نازل به شی په دوئ |
| مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ۝ |
| هغه عذاب چه دوئ په هغې پورې توقې کولې |

﴿وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللّٰهِ رِزْقُهَا﴾ (دآبة) په لغت کښې کل حيوان ذی روح ته وائی ، يعنی «هر زنده سرې» ماخوذ دې د «دَبِيب» نه مشی خفيفه ته وائ - او په عرف کښې : ذات د قوائم اربعو ته وائی، دلته لغوی معنی مراد ده، اودا آيت دَ دې قريب يعنی دريمې دعوې سره متعلق دې يعنی الله ﷻ په خپل فضل سره د مخلوق دپاره څه رزق مقرر کړيدې ،او وعده ئ

کړې ده چه په منزله د واجب دې ، نو دغه رزق به خامخا مرزوق ته ملاويږي او د الله ﷻ علم په هغه باندې محيط دې . برابره خبره ده چه د اسبابو په ذريعه ئ رسوی يا بغير د اسبابو نه ځکه چه د الله ﷻ قدرت په دائره د اسبابوپورې مقيد نه‌دې ، د اسبابوپه ذريعې سره هم کله رزق رسوی او بغير د اسبابونه هم کله رزق ورکوی ،او (على) يا په معنی د مِنْ سره دې (اى من الله رزقها) يا په خپله معنی سره دې ليکن ايجاب تفضلی مراد دې ،او د دې آيت مطلب دانه دې چه اسباب دې ترک کړې شی، يا توکل ترک اسبابوته ويلې شی ځکه چه په حديث کښ (أعقلْ وَتوکّل راغلی دی ،اوبل روايت کښ (ان نفسا لن تموت حتى تستكمل رزقها ،فاتقو الله واجملو فى الطلب وتوكلو عليه) راغلی دی ، نو دې نه معلومه شوه ،چه طلب او تدبير کول د توکل سره منافی ندی ، البته طلب په خائسته طريقې سره يعنی په حلال ذرائعو سره ضروری دې، او په بعض آثارو کښ راغلی دی (کمافى روح المعانى) چه موسى ﷺ ته حکم اوشو، په کوه طور کښ چه لاړ شه فرعون ته ، نو چه روان شو نو په زړه کښ ئ د خپل اهل سوچ راغې ، ځکه چه هغوئ سره د خپلو ضرورياتو پوره کولو څه بندوبست نه وو، نو الله ﷻ ورته حکم اوکړو چه په دې عصا سره دغه سخت کاڼړې اووهه ، نو چه وې وهلو ، نو دهغې د مينځ نه بل کاڼړې را اووتلو نو بيا ورته حکم اوشو چه بيا ئ اووهه ، نو دغه شان بل کاڼړې ترې نه را اوتلو ، او چه دريم کاڼړې ئ اووهلو، نو د هغې د مينځ نه يو چينجې راؤوتلو، او په خُله کښ ئ شنه پاڼړه وه ،او دا ئې ويل : (سبحان من يرانى ، ويعلم مكانى ، ويذكرنى ولاينسانى) ،﴿وَيَعْلَمُ مُسْتَقَرَّهَا﴾ يعنی د الله ﷻ علم په ټولو باندې محيط دې ځکه که علم ئ په هر څه نه وې ، نو رزق به ئ ورته څنګه رسولې وې،د مستقر او مستودع ډيرې معنی ذکر شوی دی،يو دا چه مستقر جنت يا دوزخ دې ،او مستودع قبر يعنی عالم برزخ دې، اود دنياوی زندګئ بيان په ﴿وَمَا مِن دَآبَّةٍ﴾ کښ شوې دې، نومطلب دادې چه د ابتدا نه لانهايته پورې د ټولو مراحلو علم الله ﷻ ته دې، د ابن عباس ﷺ نه روايت دې ، چه مستقر د دنيا زندګی ده او مستودع قبر دې .او د مجاهد ﷫ نه روايت دې چه مستقر رحم د مور دې اومستودع صلب د پلار دې ، او د عطاء ﷫ نه د دې بر عکس روايت دې ﴿كُلٌّ فِى كِتَابٍ مُّبِينٍ﴾ د دې نه مراد لوح محفوظ دې چه هغې ته صحيفه د علم الهى ويلې شی ، يعنی د تمامو کائناتو د روزئ او د عمر، عمل وغيره په لوح محفوظ کښ ليکلی شوی دی ، فرشتو ته ترينه حسب ضرورت حواله کولې شي، د مسلم په روايت

کښ د حضرت عبدالله بن عمر نه مروی دی چه نبی ﷺ فرمائلی دی،چه د تمامو مخلوقاتو تقدیر د اسمان زمکې د پیدائش نه پنځوس زره کاله مخکښ لیکلې شوې دې ،او د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه مرفوع روایت دې چه کله د انسان جوسه او اعضاء د مور په رحم کښ مکمل شی نو الله ﷻ فرشتې ته حکم اوکړی چه : «اولیکه د ده عمر او عمل ،او چه کله مړ کیږی او دفن کیږی ،او د ده رزق» .

﴿ وَهُوَ ٱلَّذِى خَلَقَ ﴾ دې آیت کښ هم دالله ﷻ د کمال قدرت او د علم محیط ذکر دې چه الله ﷻ زمکه اسمان په مقدار د شپږو ورځو کښ پیدا کړی دی ،او د دې نه مخکښ د الله ﷻ عرش په اوبو باندې وو، یعنی اوبه مخکښ پیدا وې ،او د نورو اشیاء دپاره ماده د حیات گرزیدلی دی لکه (وجعلنا من المآء کل شئ حئ) یعنی هر جاندار څیز الله ﷻ د اوبو نه پیدا کړې دې ،او په ﴿ وَكَانَ عَرْشُهُۥ عَلَى ٱلْمَآءِ ﴾ کښ دوه احتماله دی : یو دا چه عرش د اوبو دپاسه متصل بلا فصل وو، نو په دې کښ د الله ﷻ د عظیم قدرت بیان دې ،چه دومره عظیم جسم ئ په داسې نرم څیز اوبو باندې برقرار کړې دې ، بل دا چه د دواړو په مینځ کښ فصل وو، یعنی د اوبو او د عرش په درمیان کښ دا نور کائنات اسمانونه نمر سپوږمئ وغیره نه وو، داسې نه چه عرش متصل وو، په اوبو باندې ، دا قول اکثرو مفسرینو غوره کړیدې ،او د دینه ئ استدلال کړې دې په امکان د خلا باندې ﴿ لِيَبْلُوَكُمْ ﴾ یعنی د دې ټول نظام تخلیق نه مقصود ستاسو امتحان کول دی چه څوك د خپل خالق، مالك صحیح معرفت حاصلوی او صحیح عمل کوی ﴿ وَيَعْلَمُ مُسْتَقَرَّهَا ﴾ احسن عمل هغه دې چه په هغې کښ اتباع سنت وی ،او خلوص او للاهیت وی په کښ ﴿ وَلَئِن قُلْتَ ﴾ یعنی مشرکین د توحید نه هم انکار کوی ،او د بعث بعد الموت نه هم انکار کوی ﴿ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴾ هذا اشاره ده قول د بعث بعد الموت ته ، سحر نه مراد دروغ دی ،یا دامعنی ده چه داقول پشان د سحر دې ، په بطلان کښ ،یعنی لکه سحر چه باطل او بې حقیقته وی نو دغه شان دا عقیده د بعث بعد الموت ده ، نو په دې کلام کښ تشبیه بلیغه ده ﴿ وَلَئِنْ أَخَّرْنَا عَنْهُمُ ٱلْعَذَابَ ﴾ دا زجر دې منکرینو ته ،یعنی هر کله چه دوئ ته ، د کفر او معصیت په وجه تخویف ورکړې شی ، چه عذاب الهی راځی، او دیو حکمت په وجه د یوې معینی مودې پورې عذاب رانشی نو دوئ په طریقه داستهزاء سره وائ ،چه هغه عذاب

چرته دي . ولې نه راځي ﴿أُمَّةٍ﴾ په معنی د مودې سره دې .او﴿مَّعْدُودَةٍ﴾ په معنی د مُعین سره دې ﴿مَا يَحْبِسُهُ﴾ (ما) په معنی د (ایّ شیءٍ) سره دې . یعنی دوئ استهزاءً وائي چه څه څیز منع کړې دې عذاب ﴿أَلَا يَوْمَ يَأْتِيهِمْ﴾ یعنی عذاب دنیوی او اخروی چه راشي . نو هغه هیڅ څوك نه شي دفع کولې

| وَلَئِنْ أَذَقْنَا الْإِنسَانَ مِنَّا رَحْمَةً ثُمَّ نَزَعْنَاهَا مِنْهُ |
|---|
| اوکه وڅکوؤ [1] مونږ یو انسان ته د خپل طرف نه څه نعمت بیا نې را کاږو (واپس ئې واخلو) د هغه نه. |
| إِنَّهُ لَيَئُوسٌ كَفُورٌ ۞ وَلَئِنْ أَذَقْنَاهُ نَعْمَاءَ بَعْدَ ضَرَّاءَ مَسَّتْهُ |
| نو بیشکه دې نا اُمیده ناشکره وی اوکه وڅکوؤ مونږ ده ته نعمت پس د تکلیف نه چه رسیدلې وی ده ته. |
| لَيَقُولَنَّ ذَهَبَ السَّيِّئَاتُ عَنِّي ۚ إِنَّهُ لَفَرِحٌ فَخُورٌ ۞ إِلَّا الَّذِينَ |
| خامخا وائي دې چه لاړل تول تکلیفونه زما نه، بیشکه دې خامخا تکبر کونکې وی فخر کونکې وی مګر هغه کسان |
| صَبَرُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أُولَٰئِكَ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ ۞ فَلَعَلَّكَ تَارِكٌ |
| چه صبر کوی [2] اونیك عملونه کوی، دغه کسان د دوئ لپاره بښنه ده او اجر لوئ دې. پس آیا ته به پرېښودونکې ئې [3] |
| بَعْضَ مَا يُوحَىٰ إِلَيْكَ وَضَائِقٌ بِهِ صَدْرُكَ أَن يَقُولُوا لَوْلَا أُنزِلَ |
| بعضې د هغې لره چه وحی ئې کولې شی تا ته، او ایا تنګیری به دې سره سینه ستا، د دې وجه نه چه دوئ وائي ولې نشی نازلیدلې |
| عَلَيْهِ كَنزٌ أَوْ جَاءَ مَعَهُ مَلَكٌ ۚ إِنَّمَا أَنتَ نَذِيرٌ ۚ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ وَكِيلٌ ۞ |
| پده خزانه یا ولې نه رازی (نه ګرځی) د ده سره فرشته، بیشکه ته خو یره ورکونکې ئې او الله تعالی په هر څیز نګهبان دې |

﴿وَلَئِنْ أَذَقْنَا الْإِنسَانَ﴾ دا هم زجر دې ،یعنی اوس خو وائي چه عذاب چرته دې او ولې نه

---

۱ - زجر.

۲ - بشارت.

۳ - د سورت د ریمه دعوی.

رازی . لیکن که الله ﷻ په خپلې مهربانۍ سره ده ته رحمت ورکړی .او بیا ئ ترینه واخلی .او په تکلیف کښ ئ مبتلا کړی ، نو بیا ده نه د الله ﷻ مهربانی هیره شی ، او د آینده دپاره نا امیده شی ، نو د تیر شوې مهربانۍ ، ناشکری او د آینده رحمت نه نا أُمیدی د دوئ د زندګئ حاصل دې ﴿ وَلَئِنْ أَذَقْنَٰهُ ﴾ یعنی که د مصیبت نه روستو ورته الله ﷻ خوشحالی ورکړی . نو بیا غافل او مغرور شی تکبر کوی ،حالانکه پکار خو داده چه په راحت آرام باندې شکریه ادا کړی ﴿ لَفَرِحٌ ﴾ د دې نه مراد فرح په طریقه د تکبر سره دې او فخور هغه چا ته وائی چه خپل صفتونه بیانوی (په پښتو کښ ورته ډزمار وائی) ،دارنګه د﴿ ذَهَبَ ٱلسَّيِّـَٔاتُ عَنِّىٓ ﴾ نه مراد تکبر دې ، یا دا چه زما په تدبیر سره تکلیفونه لاړل ، یا دا چه زما د معبودانو په زور او برکت سره تکلیفونه لاړل ﴿إِلَّا ٱلَّذِينَ صَبَرُوا۟ ﴾ دا بشارت دې .

﴿ فَلَعَلَّكَ تَارِكٌۢ بَعْضَ مَا يُوحَىٰٓ ﴾ داد سورة دریمه دعوی ده ،علامه الوسی رحمه الله وائی چه مقصود ددینه تحریض او تیزول دنبی ﷺ دی په اداء د رسالت باندې نو استفهام انکاری دې په معنی د نفی سره ، یعنی ته نه ئی داسې کونکې ، یا استفهام د شفقت دپاره دې . یعنی شاید چه ته چرته پریدې یعنی نه پریدې ،او د ﴿بَعْضَ مَا يُوحَىٰٓ ﴾ نه مراد مسئله د توحید ده ، او هغه چه د مشرکینو د مزاج نه مخالف دی ﴿أَن يَقُولُوا۟ ﴾ (ای لاجل ان یقولوا) یعنی د مشرکینو د بیهوده او معاندانه اعراضونو د وجې نه په منصب د رسالت کښ کمې یا نرمی مه کوئ ،چه دوئ داسې بیهوده اعتراض کوی چه تاسره خزانې ولې نشته، لکه د بادشاهانو سره چه وی ، یا تا سره داسې فرشتې ولې نه راځی چه هغه دا اعلان کوی چه دا رسول دې ﴿إِنَّمَآ أَنتَ نَذِيرٌ ﴾ ، یعنی ستا منصب او ذمه داری خو صرف داده چه خلق شفقت سره اویروې خزانې ورکول یا نورې معجزې ورکول خو د الله ﷻ کار دې ،او هغه د هرڅه ذمه وار او متصرف دې .

| أَمْ يَقُولُونَ ٱفْتَرَىٰهُ ۖ قُلْ فَأْتُوا۟ بِعَشْرِ سُوَرٍ مِّثْلِهِۦ |
|---|
| آیا دوئ وائی [1] چه ځان نه ئ جوړ کړیدې دا قرآن، ته ووایه پس راوړئ تاسو لس سورتونه په مثل د ده |

۱- شکوه او جواب شکوه .

مُفْتَرَيٰتٍ وَّادْعُوْا مَنِ اسْتَطَعْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝

د خان نه جوړکړې شوې او راوبلئ هغه څوك چه طاقت لرئ تاسو، سوی د الله تعالى نه كچرې يئ تاسو ريشتني

فَاِلَّمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَكُمْ فَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَآ اُنْزِلَ بِعِلْمِ اللّٰهِ

پس كه دوئ قبوله نكړى خبره (چلينج) ستاسو پس پوهه شئ چه بيشكه نازل كړې شويدې دا قرآن په علم د الله تعالى سره

وَاَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ۝

او پدې خبره چه نشته دې حقدار دبندګۍ سوا د الله تعالى نه، پس آيا تاسو مسلمانان يئ؟ (يعنى مضبوط شئ په اسلام)

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَزِيْنَتَهَا نُوَفِّ اِلَيْهِمْ اَعْمَالَهُمْ

هغه څوك چه غواړى په عمل خپل سره ژوند د دنيا او ښائست د هغې نو پوره به وركړو مونږ دوئ ته بدله د عملونو دوئ

فِيْهَا وَهُمْ فِيْهَا لَا يُبْخَسُوْنَ ۝ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَيْسَ لَهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ

په دنيا كښې او د دوئ نه پدې كښې كمې نشى كولې. دا هغه كسان دى چه نشته دې دوئ لره په آخرت كښې

اِلَّا النَّارُ ۖ وَحَبِطَ مَا صَنَعُوْا فِيْهَا وَبٰطِلٌ مَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝

مګر اور، او برباد به شى هغه عملونه چه دوئ كړى وو په دنيا كښې، او باطل دى هغه عملونه چه دوئ ئې كوى.

﴿اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ﴾ دا شكوه ده ،يعنى تاسو معجزات غواړئ نو د ټولو نه لويه معجزه خو قرآن دې چه تاسو ته پيش كړې شوې دې ، نو كه دوئ بيا د عناد د وجې نه سوال اوكړى چه دا خو د ځانه نه جوړ شوې دې ، نو جواب دادې چه تاسو خو هم عرب يئ او د فصاحت او بلاغت لوئ لوئ دعوې كوئ،نو تاسو ددې پشان لس سورتونه راوړئ، تحدى بالقرآن (چيلنج) يو ځل په ټول قرآن باندې شوې ده ،(قل لئن اجتمعت الانس والجن على ان ياتو بمثل هذا القران لا ياتون بمثله ولو كان بعضهم لبعض ظهيرا ،آيت ۸۸) بيا په لس سورتونو سره شوې ده لكه په دې سورة كښې، بيا په يو سورة سره شوې ده لكه په سورة بقره او يونس كښې ، نو **سوال** واريديږى چه سورة يونس د دې سورة نه مخكښې نازل شوې دې، نو ترتيب دا تقاضه كوى چه اكثر مخكښې ذكر شى او بيا على السبيل التنزل اقل ذكر شى ، حالانكه دلته امر بالعكس دې امام رازى وائ چه داسې نه ده بلكه سورة هود مخكښې نازل شوې دې او سورة يونس روستو نازل

شوي ، نو دا د ترتيب طبعي سره موافق دي ،او دا هم كيدي شي چه د سورة هود دا آياتونه د تحدی دي مخکښې وی اگر که باقی مکمل سورة روستو نازل شوي وی د يونس نه. او مبرد جواب کړي دي چه په سورة يونس کښې مقابله په احکامو او وعد ، وعيد او اخبار بالغيب سره ذکر وه، نو دوئ عاجز شو او په دې سورة کښې مقابله په صرف فصاحت بلاغت سره مراد ده . نو د دې دپاره ډير او متعدد سورتونه پکار دی چه تقابل او فرق معلوم شی، او هر چه ده مقابله په احکامو او وعد وعيد کښې نو د هغې دپاره يو سورة هم کافی دې ،او بعض اکابرو او شيوخو ويلی دی چه تحدی (چيلنج ) په يوې جملې آيت سره هم شوې دې لکه ﴿ فَلْيَأْتُوا بِحَدِيثٍ مِّثْلِهِ إِن كَانُوا صَادِقِينَ ﴿٣٤﴾ ﴾ او بيا تحدی په يو حرف سره هم شوې ده، لکه ﴿ قٓ وَالْقُرْءَانِ الْمَجِيدِ ﴿١﴾ ﴾ ، ﴿ نٓ وَالْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُونَ ﴿١﴾ ﴾ .

﴿ فَإِلَّمْ يَسْتَجِيبُوا لَكُمْ ﴾ يعنی که دوئ دا چيلنج قبول نه کړی نو بيا تاسو پوه شئ چه دا قران ﴿ أُنزِلَ بِعِلْمِ اللَّهِ ﴾ دې ، ای متلبسا بعلم الله د بعلم الله مطلب دادې چه د داسې حقايقو معارفو سره نازل شوي دې چه د هغې علم صرف الله ﷻ ته دې، مخلوق ته نشته لکه نظم معجز او اخبار د غيب نه ،﴿ وَأَن لَّا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾ داعطف دې په (انما) باندې نو د (فاعلموا) تحت دې او د دې نه معلومه شوه چه توحيد د قرآن اهمه موضوع ده ﴿ مَن كَانَ يُرِيدُ ﴾ دا زجر دې يعنی څوك چه نيك اعمال، مونځ، صدقه وغيره د دې دپاره کوی چه په دنيا کښې ورته صحت، عافيت سيادت حاصل شی او د الله ﷻ رضا ئې مقصودنه وی ، بلکه د نيوی فوائد ئې مقصود وی لکه منافقين او ريا کار مسلمانان ، نصاریٰ نو ددوئ دا اعمال بالکليه نه ضائع کيږی بلکه د دې په بدله کښې به ورته په دنيا کښې صحت، عزت، مال، دولت، حکومت وغيره ملاويږی ، ليکن چونکی دا اعمال د روح ايمانی نه خالی دی نو په آخرت کښې په هيڅ فائده نه راځی او د کومو کافرانو، منافقانو دپاره چه د جهنم کومه سزا مقررده نوهغه پرې نه دفع کيږی اونه په کښې کمې راځی ﴿ نُوَفِّ إِلَيْهِمْ أَعْمَالَهُمْ ﴾ ای جزاء اعمالهم ، د حضرت مجاهد رحمه الله نه روايت دې چه دا آيت نازل شوي دې په باره د ريا کارو کښې چه د قيامت په ورځ به رياکار عالم، قاری ته او مجاهد ته او سخی ته اووئيلې شی (لقد قيل لك کما فی الحديث) ، او انس رضی الله عنه نه روايت دې چه دا په باره د يهودو نصارو کښې نازل شوې دې نو که دوئ سائل ته څه ورکړی يا صله

رحمي اوکړی نو په دنیا کښ ورته د هغې بدله ورکولې شی ، صحت، دولت وغیره ورکولې شی او چا ویلی دی چه دا په باره د منافقینو کښ نازل شوې دې چه جهاد ته به تلل او نبی ﷺ به ورله په مال غنیمت کښ حصه ورکوله ﴿وَحَبِطَ مَا صَنَعُوا فِيهَا﴾ یعنی په آخرت کښ به برباد شی عملونه د دوئ چه ثواب به ورته نشی ورکولې ﴿وَبَاطِلٌ﴾ یعنی د دوئ عملونه په خپله باطل عملونه دی ځکه چه صحیح بنیاد ئ نشته دې ،یعنی اخلاص او للهیت

أَفَمَنْ كَانَ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّهِ وَيَتْلُوهُ شَاهِدٌ مِّنْهُ

آیا پس هغه څوک چه وی [1] په ښکاره دلیل باندې د طرف د رب خپل نه او ملګرې وی د ده سره ګواه د طرف د هغه نه

وَمِن قَبْلِهِ كِتَابُ مُوسَىٰ إِمَامًا وَرَحْمَةً ۚ أُولَٰئِكَ يُؤْمِنُونَ بِهِ ۚ وَمَن يَكْفُرْ

او د ده نه مخکښ ګواه وؤ کتاب د موسی چه پیشوا او رحمت وؤ ، دغه کسان ایمان لری په دې کتاب، او چا چه کفر وکړو

بِهِ مِنَ الْأَحْزَابِ فَالنَّارُ مَوْعِدُهُ ۚ فَلَا تَكُ فِي مِرْيَةٍ مِّنْهُ ۚ إِنَّهُ الْحَقُّ

په دې کتاب د مختلفو ډلو نه پس اُور ځای د وعدې د ده دې، پس مه کیږه ته په شک کښ د دې قرآن نه بیشکه دا حق دې

مِن رَّبِّكَ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُونَ ⑰

د طرفه د رب ستا نه لیکن اکثر خلق (د ضد دوجه نه) ایمان نه راوړی

﴿أَفَمَن كَانَ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ﴾ دا د سورة خلورمه دعوه ده ،خلاصه ئ داده چه مسئله ظاهره او واضحه ده ،څوك چه ترینه انکار کوی نو محض د ضد اوتعصب د وجی نه ئ کوی﴿عَلَىٰ بَيِّنَةٍ﴾ مدارك وائی چه ددې نه دلیل العقل مراد دې ، یعنی مراد د (بَيِّنَة) نه عقل سلیم دې ﴿وَيَتْلُوهُ﴾ ای یلحقه ویتبعه ، یعنی د ده سره وی﴿شَاهِدٌ﴾ ددې نه مراد قران دې ،ځکه چه دې ګواه دې په توحید اوپه رد دشرك باندې﴿مِّنْهُ﴾ ضمیر راجع دې لفظ د الله ﷻ ته﴿وَمِن قَبْلِهِ كِتَابُ مُوسَىٰ﴾ یعنی د قران نه مخکښ کتاب د موسیٰ ﷺ (توراة) هم ورسره وی او حجت وی ورله ﴿إِمَامًا﴾

۱ - خلورمه دعوی.

﴿وَرَحۡمَةً ﴾، آسمانی کتاب دالله ﷻ د طرف نه امام وی څکه چه د هغه اقتدا او تابعداری کولې شی او رحمت وی د خلقو دپاره، او د (افمن کان) دپاره جواب مقدر دې ،چه (ایبقی له شبهة) او مذکور جواب ﴿أُوْلَٰٓئِكَ يُؤۡمِنُونَ﴾ دا قائمقام د دغه محذوف دې ، او دکلام حاصل دادې چه توحید په عقل سره ثابت دې ،او د عقل سلیم مقتضا دې ، او قران هم په دې گواه دی او تورات هم په دې گواه دې ، نو کومه خبره چه په عقل سره هم ثابته وی ،او په اسمانی وحی قران، تورات او ټولواسمانی کتابونو صحیفوسره ثابته وی ، نوپه هغې کښې د شك شبهی هیڅ گنجائش نه وی ، نو مسئله د توحید ظاهره ده ،که څوك ترینه انکار کوی نو هغه د ضد او تعصب په وجه کوی ، لیکن د دې ضد او تعصب انجام دادې چه ﴿فَٱلنَّارُ مَوۡعِدُهُۥ﴾

﴿فَلَا تَكُ فِي مِرۡيَةٖ﴾ دا خطاب دې هر مخاطب ته ، مراد دا دې چه هرکله مسئله ډیره واضحه ده اود شك گنجائش په کښې نشته نو ته هم شك مه کوه څکه چه دا حق دې ،او اکثر خلق د ضد د وجې نه ایمان نه راوړی .

| وَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّنِ ٱفۡتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًاۚ أُوْلَٰٓئِكَ يُعۡرَضُونَ عَلَىٰ رَبِّهِمۡ |
|---|
| او څوك لوئ ظالم دې د هغه چا نه چه جوړوی په الله تعالی باندې دروغ دغه کسان به پیش کولې شی رب خپل ته |
| وَيَقُولُ ٱلۡأَشۡهَٰدُ هَٰٓؤُلَآءِ ٱلَّذِينَ كَذَبُواْ عَلَىٰ رَبِّهِمۡۚ أَلَا لَعۡنَةُ ٱللَّهِ |
| اوبه وائی گواهی ورکونکی چه دا هغه خلق دی چه دروغ ئ ویلی وو په رب خپل باندې، خبردار! لعنت د الله تعالی دې |
| عَلَى ٱلظَّٰلِمِينَ ١٨ ٱلَّذِينَ يَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ وَيَبۡغُونَهَا عِوَجٗا وَهُم |
| په ظالمانو . دا هغه کسان دی چه خلق منع کوی د لارې د الله تعالی نه او لټوی په هغې کښې کږلیچ، او دوئ |
| بِٱلۡأٓخِرَةِ هُمۡ كَٰفِرُونَ ١٩ أُوْلَٰٓئِكَ لَمۡ يَكُونُواْ مُعۡجِزِينَ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَمَا كَانَ لَهُم |
| د آخرت نه هم انکار کونکی دی . دغه کسان نشی بچ کیدې د الله تعالی د عذاب نه په ټوله زمکه کښې، اونه به وی دوئ لره |
| مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِنۡ أَوۡلِيَآءَۘ يُضَٰعَفُ لَهُمُ ٱلۡعَذَابُۚ مَا كَانُواْ يَسۡتَطِيعُونَ |
| ما سوی د الله تعالی نه څوك دوستان، دوچند کولې به شی دوئ لره عذاب (څکه) چه نه وو دوئ چه طاقت ئ لرلو |

السَّمْعَ وَمَا كَانُوْا يُبْصِرُوْنَ ۞ أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ

د اوریدلو د حق (بد پرې لګیدلو) اونه دوئ لیدلو حق لره، دا هغه کسان دي چه په تاوان کښ ئ اچولی دی خپل ځانو

وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ۞ لَا جَرَمَ اَنَّهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ هُمُ الْاَخْسَرُوْنَ ۞

او ورك به شي د دوئ نه هغه چه دوئ خه دروغ جوړول. خامخا بیشکه دوئ به په آخرت کښ هم دوئ لوئ تاوانیان وی

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَاَخْبَتُوْٓا اِلٰى رَبِّهِمْ ۙ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۚ

بیشکه هغه کسان[1] چه ایمان ئ راوړي دي او عملونه کوی نیك او عاجزی کوی خپل رب ته دغه کسان جنت والا دی

هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۞ مَثَلُ الْفَرِيْقَيْنِ كَالْاَعْمٰى وَالْاَصَمِّ وَالْبَصِيْرِ وَالسَّمِيْعِ ۭ

دوئ به پدې کښ همیشه وی. مثال د دې دواړو ډلو په شان د ړوند او کوڼ دې او پشان د لیدونکی اوریدونکی دې

هَلْ يَسْتَوِيٰنِ مَثَلًا ۭ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ۞

آیا برابر دی دا دواړه په مثال کښ، آیا پس نصیحت نه اخلئ تاسو.

﴿ وَمَنْ اَظْلَمُ ﴾ دا زجر اوتخویف دې ،یعنی دغه شان سړې ډیر غټ ظالم دې چه په الله ﷻ باندې دروغ اوائی ، یعنی الله ﷻ لره شریك جوړکړی ، یا انکار د قران نه یا د رسول نه اوکړی ﴿ يُعْرَضُوْنَ عَلٰى رَبِّهِمْ ﴾ پیشی دالله ﷻ په حضور کښ د ټولو خلقوده ، لیکن د دوئ تخصیص ځکه اوشو ، چه د دوئ پیشی د رسوا کولو دپاره ده ، نو د (يعرضون) معنی دا ده،چه د دوئ د جرمونو، شرارتونو دفتر به د دوئ سره ،علی رؤس الاشهاد ، ښکاره پیش کړې شی، ﴿ وَيَقُوْلُ الْاَشْهَادُ ﴾ او د اشهادو نه مراد ملائك او پیغمبران او مؤمنانو دی ،او چاویلی دی چه د دوئ جوارح مراد دی ، یعنی دا ټول ګواهان به ګواهی اوکړی په دې چه دوئ په الله ﷻ دروغ تړلی دی ، او نسبت د شریك ئې الله ﷻ ته کړې وو﴿ اَلَا لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ﴾ دا کلام د اشهادو دې ،یا کلام دالله دې﴿ وَيَبْغُوْنَهَا ﴾ دا په اصل کښ (يبغون لها) وو، او ضمير راجع دې

---

۱ - بشارت.

«سبیل» ته او سبیل ته ضمیر د مذکر او مونث دواړو راجع کیدې شی .او مراد دینه شکوك او شبهات اچول دی په زړونود خلقو کښ،په باره د توحید او اسلام کښ .او په (یبغونها) کښ اشاره ده ،چه په سبیل الله کښ کوږوالی نشته دې خو ظالمان ئی په ضد سره په هغی کښ جوړوی ،دې دپاره چه خلق ترینه واوړی ،اوپه دې آیت کښ اشاره ده . دینه چه دوئ ضال هم وو او مضل هم وو﴿مُعۡجِزِينَ﴾ دا لازمی هم راځی په معنی د (مفلتین) یعنی بچ کیدونکی او متعدی هم راځی یعنی عاجزه کونکی دی الله ﷻ لره د عذاب ورکولونه﴿مِنۡ أَوۡلِيَآءَ﴾ هیڅ څوك مددگاران، شفعاء ﴿يُضَٰعَفُ لَهُمُ ٱلۡعَذَابُ﴾ دوچند عذاب په دې وجه دې چه دوئ ضال هم وو او مضل هم وو، یا دا مطلب دې چه دجهنم عذاب به هره هره لمحه کښ زیاتیږی .او (ضِعف) ، په لغت کښ زیادت غیر محصوره ته ویلې شی .

﴿مَا كَانُواْ يَسۡتَطِيعُونَ ٱلسَّمۡعَ﴾ دا په ظاهر کښ نفی د استطاعت ده ، نو **سوال** واریدیږی چه بیا ولې دوئ مکلف کړی شو ، **جواب** دا ظاهر نه دې مراد ، بلکه دا کنایه ده د ډیر عناد او تعصب نه یعنی د حق سره ئی دومره تعصب وو، او حق په دوی دومره بد لگیده ،او دومره ثقیل وو پرې چه د ډیر عناد دوجې نه ئی طاقت د اوریدلو نه لرلو ،او دا نظیر د دې قول د قائل دې ، (العاشق لا یستطیع ان یسمع کلام العاذل)، او شاه ولی الله رحمه الله فرمائی چه ممکنه ده چه حرف استفهام مقدر وی، یعنی آیا دوئ طاقت نه لرلو د اوریدلو او د لیدلو ﴿وَضَلَّ عَنۡهُم مَّا﴾ (ضل) په معنی د غاب سره دې ، د ﴿مَّا كَانُواْ يَفۡتَرُونَ﴾ نه مراد د دوئ مزعومه شفعاء دی .او هغه به څکه غائب شی چه هغه په حقیقت کښ معبودان او شفعاء نه وؤ او کوم نیکان خلق چه دوئ خپل ځان له معبودان او شفعاء گرزولی وونوهغه به جنت ته لاړشی او مشرکین به جهنم ته لاړشی، نو غائب به شی ترینه ﴿لَا جَرَمَ﴾ یعنی دا خبره حقه او یقینی ده او داصل معنی په اعتبار سره په دې کښ مختلف اقوال دی : (۱) فراء او زجاج وائی چه لا لنفی الجنس دې او (جرم) په معنی د (بُدّ) او (محالة) سره ورله اسم دې ، مابعد ئی خبر دې نو د لاَجَرَم معنی شوه (لابد لا محالة) (۲) او بعض وائی چه (لا) زائد دې او جرم په معنی د حق سره دې، (۳) او بعض وائی چه مجموعه د (لاجرم) په معنی د (حَقّ) سره دې ، (۴) او سیبویه وائی چه (لا) د پاره د نفی د گمان د خلقو دې، او جرم په معنی د کسب سره دې ، نو معنی داشوه چه داسې نه ده لکه چه

دوئ گمان کوی. بلکه کسب کړو ددوئ عملونوخسران په آخرت کښې ﴿ إِنَّ الَّذِينَ ءَامَنُوا ﴾ دا بشارت دې ﴿ مَثَلُ الْفَرِيقَيْنِ ﴾ دامثال د مؤمن او د مشرك دې (اعمیٰ) مقابل د بصير دې او (اصم) مقابل د (سميع) دې.

| |
|---|
| وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِۦٓ إِنِّى لَكُمْ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٢٥﴾ |
| اوپه تحقيق سره ليگلې وؤ [1] مونږ نوح قوم دهغه ته (وې ويل) بيشكه زه ستاسو لپاره يره دركونكې يم ښكاره |
| أَن لَّا تَعْبُدُوٓا۟ إِلَّا ٱللَّهَ ۖ إِنِّىٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ أَلِيمٍ ﴿٢٦﴾ |
| چه عبادت مكوئ د هيڅا سوئ د الله تعالى نه، بيشكه زه يريږم په تاسو د عذاب د ورځې دردناكې. |
| فَقَالَ ٱلْمَلَأُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِن قَوْمِهِۦ مَا نَرَىٰكَ إِلَّا بَشَرًا مِّثْلَنَا وَمَا نَرَىٰكَ |
| پس وه ويل غټانوهغوچه كفر ئ كړې وؤ دقوم دهغه نه، نه وينومونږ تا مگرينده زمونږ په شان اونه وينو مونږ تا |
| ٱتَّبَعَكَ إِلَّا ٱلَّذِينَ هُمْ أَرَاذِلُنَا بَادِىَ ٱلرَّأْىِ وَمَا نَرَىٰ لَكُمْ |
| چه تابعدارى كړيده ستا مگر هغه كسانو چه هغوئ ذليل دى په مونږ كښې په بې فكرئ سره او نه وينو مونږ تاسو لره |
| عَلَيْنَا مِن فَضْلٍۭ بَلْ نَظُنُّكُمْ كَـٰذِبِينَ ﴿٢٧﴾ |
| په مونږ باندې هيڅ غوره والى بلكه گمان كوؤ په تاسو ددروغژن. |

﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا ﴾ دا اوله قصه ده،متعلق ده اولې دعوې سره، لكه څرنگه چه حضورﷺ وائى ﴿أَن لَّا تَعْبُدُوٓا۟ إِلَّا ٱللَّهَ﴾ نو دغه شان خبره نوح عليه السلام هم كړې ده ، چه ﴿أَن لَّا تَعْبُدُوٓا۟ إِلَّا ٱللَّهَ﴾ د نوح عليه السلام نسب په مشهور قول كښې دادې : (نوح بن لَمَكْ بن مُتَوَشْلِخْ بن ادريس) او دې اول نبى د تشريعاتو دې چه راليگلې شوې دې زمكې ته د شرك د رد دپاره ، د ده نه مخكښې انبياءبه د تشريعياتو دپاره هم وو او د تكوينياتو دپاره به هم وو، لكه دا مشهوره ده چه كپړې جوړول او خط ليكل د ادريس عليه السلام د زمانى نه شروع شوى دى ،ابن عباس رضي الله عنه فرمائى چه نوح عليه السلام ته په څلويښتم كال نبوت وركړې شوې دې او نه نيم سوه (۹۵۰)كاله ئې تبليغ كړې دې،او د

[1] - اوله قصه د اولې دعوې سره متعلق.

طوفان نه روستو شپیته کاله ژوندې وو، نو ټول عمر ئې یوزر پنځوس کاله وو. او مقاتل وائی ، چه نوح علیه السلام سل کالو په عمر کښې مبعوث شوې دې . او چا ویلی دی چه دوه نیم سوه کالو په عمر کښې مبعوث شوې دې او نه نیم سوه کاله ئې تبلیغ کړې دې .او د طوفان نه روستو دوه نیم سوه کاله ژوندې وو نو ټول عمر ئې څوارلس نیم سوه کاله وو. «روح المعانی» اوپه دې وجه ورته اطول الانبیاء عمرًا ویلې شی ، ﴿إِنِّي لَكُمْ﴾ دلته قائلا یاقال مقدر دې «ای قال انی لکم نذیر»او ﴿مُّبِينٌ﴾ ویلو کښې اشاره ده چه نبی نه کتمان د حق کوی .او نه د چا لحاظ کوی په بیان د حق کښې ﴿أَن لَّا تَعْبُدُوٓا﴾ دا مفعول د مبینٌ دې یا بدل دې د «انی لکم نذیر» نه ﴿إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ﴾ دلته «ان عبدتم غیره تعالی» یا «ان اعرضتم» مقدر دې ﴿عَذَابَ يَوْمٍ أَلِيمٍ﴾ د «یوم» نه مراد یوم قیامت دې ، یا یوم طوفان دې ،او «الیم» صفت د یوم دپاره دې. په طریقه د اسناد مجازی سره، ځکه دا مولم عذاب دې، لیکن عذاب واقع دې په ورځ کښې ځکه ورځې ته دردناك ویلی شوی دی ، یا «الیم» صفت د عذاب دې او جر ئې جر د جوار دې .

﴿فَقَالَ ٱلْمَلَأُ ٱلَّذِينَ﴾ ملاء اشرافو او غټانو د قوم ته ویلې شي، شرافت ئې دنیاوی وی او که اخروی وی،غټانو ته ملاء ځکه وائی چه «ملوء» په معنی د ډکوالی سره دې .او دوئ هم ډك دی په مال او جاه سره ،او هر کله چه په مال او جاه سره په انسان کښې تکبر پیدا کیږی نو د دې وجې نه د غټانو په طریقه د تکبر سره څلور اعتراضونه اوکړل : اول دا چه ﴿مَا نَرَىٰكَ إِلَّا بَشَرًا مِّثْلَنَا﴾ یعنی ته خو زمونږ په شان بشر ئی او بشر خو رسول نه شی کیدې،لهٰذا ته رسول نه ئی ، مشرکان د رسالت او بشریت په مینځ کښې د تضاد قائل وو ، یعنی څوك چه رسول وی نو هغه به بشر نه وی او څوك چه بشر وی نو هغه به رسول نه وی ،حالانکه په انسانانو کښې چه لکه څرنګه د رسول رسالت قطعی وی نو دغه شان ئې بشریت هم قطعی وی .او دویم اعتراض ئې دادې ﴿وَمَا نَرَىٰكَ ٱتَّبَعَكَ إِلَّا ٱلَّذِينَ﴾ یعنی ستا تابعداران د مال په لحاظ سره او د نسب په لحاظ سره ډیر ذلیل او خوار خلق دی ، نو که ته رسول وې ، نو اکابرو او اشرافو به ستا اتباع کړې وې ،اتباع د رسولانو لکه په حدیث د هرقل کښې دی چه اکثر غریبان خلق دی .

﴿أَرَاذِلُنَا﴾ جمع د ارزل ده ،لکه اکابر جمع د اکبر ده ،او «أحاسن» جمع د احسن ده

﴿بَادِيَ ٱلرَّأْيِ﴾ یعنی دوئ چه اتباع کړې ده نو بې سوچه ئې کړې ده ، نو که دوئ سوچ،

فکر کړې وي. نو ستا تابعداري به ئې نه وي کړې .او (بادي) یا د بدو نه مشتق دې په معنی د ظاهر سره. یا د بداء نه مشتق دې. په معنی د اول سره . او دریم اعتراض دادې چه ﴿ وَمَا نَرَىٰ لَكُمْ عَلَيْنَا مِن فَضْلٍ ﴾ دلته صیغه د جمع ذکر کړې شوې ده خکه چه دا اعتراض په نوح ﷺ هم وو په دعوه د رسالت کښې او په آتباعو باندې په تصدیق د نوح کښې. مطلب دادې چه نه داسې مفلسانو (لکه حجام موچی جولا) لره مونږ باندې فضیلت شته دې او نه د داسې خلقو اتباع کول موجب د شرافت دی، او څلورم اعتراض دادې چه ﴿ بَلْ نَظُنُّكُمْ كَاذِبِينَ ﴾ یعنی تاسو دروغژن یئ او په دروغه دا څو بې وقوفان جمع شوی یئ، او یو تحریك مو شروع کړې دې.او خپل تفوق په مونږ حاصلوئ

| |
|---|
| قَالَ يَٰقَوْمِ أَرَءَيْتُمْ إِن كُنتُ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّي وَآتَانِي |
| وه ویل نوح اې قومه خما ما ته خبر راکړئ که یم زه په ښکاره دلیل د طرف د رب خپل نه او راکړې ئ وی ما ته |
| رَحْمَةً مِّنْ عِندِهِ فَعُمِّيَتْ عَلَيْكُمْ ۖ أَنُلْزِمُكُمُوهَا |
| رحمت (نبوت) د خپل طرف نه پس پټ پاتې شوې وی ستاسونه، آیا مونږ مجبوره کولې شو تاسو په قبلولو د هغې |
| وَأَنتُمْ لَهَا كَارِهُونَ ۞ وَيَٰقَوْمِ لَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مَالًا ۖ إِنْ أَجْرِيَ |
| او حال دا چه تاسو دې لره بد گنړئ او اې قومه خما ! نه غوارم ستاسونه پدې بیان کولو هیڅ مال، نه دې اجر خما |
| إِلَّا عَلَى اللَّهِ ۚ وَمَا أَنَا بِطَارِدِ الَّذِينَ آمَنُوا ۚ إِنَّهُم مُّلَاقُوا |
| مګر په الله تعالی دې، او نه یم زه شړونکې هغه کسانو لره چه ایمان ئ راوړې دې بیشکه دوئ ملاقات کونکی دی |
| رَبِّهِمْ وَلَٰكِنِّي أَرَاكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُونَ ۞ وَيَٰقَوْمِ مَن يَنصُرُنِي |
| د رب خپل سره، لیکن زه وینم تاسو لره داسې قوم چه جهالت کوئ او اې قومه خما ! څوك به بچ کړی ما لره |
| مِنَ اللَّهِ إِن طَرَدتُّهُمْ ۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ۞ |
| د عذاب د الله تعالی نه که زه وشړم دوئ آیا پس نصیحت نه قبلوئ تاسې. |

﴿ قَالَ يَٰقَوْمِ أَرَءَيْتُمْ ﴾ دا جواب دې د هغوئ د سوالاتو نه ،د اول سوال جواب دادې چه

بیشکه زه بشر یم خو الله ﷻ رحمت یعنی نبوت راکړې دې .اول د نبی امتیاز د نورو خلقونه په تقوی، حق پرستئ، صداقت، امانت وغیره صفاتو سره وی. نو که دا صفات په ما کښې ښکاره موجود وی او یقینی موجود دی لیکن چه لکه څرنګه ړوند ته د شمس رڼا په نظر نه راځی نو دغسې ستاسو سترګی هم حق نه وینی ، نو آیا زه تاسو مجبور کولې شم په قبلولو د حق باندې . یعنی زما حقانیت او صفات نبوت چه تاسو نه وینئ او وایئ چه ته زمونږ پشان بشر ئی نو دا په حقیقت کښې ستاسو د زړه سترګې ړندې دی، که نه وی نو زه ستاسو په شان نه یم . بلکه زه ممتاز یم په اعلی اخلاقو او تمامو صفاتو د نبوت سره ، او د دریم سوال جواب دادې چه فضیلت د یو بشر په بل بشر باندې د صفاتو په اعتبار سره وی .او دغه صفات په مونږ کښې واضح موجود دی ﴿ وَيَٰقَوۡمِ لَآ أَسۡـَٔلُكُمۡ ﴾ دا د دویم او څلورم سوال جواب دې یعنی زما تابعداران که غریبان او خوار خلق دی نو زه خو په تبلیغ باندې څه مالی معاوضه نه غواړم (چه زما مقتدیان دې مال دار وی چه ماسره مد د کوی) بلکه أتباع د رسولانو غریبان خلق وی ، او دارنګه زه به دروغ ولې وایم که بالفرض ما په دروغه د نبوت دعوی کړی وی نو په دې کښې ماته څه فائده ده؟ د دروغو د دعوې فائده خو دا وی چه د هغې په ذریعه مال حاصل کړې شی، لکه دا مشاهده ده چه د دروغو د نبوت دعوی کونکو او دغسې د دروغو د پیرئ دعوه کونکی مقصد حصول د مال وی ﴿ أَنُلۡزِمُكُمُوهَا ﴾ دلته مضاف مقدردې (ای انلزمکم قبولها) ﴿ وَمَآ أَنَا۠ بِطَارِدِ ٱلَّذِينَ ﴾ کفارو ویل چه ستا متبعین ډیر ذلیل او خوار خلق دی، نودوئ د خپل مجلس نه اوباسه نو مونږ به ستا اتباع اوکړونو د دې جواب راغې چه څه دا حق نه لرم ځکه چه دوئ دالله ﷻ سره ملاقات کونکی دی نوپه مابه شکایت اوکړی دالله ﷻ په حضور کښې چه یا الله! نبی ﷺ مونږ د مجلس نه شړلی یو ﴿ إِنَّهُم مُّلَٰقُواْ رَبِّهِمۡ ﴾ یعنی د قیامت په ورځ به د خپل رب سره ملاقات کوی، یامعنی داده چه دوئ مقربین د الله ﷻ دی نو د الله ﷻ مقربین چرته شړلې شم ﴿ وَيَٰقَوۡمِ مَن يَنصُرُنِي ﴾ دادویم جواب دې دهغوئ د قول، یعنی که زه دوئ اوشړم نو ما به دالله ﷻ د عذاب نه څوك بچ کړی .

•

| وَلَآ أَقُولُ لَكُمۡ عِندِي خَزَآئِنُ ٱللَّهِ وَلَآ أَعۡلَمُ ٱلۡغَيۡبَ وَلَآ أَقُولُ إِنِّي مَلَكٌ |
|---|
| اونه وایم زه تاسو ته چه ځما سره دی خزانې د الله تعالی، اونه پوهیږم څه په غیب باندې اونه وایم چه زه فرشته یم |

وَلَآ اَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ تَزْدَرِيْٓ اَعْيُنُكُمْ لَنْ يُّؤْتِيَهُمُ اللّٰهُ خَيْرًا ؕ

او نه وايم به باره دهغه كسانو كښې چه سپك ئې ګڼړي سترګې ستاسي چه هيڅرې به ورنکړي الله تعالى دوئ ته خه خير

اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ ۚۖ اِنِّيْٓ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۝

الله تعالى ښه پوهيږي په هغه خه چه په زړونو د دوئ كښې دي، بيشكه زه به په دغه وقت كښې خامخا د ظالمانو نه يم

قَالُوْا يٰنُوْحُ قَدْ جٰدَلْتَنَا فَاَكْثَرْتَ جِدَالَنَا

وه ويل دوئ اې نوح په تحقيق سره تا جګړې وكړې زمونږ سره پس زياتې دې كړې جګړې زمونږ سره

فَاْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ۝ قَالَ اِنَّمَا يَاْتِيْكُمْ

پس راوړه مونږ ته هغه خه چه ته يروې مونږ لره په هغې، كه ئې ته د ريشتينو نه وه ويل نوح بيشكه راولى به تاسو ته

بِهِ اللّٰهُ اِنْ شَآءَ وَمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ ۝ وَلَا يَنْفَعُكُمْ نُصْحِيْٓ

دا عذاب الله تعالى كه ئې وغواړي. اونه به يئ تاسو بچ كيدونكي دهغه نه او فائده نه دركوى تاسو ته نصيحت خما

اِنْ اَرَدْتُّ اَنْ اَنْصَحَ لَكُمْ اِنْ كَانَ اللّٰهُ يُرِيْدُ اَنْ يُّغْوِيَكُمْ ؕ هُوَ رَبُّكُمْ ۫

كه زه وغواړم چه نصيحت كوم تاسو ته، ليكن چه الله تعالى غواړي چه بې لارې كړي تاسو . الله تعالى ستاسو رب دې

وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۝ اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ؕ قُلْ

اوخاص هغه ته به بوتلې شئ تاسو آيا دوئ وائي چه ده خپل خان د طرف نه جوړ كريدې دا كتاب ، وه وايه

اِنِ افْتَرَيْتُهٗ فَعَلَيَّ اِجْرَامِيْ وَاَنَا بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تُجْرِمُوْنَ ۝

كه ما د خان نه جوړ كړې وى دا نو پس په ما باندې دې ګناه خما او زه خلاص يم د هغه ګناه نه چه تاسو ئې كوئ

﴿وَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِيْ خَزَآئِنُ اللّٰهِ﴾ داد مشركينو د سوالاتو جوابونه دى او سوالات د نوح ﷺ متعلق دى يا د نبى ﷺ سره متعلق دى نو په دې تقدير دا جمله معترضه ده. اول **سوال** دادې چه كه ته نبى يې نو تاسره خزانې ولې نشته چه مخلوق ته ئې وركړې **جواب** نبى ﷺ خلقو ته د دين او هدايت دپاره رازى د خزانو وركولو دپاره نه رازى ، دويم **سوال** چه كه ته نبى ئې نو مونږ ته

دغیب دکارونو خبر ولې نه راکوې. **جواب** نبی ﷺ دغیب دعوه نه کوی بلکه مخلوق نه احکامات الهیه بیانوی ﴿وَلَآ أَعۡلَمُ ٱلۡغَيۡبَ﴾ دا یا عطف دې په (عندی خزائن الله) باندی (ای لا اقول اعلم الغیب) یعنی د علم غیب دعوه نه کوم. یا داعطف دې په ﴿وَلَآ أَقُولُ﴾ باندې نو دا نفی د اصل فعل ده، او دلته نفی د اصل فعل اوشوه. اګر که په ماقبل او ما بعد کښې نفی د قول شوی ده دپاره د مبالغی په نفی د دې صفت کښې چه علم غیب دې ((مبالغة فى نفى هذه الصفة التى ليس لاحد سوالله منها نصيب اصلا)) .(روح المعانى) دریم **سوال** دا چه ته بشر ئی او بشر خو رسول نه وی، **جواب** بیشکه زه بشر یم لیکن الله ﷻ ماته د انسانیت بلند مقام نبوت راکړې دې ﴿وَلَآ أَقُولُ لِلَّذِينَ تَزۡدَرِيٓ﴾ ای تحتقر،یعنی کوم خلق چه ستاسو په نظر کښې حقیر وی نو د هغوئ په باره کښې زه دانه وائم چه الله ﷻ به دوئ ته هیڅ خیرنه ورکوی. نه په دنیا کښې او نه په آخرت کښې، د خیر تعلق د مال دولت سره نه دې بلکه د باطنی صفاتو سره دې .او الله ﷻ خه عالم دې د دوئ په اخلاص او للهیت باندې .

﴿قَالُواْ يَٰنُوحُ﴾ حضرت نوح ؑ نه نیم سوه ۹۵۰ کاله تبلیغ اوکړو د کفارو د سوالاتو معقول جوابات ئی ورکړل .او په دې کښې په سوونو کاله تیر شول چه کفار لاجواب شو نو دوئ اووئیل چه نوره د سوالونو جوابونو سلسله ختمه شوه ،که ته ریشتنې نبی ئی نو د کوم عذاب چه ته مونږ ته دهمکی راکوې نو هغه راوړه ﴿قَالَ إِنَّمَا يَأۡتِيكُم﴾ نوح ؑاویل چه عذاب څماپه اختیار کښې نه دې بلکه دالله ﷻ په اختیارکښې دې . په خپل وخت به ضرور رازی اوچه کله راشی نو بیا به هیڅ څوك بچ نه شی ﴿وَلَا يَنفَعُكُمۡ نُصۡحِيٓ﴾ یعنی لکه چه څرنګه عذاب راوستل د الله ﷻ په اختیار کښې دی ، نو دغه شان هدایت ورکول او هدایت نه محروم کول هم د الله ﷻ په اختیار کښې دی، نو که زه تاسو ته نصیحت کوم لیکن چه الله ﷻ ستاسو د هدایت فیصله نه ده کړی نو زما نصیحت تاسوته څه نفع نه درکوی ﴿أَمۡ يَقُولُونَ ٱفۡتَرَىٰهُ﴾ داشکوه او جواب د شکوه دې ،او د دې تعلق یا د نوح ؑ او د هغه قوم سره دې. یا زمونږ د نبی ﷺ خپل قوم سره دې او په دی تقدیر دا جمله معترضه ده ﴿فَعَلَيَّ إِجۡرَامِي﴾ دا په حذف د مضاف سره دې یعنی په ما باندې وبال او عذاب د جرم زمادې، (اجرام) کسب کولود جرم ته وائی .

| |
|---|
| وَاُوْحِيَ اِلٰى نُوْحٍ اَنَّهٗ لَنْ يُّؤْمِنَ مِنْ قَوْمِكَ اِلَّا مَنْ قَدْ اٰمَنَ |
| او وحی وکړې شوه نوح ته چه بیشکه هیڅوک ایمان نه راوړی د قوم ستا نه مګرهغه څوک چه ایمان ئ راوړی دی. |
| فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ۝ وَاصْنَعِ الْفُلْكَ بِاَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا |
| پس ته مه غمژن کیږه په هغه کارونو چه دوئ ئ کوی . اوجوړه کړه کشتئ زمونږ په نګرانئ کښ او زمونږ د هدایاتو مطابق |
| وَلَا تُخَاطِبْنِيْ فِي الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ۚ اِنَّهُمْ مُّغْرَقُوْنَ ۝ وَيَصْنَعُ الْفُلْكَ ۖ |
| او خبرې مکوه ما سره (سفارش مه کوه) په باره د ظالمانو کښ، بیشکه دوئ به غرقولې شی. اونوح جوړوله کشتئ |
| وَكُلَّمَا مَرَّ عَلَيْهِ مَلَاٌ مِّنْ قَوْمِهٖ سَخِرُوْا مِنْهُ ۚ قَالَ |
| اوکله به چه ورتیریدل په ده یوه ډله د غټانو د قوم د ده نه نو توقې به ئ کولې په ده پورې، نو وه به ویل نوح |
| اِنْ تَسْخَرُوْا مِنَّا فَاِنَّا نَسْخَرُ مِنْكُمْ كَمَا تَسْخَرُوْنَ ۝ |
| که تاسو توقې کوئ په مونږ پورې پس مونږ به هم توقې وکړو په تاسو پورې لکه چه تاسو په مونږ پورې توقې کوئ |
| فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۙ مَنْ يَّاْتِيْهِ عَذَابٌ يُّخْزِيْهِ |
| نو زر ده چه پوهه به شئ، تاسو به معلوم کړئ هغه څوک چه رازی په هغه عذاب چه رسوا به ئ کړی |
| وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ۝ |
| او نازل به شی په هغه باندې عذاب همیشه. |

﴿وَاُوْحِيَ اِلٰى نُوْحٍ﴾ دا تمهید دې قصې د هلاکت دقوم دنوح ﷺ ته ،یعنی الله ﷻ نوح ﷺ په ذریعه د وحی سره خبر کړو ،چه د چا په قسمت کښ چه ایمان وونو هغوئ ایمان راؤړو ،او د دې نه علاوه نور قوم ایمان نه راوړی نو پس ته مه غمژن کیږه د دوئ په استهزاء او تکلیف رسولو څکه چه د دوئ د هلاکت وخت قریب دې ،او د دې نه روستو بیا نوح ﷺ خیرې اوکړې ﴿رَبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْاَرْضِ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ دَيَّارًا﴾ نوبیا ورته حکم اوشوچه ﴿وَاصْنَعِ الْفُلْكَ﴾ او د دې آیت نه معلومه شوه ، چه نوح ﷺ دا وئیلی وو، ﴿اِنَّكَ اِنْ تَذَرْهُمْ يُضِلُّوْا عِبَادَكَ وَلَا يَلِدُوْا اِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا﴾ نو دا د علم غیب په وجه نه وه لکه داخبره اهل بدعت کوی چه انبیاء لره علم غیب ثابت دې

ځکه چه نوح ﷺ ویلی وو (انك ان تذرهم – الخ) ځکه چه د دې د آیت نه دا صراحةً معلومه شوه چه نوح ﷺ الله پاك خبر کړې ووپه ذریعه د وحی سره چه نور خلق سنا د قوم نه نه مسلمانیږی ، نو ځکه بیا نوح ﷺ خیری اوکړې چه (رب لاتذرعلی الارض الخ) ﴿ وَٱصۡنَعِ ٱلۡفُلۡكَ ﴾ دا تدبیر خودل دی نوح ﷺ ته دپاره د نجات دغرق نه ﴿بِأَعۡيُنِنَا ﴾ زمونږ په نګرانئ کښ ﴿وَوَحۡيِنَا﴾ زمونږ د حکم او د هدایت مطابق ، په تفسیر قرطبی کښ د انس بن ربیع نه روایت دې چه ﴿بِأَعۡيُنِنَا ﴾ معنی (بحفظنا ایاك)) دې ، او ابن عباس ؓ نه روایت دې چه د دې معنی (بحِرَاستِنَا) دی نو دې تفسیر ته مخالف د سلفونه ویل صحیح نه دی. بلکه محققینو مفسرینو لکه روح المعانی، قرطبی، شربینی حضراتو هم دا معنی کړې ده ، د دې څه بعض تفصیل هم مخکښ هم (په بحث دَ متشابهاتو کښ) تیر شوې دې ﴿وَيَصۡنَعُ ٱلۡفُلۡكَ ﴾ دا خبر د کان دې په دې کښ داستمرار معنی ده (ای کان ویصنع الفلك) ویلی شوی دی چه کشتئ په ډیرو کلونو کښ تیاره شوه او په دې کښ جدا جدا درجې وې ، یوه حصه دَ انسانانو دپاره وه او بله حصه د حیواناتو دپاره وه ، او بله حصه دَ خوراکونو او راشن دپاره وه، مفسرینو د دې په تفصیل کښ عجیب او غریب اسرائیلیات ذکر کړی دی، لکه یو دا چه کشتئ د کوم قسم لرګی نه جوړه شوې وه ،طول عرض ئی څومره وو،چه په څو کلونو کښ تیاره شوې وه . وغیر ذالك ، امام رازی او آلوسی وغیره حضراتو ویلی دی چه دا ټولې خبرې بی کاره او بی ضرورته دی . دمؤمن د پاره صرف دومره ضروری ده چه په دی کښ دومره ګنجائش وو چه انسانان او حیوانات په کښ جوړه جوړه راغلی وو، باقی تفصیلاتو ته نه په کتاب الله کښ اشاره شویده او نه په سنت کښ ئی بیان شته نو په دغه تفصیل ذکر کولو کښ ئ هیڅ فائده نشته ﴿سَخِرُواْ مِنۡهُۚ﴾ مسخره دا وه چه تراوسه پورې پیغمبر وو او اوس نجار (ترکاڼ) شو ، یا دا چه په وچه کشتئ جوړلو ته څه ضرورت دې ، دلته خو دریاب نشته دې دا خو دمجنونانو کار دې. یا دا چه دوئ تر اوسه پورې کشتئ نه وه لیدلی لکه د ابن عباس ؓ نه روایت دې چه هر کله الله ﷻ ورته حکم اوکړو (واصنع الفلك) نو نوح ﷺ اووئیل (یارب وماالفلك) ای زما ربه ، کشتئ څه شئ دې نو الله ﷻ اوفرمائیل چه :(بیتٌ من خشب یجری علی الماء قال یا رب واین الماء قال انی علی ما اَشاء قدیر) نو د ینه معلومه شوه چه دوئ کشتئ نه پیژندله نو د دې وجې نه ئی

مسخرې کولې ﴿قَالَ إِن تَسْخَرُواْ مِنَّا فَإِنَّا نَسْخَرُ مِنكُمْ﴾ فانا نسخر . د استقبال دپاره دې . يعنى مونږ به مسخرې کووپه تاسو پورې په آخرت کښې لکه په سورة مطففين کښې دى (فاليوم الذين آمنوا من الكفار يضحكون) ياپه دنيا کښې په وخت د نزول د عذاب کښې او که څوك سوال اوکړى چه مسخرې کول مناسب نه دى د شان د انبياؤ سره، نو جواب دادې چه دلته ذکر دمسخرې مشاکلة شوې دې.او مقصود دادې که تاسو مسخرې کوئ نو عنقريب به اوينئ انجام د مسخرو خپلو. أو حضرت شاه عبدالقادر ﷫ د (فانا نسخر منكم) ترجمه په حال سره کوی معنى دا ده چه کفارو مسخرې کولې په نوح ﷺ پورې چه اوبه نشته او دې کشتئ جوړوی اونوح ﷺاو د ده تابعدارانو په دې پورى خندا کوله چه اې بى وقوفانو : هلاکت ستاسو په سر قريب ولاړ دې. او تاسو مسخرې او خنداګانې کوئ ﴿فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن﴾ من موصوله دې اومفعول د تعلمون دې او د دې نه مراد کفاردى ﴿عَذَابٌ يُخْزِيهِ﴾ د دې نه مراد عذاب د دنيا دې ﴿وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُّقِيمٌ﴾ د دينه مراد عذاب د آخرت دې .

| |
|---|
| حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَ أَمْرُنَا وَفَارَ التَّنُّورُ ۙ قُلْنَا احْمِلْ فِيهَا |
| تر دې پورې چه كله راغې حكم زمونږ په عذاب سره اوجوش وكړو تنور مونږ وه ويل سواره كړه پدې كشتئ كښې |
| مِن كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ وَأَهْلَكَ إِلَّا مَن سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ |
| د هر څيز نه جوړې (يعنى دوه څيزونه) اوكورنئ خپله ، سوى د هغه چا نه چه مخكښې شوې ده په هغه فيصله د عذاب، |
| وَمَنْ ءَامَنَ ۚ وَمَآ ءَامَنَ مَعَهُۥٓ إِلَّا قَلِيلٌ ۝ |
| اوهغه څوك چه ايمان ئې راوړې دې (هغه هم سواره كړه) اوايمان نه وو راوړې په ده باندې مګر لږ كسانو |

﴿حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَ﴾ حتى د غائى دپاره دې او دا غايه ده د دې قول دپاره (ويصنع الفلك) او ﴿أَمْرُنَا﴾ كه مفرد د أوامر شى په معنى د حكم سره نو مراد ترينه حكم دې د ركوب په كشتئ كښې يا حكم د جوش وهلو دې زمكى ته يا حكم دې سحاب ته چه باران اووروى يا حكم دې ملائكوته يا ﴿أَمْرُنَا﴾ مفرد د امورو دې ، نومراد ترينه نزول د عذاب دې ﴿وَفَارَ التَّنُّورُ﴾ د جوش وهلونه مراد اوبه راختكيدل دى ،او د تنور نه مراد يا عام تنوردې يا خاص تنو ر دې

لکه په روايت د حسن او مجاهد رحمهما الله کښې دي چه دا تنور د حوا علیها السلام و و چه دوی به نی په کښې پخولي. بيا به نوح عليه السلام سره وو اوپه دې کښې اوبه ځښکيدل علامه د طوفان شروع کيدلو وه، او د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه تنور وجه الارض ته وائي. او چاويلي دي چه دا کنايه ده د غضب الهي نه.

لفظ د تنور په اصل کښې د فارسئ لفظ دې . بيا عربي ګرزولي شوي دې . دې ته معرب ويلې شي ، دا قول د اکثرو علماؤ دې ، بعض وائي چه دا اشتراك د لغاتو دې ﴿مِن كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ﴾ تنوين په (كُلٍّ) کښې عوض دې د مضاف اليه نه (اى من كل نوع) او مراد د دې نه هرهغه نوع ده چه نفع اخلی انسانان د هغې نه ،او په اوبو کښې ژوندي نه پاتيږي .او «زوجين» تثنيه د زوج ده او د زوج اطلاق په دوو معنو سره کيږي : يو هغه څيز چه د بل يو هم جنس سره جوړه وي او يوبل ته محتاج وي، نو مذکر زوج دې د مونث دپاره ،او مونث زوج دې د مذکر دپاره ، او په دې معنی سره د زوج مصداق شئ واحد وي ، اود زوجين مصداق شيئين وي . او دويم اطلاق د زوج په مجموعه د هغه دووڅيزونو کيږي چه هم جنس وي ،او په دې تقدير دزوج مصداق شيئين وي ،او د زوجين مصداق امور اربعه وي، نو دلته چه کله د زوجين نه روستو (اثنين) ذکر شونو معلومه شوه چه زوجين په معنی اوله سره دی ،او (اثنين) بدل يا صفت دې د زوجين دپاره.

دلته هم مفسرينو عجيب اوغريب روايات ذکر کړی دی، ليکن په صحيح سند سره نه دی ثابت ﴿وَأَهْلَكَ﴾ يعنی په کشتئ کښې سواره کړه خپل اهل او مؤمنان، او د اهل نه مراد د نوح عليه السلام بی بی مؤمنه ده، او د نوح عليه السلام ځامن دی چه مؤمنان وؤ چه د مؤمنې بی بی نه پيدا وو. هغه دري دی : يو سام چه د عربو جد اعلی وو، بل حام چه د حبشو، سوډانيانو جد اعلی وو. او روايت کړې دې ابن المنذر او ابی حاتم په واسطه د ابن جريج سره د ابی صالح نه چه حام د خپلې بی بی سره په کشتئ کښې صحبت اوکړو .نو نوح عليه السلام په غصه شو او بد دعا ئی اوکړه . نو نطفه متغيره شوه نو اولاد ئی ځکه تور دې،او بل يافث دې .او دې د ترك او ياجوج ماجوج جد اعلی دې نو د اهل نه دا دری واړه ځامن او د دوئ بيبيانی مراد دی ﴿إِلَّا مَن سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ﴾ ددينه مراد د نوح عليه السلام هغه بله بی بی ده چه کافره ده ، نوم ئی (واعله) وؤ ، او د نو ح هغه ځوئ چه کافر وو، او د دې کافرې بی بی نه پيدا وو، نوم ئ کنعان وو﴿إِلَّا قَلِيلٌ﴾ په دې کښې متعدد

اقوال دی علامه آلوسی وائی چه صحیح روایت په دې کښې دادې چه دوه اوویا ۷۲ کسان وو. او نوح ﷺ درې ځامن وو او د هغوی بیبیانی او دنوح ﷺ بی بی وه نومجموعه کسان سره د نوح ﷺ نه یو کم اتیا دی

| |
|---|
| وَقَالَ ارْكَبُوْا فِيْهَا بِسْمِ اللّٰهِ مَجْرٖىهَا وَمُرْسٰىهَا ؕ |
| او وې ویل چه سواره شئ په دې کشتئ کښې په امداد د نوم د الله تعالی سره دی روانیدل د هغې او ودریدل دهغې |
| اِنَّ رَبِّيْ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝ وَهِيَ تَجْرِيْ بِهِمْ فِيْ مَوْجٍ |
| بیشکه رب خما بښنه کونکې رحم کونکې دې او دا کشتئ روانه وه په دوئ سره په داسې چپو کښې |
| كَالْجِبَالِ ۙ وَنَادٰى نُوْحُ ِۨابْنَهٗ وَكَانَ فِيْ مَعْزِلٍ يّٰبُنَيَّ |
| چه د غرونو په شان وې، او آواز وکړو نوح خپل ځوئ ته، اوهغه وو د کشتئ نه په څه کښې، چه اې خوبه خما |
| ارْكَبْ مَّعَنَا وَلَا تَكُنْ مَّعَ الْكٰفِرِيْنَ ۝ قَالَ سَاٰوِيْۤ اِلٰى جَبَلٍ يَّعْصِمُنِيْ مِنَ الْمَآءِ ؕ |
| سور شه زمونږ سره اومه کیږه د کافرانو ملګرې. وه ویل هغه پناه به ونیسم غر ته چه بچ به کړی ما لړه د دې اوبونه |
| قَالَ لَا عَاصِمَ الْيَوْمَ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ اِلَّا مَنْ رَّحِمَ ۚ |
| وه ویل نوح نشته بچ کونکې نن ورځ د عذاب د الله تعالی نه مګر هغه ذات چه رحم کوی یعنی الله تعالی |
| وَحَالَ بَيْنَهُمَا الْمَوْجُ فَكَانَ مِنَ الْمُغْرَقِيْنَ ۝ |
| او حائله شوه په مینځ د دوئ دواړو کښې چپه نو شو دې د غرق شوؤ نه |

﴿وَقَالَ ارْكَبُوْا فِيْهَا بِسْمِ اللّٰهِ مَجْرٖىهَا وَمُرْسٰىهَا﴾ د (وقال) ضمیر راجع دی نوح ﷺ ته. (بسم الله) متعلق د ((اِركَبوا)) سره دې. حال دې ترینه او مجرٰی او مرسٰی، ظرف زمان دې یا مصدرین دی او وقت په کښې مقدردې، نو تقدیر دا رنګه شو: (اركبوا فيها مسمين الله ،يا قالين بسم الله وقت اجرائها وَاِرْسائها) یعنی سواره شئ په کشتئ کښې په داسې حال کښې چه د الله ﷻ نوم اخلئ او بسم الله وایئ په وقت د چلیدلو او ودریدلو کښې. لکه ویلی دی ضحاک رحمه الله چه نوح ﷺ به کله اراده اوکړه د روانولو د کشتئ نو ویل به ئی (بسم الله) نو روانه به شوه ،او چه کله به

ئی اراده اوکړه د ادرولو، نو ویل به ئی (بسم الله) نو کشتئ به اودریده .او به دې تقریر باندی مجری او مرسٰی منصوب دی بناء بر ظرفیت او دا هم احتمال دې چه مجری. مرسٰی مصدر میمی شی ، او مبتدا شی نو مرفوع بناء بر ابتدائیت دی . او بسم الله ئی خبر دې ﴿إِنَّ رَبِّي لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ نوح ﷺ خپلو ملګرو ته اوئیل چه سواره شئ او فکر، غم مه کوئ زما رب د مومنانو کوتاهی معاف کونکې دې ،او ډیر مهربان دې ، نو په خپل فضل سره به مونږ صحیح سلامت اوساتی ﴿وَهِيَ تَجْرِي بِهِمْ﴾ دا د محذوف سره متعلق دې (فركبوا مسمين الله تعالى او يا يقولون بسم الله) او (باء) د تلبس دپاره ده ، او دا جار مجرور متعلق دی د (تَجْرِي) سره. یعنی کشتئ روانه ده، متلبس د دوئ سره او موجونه دومره لوئ وولکه د غرونو پشان. ویلی شوی دی چه ثلوینبت ورځې. شپې باران اوشو او د زمکې نه چینې اوبهیدلې . نو اوبه دومره زیاتې شوې چه د غرونو د سرونونه پنځلس ګزه یاثلوینبت ګزه اوچتې شوې ،او تشبیه د موجونو ورکړې شوې ده دغرونوسره په ارتفاع کښ او که څوك **سوال** اوکړی چه اوبه د اسمان او د زمکې خو (مُطبق) او ملاوشوې وې او کشتئ په اوبو کښ دننه چلیده ، په شان دمهی نو بیا د دې څه معنی شوه چه کشتئ چلیده په موجونو کښ په دوئ باندې، نو **جواب** دادې چه چلیدل د کشتئ په موجونوکښ مخکښ د اطباق نه وؤ یعنی چه اوبه د اسمان او د زمکی چه نه وی ملاؤشوې نو موجونه نه وو، او کشتئ په هغی کښ چلیده او بیا چه اوبه د اسمان، زمکې یو ځائی شوې نو بیا کشتئ په اوبو کښ دننه چلیده په شان د مهی ﴿وَنَادَىٰ نُوحٌ ابْنَهُ﴾ نوح ﷺ دعوت ورکړو خپل ځوی ته د سوریدلو په کشتئ کښ، په دې کښ یو دا احتمال دې چه نوح ﷺ پرې د مؤمن ګمان اوکړو نو ځکه ئی دعوت ورکړو چه سور شه په کشتئ کښ. بل دا احتمال دې چه اګر که ده ته علم وو د کفر د هغه لیکن د توقع امید ئ ووچه دا هولناك او خطرناك نشانی لیدو سره به ایمان راؤړی ، نو معنی داشوه : ای بچیه مسلمان شه او په کشتی کښ سور شه؛ لکه چاته اوئیلې شی چه مونځ اوکړه، نو مطلب ئی دادې چه اودس اوکړه نو بیا مونځ اوکړه، بل احتمال دادې چه نوح ﷺ د ﴿وَأَهْلَكَ﴾ په عموم کښ ئی داخل کړې وی ځکه چه ((ومن آمن)) عطف دی په ((اهلك)) باندې نود دې نه دا فهمیږی چه د اهل د رکوب دپاره ایمان نه وی شرط او ﴿إِلَّا مَن سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ﴾ استثناء مجمله وه نو د شفقت پدری د وجې نه ئی دې ته خیال نه دې کړې ﴿وَكَانَ فِي مَعْزِلٍ﴾ یعنی په جدا ځائ کښ او په دده،

ډېره وو د بېلار نه او د کشتۍ نه، يا معنى داده چه په ډېره وو دخپل دين نه . يا دا معنى ده چه په ډېره يعنى په جدا ځاى کښې وود کفارو نه نو گمان اوکړو نوح ﷺ چه دا د دې وجې نه به وي چه دې جدائى خوخوى د کفارونه نو ځکه ئ ورته دعوت ورکړو چه ايمان راوړه او راسور شه ﴿قَالَ سَـَٔاوِيٓ﴾ نو خوى د جهل او غباوت په وجه دا خيال اوکړو چه لکه څرنگه په معمولى سيلاب کښې غر نه ختلو سره سړې بچ کيږى نو دغسې به زه هم بچ شم ﴿قَالَ لَا عَاصِمَ ٱلۡيَوۡمَ﴾ نوح ﷺ اوويل چه دا معمولى سيلاب نه دې چه غر ته يا اوچت ځاى ته په ختلو سره څوك بچ شى دا خو عذاب الهى دې، د دى نه څوك نشى بچ کيدې، مگر هغه څوك چه الله ﷻ پرى رحم اوکړى. او دا گفتگو لا نه وه ختمه شو ى چه موج په مينځ کښې حائل شو او د نوح ﷺ خوى هلاك شو .او د هميشه دپاره د يو بل نه جدا شول ﴿إِلَّا مَن رَّحِمَ﴾ د دې (١) يوه معنى داده چه نشته دې بچ کوونکې هيڅ څوك مگر راحم يعنى الله ﷻ (٢) يا دلته مضاف مقدر دې ،(اى إلاّ مكانُ من رحم الله من المؤمنين) چه هغه سفينه ده، يعنى غر يا بل ځاى د بچ کيدلو نشته، صرف يو ځاى دې . يعنى سفينه مکان د هغه کسانو دې چه الله پرى رحم کړې دې چه مؤمنان دى (٣) يا عاصم اسم فاعل نسبتى دې او اسم فاعل ذى کذا دې لکه دافق په معنى د ذى دفق سره .اوعيشة راضية په معنى د (ذى رضاء وسرور) سره دې نو معنى دا ده چه نشته دې . ذى عصمة يعنى بچ کيدونکى مگر هغه څوك چه الله ﷻ پرې رحم اوکړى ،لا ذا عصمة الا من رحمه الله (۴) يا دا استثناء منقطع ده، نومعنى داده چه نشته دې بچ کونکې د عذاب نه . لکن من رحمه الله فهو المعصوم، ليکن په چا چې الله ﷻ رحم اوکړى هغه بچ شى د عذاب نه .

وَقِيلَ يَٰٓأَرۡضُ ٱبۡلَعِي مَآءَكِ وَيَٰسَمَآءُ أَقۡلِعِي وَغِيضَ ٱلۡمَآءُ

او وه ويلې شو اې زمکى !واپس تيرې کړه خپلې اوبه، او اې آسمانه ! بندې کړه اوبه. او وچې شوې (کمې شوې) اوبه

وَقُضِيَ ٱلۡأَمۡرُ وَٱسۡتَوَتۡ عَلَى ٱلۡجُودِيِّۖ وَقِيلَ بُعۡدٗا لِّلۡقَوۡمِ ٱلظَّٰلِمِينَ ۝

او پوره شو کار د هلاکت د قوم دنوح اوبرابر ودريدله کشتۍ په جودى غر باندې، او وه ويلې شو هلاکت دې قوم ظالمانولره

﴿وَقِيلَ﴾ يعنى اوئيلې شو د طر ف دالله ﷻ نه بالذات يا په واسطه د ملك سره ﴿يَٰٓأَرۡضُ﴾ نداء زمکې او اسمان ته صحيح ده ،ځکه هرڅيز ته الله ﷻ دومره شعور ورکړې دې چه په هغې

سره فهم د امر د الله ﷻ کولې شي نو زمکې ته الله ﷻ حکم اوکړو چه خپلې اوبه اوڅکه او اوچې نی کړه او اسمان ته ئ حکم اوکړو چه بند شه . نو د زمکې اوبه وچې شوې او د اسمان اوبه پاتې شوې. او پوره شو امر د هلاکت دقوم د نوح ﷺ او کومه وعده چه الله ﷻ دنوح ﷺ سره کړې وه هغه پوره شوه ،او کشتئ په جودی غر باندې اودریدله ﴿وَقِيلَ بُعْدًا﴾ بُعداً په معنی : هلاکت سره دې، څکه بُعد د رحمت الهی نه هلاکت دې او صیغه د مجهول ذکر شوه دا دپاره دَ دلالت په کبریاء او جلال دالله ﷻ باندې او دپاره د دلالت په دې باندې چه دغه شان کارونه يو قادر مطلق ذات کولې شي، او بل هیڅ څوك ئ نشي کولې. او بل دپاره د دې چه دلالت وکړی په عموم باندې یعنی د هر طرف نه دا اواز اوشو ،او د ملائکو د طرف نه اوشو چه ﴿بُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظَّالِمِينَ﴾.

جودی یو غردې چه محل وقوع ئ د نوح ﷺوطن اصلی ملك عراق او دموصل ښار سره نزدې په شمال جزیره کښې ابن عمر ته قریب او د ارمینیا په سرحد باندې دې ، د دې يوې حصې ته جودی او بلې حصې ته ارارط وائی او د قتاده نه روایت دې چه الله ﷻ دنوح ﷺ سفینه په جودی غرباقی پریخودله دپاره د عبرت حتی چه اولیدله دې لره اوائلو د دې امت او نورې ډيرې کشتئ چه د دې نه روستو جوړې کړې شوې وې هغه ختمې شوی دی او خاورې شوې دی، او روایت کړیدې امام بغوی ﷫ چه نوح ﷺ په لسم د رجب باندې کشتئ کښې سور شوې وو،او شپږ میاشتې دا کشتئ په طوفان کښې چلیدله ،اوکله چه به د بیت الله شریف مقام ته راورسیدله نو اوه گردشه طواف به ئ اوکړو. او الله ﷻ خپل کور اسمان ته اوچت کړې وو، او د غرق نه ئ بچ کړې وو،او بیا په لسم د محرم په ورځ د عاشوری طوفان ختم شو. کشتئ په جودی غر باندی اودریده ،او حضرت نوح ﷺ د شکریې په طور روژه اونیوله ،او څوك چه ورسره ووهغوئ ته یې هم حکم اوکړود روژې

دلته يو څو سوالات او جوابات دی : (۱) تمام قسمونه د حیواناتو په يو کشتئ کښې څه رنگه ځائ شول . **جواب** : چه کوم حیوانات دریابی دی ، نو دهغې په کشتئ کښې سورولو ته ضرورت نه وو، او کوم چه د اوچې حیوانات دی، نو په هغې کښې چه کومو ته د انسان ضرورت دې مثلا خوړلې شي، سورلئ پرې کولې شي او کار پرې کولې شي، نو دا قسم حیوانات لک دی ، يو ، يو ، جوړه ترینه په کشتئ کښې ځائ کیدل مشکل نه وو .اوکومو ته چه ضرورت نه وو، نو هغه نه دی سواره کړې شوی بلکه غرق شوی دې وی، او بیا دې دوباره

سـدا سوی وی. با دي د غرق نه بچ شوی وی بغیر د کشتئ نه.

۲ **سوال** نا بالغ بچي ولي هلاك شو، **جواب** علامه آلوسی او شربینی وغیره مفسرینو ‌د روایت ذکر کړی دي چه د غرق نه څلویښت کاله قبل په دوئ کښې د توالد او تناسل سلسله بنده شوی وه نو په چا چه عذاب راغلې دې هغه ټول بالغان وو.

(۳) **سوال** د انسانانو نه علاوه نور حیوانات ولې هلاك شو، هغوئ خو څه ګناه نه وه کړې. **جواب** دا د هغوئ دپاره موت طبعي وو، عذاب نه وو.

(۴) **سوال** طوفان عام وو په ټوله دنیا او که په بعضو علاقو وو، لکه عراق موصل او دینه قریب ممالك. **جواب** بعضو د خصوص قول کړی دي لیکن صحیح قول دا دي چه دا عام وو په ټوله دنیا وو. او دا د جمهور علماؤ قول دي، الله ﷻ فرمائي، ﴿وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَهُۥ هُمُ ٱلْبَاقِينَ﴾ ﴿وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى ٱلْأَرْضِ مِنَ ٱلْكَـٰفِرِينَ دَيَّارًا ۝٢٦﴾ د دې نه په واضحه طور سره عموم معلومیږی. نو **سوال** واردیږی چه د دې نه خو عموم بعثت معلومیږی، او حال دا چه عموم بعثت د خصوصیاتو د نبی اکرم ﷺ نه دي، کما قال وبعثت الی الناس کآفة، **جواب**: دعموم بعثت معنی دا ده چه د قیامت پورې تمامو انسانانو ته مبعوث شی، بلکه تمام جناتو ته هم مبعوث شی، او دا معنی ئ نه ده چه صرف د موجوده وخت ټولو انساناتو ته مبعوث شی. نو د عموم د طوفان نه عموم د بعثت نه معلومیږی.

وَنَادَىٰ نُوحٌ رَّبَّهُۥ فَقَالَ رَبِّ إِنَّ ٱبْنِى مِنْ أَهْلِى

او په عاجزئ سره آواز وکړو نوح خپل رب ته وې ویل اې ربه ځما ا بیشکه ځوئ ځما د اهل ځما نه دې

وَإِنَّ وَعْدَكَ ٱلْحَقُّ وَأَنتَ أَحْكَمُ ٱلْحَـٰكِمِينَ ۝ قَالَ يَـٰنُوحُ

او بیشکه وعده ستا حقه ده اوته د ټولو فیصله کونکو نه لوئ فیصله کونکې یې. اوفرمایل الله تعالی چه اې نوح؛

إِنَّهُۥ لَيْسَ مِنْ أَهْلِكَ ۖ إِنَّهُۥ عَمَلٌ غَيْرُ صَـٰلِحٍ ۖ فَلَا تَسْـَٔلْنِ مَا

بیشکه دې ستا د اهل نه ندې بیشکه دې خاوند د خراب عمل وؤ پس تپوس مه کوه ځما نه د هغه خبرې

لَيْسَ لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ ۖ إِنِّىٓ أَعِظُكَ أَن تَكُونَ مِنَ ٱلْجَـٰهِلِينَ ۝

چه تاته ئ علم نشته دې بیشکه زه نصیحت کوم تا ته چه نه شې د نا پوهانو د ډلې نه.

﴿وَنَادَىٰ نُوحٌ رَّبَّهُۥ فَقَالَ﴾ ندا د نوح ﷺ سوال دی او د دې وجې نه وروستو ﴿فَلَا تَسْـَٔلْنِ﴾ ذکر شو، نو **سوال** وارديږی چه هر کله ندا د نوح ﷺ سوال دې نو عطف د (فقال) پرې نه صحیح کیږی په فاء سره، **جواب** دادې چه فاء په (فقال) کښې دپاره د عطف تفسير ده. نو ﴿فَقَالَ رَبِّ إِنَّ ٱبْنِى﴾ تفسير د سوال دې، یا دا جواب دې، چه (نادیٰ) په معنی د (اراد الندیٰ) سره دې نو عطف د (فقال رب) پرې صحیح شو، او په قول د زکریا ﷺ کښې (اذ نادیٰ ربه نداء خفیا)، په معنی د (اراد الندی) سره نه دې نو د دې وجې نه هلته عطف نه دې شوې بلکه (قال رب انی وهن العظم) ویلی شو ی دی، او دا ندا د نوح ﷺ احتمال لری چه د غرق د کنعان نه بعد وی یا قبل وی، او احتمال لری چه نوح ﷺ په هغه باندې د مومن گمان کړی وی، یا ئ پرې د کافر گمان کړې وی، نو که د مومن گمان ئ پرې کړې وی او د غرق نه قبل وی. نو د دې ندا نه مقصود د هغه د بچ کولو انتظام کول دی، او که د غرق نه بعد وی نو د سوال مقصود د اصل معاملې حقیت معلومول دی، او اعتراض په الله ﷻ د وعده خلافئ یا شکایت دالله ﷻ نه مقصود نه دې، نو حاصل د سوال دادې چه کنعان ځما د اهل نه دې ځکه چه نوح ﷺ پرې د مومن گمان کولو، یا دا چه زما د اولاد نه دې، نو نسبی اهل دې، او تا خو زما د اهل د نجات وعده کړې ده نو په دې کښې څه راز دې چه دې هلاك شو، او ستا وعده حقه ده او ته احکم الحاکمین ئ، نو نه ته خلاف د وعدې کوې او نه په تا څه اعتراض شته، ځکه چه ته احکم الحاکمین ئ، په دې کښې نوح ﷺ دا خبره ظاهره کړه چه نه ځما مقصود اعتراض دې په الله ﷻ او نه په هغه باندې په حقیقت کښې څه اعتراض شته، بلکه د اصلی معاملې حقیقت معلومول او د کنعان د هلاکت راز معلومول دی ﴿قَالَ يَٰنُوحُ إِنَّهُۥ لَيْسَ مِنْ أَهْلِكَ﴾ یعنی کنعان د هغه اهل ستا نه ندې چه وعده د نجات ئ شوې وه بلکه دې په ﴿إِلَّا مَن سَبَقَ عَلَيْهِ ٱلْقَوْلُ﴾ کښې داخل دې او دمُغرقینو په زمره کښې داخل دې اود ((ولا تخاطبنی فی الذین ظلموا)) په زمره کښې داخل دې، اگر که د نوح ﷺ په علم کښې دې نه وو داخل په دې کښې بلکه د (قلنا احمل فیها .... واهلك) په زمره کښې داخل دې، د ابن عباس ﷺ او مجاهد ﷺ نه روایت دې، چه کنعان دنوح ﷺ حقیقی او صلبی ځوی وو، په دلیل د دی سره چه (فنادی نوح ابنه) او دا رنگه د (یا بنی) سره او ﴿لَيْسَ مِنْ أَهْلِكَ﴾ معنی داده چه د هغه اهل نه ندې چه د نجات وعده ئ شوی وه، او د حسن بصری

رحمه الله نه مروی دی چه کنعان د نوح علیه السلام ربیب (پرکتی) وو. او دریم قول دادې چه دې ولد زنا وو. او نوح علیه السلام پرې خبرنه وو. امام رازی رحمه الله وائی (هذا قول واه عبث يجب صون منصب الانبياء عن هذه الفضيحة لاسيما وهوخلاف نص القران) ددې قول سند هم نشته. او په دې کښې د انبياؤ توهين دې نو دا قول صحيح نه دې ﴿إِنَّهُ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ﴾ دا دليل دې د (لَيْسَ مِنْ اَهْلِكَ) دپاره. او دلته مضاف محذوف دې (ای ذو عمل غير صالح) او په يو قرائت کښې په صيغه د ماضي سره (إِنَّه عَمِلَ غَيْرَ صَالِحٍ) راغلې دې او بعضوضمير راجع کړې دې سوال د نوح علیه السلام ته چه دا عمل غير صالح دې ليکن دا قول صحيح نه دې ﴿فَلَا تَسْـَٔلْنِ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ﴾ مراد د ينه دا دې چه د چا په ايمان کښې ستا شك وی نو د هغه د نجات سوال مه کوه. نو په دې کښې ادب د دعاء ذکر شو. او د دې نه دا معلومه شوه چه د چا دپاره د ناجائز مقصد د حصول دعا او دا رنګه د تمامو مقاصدو دعا نه ده پکار. بلکه د جائزو او شرعی مقاصدو د حصول دعا پکار ده نو د ﴿مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ﴾ معنی داده چه تاله د کوم شی د جواز او د دې چې دا مرضی د الله جل جلاله دې، علم نه وی نو د هغې سوال مه کوه ، نو دا اعتراض وارد نه شو چه سوال خو سړې د هغه شی کوی چه علم ئې پرې نه وی. او په کوم شی چه علم وی نو دهغې سوال ته څه ضرورت نه وی ﴿إِنِّيْٓ أَعِظُكَ﴾ د وعظ نه مراد منع کول او بچ کول دی، يعنی زه تاته وعظ کوم او تا منع کوم د دې نه چه د بی خبرو خلقو په شان نشې او بعضو خلقو چه ليکلی دی چه نوح علیه السلام د جاهليت کار کړې وو، يا د جاهليت په جذبه کښې راغې نو سوال ئې اوکړو (کما فی تفهيم القران) نو دا دانبياؤ ګستاخی ده.

قَالَ رَبِّ اِنِّيْٓ اَعُوْذُ بِكَ اَنْ اَسْـَٔلَكَ مَا لَيْسَ لِيْ بِهٖ عِلْمٌ

وه ويل ده اې ربه خما بيشکه زه پناه نيسم په تا سره چه زه تپوس وکړم لتا نه د هغې خبرې چه ما ته ئې علم نه وی

وَ اِلَّا تَغْفِرْ لِيْ وَتَرْحَمْنِيْٓ اَكُنْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ ۞ قِيْلَ يٰنُوْحُ اهْبِطْ

اوکه نه ما ته بښنه ونه کړې او په ما رحم ونه کړې نو زه به شم د تاوانيانونه. وه ويل شو : اې نوح ! کوز شه

بِسَلٰمٍ مِّنَّا وَبَرَكٰتٍ عَلَيْكَ وَعَلٰٓى اُمَمٍ

سره د سلامتيا نه په تا باندې زمونږ د طرفه او د برکتونونه په تا باندې او په هغه ډيرو اُمتونو باندې

| مِّمَّنْ | مَّعَكَ | ط | وَأُمَمٌ | سَنُمَتِّعُهُمْ | ثُمَّ | يَمَسُّهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چه پيدا کيږي به دهغه چا نه چه ستا سره دي. او نور ډير امتونه به وي چه مونږ به ورته نفع د دنيا ورکړو بيا به رسيږي دوئ ته | | | | | | |

| مِّنَّا عَذَابٌ أَلِيمٌ ۞ تِلْكَ مِنْ أَنْبَاءِ الْغَيْبِ نُوحِيهَا إِلَيْكَ ۚ |
|---|
| زمونږ د طرفه عذاب دردناك دا (چه بيان شو)[1] بعضې د خبرونو د غيب نه دي چه وحي کوو مونږ دهغې تا ته |
| مَا كُنْتَ تَعْلَمُهَا أَنْتَ وَلَا قَوْمُكَ مِنْ قَبْلِ هَٰذَا ۛ فَاصْبِرْ ۛ إِنَّ الْعَاقِبَةَ لِلْمُتَّقِينَ ۞ |
| نه وې ته پوهه په هغې باندې، اونه ستا قوم د دې نه مخکښ پس صبر کوه، بيشکه ښه انجام لپاره د متقيانو دي . |

﴿قَالَ رَبِّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ﴾ د نوح ﷺ نه چه لغزش اوشو نو الله ﷻ ورته زورنه ورکړه، نوح ﷺ معافي اوغوښته او دا قول ﴿وَإِلَّا تَغْفِرْ لِي وَتَرْحَمْنِي﴾ په طريقه د اظهار د عبديت او عجزسره دې او دا دلالت نه کوي په وقوع د معصيت باندې ، علامه شربيني وائ چه قوم د نوح په درې قسمه وو، يو قسم مومنان ووچه ايمان به ئ ظاهرولو،او بل قسم کافران وو چه کفر به ئ ظاهرولو، او دريم قسم منافقان ووچه د هغوئ پوره حقيقت نه وو معلوم .او د نوح ﷺ ځوی په دغه خلقو کښ وو، نو د ده پوره حقيقت خفي وو، دا هم احتمال وو چه کافر دې او داهم احتما ل وو چه مومن دې ، دپلار شفقت ځوئ باندې ډير وي نو د ډير شفقت په وجه ئ په هغه د مومن گمان اوکړو او د ده د عملونو تاويل به ئ کولو نو دا اجتهادي غلطي وه. لکه د آدم ﷺ نه چه په اکل د شجره کښ اجتهادي غلطي اوشوه او دا گناه او معصيت نه وی .ليکن دا د حسنات الابرار سيئات المقربين په قانو ن باندې مغفرت غواړی ﴿قِيلَ يَانُوحُ اهْبِطْ﴾ يعنی او وئيلې شو د الله ﷻ د طرف نه نوح ﷺ ته چه راکوز شه کشتئ نه يا د غر نه، نوح ﷺ چه هرکله د کشتئ نه بهر شو نو چونکه طوفان په ټوله زمکه راغلې وو، نو د نوح ﷺ سره دا فکر شو چه په مخ د زمکې خو حيوانات نشته دې، نو د زندگئ گزران به څنگه کيږی نو الله ﷻ اوفرمائل ﴿اهْبِطْ بِسَلَامٍ مِّنَّا﴾ او سلامتيا په وسعت د رزق سره راځي نو معلومه شوه چه واسع رزق به ملاؤ شي او چه ﴿وَبَرَكَاتٍ﴾ ئ اوئيل نو په دې کښ دوام ثبات ته اشاره شوه

[1] . جمله معترضه لپاره د بيان د صداقت د نبی کريم صلی الله عليه وسلم

﴿وَعَلَىٰٓ أُمَمٍ﴾ يعنى سلامتيا او بركات به په نورو ډيرو ډلو وى او په دې كښې بشارت دې نوح ﷺ ته چه ستا په اولاد كښې به نيكان خلق وى ﴿مِّمَّن مَّعَكَ﴾ (من) د ابتداء دپاره دې يعنى (ينشاء ممن معك) پيدا كيږى د هغه چا نه چه ستا سره وى او مراد ﴿مِّمَّن مَّعَكَ﴾ نه اولاد د ده دې . ځكه چه نسل انسانى اولاد د نوح ﷺ يعنى سام حام او يافث نه په دنيا كښې خواره شوى دى ، لكه په بل آيت كښې دى (وجعلنا ذريته هم الباقين) او د دې وجې نه نوح ﷺ ته آدم ثانى يا آدم صغير ويلې شى ﴿وَأُمَمٌ﴾ د ا مبتداء او ﴿سَنُمَتِّعُهُمْ﴾ ورله صفت دې او خبر محذوف دې، تقدير د عبارت دارنګه دې چه (وَ ممن معك امم سنمتعهم) يا امم مبتدا ده . اوصفت ورله محذوف دې چه (منهم) دې او (سنمتعهم) ورله خبر دې او دا هم كيدې شى چه (امم) فاعل د فعل محذوف شى (اى يخلق امم) او په دې كښې اشاره ده چه دوه قسمه ډلې به په بنى آدمو كښې چليږى او دنيوى منفعت او نعمت به هم هر چاته وركولې شى، ليكن كفارو ته به بيا عذاب وركولې شى او اخروى منفعت او نعمت نه به محروم وى ﴿تِلْكَ مِنْ أَنۢبَآءِ ٱلْغَيْبِ﴾ دا جمله معترضه ده دپاره د بيان د صداقت د نبى ﷺ ، الله ﷻ خپل نبى ﷺ ته فرمائى چه ته د نوح ﷺ په واقعه كښې حاضر نه وې او د دې باوجود د هغه صحيح صحيح حالت بيا نوې، نو دا ستا د صداقت دپاره زبردست دليل دې، ته د الله ﷻ حق نبى ئې په ذريعه د وحى د مخكنو انبياؤ احوال ، واقعات بيانوې ﴿مِنْ أَنۢبَآءِ ٱلْغَيْبِ﴾ معنى داده چه هغه خبرو نه چه غائب وو د علم د نبى او دده مخاطبينو نه ﴿مَا كُنتَ تَعْلَمُهَآ﴾ دا تفسير د غيب دې ، ﴿وَلَا قَوْمُكَ﴾ پدې كښې اشاره ده چه يهودو نصرىٰ ته دا قصه معلومه وه ليكن عربو اميينو ته نه وه معلومه ﴿فَٱصْبِرْ﴾ دا تسلى ده ﴿إِنَّ ٱلْعَٰقِبَةَ﴾ نوح ﷺ او مومنان د تقوى په وجه د عذاب نه بچ شو او كامياب شو نو دغه شان سنت د الله ﷻ دې د تمامو مخلوقاتو دپاره .

| وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا ۚ قَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ |
|---|
| او ليګلې وو مونږ عاديانو ته [1] رور د دوئ هود ، وه ويل ده اې قومه ځما ! عبادت كوئ صرف د يو الله |

[1] - دريمه قصه متعلق د دعوىٰ اولى سره .

مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا مُفْتَرُوْنَ ۞ يٰقَوْمِ لَآ اَسْـَٔلُكُمْ

نشته دي تاسو لره هيڅ معبود غير دهغه نه. نه يئ تاسي مګر دروغ جوړوئ. او اې خما قومه څه نه غواړم ستاسو نه

عَلَيْهِ اَجْرًا ؕ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلَى الَّذِيْ فَطَرَنِيْ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۞

پدې باندې هيڅ بدله، ندې اجر خما مګر په هغه ذات دې چه زه ئې پيدا کړې يم، آيا پس عقل نه لرئ تاسې.

وَيٰقَوْمِ اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوْبُوْٓا اِلَيْهِ يُرْسِلِ السَّمَآءَ عَلَيْكُمْ مِّدْرَارًا

او اې خما قومه بښنه غواړئ د خپل رب نه بيا توبه وباسئ هغه ته، رااليږي په تاسو باندې وريخ ډيره ورونکې.

وَّيَزِدْكُمْ قُوَّةً اِلٰى قُوَّتِكُمْ وَلَا تَتَوَلَّوْا مُجْرِمِيْنَ ۞ قَالُوْا يٰهُوْدُ

او زيات به کړي تاسو لره طاقت د طاقت ستاسې سره اومخ مه ګرځوئ جرم کونکي. وه ويل دوئ اې هود

مَا جِئْتَنَا بِبَيِّنَةٍ وَّمَا نَحْنُ بِتَارِكِيْٓ اٰلِهَتِنَا عَنْ قَوْلِكَ

تا نه دې راوړې مونږ ته څه ښکاره دليل، اونه يومونږ پريښودونکي د خپلو معبودانو ستا د وينا د وجه نه

وَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِيْنَ ۞ اِنْ نَّقُوْلُ اِلَّا اعْتَرٰىكَ بَعْضُ اٰلِهَتِنَا

اونه يو مونږ ستا په خبره يقين کونکي. مونږ نه وايو مګر دا خبره چه رسولې دې تا ته بعض معبودانو زمونږ

بِسُوْٓءٍ ؕ قَالَ اِنِّيْٓ اُشْهِدُ اللّٰهَ وَاشْهَدُوْٓا اَنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّمَّا

تکليف (جنون) وه ويل ده : بيشکه زه ګواه کوم الله تعالى لره اوتاسو هم ګواه شئ چه بيشکه زه بيزاره يم دهغه چا نه

تُشْرِكُوْنَ ۞ مِنْ دُوْنِهٖ فَكِيْدُوْنِيْ جَمِيْعًا ثُمَّ لَا تُنْظِرُوْنِ ۞

چه تاسو ئې شريك کوئ . سوى د الله تعالى نه پس تدبير جوړ کړئ ما ته ټول بيا ما ته مهلت مه راکوئ

اِنِّيْ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللّٰهِ رَبِّيْ وَرَبِّكُمْ ؕ مَا مِنْ دَآبَّةٍ اِلَّا هُوَ اٰخِذٌۢ

بيشکه ما خپل ځان سپارلې دې په الله تعالى باندې چه رب خما او رب ستاسو دې، نشته دې هيڅ زنده سر مګر الله تعالى نيونکې دې

بِنَاصِيَتِهَا ؕ اِنَّ رَبِّيْ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۞

هغه لره د ويښتو د تندى نه (د الله په قبضه کښ دې) بيشکه رب خما رب (د عدل او انصاف) په برابر لاره دې

﴿وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا﴾ دادويمه قصه ده متعلق ده د دعوى اولى سره يعنى لكه څرنګه چه نبى ﷺ (الا تعبدوا الا الله) فرمائيلى دى نو دغه شان هود ﷺ ﴿يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥٓ﴾ فرمائلى وو . مراد د (اخاهم) نه نسبى اخوت دې ځکه چه اسلامى اخوت ئ د خپل قوم سره نه وو ځکه قوم ئ كافر وو. د حضرت نوح ﷺ د قوم د تباهئ نه بعد عروج ترقى عاديانو ته حاصله شوه، دوئ په جنوبى عربو كښ په يمن او د هغې په اطرافو كښ حضرموت . عمان . خليج فارس په لويه حصه كښ آباد وو﴿أَخَاهُمْ﴾ منصوب دې په (ارسلنا) سره او (هودا) ورله عطف بيان دې﴿مِّنْ إِلَٰهٍ﴾ اسم د (ما) دې، من زائده دې دپاره د مبالغې په نفى كښ يعنى نشته دې هيڅ اله لكه د (ما رجل) معنى ده، نشته دې سړې او د (مامن رجل) معنى ده، چه نشته دې هيڅ څوك سړى. نو اله مجرور دې لفظًا او مرفوع دى محلاً او (غير) صفت د اله دې مرفوع دې تابع د محل دې ﴿إِنْ أَنتُمْ إِلَّا مُفْتَرُونَ﴾ يعنى تاسو چه عبادت د غيرالله كوئ نو دا نه ده مګر افتراى ده په الله ﷻ باندې، مشرك په الله ﷻ باندى افترى كوى او د اثبات د شرك دپاره دَ دروغو قصې جوړوى ، او دا معنى نه ده چه تاسو په هر څه كښ افتراء كونكى يئ . ځكه چه كيدې شى چه د دوئ بعض خبرى افترى نه وى ﴿لَآ أَسْـَٔلُكُمْ﴾ يعنى نه د چانه خوف يره كوم او نه طمع كوم چه د حق خبرې تبليغ پريږدم ﴿ٱسْتَغْفِرُوا۟ رَبَّكُمْ﴾ يعنى د خپل رب نه معافى اوغواړئ په تير شو ى ګناهونو ندامت اوكړئ او شرك پريږدئ او په آينده كښ الله ﷻ ته رجوع اوكړئ ، يعنى ايمان او اعمال صالحه اختيار كړئ ﴿يُرْسِلِ ٱلسَّمَآءَ﴾ د سماء نه مراد باران دې مجازا او ((مدرار)) د مفعال وزن دې د پاره د مبالغې يعنى ډير وريدونكې بې دربې بغير د ضرر نه يا د سماء نه مرا د وريځ ده او دمدرار معنى ده ډيره وروونكې ﴿قُوَّةً إِلَىٰ قُوَّتِكُمْ﴾ د قوت نه مراد جسمانى قوت دې يا مالى قوت دې يا ترې نه مرا د د اولاد قوت او كثرت دې . او په بعض روايتونو كښ راغلى دى چه درې كاله د دوئ زنانه شنډى شو ې وې ﴿مَا جِئْتَنَا بِبَيِّنَةٍ﴾ قوم د ډير ضد اوعناد په وجه د توحيد نه انكار اوكړو او طعن ئى اوكړو ﴿عَن قَوْلِكَ﴾ بسبب قولك ، ستا د قول په وجه مونږ خپل اله نه پريږدو او تا په خپله د دعوى باندې څه دليل او معجزه نه ده پيش كړې ، يعنى هغه معجزه چه زمونږ د مرضئ مطابق وى

﴿إِن نَّقُولُ إِلَّا اعْتَرَاكَ﴾ يعنى معاذالله ستا دماغ خراب شوى دى . تا به زمونږ د معبودانو توهين كولو نو د هغوئ ازار در پسې شوې دې، هره زمانه كښ مشركين داسې قسم خبرې كوې . او د انكار د توحيد دپاره تاويلات كوى او وجوهات بيانوى ﴿قَالَ إِنِّي أُشْهِدُ اللَّهَ﴾ حضرت هود ﷺ د مذكور طعن په جواب كښ اوويل چه زه ستاسومعبودانو نه د متصرف او مختارويلونه بيزار يم ، اوپه دې خبره تاسو گواه شئ او الله ﷻ هم گواه دې چه زه ستاسو د معبودانو نه بيزار يم . د دې نه معلومه شوه چه په حق باندې تصديق او د اقرار سره تبرى «بيزارى» د تمامو اديانو باطلو نه هم ضرورى ده نو كه څوك د الله ﷻ د وحدانيت او د رسول الله ﷺ د رسالت اقرار كوى ليكن چه د يهوديت او نصرنيت وغيره اديانو باطلو نه تبرى نه كوى نو هغه مومن نشى كيدې ﴿فَكِيدُونِي جَمِيعًا﴾ داد هود ﷺ د شجاعت بيان دې. يعنى تاسو ټولو سره د خپلو معبودانو نه ماته د ضرر رسولو دپاره تدبير جوړ كړئ او ماته مهلت مه راكوئ ليكن زه دا وايم چه تاسو ماته هيڅ نقصان نشئ رسولې او نه زه تاسو نه يره خوف كوم څكه چه ﴿إِنِّي تَوَكَّلْتُ عَلَى اللَّهِ﴾ زما توكل په الله ﷻ دې ﴿مَّا مِن دَابَّةٍ﴾ هر څيز د الله ﷻ په قبضه تصرف كښ دې (ناصية) د سرمخكنى ويختونه وائ «موئ پيشانى» او د هغې نه چه څوك اونيسلې شى نو بيا سر نه شى خوزولې نو د دې وجه نه دا د عربوپه محاوره كښ كنايه ده د قبضې او تصرف نه ﴿إِنَّ رَبِّي عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾ د دې يو مطلب دادې چه زما رب د عدل په نيغه لار دې ،په عدل انصاف سره فيصله كوى ، مجرمانو ته به سزا وركوى اومومنانو ته به اجر وركوى يا ﴿عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾ د بَدَلٌ مقدرسره متعلق دې يا د يَهْدِىْ مقدر سره متعلق دې او على په معنى د الى سره دې .

| مَّآ | أَبْلَغْتُكُم | فَقَدْ | تَوَلَّوْا | فَإِن |
|---|---|---|---|---|
| پس كه تاسو اعراض وكړئ «نو په ما څه ملامتى نشته» څكه چه رسولى دى ما تاسوته هغه پيغامونه | | | | |

| غَيْرَكُمْ | قَوْمًا | رَبِّي | وَيَسْتَخْلِفُ | ط | إِلَيْكُمْ | بِهِ | أُرْسِلْتُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چه زه رااليږلې شوې وم په هغې باندې، تاسوته او را به ولى رب خما روستو د هلاكت ستاسونه بل قوم غير ستاسو نه | | | | | | | |

وَلَا تَضُرُّوْنَهٗ شَيْـًٔا ؕ اِنَّ رَبِّیْ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ حَفِیْظٌ ۝ وَلَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا نَجَّیْنَا

اوضرر نشئ ورکولې هغه ته هیڅ. بیشکه رب څما په هر څیز نگران دې. اوهرکله چه راغې حکم د عذاب زمونږ بچ کړو مونږ

هُوْدًا وَّالَّذِیْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا ۚ وَنَجَّیْنٰهُمْ مِّنْ عَذَابٍ غَلِیْظٍ ۝

هود اوهغه کسان چه ایمان ئ راوړې وو دهغه سره په رحمت زمونږ. او بچ کړل مونږ دوئ لره د عذاب سخت نه

وَتِلْكَ عَادٌ ۟ جَحَدُوْا بِاٰیٰتِ رَبِّهِمْ وَعَصَوْا رُسُلَهٗ

اودغه عادیان وو چه انکار ئ کړې وو د آیاتونو د رب خپل نه او نافرمانی ئ کړې وه د رسولانو دهغه نه

وَاتَّبَعُوْۤا اَمْرَ كُلِّ جَبَّارٍ عَنِیْدٍ ۝ وَاُتْبِعُوْا فِیْ هٰذِهِ الدُّنْیَا لَعْنَةً

او تابعداری ئ کړې وه د طریقې د هرسرکش عنادی. او په دوئ پسې روستو راالیږلې شوې وو په دې دنیا کښې لعنت

وَّیَوْمَ الْقِیٰمَةِ ؕ اَلَاۤ اِنَّ عَادًا كَفَرُوْا رَبَّهُمْ ؕ اَلَا بُعْدًا لِّعَادٍ قَوْمِ هُوْدٍ ۝

او په ورځ د قیامت هم، خبردار ! بیشکه عادیانو کفر کړې وو په رب خپل ، خبردار ! تباهی ده عادیانو لره چه دهود قوم وو.

﴿فَاِنْ تَوَلَّوْا﴾ دا په اصل کښې (تَتَوَلَّوْ) دې او جزا ئی محذوفه ده (ای لم اُعاتب) یعنی که تاسو اعراض کوئ نو په ما څه عتاب، ملامتیا نشته دې ځکه چه په ﴿فَقَدْ اَبْلَغْتُكُمْ﴾ ای جمیع ما ارسلت به ﴿وَیَسْتَخْلِفُ رَبِّیْ﴾ دا جمله مستانفه ده او که عاطفه شی نو معطوف علیه ورله مقدر دې چه یهلککم بستأصلکم دې، دعوت او ابلاغ نه بعد په دوو کارونو کښې یو خامخا واقع کیږی یا هدایت او یا هلاکت نو هر کله چه د ابلاغ او دعوت سطح خپل معیار ته اورسیده نو که تاسو هدایت نه قبلوئ او اعراض کوئ نو بیا به په تاسو هلاکت راشی، تاسو به الله ﷻ هلاک کړی او نور خلق به ستاسو په ځائ پیدا کړی ﴿وَلَا تَضُرُّوْنَهٗ﴾ یعنی که تاسو د الله ﷻ حکمونه قبول نه کړئ نو په دې کښې الله ﷻ ته هیڅ ضرر، نقصان نشته دې ، الله ﷻ خو صمد او بې حاجته ذات دې بلکه نقصان او ضرر صرف تاسو ته دې په دنیا او آخرت کښې ﴿اِنَّ رَبِّیْ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ حَفِیْظٌ﴾ زما رب د هر څیز نګهبان دې او نګران دی، نو ستاسو معصیت او نیکی ترینه پټ نه دی ﴿وَلَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا﴾ د امر نه مراد عذاب دې چه سخته سیلۍ ده چه د مغرب د طرف نه مشرق نه

چلیدله اودې ته «دبور» وائ . لکه په حدیث کښې دی چه (نصرت بالصبا و اهلکت عاد با الدبور) باد الصبا هغه خوشگواره هوا ده چه د مشرق نه مغرب طرف ته چلیږی د یمن په علاقه احقاف کښې چه په دغه ځائ کښې د عادیانو سکونت وو، حضرت هود ﷺ دوئ ته مبعوث وو .او مفسرین وائی چه د هود ﷺ ټول عمر ۴۶۴ کلونه وو. په څلوېښتم کال ورته نبوت ورکړې شو او ۴۲۴ کالونه ئ تبلیغ اوکړو ، په ده باندې څلور زره کسانو ایمان راوړې وو. باقی ټول قوم کافر وو ، نو الله ﷻ په دوئ باندې قحط مسلط کړو او اوبه اوچې شوې. نو دوئ یو وفد مکې ته اولیږه ،خانه کعبه اگر که په دغه زمانه کښې د طوفان په وجه نړیدلی وه لیکن د خانه کعبه په ځائ باندې د شگو غُنډئ وه ، خلقو به هلته دعاگانې کولې . نو دا وفد مکی ته لاړو چه دباران دپاره دعا اوکړی، د مکې د بعض سردارانو سره دوئ دیره شول او د عربو مهمان نوازی خو مشهوره ده ، نو هغوئ د دوئ ډیر احترام کولو، د خوراك څښاك مکمل بندوبست ئ ورله کولو ، او تفریح دپاره ئ ورله د غزلخوانو وینزو بندوبست هم اوکړو، نو دوئ چه دا مزې اولیدلې نو د خپلو راتلو غرض ترینه هیر شو ، آخر میزبانان (کور والا) هم د دوئ نه تنگ شول ، او یوې وینزی دوئ ته په خپل غزل کښې یاد دهانی اوکړه نو دوئ پوهه شول او د بیت الله مقام ته لاړل دعاء ئ اوکړه ، نو درې قسمه وریز راغله سپینه ، توره ، سره ، نو دوئ توره وریځ خوخه کړه چه د دې نه باران ډیر وریږی، هر کله چه د دوئ په علاقه باندې وریځ ښکاره شو ه، نو دوئ اوویل (هذا عارض ممطرنا) نو د الله ﷻ د طرف نه ورته اوویئلې شول چه (بل هو ما ستعجلتم به) نو د دینه داسې سخته سیلئ اوچلیده چه اونې، عمارتونه او هر څه ئ درهم برهم کړل ، عادیان ئ اوچت کړل او یو بل سره ئ ټکراؤ کړ ل ،او تیزه گرمه هوا د دغه خلقو په پوزه کښې داخله شوه ،او اعضاء ئ ورله مات کړل (په سورة اعراف کښې دا تفصیل تیر شوې دې ) ، ﴿وَالَّذِينَ ءَامَنُوا مَعَهُ﴾ چه دا څلور زره کسان وو، او دلته ﴿نَجَّيْنَا﴾ دوه کرته ذکر شو، د او ل نه مراد نجات دې د عذاب دنیوی نه ، او د دویم نه مراد یعنی ﴿وَنَجَّيْنَاهُم مِّنْ عَذَابٍ غَلِيظٍ﴾ نه نجات د آخرت دې ، یا د اول نه مرا د نجات دې د قوم د ظلمونو نه او د دویم نه مراد نجات د عذاب الهی نه دې ﴿وَتِلْكَ عَادٌ﴾ نو هرکله چه دا واقعه مشهوره وه نو دلته اشاره ما حضر فی الذهن ته اوشوه، ده اسم اشاره د مونث په تاویل د «قبیلة» سره ده ، او ﴿رُسُلَهُ﴾ صیغه د جمع ذکر شوه ځکه چه انکارد یو رسول نه انکار دې د ټولونه ، ځکه چه ټول انبیا ء

شريك دی په دعوت د توحيد کښې . اومفسرينو ويلی دی چه دا هم کيدې شی چه په دغه وخت کښې نو رانبياء هم دوئ ته مبعوث شوی وی ﴿لَعْنَةً﴾ لرې والې دٰ رحمت الهی نه او د خير نه محرومی. په دنيا کښې لعنت دادې چه مومنان هميشه د دوئ ذکر د ملامت او بيزارئ په انداز کښې کوی ، او په قيامت کښې لعنت دادې چه د کل خلايقو په حضور کښې به ملامت او رسوا شی ﴿أَلَا بُعْدًا لِّعَادٍ﴾ (بُعد) په معنی د لرې والی د رحمت الهی نه هم راځی او دا مفهوم بعينه د لعنت هم دې او په معنی د تباهی او هلاکت سره هم راځی. دلته دا دويمه معنی زيانه مناسبه ده

| وَ إِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَٰلِحًا قَالَ يَٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ |
|---|
| او ليږلې وۀ مونږ ثموديانو ته [1] (نسبی) رور د هغوئ صالح ، ده وويل : اې قومه خما ؛ صرف د يو الله بندگی کوئ |
| مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ هُوَ أَنشَأَكُم مِّنَ الْأَرْضِ وَاسْتَعْمَرَكُمْ فِيهَا |
| نشته دې تاسو لره هيڅ اِله سوی د هغه نه. هغه پيدا کړی يئ تاسو د زمکې نه او آباد کړی يئ تاسو پدې زمکه کښې |
| فَاسْتَغْفِرُوهُ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ إِنَّ رَبِّي قَرِيبٌ مُّجِيبٌ ﴿٦١﴾ قَالُوا يَٰصَٰلِحُ |
| پس بښنه غواړئ دهغه نه بيا توبه وباسئ هغه ته، بيشکه رب خما نزدې دې قبلونکې دې . وه ويل دوئ اې صالحه! |
| قَدْ كُنتَ فِينَا مَرْجُوًّا قَبْلَ هَٰذَا أَتَنْهَىٰنَا أَن نَّعْبُدَ مَا |
| په تحقيق سره ته وې په مونږ کښې اميدلرلې شوې پخوادې نه. آيا ته مونږ منع کوې ددينه چه مونږ عبادت وکړودهغه چا |
| يَعْبُدُ ءَابَآؤُنَا وَإِنَّنَا لَفِي شَكٍّ مِّمَّا تَدْعُونَآ إِلَيْهِ مُرِيبٍ ﴿٦٢﴾ |
| چه د هغوئ عبادت کولو مشرانو زمونږ او په تحقيق سره مونږ په شک کښې يو دهغه خبرې نه چه ته بلې مونږ لره هغې ته کلک شک |

﴿وَإِلَىٰ ثَمُودَ﴾ دا دريمه قصه ده دعوه اولی سره متعلق ده. اودا عطف دې په ما قبل (ای وارسلنا الی ثمود) او ثمود ته عاد اخرٰی او عاد ثانی هم ويلې شی ،ثموديان هم د عاديانو په شان د سام بن نوح په اولاد کښې دی او د عاد اولی نه دوه سوه کاله بعد په اقتدار کښې راغلی

---

۱ . دريمه قصه هم متعلق ده دعوئ اولی سره .

دی ﴿هُوَ أَنشَأَكُم مِّنَ الْأَرْضِ﴾ په دې کښې د حصر او قصر معنی ده او دا قصر افراد یا قصر قلب دې او د زمکې نه د پیدا کولو یا دا معنی ده چه آدم ﷺ د زمکې نه پیدا دې نو ټول انسانان د زمکې نه بالواسطه پیدا دی یا دا معنی ده چه انسان د نطفې نه پیدادې او نطفه د هغه خوراکونو او غذاګانو نه جوړیږی چه هغه د زمکې نه پیدا کیږی ﴿وَٱسْتَعْمَرَكُمْ﴾ استعمار (۱) د عمر نه ماخوذ دې او د استعمار معنی ده مدت العمر پورې آبادول دی. یعنی الله ﷻ ستاسو خالق هم دې او ستاسو آبادونکې هم دې . یعنی ستا سو تمام ضروریات پوره کیدل چه د زمکې نه ستاسو په نظر راځی دا په حقیقت کښې الله ﷻ پوره کوی . خوراك څښاك مکانات وغیره ټول ضروریات پوره کونکې صرف الله ﷻ دې ، په دې تقدیر دا باب استفعال په معنی د افعال سره دې (استعمرتُ الارض) په معنی د (اعمرتُ) سره دې (۲) او ضحاك ویلی دی چه ﴿وَٱسْتَعْمَرَكُمْ﴾ په معنی د (اطال اعمارکم) سره دې یعنی تاسو له ئې ډیر طویل عمرونه درکړی دی . حتی چه د دوئ عمرونه به درې سوو کلونو نه تر زرو کلونو پورې وو(۳) او د زید بن اسلم نه روایت دې چه د (استعمرکم) معنی (اَمَرَکُمْ بعمارة ما تحتاجون الیه) سره دې نو استفعال د طلب دپاره دې ، اوکشاف ویلی دی چه بعضې عمارات واجب وی لکه جامع مسجد جوړول، او بعض مستحب وی لکه د جامع مسجد نه علاوه مسجد جوړول . او بعض مباح وی لکه کورونه جوړول ، او بعض حرام وی لکه د فخر اومباهات دپاره یا دیو معصیت دپاره جوړول یا د مال حرام نه جوړول او فقهاؤ ویلی دی چه څوك د زمکې مالك وی لیکن آبادوی ئې نه ، نو حکومت ته دا حق شته دې چه د زمکې د آبادولو دپاره ورته څه موده معینه کړی نو که بیا ئې هم نه آبادوی نو دا زمکه دې ترینه واخلی او هغه چاته دې حواله کړی چه آبادوی ئې ، او روایت دې چه ملوکو د فارس ډیر نهرونه جوړکړی وو ، او ډیرې ونې ئې لګولې وې ، نود دوئ عمرونه ډیر وو ، نو د دغه زمانې یو نبی د الله ﷻ نه دې باره کښې تپوس اوکړو چه ددې خلقو عمرونه ولې زیات دی ، نو الله ﷻ وحی راولیږله چه دوئ زما بلاد او زمکه آباده کړه ، نو ما دوئ ته ډیر عمرونه ورکړل، او حضرت معاویه ﷺ په خپل آخری عمر کښې د شړو زمکو آبادولو کوشش شروع کړو ، نو تپوس ترینه اوشو نو دوئ اوئیل چه په ما باندې باعث دا قول د قائل دې چه :

شعر لیس الفتی بفتی لایستضاء به ولا یکون له فی الارض آثارٌ

(۴) او د مجاهد رحمه الله نه مروی دی چه (استعمرکم) د عمری نه مشتق دې یعنی دا زمکه یې تاسو له درکړې ده . تر څو چه تاسو ژوندی یئ او چه کله وفات شئ نو بیا بل چاته منتقل کړې شی (روح المعانی اوشربینی) ﴿إِنَّ رَبِّي قَرِيبٌ مُّجِيبٌ﴾ د مشرکینو دا عقیده وه چه الله ﷻ د خپلې لویې سره زمونږ نه بعید دې . نوددې وجې نه هغوئ په درمیان کښې واړه واړه خدایان اومنل . چه مونږ به خپل حاجتونه دوئ ته پیش کوو، اودوئ به ئې الله ﷻ ته پیش کوی (ہمارے تمہارے آگے اور تمہارے خدا کی آگے) لکه دنیاوی بادشاهانو ته د رسیدلو هم دغه ترتیب دې، نو صالح ﷺ اوفرمائل چه زما رب د دنیاوی بادشاهانو په شان نه دې ، هغه (اقرب من حبل الورید) دې هغه بلا واسطه ایجابت کوی ، نو په درمیان کښې نور معبودان راؤباسل ستاسو جهالت دې.

﴿قَالُوا يَا صَالِحُ﴾ داد قوم الزام اوملامت کول دی، یعنی زمونږ ستانه دا امید وو، چه ته چونکه ډیر قابل او لائق شخصیت یې نو ته به د پلار نیکه اوقوم نوم روخانه کړې لیکن ته دهغوئ د نوم ختمولو او د هغوئ طریقو په ختمولو پسې شوې یې، او مونږ منع کوې د هغه چا د عبادت نه چه زمونږ آباؤ او اجدادو ئې عبادت کولو ﴿وَإِنَّنَا لَفِي شَكٍّ﴾ مونږ په شك کښې یو او په ډیر زیات شك کښې یو چه دا څه رنګه کیدې شی چه زمونږ مشران په غلطه وو، او ته په حقه یې.

| قَالَ يَا قَوْمِ أَرَأَيْتُمْ إِن كُنتُ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّي وَآتَانِي |
|---|
| وه ویل ده : اې قومه خما ! خبر راکړئ ما ته که چرې یم زه په ښکاره دلیل باندې د طرف د رب خما نه، او راکړې ئې وی ما ته |
| مِنْهُ رَحْمَةً فَمَن يَنصُرُنِي مِنَ اللَّهِ إِنْ عَصَيْتُهُ ۖ |
| د طرف خپل نه رحمت (نبوت) پس څوك به بچ کړی ما د عذاب د الله تعالی نه کچرې زه دهغه نافرمانئ وکړم، |
| فَمَا تَزِيدُونَنِي غَيْرَ تَخْسِيرٍ ۝ وَيَا قَوْمِ هَٰذِهِ نَاقَةُ اللَّهِ لَكُمْ آيَةً فَذَرُوهَا |
| پس تاسو نه زیاتوئ ما لره سوی د تاوان نه . اواې خما قومه ! دا اوښه د الله تعالی ده تاسو لره معجزه ده، پس پریږدئ دا |
| تَأْكُلْ فِي أَرْضِ اللَّهِ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوءٍ فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابٌ قَرِيبٌ ۝ |
| چه خوراك کوی په زمکه د الله تعالی کښې او مه رسوئ دې ته هیڅ تکلیف کنې وبه نیسی تاسو لره عذاب نزدې |

﴿قَالَ يَٰقَوْمِ﴾ دا جواب دې هغوئ ته يعنى زما نبوت واضح دې . او په واضح دليل ثابت دې نو په دې كښې د شك هيڅ گنجائش نشته ، او هركله چه الله ﷻ ماته منصب د نبوت راكړې دې ، او زه په دې كښې كوتاهي اوكړم نو بيا به د الله ﷻ عذاب راشي او هيڅ څوك به مې نه شي بچ كولې ﴿فَمَا تَزِيدُونَنِي غَيْرَ تَخْسِيرٍ﴾ نو تاسو چه ما منع كوئ د دعوت د كارنه نو ما په لوئ نقصان اوهلاكت كښې اچوئ نوتاسو لره نه ده پكار چه شك اوكړئ ، اوپه ما الزامونه اولگوئ بلكه تاسو له مناسب منل او تسليم دې ﴿وَيَٰقَوْمِ هَٰذِهِ﴾ قوم د صالح ﷺ نه طلب د معجزې اوكړو چه مونږ ته، ته معجزه ښكاره كړه، چه د دې غرنه حامله اوښه پيداشي، دا قوم صنعت كار، كارخانه دار وؤ او د هرشى ده جوړولو او د پيداوار كارخانې ورسره موجودې وې ليكن د حيواناتو د پيدائش دپاره خو څه كارخانه نه وى ، نو ددې وجى نه دوئ مطالبه اوكړه چه د دې اوچ كاڼرى نه دې زمونږ په حضور كښې اوښه پيدا شى ، نو صالح ﷺ الله ﷻ ته درخواست اوكړو ، نو الله ﷻ منظور كړو، د قوم د ميلى ورځ وه ، او پراخه ميدان وو، په زرگاؤ خلق مسلم اوغير مسلم هلته موجود وو، د ټولو په حضور كښې الله ﷻ د كاڼرى نه اوښه پيداكړه ، او بيا ئې په هغې باندې د وضع حمل «درد زه»كيفيت طارى كړو او بچې ترينه پيدا شو ، او هركله چه دا اوښه د متعارف توالد تناسل نه بغير په معجزانه طور پيداشوه ، نو د دې وجې نه اضافت ئې الله ﷻ ته اوشو ، او د (ناقة الله) لقب ورته وركړې شو ، دپاره د تشريف ﴿تَأْكُلْ فِي أَرْضِ اللَّهِ﴾ د ارض الله نه مراد عام مرعى «ورشو» ده ، مطلب دادې چه د دې ناقې څه بوج په تاسو نشته دې ، او ستاسو نفع په كښې شته دې څكه چه هغې ډير زيات پئ كول ، هر څومره پئ چه به د چا پكار وو ، نو لشل به ئى ،اوپه هغې كښې به څه كمې نه راتلو ، ليكن مخالفينو دا برداشت نه كړه چه د صالح ﷺ دا سې واضحه معجزه دې موجوده وى ، نو اراده د قتل د ناقې ئې اوكړه ، او هر كله چه صالح ﷺ ته دا خطره شوه ، نو اوى ويل ﴿وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوءٍ﴾ ناقې ته ضررمه رسوئ د قتل يا د زخمى كولو ، گنى په تاسو به عنقريب عذاب راشي . د شعائرالله بې حرمتي سبب د عذاب وى .

| دَارِكُمْ | فِي | تَمَتَّعُوا | فَقَالَ | فَعَقَرُوهَا |
|---|---|---|---|---|
| پس دوئ د هغې خپې كټ كړې «بيا ئې وه وژله» نو وه ويل صالح چه نفع واخلئ د ژوند نه په خپلو كورونو كښې | | | | |

ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ ؕ ذٰلِكَ وَعْدٌ غَيْرُ مَكْذُوْبٍ ۝ فَلَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا نَجَّيْنَا صٰلِحًا وَّالَّذِيْنَ

دری ورځې . دا وعده ده بې دروغه پس هرکله چه راغې حکم د عذاب زمونږ بچ کړو مونږ صالح لره اوهغه چا لره

اٰمَنُوْا مَعَهٗ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَمِنْ خِزْيِ يَوْمِئِذٍ ؕ اِنَّ رَبَّكَ

چه ایمان ئې راوړې وو دهغه سره. په خاص رحمت زمونږ سره. او د رسوائی د دغه ورځې نه . بیشکه رب ستا

هُوَ الْقَوِيُّ الْعَزِيْزُ ۝ وَاَخَذَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوا الصَّيْحَةُ فَاَصْبَحُوْا فِيْ دِيَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ ۝

دی ډیر طاقت والا او زور آور دې . او ونیول ظالمانو لره تیزې چغې پس وګرځیدل دوئ په خپلو کورونو کښې پرمخې پراته

كَاَنْ لَّمْ يَغْنَوْا فِيْهَا ؕ اَلَآ اِنَّ ثَمُوْدَاۡ كَفَرُوْا رَبَّهُمْ ؕ

لکه چه دوئ نه وو وسیدلی په هغې کښې . خبردار ! بیشکه ثمودیانو کفر کړې وو په خپل رب باندې.

اَلَا بُعْدًا لِّثَمُوْدَ ۝

خبردار ! هلاکت دې ثمودیانو لره .

﴿ فَعَقَرُوْهَا ﴾ (عقر) ذبح د بعیر (اوښ) ته هم وائی او زخمی کولو ته هم وائی ، او د داسې عضو قطع کولو ته هم وائی چه د هغې د وجې نه حیوان هلاك شی. کفارو د دې دپاره یو کس مقرر کړې وو ، قدّاربن سالف او د هغه سره نور بدمعاشان هم وو ، نو دوئ د ناقې نه اول خپې کټ کړې ، او بیا ئې ذبح کړه ، او غوښه ئې ورله تقسیم کړه ، ناقه چه کله په زمکه راپریوته نو بچی ئې درې چغې اووهلې او بیا ئې منډه کړه په غر کښې چه د کوم کانړی نه اوښه پیدا شوې وه هلته غائب شوه ، صالح ﷺ ډیر تالاش اوکړو خو ملاؤنه شوه. بیا صالح ﷺ دوئ ته اعلان اوکړو چه ﴿ تَمَتَّعُوْا فِيْ دَارِكُمْ ﴾ تاسو نفع او مزې حاصلې کړئ درې ورځې یعنی تاسو به صرف درې ورځې ژوندی یئ خکه چې نفع خو ژوندی حاصلولې شی ، او د دار نه مراد یا د دوئ بلد (ښار) دې (لانه یدار فیها) یاترینه مراد دار دٔ دنیا دې ،ابن عباس ﷺ فرمائی چه دوئ ته درې ورځې مهلت ورکول د دې دپاره وو چه دوئ ته د ایمان راوړلو موقع ملاؤشی ، بیا دوئ صالح ﷺ ته اویل چه د دې څه علامه ده ، نو هغه اوفرمائل چه اوله ورځ به مو مخونه زیړ شی ، او دویمه ورځ به سره شی ، اوپه دریمه ورځ به تور شی ، او په څلورمه ورځ به په

تاسو عذاب راشي د بدهـ (چارشنبې) په ورځ د دوئ مخونه زيړ شو . د جمعرات په ورځ سره شو . او د جمعې په ورځ تور شو . نو د هفتې په ورځ په دوئ عذاب راغی . په حدیث کښې دي . چه په دوئ دوه عذابونه راغلی وو يو د آسمان د طرفه صيحه (دفرشتې چغه) او بل د لاندې طرف نه زلزله راغلې وه . او په بل روایت کښې دي چه د کفارو د ثمودیانو نه یو کس هم بچ نه وو . د عذاب د نزول په وقت کښې ابو رغال نومې يو کس وو چه بيت الله ته تلی وو . نو ترڅو پورې چه په حرم کښې وو . نو د عذاب نه بچ وو . او کله چه د حرم نه بهر راغې نو عذاب په ده هم واقع شو . د غزوه حنين نه بعد چه کله نبی کريم ﷺ طائف طرف ته روان شو . نو اصحاب کرامو ته ئې اوفرمائل چه په دې ځائ کښې ابو رغال هلاك شوې وو . او د هغه نشانی دا ده چه د ده سره د سرو زرو لختنه (کوړه) وه چه هغه هم ورسره دفن ده . نو صحابو د هغه ځای اوکنستو نو د زرو کوړه ئې رااو ويسته . عرب خلق چه به حج ته لاړل نو د ابو رغال قبر به ئې په کوړو او لختو وهلو ﴿وَمِنْ خِزْيِ يَوْمِئِذٍ﴾ يعنى د رسوائ او ذلت نه چه د دغې ورځ د عذاب دنيوى په وجه راغلی وه . د ﴿يَوْمِئِذٍ﴾ نه مراد دنيوى عذاب دې . او دا هم کیدې شی چه رسوائ او عذاب د ورځې د قيامت مراد شی ﴿الصَّيْحَةُ﴾ د آسمان د طرف نه په دوئ صیحة راغلې وه . او د زمکې نه زلزله راغلې وه ﴿جٰثِمِينَ﴾ د ډیر هيبت د وجه نه پرمخې پريوتل او د پاسيدلو طاقت ئې نه لرلو . او په دغه حال بيا مړه شو ﴿كَأَن لَّمْ يَغْنَوْا فِيهَا﴾ يعنى د دوئ ټول کلی داسې تباه او روان شو لکه چه هيڅ څوك په دغه علاقه کښې نه وو اوسيدلی . حلانکه دلته اووه لس سوه کلی او شهرونه وو ﴿كَفَرُوا رَبَّهُمْ﴾ دا بيان د سبب د عذاب دې . يعنى د کفر . شرك او سرکشئ نتيجه تباهی ده .

| وَلَقَدْ | جَآءَتْ | رُسُلُنَآ | إِبْرٰهِيمَ | بِالْبُشْرٰى | قَالُوا | سَلٰمًا ط |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوخامخا په تحقيق | راغلی وو | ملائك زمونږ | ابراهيم ته | په زيرې سره[1] | دوئ وه ويل | سلام وايو مونږ په تا باندې سلام ويل |

| قَالَ | سَلٰمٌ | فَمَا | لَبِثَ | أَنْ | جَآءَ | بِعِجْلٍ | حَنِيذٍ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هغه وه ويل | سلام دې وی په تاسو باندې | پس | درنګ ئې | نه | کړو | پدې کښې چه راوړو | سخې وريت کړې شوې |

[1] - خلورمه قصه د دويمې دعوې سره متعلق ده .

فَلَمَّا رَآ أَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ إِلَيْهِ نَكِرَهُمْ وَ أَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً

پس هركله چه وه ئ ليدل لاسونه د دوئ چه نه رسيدل خوراك ته نو نا آشنا ئ وګڼل دوئ او په زړه كښې ئ راغله د دوئ نه ېره

قَالُوا لَا تَخَفْ إِنَّا أُرْسِلْنَا إِلَى قَوْمِ لُوطٍ ۞ وَامْرَأَتُهُ قَائِمَةٌ فَضَحِكَتْ

هغوئ وه ويل مه ويرېږه بيشكه مونږ ليګلي شوي يو قوم د لوط ته او ښځه د ده ولاړه وه، نو د خوشحالئ نه په خندا شوه

فَبَشَّرْنَاهَا بِإِسْحَاقَ وَمِنْ وَرَاءِ إِسْحَاقَ يَعْقُوبَ ۞

پس زيرې ورکړو مونږ هغې ته په اسحاق سره او روستو د اسحاق نه په يعقوب سره

﴿ وَلَقَدْ جَاءَتْ رُسُلُنَا ﴾ دا خلورمه قصه ده متعلق د دويمې دعوې سره ، چه علم غيب صرف الله ﷻ لره دې ، ابراهيم ؑ دالله ﷻ خليل دې ، او جليل القدر رسول او ابو الانبياء دې ،او ددې باوجود د ميلمنو د حال نه خبر نه وو ، نو معلومه شوه، چه د الله ﷻ نه ماسوا بل څوك په كل مغيبات عالم نه دې ، او دلته ئ فرشتو ته (رُسُلنا) ويلى دى ، نو په دې كښې د دوئ د راتلو مقصد ته اشاره ده، او په سورة حجر كښې ئ (ونبئهم عن ضيف ابراهيم) ويلى دى ، او په سورة ذاريات آيت ۲۴كښې ئ (هل اتك حديث ابراهيم المكرمين) ، ويلى دى څكه چه په خيا ل د ابراهيم ؑ كښې ميلمانه وو او د ﴿الْبُشْرَىٰ﴾ نه مراد بشارت دَ هلاكت دَ قوم دَ لوط ؑ دې ، يا دَ اسحاق ؑ بشارت دې ﴿قَالُوا سَلَامًا﴾ اى سلمنا عليك سلامًا، نو دا جمله فعليه ده او ابراهيم ؑ د دې جواب په احسن سره وركړو ، چه ﴿قَالَ سَلَامٌ﴾ ،اى سلام عليكم ، نو دا جمله اسميه ده، ﴿فَمَا لَبِثَ أَن جَاءَ﴾ ان جآء : په تاويل د مصدر سره دې ، او فى مقدره ده ، اى فما لبث فى مجيئته بعجل ، يا مِنْ مقدر دې ، او د ﴿حَنِيذٍ﴾ دوه ترجمې دى ، يو (المشوى على حجارة محماة فى حفرة من الارض) يعنى ريت كړې شوې په ګرمو كاڼو ، په اور كښې ، او بله معنى ئ (ثميًا يقطر منه ودكه) داسى څورب چه په اور كيخودې شى نو چربى ترينه څاڅى، حضرت قتاده وائى چه د ابراهيم ؑ عام مال بقر (غوايان) وو، او پنځلس ورځې شوې وې چه ابراهيم ته ؑ ميلمه نه وو راغلى ، نودې په دې غمژن وو څكه ميلمه ته به ډېر خوشحاليدلو ، او طعام به ئ هم د ميلمه سره خوړله نوچه كله فرشتې راغلې نو دې خوشحاله شو او سخى ئ ذبح كړ

. او پوخ ئ کړو. او دوئ ته ئ حاضرکړو ﴿فَلَمَّا رَءَآ أَيْدِيَهُمْ﴾ هر کله چه ابراهیم ﷺ د دوئ لاسونه اولیدل چه دَ خوراك طرف ته نه رسی یعنی دوئ نه خوری ﴿نَكِرَهُمْ﴾ نو ابراهیم ﷺ داخبره بده اوګنړله چه میلمانه ولې نه خوری. او یره ئ ترې نه محسوسه کړه. ځکه چه د دغه زمانې دستور داوو چه میلمه به د چا طعام نه خوړلو دا به د دې علامه وه چه د ضرر رسولو په نیت راغلې دې. د چا د طعام خوړلو نه روستو هغه ته ضرر رسول نمك حرامی وه. نو ابراهیم ﷺ ته خطره لاحقه شوه چه دا میلمانه ماته څه نقصان رسوی. کشاف وغیره وائی چه ظاهره دا وه چه ابراهیم ﷺ پوه شو چه دا فرشتې دی او آثار د غضب او غصې ئ ترې معلوم کړو نو خوف ورته لاحق شو، چه دوئ د چا د عذاب دپاره راغلی دی. فرشتو ورته اویل ﴿لَا تَخَفْ﴾ مه یریږه مونږ تاته یا ستا قوم ته د ضرر دپاره نه یو راغلی. فرشتو اثر د خوف او تغیر په چهره د ابراهیم ﷺکښې اولیدلو نو ځکه ئ دا خبره اوکړه. او بله دا چه په سورة حجر آیت ۵۲ کښې (انا منکم وجلون) راغلی دی، فرشتو ته دابراهیم ﷺ د زړه د حال علم غیب نه وو، بلکه د ابراهیم ﷺ په ویلو سره ورته معلومه شوه ﴿إِنَّآ أُرْسِلْنَآ﴾ یعنی د قوم لوط د هلاکت دپاره راغلی یو ﴿وَٱمْرَأَتُهُۥ قَآئِمَةٌ﴾ او حضرت ساره بنت هاران دابراهیم ﷺ د تره لور د پردې نه شاته ولاړه وه، د خدمت دپاره او د دوئ خبر ی ئ اوریدلې لکه په سورة ذٰریت کښې (فاقبلت امراته) دی، یعنی چه دا پوهه شوه چه دوئ ملائك دی نو د پردې نه مخامخ راغله په ﴿فَضَحِكَتْ﴾ د ضحك نه مراد خندانه ده، ځکه چې د حیاناکې زنانه دپاره په مجلس کښې خندا مناسب نه ده، بلکه د دې نه مراد خوشحاله کیدل دی په خبر د هلاکت د قوم د لوط ﷺ باندې ﴿فَبَشَّرْنَـٰهَا﴾ یعنی دویمه خوشحالی ورته په بشارت د ولد سره حاصله شوه. نوپه دې تقدیر سره په آیت کښې تقدیم او تاخیر نشته دې او فراء وائ چه دلته تقدیم اوتاخیر دې (فبشرناها فضحکت) نوسبب د ضحك او د سرور دپاره بشارت د ولد دې او مجاهد او عکرمه ویلی‌دی چه دلته تقدیم او تاخیر نشته دې، لیکن ﴿فَضَحِكَتْ﴾ په معنی د (حاضت) سره دې، یعنی ساره اګر که بوډئ وه، عمرئ یوکم سل کاله وو، لیکن حیض ئ شروع شو. نو دا دلیل وو د ولادت، او په سورة ذٰریت کښې (وبشروه بغلٰم) دې نو دهغې نه معلومیږی چه بشارت د ولد ابراهیم ﷺ ته ورکړې شوې دې، اوساری رضي الله عنها من وراء الحجاب اوریدلی دی. نو

خوشحاله شوه. او د دې آیت نه معلومیږی چه حضرت ساره رضي الله عنها ته بشارت ورکړې شو نو خوشحاله شوه. لیکن په دې دواړوکښې څه منافات نشته دې ، بلکه مطلب دادې چه ملائکو اول بشارت ابراهیم علیه السلام ته ورکړونو ساره بشارت د پردې نه روسنتو واؤریدلو نو خوشحاله شوه . او بیا دا احتمال وو چه ولد به د بلې ښځې نه پیدا کیږی. او د حضرت سارې رضي الله عنها هم دا تمنا وه چه زما هم اولاد وی . لکه اسماعیل علیه السلام د هاجرې رضي الله عنها د بطن نه پیدا دې نو د دې وجې نه ورته ملائکو بشارت دوباره ذکر کړو، چه دا بچی اسحٰق علیه السلام به ستا د بطن نه پیدا کیږی

**سوال** واردیږی چه د ﴿لَا تَخَفْ إِنَّآ أُرْسِلْنَآ إِلَىٰ قَوْمِ لُوطٍ﴾ نه صراحةً معلومه شوه چه فرشتو خبر ورکړو د هلاکولو د قوم د لوط علیه السلام بیا په سورة حجر ، او ذاریات کښې د (قال فما خطبکم ایها المرسلون) څه مطلب شو او ابراهیم علیه السلام ولې دا تپوس کوی چه (فما خطبکم) ، **جواب** دادې چه دلته په کلام کښې اختصار دې ، او مطلب دادې چه اول ئې ازاله د خوف په بشارت د ولد سره اوکړه . نو بیا ابراهیم علیه السلام تپوس اوکړو چه (فما خطبکم) یعنی د زیرې نه علاوه بل د څه مقصد دپاره راغلی یئ . نوفرشتو اویل چه ﴿إِنَّآ أُرْسِلْنَآ إِلَىٰ قَوْمِ لُوطٍ﴾ نو داجواب د (قال فما - الخ) دې . چه دلته نه دې مذکور ﴿وَمِن وَرَآءِ إِسْحَٰقَ يَعْقُوبَ﴾ داپه یو بشارت کښې بل بشارت دې ، چه اسحق علیه السلام به ژوندې پاتې شی ، او لوئې به شی او بچې به ئې هم پیدا شی (یعقوب) یا مرفوع مبتدا مؤخره ده (ومن وراء اسحق) ورله خبرمقدم دې، یا منصوب دې په فعل مقدرسره ، ای وهبنا لها یعقوب .

قَالَتْ يَٰوَيْلَتَىٰٓ ءَأَلِدُ وَأَنَا۠ عَجُوزٌ وَهَٰذَا بَعْلِى شَيْخًا ۖ إِنَّ هَٰذَا

وه ویل هغې هاې تعجب دې ، آیا زه به بچې زیږوم اوزه خو بوډۍ یم او دا خاوند ځما بوډا دې، پیشکه دا

لَشَىْءٌ عَجِيبٌ ۝ قَالُوٓا۟ أَتَعْجَبِينَ مِنْ أَمْرِ ٱللَّهِ ۖ رَحْمَتُ ٱللَّهِ وَبَرَكَٰتُهُۥ

خامخا کار عجیبه دې . وه ویل دوئ آیا تعجب کوې ته د کار دالله تعالی نه، رحمت د الله تعالی او برکتونه دهغه دې وی

عَلَيْكُمْ أَهْلَ ٱلْبَيْتِ ۚ إِنَّهُۥ حَمِيدٌ مَّجِيدٌ ۝ فَلَمَّا ذَهَبَ

په تاسې باندې اې کورنئ د ابراهیم ! بیشکه الله تعالی ستایلې شوې لوئې والا دې . پس هرکله چه لاړه

عَنۡ إِبۡرَٰهِيمَ ٱلرَّوۡعُ وَجَآءَتۡهُ ٱلۡبُشۡرَىٰ يُجَٰدِلُنَا فِي قَوۡمِ لُوطٍ ۞ إِنَّ إِبۡرَٰهِيمَ

د ابراهیم نه یره او راغي ورته زیري. نو بحث ئ شروع کړو زمونږ سره په باره د قوم د لوط کښ بیشک ابراهیم

لَحَلِيمٌ أَوَّٰهٞ مُّنِيبٞ ۞ يَٰٓإِبۡرَٰهِيمُ أَعۡرِضۡ عَنۡ هَٰذَآۖ

صبرناك ، دیرې عاجزی کونکې ، رجوع کونکې وؤ الله تعالی ته دوئ وه ویل اي ابراهیمه مخ واړوه د دوئ نه

إِنَّهُۥ قَدۡ جَآءَ أَمۡرُ رَبِّكَۖ وَإِنَّهُمۡ ءَاتِيهِمۡ عَذَابٌ غَيۡرُ مَرۡدُودٖ ۞

بیشکه په تحقیق سره راغلیدې حکم د رب ستا ، او بیشکه په دوئ راتلونکې دې داسې عذاب چه نشي واپس کولې

﴿قَالَتۡ يَٰوَيۡلَتَىٰٓ ءَأَلِدُ﴾ ساره ﷺ چه د بچی پیدا کیدو خوشخبری واوریدله . نو سخته حیرانه شوه (وَيْل) په اصل کښ په معنی د هلاك او رسوائ سره دې او استعمال ئ کیږی شائعًا په معنی د تعجب کښ او الف په (ویلتا) کښ عوض دې د یاء د متکلم نه . یعنی ساره ﷺ اویل چه ډیر تعجب دې مالره، آیا ځما به ولد پیدا شي ، اوحال دا چه زه بوډئ یم ، د ۹۹ کالو ، او زما خاوند هم بوډا دې د ۱۲۰کالو ، ﴿وَهَٰذَا بَعۡلِي﴾ مبتدا خبر دی . او ﴿شَيۡخًاۖ﴾ حال دې د بعلی نه، اوعامل په کښ معنی د فعل ده چه د هذا نه فهمیږی . معنی (اُشِيرُ انبّه) اومقصود ددې حال ذکر کولونه بیان د شیخوخة د بعل دې ، ځکه چه (شیخا) حال دې، قید زائد دې ، او قید زائد مراد د کلام وی ، او مقصود ترینه قید د بعلی نه دې په شیخوخة سره ، ځکه چه دامعنی فاسده ده ، لکه (هذا زید قائما) چه د دې نه هم مقصود بیان د قیام د زید دې او تقید د زید نه دې په قایمًا سره ، ګني نو لازم به شی دا چه په وقت د عدم د قیام کښ دې دغه مشار الیه زید نه وی . حالانکه هغه زید دې که قایم وی او نه ، نودلته هم که شیخوخة وی او که نه وی خو بعلية ثابت دې ، نو معلومه شوه چه مقصود تقیدنه دې په شیوخة سره ، بلکه مقصود بیان د شیخوخة دې ﴿إِنَّ هَٰذَا﴾ دا اشاره ده بشارت یا د ولادت ته په تاویل د مذکور سره یا په تاویل د هذا الفعل سره ﴿عَجِيبٞ﴾ دا عجیبه په اعتبا رد عادت سره دې ، نه په اعبار د قدرت دَ الله سره ﴿قَالُوٓاْ أَتَعۡجَبِينَ﴾ ملائك انکار او اعتراض کوی په په تعجب د ساره باندې ، چه تعجب تالره نه دی کول پکار ځکه چه ته په کور د نبوت کښ ئی چه هغه

مهبط د وحی دي . او محل د خوارقو د عادت دي نو تالره د خوارق العادت نه تعجب نه دي پکار بلکه تسبیح، تمجید ویل پکار دی په لیدلو د خارق العادة کار سره .

﴿رَحْمَتُ اللَّهِ وَبَرَكَٰتُهُۥ عَلَيْكُمْ﴾ دا جمله خبریه ده او علت دي دَ پاره دَ انکار د ساره رضي الله عنها . او بعض وائي چه دا جمله دعائیه ده ﴿أَهْلَ الْبَيْتِ﴾ دا منصوب دي بنا بر مدح یا بنا بر اختصاص. او دا آیت دلیل دي په دي چه خزه په اهل بیت کیدو کښ اصل ده او اطلاق د اهل بیت په خزه باندي کیدي شی ، نو د اهل بیت مصداق اول ازواج مطهرات دی ، او شیعه گان وائی چه په خزه د اهل بیت کیدو اطلاق هله کیږی چه دا دَ خاوند د آقاربو اودَ نسب نه وی ، لکه ساره رضي الله عنها چه د ابراهیم عليه السلام د تره لور وه ، او غرض ددوئ دادي چه عائشه رضي الله عنها د اهل بیت نه خارجه شی ، لیکن په سورة احزاب کښ ئ ټولو ازواجو ته اهل بیت ویلی دی ، نو حضرت عائشه رضي الله عنها په کښ داخله ده ، اود (يريدالله ليذهب عنكم الرجس اهل البيت ويطهركم تطهيرا) مصداق اولی ده ، رضي الله عنها واجزها عنا الجزا ، او دا رنگه د دي آیت نه داهم معلومه شوه چه د اهل بیت دپاره صیغه د جمع مذکرهم استعمالیږی لکه په دي آیت کښ د زوجي نه تعبیر په اهل بیت سره شوي دي او صیغه د جمع مذکر ورله مستعمل شوي ده نو د دي آیت نه دواړه مسئلي ثابتي شوي (۱) یو دا چه زوجه په اهل بیت کښ داخله ده مطلقا ، دویم دا چه اهل بیت دپاره صیغه د جمع مذکرصحیح ده ﴿فَلَمَّا ذَهَبَ عَنْ إِبْرَٰهِيمَ الرَّوْعُ﴾ یعنی هر کله چه د ابراهیم عليه السلام خوف ختم شو او مطمئن شو ، چه دا میلمانه انسانان نه دی بلکه ملائك دی او ماته د ضرر رسولو دپاره نه دی راغلی ، او د بچی په بشارت سره ورته مزید خوشحالی حاصله شوه، نو د قوم د لوط عليه السلام دپاره ئ په بلیغ انداز کښ سفارش شروع کړو ﴿يُجَٰدِلُنَا﴾ نه مراد سفارش کول دی او وجه داده چه ﴿إِنَّ إِبْرَٰهِيمَ لَحَلِيمٌ﴾ ابراهیم عليه السلام ډیر تحمل والا وو ﴿أَوَّٰهٌ﴾ ډیر آه کونکي تضرع کونکی نرم دل وو، چه څوك به ئ تکلیف کښ ؤلیده نو پریشان به شو ﴿مُّنِيبٌ﴾ انابت کونکي وو، الله ﷻ ته او دعا کونکي وو لکه روایت دي چه ابراهیم عليه السلام فرشتو ته اوئیل چه آیا تاسو هغه کلي هلاکوئ چه په هغي کښ دري سوه مومنان وی؟ نوهغوئ اوئیل چه نه ؟ بیا ئ اوئیل چه آیا تاسو هغه کلي هلاکوئ چه په هغي کښ دوه سوه مومنان وی؟ نو هغوئ اوئیل نه؟ بیا دغه شان د سلو او پنځوسو او د دیرشو په باره کښ ئ تپوس اوکړو ، حتی چه داسي تپوس ئ اوکړوچه که یو مومن په کښ وی نو فرشتو اوئیل چه داسي کلي هم مونږنه هلاکوو، نو

ابراهیم علیه السلام اونیل چه هلته خو لوط علیه السلام دی او د هغه مسلمانانې لونړه دی . نو فرښتو اویل چه د هغوئ فکرمه کوه هغه به مونږ سالم راؤباسو . او مقصود دابراهیم علیه السلام داوو . چه مزید نور مهلت ورکړې شي . شاید دوئ به ایمان راؤړي . وجه دا وه چه ابراهیم علیه السلام ډیر تحمل والا او ډیر نرم دل وو . لیکن د الله ﷻ د طرف نه ملائکو اوونیل ﴿ يَٰٓإِبۡرَٰهِيمُ أَعۡرِضۡ عَنۡ هَٰذَآۖ ﴾ داقول د فرشتو دي چه ستا په مجادله او سفارش کښې فائده نشته دي دا پریږده . وجه دا ده چه ﴿ قَدۡ جَآءَ أَمۡرُ رَبِّكَۖ ﴾ دالله ﷻ فیصله راغلې ده ﴿ وَإِنَّهُمۡ ءَاتِيهِمۡ ﴾ او دوئ ته داسې عذاب راتلونکې دې چه نه واپس کیږي

وَلَمَّا جَآءَتۡ رُسُلُنَا لُوطٗا سِيٓءَ بِهِمۡ وَضَاقَ بِهِمۡ ذَرۡعٗا وَقَالَ

او هرکله چه راغلل ملائك زمونږ لوط ته [1] ، خفه شو د هغوئ په وجه او تنګ ئ شو په دوئ باندې زړه او وې ویل

هَٰذَا يَوۡمٌ عَصِيبٞ ۝ وَجَآءَهُۥ قَوۡمُهُۥ يُهۡرَعُونَ إِلَيۡهِ وَمِن قَبۡلُ كَانُواْ

چه دا ورځ سخته ده . او راغلل ده ته قوم د ده بې اختیاره زغلولې شو طرف د ده ته او د دینه مخکښې دوئ وو

يَعۡمَلُونَ ٱلسَّيِّـَٔاتِۚ قَالَ يَٰقَوۡمِ هَٰٓؤُلَآءِ بَنَاتِي هُنَّ أَطۡهَرُ لَكُمۡۖ

چه کول ئ ناکاره کارونه . ده وه ویل اې قومه خما دا زنانه ستاسو لونړه خما دی دوئ حلالې دی تاسو لره نو دا په نکاح کړئ

فَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَلَا تُخۡزُونِ فِي ضَيۡفِيٓۖ أَلَيۡسَ مِنكُمۡ رَجُلٞ رَّشِيدٞ ۝

پس وه یریږئ د الله تعالی نه او مه شرموئ ما لره په باره د میلمونو خما کښې . ایا نشته دې په تاسو کښې یو سړې هوښیار

قَالُواْ لَقَدۡ عَلِمۡتَ مَا لَنَا فِي بَنَاتِكَ مِنۡ حَقّٖ وَإِنَّكَ لَتَعۡلَمُ مَا

دوئ وه ویل یقیناً ته ښه پوهیږې چه نشته دې مونږ لره په لونړو ستا کښې څه غرض او بیشکه ته پوهیږې په هغې

نُرِيدُ ۝ قَالَ لَوۡ أَنَّ لِي بِكُمۡ قُوَّةً أَوۡ ءَاوِيٓ إِلَىٰ رُكۡنٖ شَدِيدٖ ۝

چه مونږ ئ غواړو . وه ویل لوط ارمان دې چه وې ما لره په تاسو باندې طاقت یا مې پناهې نیولې وې یو قبیلې مضبوطې ته

1 - پنځمه قصه د دویمې دعوې سره متعلق .

﴿ وَلَمَّا جَآءَتْ رُسُلُنَا ﴾ داپنځمه قصه ده ، او د دویمې دعوې سره متعلق ده . لوط ﷺ ته فرښتې راغلې په شکل د انسانانو کښې نو ده اونه پیژندلې او د دوئ په راتلو ډیر پریشان شو . نو معلومه شوه چه دې عالم الغیب نه وو ، او هر کله چه پیغمبر ته علم غیب نشته دې نو بل چاته په طریقه اولی سره نشته دې ﴿ سِیٓءَ بِهِمْ ﴾ خفه شوپه راتلو د فرښتو ځکه چه قوم د دوئ بې حرمتی کوی ځکه چې فرشتی د ښکلی او بې ګیرې هلکانو په صورت کښې راغلې وې ﴿ وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا ﴾ (ذرعا) تمیز دې د فاعل نه نو په معنی کښې دې فاعل دې (ای ضاق صدره بهم) او ذرع په اصل کښې مټ (بازو) ته وائې او دا کنایه وی دجهد نه او د طاقت نه ، لکه (یَدْ) چه کنایه وی د قوة نه اومراد دَ طاقت نه د سینی طاقت دې نو د دې وجې نه د (ذرعًا) معنی (صدراً) شوه (ای ضاق صدره بمجیئهم) (قرطبی )، یعنی زړه ئ تنګ شو په راتللو د دوئ باندې ﴿ عَصِيبٌ ﴾ ای شدید، ځکه چه د میلمنو بې حرمتی دغیور میزبان دپاره ډیره سخته او ګرانه خبره وی ﴿ يُهْرَعُونَ إِلَيْهِ ﴾ په معنی دَ یَسْرَعُوْنَ معلومې صیغې سره دې او د مجهول صیغه ذکر کول دپاره دَ مبالغې دی په سرعت کښې چه ګویا بې اختیاره ګړندی اوتیز روان کړې شو ، او په بعض روایاتو کښې دی چه د لوط ﷺ بی بی کافره وه هغې قوم ته اطلاع ورکړه په راتلو دَ میلمنو باندې نو هغوئ بې اختیاره رامنډې وهلې ﴿ وَمِن قَبْلُ كَانُوا ﴾ یعنی د دینه مخکښې دوئ په خراب عادت باندې مبتلا وو ﴿ قَالَ يَٰقَوْمِ هَٰٓؤُلَآءِ بَنَاتِي ﴾ بعض مفسرین وائی چه د ﴿ هَٰٓؤُلَآءِ ﴾ نه مراد زنانه د قوم دی چه هغه د نبی دپاره په منزله د لونړو وی او بعض وائی چه خپلې لونړه رینه مراد دی او مقصود دادې چه ځما لونړه په نکاح واخلئ خو ځما د میلمنو بې حرمتی مه کوئ او نکاح دمومنې خزې سره دَ کافر سړی په دغه زمانه کښې جائز وه، اوبعض مفسرین وائی چه د لوط ﷺ مقصود نکاح نه وه ، بلکه د خپل آبرو د بچ کولو دپاره ئ داخبره په عجز سره اوکړه چه که چرې په دې قوم کښې لګ حیا اوغیرت او سړی توب وی نوپه دې سره به نرمی اختیار کړی ، او د میلمنو بیحرمتی به نه کوی ، لیکن په هغوئ کښې هیڅ انسانیت او غیرت نشته وؤ ﴿ رَّشِيدٌ ﴾ صالح مصلح او هوښیار ﴿ قَالُوا لَقَدْ ﴾ دوئ وه وئیل چه دومره تکرار، منت زاری بې فائدی دی ، مونږ خامخا مقصد پوره کوو﴿ مِنْ حَقٍّ ﴾ په معنی د حاجت او غرض سره دې یعنی غرض ئ شهوت پوره کول دی ، یعنی مونږ ستا د لونړو نه شهوت نه پوره کوؤ

﴿مَا نُرِيدُ﴾ یعنی طلب د دې میلمنو نه د فاحشه کولو ﴿قَالَ لَوْ أَنَّ لِي بِكُمْ قُوَّةً﴾ بدنی طاقت او د افرادو طاقت مراد دې ﴿أَوْ آوِي إِلَىٰ رُكْنٍ﴾ د دینه مراد مضبوطه آسره او سهارا د «خاندان قبیلې» ده . «لو» تمنائیه دې یعنی کاش چې زما سره څه قوت وې یا څما مضبوطه قبیله وې . یا «لو» شرطیه دې ،او جزاء ئې محذوف ده ، چه (لدفعتکم) ده، د دینه معلومه شوه چه نبی لکه چه غیبدان نوی نو دغه شان مختارکل هم نه وی کچرته وی نو دومره افسوس اوتمنا به ئې نه کوله ، په حدیث کښې راغلی دی ، یرحم الله لوطا لقد کان یأوی الی رکن شدید ، د ظاهر دحدیث نه تنقید معلومیږی په حضرت لوط ﷺ باندې چه توکل علی الله ئې ونه کړو بلکه قوم او قبیله ئې اسرا اوګرځوله ، حضرت ګنګوهی ﷫ فرمائی چه د حدیث مقصد بیان دلوط ﷺ کمال دې چه د منکر د مدافعت دپاره ئې کوشش اوکړو، او تمنا ئې اوکړه چه نور طاقت مې وې، د منکر مکمل مدافعت به مې کړې وې، او دا تمنا د توکل سره منافی نه ده بلکه دا د ظاهری اسبابو مطابق ده ، صوفیه وائی چه توکل لرې کول د اسبابو دی د قلب نه نه د قالب نه، یعنی ظاهری اسباب به نشی ترک کولې بلکه یقین به پرې ترک کولې شی . او په خالق الاسباب به نظر ساتلې شی ، او بعض حضرات د حدیث مفهوم داسې بیانوی چه لوط ﷺ پناه مضبوط رکن ته نیوله ، یعنی توکل ئې په الله ﷻ وو، او تمنا دقوت او د قبیلې د ظاهری اسبابو مطابق وو، چه د توکل سره ئې مخالفت نشته دې ، په سورة قمر کښې دی (فطمسنا اعینهم) یعنی داقوم چه کله راغلو او د لوط په کور کښې په میلمنو پسې ئې د داخلیدو اراده اوکړه ، نو لوط ﷺ منع کول جبرائیل ﷺ د لوط ﷺ لاس اونیولو ،او شاته ئې کړو نو چه دوئ داخل شول ، نو جبرائیل ﷺ په دوئ باندې خپل پر راخکلو نو سترګې ئې بې نوره او خاړه شوې ، خو بیا ئې هم د میلمنو تلاش کولو .

| قَالُوا يَا لُوطُ إِنَّا رُسُلُ رَبِّكَ لَنْ يَصِلُوا إِلَيْكَ |
|---|
| وه ویل ملائکو : اې لوطه ! پیشکه مونږ رالیږلې فرشتې د رب ستا یو ، هرګز نشی رسیدلې دوئ تا ته په ضرر سره |
| فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِنَ اللَّيْلِ وَلَا يَلْتَفِتْ مِنْكُمْ أَحَدٌ إِلَّا امْرَأَتَكَ ط |
| پس بوځه اهل خپل په یوه حصه د شپې کښې او شا ته دې نه ګوری ستاسونه هیڅوک مګر ښځه ستا، |

إِنَّهُ مُصِيبُهَا مَآ أَصَابَهُمْ ۚ إِنَّ مَوْعِدَهُمُ الصُّبْحُ ۚ أَلَيْسَ الصُّبْحُ بِقَرِيبٍ ۝

بېشکه دې به ورسي هغه عذاب چه رسېږي قوم د هغې ته . بېشکه نېټه د عذاب د دوئ وخت د صبا دی. آیا نه دی صبا نږدې"

فَلَمَّا جَآءَ أَمْرُنَا جَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهَا

ـس هرکله چه راغي عذاب زمونږ وګرځوو مونږ بره طرف د کلو لاندې دهغې او را وه ورولو مونږ په دوئ باندې

حِجَارَةً مِّن سِجِّيلٍ مَّنضُودٍ ۝ مُّسَوَّمَةً عِندَ رَبِّكَ ۖ وَمَا هِيَ مِنَ الظَّالِمِينَ بِبَعِيدٍ ۝

کاڼي د پخو شوو خاورو نه پرله پسې نښان لګېدلی په نیز د رب ستا . او نه وو هغه د ظالمانو نه لرې

﴿ قَالُوا يَا لُوطُ ﴾ هرکله چه فرښتو د حضرت لوط ؑ بې چینی او پرېشانی اولیدله نو خپل ځان ئې هم ښکاره کړو چه مونږ فرښتې یو ، دوئ تا ته هیڅ قسم ضرر نه شی رسولې ، یعنی مونږ خو ملائك یو مونږ ته هیڅ ضرر نه شی رسولې. نو زمونږ فکر مه کوه. لیکن تا ته هم څه تکلیف نشی درکولې. په دوئ باندې عذاب الهی راتلونکې دې نو ته اهل خپل د شپې شپې روان کړه . او واپس مه ګوره . مګر ستا بی بی د ځان سره مه بوزه څکه چه دا کافره وه، جاسوسی به ئې کوله. چه کله به د لوط ؑ کور ته میلمانه راغلل نو دوې به کافرو ته اطلاع ورکوله . نو په دې به هم هغه عذاب راځی کوم چه په قوم راځی . لوط ؑ روان شو . او بی بی ئې پاتې شوه، او بعض وائی چه بی بی ورسره تلې وه خو په روستو به ئې کتل او (واه قوما) یعنی هائی څما قومه ' ئې ویل نو په دې هم عذاب راغې چه د اسمان نه کاڼې راغې او دا پرې اولګیده او هلاکه شوه ﴿ إِلَّا امْرَأَتَكَ ﴾ استثناء ده د (باهلك) نه یعنی دامه بوځه . لوط ؑ تپوس اوکړو چه په دوئ به عذاب کله راځی نو جواب راغی ﴿ إِنَّ مَوْعِدَهُمُ الصُّبْحُ ﴾ نو لوط ؑ اویل چه زه غواړم چه زر هلاك شی. نو فرښتو او وئیل ﴿ أَلَيْسَ الصُّبْحُ بِقَرِيبٍ ﴾ چه صبا خو نږدې دې . نه خپل ځان او اهل او مومنان اوباسه ﴿ فَلَمَّا جَآءَ أَمْرُنَا ﴾ د امرنه مراد عذاب یا فیصله او حکم دې . یا ترینه مراد وخت د عذاب دې ﴿ جَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا ﴾ د قوم لوط ښارونو ته په بل ځائ کښ قران (موتفکات) ویلی دی . او دا څلور ښارونه وو. (۱) سدوم دا مرکزی ښار وو، (۲) او بل آموریا عموره (۳) او دریم دوامه (۴) او څلورم سوابه . د دینه علاوه نور دیهات کلی هم وو. تمامه علاقه تقریبا په شپږ لاکه خلقو باندې مشتمله وه . لیکن په دوئ کښ د لوط

ﷺ د دوو لونړو نه علاوه بل هیڅا ایمان نه وو راوړې . حتی چه د لوط بی بی هم د ایمان نه محرومه وه . او د نورو کافرانو سره په عذاب کښې مبتلاشوې وو. نو لوط ﷺ چه دوئ نه ډیره زمانه تبلیغ اوکړو. اودوئ ایمان نه راوړلو. نو عذاب پرې راغې الله ﷻ جبرائیل راؤلیګلو .او د هغه شپږسوه وزرې وې . د یو وزر په سر باندې ئ دا ټوله علاقه د ویخ نه راوچته کړه . او اسمان ته ئ ورسوله حتی چه اهل د اسمان د سپو اوازونه او دچرګانو اوازونه اوریدل . بیا ئ پړ مخې د اسمان نه زمکې ته ارتاؤکړل . ﴿وَأَمْطَرْنَا﴾ او کانړی ئ پرې راوورول ﴿وَأَمْطَرْنَا﴾ عطف په واو سره شوې دې . او واو ترتیب نه فائده کوی نوکیدې شی چه کانړی ئ پرې اول ورولی وی او بیا ئ پړ مخې غورزولی وی او داهم کیدې شی چه د کلو اړول مخکښې وی او دَ کانړی ورول روستووی، الله قادر دې په دې هم چه زمکه ئ په فضاء کښې حصاره کړې وی او په دوئ باند ئ کانړی ورولی وی . او بیا ئ لاندې ارتاو کړی وی . او بعض وائ چه کوم خلق په علاقه کښې موجود وؤ په هغوئ باندی زمکه اُلټه شوه . او کوم خلق چه د علاقې نه بهر وو نو په هغوئ باران د کانړو اوشو ﴿سِجِّيلٍ﴾ خټه چه پخه کړې شی . په اور باندې هغې ته وائی، نو په دې کښې دَ اور ماده وه ﴿مَّنضُودٍ﴾ لاندې باندې ، من النضد وهو وضع الشئ بعض علی بعض، (۲) یا په معنی د پی درپی سره ای متتابعة یرسل بعضه اثر بعض، کشاف ﴿مُّسَوَّمَةً﴾ خاص نشان پرې لګیدلې وو، سپین رنګ وو، یاسور رنګ وو. او چا ویلیدی چه داسې نشانه پرې لګیدلی وه چه په هغې سره دا معلومیده چه د ا د زمکې کانړی نه دی ، او چاویلیدی چه په هر کانړی د هغه چا نوم وو چې د چاد پاره مقرر شوې وو ﴿وَمَا هِيَ مِنَ الظَّالِمِينَ بِبَعِيدٍ﴾ ضمیر د «هی» راجع دې کانړو ته او دظالمینو نه مراد قوم لوط وو، یعنی دا کانړی د دوئ نه بعید نه وو، بلکه په صحیح نشان به لګیدل، یا دا چه اګر که دا کانړی د اسمان نه راغلی وو خو د کافرانو سره به ډیر زرملحق شول ، نو بعید نه وو. یامراد د ظالمانو نه کفار د مکې دی یعنی کوم عذاب چه په قوم د لوط علیه السلام باندې راغلې وو. نو هغه ظالمان د دې اُمت نه لری نه دی ، بلکه راتلې شی ، یعنی هغه ظالمان چه په مثل د قوم لوط وی په کفر او په بدعملئ کښې یا ضمیر د «هی» راجع دې قری دَ قوم لوط ته . اود ظالمانو نه مراد اهل مکه دی، یعنی دغه قری ده اهل مکې نه لرې نه دی ،بلکه دوئ په خپلو سفرونو کښې په دې تیریږی او د تباه شوو خلقو د علاقی مشاهده کوی نو ولې ترینه عبرت نه حاصلوی

وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا ۚ قَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ مَا لَكُم

او لېگلي وو مونږ مدين والو ته رور دهغوئ شعيب [١]. ، وه ويل ده اې قومه خما د يو الله بندګي کوئ نشته دې تاسو لره

مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥ ۖ وَلَا تَنقُصُوا۟ ٱلْمِكْيَالَ وَٱلْمِيزَانَ ۚ إِنِّىٓ أَرَىٰكُم بِخَيْرٍ

هيڅوک حقدار د عبادت سوی د هغه نه. او کمې مکوئ په پيمانه او وزن کښې بيشکه زه وينم تاسو لره په مالدارئ کښې

وَإِنِّىٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ مُّحِيطٍ ۝ وَيَٰقَوْمِ أَوْفُوا۟ ٱلْمِكْيَالَ

او بيشکه زه يريږم په تاسې د عذاب د ورځې راګيرونکې نه . او اې خما قومه ! پوره کړئ جوک (پيمانه)

وَٱلْمِيزَانَ بِٱلْقِسْطِ ۖ وَلَا تَبْخَسُوا۟ ٱلنَّاسَ أَشْيَآءَهُمْ وَلَا تَعْثَوْا۟ فِى ٱلْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ۝

او تول په انصاف سره، اومه کموئ د خلقونه مالونه دهغوئ اومه ګرځئ په زمکه کښې وراني کونکي

بَقِيَّتُ ٱللَّهِ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ۚ وَمَآ أَنَا۠ عَلَيْكُم بِحَفِيظٍ ۝

هغه نفع چه الله حلاله کړيده ډيره غوره ده تاسو لره که چرې يئ تاسې يقين کونکي او نه يم زه په تاسې نګهبان (ساتونکې)

﴿وَإِلَىٰ مَدْيَنَ﴾ داشپږمه قصه ده متعلقه ده دَ دعوی اولی سره ، ځکه چې هغه ډيره اهمه وه ،يعنی شعيب عليه السلام هم ﴿يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ﴾ ويلی وو ، او مسئله د توحيد ئ بيان کړې وه ، او قوم ئ دشرك نه او د خيانت نه په مالونو کښې منع کړې وو (مدين) په اصل کښې نوم د سړی وو ، چه هغه دابراهيم عليه السلام ځوئ وو ، دابراهيم عليه السلام دوه بيبيانې خومشهورې وې ، ساره او هاجره ، خو دوه بيبيانې ئی نورې هم وې ، د مدين د مور نوم قنطوراء وه، بيا په دې نوم د مدين سره شهر او قوم هم مشهور شو ، نو مدين شهر ته هم ويلې شی ، او قبيلی ته هم ويلې شی ، نو که په آيت کښې دمدين نه مراد مخصوص سړې شی نو بيا مضاف مقدر دې ( ای الی بنی مدين) او که شهر ترينه مراد شی نو بيا مضاف مقدر دې (ای الی سکان مدين) اوکه د مدين نه مراد قوم شی نو تقدير د مضاف نه ضرورت نشته دې ، شعيب عليه السلام د قوم مدين يو فرد وو نو د دې وجې نه دلته اخاهم ذکر شوې دې ، د شعيب عليه السلام د قوم نه چه تعبير په مدين سره وشی نو هلته د شعيب عليه السلام لپاره ((أَخَاهُمْ ، أَخُوهُمْ)) ذکرکيږی، او چه تعبير ترينه په (اصحب

١ - شپږمه قصه د اولې دعوې سره متعلق .

الايكه) سره اوشي نو هلته د شعيب ﷺ لپاره اخاهم، اخوهم نه ذکر کیږي . نوبعض مفسرين وائي چه د دې وجه داده چه شعيب ﷺ دوو قومونوته مبعوث شوې وو، د يو سره ئ نسب شريك وو، نو ځکه هلته اخاهم ذکر کیږي ، او د بل سره په نسب کښې نه وو شريك نو ځکه اخاهم نه ذکر کیږي او بعض وائ چه مدين او اصحب الايکه د يو قوم نومونه وو، ليکن مدين ئ نسبي نوم دې ، او نسب کښې ورسره شعيب ﷺ شريك وو، نو اخاهم ذکر کیږي او اصحب الايکه ئ مذهبي نوم دې، نو په هغې کښې ورسره شعيب ﷺ نه ووشريك نو ځکه اخاهم نه ذکر کیږي ﴿إِنِّيٓ أَرَىٰكُم بِخَيۡرٖ﴾ يعنې مالداري او فراخي د رزق نو په ناپ تول کښې کمې کول او دهوکه کو ل خو د هرچا دپاره قبيحه او بده خبره ده ليکن دمالدار دپاره ډيره قبيحه ده او دارنګه مالداري او فراخي دَ رزق يو نعمت دې ، نو د دې ناشکري مه کوئ . او د دې نعمت د زوال اسباب مه اختياروئ ﴿عَذَابَ يَوۡمٖ مُّحِيطٖ﴾ محيط صفت د يوم هم کيدې شي اوصفت د عذاب هم کيدې شي، او جر د جوار دې (کشاف وائي چه اوله توجيه ابلغه ده ﴿وَيَٰقَوۡمِ أَوۡفُواْ ٱلۡمِكۡيَالَ﴾ دا امر دې په پوره کولو د ناپ تول باندې ، او که څوك **سوال** اوکړي چه مخکښې په سورة اعراف کښې (ولاتنقصوالمکيال والميزان) راغلي دي ، او نهي د يو شي نه امر وي په ضد د هغې نو نهي د نقصان نه بعينه امر دې په ايفا د کيل ، وزن باندې نو ذکر د (اوفوالمکيال والميزان) روستو دَ (ولا تنقصوا المکيال والميزان) نه مستدرك دې.

**جواب** : اول خو دا خبره مختلف فيه ده چه نهي د شئ نه امر دې په ضد دهغې ، دويم داچه مخکښې د ظلم د قانون نه منع راغلې ده ، نو دلته د اصلاح صورت بيانيګي چه ايفاء ده، او دنهي دکموالي د کيل وزن دپاره يو صورت دادې چه پوره ورکړې شي ، اودا واجب او مامور به دې او بل صورت ئ دادې چه زيات ورکړې شي ،او دا خو ضروري اومامور به نه دې، نو دلته د هغه صورت بيان دې چه واجب اومامور به دې ، او بل جواب دادې چه دا د تاکيد او مبالغې دپاره دې په منع کښې ﴿وَلَا تَبۡخَسُواْ ٱلنَّاسَ﴾ په دې کښې هر قسم نقصان کول داخل دي ، لکه غلا ، او غصب کول، دهوکه کول، په ناجائز حيلو سره او په دروغو سره د چا مال اخستل ، داټول په کښې داخل دي ﴿وَلَا تَبۡخَسُواْ﴾ دانهي ده د فسادنه ، او مراد دَ فساد نه معاصي کول دي او خلق منع کول دي د اتباع د شعيب ﷺ نه ﴿بَقِيَّتُ ٱللَّهِ خَيۡرٞ لَّكُمۡ﴾ د دينه مراد هغه جائزه ګټه ده چه الله جل جلاله دَ هغې اجازت کړيدې، اګر که لګه وي خو په دې کښې خير او نفع وي ، او ناجائزه ګټه د خير ذريعه نشي کيدې ﴿وَمَآ أَنَا۠ عَلَيۡكُم بِحَفِيظٖ﴾ يعنې ما خو

تاسو ته نصيحت اوکړو نو زه ذمه وار نه يم چه په تاسو زبردستي اوکړم

د دې ځائ پورې د شعيب ﷺ بيان وو چه خلاصه ئ دوه خبرې دی يو د حقوق الله حفاظت او دويم د حقوق العباد حفاظت.

قَالُوْا يٰشُعَيْبُ اَصَلٰوتُكَ تَاْمُرُكَ اَنْ نَّتْرُكَ مَا يَعْبُدُ

وه ويل دوئ اې شعيبه! آيا مونږ ستا حکم کوی تا ته، چه پريږدو مونږ هغه معبودان چه دهغوئ عبادت کولو

اٰبَآؤُنَآ اَوْ اَنْ نَّفْعَلَ فِيْٓ اَمْوَالِنَا مَا نَشٰٓؤُا ؕ اِنَّكَ لَاَنْتَ الْحَلِيْمُ

زمونږ مشرانو، يا پريږدو مونږ هغه څه چه کوؤ مونږ په خپلو مالونو کښې هغه چه مونږ غواړو، بيشکه ته خو صبرناک

الرَّشِيْدُ ۝ قَالَ يٰقَوْمِ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ

هوښيار ني (په خپل ګمان کښې). وه ويل ده: اې قومه خما! تاسو فکروکړئ که يم زه په ښکاره دليل د طرف د رب خما نه

وَرَزَقَنِيْ مِنْهُ رِزْقًا حَسَنًا ؕ وَمَآ اُرِيْدُ اَنْ اُخَالِفَكُمْ اِلٰى مَآ

او راکړې ئ وی ما ته د خپل طرف نه رزق ښائسته، اوځه نه غواړم چه لاړ شم په خلاف ستاسو هغه کار کولو ته

اَنْهٰكُمْ عَنْهُ ؕ اِنْ اُرِيْدُ اِلَّا الْاِصْلَاحَ مَا اسْتَطَعْتُ ؕ وَمَا تَوْفِيْقِيْٓ اِلَّا بِاللّٰهِ ؕ

چه تاسو منع کوم دهغې نه ځه نه غواړم مګر اصلاح ترڅو چه طاقت لرم، او ندې توفيق خما مګر په مدد د الله سره دې

عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ اُنِيْبُ ۝ وَيٰقَوْمِ لَا يَجْرِمَنَّكُمْ

خاص په هغه خما توکل دې اوهغه ته خما رجوع ده. او اې قوم خما! باعث او سبب دې جوړ نه شی تاسو له

شِقَاقِيْٓ اَنْ يُّصِيْبَكُمْ مِّثْلُ مَآ اَصَابَ قَوْمَ نُوْحٍ اَوْ قَوْمَ هُوْدٍ

دشمنی خما سره د دې خبرې چه ورسيږی تاسوته عذاب په شان دهغه عذاب چه رسيدلې وؤ قوم د نوح يا قوم د هود

اَوْ قَوْمَ صٰلِحٍ ؕ وَمَا قَوْمُ لُوْطٍ مِّنْكُمْ بِبَعِيْدٍ ۝ وَاسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوْبُوْٓا اِلَيْهِ ؕ

يا قوم د صالح ته او ندې قوم د لوط ستاسې نه څه لرې. اوبښنه غواړئ د رب خپل نه بيا توبه وباسئ هغه ته

## إِنَّ رَبِّي رَحِيمٌ وَدُودٌ ۝

بیشکه رب خما رحم کونکي محبت کونکي دي

﴿قَالُوا يَٰشُعَيْبُ أَصَلَوٰتُكَ﴾ داد قوم د طرف نه تنقیداو اعتراض دي په طور د استهزاء ومسخرې سره ،او صلوة په معنی د مونځ سره دې ځکه چه شعیب ﷺ به ډیر مونځونه کول . په معنی د دین سره دي ، حاصل دا دي چه آیا په ټول قوم کښ صرف ته لویٔ عقلمند او با وقار ئی او مونږ او زمونږ مشران احمقان او بې وقوف دی ، شاید ستا مونځ او دین به ناته دا حکم کوی چه مونږ دَ آباؤ اجدادو دین پریږدو ، یا په خپل مال کښ مالکانه تصرف ونه کړو . ته خپل مونځ کوه .او ځمونږ په مذهبی او دنیوی معاملاتو کښ دخل مه لره ﴿أَوْ أَن نَّفْعَلَ﴾ یا دلته لفظ د (تَنْهانا) او یا لفظ د (لا) مقدردي یا دا عطف دې ، په ما بعد باندې، نو دَ (تنهنا) تحت دي ﴿إِنَّكَ لَأَنتَ الْحَلِيمُ الرَّشِيدُ﴾ داپه طریقه د استهزاء سره دې . یا په دي کښ لفظ د (بزعمك) مقدر دي ، ﴿عَلَىٰ بَيِّنَةٍ﴾ نه مراد واضح دلیل د نبوت دي ﴿رِزْقًا حَسَنًا﴾ د دینه مراد وحی او نبوت دې ، یا تری نه مراد رزق حلال دې ، او جواب د (ارءیتم) مقدر دې چه د تیرو شوو قصونه معلومیږی، ای لا یصلح لی ان لآ مرکم بترك عبادة الاوثان ، یا فهل یسوغ لی مع هذا الانعام الجامع للسعادات الروحانية والجسمانية ان اخون فی وحيه ، یعنی اللهﷻ ماته نبوت او فهم راکړو ، او حلاله روزی ئ راکړې ده ، بغیر د دهوکې نه او بغیر د کمی کولو نه په ناپ تول کښ نو آیا د دې انعام شکریه داده چه زه د الله ﷻ په وحی کښ خیانت اوکړم ، او ستا سو د مسخرو نه متاثر شم ، او نصیحت او د دعوت کار پریږدم ، داسی هرګز نشی کیدي ﴿أَنْ أُخَالِفَكُمْ﴾ اخالف د اخلاف نه مشتق دې ، اخلاف دیته وائی چه چالره د یو عمل نه واپس کړی اوپخپله ئ شروع کړی نوشعیب ﷺ وائی چه زه تاسو د بخس (دهوکې) نه منع کوم او په ناپ تول کښ د کمی کولو نه منع کوم نو ځما دا مقصد او خود غرضی نه ده چه تاسو ته د کومې خبرې نصیحت کوم نو پخپله ئ شروع کړم ، او ډیر مال به اوګټم ، په ناجائزه طریقه . بلکه ځه چه تاسو ته د کومې خبرې نصیحت کوم نوپه هغې د مخکښ نه په خپله عامل یم ، اوځما په دعوت او تبلیغ کښ هیڅ خود غرضی نشته دې بلکه د اللهﷻ د امر امتثال او دهغه رضا مطلوب ده ﴿إِنْ أُرِيدُ إِلَّا الْإِصْلَاحَ﴾ زما مقصود ستاسو اصلاح ده . حتی الوسع ﴿وَمَا تَوْفِيقِي إِلَّا

بِاللّٰهِ﴾ یعنی زما خواهش خو ستاسو اصلاح ده لیکن څما د دې خواهش پوره کیدو توفیق د الله ﷻ په اختیار کښې دې، او زما مقصود اوخواهش به محض د الله ﷻ په تائید او توفیق سره پوره کیږی ﴿عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ﴾ د جار مجرور تقدیم د حصر دپاره دې ﴿وَإِلَيْهِ أُنِيبُ﴾ یعنی: مقاصدو د حصول دپاره او د مشکلاتو د حل دپاره څه صرف الله ﷻ ته رجوع کوم .یا دا چه الله تعالی ته رجوع کوم په آخرت کښې نودا ذکر د منتهی دې ، او په ﴿عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ﴾ کښې ذکر د خالص توحید دې . نوهغه مبدء ده ، نودلته مبدء اومنتهی دواړه ذکر شو. شربینی او ابن جریر طبری حدیث نقل کړې دې چه نبی ﷺ د حضرت شعیب ﷺ ذکر اوکړو نو وې فرمائیل چه دې خطیب الانبیاء وو، څکه چه د قوم سره ئ خائسته مراجعه کړی ده .

﴿وَيَٰقَوْمِ لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شِقَاقِيٓ﴾ شقاق په معنی د ضد او تعصب سره دې، او (لایجرمنکم) په معنی د (لایکسبنّکم) سره دې ، یعنی زما سره ضد دې د دې خبرې باعث نه شی چه په تاسو باندې داسی قسم عذاب راشی چه کوم قوم د نوح ﷺ او قوم د هود ﷺاو قوم لوط ﷺ باندې راغلی وؤ ، نو دا تخویف دې یعنی که زما مخالفت کوئ نو دغه شان عذابونه به په تاسو راشی. ﴿بِبَعِيدٍ﴾ یعنی قوم لوط بعید نه دېستاسونه د زمانېپه اعتبار سره څکه چه د دوئ واړو قومونو زمانه قریبه وه ، او د مکان په اعتبار سره دواړه علاقېقریب او متصل دی ﴿ وَٱسْتَغْفِرُوا۟ رَبَّكُمْ ﴾ دا رغیب دې، یعنی بنده چه توبه او استغفار کوی نو رب ډیر مهربان دې د بنده ګناهونو معاف کوی .اومحبت کونکې دې نود بنده سره محبت کوی په توبه استغفار سره ګناهونه معاف کیږی، او الله ﷻ ورسره محبت کوی .

| قَالُوا۟ يَٰشُعَيْبُ مَا نَفْقَهُ كَثِيرًا مِّمَّا تَقُولُ وَإِنَّا لَنَرَىٰكَ |
| --- |
| وه ویل دوئ اې شعیب ! نه پوهیږو مونږ په ډیرو هغه خبرو چه ته ئ وایې او بیشکه مونږ خامخا وینو تا لره |
| فِينَا ضَعِيفًا ۖ وَلَوْلَا رَهْطُكَ لَرَجَمْنَٰكَ ۖ وَمَآ أَنتَ عَلَيْنَا بِعَزِيزٍ ۝ قَالَ |
| په مونږ کښې کمزورې، اوکه نوې خاندان ستا نو مونږ به ته سنګسار کړې وې اونه ئې ته مونږ ته قدرمند. وه ویل ده: |
| يَٰقَوْمِ أَرَهْطِيٓ أَعَزُّ عَلَيْكُم مِّنَ ٱللَّهِ وَٱتَّخَذْتُمُوهُ وَرَآءَكُمْ |
| اې قومه څما ! آیا خاندان څما ډیر عزتمند دې په تاسو د الله تعالی نه، اوګرځولې دې تاسوهغه لره روستو دخپل خان نه شاته |

| ظِهْرِيًّا ۚ إِنَّ رَبِّي بِمَا تَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ۝ وَيٰقَوْمِ |
|---|
| غورزولې شوې، بیشکه رب ځما په هغه کارونو چه تاسو ئې کوئ احاطه کونکې دې او اې قومه ځما |
| اعْمَلُوا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ إِنِّي عَامِلٌ ۚ سَوْفَ تَعْلَمُونَ ۙ مَنْ يَأْتِيهِ |
| عمل کوئ په طریقه خپله بیشکه زه هم کارکونکې یم، پس زرده چه تاسو به معلوم کړئ هغه څوك چه راځي هغه ته |
| عَذَابٌ يُخْزِيهِ وَمَنْ هُوَ كَاذِبٌ ۚ وَارْتَقِبُوا إِنِّي مَعَكُمْ رَقِيبٌ ۝ |
| عذاب چه رسوی به ئې کړی اوهغه څوك چه دروغژن وی. او انتظار کوئ تاسو بیشکه زه هم ستاسو سره انتظار کونکې یم |
| وَلَمَّا جَاءَ أَمْرُنَا نَجَّيْنَا شُعَيْبًا وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ |
| اوهرکله چه راغې حکم د عذاب زمونږ بچ کړو مونږ شعیب لره اوهغه کسانو لره چه ایمان ئې راوړې وو د ده سره |
| بِرَحْمَةٍ مِنَّا وَأَخَذَتِ الَّذِينَ ظَلَمُوا الصَّيْحَةُ فَأَصْبَحُوا فِي دِيَارِهِمْ |
| په وجه د رحمت زمونږ او ونیولو ظالمانو لره سختې هیبتناکې چغې پس شو دوئ په خپلو کرونو کښ |
| جٰثِمِينَ ۝ كَأَنْ لَمْ يَغْنَوْا فِيهَا ۗ أَلَا بُعْدًا |
| پرمخې غورزیدلی مړه. لکه نه وو اوسیدلی په دغه ځائ کښ. خبردار: لرې والې دې د رحمت الهی نه |
| لِمَدْيَنَ كَمَا بَعِدَتْ ثَمُودُ ۝ |
| لپاره د مدین والو لکه لرې وو ثمودیان د رحمت الهی نه. |

﴿قَالُوا يٰشُعَيْبُ﴾ د شعیب ﷺ د دعوت په مقابله کښ دوئ اووئیل چه مونږ خو ستا په دې خبرو نه پوهیږو چه ته څه وائې ، دا ئې د توهین دپاره ویلی دی ، یا دا چه دوئ د ډیر نفرت د وجې نه د شعیب ﷺ خبرو ته غوږ نه ایخودلو نو نه پوهیدل ﴿وَإِنَّا لَنَرٰىكَ﴾ دا دویم طعن دې ، چه ته کمزورې ئې ملګری دې نشته او طاقت درسره نشته دې ، یا دا معنی ده چه ضعیف ئې دَ عقل او د رائې په اعتبار سره چه د دنیا مصلحت اوسیاست باندې نه پوهیګې او د ابن عباس ﷺ اونورو سلفو نه مروی دی چه مراد د ضعیف نه اعمی دې، حضرت شعیب ﷺ ډیرې ژړا په وجه باندې د څه وخت دپاره نابینا شوې وو ، او بیا ورته الله ﷻ نظر واپس کړو ،

په يو بل روايت کښې دي چه شعيب عليه السلام نه الله ﷻ تپوس اوکړو چه ته ولې دومره ژاړې. آيا دجنت د شوق د وجې نه او که د دوزخ د خوف د وجې نه. نو دوئ اووئيل چه يا الله ﷻ چه ستا د ملاقات خيال اوکړم نو ژړيږم چه ماسره به څه کيږي. الله ﷻ اوفرمايل چه زما ديدار او ملاقات دې تاته مبارك وي، او ستا د ضعف او کمزورئ په وجه ماخپل کليم موسىٰ ابن عمران ستا په خدمت مامور کړې دې، نو ويلې شوي دي چه د دينه بعد الله ﷻ دوی ته بينائی واپس ورکړه ﴿وَلَوْلَا رَهْطُكَ﴾ دا دريم طعن دې چه که ستا د قوم او خاندان لحاظه نه وې نو مونږ به ته به بد ترين قتل سره قتل کړې وې، يعنی سنګ سار کړې به مو وې، ليکن چونکه ستا خاندان زمونږ سره موافق دې په شرك کښې نو د هغوئ په وجه پاتی ئی ﴿وَمَا أَنتَ عَلَيْنَا بِعَزِيزٍ﴾ دا څلورم طعن دی، يعنی ته مونږ ته معزز او محترم نه ئی ﴿قَالَ يَٰقَوْمِ أَرَهْطِيٓ أَعَزُّ﴾ دا د دريم طعن جواب دې، يعنی تاسو د الله ﷻ لحاظ نه کوئ، او د قوم لحاظ کوئ، او د الله ﷻ نه، نه يريږئ او دمخلوق نه يريږئ ﴿وَٱتَّخَذْتُمُوهُ﴾ يعنی الله ﷻ مو شاته غورزولې دې. يعنی هغه ته التفات نه کوئ، او د هغه لحاظ نه کوئ ﴿ظِهْرِيًّا﴾ د ظهر (بفتح ظاء) نه ماخوذ دې او کسره د وجې د نسبت نه راغلی ده ﴿إِنَّ رَبِّي بِمَا تَعْمَلُونَ﴾ يعنی تاسو چه څه عملونه کوئ نو هغه د الله ﷻ په احاطه علمی کښې دی نوسزا به درکوی ﴿عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ﴾ مکان او مکانت مصدر ميمی دې په معنی د حالت سره يعنی تاسو په خپله طريقه او حالت باندې عمل کړې دې او زه په خپله طريقه عمل کوم ﴿سَوْفَ تَعْلَمُونَ﴾ تاسو ته به د خپلو بدو اعمالو انجام معلوم شی ﴿سَوْفَ تَعْلَمُونَ﴾ جمله استينافيه ده، جواب د سوال دې، ګويا کښې دوئ اووئيل (فماذا يكون بعد ذٰلك) يعنی څه به اوشي، جواب راغې چه په خپله به پوهه شی، يعنی تاسو ماته کاذب او حقير وايئ نو عنقريب به معلومه شی چه کاذب او ذليل څوك دی ﴿مَن يَأْتِيهِ﴾ (مَن) موصوله هم کيدې شی او استفهاميه هم کيدې شی، او په دې تقدير باندې ئ تعليق کړې دې، يعنی فعل ئ د عمل نه منع کړی دې په لفظ کښې نو په اول احتمال معنی دا شوه چه زر ده چه تاسوبه عالمان شئ په هغه چا چه رازی په هغه عذاب، او په دويم احتمال معنی دا شوه چه زر ده چه تاسو به پوهه شئ چه په چا عذاب رازی ﴿وَمَنْ هُوَ كَٰذِبٌ﴾

دا عطف دي په ﴿مَن يَأْتِيهِ﴾ باندې یعنی تاسو ما ته کاذب او حقیر وایئ نو عنقریب معلومه به شی چه کاذب او ذلیل څوک وو ﴿وَٱرْتَقِبُوٓا﴾ ارتقاب لارې کتلو ته وائی . مراد ترینه انتظار دی، یعنی تاسو انتظار کوئ ، او زه هم په انتظار کښې یم.

**فائده** په قصه د عادیانو او قصه د شعیب ﷺ کښې ﴿وَلَمَّا جَآءَ﴾ دې په واو سره او په قصه د صالح ﷺ او د لوط ﷺ کښې (فلما) دې په فاء سره، وجه داده چه په دې دواړو قصو کښې وعده د عذاب ذکر شوې ده ، ﴿ذَٰلِكَ وَعْدٌ غَيْرُ مَكْذُوبٍ﴾ او ﴿مَوْعِدَهُمُ ٱلصُّبْحُ﴾ نو هغه په منزله د سبب دې ، نو فاء پکښې ذکر شوه ځکه چې دا هم د سببیت دپاره وی .او په قصه د عادیانو او د اهل مدین کښې وعده د عذاب نه وه ذکر شوې ، نو (فاء) ذکر نشوه.

﴿ٱلصَّيْحَةُ﴾ چغه د جبرائیل ﷺ او په سورة اعراف آیت ۹۱ کښې رجفه ذکر شوې ده . او په سورة شعراء آیت ۱۸۹کښې (عذاب یوم الظلة) ذکر دې نو د دریواړو اجتماع کیدلې شی نو (صیحة) او (رجفة) او (عذاب یوم الظلة) دریواړه دې پرې راغلی وی ، صیحة د بره نه او رجفة د لاندې نه او ظله درمیانی فضاء نه او چا ویلی دی چه د رجفة نه مراد حرکة القلب دې یعنی داسی سخت آواز و چه د دوئ زړونه په هغې سره اوچودل ﴿كَمَا بَعِدَتْ ثَمُودُ﴾ تشبیه ئ د ثمودیانو سره ځکه ورکړه چه رجفة او صیحة په دواړو راغلې وه، یا د دې وجې نه چه دواړه په عربو کښې داخل وو.

| |
|---|
| وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ بِـَٔايَٰتِنَا وَسُلْطَٰنٍ مُّبِينٍ ۝ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ |
| اوخامخا په تحقیق [1] سره لیګلې وو مونږ موسی په خپلو معجزاتو سره او په دلیل ښکاره سره فرعون ته |
| وَمَلَإِي۟هِۦ فَٱتَّبَعُوٓا۟ أَمْرَ فِرْعَوْنَ ۖ وَمَآ أَمْرُ فِرْعَوْنَ بِرَشِيدٍ ۝ يَقْدُمُ قَوْمَهُۥ |
| او مشرانو د قوم د هغه ته پس دوئ روان وو پطریقه د فرعون، اونه وه طریقه د فرعون سمه . وړاندې به ځی د خپل قوم نه |
| يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ فَأَوْرَدَهُمُ ٱلنَّارَ ۖ وَبِئْسَ ٱلْوِرْدُ ٱلْمَوْرُودُ ۝ وَأُتْبِعُوا۟ |
| په ورځ د قیامت، پس داخل به کړی دوئ لره اور ته، او ډیر بد ګودر دې چه دوئ ورته راوستلې شی. او په دوئ پسې راوستلې شو |

[1] - اوومه ۷ قصه د دریمې دعوې سره متعلق.

فِي هٰذِهِ لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ بِئْسَ الرِّفْدُ الْمَرْفُوْدُ ۝

پدې دنيا کښې لعنت او په ورځ د قيامت کښې هم، ډير بد انعام دې چه دوئ ته ورکړې شوې دې دا لعنت.

﴿وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى﴾ دا اوومه قصه ده . او د دريمې دعوې سره متعلق ده . يعنى لکه څه خرنگه چې موسى عليه السلام فرعون ته حق په شجاعت سره رسولې وو او زړه ئې نه وو تنگ کړې . نو دغه شان تاسو هم کوئ ﴿بِاٰيٰتِنَا﴾ عام معجزات او ﴿وَسُلْطٰنٍ﴾ خاص معجزات چه عصا ده . يا ترينه مراد هغه جلاليت او رعب دې چه الله ﷻ موسى عليه السلام ته ورکړې وو. حتى چه فرعون اونور جبابره به ترينه يريدل ﴿وَمَآ اَمْرُ فِرْعَوْنَ بِرَشِيْدٍ﴾ فرعون ويلى وو (وما اهديکم الا سبيل الرشاد) نو ددې دعوې رد اوشو چه د فرعون طريقه اوکار د کاميابئ والا نه وو﴿يَقْدُمُ قَوْمَهٗ﴾ دا تخويف اخروى دې ، په دنيا کښې لکه څه رنگه چه فرعون د خپل قوم قائد او مقتدا وو نو په قيامت کښې به هم وى او خپل قوم به جهنم ته داخل کړى﴿الْوِرْدُ﴾ (وِرد) گودر د اُوبو ته وائ او جهنم ته ئې وِرد تهکمًا ويلى دى ، ﴿الْمَوْرُوْدُ﴾ داصفت د وِرد بحال متعلقه دې ، او دلته مخصوص بالذم مقدر دې چه (هى) دې، تقدير د عبارت دا رنگې دې( المورود هم فيها، هى) وِرد گودرته وائى او وارد هغه چاته وائ چه گودر ته د اوبو دپاره لاړشى ، (مورود) هغه ځوك دې ، چه گودر ته بوتلې شى ، ﴿الرِّفْدُ﴾ عطيه او انعام ته وايى او جهنم ته ئ عطيه او انعام تهکمًا ويلى دى ﴿الْمَرْفُوْدُ﴾ (المُعطى لهم) او مخصوص بالذم مقدر دې چه (هى) دې ، يعنې ډير بد انعام او عطيه ده چه دوئ ته ورکړې شوه ، چه جهنم دې.

ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْقُرٰى نَقُصُّهٗ عَلَيْكَ مِنْهَا قَآئِمٌ

دا چه ذکر شو بعضې د حالاتو د کلو نه دى، بيانوؤ مونږ دا تا ته بعضې د هغه کلونه ولاړ دى يعنى شته دې

وَّحَصِيْدٌ ۝ وَمَا ظَلَمْنٰهُمْ وَلٰكِنْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ

او بعضې د ويخ نه ريبلې شوى دى . او ظلم ندې کړې مونږ په دوئ باندې ليکن ظلم کوؤ دوئ په خپلو ځانونو ،

فَمَآ اَغْنَتْ عَنْهُمْ اٰلِهَتُهُمُ الَّتِيْ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ لَّمَّا جَآءَ

پس دفع نه کړو د دوئ نه د دوئ هغه آلهو چه دوئ به ئ بلنه کوله ماسوى د الله تعالى نه هيڅ مصيبت هرکله چه راغې

أَمْرُ رَبِّكَ ۖ وَمَا زَادُوهُمْ غَيْرَ تَتْبِيبٍ ﴿١٠١﴾

عذاب د رب ستا . او زيات نه كړو بلني د هغوئ دوئ (مشركانو) لره بغير د هلاكت نه

﴿ ذَٰلِكَ مِنْ أَنبَاءِ الْقُرَىٰ ﴾ دا اشاره ده مخكنو ټولو قصوته ﴿ نَقُصُّهُ عَلَيْكَ ﴾ مونږ ئ تا نه بيانوو ، اومقصد ترينه دادې چه مومن د دنيا نه آخرت ته ځي نو دده به صفتونه كيږي په دنيا كښ، او اجر او ثواب به ورله وركولې شي په آخرت كښ او كافر چه د دنيا نه ځي نو لعنت به برې ويلې كيږي په دنيا كښ او عذاب به ورله وركولې شي په آخرت كښ ﴿ مِنْهَا قَائِمٌ ﴾ بعض د دغه كلو نه موجود دي او روغ دي ، لكه مصر د فرعون او د عاديانو ثموديانو كنډرات .

﴿ وَحَصِيدٌ ﴾ اوبعض ريبلې شوي، فاني شوي دي، لكه د قوم لوط ﷺ علاقه ﴿ وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ ﴾ يعنې د دې قومونو هلاكول ظلم نه وو، بلكه د دوئ د جرم سزا ده او ظلم خو دوئ كړي وو ، چه شرك ئ كړې وؤ ﴿ فَمَا أَغْنَتْ عَنْهُمْ ﴾ مشركينو چه د خپلو معبودانو عبادت كولو او دهغوئ په نوم ئې نذرونه وركول اود هغوئ نه ئ حاجتونه غوختل نو داځكه چه د دوئ دا توقع وه چه دا زمونږ معبودان به زمونږ نه عذاب الهى دفع كړي، نو الله ﷻ فرمائ چه د دوئ د توقع خلاف د دوئ معبودانو دوئ ته نه څه قسم نفع وركوله او نه ئ ترينه عذاب دفع كړو، بلكه اولټه د دوئ د هلاكت او خسران سبب شو ﴿ يَدْعُونَ ﴾ دا صله ده او عائد د موصول حذف دې (اى يدعوهم) يعنى چه مشركانو د هغوئ عبادت كولو، او د هغوئ بلنه ئ كوله . او حاجتونه مرادونه ئ ترينه غوختل اودهغوئ نذرونه ئ وركول (يدعون) ذكر د خاص دې او مراد ترينه عام دې يعنى عبادت بدنى، قولى، مالى ، اوهر كله چه دا قسم شرك ، (شرك فى الدعاء) ډير وو، نو ځكه خاص كړې شو په ذكر سره ﴿ مِن دُونِ اللَّهِ ﴾ بيان د الذين دې ﴿ مِن شَيْءٍ ﴾ من زائد دې دپاره د تاكيد د نفى ﴿ وَمَا زَادُوهُمْ ﴾ او زيات نه كړو دغه معبودانو يعنى عبادت او محبت د هغوئ ، ﴿ هُمْ ﴾ دې مشركانو لره ﴿ غَيْرَ تَتْبِيبٍ ﴾ په غير د هلاكت اوخسران نه .

وَكَذَٰلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ إِذَا أَخَذَ الْقُرَىٰ وَهِيَ ظَالِمَةٌ ۚ إِنَّ أَخْذَهُ أَلِيمٌ

او دغسې نيول د رب ستا دي هر كله چه ونيسى اهل د كلو لره اوهغه ظلم كونكى وى ، بيشكه نيول د هغه دردناك ،

شَدِيدٌ ۝ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّمَنْ خَافَ عَذَابَ الْآخِرَةِ ۚ ذَٰلِكَ يَوْمٌ

سخت دی بیشکه په دې کښې خامخا عبرت دې هغه چا لره چه یریږی د عذاب د آخرت نه. دا داسې ورځ ده

مَّجْمُوعٌ لَّهُ النَّاسُ وَذَٰلِكَ يَوْمٌ مَّشْهُودٌ ۝

چه جمع کولې به شی دیته ټول خلق او دا داسې ورځ ده چه ټول خلق به حاضرولې شی د الله تعالی حضور ته

وَمَا نُؤَخِّرُهُ إِلَّا لِأَجَلٍ مَّعْدُودٍ ۝ يَوْمَ يَأْتِ لَا تَكَلَّمُ نَفْسٌ إِلَّا

اونه روستو کوؤ دا مګر د یو نیټې مقررې پورې. هغه ورځ چه راشی خبرې به نشې کولې هیڅ نفس مګر

بِإِذْنِهِ ۚ فَمِنْهُمْ شَقِيٌّ وَسَعِيدٌ ۝ فَأَمَّا الَّذِينَ شَقُوا

دهغه په اجازت سره. پس بعضې به د دوئ نه بدبخت وی او بعضې به نیک بخت وی. پس هغه کسان چه بدبخت وی

فَفِي النَّارِ لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَشَهِيقٌ ۝ خَالِدِينَ

نو دوئ به په اور کښې وی . دوئ لره به په هغې کښې د خرپشان سخت آوازونه اوآهسته آوازونه وی همیشه به وی

فِيهَا مَا دَامَتِ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ إِلَّا مَا شَاءَ رَبُّكَ ۚ إِنَّ رَبَّكَ

په هغې کښې ترڅو پورې چه وی آسمانونه او زمکه مګر په هغه وخت کښې چه وغواړی رب ستا ، بیشکه رب ستا

فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ ۝ وَأَمَّا الَّذِينَ سُعِدُوا فَفِي الْجَنَّةِ

کونکې د هغه کار دې چه وغواړی اوهغه کسان چه نیك بخت کړې شوی دی نو دوئ به په جنت کښې وی

خَالِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ إِلَّا مَا شَاءَ رَبُّكَ ۖ عَطَاءً غَيْرَ مَجْذُوذٍ ۝

همیشه به وی په هغې کښې تر څو پورې چه وی آسمانونه ، اوزمکه ، مګر هغه وخت چه وغواړی رب ستا ، بخشش دې بې انتها

﴿وَكَذَٰلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ﴾ یعنی د الله ﷻ ګرفت په تیر شوی قومونو پورې خاص نه وو ، بلکه دا د الله ﷻ عام قانون دې چه هر سرکش ته سزاورکوی، مهلت ورته هم دیر ورکوی، په حدیث د بخاری کښې دی (ان الله لیملی لظالم حتی اذا اخذه لم یفلته أحدٌ) یعنی الله ﷻ مهلت ورکوی ظالم ته ، خو چه کله ئې اونیسی نو بیا ئې هیڅ څوك نشی خلاصولې ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ﴾ دا اشاره ده قصو

د مخکنو امتونو ته ﴿لَآيَةً﴾ عبرت دې د هغه چا دپاره چه یریږی د عذاب د آخرت نه . ځکه د دنیا عذاب نمونه ده د عذاب د آخرت دپاره ، نو د دنیا عذاب چه څوك اووینی یا ورته معلوم شی نو د آخرت لوئ عذاب ورته یاد شی او عبرت واخلی. چه د دنیا عذاب دومره سخت دې او حال دا چه دا خو دار الجزاء نه ده ، نو د آخرت عذاب چه دارالجزا ده څومره به سخت وی ﴿ذَٰلِكَ﴾ دا اشاره ده یوم القیامة ته چه عذاب الاخرت پرې دلالت کړې دې ﴿يَوْمٌ مَّجْمُوعٌ لَّهُ النَّاسُ﴾ الناس نائب فاعل د مجموعٌ دپاره دې او (مجموع له الناس) زیات ابلغ دې د (یجمع له الناس) نه، ځکه فعل په تجدد او حدوث باندې دلالت کوی ، اواسم په دوام او لزوم دلالت کوی ، یعنی ورځ د قیامت ته جمع کیدل لازمی او ثابت دی ، هیڅ څوك ترې نه. نه شی پاتې کیدې ﴿يَوْمٌ مَّشْهُودٌ﴾ ټول خلق به حاضرولې شی، هیڅ څوك به غیر حاضر نه وی . ﴿لِأَجَلٍ﴾ دَ اجل نه مراد انتها د مودی ده ، او ﴿مَّعْدُودٍ﴾ نه مراد قلیل او متناهی دې ، یعنی قیامت مونږ مؤخر کړې او ملتوی کړې دې د لږ نیتې دپاره ﴿يَوْمَ يَأْتِ﴾ ضمیر په یأت کښې یا لفظ دَ الله ته راجع دې ، کما فی قوله تعالی : (وجآء ربك) یا ورځې ته راجع دې ، په تاویل د قیامت یا دَ (أجل) سره ، یعنی هغه ورځ چې راشی قیامت او نیته او په ﴿يَأْتِ﴾ کښې درې قرائته دی، په قرآت د نافع کښې یأتی دې، په اثبات د یاء سره دې ، په حالت د وصل کښې او یأت په حذف د یاء سره دې په حالت د وقف کښې ، او په قرائت د ابن کثیر کښې یأتی دې په اثبات د یاء سره په حالت د وصل او وقف دواړو کښې ، او په قرات د باقی قراؤ سبعو کښې په حذف د یا ء سره دې ، وصلا و وقفا . وجه د حذف ئ مجرد تخفیف دې ، او زمحشری ویلی دی چه حذف د یاء اواکتفاء په کسره باندې ، شایع دی په لغت د هذیل، کښې ﴿لَا تَكَلَّمُ﴾ په اصل کښې لاتتکلم دې ، یعنی هیڅ نفس به خبرې نه شی کولې مگر هغه څوك چه الله اذن ورته اوکړی ، ﴿فَمِنْهُمْ شَقِيٌّ﴾ شقی وه قسمه دی : یو کافر مشرك چه اعلی شقی دې، یو مومن عاصی دې چه دا ادنی شقی دې ﴿زَفِيرٌ وَشَهِيقٌ﴾ زفیر د خر هغه آواز ته وائی چه په ابتدا کښې وی او سخت وی ، او شهیق دَ خر هغه آواز ته وائی چه آخر کښې نرم شی ﴿مَا دَامَتِ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ﴾ اسمانونه اوزمکه دَ آخرت مراد دی لکه په سورة ابراهیم آیت ۴۷ کښې دی (یوم تبدل الارض والسموات) اوپه سورة زمر

کښې (اورثنا الارض نتبوء من الجنة حيث نشاء) ، يا اسمانونه اوزمکې د دنيامراد دی . ﴿إِلَّا مَا شَآءَ رَبُّكَ﴾ دا استثنا د دواړو فريقينو سره لګيدلې ده ، نو په ظاهر کښې داسې معلوميږی چه جنتيان به په جنت کښې د هميشه دپاره نه وی ، جهنميان به په جهنم کښې د هميشه دپاره نه وی . حالانکه د اهل سنت والجماعة متفقه فيصله داده چه مومنان به په جنت کښې هميشه وی اوکافران به په جهنم کښې هميشه وی ، نو د دې آيت يوڅو توجيهات دی (۱) يو دا چه مستثنی په دواړوځايونو کښې فساق مومنين دی چه مغفرت ورته نه وی شوې . نو دوئ به د جنتيانو نه جدا وی په مقدار د عذاب د دوئ په اول کښې، او دَ کافرانو اشقياؤ نه به جدا وی په آخر کښې نو (الا ماشاء ربك) چه د ((شقوا)) سره لګيدلې دې نو معنی ئ داده چه فساق مؤمنين به په جنهم کښې انتهاءً نه وی او د (سعدوا) سره چه لګيدلې دې نو معنی داده چه فساق مومنين به په جنت کښې ابتداءً نه وی ، او تقسيم چه قسمينو ته شوې دې ، نو دا په اعتبار د منع الخلو سره دې ، نوجمع د قسمينُ (سعدوا او شقوا) راتلې شی (۲) اهل نار به د نار نه کله راويستی شی حميم (ګرمو اوبو) ته د اوبو سکلو دپاره چه کله دوئ دَ تندې نه ډير فرياد اوکړی او کله به بوتلی شی ((زمهرير)) ته ،نو استثنا د اهل نار نه په دې اعتبار سره ده ، او جنتيانو ته چه نعمت د ديدار الهی ورکړې شی ، نودوئ به دَ جنت د نعمتونو نه مشغوله شی . او نورنعمتونه به ئی هير شی ، نو دلته د استثنا دغه معنی ده .

(۳) د کافرانو دپاره چه (الاماشاء الله) ويلی شوی دی نود دې معنی دا ده چه ، (الاماشاءالله بزيادة العذاب للاشقيا وهو سخط الله عليهم اخسئو لهم واهانته اياهم) او د جنتيانو دپاره ئ الا ماشاء الله ويلی دی نو معنی داشوه (بزيادة الانعام للمؤمنين والسعداء وهو رضوان الله عليهم) (۴) حضرت شاه عبدالقادر رحمه الله ويلی دی چه که اسمان او زمکه د دنيا مراد شی نو مطلب به داشی ،چه مومنان به په جنت کښې وی او کافران به په جهنم کښې وی په مقدار د زمانې دَ بقاء د زمکې اسمان د دنيا ، مګر څومره چه ستا رب اوغواړی زيادت نو هغه هغهٔ ته معلوم دی، دَ انسان په عقل کښې نه راځی څکه چه هغه غير متناهی دی د مخلوقاتو په علم کښې نشی راتلې ، او که زمکه اسمان د آخرت مراد شی نو بيا مطلب دادې چه مؤمنان به په جنت کښې هميشه وی او جهنميان به په جهنم کښې هميشه وی ليکن که ستا رب اوغواړی نو مومنان به د جنت نه اوباسلې شی او کافران به د جهنم نه اويستې شی . دَ جنتيانو ويستل

او د كافرانو ويستل د قدرت د الله ﷻ نه بهر نه دی ، ليكن الله ﷻ داسې نه كوی . بلكه فيصله د دوام ئ كړې ده ، نو د دې مطلب داشو چه د مومنانو په جنت كښې پاتې كيدل او د كافرانو په جهنم كښې پاتې كيدل په مشيت الهی سره دی . الله ﷻ عاجزنه دې د دوئ د ويستلو نه ( ۵)، قرطبی وائی چه (ما دامت السموات والارض) په محاوره كښې د دوام او خلود دپاره رازی او د (الا ماشاءالله) دغه تير شوی توجيهات دی

او په (سعدوا) كښې صيغه د مجهول ذكر شوه نو اشاره ده دينه چه سعادت صرف د الله ﷻ په فضل او توفيق سره حاصليږی .فمن وجد ذالك فليحمدالله .

﴿شَقُوْا﴾ په صيغه د مجهول سره ذكرشو نو اشاره شوه چه دا دنفس اوشيطان په اغواء سره كيږی فمن وجد ذالك فلا يلومن الا نفسه ﴿غَيْرَ مَجْذُوْذٍ﴾ غير مقطوع ، بی انتها .

| فَلَا تَكُ فِيْ مِرْيَةٍ مِّمَّا يَعْبُدُ هٰۤؤُلَآءِ ؕ مَا يَعْبُدُوْنَ اِلَّا كَمَا |
|---|
| پس مه كيږه ته په شك كښې د هغې نه چه عبادت ئ كوی دا كسان، دوئ عبادت نه كوی مگر پشان دهغې |
| يَعْبُدُ اٰبَآؤُهُمْ مِّنْ قَبْلُ ؕ وَاِنَّا لَمُوَفُّوْهُمْ نَصِيْبَهُمْ |
| چه عبادت ئ كولو مشرانو د دوئ مخكښې د دينه، او بيشكه مونږ به پوره وركوؤ دوئ ته حصه د عذاب د دوئ |
| غَيْرَ مَنْقُوْصٍ ۝ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ فَاخْتُلِفَ فِيْهِ ؕ |
| چه هيڅ نيمگرې به نوی. او په تحقيق سره [1] مونږ وركړې وؤ موسی ته كتاب نو اختلاف وكړې شو په هغې كښې |
| وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ |
| اوكچرې نوې يو خبره چه مخكښې فيصله شويده د طرف د رب ستا نه نو خامخا به فيصله شوې وه په مينځ د دوئ كښې |
| وَاِنَّهُمْ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيْبٍ ۝ وَ اِنَّ كُلًّا |
| او بيشكه دوئ په شك كښې دی د دينه چه كلك شك دې . او بيشكه هر يو د دوئ نه هركله چه را پوره ته كړې شی |

۱ - جواب د سوال مقدر .

لَّمَّا لَيُوَفِّيَنَّهُمْ رَبُّكَ اَعْمَالَهُمْ ۚ اِنَّهٗ بِمَا يَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ۝

نو پوره به ورکړي دوئ ته رب ستا بدله د عملونو د دوئ بیشکه الله تعالی د دوئ په عملونو باندې خبر دار دې

﴿فَلَا تَكُ فِىْ مِرْيَةٍ﴾ دا متفرع دې په ماقبل باندې د څلورمې دعوې سره متعلق دې . یعنې مسئله د توحید واضحه شوه په دلائل عقلیو نقلیو سره ، نو د توحید په حقیقت او د شرك په ابطال کښې شك مه کوه ﴿مَايَعْبُدُوْنَ﴾ او که مشرکان د غیر الله عبادت کوی نو بې دلیله ئ کوی لکه د دوئ مشران چه بې دلیله د غیر الله عبادت کوی نو نه هغوئ سره څه دلیل وو اونه د دوئ سره څه دلیل شته دې ﴿وَاِنَّا لَمُوَفُّوْهُمْ﴾ یعنې دوئ ته به د شرك پوره پوره بدله ملاویږی ، یا دا مطلب دې چه دوئ ته به په دنیا کښې د رزق او مال او صحت اولاد حصه مکمل ملاویږی .

﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ﴾ داتسلی ده نبی ﷺ ته او جواب د سوال مقدر دې ، هغه دا چه که دا کلام واقعی د الله ﷻ کلام دې نو اختلاف په کښې ولې اوشو چه څوك ئ منی اوڅوك ترینه انکار کوی ، نوجواب اوشو چه د موسٰی ؑ کتاب خوهم حق کتاب وو ، او اختلاف په کښې شوې وو ﴿وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ﴾ دا هم جواب د سوال مقدر دې ، مشرکانو به ویلې چه که دا کتاب حق دې اومونږ ئ نه منو نوپه مونږ عذاب ولې نه رازی ،جواب اوشو چه د عذاب او مواخذې دپاره وقت مقرردې ، په خپل وقت به رازی او که وقت مقررنه وې نو فی الحال به فیصله شوې وې ﴿وَاِنَّ كُلًّا لَّمَّا لَيُوَفِّيَنَّهُمْ﴾ دا تخویف اخروی دې،په دی آیت کښې متعدد ترکیبونه دی : **اول** (كلاً) اسم د (اِنّ) دې او تنوین عوض دې، د مضاف الیه نه ای کلا من المؤمنین والکافرین ، (لمّا) حرف شرط او فعل شرط محذوف دې چه یبعثهم الله دې او﴿لَيُوَفِّيَنَّهُمْ﴾ ئ جزاء ده او شرط جزاء خبر دَ (انّ) دې، او معنی ئ داده چه داټول یعنی مؤمنین اوکافران چه کله الله ﷻ ئ ژوندی کړی نو پوره به ورکړی دوئ ته بدله د عملونو د دوئ ، **دویم** ، (لمّا) حرف شرط دې او (لیوفینهم) فعل شرط دې ، او لام زائددې ﴿اِنَّهٗ بِمَا يَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ﴾ ورله جزا ده ، معنی ئ داده چه دا ټول مؤمنان او کافران ، کله چه الله ﷻ دوئ ته بدله د عملونو د دوئ پوره پوره ورکوی نو بیشك الله ﷻ په عملونو د دوئ خبر دې ، **دریم** ، كلاً اسم د (اِنّ) دې ، او (لمّا) قرائت د تشدید په تنوین سره دې، په معنی د جمیعًا سره تاکید دکلاً دې ، او﴿لَيُوَفِّيَنَّهُمْ﴾ ئ

جزاده . **خلورم** ، صاحب د كشاف او نور مفسرين وائي چه (كلاً) اسم دَ (انّ) دي او ما په لمّا کښې زائد دې او لام موطئه للقسم دې ، نو تقدير دارنګه شو (وان جميعهم والله ليوفينهم ربك اعمالهم ، من حسن وقبيح وايمان وحجوده) ، يعني قسم په الله ﷻ چه دې ټولو ته به الله ﷻ د دوئ دعملونو بدله پوره پوره ورکوی .

| |
|---|
| فَاسْتَقِمْ كَمَآ أُمِرْتَ وَمَنْ تَابَ مَعَكَ وَلَا تَطْغَوْا ط |
| پس کلك اُوسه په دين لکه څنګه چه تا ته حکم کړې شوېدې او هغه څوك هم چه توبه ئ کړېده ستاسره او د حده مه تيريږئ |
| إِنَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ۝ وَلَا تَرْكَنُوٓا إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا |
| بيشکه الله تعالى ستاسو عملونو لره ښه ليدونکې دې . او ميلان مه کوئ هغه کسانو ته چه ظلم ئ کړې دې |
| فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ لا وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُونِ اللَّهِ مِنْ أَوْلِيَآءَ ثُمَّ لَا تُنْصَرُونَ ۝ |
| کنې وبه رسي تاسې ته اور ، او نه به وي تاسو لره سوئ د الله تعالى نه هيڅوك مددګاران بيا به ستاسو مدد نشي کيدې |
| وَأَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ الَّيْلِ ط إِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ |
| او پابندي کوه د مونځونو په دواړو طرفونو د ورځې او په څو ټکړو د شپې کښې. بيشکه نيك عملونه لرې کوی |
| السَّيِّاٰتِ ط ذٰلِكَ ذِكْرٰى لِلذّٰكِرِينَ ۝ وَاصْبِرْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ۝ |
| ګناهونه دا نصيحت دې د نصيحت قبلونکو لپاره . او صبر کوه پس بيشکه الله تعالى نه بربادوی ثواب د ښائسته عمل کونکو . |

﴿ فَاسْتَقِمْ ﴾ د سورة په آخر کښې پنځه امور متفرعه ذکر کيږی : (۱)فاستقم (۲)ولاتطغوا (۳)ولاترکنو الذين الخ (۴)واقم الصلوة (۵)واصبر .

داستقامت معنى ده مضبوطى په تمامو شعبو د شريعت باندې چه اعلى په هغې کښې عقيده د توحيد او رسالت ده ، او بيا تمام اعتقا ديات دی ، او تمام فرائض واجبات سنن او مستحبات دی او احتراز د کل منهياتونه اوتمام اعمال او معاملات په صحيح نهج د شريعت پوره کول دی ، صوفياء وائي اطلبو الاستقامة ولاتطلبو الکرامة ، ځکه چه د کرامت نه بلند ترين مقام د استقامت دې ، شاه ولی الله رحمه الله فرمائی چه استقامت په دنيا کښې بعينه پل صراط دې په آخرت کښې نو چاته چه استقامت په دنيا کښې نصيب شی ، نو ګوياهغه به په پل

صراط مرور اوکړی . یو صحابی حضرت سفیان بن عبدالله ﷺ نبی ﷺ ته عرض اوکړو چه قل لی فی الاسلام قولاً لا اسئل احدا بعدك ، یعنی د اسلام په باره کښې ماته داسې خبره اوکړه چه د بل چانه د تپوس ضرورت پاتې نشی ، نو نبی ﷺ اوفرمایل : قُل آمنت با الله ثم استقم، یعنی دا او وایه چه زما ایمان دې په الله ﷻ باندې اوبیا په دې ایمان او په ټولو شعبو د ایمان باندې مضبوط شه . په حدیث کښې راغلی دی ، (کما فی الترمذی وغیره) چه حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه او بعض نورو صحابو د نبی ﷺ نه تپوس اوکړو چه یارسول الله! ستا سو ویخته سپین شو، اود بوډاوالی اثر په تاسو ظاهر شو، حالانکه ستاسوعمردومره ډیر نه دې ، نونبی ﷺ اوفرمایل شیبتنی هود ، و فی روایتِ آخرسورة هود ، یعنی زه سورة هود بوډا کړم ، نو په دې حدیث کښې دې آیت مذکورته اشاره ده ، ﴿ كَمَآ أُمِرْتَ ﴾ ای استقامة مثل الاستقامة التی امرت .

﴿وَمَن تَابَ مَعَكَ﴾ دا عطف دې په ضمیر مرفوع مستتر باندې ، په (فاستقم) کښې او تاکید ئې په منفصل سره ځکه نه دې شوې چه دلته فصل راغلې دې نو تاکید ضروری ندې، او هرکله چه صحابه ﷺ او نور امتیان نبی کریم ﷺ ته نشی رسیدې په استقامت کښې نو د دې وجه نه دوئ ئ جدا په طریقې دَعطف سره ذکر کړل ﴿وَلَا تَطْغَوْا﴾ یعنی د الله ﷻ د حدودو نه هیڅ انحراف مه کوئ . طغیان د حدنه وتلوته وائی ، او دا ضد د استقامت دې ، نودلته د امر د استقامت نه بعد نهی اوشوه د طغیان نه په مثبت او منفی دواړو طرفونو باندې تصریح اوشوه

د پاره دمبالغې ﴿ وَلَا تَرْكَنُوٓا ﴾ دا د رکون نه مشتق دې ، او رکون لږ اومعمولی میلان ته ویلې شی او د ظالمانو نه مرا د یا مشرکان دی او یا عام دی چه مشرك وی یا فاسق بدعتی وی او د میلان او رکون دپاره ډیر صورتونه دی ، قلبی محبت دهغوئ سره، د هغوئ تعظیم او د هغوئ تعریف او صفتونه کول او د هغوئ سره ملګرتیا اومجالست کول د هغوئ ملاقات بغیر دشرعی ضرورت نه کول او د هغوئ په اعمالوباندې راضی کیدل ، او د هغوئ سره مشابهت اختیارول ، او د هغوئ پشان لباس اچول حلیه جوړول ، دا ټول په دې کښې داخل دی ، صاحب د کشاف وغیره ویلیدی چه فکر اوکړه په دې قول کښې (ولاتركنو) ځکه رکون معمولی میلان ته وائی چه دا سبب دې دپاره د مس د نار ، نو چه پوره مایل شی ظالمانو ته یا په خپله ظالم وی نو د هغه به څه حال وی ، او حکایت دې چه موفق رحمه الله ابو طلحة العباسی په یو امام پسې مونځ کولو ، نو هغه دا آیت اولوستلو نو دې بې هوشه شو ، او کله چه په هوش شو نو تپوس

ترینه اوکړې شو . نو دوئ اووئیل چه داخو حال د هغه چادې چه میلان کوی ظالمانو ته نو د ظالم به څه حال وی . د سفیان نه یو سړی تپوس اوکړو چه زه ظالمانو لره کپړې ګنډم . نو آیا زه به د هغوئ په اعوانو (مدد کونکو) کښې شماریږم . نو هغوئ اوفرمائل چه ته په ظالمانو کښې ئې او اعوان خو ئ هغه څوك دی چه په تا ستن او تار خرڅوی . او د حسن بصری رحمه الله نه مروی دی چه الله ﷻ دین د دوو لائینُ (قطار) په منځ کښې راوستې دې . یو (الا تطغوا) دې اودویم (ولاترکنوا) دې .اوپه دې آیت کښې د استقامت علی الدین دپاره طریقه ذکرشوه چه د ظالمانو اوفاسقانو د صحبت او مجلس نه اجتناب اوکړې شی . المرء علی دین خلیله فلینظر من يخالل . یعنی سړې د خپلو دوست په دین او طریقه باندې روان وی . نو دې دې ګوری چه د چا سره دوستی کوی ﴿ وَأَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ ﴾ بعض مفسرین وائی چه دا آیت د فرضیت دصلوات خمسو نه قبل نازل شوې دې . نو په دې کښې د پنځو مونځونو د فرضیت حکم نه دې بلکه د درې مونځونو بیان دې . فجر . عصر . او تهجد . او اکثر مفسرینو ویلی دی چه په دې آیت کښې د پنځومونځونو د فرضیت بیان دې . ځکه چه د (طرفی النهار) نه مرا د دا دوه حصې د ورځې دی . یو قبل الزوال او بل بعد الزوال دی . نو قبل الزوا ل د صبا مونځ دې . او بعد الزوال د ظهر او عصر مونځونه دی . او ﴿وَزُلَفًا مِّنَ ٱلَّيۡلِ﴾ د ماښام او ماسخوتن مونځونه دی . زُلَف، زلفی ازدلاف قرب ته ویلې شی، او مراد ترینه ساعت دشپې دې . او زلف ورته د دې وجې نه ویلې شوی دی چه ماښام قریب دې ورځی ته او ماسخوتن قریب دې غروب د شفق ته . چه د آثارو د ورځې نه دې ﴿إِنَّ ٱلۡحَسَنَٰتِ يُذۡهِبۡنَ ٱلسَّيِّـَٔاتِۚ﴾ په نیکو سره ګناهونه زائله کیږی معنی داده چه د یو مونځ نه تر بل مونځ پورې چه څومره صغیره ګناهونه وی نو په مونځ سره دغه صغیره ګناهونه معاف کیږی . کما فی الترمذی وغیره : الصلوة الی الصلوة کفارة وما بینهما ما اجتنبتِ الکبائر . یا دا معنی چه مونځ لرې کو ی ګناهونه یعنی د مونځ په پابندئ سره سړې د ګناه نه منع کیږی . لکه (ان الصلوة تنهی عن الفحشاء والمنکر) . (کشاف) حضرت شیخ رحمه الله فرمائی چه د سیئات نه سختی اومصیبتونه مراد دی . یعنی په مونځ سره سختی او مصیبتونه لرې کیږ ی، لکه (واستعینوا بالصبر والصلوة) اود آیت پشان نزول کښې روایت په متعددو طریقوسره راغلې دې . په هغې کښې یو دا دې چه یو صحابی ابو الیسر ؓ وائی چه ماته یو زنانه راغله چه کجورې ئې اخستلې نو ما ورته اوې چه په دې بل بیت (کمرې) کښې

بهترینی کجورې دی ، نو هغه زما سره هغه بلې کمرې ته داخله شوه نو ما د هغې قبله او لمس اوکړو د جماع نه علاوه مې نو زهر څه اوکړل ، نو بیا راغلم نبی ﷺ ته مې قصه بیان کړه ، دامی اووئیل چه په ما حد جاری کړه، نو دا آیت نازل شو ، نبی ﷺ په ما باندې اولوستو. او په بل روایت کښې دی چه د مازیګر مونځ اوشو نو جبرائیل ﷺ دا آیت راوړو نونبی ﷺ دا صحابی راوغتونو اووې وئیل ورته چه آیا ته زمونږ سره د مازیګر مونځ کښې حاضر شوې وې . نو هغه اوئیل چه هو ، نو نبی ﷺ اوفرمائل چه دا ستاسو د ګناه کفاره ده، نو بیا نورو صحابو عرض اوکړو چه دا فقط د ده دپاره ده اوکه دعامو خلقو دپاره هم دغه حکم دې؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دا حکم د عامو خلقو دپاره دې ، ﴿ ذٰلِكَ ذِكۡرٰى ﴾ ذالك یا اشاره د ه اقامت د مونځونو ته ، او د ذکری نه مراد دالله ﷻ یاد دې ، لکه واقم الصلوة لذکری ، یا اشاره ده قانون د (ان الحسنٰت یذهبن السیئات) ته چه دا نصیحت دې او ترغیب دې ، نیکو ته او دَ یادولو شئ دې غفلت ترینه نه دې پکار ﴿ وَاصۡبِرۡ ﴾ یعنی صبر کوه په امورو دین کښې او په امورو دَ تبلیغ دَ دین کښې ﴿ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا یُضِیۡعُ ﴾ یعنی دا مخکنی پنځه واړه خبرې چه په چا کښې راشی نو هغه محسن شی ، او الله ﷻ اجر د محسنینو نه ضائع کوی .

| فَلَوۡلَا كَانَ مِنَ الۡقُرُوۡنِ مِنۡ قَبۡلِكُمۡ اُولُوۡا بَقِیَّةٍ یَّنۡهَوۡنَ عَنِ الۡفَسَادِ فِی الۡاَرۡضِ |
|---|
| پس ولې نه وو دهغه پیړو نه چه ستاسونه پخوا وې عقل والا خلق چه منع ئې کولې د ګناهونونه په زمکه کښې |
| اِلَّا قَلِیۡلًا مِّمَّنۡ اَنۡجَیۡنَا مِنۡهُمۡ ۚ وَاتَّبَعَ الَّذِیۡنَ ظَلَمُوۡا مَاۤ |
| مګر لږ کسان دهغه کسانونه چه بچ کړل مونږ هغوئ د دوئ نه، او تابعداری کړې وه ظالمانو دهغه څه |
| اُتۡرِفُوۡا فِیۡهِ وَكَانُوۡا مُجۡرِمِیۡنَ ﴿۱۱۶﴾ وَمَا كَانَ رَبُّكَ لِیُهۡلِكَ الۡقُرٰى |
| چه دوئ ته پکښې راحت او مزې ورکړې شوې وې او دوئ وو جرمونه کونکی . او ندې رب ستا چه هلاك کړی کلو والا |
| بِظُلۡمٍ وَّاَهۡلُهَا مُصۡلِحُوۡنَ ﴿۱۱۷﴾ وَلَوۡ شَآءَ رَبُّكَ لَجَعَلَ النَّاسَ |
| په ظلم سره او حال دا چه اهل د دې نیکان وی. اوکه غوښتلې ستا رب (جبراً مسلمانول د دوئ) نو خامخا به ئې ګرځولې وې خلق |

| أُمَّةً وَاحِدَةً وَلَا يَزَالُونَ مُخْتَلِفِينَ ﴿١١٨﴾ إِلَّا مَنْ رَّحِمَ رَبُّكَ ط |
|---|
| یوه دله (په اسلام) او همیشه به وی دوئ (اختلاف کونکی) مګر هغه څوك چه رحم وکړی په هغه باندې رب ستا |
| وَلِذٰلِكَ خَلَقَهُمْ ط وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴿١١٩﴾ |
| او د دې لپاره ئ دوئ پیدا کړیدی ، او پوره شویده فیصله د رب ستا چه خامخا به ډکوم جهنم د پیریانو او انسانانو نه په یوځائ |

﴿ فَلَوْلَا كَانَ ﴾ (لولا) په معنی د (هلا) سره دې د تندیم دپاره، او په دې آیت کښ د نهی عن المنکر او د دعوت د پریخودو د بد انجام ذکر دې ، په تیر شوو قومونو چه عذابونه راغلی وو، نو دا په دې وجه چه خاوندانو د عقل اودعلم نهی عن المنکرپریخې وو، اوکومو لګو کسانو چه نهی عن المنکر کولو نو هغوئ ته الله ﷻ نجات ورکړو ﴿ أُولُوا بَقِيَّةٍ ﴾ یعنی خاوندان د عقل او د علم او د بصیرت ﴿ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ یعنی لګو خلقو نهی عن الفساد کړی وه، او مِن په ﴿ مِّمَّنْ أَنجَيْنَا ﴾ کښ مِن بیانیه دې ، یعنی لګو کسانو نهی عن المنکر کړې وه نو هغوئ ته نجات حاصل شوې وو، باقی ټول تباه شو ی وو،او که چرې نیك خلق ډیر وې اونهی عن الفساد ئی کړې وې ، نو ټول به بچ شوی وو، په روایت د ابوداؤد کښ دی چه (مامن رجل یکون فی قوم یعمل فیهم بالمعاصی یقدرون علی ان یغیرو علیه ولا یغیرون الا اصابهم الله بعقاب قبل ان یموتوا) ، یعنی یو کس چه په قوم کښ وی او د معاصی او ګناهونو ارتکاب کوی او دغه قو م باوجود د قدرت نه ئی نه منع کوی نو په دوئ باندې د مرګ نه مخکې عذاب راځی او په بل روایت کښ دی : ان الناس اذا راؤالمنکر فلم یغیروه اوشك ان یعمهم الله بعقاب ، یعنی خلق چه منکر (خلاف الشرع )کار اوینی او نه ئ منع کوی ، نو الله ﷻ به په دوئ باندې عام عذاب راولیګی ، د دې نه علاوه په ډیرو روایتونه په دې مفهوم سره راغلی دی ﴿ وَاتَّبَعَ الَّذِينَ ظَلَمُوا ﴾ یعنی دغه قومونه په دې وجه باندې تباه شوی وو چه خلق د عیش او عشرت په نشه کښ د جرائمو ارتکاب کولو ، او د علم او د عقل خاوندانو نهی عن المنکر نه کوله ﴿ وَمَا كَانَ رَبُّكَ لِيُهْلِكَ الْقُرَىٰ ﴾ یعنی الله ﷻ اهل قراء په ظلم سره نه هلاکوی ، او حال داچه اهل ئ یعنی بعض اهل ئ نهی عن المنکر کوی، او دشریعت په لار روان وی ﴿ بِظُلْمٍ ﴾ حال دې دفاعل نه چه (ربك) دې ، ای ماکان ان یهلك الله القراء ظالمًا لها ، او بعض مفسرین وایی چه باء سببیه ده او د ظلم نه مراد کفر او شرك دې ،

يعنى الله ﷻ اهل قرى صرف په كفر او شرك سره نه هلاكوى ، چه اهل ئى په معاملاتو وغيرہ كښ اصلاح كونكى وى ، يعنى چه معاملات بى نه وى خراب او ظلم او دهوكه او دروغ ئى نه وى شروع كړى ، نو الله ﷻ ئى په دنياوى عذاب سره نه هلاكوى ﴿ وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ ﴾ علامه زمخشرى د دې آيت تشريح داسې كوى ، چه كه د الله ﷻ مشيت او اراده وې نو ټول به ئې مجبوره كړى وې په دې چه دوئ په ملت واحده د اسلام شى ، ليكن الله ﷻ څوك مجبوره كړى نه دى بلكه دوئ ته ئى اختيار وركړې دې چه هغه بنياد د مكلف كيدلو دې ، نو بعضو په خپل اختيار سره حق اختيار كړو ، او بعض باطل اختيار كړو نو مختلف شو . ليكن بعض مفسرينو په دې قول دَ كشاف باندې رد كړې دې چه دا تشريح بناء ده په مذهب د معتزلو باندې چه دوئ دا آيت محمولوى په مشيت د الجاء او اجبار باندې ، تفصيل په شرح عقائد كښ دې. حضرت مولانا شبير احمد عثمانى او نور علماء د آيت تشريح داسې كوى چه كه د الله ﷻ اراده وې نو ټول به په ايمان باندې وې ، ليكن د الله ﷻ اراده نه ده د ايمان د ټولو ، او دهغه تكوينى حكمت دا نه غواړى چه ټول په يو ه لار د ايمان باندې شى ، نو د دې وجې نه دوئ په اختلاف كښ دى .
او هميشه دپاره به وى مګر په حقيقت كښ اختلاف كونكى هغه خلق دى چه د فطرت بر خلاف ئى د حق تكذيب كړې دې او كه د فطرت سليمه موافق روان وې نو هيڅ اختلاف به نه وې ﴿ إِلَّا مَن رَّحِمَ رَبُّكَ ﴾ كښ تنبيه ده پدې چه كومو خلقو باندې الله تعالى د دوئ د حق پرستى په وجه ئ رحم اوكړو نو هغوئ د اختلاف كونكو نه مستثنى دى ، اود حضرت شيخ رحمه الله د كلام خلاصه په دې آيت او د دې په مثل نورو آيتونو كښ داده چه كه الله ﷻ اوغواړى ، جبراً مسلمانول د خلقو نو قدرت او اختيار كښ ئ شته دى چه ټول په يوه لار د ايمان راولى جبرا مګر داسى كول د هغه د قانو نه خلاف دى ، چه هغه قانون (لااكراه فى الدين) دې، يعنى په دين كښ جبر نشته دې او الله ﷻ هيڅ څوك نه مجبوره وى په قبول د ايمان باندې ، او جبرى ايمان مقبول عند الله نه دې بلكه هغه ايمان مقبول او معتبر عندالله دې چه په خپلې مرضئ سره وى ، څكه چه هغه د هدايت او ګمراهئ لار واضحه كړې ده ، او انبياء ئى مبعوث كړى دى ، او كتابونه ئى نازل كړى دى او بيا ئى فرمايلى دى چه (فمن شاء فليومن ومن شاء فليكفر) يعنى د حق د واضحه كيدلونه روستو هر چاته اختيار دې د تللو په لارې د هدايت او د ضلالت ، او هيڅ څوك مجبور نه دى په ايمان او نه په كفر ، بلكه ايمان او كفر په خپلې مرضئ سره دې ، او په حديث شريف كښ راغلى دى ، چه الله ﷻ عقل پيدا كړو ،ا و فرمايل ئى چه ستا په وجه به زه مواخذه كوم او عطا

، به کوم ، چاته چه الله ﷻ عقل نه دي ورکړي، نود هغه مواخذه هم نه کوی . نابالغه اومجنون مکلف نه دی ، ځکه چه د عقل نه خالی دی ، الله ﷻ انسان ته عقل، حواس ورکړل ، او انبیاء ئی راولیږل اوکتابونه یئ نازل کړل ، او بیا ئ اختیار ورکړو چه کومه لار تاسو اختیار کړه نو د هغې مطابق به ثمره او نتیجه وی ﴿وَلِذَٰلِكَ خَلَقَهُمْ﴾ په (لذالك) کښ اشاره یا اختلاف ته ده یعنی د اختلاف دپاره ئی دوئ پیدا کړی دی چه بعض د خپل مالك د اطاعت او وفادارئ په وجه د صفت جمال او د رحم او د غفران مظهر اوګرزی چه دا د ﴿إِلَّا مَن رَّحِمَ رَبُّكَ﴾ مصداق دې . او بعض د نافرمانئ او بغاوت په وجه د صفت عدل انتقام مظهر اوګرزی ، او دوئ د ﴿لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ﴾ مصداق ې او که څوك سوال اوکړی چه هر کله ئی دوئ د اختلاف دپاره پیدا کړل ، نو بیا ورله سزا ولې ورکوی ،بله خبره دا چه دا د (ماخلقت الجن ولانس الا لیعبدون) نه مخالف ده . نو جواب دادې چه دغه غایه تشریعی ده ، او په دې آیت کښ د غائی تکوینی بیان دې، یعنی د جناتو او انسانانو د پیدا کولو تشریعی مقصد عبادت دې ، نو د هغې په ترك سره سزا ملاویږی ، او تکوینی مقصد دادې چه د تشریعی مقصد پوره کولو یا نه پوره کولو سره د صفاتو جلالیو او جمالیو ، د لطف او د قهر مظهر اوګرزی، یا (لذالك) اشاره ده اختلاف او رحمت دواړو ته ، چه په ضمن د مختلفین (مختلفین الا من رحم ربك) کښ دی ، یعنی بعض ئی د اختلاف دپاره پیداکړی دی ، او بعض ئی د رحمت دپاره پیداکړی دی او په دې کښ اشاره ده تقدیر ته ﴿لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ﴾ دا تفسیر د ﴿كَلِمَةُ رَبِّكَ﴾ دې .

| وَكُلًّا نَّقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنبَاءِ الرُّسُلِ مَا نُثَبِّتُ بِهِ فُؤَادَكَ ۚ وَجَاءَكَ |
|---|
| او ټولو لره مونږ بیانوؤ په تا باندې د احوالو د رسولانو نه هغه چه کلکوؤ مونږ په هغې سره زړه ستا ، او راغلیده تا ته |
| فِي هَٰذِهِ الْحَقُّ وَمَوْعِظَةٌ وَذِكْرَىٰ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿١٢٠﴾ وَقُل لِّلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ |
| په دې قصو کښ حقه خبره اونصیحت او یاد ګیرنه، لپاره د مؤمنانو. او ووایه هغه کسانو ته چه ایمان نه راوړی |
| اعْمَلُوا عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ إِنَّا عَامِلُونَ ﴿١٢١﴾ وَانتَظِرُوا إِنَّا مُنتَظِرُونَ ﴿١٢٢﴾ |
| عمل کوئ تاسو په خپله طریقه، بیشکه مونږ هم عمل کوؤ په خپله طریقه، او انتظار کوئ تاسو ، بیشکه مونږ هم انتظار کونکی یو . |

وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاِلَيْهِ يُرْجَعُ الْاَمْرُ كُلُّهٗ

او خاص الله تعالى لره دي علم غيب (۱) د آسمانونو او د زمكې اوخاص هغه ته به واپس كولې شي كارونه ټول

فَاعْبُدْهُ وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ ۭ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ۝

پس خاص د هغه عبادت كوه (۲) او په هغه توكل كوه (۳) او ندي رب ستا (۴) غافل دهغه عملونو نه چه تاسو ئ كوئ

﴿ وَكُلًّا نَّقُصُّ عَلَيْكَ ﴾ دا دَ سورة د تمامو قصو سره متعلق دي ، او تنوين په كلاً كښې عوض دې د مضاف اليه نه ، اى كل نباء او دا منصوب دې ، مفعول د نَقُصُّ دپاره دې ، او ﴿ مِنْ اَنْبَآءِ الرُّسُلِ ﴾ بيان مقدم دې د (مَانُثَبِّتُ) دپاره ، او (مَانُثَبِّتُ) عطف بيان يا بدل دې د كلاً نه ، يعنى د رسولانو د قصو بيانولويو مقصد تثبت د زړه دې په ذكر د مصائبو د پيغمبرانو سره ﴿ وَجَآءَكَ فِىْ هٰذِهِ الْحَقُّ ﴾ دا دويم مقصد دې د بيان د قصو د انبياؤ چه په دې سره حق واضحه شو ، يعنى توحيد رسالت او صحيح عقيدې او صحيح اعمال ﴿ وَمَوْعِظَةٌ ﴾ دادريم مقصد دې ،يعنى تخويف او زجر د معاصيئو نه ، او د تير شوو امتونو د بد انجام نه عبرت اخستل ، ﴿ وَذِكْرٰى ﴾ داخلورم مقصد دې ، يعنى د اعمالو صالحو ترغيب ﴿ وَقُلْ لِّلَّذِيْنَ ﴾ دا زجر دې او اعلان د براءت دې. يعنى كه تاسو دَ دومره بياناتو او قصو نه عبرت نه اخلئ او په ضد او تعصب باندې مضبوط ولاړ يئ نو زه هم په خپله حقه لار مستقيم ولاړ يم تاسو د خپل انجام انتظار كوئ ، او مونږ د خپل انجام په انتظار كښې يو ﴿ وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ ﴾ د سورة په آخر كښې د سورة د تمامو دعوو اعاده كيږى، او دا د دويمې دعوې اعاده ده ﴿ فَاعْبُدْهُ ﴾ دا د اولې دعوې اعاده ده ﴿ وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ ﴾ دا ددريمې دعوې اعاده ده، يعنى په مصائبو او بلياتو كښې په الله ﷻ بروسه كوه، او صبر استقامت برداشت كره ﴿ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ ﴾ دا د څلورمې دعوې اعاده ده .

**اتوار ۱۲ صفر ۱۴۳۰ هجرى ۸ فرورى سـ ۲۰۰۹ء**

**نن شپ اتوار ۲ / ربيع الثانى ، سنه ۱۴۳۳ ، ذ دې نظر ثانى مكمل شو.**

---

۱ - د دويمې دعوې اعاده .

۲ - د اولې دعوې اعاده .

۳ - د دريمې دعوې اعاده .

۴ - د څلورمې دعوې اعاده .

| رکوعاتها (۱۲) | سورة یوسف مکیة | آیاتها (۱۱۱) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ | |
| | خاص په نوم د الله سره چه بې حده مهربان او ډیر رحم کونکې دې شروع کوم | |

**ترتیبها حسب التسلسل (۱۲) حسب النزول (۵۳)**

سورة یوسف مکی دې، په ترتیب قرآنی کښې ۱۲ دې او په ترتیب نزولی سره . ۵۳ دې زمانه د نزول ئ دور آخر د مکې دې .

**ربط اسمی** په سورت هود کښې چه د کومې مسئلې ذکردې ، او هود ﷺ بیان کړې دې چه ﴿يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلٰهٍ غَيْرُهُ﴾ ، د دې تبلیغ او اشاعت دومره ضروری دې چه یوسف ﷺ په قید خانه کښې قیدیانو ته د تعبیر نه قبل بیان کړو .

**ربط مضمونی** : دادې چه په سورة هود کښې ئ ویلی وو چه عبادت د الله ﷻ کوئ ځکه بل څوك غیب دان، کارساز نشته ، په دی سورة کښې د دې اثبات دې چه که بل څوك غیب دان، کارسازوې، نودومره لوئ پیغمبر یعقوب ﷺ به ولې دومره په خپل ځوئ پسې پریشان کیدهلو

**د سورة د مضامینو خلاصه** : د سورة څلور دعوې دی ، دوه ضمنی دی په ضمن د بیان د قصې کښې ثابتیږی ، اوله دعوی داده چه د الله ﷻ نه ماسوا هیڅ څوك عالم الغیب نشته دې ، بلکه عالم الغیب صرف یو الله دې ، دویمه دعوی داده چه مالك او متصرف فی الامور مافوق الاسباب صرف الله ﷻ دې ، دا دواړه دعوې د بیان د قصې سره ثابتیږی، ځکه چه د یوسف ﷺ هره هره کړئ په دې دلالت کوی چه عالم الغیب ا و متصرف فی الامور بل څوك نشته دې ، دریمه دعوی داده چه بیشکه ته د الله ﷻ ریشتې رسول ئی ﴿ذٰلِكَ مِنْ أَنۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوحِيهِ إِلَيْكَ﴾ څلورمه دعوی ﴿حَتّٰىٓ إِذَا اسْتَيْـَٔسَ الرُّسُلُ﴾ په مخکنو انبیاؤ باندې په تبلیغ د توحید کښې امتحانات راغلی وو لیکن د الله ﷻ نه نصرت او مدد د دوئ سره شامل حال وو، او مخالفین نامراده اوهلاك شو نو دغه شان په تا باندې امتحانات راځی لیکن دکامیابئ انجام به ستا وی .

| الٓرٰ ۔ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ۞ اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ قُرْءٰنًا |
|---|
| (الر) دا آیتونه [1] د داسې کتاب دی چه صفا صفا بیان کوی بیشکه مونږ نازل کړیدي دا کتاب قرآن |
| عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ۞ |
| په عربي ژبه لپاره د دې چه تاسو پوهه شئ |

﴿الٓرٰ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ﴾ دا تمهید دې د ﴿لَمِنَ الْغٰفِلِيْنَ﴾ پورې او (تلك) اشاره ده قرآن ته او مقصود ترینه الحاق د جزء دې په کل پورې یعنی لکه څه رنګه چه کل قرآن ته اعلی معیار دَ فصاحت، بلاغت کښې دې او معجز دې نو دا یو سورة هم دغه شان دې او (مبین) لازمی هم راځی او متعدی هم راځی ، نو که لازمی شی نو معنی ئې دا ده چه ظاهر دې حال د دې کتاب په اعجاز کښې او تبکیت دَ عربو کښې یا دا معنی ده چه واضح او ظاهر دې په عربو باندې د دې معنی مشتبه نه دي په دوئ باندې ځکه چې د دوئ په لغت باندې نا زل شوې دې ، او چه متعدی شی نو معنی ئې داده چه ظاهره ونکې او واضحه کونکې دې حق لره د باطل نه یا واضحه کونکې دې هغه خبرې لره چه سوال ئې کړی وو یهودیانو. لکه روایت دې چه یهودیانو نه تپوس اوکړې شو چه یعقوب ﷺ خو په شام کښې وو، نو بنی اسرائیل مصر ته څنګه راغلل ﴿اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ قُرْءٰنًا﴾ نو بیشکه مونږ نازل کړې دې دا کتاب په حال د کون دده کښې چه قرآن دې عربی. (قرآنا) حا ل موطئه دې ،یعنی مقصودی دَ (قرآنا) ذکر کولو نه توطیه او تمهید دې ﴿عَرَبِيًّا﴾ ته او بعض وائی چه قرآنا مصدر دې په معنی د مقروۃ سره نو دا حال دې او عربیًا ورله صفت مادحه دې ، ځکه چې عربی لغت په ټولو لغاتو کښې افضل او اشرف دې. دلیل لمّی په دې دا دې چه د بلاغت فصاحت د دقائقو او لطائفُ او دَ نکتو اعتبار څومره چه په عربی ژبه کښې کیدې شی نو دومره په بل لغت کښې نشی کیدې. لکه دا مشاهده ده، او دلیل انّی ئې دادې چه دا ځکه افضل او اشرف دې چه دا لغت او لسان د سید الکونین ﷺ دې ، بل دا چه دا قرآن په عربی ژبه کښې دې ، بل دا چه لسان د اهل جنت هم عربی دې ، آلوسی ﷫ روایت د طبرانی او حاکم او بیهقی وغیره ﷭ د ابن عباس ﷺ نه نقل کړې دې چه نبی ﷺ

[1] - تمهید .

فرمايلي دي (احب العرب لِثلث لانی عربیٌّ والقران عربیٌّ وكلام اهل الجنة عربی) ، ابن کثیر رحمه الله وائی چه (اُنزل اشرف الكتبِ باشرف اللغات ، على اشرف الرسل بسفارة اشرف الملائكة وكان ذالك فی اشرف بقاع الارض وابتداء اِنزاله فی اشرف شهور السنة وهو رمضان فكمل من كل الوجوه) ،امام راغب اونور اهل لغت وائی چه عربی فصیح او واضح كلام ته وائی او عربو ته عرب ځكه وائی چه دوئ په فصیح كلام باندې تكلم كوی ، نوعربی لغت په تمامو لغاتو كښې افضل او اشرف دې ، ځكه چې دا د اشرف الرسل ﷺ او د اشرف الكتب لغت دې ، او دعربی لغت نه بعد آیا ټول لغات یو شان دی ، او كه افضل غیر افضل په كښې شته دې ، نو كه چرې وجه د افضلیت اشتمال وی په لطائفو او دقائقو اونكتو د بلاغت باندې نو بیا خو افضل او غیر افضل په كښې شته دې ، او كه دا وجه نه وی نو بیا ظاهره داده چه افضل فقط لغت عربی دې چه قرآن په دې نازل دې، اودَ لغت عربی نه علاوه ټول یو شان دی ، او چه د لغت عربی نه علاوه نورو لغاتو كښې افضل او غیر افضل وی نو آیا بیا كوم لغت افضل دې ، نو په دې باره كښې څه صریح نص نه دې راغلی لیكن اكثر عالمان وائی چه فارسی افضل دې ، او ددې افضلیت كښې نزاع نده پكار ځكه چې فارسی قریبه ده عربی ته په اشتمال كښې په نكتو د فصاحت بلاغت باندې ، او امام ابو حنیفه رحمه الله په فارسئ سره قرائت لوستل په مونځ كښې جائز كړی دی ، نو معلومه شوه چه د عربی لغت نه بعد فارسی لغت افضل دې او بعض وائی چه سریانی لغت افضل دې ځكه چه دَ آدم علیه السلام لغت په جنت كښې عربی وه نو چه اكل د شجرې ئی اوكړو نوعربی ترینه سلب شوه ، او تكلم ئ په لغت سریانی سره كولو، او بیا چه توبه ئ قبوله شوه نو بیا ئ په عربی لغت خبرې كولې، او بعض اسمانی كتابونه صحیفې هم په سریانی لغت سره نازل شوی دی ، و الله اعلم باالصواب ، او اهل تاریخ د عربو د درې دوره وائی ، (۱) عرب عاربه یا عرباء یعنی خاص عرب او دوئ اولاد او اِرم ابن سام بن نوح علیه السلام دی ، دوی نه (۹) قبیلې دی او بعض وائ چه اووه قبیلې دی ، چه هغه عاد ، ثمود ، امیم ، عبیل ، طسم ، جدیس ،عملیق ، جرهم ، وبار، دی او د جرهم قبیلې نه حضرت اسماعیل علیه السلام عربی زده كړه ، نو اولاد د اسماعیل علیه السلام خلاصة العرب العرباء دې ، او دې لغت ته الله ﷻ ترقی وركړه نو دَ نبی ﷺ په زمانه كښې انتهائی عروج ته اورسیده ، او دا لغت د نورو لغاتو په نسبت سره مختصر او ډیر جامع دې ، نو الله ﷻ دې لغت ته فوقیت وركړو ، او نزول د قرآن په دې سره اوشو، او دویم عرب متعربه دی، دوئ خالص عرب نه دی ، دا د یمن ،حمیر قبیله اولاد د

(قحطان) دی ، دريم عرب مستعرب به دی، دوئ هم خالص عرب نه دی ، دوئ په اولاد د اسماعيل عليه السلام کښ اولاد د معد بن عدنان بن اذر دی .

او په دې آيت کښ توصيف د قرآن شوې دې په عربيًا سره نو استدلال کړې دې بعض امامانو لکه امام شافعي رحمه الله، ابو عبيده، قاضي ابوبکر وغيره حضرات شو ، په دې چه په قرآن کښ عجمی لفظ نشته دې ، او ابن جرير رحمه الله توجيه کړې ده د دې قول د ابن عباس رضي الله عنه چه قسطاس سجل وغيره الفاظ عجمی دی ، او هغه توجيه داده چه دا الفاظ په اصل کښ عربی وو، او د عربو نه عجمو زده کړی دی ،او عربو د دې استعمال ترک کړو او په عجمو کښ مشهور شو ، او چاويلی دی چه دا د توارد دلغاتو نه دی ، ليکن ډيرو اهل علمُ ويلی دی چه عجمی لفظ په قرآن کښ شته دې ، کماقال ابن عباس رضي الله عنه او جواب ئ کړې دې د دې آيت نه چه په يو لفظ سره قرآن د عربيت نه، نه خارجيږی لکه يوه قصيده يا شعر د فارسئ په يو لفظ عربی سره دَ فارسي والی نه نه خارجيږی ، او بعضو ويلی دی چه د عجمی لفظ په اعتبار د اسلوب سره عربی دې ، لکه اجرا د اعراب وغيره شو نو توصيف ئ په عربی سره په دې لحاظ سره شوې دې ، او استدلال کړې دې دوئ چه اتفاق د نحويانو دې په دې چه ابراهيم وغيره اسماء غير منصرف دی د وجې د عجمې او علميت نه ، او سيوطی رحمه الله نقل کړيدی دابو ميسرة تابعی نه چه ده ويلی دی ، فی القران من کلِّ لسان او دغه شان روايت د سعيد بن جبير او وهب بن منبه نه دې ، او حکمت په دې کښ داکيدې شی چه قرآن خو حاوی دې په علومو د اولينو آخرينو او په احوالود هر څه باندې نو مناسب وه چه مشتمل شی په لغت د عجمو باندې چه احاطه تامه د قرآن راشی ، او هم دا رنګه هرکله چه نبی ﷺ مبعوث دې هرامت ته نو مناسب ده چه په دې کتاب کښ د لغت د هر قوم نه څه لفظ وی ، قاسم بن سلام رحمه الله محاکمه کړې ده په مابين د قولينو کښ او ويلی ئ دی چه چا چه دا ويلی دی چه بعض الفاظ په قرآن کښ عجمی دی دهغه مطلب دادې چه اصول ئ عجمی دی ليکن بيا عربود عجمی نه عربی ته اړولی دی ، نو دا الفاظ عجمی دی په اعتبار د اصولو او مادې سره ، او عربی دی په اعتبار د تصرف د سوق او د اجرا دَ اِعراب سره، دواړه قولين صحيح دی ، او تخالف اومنافات نه لری ، او د ﴿قُرۡءَٰنًا عَرَبِيًّا﴾ نه فقهاؤ دا مسئله هم مستنبط کړی ده چه که د قرآن ترجمه په بل لغت سره اوکړې شی نو هغې ته به قرآن نشی ويلې بلکه ترجمه دقرآن به ورته ويلې شی ، څکه قرآن نوم د دې منزل نظم عربی دې نو ترجمه د قرآن ،قرآن نه دې ، او دا

رنګه د عربي متن نه بغير ئ شائع کول هم حرام دی . پرويزيانو او نورو ګمراه فرقو دا منصوبه جوړه کړې ده چه په عربي باندې عام خلق نه پوهيږی نو د دې وجې نه صرف لوستل کافي دی او ظاهره د چې هر کله عربي متن نظر انداز کړې شی او محض ترجمه باندې اکتفاء اوکړې شی . نود قرآن پاك وحدت به ختم شی او مختلف قرائتونه به شی لکه انجيل چه شپږشلې ۱۲۰ انجيلونه دې . نو دا د تحريف د قرآن ذريعه ده . او د دې وجې نه هر کله چې چراغ کمپنی لاهور د قرآن ترجمه بغير د عربي متن نه شائع کړه نو حضرت مفتی کفايت الله اونورو اکابرو علماؤ د هغې دحرمت فتوی ورکړه ځکه چې په دې کښې د صحيح ترجمې او غلطې ترجمې پته نه لګی . او چه د عربي عبارت سره ترجمه اوکړې شی نو دا جائزه ده ځکه چې بيا صحيح ا وغلطه ترجمه معلوميږی .

﴿لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ﴾ په دې کښې د فائدې د انزال د قرآن بيان دې او( لعل) د تعليل دپاره دې، يعنی قرآن د دې دپاره نازل شوې دې چه تاسو ځان پوهه کړئ په معانيو اوحکمتونو اوحقانيت د قرآن باندې .

| نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ أَحْسَنَ الْقَصَصِ بِمَا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ هَٰذَا الْقُرْآنَ وَإِنْ كُنْتَ |
|---|
| مونږ بيانوؤ په تا باندې ډيره ښائسته په قيصو کښې، په سبب دَ وحی ليګلو زمونږ تا ته د دې قرآن. او بيشکه ته وې |
| مِنْ قَبْلِهِ لَمِنَ الْغَافِلِينَ ۝٣ |
| مخکښې د دينه د بې خبرونه . |

﴿ نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ أَحْسَنَ الْقَصَصِ ﴾ قصص په دوومعانيو سره رازی . يو په معنی مصدری سره يعنی بيان کول نو د أَحْسَنَ الْقَصَصِ معنی ده په عمده طريقې سره بيانول ، دوېم په معنی د تيرې شوې واقعې بيان نو د أَحْسَنَ الْقَصَصِ معنی داده چه د يوسف عليه السلام د تير شوی حالاتو واقعی اوحقيقی بيان چه په هغې سره د عقيدې اواخلاقو اواعمالواصلاح راځی .

د يوسف عليه السلام قصې ته ئې أَحْسَنَ الْقَصَصِ ويلی دی نوبعض حضرات لکه ابن القيم رحمه الله وغيره وائی چه اسم تفضيل دَ زيادة مطلقه دپاره دې ، (بيانه فی کافية ابن الحاجب) نو معنی ئې داده چه په ډيرو خايسته قصو کښې يوه قصه ،اودا مطلب نه دې چه داقصه دنورو قصونه زياته خايسته ده او نورې قصې د قران ډيرې خائسته نه دی ، مولانا شبير احمد عثمانی وائی

حه د یوسف ﷺ قصه په کتابونو د تاریخ او بائبل کښې هم ذکر وه مګر هغه محض یو افسانه وه . او قرآن د هغې ضروری او مفید اجزا په داسې عجیب ترتیب او بلیغ مؤثر انداز کښې بیان کړه چه د مخکنو تاریخ لیکونکو کوتاهی ترینه هم معلومه شوه . او اعلی نتائجو طرف ته رهنمائی هم اوشوه .او د علومو او دَ هدایاتو بابونه ترینه هم مفتوح شول (چه بیان ئی کیږی)
او عام مفسرین وائی چه دې قصې ته احسن القصص د جامع مضمون په وجه ویلی شوی دی ، خکه چې په دې قصه کښې داسې جامعیت دې چه په نوروقصو د انبیاؤ کښې نشته دې ، خکه په دې کښې (۱) د عقائدو بیان دې (۲) او د عمل صالح بیان دې (۳) او د بد عمل د نتائجو بیان دې (۴) او دَ نیکو اخلاقو بیان دې (۵) او دارنګه په دې کښې د متقابلاتو بیان او ذکر دې .
د عقائدو بیان دا دې چه : (۱) دقضاء او قدر داقع نشته دې (۲) انبیاء غیب دان نه دی (۳) د خپل اولاد نه او د بل چانه تکلیف نشی دفع کولې (۴) او د شرك رد .
او د اعمال صالحو بیان دادې چه (۱) دالله ﷻ نه مدد غوختل (۲) په معصیت باندې مصیبت لره ترجیح ورکول (۳) د مصیبت نه په الله ﷻ سره پناه غوښتل (۴) او دمعصیت نه تختیدل (۵) د خپل ځان نه بد نامی دفع کول (۶) د الله ﷻ په خودلې شوو تدبیرونو اوحیلو باندې عمل کول .
او د بدو اعمالو د نتائجو ذکر دادې (۱) د حسد عاقبت او انجام ناکامی (۲) د پلار سره کید او مکر کول (۳) پلارته د دروغو بهانې (۴) ورور ته چل ول جوړول (۵) او هغه ته تکلیف ورکول او ظلم کول (۶) دَ ښځو مکرونه کول (۷) د پردی سړی سره عشق کول او د هغه نه د بدکارئ طلب کول .
او دَنیکو اخلاقو بیان دا دې چه (۱) د مولی سره خه اخلاق چلول (۲) او د هغه په کور کښې دخیانت نه ځان ساتل (۳) عفت کول (۴) د خپلو ملګرو سره احسانات کول (۵) هغوئ ته د حق دعوت په نرمئ او همدردئ سره ورکول (۶) خطا کونکو اومجرمانو ته معافی کول (۷) د معافی نه بعد هغه نه ملامت کول (۵) بلکه د هغوئ دپاره استغفار غوختل .
او هر چه دې د متقابلاتو بیان نو هغه دادې : حاسد محسود ، مالك مملوك ، شاهد مشهود ، حبس (قید ) اطلاق (خلاصیدل ) قحط سالی خوشحالی ، ذنب اوعفو ، فراق وصال ، سفر حضر ، عزت ذلت .

﴿بِمَآ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ﴾ باء سببيه ده ، او ما مصدريه ده، يعنى تا دا واقعات د تاريخى كتاب

نه یا چانه نه دی نقل کړی ، بلکه په سبب د وحی سره دی نو دا ستا د رسالت دلیل دي ﴿وَإِن كُنتَ﴾ (ان) مخفف من المثقل دې . اسم ئ ضمیر شان مقدر دي او خبر ورله ﴿لَمِنَ الْغَافِلِينَ﴾ دي. دغافل نه مراد بې خبره د قصې دَ یوسف ﷺ نه دې لکه (ووجدك ضآلا) یعنی بې خبره د تفاصیلو د دین نه (ماکنت تدری مالکتٰب) ، یعنی تاته نه وه معلوم تفاصیل د کتاب او د ایمان.

| إِذْ قَالَ يُوسُفُ لِأَبِيهِ يَا أَبَتِ إِنِّي رَأَيْتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا وَالشَّمْسَ |
|---|
| هرکله چه وه ویل یوسف[۱] خپل پلار ته : اې پلاره ځما ! بیشکه ما ولیدل په خوب کښې یوولس ستوری او نمر |
| وَالْقَمَرَ رَأَيْتُهُمْ لِي سَاجِدِينَ ۞ |
| او سپوږمۍ، ولیدل ما دوئ، ماته سجده کونکی. |

﴿إِذْ قَالَ يُوسُفُ لِأَبِيهِ﴾ د دې نه د قصې ابتدا کیږی ، او دا په پنځلس احوالو کښې اول حال دې (اذ) بعض حضرات په معنی د (قد) سره وائی ،اوبعض وائی چه دا ظرف دې . عامل ئی مقدر دې چه (اذکر القصة اذقال – الخ) دې ، نو په دې اشکال راځی چه دا قصه خوحضورﷺ ته معلومه نه وه نو څه رنګه ورته د بیانولوحکم کیږی؟ نو جواب دا دې چه په ذریعه د وحی سره معلومه شوه نو د دې وجه نه ورته د بیانولو حکم اوشو. او بل داچه شیخ رضی ﷫ ویلی دی چه (اذکر) په معنی د غو راو فکر سره دې یعنی په دې قصه کښې غور او فکر اوکړه او عبرت ترینه حاصل کړه ، حضرت شیخ ﷫ فرمائی چه ظرف د روستو (قال یٰبنی) سره متعلق دې ، او تقدیم د ظرف په عامل جائز دې ، لکه دا قاعده مسلمه ده ﴿إِنِّي رَأَيْتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا﴾ مراد لیدل دی په خوب کښې ، یوولس ستوری یوولس رونړه دی اونمر سپوږمۍ مور اوپلار دی ، قرطبی وائی چه مور د یوسف ﷺ د دې واقعې نه اګر که مخکې وفات شوې وه لیکن د ده خاله (ترور) دَ یعقوب ﷺ په نکاح کښې راغلی ده ، خاله خو هسې هم په منزله د مور وی،لیکن چه په نکاح د پلار کښې راشی نو بیا ورته په عرف کښې مور ویلې شی. اکثر

۱ - د قصې آغاز او په پنځلس احوالو کښې اول حال.

مفسرین وائی چه د شمس تعبیر پلار دې لکه چه رڼا د شمس کامله وی، نو دغه نور د نبوت کامل وی او د قمر تعبیر مور ده ، لکه چه رڼا د قمر درمیانه ا و مستفاده وی د شمس نه نو دغه شان نور د ولایت د مور د یوسف ﷺ درمیانه دې او مستفاد دې له نور د نبوت نه ، او بعض مفسرین د شمس تعبیر په مورسره کوی ، ځکه چه شمس مونث دې ، او د قمر تعبیر په پلار سره کوی ځکه چې قمر مذکر لفظ دې ، لیکن اول قول غوره دې ، ځکه چه په تعبیر کښې اعتبار د وصف چه نور دې اولی دې د وصف د لفظ نه، اودا خوب یوسف ﷺ په حالت د صغر کښې لیدلې دې . چه عمر ئی شپږ کاله وو یا اته کاله وو، او د یعقوب ﷺ دولس ځامن وو. د څلورو بیبیانو نه. او دیوې بی بی نه چه نوم ئی (لیّه) دې شپږ ځامن وو، اود (راحیل) نه ئی دوه ځامن وو. یوسف ﷺ بنیامین، اود (بلها) نه ئی هم دوه ځامن وو، او د (زلفا) نه ئ هم دوه ځامن وو. یوسف بن یامین دواړه کشران وو، دحضرت یوسف ﷺ سره د یعقوب ﷺ محبت د نورو ځامنو نه زیات وو .ځکه چې په ده کښې د نبوت آثار او انوارات د وړوکوالی نه موجود وو. او ظاهری حسن ورته هم الله ﷻ بې مثاله ورکړې وو، لکه د واقعې د معراج په باره کښې چه کوم طویل حدیث دې په هغې کښې داهم دی چه کله حضورﷺ د حضرت یوسف ﷺ سره په دریم اسمان کښې ملاقات اوشو ، نو اوئ فرمائل : واذا هو قد اعطی شطر الحسن ، یعنی یوسف ﷺ ته د ټولو مخلوق نیم حسن ورکړې شوې وو .

﴿رَأَيْتُهُمْ لِي سَاجِدِينَ﴾ دا د (رائیتُ) تفسیر دې یاجمله مستانفه ده واقع ده په جواب د سوال کښې چه ((کیف رائیتهم)) او جمع په یا اونون سره د عقلاؤ دپاره راځی اودارنګه ضمیر د (هم) دعقلاو دپاره راځی . او دلته د جماداتو دپاره چې کواکب دی ،مستعمل شوې دې ، نود دې وجه داده چه هر کله دا موصوف شو ، په وصف د عقلاؤ سره چه سجود دی نو په دې وجه جمع د عقلاؤ د دوئ دپاره مستعمل شوه اومراد دسجدې نه حقیقی معنی ده چه تعبیر دې د انقیاد او تابعداری نه او بعض ویلی دی چه دې نه مراد مجازی معنی ده چه تواضع او انقیاد دې ﴿رَأَيْتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا﴾، او ((رئیتهم) د رؤیا نه مشتق دې یعنی خوب لیدل ، او د رؤیت نه مشتق نه دې ، او د خوب حقیقت عالم الغیب لیدل دی ، او د دې وجې نه په حدیث کښې راغلی دی (لم یبق من النبوت الی المبشرات) یعنی نبوت ختم شوې دې اوهیڅ جزء ترینه نه دې پاتی مګر مبشرات ، یعنی د عالم الغیب اطلاع به په ذریعه د وحی سره راتله نو هغه بنده شوه او صرف مبشرات پاتې دی، چه په دې سره د عالم غیب بعض احوال معلومیږی . صحابو

نبوس اوکړو چه مبشرات څه دی؟ ، نو رسول الله ﷺ اوفرمائل چه (الرؤيا الصادقة يراه المؤمن ، اوترٰی له) یعنی مبشرات رشتینی خوبونه دی چه مومن ئی په خپله اووینی یا د ده دپاره ئی څوك او وینی لیکن د دې نه، نه لازمیږی بقاء د نبوت څکه که د جز د بقاء سره د کل بقاء نه ده لازمه لکه د مشین یوه پُرزه چه موجوده وی نو داسې نشی ویلې چه مشین موجود دې، دَ قادیانی دجال لعنت الله علیه مغالطه په دې سره ختمه شوه ، شاه ولی الله رحمه الله فرمائی چه د قلب دپاره دوه دروازې دی ، یوه دروازه عالم مشاهد ته ده او بله عالم الغیب ته ده ، نوکله چه سړې اوده شی نو د عالم مشاهد دروازه بنده شی او عالم الغیب ته دروازه مفتوح شی ، او صوفیاء وائی چه څومره اشیاء پیداکیدونکی دی ، نود وجود نه مخکښ د هر څیز یو خاص شکل په عالم امثال کښ وی، او د عالم مشاهد د شکل نه اکثر بدل وی ، څکه چه په عالم مشاهد کښ به یو شئ عرض وی او په عالم مثا ل کښ به جوهر وی ،لکه مثلا علم په عالم مشاهدکښ عرض دې لیکن په عالم امثال کښ دده شکل لبن (شوده) دی ، نو په خوب کښ د عالم امثال هغه شکلونه په نظر راشی ، نو دا رویا (خوب) دی ، لیکن د دې سره کله تخیلات باطله هم شامل شی ، نو تعبیر ئی مشکل شی ، او د خوب درې قسمونه دی : دوه باطل اوبی حقیقته دی او یو قسم په خپله صحیح او ریشتنې دې ، لیکن د عوارضو د وجې نه کله هغه هم قابل اعتبار نشی ، یو قسم حُلم حدیث النفس دی ، او دا هغه دی چه انسان د څه څیز تصور کړې وی نو هغه تصورات ئی په دماغو کښ په قوت خیالیه کښ پراته وی ،نوچه اوده شی نو دغه تصورات په خوب کښ وینی ، او دویم قسم تسویل الشیطن دی ، دا هغه دی چه شیطان د انسان په دماغو کښ څه صورتونه او شکلونه اوواقعات واچوی ،دَ ترهیب دپاره د یا د دهوکه کولو دپاره لکه احتلام دپاره وغیره شو ، دریم قسم رویا صالحه دی، چه هغه د الله ﷻ د طرف نه د بنده ته د غیب نه اطلاع ورکول دی ،او یو قسم الهام دې لکه په حدیث دطبرانی کښ دی چه د مومن یوکلام دې چه د خپل رب سره ئی کوی ، د انبیاء علیهم السلام خوب رؤیای صادقه دی ، او د نورو خلقو خوب کله رویائی صادقه وی او کله حدیث النفس وی ، اوکله تسویل الشیطن وی ، په حدیث کښ خوب ته جزء د نبوت ویلې شوې دې ، اوپه دې کښ روایات مختلف دی ، په یو روایت کښ ورته څلویښتم جزء ویلې شوې دې او په بل روایت کښ ورته شپږڅلوېښتم ویلې شوې دې ، او په بل روایت کښ ورته یوکم پنځوستم جزء ویلې شوې دې ، اوبل روایت کښ ورته پنځوستم جزء ویلې شوې دې، او په بل روایت کښ

ورته اويايم جزء ويلي شوي دي لکه دا روايات ټول په تفسير قرطبي کښ دی . نو دلته د **دوو خبرو وضاحت** پکار دي يو دا چه د دي څه مطلب دي وچه خوب د نبوت جزء دي . بل دا چه د دي رواياتو په مينځ کښ تعارض دي . قرطبي ويلی دی چه په خوب کښ کله سړي هغه څه وينی چه په هغې باندې انسان په ويخه عادةً قدرت نه لری لکه په هوا کښ الوتل نو دا رؤيا صادقه د طرف الله ﷻ نه دی . لکه په حديث د بخاری کښ (الرؤيا من الله والحلم من الشيطن) . دی . او دا د نبوت نه دی او تصديق کول پرې حق دی او هر چه دې اختلاف دَ رواياتونو دا مبنی دي . په اختلاف د حال دخوب ليدونکی باندې چه په چا کښ چه امانت او ديانت کامل وی نو د هغه خوب د نبوت څلويښتم جزء دي . او چه د چاکم وی نو د هغه خوب شپږ څلويښتم جزء دي . يا پنځوستم يا اويايم جزء دي . او د ډيرو سلفو نه د دې احاديثو توجيه داسې مروی ده چه د نبوت کل زمانه۲۳ساله وه . او په دې کښ اول شپږمياشتې رويائ صالحه وو او شپږمياشتی د درويشتو کالو دپاره شپږ څلويښتمه حصه ده . نو رويا شپږ څلويښتم جزء شو د نبوت دپاره، يعنی د شروع د وحې نه د زمانې د وفات پورې چه زمانه د انقطاع د وحې ده . او هر چه باقی روايات دی نو په هغې کښ يا کسر حذف شوي دي لکه روايت د څلويښت يا په کښ کسر پوره کړې شوي دي . لکه روايت د پنځوستو او نور روايات قوی نه دی په شان دَ قوت دَ دې روايت . قرطبي وائی چه بنا ء په دې توجيه په بعض رواياتو کښ تاويل کول رازی . او د بعض رواياتو ترک رازی نو اول جواب بهتر دي . اوکه څوك **سوال** اوکړی چه هر کله رويائ صادقه جزء د نبوت دی نوکافر او کاذب په څه رنګه اهل د دې شی . حال دادې چه دکافر اوکاذب خوب هم کله کله صادق وی لکه د عزيز مصر او دَ هغه دَ قيديانو خوب . **جواب** دادې چه د کافر او د کاذب خوب جزء د نبوت نه، نه دې اګر که صادق وی . ځکه چې دا نده ضروری چه څوك صادق وی په خبر کښ د غيب نه نو دغه خبر به نبوت وی . لکه کاهن چه کله خبر ورکړی د حق خبرې . ليکن دا ډير نادر اوقليل دې نو دغه شان خوب د کافر او د کاذب يا تسويل الشيطن يا حديث النفس وی . او د صالح مسلمان خوب اکثر صادق وی . نو دا ځکه جزء د نبوت دې .

قَالَ يٰبُنَيَّ لَا تَقْصُصْ رُءْيَاكَ عَلٰٓى اِخْوَتِكَ فَيَكِيْدُوْا لَكَ كَيْدًا ؕ اِنَّ الشَّيْطٰنَ

وه ويل هغه اې بچيه مه بيانوه دا خوب دې رونړو ته . پس څه چل به جوړ کړی ستا دضرر لپاره چل. بيشکه شيطان

لِلْإِنسَانِ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ۞ وَكَذَٰلِكَ يَجْتَبِيكَ رَبُّكَ وَيُعَلِّمُكَ مِن تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ

د انسان لپاره دښمن ښکاره دی او دغه شان به غوره کړي تا لره رب ستا. او وبه ښائي تا ته د علم د تعبیر د خوبونو نه

وَيُتِمُّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ وَعَلَىٰ آلِ يَعْقُوبَ كَمَا أَتَمَّهَا عَلَىٰ أَبَوَيْكَ

او پوره به کړي خپل احسان په تا باندې. او په اولاد د یعقوب باندې. لکه چه پوره کړې ئې دې ستا په نیکونو

مِن قَبْلُ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ ۚ إِنَّ رَبَّكَ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۞ لَّقَدْ كَانَ

د دینه مخکښې چه ابراهیم او اسحاق دی. بیشکه رب ستا په هرڅه پوهه او حکمت والا دې په تحقیق سره شته دې

فِي يُوسُفَ وَإِخْوَتِهِ آيَاتٌ لِّلسَّائِلِينَ ۞

په قصه د یوسف او د رونړو د ده کښې عبرتونه د تپوس کونکو لپاره

﴿قَالَ يَٰبُنَيَّ﴾ دا تصغیر د شفقت دپاره دې، هر کله چه یوسف ﷺ دا خوب خپل پلار یعقوب ﷺ ته بیان کړو نوهغه ورته اووئیل چه دا خوب دې رونړو ته مه وایه ځکه چې دوئ هم د خاندان نبوت نه دی نو د دې خوب په تعبیر پوهیږی چه یوولس ستوری یوولس رونړه دی . او نمر سپوږمئ مور پلار دی . او د سجدې کولو نه مراد اطاعت او تابعداری ده ﴿فَيَكِيدُوا لَكَ كَيْدًا﴾ یعنی دوئ به د حسد په وجه ستا د ضرر دپاره تدبیر جوړ کړی. عظیم تدبیر چه ته به ئی په دفع کولو قادر نه ئی ددې نه معلومه شوه چه رونړه د یوسف ﷺ انبیاء نه وو. ځکه چې حسد کول اومکرونه کول گناه کبیره ده او انبیاء د گناه نه پاك دی ،او دا قول د جمهورو دې بعض وائی چه دوئ انبیاء وو ځکه چه دوئ ته کواکب ویلي شوی دی او دارنگې ﴿وَيُتِمُّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ وَعَلَىٰ آلِ يَعْقُوبَ﴾ نه معلومیږی، جواب دادې چه د کواکبو سره د تشبیه نه صحابیت معلومیږی او رونړه د یوسف ﷺ پس د توبې نه صحابه وو، او هر چه دې ویتم نعمته او (آل یعقوب) نو نعمت یوازې په نبوت کښې منحصر هم نه دې ،او آل یعقوب په صلبی اولاد پورې مختص ندې نو کیدې شی چه د نعمت نه نبوت نه وی مراد یا د آل یعقوب نه صلبی اولاد ندې مراد، د دې آیت نه داهم معلومه شوه چه خوب هرچاته بیانول ندی پکار. لکه په حدیث کښې دی (الأحبيا او لبيًا)۱ ، یعنی خوب دوه قسمه خلقو ته بیانول پکار دی ، یو دوست چه هغه به

نی په صحيح محمل حمل کوی . او بل دانا او هوښيار . او د دې آيت نه دا هم معلومه شوه چه د چا عيب ظاهرول بل چا ته ددې دپاره چه هغه ته ضرر ونه رسی دا په غيبت کښې نه راځی خکه چې د دينه مقصود دفع د ضرر وی ، او توهين نه وی مقصد . او خطره د ضرر د هغه د لس علاتی رونړو نه وه ، او د اعيانی يعنی خپل رور بنيامين نه خطره د ضررنه وه ليکن دا احتمال وو چه که د هغه مخکښې دا خوب بيانکړی نو هغه به ئ د د رونړو په مخکښې يا د بل چا په مخکښې بيان کړی . او رونړه به ترينه خبر شی او ضرر به ورته اورسی ﴿وَكَذٰلِكَ يَجْتَبِيكَ رَبُّكَ﴾ (کاف) لبيان الکمال دې يا د تشبيه دپاره دې يعنی څه رنګه چه ستا دا خوب مبارك دې نو دغه رنګې به الله ﷻ تا منتخب کړی د لوئ کار دپاره ، چه کار د نبوت دې ، او خير او سهولت رسول دی قوم ته په زمانه د قحط کښې ﴿وَيُعَلِّمُكَ﴾ يعنی تاته به علم درکړی په تاويل الاحاديث سره. د دې ډيرې معنی شو يدی : (۱) تعبير د خوبونو (۲) دلائل د توحيد ، (۳) واقعات د مخکنو امتونو (۴) ځائ ته رسول د خبرو ، يعنی د هری خبرې په موقعه محل باندې پوهيدل لکه د خوب خبره وی يا د سلطنت او د معاملاتو انجام وی ،دا معنی ټولو ته شامله ده نو دا بهتره ده.

﴿وَيُتِمُّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ﴾ يعنی دا أخروی نعمتونو سره به دنيوی نعمتونه هم درکړی، د نبوت سره به بادشاهی هم درکړی ، او د تکليفونو ، مصيبتونو نه به نجات درکړی ، خوشحالی به درکړی ﴿وَعَلَىٰٓ ءَالِ يَعْقُوبَ﴾ يعنی د يعقوب په نسل کښې به هم پيغمبران او بادشاهان پيدا کړی، په بنی اسرائيلو کښې دواړه سلسلې موجودې وې ، انبياء پکښې د څلورو زرو نه زيات تير شوی دی . او دغسې بادشاهان هم ډير تيرشوی دی ﴿عَلَىٰٓ أَبَوَيْكَ﴾ اومراد دينه نيکه اوورنيکه دې ﴿إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْحَٰقَ﴾ يعقوب ؑ خپل نوم ندې ذکر کړې د تواضع دوجې نه ، ابراهيم ؑ ته الله ﷻ مقام د خُلة ورکړې وو ، او د اور د نمرود نه ئ ورته نجات ورکړو ، او نمرود ئی هلاك کړو ، او اسحٰق ته الله ﷻ نبوت ورکړو ، او يعقوب عليه السلام ئ ورته ځوئ ورکړو ، او د هغه په نسل کښې ئ دولس قبيلې جوړې کړې د بنی اسرائيلو ، اوډير انبياء ، سلاطين ئ پيدا کړل ﴿ءَايَٰتٌ لِّلسَّآئِلِينَ﴾ د آيات نه مراد عبرتونه دی ،د سائلينونه مراد يا هغه خلق دی چه د قصې د يوسف ؑ تحقيق کوی ، او دهغې عبرتونه حکمتونه معلوموی يا ترينه مراد صحابه دی . لکه په درمنثور کښې په روايت دابن عباس ؓ سره مروی دی چه صحابو عرض اوکړو چه

یارسول الله ﷺ مونږ ته یو قصه بیان کړئ (دکفارو مخالفت د حد نه زیات شوي وو. اومومنان په نهایت پریشانئ کښې وو) چه زمونږ مستقبل به څنګه وی .نو الله ﷻ داسوره نازل کړو . چه په مستقبل کښې به ستاسو فلاح او ترقی وی لکه یوسف ﷺ ته ئ چه ترقی او فلاح ورکړه .
او خازن په روایت د ضحاك سره د ابن عباس ﷺ نه نقل کړی دی چه مشرکینو دمکې په مشوره د یهودو سره داسوال کړی وو (امتحانًا) چه د بنی اسرائیلو اصلی وطن خو شام وو. نو دوئ مصر ته څنګه راغلل. او د موسی ﷺ په زمانه کښې مصر کښې اوسیدل . نودا سورت نازل شو او د سوال جواب وشو چه د بنی اسرائیلو مصرته د راتلو وجه دَ یوسف ﷺ راتلل وو مصرته ، یوسف ﷺ چه مصر ته راغې ، نوبنی اسرائیل هلته آباد شو. اود موسی علیه السلام په زمانه کښې الله ﷻ فرعون غرق کړو ، او بنی اسرائیلوته ئ نجات ورکړو. اوپه دې کښې عبرتونه دادی چه یوسف ﷺ ته د هغه رونړو تدبیر جوړ کړو او حسد ئې ورسره اوکړو.
او ملك نه ئې اوویستلو. په کوهی کښې ئ درې ورځې تیرې کړې او بیا د هغې نه د مصر بادشاهی ته اورسیدلو ، او بیا ترینه رونړو معافی اوغوختله ، نو ده اوفرمائل ﴿لَا تَثْرِيبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ﴾ اودوئ د هغه تابع شو. نودارنګه مکې والا دنبی ﷺ سره حسد اوکړو او دشمنی ئ شروع کړه ، اونبی ﷺ په هجرت مجبور شو، درې شپې ئ په غار ثور کښې اوکړې او مدینې ته ئ هجرت اوکړو ، الله ﷻ غلبه ورکړه ، اومکه ئې فتح کړه ، اومکی والو معافی اوغوختله نوپه جواب کښې ئ ﴿لَا تَثْرِيبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ﴾ اوفرمائل نودینه د حسد بد انجام او د تقوی اوتوکل اود صبر او د تعلق مع الله خائسته انجام معلوم شو .

| مِنَّا | اَبِيْنَا | اِلٰى | اَحَبُّ | وَاَخُوْهُ | لَيُوْسُفُ | قَالُوْا | اِذْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

هرکله چه دوئ وَ ویل [1] چه خامخا یوسف او دهغه خپل رور زیات محبوب دې زمونږ پلار ته زمونږ نه

| يُوْسُفَ | اقْتُلُوْا | ۝٨ | مُّبِيْنِ | ضَلٰلٍ | لَفِيْ | اَبَانَا | اِنَّ | عُصْبَةٌ | وَنَحْنُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

او حال دا چه مونږ پوره ډله یو، بیشکه پلار زمونږ خامخا په غلطئ ښکاره کښې دې قتل کړئ یوسف لره

۱ - دویم حال .

أَوِ اطْرَحُوهُ أَرْضًا يَخْلُ لَكُمْ وَجْهُ أَبِيكُمْ وَتَكُونُوا مِنْ بَعْدِهِ

يا ئې وغورزوئ په نامعلومه زمکه کښې، نو خالي به شي تاسو ته مخه د پلار ستاسو، او شئ به تاسې د دينه روستو

قَوْمًا صَٰلِحِينَ ۞ قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ لَا تَقْتُلُوا يُوسُفَ وَأَلْقُوهُ فِي غَيَٰبَتِ الْجُبِّ

قوم نيکان په توبې سره، وه ويل يو ويونکي د دوئ نه، مه قتلوئ يوسف لره او واچوئ ده لره په يو تياره گمنام کوهي کښې

يَلْتَقِطْهُ بَعْضُ السَّيَّارَةِ إِن كُنتُمْ فَٰعِلِينَ ۞

وبه مومي ده لره بعض مسافران، که تاسو کونکي يئ (نو داسې وکړئ).

﴿ إِذْ قَالُوا لَيُوسُفُ ﴾ دا دويم حال دې چه رونړو ديوسف ﷺ غائبانه مشوره اوکړه ليکن يعقوب ﷺ ته ئې علم نه وو، نومعلومه شوه چه عالم الغيب صرف الله دې ، اوبيا ئې دا مشوره په عمل کښې راوستله . اويوسف ﷺ ته ئې تکليف ورسولو، اويعقوب ﷺ ئې ډير غمژن کړو ليکن نه ئې د خپل ځان نه تکليف دفع کولې شو او نه ئې د يوسف ﷺ نه تکليف دفع کولې شو ، نومعلومه شوه چه چه کار ساز اومتصرف في الامور صرف الله ﷻ دې ، ﴿وَأَخُوهُ﴾ ددينه مراد اعياني رور دې، يعنې بنيامين ﴿وَنَحْنُ عُصْبَةٌ﴾ (عصبه) هغه قوی اوطاقت ور جماعت ته وائې چه لسونه د پنځلسو پورې وی ، مطلب دادې چه مونږ ډير يو او قوی يو ، او د کور کاروبار او دوالدينو خدمت مونږ کوو، نوپکار داوه چه زمونږ سره ئې زيات محبت وی ، ليکن يعقوب ﷺ محبت د يوسف ﷺ سره کوی ﴿إِنَّ أَبَانَا لَفِي ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴾ ضلل په معنی د گمراهی سره نه دی ځکه چه نبي ته د گمراهي نسبت کفر دې ، او دوئ خو کافر ان نه وو بلکه مومنان او اصحاب قطعًا وو، او په نبوت کښې ئې اختلاف دې ، بلکه د دې نه مراد يا اجتهادی غلطی ده ، يا د تدبير غلطی ده، يعنې زمونږ دا پلار ساده دې په تدبير اوسياست نه پوهيږی ، د يعقوب ﷺ محبت د يوسف ﷺ سره د هغه دَ خوب د وجې نه وو چه هغه ليدلې وو. او بل دا چه انوارات د نبوت او د کمال د ده د مخ نه ئې محسوسول ، ليکن حسد انسان لره په بې بنياد الزاماتو او په طعن کولو باندې اماده کوی ﴿ اقْتُلُوا يُوسُفَ ﴾ رونړو د يوسف ﷺ اويل چه د يعقوب ﷺ اصل محبت د يوسف ﷺ سره دې اود هغه د رور سره ئې محبت د ده په وجه دې ، نو تر څو پورې يوسف ﷺ موجود وی نومونږ پلار ته نشومحبوب کيدې، نو پکار ده چه دې

د مخې نه لرې کړو . او د هغې صورت دادې چه قتل ئ کړو یا ئ چرته په یو نامعلومه لرې ځمکه کښې اوغرزوؤ یعنی نامعلومه ملك ته ئ اوشړو . نو د پلار د نظر نه به غائب شی . نو فائده به داشی چه ﴿يَخْلُ لَكُمْ﴾ یعنی د پلار توجه اوشفقت به تاسو ته یواځې شی. نو دوئ دا تجویزونه پیش کړل ﴿وَتَكُونُوا مِنۢ بَعْدِهِۦ﴾ یعنی داکاراګر که ګناه ده . لیکن مونږبه توبه اوکړو . اوصالحان . نیکان به شو . لیکن ګناه کول په دې ارادې سره چه روستو به توبه اوباسم . ناجائز او د شیطان دهوکه ده

﴿قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ﴾ هر کله چه دوئ دغه دوه تجویزونه پیش کړل نو یو قائل (یهودا) اووئیل چه قتل خو ډیر لوئ ظلم دې . دامه کوئ ،اونامعلومه وطن ته بوتلل هم ډیر ګران کار دې . خو د دې لارې په غاړه ئ په کوهی کښې اوغرزوئ چه مړ نه شی او د کوهی نه راوتلې هم نشی . او ځوك قافلې والا مسافر به راشی او راوبه ئې باسی او د ځان سره به ئې بوزی ﴿غَيَٰبَتِ ٱلْجُبِّ﴾ (جُبّ) کچه کوهی ته وائی او (غَيَابه) هر هغه ځیزته وائی چه بل ځیزپټ کړی . او غائب ئی کړی. او د دې وجې نه قبر ته غیابه ویلې شی . دلته د غیابه ترجمه عامومفسرینو په ګمنام کوهی سره کړې ده ،اوبعض په تیاره کوهی سره کړې ده ، ابو حیان د بعض لغاتو نه نقل کړی دی چه غیابه هغه طاقچه ده چې په کوهی کښې د اوبو نه لګ شان اوچته جوړه کړې شوی وی ﴿يَلْتَقِطْهُ﴾ لقیط هغه ډیر وړوکی ماشوم ته وائی چه ځوك ئی نه وی . نود ضایع کیدلو د خوف دوجې نه ئی بل ځوك واخلی دحفاظت دپاره ، دتاریخ نه معلومه ده چه په دغه علاقه کښې تجارتی قافلې فلسطین اومصر ته تلې راتلې ، او په لاره به کوهی وو نوچه په هغې به تیریده نو اوبه به ئی ترینه اخستلې ﴿إِن كُنتُمْ فَٰعِلِينَ﴾ یعنی که تاسو څه کارکوئ دیوسف ﷺ د جداکولودپاره نو دا کار اختیار کړئ، نو د دې شرط دپاره جزا مقدره ده . چه فافعلوا دې .

| قَالُوا | يَٰٓأَبَانَا | مَا لَكَ | لَا | تَأْمَ۫نَّا | عَلَىٰ | يُوسُفَ | وَإِنَّا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دوئ وه ویل اې پلاره زمونږ څه وجه ده چه ته په مونږ باندې اعتماد نه کوې په باره د یوسف کښې او حال دا چه مونږ | | | | | | | |
| لَهُۥ | لَنَٰصِحُونَ ⑪ | أَرْسِلْهُ | مَعَنَا | غَدًا | يَرْتَعْ | وَيَلْعَبْ | وَإِنَّا |
| د ده خامخا خیرخواه یو. دې ولیږه زمونږ سره صبا (صحرا ته) ، چه ډیرې میوې وخوری او لوبې وکړی او بیشکه مونږ | | | | | | | |

لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ ۝ قَالَ اِنِّيْ لَيَحْزُنُنِيْۤ اَنْ تَذْهَبُوْا بِهٖ

د ده خامخا حفاظت کونکي يو وه ويل يعقوب بيشکه غمژن کوی ما لره دا خبره چه تاسو بوځئ دی ځما نه

وَاَخَافُ اَنْ يَّاْكُلَهُ الذِّئْبُ وَاَنْتُمْ عَنْهُ غٰفِلُوْنَ ۝ قَالُوْا لَئِنْ اَكَلَهُ الذِّئْبُ

او يريږم چه وبه خوری ده لره شرمخ او تاسو به د ده نه بی خبره يئ وه ويل دوئ که وخوړلو ده لره شرمخ

وَ نَحْنُ عُصْبَةٌ اِنَّاۤ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ ۝

اوحال دا چه مونږ قوی ډله يو ، بيشکه مونږ به په دغه وخت کښې خامخا تاوانيان يو .

﴿ قَالُوْا يٰۤاَبَانَا ﴾ رونړود يوسف ﷺ د خپلې منصوبې عملی کولو دپاره پلارته درخواست اوکړو چه د يوسف ﷺ په باره کښې ته په مونږ باندې اعتماد ولې نه کوی؟ او حال دا چه مونږ د ده خير خواه يو او ددې نه معلوميږی چه دوئ مخکښې هم د پلارنه د يوسف ﷺ د بوتلو مطالبه کړې وه ، خو هغه په دوئ اعتماد نه وو کړې ﴿ اَرْسِلْهُ ﴾ يعنی يوسف ﷺ زمونږ سره صحرا ته اوليږه چه ورزش اوکړی اوميوی په کثرت سره اوخوری ، اولوبې اوکړی ، يعنی مباح لوبې ﴿ يَرْتَعْ ﴾ رتع څريدلو دخارو ته وائی په ډيره گياه کښې، دلته مراد ميوې خوړل دی په کثرت سره ، اودلوبو نه مراد مباح لوبې دی ﴿ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ ﴾ دا دومره تاکيدات ئې ذکر کړل ، ددې دپاره چه ددوئ دروغ اومنلې شی، حسد انسان لره په ډيرو گناهونو اماده کوی، د يوسف ﷺ د رونړو داعمل په ډيرو گناهونو مشتمل وو، لکه صله رحمی قطع کول ، نافرمانی د مور پلارکول، په کشر رور شفقت نه کول ، د وعدې خلاف کول او دروغ ويل ، دا ټول د حسد نتيجه وه .

﴿ قَالَ اِنِّيْ لَيَحْزُنُنِيْۤ ﴾ يعقوب ﷺ دوئ ته اووئيل چه زه د يوسف ﷺ جدائی د لږوخت دپاره هم نشم برداشت کولې،اوچه دې تاسوسره صحرا ته صبا لاړشی ، اومابنام راځی نو دا طويل وخت دې ، او زه د ده په جدائی غمژن کيږم ، بل دا چه زما خطره ده چه تاسو به په صحرا کښې په خپل کار کولو کښې مشغول شئ اودې به شرمخ اوخوری، اوپه دغه صحرا کښې شرمخان په کثرت سره وو﴿ قَالُوْا لَئِنْ اَكَلَهُ الذِّئْبُ ﴾ خامن د يعقوب ﷺ دده د قول جواب کوی خو د اولې خبری جواب ئې اونه کړو ځکه چې هغه د وجې د حسد او غصې د دوئ وو ، او د دويمې خبرې

جواب داکوی چه مونږ یو قوی جماعت یو اوپه صحرا کښې مال څروو . نو که مونږ شرمخان نه شو دفع کولې نومونږ به ډیر په خساره اوتاوان کښې یو ، او هر کله چې مونږ د مال (ګډو بیزونه) شرمخان دفع کولې شو نو دخپل کشر رور حفاظت به ولې نشو کولې . غرض دا چه دوئ یعقوب ﷺ مطمئن ه کړو او راضي ئې کړو دیوسف ﷺ په بوتلوصحرا ته . او یعقوب ﷺ داسې اونه ووئیل چه زماستاسو نه خطره ده ، ځکه چې د دینه د حسد او دشمنۍ زیاتیدلو ته خطره وه ، نوهر کله چه دوئ یوسف ﷺ صحرا ته روان کړو نو یعقوب ﷺ د دوئ نه وعده واخستله چه ده ته تکلیف اونه رسوئ ، اومشر ځوی ته ئ خصوصاً وصیت اوکړو چه دیوسف ﷺ دخوراك څښاك اونورو ضرورتونو خیال کوه، او واپس ئې زر راوله . یعقوب ﷺ دوئ سره بهر د یو ځائ پورې لاړو، دیعقوب ﷺپه مخکښې دوئ یوسف ﷺ په اوږه اغستې وؤ اوپه نمبر نمبر به ئ اخستلو، لیکن کله چه د یعقوب ﷺ د نظر نه غائب شو . د کوم رور په اوږه باندې چه وو نوهغه په زمکه باندې را اویشتلو، یوسف ﷺ پیدل روان شو . مګر د کم عمرئ په وجه نشو تلې ، نوبل رور ته به ئ فریاد اوکړو نوهغه هیڅ همدردی اونه کړه ، بیا ئ نورو رونړو ته فریاد اوکړو نو هغوئ ورته اووئیل چه هغه یوولس ستوری . اونمر او سپوږمئ چه تاته ئې سجده کوله هغوئ ته خپل فریاد اوکړه چه ستا مدد اوکړی . دَ دوئ د یوسف ﷺ د قتل کولو اراده وه خو د یهودا په زړه کښې الله ﷻ رحم واچولو نو د یوسف ﷺ د بچ کولو .عزم او همت ئې اوکړو ، او وې وئیل چه زه تر څو پورې ژوندی یم نو دوئ تاته تکلیف نشی رسولې اورونړو ته ئ اووئیل چه یوسف ﷺ پلار ته واپس کړئ. لیکن هغوئ په ډیر ضد کښې وو، او خبره ئې نه منله او د یوسف ﷺ د قتل اراده ئ وه ، یهودا یواځې د ټولو مقابله نشوه کولې نو آخر ئې دوئ په دې راضي کړل چه په کوهی کښې ئ واچوی . او د دې بیان په دې آیت کښې دې.

| فَلَمَّا ذَهَبُوا بِهِ وَأَجْمَعُوا أَنْ يَجْعَلُوهُ فِي غَيَابَتِ الْجُبِّ |
| --- |
| پس هرکله چه بوتلو دوئ هغه لره او پخه اراده ئ وکړه چه واچوی ده لره په ګمنام کوهی کښې نو وه ئ کړل هغه چه ئ کول |
| وَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِ لَتُنَبِّئَنَّهُمْ بِأَمْرِهِمْ هَٰذَا |
| او وحی وکړه مونږ ده ته چه خامخا به ته خبردار کړې دوئ لره (یوه ورځ) د دوئ په دې کار |

وَهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ۝ وَجَآءُوْٓا اَبَاهُمْ عِشَآءً يَّبْكُوْنَ ۝ قَالُوْا يٰٓاَبَانَآ

او دوئ به نه پيژني تا او راغلل دوئ پلار ته ما ښام په تياره کښې جړا ئ کوله دوئ وه ويل اې پلاره زمونږ

اِنَّا ذَهَبْنَا نَسْتَبِقُ وَتَرَكْنَا يُوْسُفَ عِنْدَ مَتَاعِنَا فَاَكَلَهُ الذِّئْبُ ۚ

بيشکه مونږ تلی وو صحرا ته منډې مو وهلې او پريښودلې مو وو يوسف خپل سامان سره پس وخوړلو ده لره شرمخ

وَمَآ اَنْتَ بِمُؤْمِنٍ لَّنَا وَلَوْ كُنَّا صٰدِقِيْنَ ۝ وَجَآءُوْ عَلٰى قَمِيْصِهٖ بِدَمٍ كَذِبٍ ۚ

او نه ئ ته يقين کونکې زمونږ په خبره اگر که مونږ رښتني يو او راوړو دوئ لګولې په قميص د ده وينه د دروغو

قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ اَنْفُسُكُمْ اَمْرًا ۚ فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ ۚ

وه ويل يعقوب (داسې هرګزنده) بلکه ښائسته کړيدې تا سو ته ستاسو نفسونو يو تدبير پس ځما کار صبر ښائسته دې

وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ ۝

او خاص د الله تعالى نه مدد غوښتلې شي په برداشت کولو د هغې خبرې چه تاسو ئ بيانوئ

﴿فَلَمَّا ذَهَبُوْا بِهٖ وَاَجْمَعُوْٓا﴾ جزا د شرط مقدرده (اى فعلوا به مافعلوا) بعض وائى چه ﴿وَاَوْحَيْنَآ﴾ جزا د شرط ده ، او واو زائد دې او ضمير دَ (اِلَيْهِ) راجع دې يوسف عليه السلام ته . او مراد دَ دې وحى نه په نزد د بعضو . لکه حسن بصرى ، وغيره شو ، وحى دنبوت ده ، او عام عادت الهى دا دې ، چه نبوت په څلويښتم کال باندې ورکوى ، ليکن بعض انبياؤ ته وحى د نبوت قبل دبلوغ نه شوې ده ، لکه يحيى عليه السلام اوعيسٰى عليه السلام ته نو يوسف عليه السلام ته وحى د دې قبيلى نه ده . او اکثر مفسرين وائى چه دا وحى د نبوت نه ده ځکه چې وحې د نبوت ورته په مصر کښې د بلوغ نه روستو شويده، لکه روستو آيت کښې دى (ولما بلغ اشده اتينه حکما وعلمًا) ، حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائى چه مصر ته درسيدلو نه بعد الله ﷻ يوسف عليه السلام په ذريعه د وحى سره ددې نه منع کړې وو چه خپل حال کور ته اوليږى ، نو د دې وجې نه ئ يعقوب عليه السلام ته خپل حال احوال نه ليږلو ﴿لَتُنَبِّئَنَّهُمْ بِاَمْرِهِمْ هٰذَا﴾ يعنى يو وقت به داسې راشى چه ته به دوئ خبر دار کړې ددوئ په دې غلط کار باندې نو دوئ به شرمنده شى ﴿وَهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ﴾ تابه دوئ نه پيژنى ځکه چه ته به شاهى لباس کښې ئ ، دا يوسف عليه السلام ته الله ﷻ تسلى ورکړه . او مفسرينو ويلى دى چه

دوئ يوسف ﷺ په دی طريقی سره کوهی ته غورزولې وو چه يوسف ﷺ د کوهی د بوقی والا رسئ اونيوله نوچه د کوهی ويخ طرف ته روان شو .او چه نيمی ته اورسيدو نو دوئ رسئ کټ کړه ليکن الله ﷻ ديوسف ﷺ حفاظت اوکړو په کوهی کښ د غورزيدلونه پری زخم رانغې ، ددې نه علاوه مفسرينو زړه سيزلو والا واقعات ذکر کړی دی ليکن د صحت دپاره قوی روايت نشته ، او قرآن پاك صرف هغه خبره ذکر کوی چه دهغې سره اهم مقصد عبرت متعلق وی ، صرف د رقت قلبی دپاره قصه نه ذکر کيږی ، نو د دې وجې نه دغه واقعاتوته قرآن تعارض نه دې کړی اومختصر مقصد ئی ذکر کړې دې چه دوئ يوسف ﷺ په کوهی کښ واچولو ، او الله ﷻ ورته تسلی ورکړه چه غم مه کوه ، زه به تا د کوهی نه راؤباسم او منصب د بادشاهی ته به دې رسوم . **شعر**:

**يوسف گم گشته باز آيد بکنعان غم مخور کلبهٔ احزان شود روزي گلستان غم مخور**

مفسرينو داهم ويلی دی چې يوسف ﷺ په کوهی کښ درې ورځې تيرې کړې او نبی ﷺ په غار ثور کښ هم درې ورځې تيرې کړې وې ﴿وَجَآءُوٓ أَبَاهُمۡ عِشَآءٗ يَبۡكُونَ﴾ يوسف ئی چه په کومه ورځ په کوهی کښ اچولې وو، نو دوئ په هغه ورځ دَ صحراء نه ماښام ناوخته کور ته راغلل د نورو ورځوپه نسبت ډير ليټ شول يو د دې وجې نه چه د دروغو او د مکر د ژړا پته اونلږی بل د دې دپاره چه پلار ته معلومه شی چه دوئ د حادثی د وجې نه ناوخته کړې ده ، علماء وائی چه ژړا دليل د صداقت نه دې لکه روايت دې چه شريح ﷫ قاضی ته يوه ښځه راغله او ژړل ئی نو امام شعبی ﷫ ورته اووئيل چه اې ابو اميه (شريح) ! ته نه گورې چه دا زنانه ژاړی ، نوشريح اووئيل چه رونړو د يوسف ﷺ خو هم ژړل حالانکه ظالمان وو، ژړا کله د مکر د وجې نه وی اوکله د بزدلئ د وجې نه وی او کله د تکليف او درد د وجې نه وی ،اوکله د غم او حزن د وجې نه وی ، اوکله د ډيرې خوشئ د وجې نه وی ، او کله د خشيت اوخوف الهی د وجې نه وی اوکله د رحمت اوشوق د وجې نه وی ، حضرت شيخ ﷫ به فرمائل چه کومو خلقو ماتم اوژړا کوله په حقيقت کښ هم دغه ظالمان او مجرمان وو چه په دې امت کښ د هغې واضحه نمونه شيعه گان دی (لعنهم الله) .

﴿ قَالُواْ يَٰٓأَبَانَآ إِنَّا ذَهَبۡنَا نَسۡتَبِقُ ﴾ په بعضو رواياتو کښ دی (کما فی الروح والکشاف) چه يعقوب ﷺ هر کله د دوئ د ژړا آواز واريدو نو پريشانه شو ، تپوس ئی اوکړو چه آيا ستاسو گډې بيزې شرمخانو اوخوړې ، نو دوئ اووئيل چه نه، نواوئی وئيل چه تاسو ولې ژړا کوئ.

او یوسف ﷺ څه شو ، نو د دروغو عذر ئ بیان کړو چه مونږ په صحراء کښ د یو بل نه په منډو وهلو کښ مخکښ کیدلو او یوسف ﷺ مو سامان سره پریخې وو. او چه زمونږ نظر لګ شان بل طرف ته شو نو شرمخ راغی او یوسف ﷺ ئی اوخوړلو .﴿نَسْتَبِقُ﴾ دلالت کوی په جواز د استباق باندې اوپه حدیث کښ استباق په اسونو او اوښانو او پیاده او په غشو ویشتلو کښ راغلې دې. دلته د استباق نه مراد دیو بل نه مخکښ کیدل دی، په تیزه منډه وهلو کښ ﴿عِندَ مَتَٰعِنَا﴾ په وخت د لوبو کولو او استباق کښ زیاتی کېږې اویستلې شی او په یو ځائ کښ کیخودې شی نودغه متاع دې ﴿وَمَآ أَنتَ بِمُؤْمِنٍ لَّنَا﴾ یعنی ستاسو د یوسف ﷺ سره محبت دومره ډېر زیات دې چه ته د فرط محبت د وجې نه په مونږ یقین نه کوې اګر که مونږ ستا په نزد ریشتنی او معتمد یو، نوپه داسې حال کښ به زمونږ تصدیق څنګه اوکړې چه په مونږ بدګمانه ئی او اعتماد راباندې نه کوې﴿وَجَآءُو عَلَىٰ قَمِيصِهِۦ بِدَمٍ كَذِبٍ﴾ دوئ د خپل جرم د پټولو دپاره دا طریقه اختیار کړه چه یو حیوان سخله یا ظبی (هوسئ) ئی ذبح کړو. او د یوسف ﷺ په قمیص باندې ئی هغه وینه اولګوله ، دوئ چی کله یوسف ﷺ کوهی ته غرزولو نو قمیص ئی ترینه ویستلې وو، نود وینې رنګین قمیص ئی یعقوب ﷺ ته راوړو نو یعقوب ﷺ دغه قمیص په مخ باندې واچولو او ویژړل اووې فرمایل چه ما تراوسه پورې داسې هوښیار شرمخ نه دې لیدلې چه یوسف ﷺ ئی اوخوړلو او قمیص ئی ورله ندې څیرې کړې ، ضرب المثل دی ، چه (دروغ گو را حافظه نه باشد) ویلې شوی دی چه په قمیص د یوسف ﷺ کښ درې نښانې او فائدې وې، یوه دا چه دا دلیل وو دپاره د یعقوب ﷺ په کذب د ځامنو ، دویم دا چه کله یعقوب ﷺ په مخ باندې واچولو نو (فارتد بصیرا)، دریم داچه دا دلیل دې په برائت د یوسف ﷺ چه د شا طرف نه څیرې وو﴿بِدَمٍ كَذِبٍ﴾ كَذِبٍ په معنی د ذی کذب سره دې یا په معنی د مکذوب فیه سره دې یاتوصیف مبالغه ده ﴿قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ﴾ یعنی یعقوب ﷺ اوفرمائل چه خبره دغه شان نده چه تاسو وائی ، بلکه ستاسو نفسونو تاسو ته ئی یو منکر امر او بده خبره خائسته کړې ده او اسانه کړی ده ، نوتاسو هغه اوکړو، یعقوب ﷺ ته دځامنو دروغ خو یو د قمیص نه معلوم شو اوبل د دې نه چه یعقوب ﷺ ته د هغوئ حسد معلوم وو. او بل د دې نه چه دیوسف خوب صحیح خوب وؤ او یعقوب ﷺ ئی تعبیر د وحی په ذریعې سره کړې دې . نو معلومه شوه چه یوسف ﷺ ژوندې دې او خپل عالی رتبه او مقام ته به رسی.

﴿فَصَبۡرٌ جَمِيلٌ﴾ دلته يا مبتدا مقدره ده (اى فصبرى صبر جميل) يا خبر مقدر دي (اى فصبر جميل عندى) او صبر جميل هغه دي چه په هغې كښې شكوه نه وى مخلوق ته . اوكه څوك داسوال اوكړى چه صبر په قضا او تقدير باندې خو واجب دې ليكن صبر په ظلم د ظالمانو باندې خو واجب نه دي بلكه واجب ازاله د ظلم ده . خصوصاً په هغه ضرر كښې چه عائدوى غير ته . نو ولې يعقوب ﷺ صبر اختيار كړوپه دې كښې . او ديوسف ﷺ تفتيش او تحقيق ئ اونه كړو . جواب دادې چه كيدې شى چه يعقوب ﷺ منع كړې شوې وى . د طلب او تفتيش د يوسف ﷺ نه په وحى سره ، د دې دپاره چه زيات تكليف او مصيبت پرې راشى او اجر او درجه ئى زياته شى ، او فى الحال په تفتيش كښې څه فائده نشته . او په انتقامى تدبير كښې دا احتمال وو چه رونړه د يوسف ﷺ زيات په ضد كښې راشى او د زيات جرم ارتكاب اوكړى . او اخروى نقصان ورته زيات اورسى ، نو په انتقامى تدبير كښې هم فايده نه وه . د دې وجې نه ئى سكوت اوكړو ، او تفويض د امر ئى الله ﷻ ته اوكړو ﴿وَٱللَّهُ ٱلۡمُسۡتَعَانُ عَلَىٰ مَا تَصِفُونَ﴾ يعنى تاسو چه ماته كوم خبر راكړو نو دا قابل د برداشت نه دې ، خو د الله ﷻ نه به مدد غواړم په برداشت كولو د هغه خبرې چه تاسو ئى بيانوئ ، په دې كښې د شرك فى الاستعانت نفى ده . او ددې خبرې تعليم دې چه د مصيبت او د پريشانئ په وخت كښې توجه الله ﷻ ته پكار ده .هغه دهر څه مالك او د هر مصيبت دفع كونكې دې .

| دَلۡوَهُۥۖ | فَأَدۡلَىٰ | وَارِدَهُمۡ | فَأَرۡسَلُوا۟ | سَيَّارَةٌ | وَجَآءَتۡ |
|---|---|---|---|---|---|

او راغله يوه قافله [1] د مسافرو نو هغوئ وليږلو خپل مشكى (اوبو راوړونكې) پس زوړنده كړه هغه خپله بوقه په كوهى كښې

| بِضَٰعَةًۚ | وَأَسَرُّوهُ | غُلَٰمٌۚ | هَٰذَا | يَٰبُشۡرَىٰ | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|

وې ويل : اې خما خوشحالئ ! دا خو دير ښائسته هلك دې او پټ ئ وساتلو ده لره د سامان تجارت په خيال

| مَعۡدُودَةٍ | دَرَٰهِمَ | بَخۡسٍ | بِثَمَنٍۭ | وَشَرَوۡهُ | يَعۡمَلُونَ ۝ | بِمَا | عَلِيمُۢ | وَٱللَّهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

او الله تعالى ښه پوهه وو د دوئ په عملونو . اوخرڅ كړو دوئ هغه لره په قيمت ناكاره باندې . روپئ لږې د شمارولې

---

۱ - دريم حال .

وَ كَانُوْا فِيْهِ مِنَ الزَّاهِدِيْنَ ﴿۲۰﴾

او دوئ وؤ به هغه کښ بې رغبته

﴿ وَجَآءَتْ سَيَّارَةٌ ﴾ دا د قصې دویم حال دې . هر کله چه الله ﷻ دیوسف ﷺ د نجات اراده اوکړه .نو یوه قافله چه مدین نه مصر ته تله ، او لار ئې غلطه کړې وه نو په دې کوهي باندې راغلل چه په کښې یوسف ﷺ وو . نو یو کس چه دهغه نوم مالك ابن ذعر یا دُعر وو . د اُوبو د اوړلو دپاره ئې اولیږلو ﴿ فَأَرْسَلُوْا وَارِدَهُمْ ﴾ وارد هغه چاته وائی چه د ملګرو دپاره د ابو راؤړلو بندوبست کوی . (مشکی) ﴿ فَأَدْلَىٰ ﴾ هغه خپله بوقه کوهي ته زوړنده کړه، یوسف ﷺ خووړوکې وو. نوپه بوقه کښې کیناسته او رسئ ئې کلکه اونیوله اوچه کله هغه بوقه راوچته کړه نوپه ځائ د اوبو په کښې یوسف ﷺ د خپل محیرالعقول جمال سره ظاهر شو. اوی وئیل ﴿ يٰبُشْرٰى ﴾ داندا په نزد دبعض باندې ملګرو ته ده یعنی یوسف ﷺ ئې د ځان سره روان کړو اوملګرو ته ئې ندا اوکړه .چه یا اصحابی! اې ملګرو زیری درکوم تاسو ته چه دا غلام دې .او بعض وائی چه (بشرٰی) د قافلې مشروو، هغه ته نداده .او اکثر مفسرین وائی چه بشری په معنی د بشارت (خوشحالئ) سره دې . او ندا مجازاً ده . په طریقې د استعاره مکنیه او تخییلیه سره . یعنی اې خوشخالئ راشه . دادې وخت دې ،که د یوسف ﷺپه موندلو رانشې . نو بیا به کله راځې . او بعض وائی چه دا کلمه مستعملیږی د اظهار د خوشئ دپاره . او ندا مقصود نه ده . لکه په یویلتی کښې محض اظهار د تحسر دې او ندانه ده مقصود ﴿ وَأَسَرُّوْهُ ﴾ ضمیر د (هُ) راجع دې یوسف ﷺ ته او ضمیر د (اسرو) یا راجع دې رونړو د یوسف ﷺ ته لکه د ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه (أَسَرَّه اِخْوَة یوسف) ، (قرطبی) هرکله چه قافلې والؤ یوسف ﷺ د کوهي نه را وه ویستلو او روان ئ کړو نو رونړه د یوسف ﷺ راغلل . دوئ ته ئ وه وئیل چه دا خو زمونږ غلام دې او تختیدلې دې. او یهودا یوسف ﷺ ته په عبرانئ کښې وه وئیل چه ته انکار مکوه. خما خطره ده چه که ته انکار وکړې نو دا رونړه به تا قتل کړی . نو یوسف ﷺ خپل حال پټ وساتلو . نو د قافلې مشر (مالك) وه وئیل چه د ده آثار اوعلامات خو د غلام نه دی . نو رونړو د یوسف ﷺ وه وئیل چه دا غلام دې خو زمونږ سره ئ تربیت شوې دې او زمونږ اخلاق او عادات ئ زده کړی دی، بیا مالك د دوئ نه په بیع د اخستلو مطالبه وکړه نو

دوئ راضی شول اوخرڅ ئ کړو. یا ضمیر د (اَسَرُّوا) راجع دې وارد او دهغه ملګرو ته یعنی دوئ پټ کړو یوسف علیه السلام لره د نورې قافلې نه د دې دپاره چه هغوئ د شرکت طلب اونه کړی. یا دامعنی چه دوئ پټ کړوامر دیوسف علیه السلام یعنی موندل د یوسف علیه السلام په کوهی کښې بلکه وې وئیل چه دا غلام دې. مونږ ته کوهی والؤ راکړې دې. چه مونږ ئی د هغوئ دپاره خرڅ کړو په مصر کښې ﴿بِضَٰعَةً﴾ منصوب دې بنا بر حالیت یعنی دوئ پټ کړو یوسف علیه السلام لره په داسې حال کښې چه دې سامان د تجارت (غلام) وو. او بعض وائی چه (اسروه) متضمن دې معنی د (جَعَلوه) لره. نو بضاعةً مفعول د (جعلوه) دپاره دې (ای اسروه جعلوه بضاعة یا بجعله بضاعة) او ابن حاجب رحمه الله وائی چه دا مفعول له دې. یعنی پټ ئ کړو یوسف علیه السلام دپاره د حاصلولو د مال د تجارت. اوبضاعة مشتق دې د بضع نه. په معنی د قطع سره. او مال تجارت ته بضع خکه وائی چه دا قطع شوې وی د مال نه. او ګرزولې شوې وی دپاره د تجارت ﴿وَشَرَوۡهُ بِثَمَنِۭ بَخۡسٖ﴾ شراء یا په معنی د اشترا یعنی اخستلو سره ده. او ضمیر د جمع راجع دې وارد او د هغه ملګرو ته. یعنی دوئ واخسته یوسف علیه السلام د رونړو نه. په ناقص او لګ قیمت سره. چه شل روپئ وې. نو (بخس) په معنی د (ناقص) یا د (حرام) سره دې. خکه په حُر باندې قیمت اخستل حرام دی. یا (شرئ) په معنی د بیع سره خرڅولو سره دې او ضمیر راجع دې رونړو د یوسف علیه السلام ته یعنی خرڅ کړو یوسف علیه السلام لره رونړو په لګ قیمت سره، یا په حرامو پیسو سره چه دشمار روپئ وې. په دغه زمانه کښې عادت دا وو چه ډیر قیمت به ئی په وزن سره ورکولو. اولګ قیمت به ئی په شمار سره ورکولو ﴿وَكَانُواْ فِيهِ مِنَ ٱلزَّٰهِدِينَ﴾ یعنی دوئ په باره د یوسف علیه السلام کښې بی رغبته وو. خکه چه دَ هغه قدر اومنزلة ورته معلوم نه وو. یا دوئ په ثمن کښې بی رغبته وو، خکه مقصود ئی ثمن حاصلول نه وو بلکه مقصود د دوئ لرې کول دیوسف علیه السلام وو. یاضمیر د (شروه) راجع دې قافلې والؤ ته. یعنی قافلې والؤ یوسف علیه السلام په لګ قیمت سره خرڅ کړو په مصر کښې. اوکه څوک سوال اوکړی چه یوسف علیه السلام خو په مصر کښې په ډیر زیات قیمت سره خرڅ شوې وو، نوجواب دادې چه قیمت اګر که فی نفسه زیات وو. لیکن د یوسف علیه السلام په مقابله کښې کم وو.

| |
|---|
| وَقَالَ الَّذِي اشْتَرَاهُ مِن مِّصْرَ لِامْرَأَتِهِ أَكْرِمِي مَثْوَاهُ |
| او وه ویل هغه سړي [1] چه وائ غستلو یوسف د مصر والو نه، خپلې ښځې ته ښائسته ساته ځائ د اوسیدلو د ده |
| عَسَىٰ أَن يَنفَعَنَا أَوْ نَتَّخِذَهُ وَلَدًا ۚ وَكَذَٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ |
| امید دي چه مونږ ته نفع راکړی . یا ئ د خوئ په شان ونیسو. او دغسې مونږ ځائ ورکړو یوسف ته په زمکه د مصر کښ |
| وَلِنُعَلِّمَهُ مِن تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ ۚ وَاللَّهُ غَالِبٌ عَلَىٰ أَمْرِهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ۝ |
| او چه وښایو مونږ ده نه علم د تعبیر د خوبونو. او الله تعالی غالب دي په خپلو کارونو لیکن اکثر خلق نه پوهیږي |
| وَلَمَّا بَلَغَ أَشُدَّهُ آتَيْنَاهُ حُكْمًا وَعِلْمًا ۚ وَكَذَٰلِكَ |
| اوهرکله چه دي ورسیدلو [2] ځوانئ ته او ورکړو مونږ ده ته قوت د فیصلو او علم د دین، او دغه شان |
| نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ۝ |
| بدله ورکوؤ مونږ ښائسته عمل کونکو ته |

﴿ وَقَالَ الَّذِي اشْتَرَاهُ ﴾ داخلورم حال دي، یوسف ﷺ چه مصر ته اورسیدلو نو قافلې والؤ خرڅ کړو . د قیمت په باره کښ مختلف روایتونه ذکر شوی دی. لیکن دغه ټول تاریخی روایات دی . یقینی قول په کښ نشته دې ، یو روایت په کښ دادې چه قافلی والو په ډیر کم قیمت باندې خرڅ کړو چه شل دیناره وو، یوه جوړه پیزار او دوه جوړې سپینی کپړې وې . او بل روایت دادې چه د سرو زرو او سپینو زرو او مشك اوعنبر او ریښمو هم وزن قیمت باندې خرڅ شوې وو. او کوم سړی چه اخستې وو، دهغه نوم قطفیر دې . په عزیز مصر سره مشهور وو. وزیر خزانه وو. د ملك د ټولو خزانو او مالیاتو انچارج وو. او بعض وائی چه فوج هم د ده په تصرف کښ وو. او بادشاه د مصر په دغه وخت کښ ریان بن ولید وو. چه د عمالقو د نسل نه وو. او په یوسف ﷺ باندی ئی ایمان راوړې وو. او یوسف ﷺ ئی وزیرجوړ کړې وو.او د یوسف ﷺ په ژوند کښ وفات شوې وؤ، اود ده د وفات نه بعدقابوس نومې سړې بادشاه

---

١ - خلورم حال .
٢ - پنځم حال

شوي وو. او يوسف ﷺ ورته دعوت د ايمان ورکړي وو. خو هغه ايمان نه وو راوړي ﴿مِن مِّصْرَ﴾ دا متعلق دې ده (اشتراه) سره ، او مِن په معنی د في يا د باء سره دي يا جار مجرور حال دي اى كائن من اهل مصر ﴿لِامْرَأَتِهِ﴾ دا متعلق دي د قال سره او د دې نوم راعيل وو. او لقب ئې زليخا وو ﴿أَكْرِمِي مَثْوَاهُ﴾ خائسته ساته ځاى د اوسيدو د ده . مكان، فراش . وغيره او دا كنايه ده د اكرا م د يوسف ﷺ نه په ابلغ طريقې سره ځكه چې ځوك د ځامكان او فراش وغيره خائسته ساتى نو په ټولو وجوهاتو سره ئې اكرام كوى . غرض دا چه يوسف ﷺ د غلامانو په شان مه ساته بلكه ډير په اكرام او اعزاز سره ئې ساته . او بعض وائى چه لفظ د (مثوٰى) زائد دي. مطلب دادي چه د ده اكرام او اعزاز كوه اوخيال ئې ساته ﴿عَسَىٰٓ أَن يَنفَعَنَآ﴾ يعنى زمونږ د ضروورياتو په پوره كولو كښې به زمونږ مدد كوى . كله چه تجربه ئې اوشى . او الله ﷻ ده ته لويه نفع په ذريعه د يوسف ﷺ سره دا وركړه چه ايمان ئې راوړو ﴿أَوْ نَتَّخِذَهُۥ وَلَدًا﴾ د دوئ اولاد نه وو نو وې ويل چه دې به مونږ خپل ځوئ اوګرځوو. امام حاكم رحمه الله په واسطه د سعيد ابن منصور سره د عبدالله ابن مسعود ﷺ نه روايت كړي دي . چه افرس الناس ثلثلة، يعنى دري كسان ډير لوئ فراست والا وو. يو عزيز مصر ، چه د يوسف ﷺ په باره كښې ئې اويل ﴿عَسَىٰٓ أَن يَنفَعَنَآ﴾ دويم : د شعيب ﷺ لور چه پلار ته ئې ﴿يَٰٓأَبَتِ ٱسْتَـْٔجِرْهُ إِنَّ خَيْرَ مَنِ ٱسْتَـْٔجَرْتَ ٱلْقَوِىُّ ٱلْأَمِينُ﴾ ويلى وو. دريم ، حضرت ابو بكر ﷺ كله چه ئې حضرت عمر ﷺ خليفه جوړ كړو ﴿وَكَذَٰلِكَ﴾ هم دغه شان يعنى لكه څه رنګه چې مونږ يوسف ﷺ د كوهى نه اوويستلو نو دغه شان ﴿مَكَّنَّا لِيُوسُفَ﴾ ځاى او قوت اومرتبه وركړه مونږ يوسف ﷺ ته په زمكه د مصر كښې (مكنا) په معنى د (جعلنا له مكانا) سره دي . او د مكان نه مراد مكانة يعنى منزله او مرتبه ده ، او متعارف مكان نه دي مراد ، مقصود دادي چه د يوسف ﷺ تمام مصائب او تكاليف په حقيقت كښې منزل مقصود او دَ عزت مقام ته د رسيدلو دپاره ذريعه او پورئ وي ، رونړه اګر كه د ده د ذليل كيدو كوشش كولو ، ليكن الله ﷻ ورته عزت وركړو ﴿وَلِنُعَلِّمَهُۥ﴾ واو زائد دي يامعطوف عليه مقدر دي . اى لنكرمه ولنعلمه ﴿وَٱللَّهُ غَالِبٌ عَلَىٰٓ أَمْرِهِۦ﴾ ضمير د «امره» راجع دي الله ﷻ ته او د امر نه مراد ټول امور دى، چه الله ﷻ ئې اراده كوى .

يعنى الله ﷻ چه دكوم كار اراده كړى وى . څوك ئې نشى منع كولې. نو د يوسف ؑ د عزت اراده الله ﷻ كړې وه . نو چامنع نه كړو . او قرطبى وائى چه ضمير راجع دې يوسف ؑ ته او دامرنه مراد تمكين دې په زمكه كښې اگركه رونړوذليل كولو .ليكن الله ﷻ ورله عزت وركړو

﴿ وَلَمَّا بَلَغَ أَشُدَّهُۥ ﴾ دا پنځم حال دې . متعلق دې د امراءة العزيز سره او په دې كښې د يوسف ؑ د طهارت او تقوى ذكر دې . (اشُد) انتها د زمانې ده قوت جسمانى ته وائى چه د ديرشو كلونو نه د څلوېښتو كلونو پورې ده . او د ابن عباس ؓ نه مروى دى چه دلته ترينه مراد درې ديرش كلونه دى . او دا قول قوى دې ﴿ حُكۡمٗا وَعِلۡمٗاۚ ﴾ د حكم نه مراد نبوت دې . او دعلم نه مراد شريعت دې . دا قول د ابن عباس رضى الله عنه دې . اومجاهد ؒ ويلى دى چه د حكم نه مراد عقل او فهم دې او د علم نه مراد نبوت دې ﴿ وَكَذَٰلِكَ نَجۡزِي ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴾ كه د حكم نه مرا د يا د علم نه مراد نبوت شى نو د محسنين نه مراد انبياء دى ، او د جزا نه مراد د هلاكت نه بچ كول او اعلى مقام د عزت او فلاح ته رسول دى . يعنى څه رنګه چه مونږ يوسف ؑ دهلاكت نه بچ كړو او اعلى مقام د عزت ته مو ورسولو ،نو دغه شان معامله د ټولو انبياوٴ سره ده . او دا مطلب نه دې چه محسنينو ته د احسان په بدله كښې نبوت وركولې شى. ځكه چه نبوت كسبى شې نه دې چه د احسان په بدله كښې ملاو شى ، او كه د حكم او علم نه مراد نبوت نه وى نو بيا مطلب دادې چه څوك احسان كونكې وى او تقوى كونكى وې نو الله ﷻ به ورته حكم او علم وركړى. يعنى فهم د دين او علم د دين . لكه د حسن بصرى نه روايت دې ، من احسن عبادة ربه فى شبيبته اعطاه الله الحكمة فى اكتهاله .يعنى څوك چې په ځوانئ كښې د الله ﷻ عبادت په ښه طريقه سره كوى نو الله ﷻ به ورته په زمانه د كهولت كښې حكمت (د دين صحيح پوهه) وركوى

| وَرَاوَدَتۡهُ | ٱلَّتِي | هُوَ | فِي | بَيۡتِهَا | عَن | نَّفۡسِهِۦ | وَغَلَّقَتِ | ٱلۡأَبۡوَٰبَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

او مطالبه وكړه د ده نه هغې ښځې چه دې د هغې په كور كښې وو د ده د نفس په باره كښې او بند ئې كړې ټولې دروازې

| وَقَالَتۡ | هَيۡتَ | لَكَۚ | قَالَ | مَعَاذَ | ٱللَّهِۖ | إِنَّهُۥ | رَبِّيٓ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

او وې ويل دلته راشه تا ته وايم، وه ويل يوسف پناه نيسم په الله تعالى سره . بيشكه هغه ځما پالنه كوى

أَحْسَنَ مَثْوَايَ ۖ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ ۝ وَلَقَدْ هَمَّتْ

ښائسته کړي ئ دي ځائ د اوسېدلو ځما . بیشکه نشي کامیابېدي ظالمان او خامخا په تحقیق سره هغې ښځه اراده کړې وه

بِهِ ۖ وَهَمَّ بِهَا لَوْلَا أَن رَّأَىٰ بُرْهَانَ رَبِّهِ ۚ كَذَٰلِكَ

د یوسف. او اراده به کړې وې هغه د دې کچرې نه ئ وې لیدلې دلیل د رب د طرف نه. دغسې مونږ اوسانه دده لره

لِنَصْرِفَ عَنْهُ السُّوءَ وَالْفَحْشَاءَ ۚ إِنَّهُ مِنْ عِبَادِنَا الْمُخْلَصِينَ ۝

د دې لپاره چه واړوو د ده نه بد کار او بې حیائي. بیشکه دې زمونږ د بندګانو مخلصینو نه وو

﴿وَرَاوَدَتْهُ الَّتِي﴾ (راود) باب مفاعله دې په اصل کښې په معنی د جآء وذهب لطلب شئ ، سره دې . اومراد ترینه ، التحمل لمواقعته ایاها، په چل ول او تګئ سره ځان ته مائل کول دی. او مفاعله کله د طرف واحد نه وی. کله چه د یو طرف نه فعل وی اود بل طرف نه سبب د فعل وی لکه مداواة الطبیب، مطالبة الدائن ، مماطلة المدیون نو سبب د فعل قایم دې په مقام دفعل باندې نو دلته د یو طرف نه طلب وو، او د بل طرف نه سبب د هغې وو. چه حسن او جمال د یوسف ﷺ دی . مطلب دادې چه دې خزې په چل ول او تګئ سره د یوسف ﷺ ځان ته . د مائل کولو کوشش اوکړو لکه بعض مفسرینو ویلی دی چه هغې خزې دیوسف ﷺ دویختو صفت شروع کړو چه دا ډیر ښکلی دی، نو یوسف ﷺ اویل چه په مرګ سره به دا دانسان نه اول اودوریږی . بیا ئې ورله د سترګو صفت کول شروع کړل . نو یوسف ﷺ اووئیل چه د مرګ نه پس په قبر کښې به دا اول په مخ رابهیږی . بیا ئې ورله دمخ صفت شروع کړو چه دا ډیر خایسته دې نو یوسف ﷺ اووئیل چه داهم د خاؤرو دپاره دې . غرض دا چه په دې چل ول سره ئې یوسف ﷺ خپل ځان ته د مائل کولو کوشش کولو﴿وَغَلَّقَتِ الْأَبْوَابَ﴾ تشدید په (غَلَّقَتْ) کښې د تکثیر دپاره هم کیدې شی ، ځکه چې دروازې ډیرې وې ، لکه روایت دې چه اووه دروازې وې، او د مبالغې دپاره هم کیدې شی. یعنی ټولې دروابې ئې مضبوطې بندې کړې وې هرکله چه یوسف ﷺ په دې اشاراتو او کنایاتو سره د هغې طرف ته مایل نه شو . نو صریحی حکم ئې اوکړو چه ﴿وَقَالَتْ هَيْتَ لَكَ﴾ (هیت) اسم فعل دې په معنی د اسرع یا تعال سره . یعنی زما څنګ ته زر په جلدئ راشه ﴿لَكَ﴾ تاته وایم صراحةً ځکه چې ته په کنایاتو

پوه نشوي . لام د بيان دپاره دي . اودا زور دار الفاظ د تاكيد دپاره دى . په امتثال د امر كښې ﴿قَالَ مَعَاذَ اللَّهِ﴾ دامفعول مطلق دي . په اصل كښې اعوذبالله معاذًا دي .يعنى پناه نيسم په الله سره . پناه نيسل . يعنى د كوم كار چه ته خواهش لري دا ډير قبيح دي . څه په الله ﷻ سره د دي نه پناه غوارم . نو په دي كښې يو سبب د اجتناب ته اشاره ده ﴿إِنَّهُ رَبِّي﴾ پدي كښې بل سبب ته اشاره ده چه د محسن په كور كښې خيانت كول ډير قبيح كار دي . ضمير د (انه) ضمير شان دي اسم د انّ دي . او ﴿رَبِّي أَحْسَنَ مَثْوَايَ﴾ جمله خبر د انّ دي .او د رب نه مراد الله ﷻ دى . يعنى د الله ﷻ نافرمانى نه شم كولي . ياترينه مراد سيد يعنى عزيز مصر دي. يا ضمير د (انه) راجع دي زوج ته . او رب په معنى د مربى اوسيّد سره دي . يعنى دا ستا خاوند زما مربى دي . چه زما د اوسيدلو ځائ ئى ښائسته كړي دي . دهغه داحسان بدله په خيانت سره وركول ډير قبيح عمل دي . اوبعض وائى چه ضمير راجع دي الله ﷻ ته او (ربّى) ورله خبر دي او (احسن مثواى) دويم خبردي

په دي آيت كښې اطلاق د رب په غير دالله ﷻ باندي شويدي . او په حديث د مسلم كښې دى چه غلام دي خپل مولى ته رب نه وائى اومولى دي خپل غلام ته بنده نه وائى . او بعض علماء وائى چه دا ممانعت په شريعت محمدى ﷺ كښې دي ځكه چي په شريعت محمدى ﷺ كښې د شرك نه هم ممانعت دي . او د هغه اشياؤنه هم ممانعت راغلي دي . چه ذرايع د شرك ياموهم د شرك وى . او په مخكنى شرائعو كښې خو د شرك نه په سختى سره منع راغلي ده . ليكن په اسبابو او ذرائعو باندي پابندى نه وه .او بعض علماء وائى چه اطلاق د رب په غيرالله باندي ناجائز دي په هغه وخت كښې چه مطلق وى . يا ئى اضافت عامه شوي وى . لكه رب العالمين او رب الناس . چه اضافت خاصه ئى شوي وى . لكه رب الدار . رب الثوب .وغيره . نو بيا ئى اطلاق په غيرالله باندي جائز دي .

﴿وَلَقَدْ هَمَّتْ بِهِ﴾ لام موطئه للقسم دي او (قد) د تحقيق دپاره دي ﴿وَهَمَّ بِهَا لَوْلَا أَن رَّأَىٰ بُرْهَانَ رَبِّهِ﴾ په دي كښې دوه توجيهات دى : اول په (وَهَمَّ بِهَا) كښې تعليقى حكم دي . يعنى (وَهَمَّ بِهَا) جزاء مقدمه ده او ﴿لَوْلَا أَن رَّأَىٰ﴾ شرط موخر دي . يعنى يوسف عليه السلام به قصد او هَمْ كړي وى كه چري برهان د رب ئى نه وي ليدلي. ليكن په دي دا اعتراض واردیږی چه تقديم دجزا په شرط باندي جائزنه دي . ليكن دا خبره متفق عليه نده . نحاة بصرينو اوبعض

کوفینو د جواز قول کړي دي، او بعض د عدم جواز قول کړي دي . لیکن بهتره داده چه جزاء د شرط دپاره محذوفه شی ،اوماقبل مذکور په هغه محذوف دلیل دي، او تقدیر د عبارت دادي چه (لولاء ان رءا برهان ربه لهم بها) که چرې یوسف ﷺ برهان د خپل رب نه وي لیدلې نو م او اراده به ئی کړې وي، لیکن برهان د رب ئی اولیدلو . نوهم ئی ندي اودا توجیه په نزد د محققینولکه امام رازی وغیره شو غوره ده ځکه په دي کښ د یوسف ﷺ کمال براءت اوکمال مدح ده ، نو اراده اوخیال دګناه ئی په زړه کښ ندي راغلي . او د دي تائید د مابعد نه معلومیږی ﴿كَذَٰلِكَ لِنَصْرِفَ عَنْهُ السُّوءَ وَالْفَحْشَاءَ﴾ ځکه دَ دینه نه معلومیږی چه سوء او فحشاء دیوسف ﷺ نه اړولي شوی دی اوده ته نزدي ندي راغلی، دویم ﴿وَلَقَدْ هَمَّتْ بِهِ وَهَمَّ بِهَا﴾ جدا جمله ده ، او ﴿لَوْلَا أَن رَّأَىٰ﴾ جدا جمله ده ، چه جزاورله مقدره ده چه (لَفَعَلَ مَاهَمَّ بِهَا) دي .او په (هم بها) کښ حکم تعلیقی نه دي او معنی ئی داده چه زلیخې قصد کړې وو. د یوسف ﷺ او یوسف ﷺ هم قصد کړي وو د زلیخې چه چرته برهان درب ئی نه وي لیدلې نو هغه کار به ئی کړي وي . چه د هغې قصد ئی کړې وو، نوپه دي توجیه باندې دا **سوال** واردیږی چه دامنافی دي د عصمت د انبیاؤ سره چه قصد اوکړی د ناجایز فعل . **جواب** دادي چه (هم) دوه قسمه دي یو قسم هم ثابت دي هغه په معنی د عزم او قصد اختیاری سره دي . نو دا قسم (هم) د زلیخا وو، په دلیل د ماقبل سره چه ذکر د (راودته) دي.او د ((غلقت الابواب)) او د ((قالت هیت لك)) او په دلیل د دي سره چه لام موطئه للقسم دي او (قد) ذکر شوي دي . او دویم قسم هم عارض، هغه دادي چه په زړه کښ بې اختیاره د ګناه وسوسه راشی یا طبعی غیر اختیاری میلان یوځیز ته راشی لکه د تګی سړی میلان اوبوته او دا دویم قسم هله معصیت اومنافی دعصمت سره دي چه عمل پرې اوکړی. اوچه عمل پرې اونه کړی نو دا ګناه نه ده . ځکه دا غیر اختیاری شې دي . بلکه دا موجب دمزید اجر دي ، د روژه دار چه په ګرمی کښ اوبو ته شوق کیږی اونه ئی ځکی نو دا موجب د اجر دي او دارنګه نوجوانان چه په وقت دَ کمال دَ قوت شهوانیه کښ د حرام فعل نه اجتناب کوی نو دا موجب د مزید اجر دي، او دیوسف ﷺ هم داقسم (هم) وو، چه په درجه دوسوسه او طبعی میلان کښ دي او بعض وائی چه ﴿وَهَمَّ بِهَا﴾ کښ مفعول د (هم) مقدر دي او بها په معنی د منها سره دي تقدیر د عبارت دارنګې دي چه: وهم الفرار، الخلاص ، منها ﴿لَوْلَا أَن رَّأَىٰ بُرْهَانَ رَبِّهِ﴾ د برهان په باره کښ مختلف اقوال دی

. لکن به هغې کښې د يو قول د متعين کولو دپاره قطعي دليل نشته چه هم دغه مراد شي
نفيشا . د ابن عباس رضي الله عنه او مجاهد رحمه الله او سعيد ابن جبير رضي الله عنه محمد بن سيرين اوحسن بصري
رحمه الله نه مروي دي چه الله تعالى په طور د معجزې سره په دغه ځائ کښې د حضرت يعقوب عليه السلام
صورت په داسې طريقې سره حاضر کړو چه د لاسونو ګوتې ئې په غاښونو کښې نيولې وې.
اوبعض وائي . چه يوسف عليه السلام چت ته اوکتل نو دا آيت ئې پکښې ليکلې اوليدلو ﴿ وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَىٰٓ إِنَّهُۥ كَانَ فَـٰحِشَةً وَسَآءَ سَبِيلًا ﴾ او بعض مفسرينو ويلي دي چه د زليخا په مکان کښې بت
وو . هغې سرې پرده اچولې وه . نو يوسف عليه السلام ترې په دې باره کښې تپوس اوکړو نوهغې او
وئيل چه دا زما معبود دې . دده په حضور کښې ماته د ګناه نه حيا راځي، نويوسف عليه السلام
اوفرمايل چه زما معبود د دې نه زيات د حيا مستحق دې .او بعض مفسرينو ويلي دي . چه د
يوسف عليه السلام نبوت اوعلم د شريعت او معرفت الهي او د استحضار د الله تعالى دابرهان دې . او دا
قول زيات غوره دې ﴿ كَذَٰلِكَ ﴾ دا اشاره د تثبت او استقامت ده . يوسف عليه السلام ته چه دما قبل
نه فهميږي . اود دې نه روستو (ثبتناه) مقدر دې يعنې په مثل د دغه تثبت مونږ اوساته ده لره
﴿ لِنَصْرِفَ عَنْهُ ٱلسُّوٓءَ وَٱلْفَحْشَآءَ ﴾ ددې دپاره چه واړه وو مونږ د ده نه سوء اوفحشاء . د سوء نه
مراد خيانت دې يا مقدمات د زنا دي لکه قبله، لمس، نظر بشهوة او فحشاء نه مراد زنا ده .
دلته (لنصرف عنه) ذکر شوې دې . او (لنصرفه) ندې ويلې شوې .په دې کښې مبالغه ده په
براءت د يوسف عليه السلام کښې يوسف عليه السلام خو د نبوت په وجه د ګناه نه محفوظ اړولې شوې وو.
ليکن ګناه دې راګير کړو نو مونږ ترې نه د ګناه جال واړولو ﴿ إِنَّهُۥ مِنْ عِبَادِنَا ﴾ يعنې يوسف عليه السلام
دهغه بندګانو د زُمرې نه دې چه خالص کړې شوې وو. لکه ﴿ إِنَّآ أَخْلَصْنَـٰهُم بِخَالِصَةٍ ذِكْرَى ٱلدَّارِ ﴾
سورة ص آيت ۴٦. د مخلصينو حفاظت د شيطان د اغواء نه الله تعالى کوی . لکه ددې اقرار
شيطان په خپله کړې دی . ﴿ قَالَ فَبِعِزَّتِكَ لَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٨٢﴾ إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ ٱلْمُخْلَصِينَ ﴿٨٣﴾ ﴾

وَٱسْتَبَقَا ٱلْبَابَ وَقَدَّتْ قَمِيصَهُۥ مِن دُبُرٍ وَأَلْفَيَا سَيِّدَهَا

او دواړو منډه کړه دروازې ته او وشلوؤ دې ښځې قميص د هغه د شا طرف نه او بيا موند دواړو خاوند د دې ښځې

لَدَا ٱلْبَابِ ۚ قَالَتْ مَا جَزَآءُ مَنْ أَرَادَ بِأَهْلِكَ سُوٓءًا إِلَّآ أَن يُسْجَنَ

دروازې سره . وه ويل دې ښځې چه نده سزا د هغه چا چه غواړي ستا د کور والا سره بد کاري مګر دا چه قيد کړې شي

أَوْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۞ قَالَ هِيَ رَاوَدَتْنِي عَنْ نَفْسِي

یا عذاب دردناك وه ویل یوسف چه دې ښځې ما نه خواهش کړیدې چه ما غافل کړي د حفاظت د نفس خپل نه

وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِنْ أَهْلِهَا إِنْ كَانَ قَمِيصُهُ قُدَّ مِنْ قُبُلٍ فَصَدَقَتْ

او گواهي وکړه يو گواهي کونکي د اهل د دې ښځې. کچرې وي قميص د ده شليدلې د مخې طرف نه نو دا ښځه به رښتنې وي

وَهُوَ مِنَ الْكَاذِبِينَ ۞ وَإِنْ كَانَ قَمِيصُهُ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ فَكَذَبَتْ وَهُوَ مِنَ الصَّادِقِينَ ۞

او يوسف به دروغژن وي. او که وي قميص د ده شليدلې د شا طرف نه نو دا ښځه به دروغ واني او يوسف به رښتنې وي

﴿وَٱسۡتَبَقَا ٱلۡبَابَ﴾ يوسف ﷺ دخپل ځان د بچ کولو دپاره دروازې طرف ته منډه کړه نو زليخې ورپسې منډه کړه دنيولو دپاره. نويوسف ﷺ ئې لاس ته رانغې او قميص ئې اونيولو. يوسف ﷺ په قوت سره بهر ته منډه کړه نو د شاه طرف نه ئې ورله قميص اوشلولو. او اتفاقًا دغه ځائ کښې خاوند ددې يعني عزيز مصر ولاړوو. نوچه دا واقعه ئې اوليدله نو زليخې د خپل ځان نه دتهمت دفع کولو دپاره اولته په يوسف ﷺ باندې الزام اولگولو. چه ما په خپله کمره کښې ارام کولو او يوسف ﷺ په ما پسې د غلط خيال په نيت راغې نوده ته سزاورکول پکاردی .اوهغه سزا داچه قيد کړې شی ، زليخې يو دا جرم اوکړو چه په يوسف پسې ئې منډه کړه اوبل دا چه يوسف ﷺ ئې د قميص نه اونيوه .او يوسف ﷺ بهر طرف ته زور کولو د بچ کيدو دپاره زليخې روستو راخکلو نوقميص ئې اوشليدلو . او بل داچه په ده ئې بدنامي اولگوله ﴿سَيِّدَهَا﴾ يعني خاوند د دې ﴿لَدَا ٱلۡبَابِ﴾ باب ئې دلته مفرد ذکر کړو او مخکښې په (وغلّقت الابواب) کښې جمع ذکر شوې دې ځکه چې د خروج دپاره يوه دروازه هم کافي دهٔ . او د راگيرولو دپاره ټولې دروازې بندول ضروري دی. او په بعض تاريخي روايانو کښې دی چه دروازې ټولې تاله کړې شوې وې، او يوسف خپل مقدور کوشش اوکړو نو الله ﷻ ورته لار کولاؤ کړه . د بنده په ذمه باندې حتی المقدور کوشش ضروري دې .او نتيجه دالله ﷻ په اختيارکښې ده . زمونږ شيخ الهند ﷫ چه د انگريز په جيل کښې وو نو د جمعې په ورځ به ئې اودس اوکړو ځان به ئې تيار کړه دجمعې مونځ ته اود جيل دروازې پورې به راغی . او بيا به ئې دالله په دربار کښې دا سوال اوکړو چه ياالله د ازما وس او قدرت وو . نو اختيار ستا په لاس کښې دې. دالله ﷻ د رحمت نه څه بعيده نه وه چه د جيل دروازه ئې ورنه کرامهٔ

کولاؤکړې وي . ليکن الله دوئ ته د استقامت عالي مقام ورکړې وو. چه خپل عمل ئې نه پرېښودو . اودا دکرامت نه ډير اوچت مقام دې . نو د دې وجې نه به دوئ هره جمعه دغه عمل مسلسل کولو . او نتيجه به ئې په نظر نه راتله

﴿ قَالَ هِىَ رَٰوَدَتْنِى عَن نَّفْسِى ﴾ په ديکښې يوسف ﷺ خپله صفائي پيش کوي . او ددينه دامعلوميږی چه په چا باندې د دروغو تهمت اولګي نو د خان صفائي بيانول د انبياؤ سنت دی. نو يوسف ﷺ خپله صفائي پيش کړې وه، ويل ئې چه ددې خزې دعوه غلطه ده. بلکه حقيقت دادې چه هغې خما نه د غلط فعل مطالبه کړې وه .اوزه ترينه تختيدلې يم ﴿وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِّنْ أَهْلِهَآ﴾ دلته د شهادت نه مراد فيصله او حکم دې او مصطلحه معنى نده مراد او د شاهد په باره کښې دمفسرينو دوه قوله دی. يوقول دادې چه دا وړوکې بچی وو. د زليخې ابن الخال وو. يعنى د ماما خوئ ئې وو، او عمرئې درې مياشتې وو، الله ﷻ ګويا کړو، په براءت ديوسف ﷺ نو اول خو د ماشوم بچي خبرې کول په حق د يوسف کښې يوه معجزه شوه ديوسف ﷺ دپاره .او دا مناسبه ده دپاره د اظهار د براءت دنبي ، او بل دا چه داګواهي نهايت حکيمانه اوعاقلانه انداز کښې وه ، ابن الجرير اوابن الکثير وغيره ډيرومفسرينودا قول غوره کړې دې . او په مسند احمد ، صحيح ابن الحبان ، اوامام حاکم په مستدرک کښې دَ دې روايت دَ ابن عباس ﷺ نه کړې دې او امام حاکم په روايت دَ ابوهريره ﷺ هم نه نقل کړې دې . او صحيح على الشرط الشيخين ئې ورته ويليدې ، اودويم قول دادې چه داشاهد د زليخې ابن العم . يعنى د تره خوئ وو . او حکيم، دانا، ذی رائې سړې وو، چه دعزيز مصر سره به وو. اود هغه مشيروو. نو ده د دواړو فريقينوپه مينځ کښې حکيمانه اندازکښې دفيصله کولوطريقه اوخودله چه په علامې سره فيصله دې اوشي. داحنافو په نزد په يو مقدمه کښې صرف په دې علامې سره قطعي فيصله خونشي کيدې، البته مؤيد کيدې شي، اوچه شهادت نه وی نوحاکم په علامې اوقرينې سره فيصله کولې شي لکه په هدايه کښې د دې ډيرنظائر موجود دی ﴿إِن كَانَ قَمِيصُهُۥ قُدَّ مِن قُبُلٍ﴾ يعنى که قميص دمخکښې طرف نه څيرې وی، نوبيابه داخزه ريشتينې وی ځکه چې دې به خپله دفاع کوله اوکه شا طرف نه څيرې وی ، نويوسف ﷺ به ريشتينې وی ځکه چې دې به تختيدلو او خزی به د شا طرف نه نيولې وی

فَلَمَّا رَا قَمِيصَهٗ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ قَالَ اِنَّهٗ مِنْ كَيْدِكُنَّ ۭ اِنَّ كَيْدَكُنَّ عَظِيْمٌ ۝

پس هر کله چه ده (عزیزمصر) ولید قمیص د ده شلیدلې د شا طرف نه وې ویل چه دا د مکر ستاسو نه دې بیشکه د زنانو مکر لوئ وی

يُوْسُفُ اَعْرِضْ عَنْ هٰذَا ٚ وَاسْتَغْفِرِيْ لِذَنْۢبِكِ ښ اِنَّكِ كُنْتِ مِنَ الْخٰطِـــِٕيْنَ ۝

اې یوسفه! مخ واړوه د خوږولو د دې خبرې نه، او اې ښځې معافي وغواړه خما نه د دې جرم خپل بیشکه ته ئې د خطا کارو نه

﴿ فَلَمَّا رَءَا قَمِيصَهُۥ ﴾ هر کله چه قمیص ئی ولیدلو چه د شاطرف نه څیرې دې. نو عزیز فیصله اوکړه چه ﴿إِنَّهُۥ﴾ ضمیر دې مذکور ما جرٰی ته راجع دې یعنی د ما جرٰی عمل او دا قول چه ﴿مَا جَزَآءُ مَنْ أَرَادَ بِأَهْلِكَ سُوٓءًا إِلَّآ أَن يُسْجَنَ أَوْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ داستاسو مکر دې چه غلط کار دې په خپله کړې دې او منسوب کوې ئی یوسف ؑ ته ﴿إِنَّ كَيْدَكُنَّ عَظِيمٌ﴾ دبنی ﷺ ارشاد دې د خزو په حق کښې چه (مارایت ناقصات عقل ودین اذهب للب الرجل الحازم من احدٰکن) یعنی تاسو په عقل اودین کښې د ناقص کیدونه علاوه دهوښیار سړی عقل خرابونکې یئ اوعقل مند سړې په چکر کښې اچوئ اګر که په خپله ناقص العقل یئ . او بعض علماؤ ویلی دی چه زه د خزو د مکر نه زیات خوف کوم دشیطان د مکر نه . ځکه چې الله ﷻ فرمائی چه (ان کید الشیطٰن کان ضعیفا) او د خزو په باره کښې الله فرمائی چه ﴿إِنَّ كَيْدَكُنَّ عَظِيمٌ﴾ مقصود دادې چه سړی ته د مکر د خزو نه خطره زیاته ده ځکه په خزوٰ کښې د ناز انداز یوه خاصه ماده پرته ده ، او د نارینه په زړه کښې ورته طبعی میلان اوکشش دې نود خزو سره داعظیمه حربه ده چه سړې پرې دهوکه کیږی ، اوددې نه علاوه شیطان دوئ خپل وسائل حبائل ګرځولی دی اوپه حدیث کښې دی چه (ما ایس الشیطٰن من احدٍ الاّ اتاه من جهة النساء) یعنی شیطان چه د چا د ګمراه کولو نه نا اُمیده شی نو د خزو په ذریعه سره ئی ګمراه کولو دپاره راشی ، او د آیت مطلب دا نه دې چه د خزو مکر دَ شیطان د مکر نه هم زیات دې . ځکه شیطان لعین د ټولو قبایحو مرکز دې اوپه سورت نساء کښې چه ئی ((ان کید الشیطن کان ضعیفا)) ویلیدی ، نو د هغې مطلب دادې چه د شیطنٰ مکر په مقابله د تدبیرد الله ﷻ کښې ضعیف دې او دا مطلب نه دې چه دَ شیطان مکر ضعیف دې دخزو دَ مکر نه، او د خزو مکر ته ئی چه عظیم ویلیدی نوپه نسبت سره مکر د رجالوته ئی ویلیدی ﴿ يُوسُفُ أَعْرِضْ عَنْ هَٰذَا ﴾ هرکله چه عزیز مصر ته واضح شو براءت د یوسف

ﷺ او غلطي د خزي نو يوسف ﷺ ته ئ اوويل چه دا واقعه پټه اوساته چه زما ډيره رسوائي او بدنامي ونه شي . اوخزي ته ئي اوونيل ته معافي وغواړه ځمانه. يا د يوسف ﷺ نه . يا د الله ﷻ نه ځکه چي دوئ خو الله منلو سره د شرك نه ﴿مِنَ الْخَاطِئِينَ﴾ خطاء په ډيرو قسمونو سره ده . يو داده چه د گناه كار په اراده سره اوكړي نودا خطاء كامله ده . او بل قسم دادي چه اراده ئي د نيك كار وي اوپه خطاء سره ترينه غلط كار صادرشي لكه په حديث كښ دي من اجتهد فاخطا فله اجر . اوبل قسم دادي چه اراده ئي د بدكاروي اوصادرشي ترينه نيك كار. دلته مراد اول قسم خطا ده . او عزيز مصر چه باوجود د دې نه چه غلطي د خزې ورته ښكاره شوه بيا ئ هم صرف دومره ئ ورته اووئيل چه ته ځمانه معافي اوغواړه اوهيڅ سزا يې ورته ورنه كړه نوپه دى كښ دا احتمال شته چه الله د ده نه پدې خبره كښ غيرت اوغصه سلب كړې وي. دپاره د لطف په يوسف ﷺ او دا احتمال پكښ هم دي چه دي بې غيرته وو. لكه په ښهرونو كښ او په غټو خلقو كښ داسې خصلت په كثرت سره مشاهده كيږي. اوداهم احتمال دي . چې دي حليم او نرم مزاج وو. اود دغه زمكې او وطن خصوصيت نرم مزاجي ده، لكه داهم مشاهده ده چه دبعض ملك خلق ډير نرم مزاج وي او د بعض ملك خلق ډير سخت مزاجه وي . لكه علامه آلوسي ليكلي دي چه بعض ملوك دمغرب خپلو مجلسيانو سره ناست وو اوپه كور كښ ئي يوې ماشومې بچئ دپردې نه روستو يوغزل ويله نو بعض مجلسيانو وزيرانو اووئيل چه دا خو ډير خائسته اواز دې غزل دې دوباره ووائي، و بادشاه غصه شو او كورته لاړو او د ماشومې بچئ سر ئ پريكړو اوپه پليټ كښ ئي راوړو اوهغه كس يعنى وزيرته ئي ووئيل چه دې سرته ووايه چه تاته غزل ووائي. نو وزير ډير زيات خفه شو اوبيمارشو ډيره زمانه بيمار وو. او بيا مړشو .

| وَقَالَ نِسْوَةٌ فِي الْمَدِينَةِ امْرَأَتُ الْعَزِيزِ تُرَاوِدُ فَتَاهَا عَن نَّفْسِهِ ۖ قَدْ |
|---|
| او وه ويل ښځو[1] په ښار كښ چه ښځه د وزير مطالبه كوي د خپل غلام نه د هغه دنفس. په تحقيق سره |
| شَغَفَهَا حُبًّا ۖ إِنَّا لَنَرَاهَا فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ۝ فَلَمَّا |
| د دې د زړه په پردو كښ ننوتې دې محبت د هغه . بيشكه مونږ وينو دې لره په خطائ ښكاره كښ پس هركله |

۱ . شپږم حال

سَمِعَتْ بِمَكْرِهِنَّ اَرْسَلَتْ اِلَيْهِنَّ وَاَعْتَدَتْ لَهُنَّ مُتَّكَاً وَّاٰتَتْ كُلَّ وَاحِدَةٍ

چه دې واورېدلو طعن د هغوئ نو وې لېږلو قاصد دوئ ته او تيار ئ کړو د دوئ لپاره مجلس، او ور ئ کړه هرې يوې ته

مِّنْهُنَّ سِكِّيْنًا وَّقَالَتِ اخْرُجْ عَلَيْهِنَّ ۚ فَلَمَّا رَاَيْنَهٗٓ اَكْبَرْنَهٗ

د هغوئ نه، چاړه او وې ويل يوسف ته راوزه دوئ ته . پس هركله چه دوئ هغه وليدلو نو ډير لوئ ئ وګڼړلو په ښائست کښ

وَقَطَّعْنَ اَيْدِيَهُنَّ ۫ وَقُلْنَ حَاشَ لِلّٰهِ مَا هٰذَا بَشَرًا ؕ اِنْ هٰذَآ اِلَّا مَلَكٌ كَرِيْمٌ ۝

او پرې ئ کړل لاسونه خپل، او وه ويل دوئ پاکی ده الله تعالی لره دا خو ندې بشر، ندې دا مګر فرښته عزتمند دې.

﴿وَقَالَ نِسْوَةٌ فِى الْمَدِيْنَةِ﴾ داشپږم حال دې اوپه دې کښ بيان د طعن د خزو دې . په زليخې باندی دعزيز مصر دا کوشش وو چه دا معامله پټه پاتې شی اوخما بدنامی ونه شی . ليکن زنانه په نشر اشاعت کښ ډيرې تيزې دی ، يوه خزه بلې ته دَ څه راز خبره اوايئ او بيا ورته اوائی چه دا تاسره امانت دې او بل چاته ئ مه وايه ، نوهغه ئی بلې ته په دې طريقه اوائی . اوبله ئی بلې ته په دې طريقه اوائی ، نو رازفاش شی، نو د زنانو په طريقې سره خبره مشهوره شوه . نو دوئ په زليخې باندې طعن ويل شروع کړو چه دَ دې خاوند شته دې اومعزز شخصيت يعنی عزيز مصر دې اودا بيا هم د بل چاسره بلکه د خپل غلام سره محبت او يارانه کوی ، او بيا ئی په داسې طريقې سره کوی چه هغه ورته توجه نه کوی اودا ورته چل ول جوړوی او د هغه محبت د دې په زړه کښ ننوتلې دې ﴿نِسْوَةٌ﴾ کښ تانيث عرضی دی حقيقی نه دې. نودې وجې نه فعل ورته ندې مونث شوې ﴿قَدْ شَغَفَهَا حُبًّا﴾ (شغف) په معنی د (دخل شغاف قلبها) سره دې او شغاف د زړه دپاسه نرئ پردې ته وائی او ضمير په (شغف) کښ راجع دې يوسف ﷺ ته او (حبًا) ترې تميزدې ، او تميز د فاعل نه په اصل کښ فاعل وی. نو د ﴿قَدْ شَغَفَهَا حُبًّا﴾ معنی داشوه چه (دخل حبه شغاف قلبها) يا (شق حبه شغاف قلبها) ، (روح) يعنی ننوتې دې محبت د يوسف ﷺ دننه په پردو د زړه د دې کښ، او څيرې کړی دی محبت يوسف ﷺ پردې د زړه ددې حتی چه رسيدلې دې دامحبت دننه زړه ته ﴿فِىْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ﴾ يعنی داداسې غلط اوکمينه حرکت دې چه واضح دې هر چاته .

﴿فَلَمَّا سَمِعَتْ بِمَكْرِهِنَّ﴾ د مکر نه مراد طعن او غیبت دي . او مکر ئې ورته ځکه اوبلو چه دوی دا حبري ذريعه گرزوله دپاره د لیدلو د یوسف ﷺ او د ملاقات د هغه یا د دې وجې نه چه دا غيبت وو . او غيبت هم پټ وی په شان د مکر . هرکله چه زلیخا خبر شوه چه خزې زما غيبت کوی او په ما باند طعن کوی . نود خپلې دفاع دپاره ئې دا منصوبه جوړه کړه چه هغوئ نه ئې دعوت ورکړو . چه د عزيز مصر په کور کښ د هغه بیگم ستاسو په اعزاز کښ دطعام انتظام کړې دي ﴿مُتَّكَأً﴾ له ابن عباس ﷺ نه ددې (۱) يوه معنى دا نقل کړې شوې ده چه مراد د دينه تکیا گانی او بالختونه دی (۲) او بله معنی ئې دانقل شوې ده چه مجلس د طعام دې . لکه داعادت د متکبرینو دې ،اوپه حديث کښ ترينه منع راغلې ده . روايت.کړيدې ابن ابی شيبه د جابر ﷺ چه نبی ﷺ منع فرمائلې ده له خوړلو نه په گس لاس باندې او دخوړلو نه په تکیه سره (نهى ان ياكل الرجل بشماله وان ياكل متكئا) (۳) او بعض وائی چه ددينه مراد خوراك دې (۴) او د مجاهد ﷺ نه مروی دی چه متکئا هغه طعام دې چه په چاړه باندې برې کولې شی، ﴿سِكِّينًا﴾ چاړه ئې د میووپریکولو دپاره ورکړه ، یا د دغه زمانې تهذیب داووچه دوئ به په چاړه سره خوراك کولو . نوظاهری مقصد ئې داوو ، اوپه حقیقت کښ مقصود هغه دې چه روستو ذکر کیږی او هغه دا چه د یوسف ﷺ په لیدوسره به بدحواسه شی ، نولاسونه به زخمی کړی. او دا خبره دوئ ته واضحه شی چه زه د چاسره محبت کوم نو هغه معمولی شخصيت نه دي ﴿وَقَالَتِ اخْرُجْ عَلَيْهِنَّ﴾ یوسف ﷺ په جدا کمره کښ وو ، اونوې کیږې ئې په امر د زلیخې باندې اچولې وې، زلیخې ورته اووئیل چه رابهر شه ، یوسف ﷺ ته په دې کښ څه غرض فاسد نه وومعلوم نوبهر شو ، او اجنبی خزوته ئې نظر نه دې کړې ﴿فَلَمَّا رَأَيْنَهُ أَكْبَرْنَهُ﴾ یعنی هرکله چه دغه خزو یوسف اولیدلو نودیر لوئ شخصیت ئې اوگڼړلو ، اوهیبت زده شوې د هغه نه . ځکه چه یوسف ﷺ ته الله عزت اووقار هم ورکړې وو ، اوظاهری حسن اوجمال ئې ورته هم ورکړې وو . لکه په صحیح بخاری کښ دی چه یوسف ﷺ ته شطرالحسن یعنی د ټولې دنیا نیم حسن ورکړې شوې وو ، اوحکایت دې چه یوسف ﷺ به کله د مصر په کوڅو کښ تللو نو د مخ رنړا به ئې په دیوالونو خلیدله په شان د نمر د رنړا ﴿وَقَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ﴾ یعنی د یوسف ﷺ په لیدلو سره ئ هوش حواس داسې خراب شول چه خپل لاسونه ئې په چاړه باندې زخمی کړل

اوپته ورته اونه لیگیده. چه مونږ میوه پریکړه یا خپل خپل لاسونه ﴿وَقُلْنَ حَاشَ لِلّٰهِ﴾ دا کلمه استعمالیږی په عرف کښې د تعجب دپاره. لکه سبحان الله د تعجب دپاره استعمالیږی. لفظ د حاش په نزد د بعضو حرف دې او وضع شوې دې دپاره د استثنا او تنزیه. بیا اسم گرځولې شوې دې. په معنی د تنزیه سره. او ابن حاجب وائی چه دا اسم فعل دې په معنی د برئ سره. او ابو علی او ابن عطیه او نورو ویلی دی چه حاش صیغه د ماضی ده په معنی د جانب سره. حاشیه طرف او جانب ته وائی. نو د حاش دپاره فاعل ضمیر دې چه راجع دې یوسف ﷺ ته. او لام په لله کښې د تعلیل دپاره دی ای جانب یوسف عن السوء والتهمة لاجل خوف الله (یا) منقادالله ﴿إِلَّا مَلَكٌ كَرِيمٌ﴾ دا تشبیه ده د ملائکو سره په پاکدامنئ کښې چه یوسف ﷺ د ملائکو شانتې پاك دې. ځکه چې ده دومره حسن او جمال او دومره ځوانئ او بې خطرې خلوت باوجود بیا هم د گناه نه بچ شو نو دا د فرشتو صفت دې. یا تشبیه ده په حسن کښې او ملائك اگر که دوئ نه دی لیدلی خو فرشتې مشهورې دی په خائست کښې. لکه شیطان مشهور دې په قباحت او بد شکلئ کښې

| قَالَتْ فَذٰلِكُنَّ الَّذِي لُمْتُنَّنِي فِيهِ ۖ وَلَقَدْ رَاوَدْتُهُ |
|---|
| وه ویل دې ښځې پس دا هغه دې چه تاسو زه ملامته کولم په محبت د ده کښې. او خامخا په تحقیق سره ما مطالبه کړې وه د ده نه |
| عَنْ نَّفْسِهِ فَاسْتَعْصَمَ ۖ وَلَئِنْ لَّمْ يَفْعَلْ مَآ اٰمُرُهُ لَيُسْجَنَنَّ |
| د ده د نفس پس ده خپل ځان وساته ځما نه. او که ونه کړل ده هغه چه ځه ورته حکم کوم نو ضرور به جیل کړې شی |
| وَلَيَكُونًا مِّنَ الصّٰغِرِينَ ۞ قَالَ رَبِّ السِّجْنُ اَحَبُّ اِلَيَّ مِمَّا يَدْعُونَنِيٓ اِلَيْهِ ۚ |
| او خامخا به شی د بې عزتو نه وه ویل یوسف اې ربه ځما! جیل زیات خوښ دې ما ته د هغه کار نه چه دا ښځې ما هغې ته رابلی |
| وَاِلَّا تَصْرِفْ عَنِّي كَيْدَهُنَّ اَصْبُ اِلَيْهِنَّ وَاَكُنْ مِّنَ الْجٰهِلِينَ ۞ فَاسْتَجَابَ لَهٗ |
| او که ته وانهړوې ځما نه مکر د دوئ ځه به مائل شم دوئ ته او شم به د ناپوهه خلقو نه پس قبوله کړه د ده دعا |
| رَبُّهٗ فَصَرَفَ عَنْهُ كَيْدَهُنَّ ۖ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ۞ ثُمَّ بَدَا لَهُمْ |
| رب د ده نو واړوئ د ده نه مکر د هغوئ بیشکه الله تعالی هرڅه اورې او په هرڅه عالم دې بیا هغوئ ته دا مصلحت ښکاره شو |

مِّنْ بَعْدِ مَا رَاَوُا الْاٰيٰتِ لَيَسْجُنُنَّهٗ حَتّٰى حِيْنٍ ۝

روستو د ليدلو د نشاناتو نه. چه دې جيل کړي د څه وخته پورې

﴿قَالَتْ فَذٰلِكُنَّ الَّذِىْ﴾ زليخې خپله معذورتيا ظاهره کړه دَ خزو په مخکښې په محبت د يوسف کښې ﴿وَلَقَدْ رَاوَدْتُّهٗ﴾ دا تصريح او اقرار دې په پاکوالى د يوسف ﷺ باندې .او په خپل جرم باندې په حضور د خزوکښې ﴿وَلَئِنْ لَّمْ يَفْعَلْ﴾ دا دباؤ اچول دَ زليخې دى په يوسف باندې دقيد کولو او ذليله کولو سره . اومقصود ئى د دينه خپل مقصد حاصلول وو، يعنى وصال د يوسف . يعنى تراوسه پورې خو ده څما خبره نده منلې خوکه آينده وخت کښې ئى هم اونه منله نو زه به دې قيد کړم د مصر د خزو په مخکښې ﴿وَلَقَدْ رَاوَدْتُّهٗ﴾ دا اقرار او د ﴿فَاسْتَعْصَمَ﴾ اقرار په طريقه د مبالغې سره وشو ځکه چه باب افعال دلته کښې د زيادت اومبالغې دپاره راغليدې . نو دا د يوسف ﷺ د کمال عصمت اوعفت واضح ثبوت دې ﴿لَيُسْجَنَنَّ وَلَيَكُوْنًا﴾ په اول کښې نون تاکيد ثقيله راغليدې، ځکه چه قيد کول واقع شويدى ، او په دويم کښې يعنى ﴿وَلَيَكُوْنًا﴾ کښې نون تاکيد خفيفه راغلې دې ځکه چه هغه متوهم وو، نه دې واقع شوې ، يادا چه دا دويم داول د توابعو نه دې نون تاکيد خفيفه په صورت دنون سره هم ليکلې شى او په صورت د تنوين سره هم ليکلې شى، لکه دلته کښې دا رنګه په (لنسفعًا) کښې، هر کله چه زليخې دا بيان وکړو . نو نورو خزو د شهر يوسف ﷺ ته ترغيب او ترهيب شروع کړو ، اووې ويل چه د خپلې سيدې، محسنې سره احسان پکا ردې ، او ظلم پرې نه دې پکار نو ته ولې د هغې زړه سيزې اورحم پرې نه کوې . او دا هم سوچ اوکړه چه د نافرمانئ به څه انجام وى، قدر ،عزت به دې ختم شى د جيل د پريشانو سره به مخامخ شې ، مفسرين وائى چه دوئ خو په ظاهر کښې د زليخې دپاره سفارش کولو ، ليکن په حقيقت کښې دَ هرې خزې مقصود يوسف ﷺ ځان ته مايل کول وو، نو ددې وجې نه يوسف وويل چه ﴿قَالَ رَبِّ السِّجْنُ اَحَبُّ اِلَيَّ مِمَّا يَدْعُوْنَنِيْ﴾ اې ربه زما! جيل ماته زيات خوخ دې د هغې نه چه دا خزى ما رابلى هغې ته ﴿وَاِلَّا تَصْرِفْ عَنِّيْ﴾ يعنى ياالله ! زه تاته محتاج يم په بچ کيدو کښې د ګناه نه ، په ﴿يَدْعُوْنَنِيْ﴾ او ﴿كَيْدَهُنَّ﴾ کښې اشاره ده ديته چه دغه ټولو خزو دَ يوسف دپاره سفارش کولو، يوسف جيل غوره کړو ځکه چې دا د ګناه نه

د بچ کيدو ظاهري طريقه او سبب وو . او هر کله چه دا ظاهر سبب کافي نه وؤ دالله ﷻ دمدد نه بغير نو ځکه ده اووئيل چه ﴿وَإِلَّا تَصْرِفْ عَنِّي كَيْدَهُنَّ﴾ ، او د دينه دا معلومه شوه چه انبياء په خپل عصمت کښې محتاج دي الله ﷻ ته . او دا رنګه انبياء ﷺ په خپل عصمت مغرور ندی بلکه نظر ئې په حفاظت او صيانت د الله ﷻ باندې وی . او ددې نه داهم معلومه شوه . چه بنده له ظاهري اسباب اختيارول ضروري دی ، ليکن اعتماد پرې ورله نه دې پکار . اومقصود ﴿وَإِلَّا تَصْرِفْ عَنِّي كَيْدَهُنَّ﴾ نه دعا ده چه ياالله مابچ کړې د ګناه نه او د دې وجې نه ئې ورته ﴿فَاسْتَجَابَ﴾ ذکر کړو . يعني الله ﷻ د ده دعا قبوله کړه . اود زنانو مکر ئې د ده نه واړولو ﴿ثُمَّ بَدَا لَهُم﴾ يعني دوئ ته دا مصلحت ښکاره شو ، چه يوسف ﷺ جيل ته کړی . اودا بيان دې د ﴿فَصَرَفَ عَنْهُ كَيْدَهُنَّ﴾ دپاره ﴿مِّن بَعْدِ مَا رَأَوُا الْآيَاتِ﴾ د دې آيت نه مراد ديوسف ﷺ دَ براءت شواهد او دلائل دی چه يو په هغې کښې څيرې والې د قميص وود شا دَ طرف نه او د دينه علاوه نور شواهد دوئ ته ظاهر شو ، يا مراد د آيات نه ملکی او شهري حالات دی. يعني هر کله چه دوئ د ملك حالاتو ته وکتل چه دَ عزيز مصر بدنامي زياتيږی ، او زنانه د يوسف ﷺ د ملاقات درخواستونه کوی ، نو دوئ ته دا مصلحت ښکاره شو ، چه يوسف ﷺ جيل ته شی او د مينځ نه لرې شی ، نو خلق به په دې باره کښې خبرې بس کړی، اود ملاقات درخواست به ځوك نه کوی، او هم دارنګې په قيدکولو ديوسف سره به عام خلق دا خيال اوکړی چه خزه د عزيز مصر بې ګناه ده او يوسف ﷺ قصوروار دې ، او زليخاهم په دې راضي شوه، ځکه چې يوخو به د دې نه بدنامي لرې شي، او بل دا چه يوسف ﷺ به د جيل سختي اووينی نو نرم به شی ، نوځما مقصد به هم حاصل شي، نو ددې وجې نه ئې بې قصوره قيد کښې واچولو . اوقصور وار ئې آزاد پريخودلو، ليکن الله ﷻ يوسف ﷺ په جيل کښې د ذلت او رسوائي نه محفوظ اوساتلو ، د خائسته اخلاقو سيرت ،او صورت په وجه او دَ باطني کمالاتو په وجه به ټولو د ده ډير عزت او احترام کولو، حتى چه د جيل افسر ورته هم ويل ستا د خلاصولو اختيار ماسره نشته دې، نورچه څومره احترام ځما نه کيدې شی نو زه به ئې کوم ، او په جيل کښې دننه په تا هيڅ پابندي نشته دې ، او يوځل ئې ورته اووئيل چه ځما تاسره ډير محبت دې ، نو يوسف ﷺ ورته اووئيل چه ماسره محبت مه کوه ماسره چه چا محبت کړې دې ، نو بيا په ما يوتکليف راغلې دې ، په وړوکوالي کښې ماسره ترور ځما محبت اوکړو نو د غلا تهمت ئې

را باندې اولګولو (لکه دغه قصه مشهوره ده) ، بیا راسره پلار محبت کولو . نو رونړو کوهی ته او غورزولم. او بیا راسره زلیخې محبت کولو نو جیل ته ئې راورسولم (ابن کثیر) ﴿ ثُمَّ بَدَا لَهُم ﴾ فاعل د بدأ دپاره محذوف دې چه (ان یسجن) دې . او ﴿ لَيَسْجُنُنَّهُ ﴾ قایم دې په مقام د فاعل باندې . ﴿ حَتَّىٰ حِينٍ ﴾ الى حين ينقطع فيه كلام الناس، وذالك ان المراءة قالت لزوجها ان هذا العبد العبرانى قد فضحنى فى الناس يقول لهم انى راودته عن نفسه وانا لا اقدر على اظهار عذرى فاما ان تاذن لى فاخرج فاعتذر واما ان تحبسه كما حبستنى فعند ذالك وقع فى قلب العزيز ان الاصلح حبسه حتى يسقط عن السنة الناس ذكر هذا الحديث وتقل الفضيحة (شربينى)

او (حين) وخت ته ویلې شي چه متعین نه وی او بهتره داده چه ابهام باندې پریخودې شي. او بعض ئې تعین کړې دې .چه پنځه کاله وو . او بعض وائی چه اوه کاله وو . او بعض وائی چه دولس کاله وو . لیکن بهتره داده چه جزم اونه کړې شي. په متعین مقدار کښې

| وَدَخَلَ مَعَهُ السِّجْنَ فَتَيَانِ ۗ قَالَ أَحَدُهُمَآ إِنِّيٓ أَرَىٰنِيٓ |
|---|
| او داخل شو د ده سره جیل ته [1] دوه خلمی خدمتګاران. وه ویل یو د دوئ نه ما خان لیدلې دې په خوب کښې |
| أَعْصِرُ خَمْرًا ۖ وَقَالَ الْآخَرُ إِنِّيٓ أَرَىٰنِيٓ أَحْمِلُ فَوْقَ رَأْسِي خُبْزًا |
| چه د انګورونه شراب نچوړوم. او وه ویل هغه بل چه بیشکه ما خان لیدلې دې په خوب کښې چه اوچتوم په سر باندې دوډئ |
| تَأْكُلُ الطَّيْرُ مِنْهُ ۖ نَبِّئْنَا بِتَأْوِيلِهِۦٓ ۖ إِنَّا نَرَىٰكَ مِنَ الْمُحْسِنِينَ ﴿٣٦﴾ |
| خوري مارغان د هغې نه. خبرکړه مونږ په تعبیر د دې خوب بیشکه مونږ وینو تا لره د نیکی کونکو نه |

﴿ وَدَخَلَ مَعَهُ السِّجْنَ ﴾ او دا اووم حال دې په معیت د قیدیانو سره . چه یوسف عليه السلام په جیل کښې د خوب تعبیر نه مخکښې هغوئ ته دعوت د توحید ورکړې وو

او دا دوه خادمان وود بادشاه چه نوم ئې ریان بن ولید وو. اودې د عربو عاربو د نسل عاد او ثمود نه د قبطی خاندان نه وو. او مفسرین وائی چه په یوسف عليه السلام باندې ئې ایمان راوړې وو. اود ده په زمانه کښې یوسف ته د مصر مکمل اقتدار ملاؤشوې وو. او د یوسف

---

[1] اووم ۷ حال

ﷺ د وفات نه روستو بیا بل بادشاه راغې خوهغه ایمان نه و راوړی . او دا دوه خادمان چه وو نوبو خباز «نانبائی »او بل ساقی وو . پ، دواړو الزام اولګیدلو چه دوئ بادشاه ته په خوراك کښ زهر اچولی دی لکه ویلې شی چه څو مشرانو د مصر اراده کړې وه چه بادشاه قتل کړی . نو دې دواړو ته ئی رشوت ورکړو چه په روټئ او شرابو کښ ورته زهر ورکړی. بیا ساقی پښیمانه شو ، او په شرابو کښ ئی زهر وانه چول او نانبائ واچول . نوهر کله چه روټئ بادشاه ته حاضره شوه ، نو ساقی اووئیل چه دا روټئ مه خوره په دې کښ زهر اچولې شوی دی . او نانبائی ورته اووئیل چه په دې شرابو کښ ئی درته زهر اچولی دی . بادشاه ساقی ته اووئیل چه دا شراب ته اوسکه نوهغه اوسکل اونقصان ئی ورته اونه رسیده اونانبائی ته ئی اووئیل چه دا روټئ اوخوره نوهغه انکاراوکړو نوبادشاه دوئ دواړه جیل ته لیګلی وو د تحقیق د حال دپاره، نانبائی خو مجرم وو اوپه ساقی باندې تهمت و اومجرم نه وو . اوپه یوسف باندې نه تهمت وواو نه مجرم وو﴿إِنِّيٓ أَرَىٰنِيٓ﴾ ابن عباس ﷺ او د جمهور مفسرینو په نزد خوب ئ په حقیقت کښ لیدلې وو ، او د عبدالله بن مسعود ﷺ نه روایت دې چه په حقیقت کښ ئی خوب نه وولیدلې خو محض دا د یوسف ﷺ د صداقت معلومولو دپاره ئی امتحان کولو . بنا په قول د جمهورو مفسرینو هرکله چه دوئ داخوب اولیدلو نو د یونیك صالح انسان په طلب کښ شول چه دوئ ته د دوئ د خوب تعبیر ورکړی. نوپه ټولو قیدیانو کښ ئی نظر واچولو نو د یوسف ﷺ د عبادت، تقوی، اخلاق، صداقت نه ډیر متاثره شو . نوهغه ته ئی اووئیل چه موږ ته زموږ د خوب تعبیر بیان کړه ﴿أَعْصِرُ خَمْرًا﴾ د خمر نه مراد انګور دی چه دهغې نه شراب جوړیږی ﴿إِنَّا نَرَىٰكَ مِنَ ٱلْمُحْسِنِينَ﴾ یعنی تعبیر د خوب ډیر په خه طریقه سره کوې . قیدیانو به چه څه خوب لیدلو نویوسف ﷺ به ئی تعبیر کولو ،اوهغه به بالکل صحیح وو . یادا معنی چه ته ډیر نیك ئی د صوم صلوة او عبادت په اعتبار سره . ډیر نیك سلوك ساتې د ملګرو سره . یوسف ﷺ به د ملګرو خدمت کولو او قیدیانو ته به ئی تسلی ورکوله

| قَالَ | لَا | يَأْتِيكُمَا | طَعَامٌ | تُرْزَقَانِهِۦٓ | إِلَّا | نَبَّأْتُكُمَا | بِتَأْوِيلِهِۦ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وه ویل یوسف چه | لا به نوی راغلې تاسو ته طعام چه تاسو ته درکولې شی مګر زه به خبر کړم تاسو | | | | | | دواړه په تعبیر د دې خوب |
| قَبْلَ | أَن | يَأْتِيَكُمَا ۚ | ذَٰلِكُمَا | مِمَّا | عَلَّمَنِي | رَبِّيٓ ۚ | |
| مخکښ د دینه چه تاسو ته راشی. دا تعبیر چه تاسو ته ئ کوم د هغې نه دې چه ښودلی دې ما ته ربه زما په ذریعه د وحی سره، | | | | | | | |

| |
|---|
| اِنِّیْ تَرَكْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ لَّا یُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ۝ |
| بیشکه ما د اول نه پرینبي دي ملت د هغه قوم چه ایمان نه لری په الله تعالی باندې او دوئ د آخرت نه منکر دی |
| وَاتَّبَعْتُ مِلَّةَ اٰبَآءِیْۤ اِبْرٰهِیْمَ وَاِسْحٰقَ وَیَعْقُوْبَ ؕ مَا كَانَ لَنَاۤ اَنْ نُّشْرِكَ بِاللّٰهِ |
| او زه تابع یم د دین د مشرانو خپلو چه ابراهیم او اسحاق او یعقوب دی ندی جائز مونږ لره چه شریك کړو د الله سره |
| مِنْ شَیْءٍ ؕ ذٰلِكَ مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ عَلَیْنَا وَعَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا یَشْكُرُوْنَ ۝ |
| څه شې . دا (توحید) فضل د الله تعالی دې په مونږ باندې او په خلقو باندې لیکن ډیر خلق شکر نکوی |
| یٰصَاحِبَیِ السِّجْنِ ءَاَرْبَابٌ مُّتَفَرِّقُوْنَ خَیْرٌ اَمِ اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ۝ مَا تَعْبُدُوْنَ |
| اې دوؤ ملګرو دجیل خما آیا ډیر معبودان جدا جدا غوره دی یا یو الله چه غالب دې ؟ عبادت نه کوئ تاسې |
| مِنْ دُوْنِهٖۤ اِلَّاۤ اَسْمَآءً سَمَّیْتُمُوْهَاۤ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ |
| سوی د الله تعالی نه مګر صرف د بی حقیقت نمونو چه دغه نومونه ایښی دی تاسو او مشرانو ستاسو |
| مَّاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ بِهَا مِنْ سُلْطٰنٍ ؕ اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ ؕ |
| ندی رالیږلی الله تعالی د هغې د معبودوالی لپاره هیڅ دلیل، ندې حکم ، واك اختیار مګر صرف الله تعالی لره دې |
| اَمَرَ اَلَّا تَعْبُدُوْۤا اِلَّاۤ اِیَّاهُ ؕ ذٰلِكَ الدِّیْنُ الْقَیِّمُ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا یَعْلَمُوْنَ ۝ |
| حکم ئ کریدې چه بندګی به نه کوئ مګر صرف دهغه به کوئ. دا (توحید) لار سیده ده لیکن ډیر خلق نه پوهیږی |

﴿ قَالَ لَا یَاْتِیْكُمَا طَعَامٌ ﴾ یوسف ﷺ دوئ ته د تعبیر نه مخکښې توحید بیانوی لیکن اول ورته تسلی ورکوی چه بیشکه د خوب تعبیر به تاسو ته ډیر زرمعلوم شی ، روزانه چه تاسو ته په کوم وخت خوراك ملاویږی نو د هغې نه مخکښې به زه تاسو په تعبیر خبر کړم ، لیکن د تعبیر نه قبل زیاته او ضروری خبره تاسو ته کوم، هغه دا چه دَ تعبیر علم ماته د څرته نه حاصل شویدې؟ زه څه کاهن او نجومی نه یم ، بلکه ماته داعلم د وحی په ذریعه سره راکړې شوې دې ، او زه د هغو خلقو په لار نه یم روان چه په الله ﷻ ایمان نه لری ، بلکه زه د خپلو مقدسو هستو خپلو آباؤ اجدادو په لار روان یم چه دهغې لارې وضاحت دادې چه مونږ د الله ﷻ سره

هیڅ څوك نه شریکوو ، او دا توحید دالله ﷻ فضل او احسان دي . لیکن ډیر خلق د دي شکر به نه ادا کوی . بعض مفسرینو دَ ﴿لَا يَأْتِيكُمَا طَعَامٌ﴾ دا معنی کړیده چه تاسو ته کوم طعام رازی نو زه به تاسو په هغې خبر کړم چه څه قسم طعام دي نو چه دا درته خودلی شم نو تعبیر څه داسې مشکل نه دي ﴿إِنِّي تَرَكْتُ﴾ د ترك نه مراد براءت او امتناع ده ، او دا معنی نه ده چه مخکښې به دغه دین کښې وم او بیا مې پریخودو ، ځکه چې انبیاء علیهم السلام معصوم دی د شرك ا ومعصیت نه ، نو د ترك نه متعارفه معنی نده مراد لیکن تعبیر په ترك سره شویدي لپاره د ترغیب هغوئ ته چه تاسو باطل دین پریگدئ ﴿يَصَاحِبَيِ السِّجْنِ﴾ تعبیر په صاحبينُ سره د شفقت لپاره دي او اشاره ده دې ته چه زه ستاسو دَ ملګرتیا حق ادا کوم او اضافت د صاحبی. سجن ته اضافت دي ظرف مکان ته ، لکه په یاسارق اللیلة اهل الدار کښې اضافت دې ظرف زمان ته ، او په دې کښې اشاره ده چه دوئ صرف د جیل ملګری دی او د دین او عقیدې ملګری نه دی ، اوحضرت ابوبکر ﷺ ته نبی ﷺ لصاحبه ویلی دی او ظرف مکان یعنی غار ته ئ اضافة ندې کړې، بلکه (فی الغار) ئې مقدم ذکر کړې دې ، نو په دې کښې اشاره ده دیته چه دا ملګرتیا په دین او عقیدې کښې وه ، نو په دې سره باطل شو قول د شیعګانو چه قیاس کوی لصاحبه، په صاحبي السجن باندې او دا وائی چه دِ لصَاحِبِه نه فضیلت ، د ابوبکر ﷺ نه ثابیږی

﴿ءَأَرْبَابٌ مُّتَفَرِّقُونَ﴾ «مُتَفَرقون» په معنی د متکثرون، مُتعددُون سره دې ، یعنی د ډیرو آلهو راضی کول او د هغوئ عبادت کول آسان دی ، او که یو الله ﷻ راضی کول او د هغه عبادت کول؟ نو دلته مضاف مقدر دې ای عبادة ارباب یا د متفرقون معنی داده چه د زندګی د هرې شعبې دپاره جداجدا معبودان مقرر وؤ، لکه د باران لپاره جدا معبود، د صحت لپاره جدا معبود، په دُشمن باندې د غلبې لپاره جدا معبود، وهکذا ﴿الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ﴾ غالب او زور دار دې په هر چا باندې ، هر څه د هغه مملوك محکوم دی، هر حاجت پوره کولې شی ﴿إِلَّا أَسْمَاءً سَمَّيْتُمُوهَا﴾ د اسم نه مراد اسم د اله ، مشکل کشا ، وغیره دی، لکه په موجوده دور کښې خلق بعض اهل قبور ته : بادو بابا ، مال ډهیر بابا وائی ، نو اهل قبورو ته مشکل کشا نوم ویل صرف نوم دې اسم بلا مسمی دې مصداق ئې نشته ، ځکه هغوئ مشکل کشا ندی ، دا نومونه ستاسو مشرانو ایخودی دی ، الله ﷻ ورته د معبود ، مشکل کشا نوم نه دې ایخې

﴿مَّآ أَنزَلَ ٱللَّهُ بِهَا﴾ اى بمعبوديتها ﴿مِن سُلْطَٰنٍ﴾ حجت او دليل ﴿إِنِ ٱلْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ﴾ حكم په دوه قسمه دي يو حكم تكويني دي لكه اعزازا . ذلال . يعنى چاته ذلت وركول يا موت او حيات وركول او حكم تشريعي دي . لكه امر د اطاعت او نهى د معصيت نه او حل اوحرمت نود دي دواړو قسمونو اختيار الله ﷻ سره دي ﴿أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوٓا﴾ دا حكم تشريعى دي ﴿ذَٰلِكَ ٱلدِّينُ ٱلْقَيِّمُ﴾ (ذالك) توحيد ته اشاره ده . او اسم اشاره د بعيد ذكر شوه دپاره د اشارې عظمت د شان د توحيد نه . (القيم) په معنى د محكم ا وثابت بالبراهين سره دي . يا په معنى د المتقيم الذى لاعوج فيه . سره دي . يعنى توحيد ثابت دي په براهينو سره اوسيدها لارده.

| |
|---|
| يَٰصَٰحِبَيِ ٱلسِّجْنِ أَمَّآ أَحَدُكُمَا فَيَسْقِى رَبَّهُۥ خَمْرًا ۖ |
| اې خما دوؤ ملګرو د جيل. هرچه دا يوتن ستاسو نه دې پس سكوى به دې په مولا خپل باندې شراب |
| وَأَمَّا ٱلْءَاخَرُ فَيُصْلَبُ فَتَأْكُلُ ٱلطَّيْرُ مِن رَّأْسِهِۦ ۚ قُضِىَ ٱلْأَمْرُ ٱلَّذِى |
| او هرچه بل دې پس دې به پانسې كړې شى پس خورى به مرغان د سر د ده نه. فيصله كړې شويده مخكښې نه د هغه كار |
| فِيهِ تَسْتَفْتِيَانِ ﴿٤١﴾ وَقَالَ لِلَّذِى ظَنَّ أَنَّهُۥ نَاجٍ |
| چه تاسو د هغې په باره كښې تپوسونه كول او ووېل يوسف هغه سرى ته (چه پوهه وؤ يوسف) چه دې بچ كيدونكې دې |
| مِّنْهُمَا ٱذْكُرْنِى عِندَ رَبِّكَ فَأَنسَىٰهُ ٱلشَّيْطَٰنُ ذِكْرَ رَبِّهِۦ |
| د دې دواړو نه ياد كړه ما د بادشاه په مخكښې پس هير كړو د هغه نه شيطان يادول د يوسف بادشاه ته |
| فَلَبِثَ فِى ٱلسِّجْنِ بِضْعَ سِنِينَ ﴿٤٢﴾ |
| نو پاتې شو يوسف په جيل كښې څوكلونه |

﴿يَٰصَٰحِبَيِ ٱلسِّجْنِ أَمَّآ أَحَدُكُمَا﴾ يوسف دوئ ته د توحيد بيانولو نه بعد د خوب تعبير ذكر كوى . ليكن د شفقت پيغمبرى د وجې نه د يو كس متعين نوم نه اخلى، مثلا فلانيه ته به پهانسى كيږي . د دې دپاره چه هغه زيات غمژن نشى ﴿فَيَسْقِى رَبَّهُۥ خَمْرًا﴾ يعنى ساقى به د جيل نه آزاد شى . او خپل مخكنى ملازمت ته به لاړشى . او بادشاه له به شراب وركوى .

﴿وَأَمَّا ٱلۡأٓخَرُ﴾ یعنی نانبائ به پهانسی کیږي او په سولئ به شي نو مارغان به نی د سرنه او مازغونه خوري . لکه د هغه زمانی دا عادت وو چه څوك به ني په سولئ کړل نو دري ورځی به په سولئ باندې پريخودې سو . نومرغانو به ختي ختي کړو . ابن مسعود رضی الله عنه فرمائي (کما رواه الحاکم) چه هر کله دوئ دا تعبير واوريدلونو وي ويل چه مونږ خوب نه دی ليدلی . مونږ خو مزاح کولو او ستا امتحان مو کولو . يوسف عليه السلام اوفرمائل ﴿قُضِيَ ٱلۡأَمۡرُ ٱلَّذِي﴾ يعنی ما دا خبره په وحی سره کړې ده چه غلطی پکښې نه راځی . اودا فيصله شوې ده . بخه خبره ده او لفظ د (امر) اودارنگی ضمير د (فيه) مفرد ذکر شول اگرکه خوبونه دوه وو . ځکه چه د امر نه مراد خوبونه ندی . بلکه الزام د هلاکولو د بادشاه دې په زهر اچولو سره . يا دلته عاقبة مقدر دې يعنی عاقبة د هغې امر چه تاسو د هغې په باره کښې تپوس کولو . يا د امر نه مراد حادثه ده او هغه واحده ده ﴿وَقَالَ لِلَّذِي ظَنَّ أَنَّهُۥ نَاجٖ﴾ ضمير په (ظن) کښې يا راجع دې يوسف عليه السلام ته نو ظن په معنی د يقين سره دې . يا راجع دې ساقی ته نو ظن خپله معنی سره دې ﴿ٱذۡكُرۡنِي عِندَ رَبِّكَ﴾ يعنی زما حال. کردار او دا چه زه بې قصوره يم . ذکر کړه بادشاه ته دپاره ددې چه د جيل نه خلاص شم ﴿فَأَنسَىٰهُ ٱلشَّيۡطَٰنُ ذِكۡرَ رَبِّهِۦ﴾ په ضمير د (أنسٰهُ) کښې دوه قوله دی اکثر مفسرين وائی چه دا راجع دې ساقی ته يعنی شيطان د ساقی نه هير کړو . يادول د يوسف عليه السلام بادشاه ته . نو د دې وجې نه يوسف عليه السلام په جيل کښې څوکلونه تير کړل . او د انساء نسبت شيطن ته تسبيبًا دې يعنی شيطن سبب د انساء دپاره اوگرزيدو ځکه چه شيطن د ده په زړه کښې مختلف خيالات اووسوسې واچولې، نود هغې د وجې نه هغه نه هير شو . او شيطن ته د سبب په درجه کښې نسبت کيدې شی، لکه دموسی عليه السلام ملگری اووئيل چه (انسنيه الاالشيطن ان اذکره) . يا لکه (اما ينسنك الشيطن فلاتقعد بعد الذكرٰى — الخ)

او ابن جرير ،بغوی ، رازی رحمهم الله وائی چه ضمير راجع دې يوسف عليه السلام ته او د رب نه مراد الله ﷻ دې، يعنی شيطان د يوسف عليه السلام نه هير کړل ذکر د الله ﷻ يعنی دا چه د جيل نه د خلاصيدو دپاره الله ته سوال اوکړی . بلکه توجه ئ ظاهری اسبابو ته اوکړه چه ساقی ته ئی اووئيل چه بادشاه ته زما سفارش اوکړه چه د جيل نه خلاص شم . لکه روايت دې د انس رضی الله عنه نه چه وحی اوکړه الله يوسف عليه السلام ته چه ته چا خلاص کړې وې د قتل نه . کله چه ستا رونړو ستا د قتل اراده اوکړه نو ده عرض اوکړو چه تا اى ربه ځما ؛ نو بيا ئی ورته اوفرمائل چه نه

چاخلاص کړې وې د کوهی نه ، نو ده عرض اوکړو چه تا ای ربه څما ؛ بیا ئی ورته اوفرمائیل چه نه چا خلاص کړې وې دهغه خزې نه کله چې هغې هَمْ وکړو په تا ، نوده عرض اوکړو چه تا ای ربه څما ؛ بیا ئ ورته اوفرمائل ولې تا څه هیر کړم ، او یاد دې کړو یو انسان؟ ، نوده عرض اوکړو چه بس دایوه خبره وه چه زما د خولې نه وتلې ده ، نو الله ﷻ ورته اوفرمائل چه زما دې په خپل عزت قسم وی چه زه بهٔ تا په جیل کښې کلونه اوساتم.

اوکه څوك **سوال** اوکړی چه په ظاهری اسبابو سره خو استعانت مذموم نه دې . څکه چه عیسیٰ ﷺ من انصاری الی الله ویلی دی ، او په حدیث کښې دی والله فی عون العبد ما دام العبد فی عون اخیه ، اوپه بل حدیث کښې دی من فرج عن مومن کربة فرج الله عنه کربة من کربات الأخرة ، اوپه بل روایت کښې دی چه نبی ﷺ فرمایلی دی لیت رجلا صالحا یحرسنی نوحضرت سعد ﷺ راغی او چوکیداری ئی شروع کړه ، نبی ﷺ بې فکره اوده شو ، **جواب** دادې چه ظاهری اسبابوته توجه اګر که حرام یا مذموم ندې ، لیکن دانبیاؤ شان ډیر اعلی او ارفع دې ، نود دوئ دپاره احسن کار مناسب دې ، او چه د احسن په ځائ حسن کار اوکړی نود دوئ دپاره سیئه ګڼړلې شی ((حسنات الابرار سیئات المقربین)) نوظاهری اسبابو ته توجه بغیر د خصوصی اذن نه اګر که حسن دې لیکن دانبیاؤ دَ عالی منصب په اعتبار سره دا د دوئ لپاره یو قسم تقصیر ګرځی د ابتلاء او امتحان په موقعهٔ باندې د انبیاء لپاره ظاهری اسبابوته توجه ندهٔ مناسب ، بلکه مسبب الاسباب ته توجه پکار ده ، البته که د ابتلاء او امتحان موقعه نه وی یا خصوصی اذن وی یا بل څه حکمت وی نو بیا ظاهری اسبابوته توجه احسن ده ﴿بِضْعَ سِنِيْنَ﴾ د بضع اطلاق د دریو نه تر نهوپورې کیږی ، او په نزد د ابو عبید باندې ترلسو پورې کیږی ، دلته اکثر روایات په دې دی چه اوه کاله وو.

| وَقَالَ الْمَلِكُ إِنِّيْٓ أَرٰى سَبْعَ بَقَرٰتٍ سِمَانٍ يَّأْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ |
| --- |
| او وه ویل بادشاه[1] ما لیدلې دی په خوب کښې اوه ۷ غواګانې څربې، چه خوری هغې لره اوه ۷ غواګانې خوارې (تیبې) |
| وَّسَبْعَ سُنْۢبُلٰتٍ خُضْرٍ وَّأُخَرَ يٰبِسٰتٍ ۭ يٰٓأَيُّهَا الْمَلَأُ أَفْتُوْنِيْ فِيْ رُءْيَايَ إِنْ كُنْتُمْ |
| او اوه ۷ وږی شنه او نور (اوه ۷ ) وچ شوی، اې درباریانو تعبیر راکړئ ما ته څما د دې خوب کچرې یئ تاسې |

---

۱ - اتم حال.

لِلرُّءْيَا تَعْبُرُوْنَ ۞ قَالُوْٓا اَضْغَاثُ اَحْلَامٍ ۚ وَمَا نَحْنُ بِتَاْوِيْلِ الْاَحْلَامِ بِعٰلِمِيْنَ ۞

د خوب تعبير ويستونكى هغوئ وه ويل چه دا گډوډ خوبونه دى او مونږ د داسې خوبونو په تعبير نه پوهيږو

وَقَالَ الَّذِىْ نَجَا مِنْهُمَا وَادَّكَرَ بَعْدَ اُمَّةٍ اَنَا اُنَبِّئُكُمْ

او وه ويل هغه سړى چه د جيل نه خلاص شوې وو د هغه دوؤ نه، او ياد ئ شو روستو د څه مدې نه خه به خبر كړم تاسو

بِتَاْوِيْلِهٖ فَاَرْسِلُوْنِ ۞

په تعبير د دې خوب پس ما وليږئ

﴿ وَقَالَ الْمَلِكُ ﴾ دا اتم حال دې ، متعلق د خوب د مَلِك سره په دې كښې د بادشاه د خوب ذكر دې ، اودهغه د تعبير او بيا د تدبير تبشير ذكر دې ، او يوسف ﷺ نه دَ پاكدامنى اظهار او د هغه د استقلال او د تحمل ذكر دې ، د بادشاه د خوب دوه حصې دى ، اوله حصه دا چه اووه غواګانې څربې دى ، او اووه غواګانې تيټې، خوارې دى ، نو دوئ هغه څربې غواګانې اخوړلې ليكن دا تيټې غواګانې تكړه نشوې ، دويمه حصه ئى داده چه اوه وګى شنه دى ، او اوه وګى وچ دى ، او دا وچ وګى د شنو وګونه چاپيره شوى دى او د هغوئ رونق او خايست ئى ختم كړو ، درباريانو ته ئ اووئيل چه ددې خوب تعبير ماته راكړئ ﴿قَالُوْٓا اَضْغٰثُ اَحْلَامٍ﴾ نودوئ اووئيل چه دا پراګنده خوبونه خيالات تصورات دى ، صحيح خوب ندې ، نو د دې تعبير نشته دې ، بادشاه به سيل چكر له تلې وى نو چرته به ئ غواګانې ليدلى وى او چرته به ئى ګياه ليدلى وى نو بيا ئى په خوب كښې دغه ليدلى دى، «اضغاث» جمع د ضغث ده ، د ګياه هغه مجموعې ته ويلې شى چه پكښې مختلفې ګياه وى اوچه شنه او هر قسم بوټى اود موټى نه زيات او ګيډى نه كوم وى،او «احلام» هغه خيالى خوبونه دى چه سړې پريشانه كوى ﴿ وَمَا نَحْنُ ﴾ يعنى د داسې خيالى خوبونوتعبير نه وى ، يا دامطلب دې چه مونږ په تعبير د خوبونو كښې ماهر نه يو ، نو د دې خوب د صحيح تعبير نه عاجزيو ، او د بادشاه دتسلى دپاره ئى اووئيل چه داسې معلوميږى چه تابه په ويخه چرته داسې تصور كړې وى ، يابه دې دغه شان څيزونه ليدلى وى، الله ﷻ دوئ د تعبير د خوب نه عاجز كړل ، د دې دپاره چه دوئ يوسف ﷺ ته رجوع اوكړى ﴿وَقَالَ الَّذِىْ نَجَا﴾ ددې نه مراد هغه ساقى دې ، چه يوسف ﷺ او د ده پيغام ترينه هير شوې وو او اوس ورته ياد شو،نو اراده ئى اوكړه چه دَ هغه ملاقات په خپله اوكړى

او تعبير ترينه طلب کړی ﴿وَادَّكَرَ بَعْدَ أُمَّةٍ﴾ يعنی يادئ شو روستو د ډيرې زمانې نه او دا جمله معترضه ده او مقوله د (قال) دپاره داده چه ﴿أَنَا أُنَبِّئُكُم﴾ يعنی زه به تاسو ته د خوب تعبير راوړم خو تاسو ما اوليږئ د دې دپاره چه د جيل افسر ما ته د ملاقات اجازت راکړی نو تاسو ما اوليږلو او د جيل افسرد ملاقات اجازت ورکړو، او ملاقات ئې اوشو، نو يوسف ﷺ ته ئې ندا وکړه چه

يُوسُفُ أَيُّهَا الصِّدِّيقُ أَفْتِنَا فِي سَبْعِ بَقَرَاتٍ سِمَانٍ يَأْكُلُهُنَّ

ای يوسف ای ډيره رښتينه تعبير راکړه مونږ ته د دې خوب چه اووه غواګانې دی څربې خوری هغې لره

سَبْعٌ عِجَافٌ وَسَبْعِ سُنۢبُلَٰتٍ خُضْرٍ وَأُخَرَ يَابِسَٰتٍ لَّعَلِّىٓ أَرْجِعُ إِلَى ٱلنَّاسِ

اوه ۷ غواګانې خوارې (تېټې) او اوه۷ وږی شنه او نور وچ. لپاره د دې چه څه واپس لاړشم خلقو ته

لَعَلَّهُمْ يَعْلَمُونَ ۞ قَالَ تَزْرَعُونَ سَبْعَ سِنِينَ دَأَبًا

د دې لپاره چه هغوئ پوهه شی (په تعبير د خوب) وه ويل يوسف چه کرونده به کوئ اوه ۷ کاله پرله پسې.

فَمَا حَصَدتُّمْ فَذَرُوهُ فِي سُنۢبُلِهِۦٓ إِلَّا قَلِيلًا مِّمَّا تَأْكُلُونَ ۞

پس هغه چه لو کړئ تاسو پس پريږدئ به هغه په وږو کښې مګر لږ شان د هغې نه چه تاسو ئې خورئ

ثُمَّ يَأْتِى مِنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ سَبْعٌ شِدَادٌ يَأْكُلْنَ مَا قَدَّمْتُمْ لَهُنَّ

بيا به راشي روستو د دې نه اوه ۷ کلونه سخت. چه به خوری هغه ذخيره چه تاسو مخکښې جمع کړی دی د دغه کلونو لپاره

إِلَّا قَلِيلًا مِّمَّا تُحْصِنُونَ ۞ ثُمَّ يَأْتِى مِنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ عَامٌ فِيهِ

مګر لږ د هغې نه چه تاسو ئې د تخم لپاره ساتئ. بيا به راشی د دينه روستو داسې کال چه په هغې کښې به

يُغَاثُ ٱلنَّاسُ وَفِيهِ يَعْصِرُونَ ۞

بارانونه وشی په خلقو او په هغې کښې به ميوې نچوړوی

﴿يُوسُفُ﴾ ای يا يوسف ،﴿أَيُّهَا الصِّدِّيقُ﴾ د دينه معلوميږی چه د انبياؤ صدق او ديانت د خلقو په زړونو کښې مستحکم وی ﴿أَفْتِنَا فِي سَبْعِ بَقَرَاتٍ﴾ يعنی مونږ ته د دې خوب تعبير بيان کړه

﴿لَّعَلِّيٓ﴾ لعلّ تعليل دپاره دي يا دَ اُميد دپاره دي او لعل نی خکه اوونيلو چه کيدي شی چه واپس نشی . يا خلق پوهه نشی ﴿يَعۡلَمُونَ﴾ په تعبير د خوب پوهه شی يا ستا صداقت اومرتبه اوپيژنی ﴿قَالَ تَزۡرَعُونَ﴾ دوئ د دي تعبير طلب کړی وو . ليکن يوسف ﷺ ورته تعبير هم ښائی او بيا ورته تدبير ښائی او بيا ورته تبشير ورکوی . تعبير دادي چه اوه خربي غواګانی اووه آباد کلونه دی اواوه شنه وګی د هغې پيداوار دي . او اوه خوارې غواګانې او وچ وګی د قحط کلونه دی چه په دي کښ به دَ آبادوکلونو پيداوار اوخوری . اوتدبير ئ ورته دا اوخودلو چه ﴿تَزۡرَعُونَ﴾ دا اخبار په معنی دَ امرسره دي. يعنی اوه کاله مسلسل زميداره اوکړئ او غله محفوظ اوساتئ . او کومه غله چې ستاسود خوړلونه زياته وی . نوهغه په وګو کښ پريږدئ . ددي دپاره چه سپکئی وغيره ئی خرابه نه کړی ﴿يَأۡكُلۡنَ﴾ دا اسناد مجازی دي خکه چه کلونه اکل نه کوی بلکه انسانان په کلونو کښ اکل کوی. په ﴿سَبۡعَ سِنِينَ﴾ کښ د ﴿سَبۡعِ بَقَرَٰتٖ سِمَانٖ﴾ او د ﴿وَسَبۡعِ سُنۢبُلَٰتٍ خُضۡرٖ﴾ تعبير ته اشاره ده ،سره د تدبير نه ، او په ﴿سَبۡعٞ شِدَادٞ﴾ کښ تعبير د ﴿سَبۡعٌ عِجَافٞ﴾ او د ﴿وَأُخَرَ يَابِسَٰتٖ﴾ تعبير ته اشاره ده ، ﴿مِّمَّا تُحۡصِنُونَ﴾ يعنی هغه چه تاسو ئې محفوظ ساتئ ، د تخم دپاره ، او تبشير دادي ﴿ثُمَّ يَأۡتِي مِنۢ بَعۡدِ ذَٰلِكَ﴾ او دا د بادشاه په خوب کښ نه وو. او دا تبشير يا په ذريعه د وحی سره دي ،يا دا چه هر کله د قحط کلونه اووه دی . نو دي نه معلومه شوه چه ددينه بعد آباد کلونه رازی . ﴿يُغَاثُ ٱلنَّاسُ﴾ دا يا د غوث نه مشتق دي يعنی د خلقوفرياد رسی به اوکړې شی، يا د غيث نه مشتق دي يعنی په خلقو باندې باران رحمت اوشی . ﴿يَعۡصِرُونَ﴾ عصر نچوړولواوجوس ويستلوته وائی معنی داشوه چه د انګورو نه به شيره او شراب او دا رنګه د زيتون او شرشم اوکونزلو به نه تيل اوباسی .

| وَقَالَ ٱلۡمَلِكُ ٱئۡتُونِي بِهِۦۖ فَلَمَّا جَآءَهُ ٱلرَّسُولُ قَالَ ٱرۡجِعۡ |
|---|
| او وه ويل بادشاه [1] راولئ ماته دغه سړي. پس هرکله چه راغې ده ته اُستاذي نو ده ورته وه ويل واپس لاړشه |
| إِلَىٰ رَبِّكَ فَسۡـَٔلۡهُ مَا بَالُ ٱلنِّسۡوَةِ ٱلَّٰتِي قَطَّعۡنَ أَيۡدِيَهُنَّۚ إِنَّ رَبِّي |
| مولی خپل ته پس تپوس وکړه د هغه نه څه دي حال د هغه ښځو چه پرې کړی ئ وؤ لاسونه خپل. بيشکه خما رب |

---

[1] - نهم حال متعلق د ملاقات د بادشاه سره .

بِكَيْدِهِنَّ عَلِيْمٌ ۝ قَالَ مَا خَطْبُكُنَّ اِذْ رَاوَدْتُّنَّ يُوْسُفَ

دهغوئ په مكر باندې عالم دى وه ويل بادشاه ښخو ته څه واقعه وه ستاسو كله چه تاسو مطالبه كوله د يوسف نه

عَنْ نَّفْسِهٖ ؕ قُلْنَ حَاشَ لِلّٰهِ مَا عَلِمْنَا عَلَيْهِ مِنْ سُوْٓءٍ ؕ قَالَتِ امْرَاَتُ الْعَزِيْزِ

د نفس دهغه ، وه ويل دوئ پاكي ده الله تعالى لره نه يو خبر شوى مونږ په ده باندې د هيڅ ګناه، وه ويل ښځې د وزير

الْـٰٔنَ حَصْحَصَ الْحَقُّ ؗ اَنَا رَاوَدْتُّهٗ عَنْ نَّفْسِهٖ وَاِنَّهٗ لَمِنَ الصّٰدِقِيْنَ ۝

اوس ښكاره شو حق، ما مطالبه كړې وه د ده نه د نفس د ده او بيشكه دې خامخا د ريشتينو نه دې

ذٰلِكَ لِيَعْلَمَ اَنِّيْ لَمْ اَخُنْهُ بِالْغَيْبِ

يوسف وائي چه ، دا اهتمام مې څكه وكړو چه پوهه شي عزيز مصر چه ما خيانت ندې كړې د ده په غيبه

وَاَنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ كَيْدَ الْخَآئِنِيْنَ ۝

او بيشكه الله تعالى نه كاميابوى مكر د خيانت كونكو

﴿وَقَالَ الْمَلِكُ ائْتُوْنِيْ بِهٖ﴾ دانهم حال دې، په دې كښې ديوسف ﷺ د صبر او تحمل بيان دې . بادشاه چه كله دا تعبير واورېده اوساقي ورته د يوسف ﷺ كمالات او محاسن هم بيان كړل نو د يوسف ﷺ ډېر معتقد شو ، او حكم ئې اوكړو چه يوسف دَ جيل نه آزاد كړئ ، اوماته ئې راولئ نوقاصد د بادشاه چه يوسف ته لاړو او د بادشاه پيغام ئې ورته واورولو ، نو يوسف ﷺ اوفر مائل چه څه دجيل نه فوراً نه اوځم ، د بادشاه او د نورو خلقو شك شبه دخيانت به په ما باندې وى ، اګر كه په خوله نه وائى ، نو تر څو پورې چه د تمامو خلقو په مخكښې څما براءت نه وى شوې نو تر هغې پورې زه د جيل نه بهر ته نه اوځم، نو بادشاه دې د دغه خزو نه څما په باره كښې تپوس وكړى چه زما براءت ښكاره شى﴿مَا بَالُ النِّسْوَةِ الّٰتِيْ﴾ تهمت اګر كه ټولو خزو نه وولګولې صرف امراءت العزيز لګولې وو، خو دلته يوسف دهغې ذكر اونه كړو ، حالانكه هغه اصل سبب دتهمت وه، بلكه د ﴿النِّسْوَةِ الّٰتِيْ﴾ ذكر ئې اوكړو دا د پاره درعايت دعزيز څكه چه يوسف ﷺ د هغه په كور كښې پرورش موندلې وو، د شرافت او مروت تقاضا داوه چه د هغه لحاظ اوساتلې شى ، او رسوا نه كړې شى، په بخارى او نورو كتابونو كښې

داحدیث مذکور دي : لولبثت في السجن طولا مالبث لا جبتُ الداعی ، که چرې ما دومره طویل وقت په جیل کښ تیر کړې وې ،څومره چه یوسف ﷺ تیر کړې دي ، نو ما به فوراً اجابت د داعی کړې وې ، یعنی د یوسف ﷺ صبر او حلم ډیر زیات وو. نو **سوال** واردیږی چه د دې نه خو فضیلت ثابتیږی د یوسف ﷺ په رسول ﷺ باندی ، اکثر محدثینو دا **جواب** کړی دي ، چه دا جزوی فضیلت دي ، او دنبی ﷺ فضیلت کلی دي ، او دجزوی فضیلت نه کلی فضیلت نه ثابتیږی . لکه دحضرت عمر ﷺ په باره کښ نبی ﷺ فرمایلی دی چه ای عمر! ته چه په کومه لاره او کوڅه باندې روان ئې نو شیطان په هغه کوڅه نشی تلې ، په بله لاره او کوڅه باندې ځی ، نودا یوجزوی فضیلت دې د عمر ﷺ، لیکن د دې نه دعمر ﷺ فضیلت کلی په ابوبکر ﷺ نه راځی ، او زمونږ شیوخ اساتذه د دې حدیث دا مطلب بیانوی چه ما به فورا اجابت د داعی کړې وې دپاره د دعوت د دین ، اود فائدی رسولو خپل امت ته ، او انتظار به مې نه وې کړی ځکه چه دتهمت احتمال نه وو﴿ قَالَ ﴾ بادشاه ځزې راجمع کړې او وې ویل ورته ﴿مَا خَطْبُكُنَّ ﴾ چه دا څه قصه وه، چه کله تاسو د یوسف ﷺ نه مطالبه اوکړه د هغه د نفس ﴿قُلْنَ حَاشَ ﴾ نوهغوئ اووئیل چه یوسف ﷺ پاك دې ، مونږ ته دهغه هیڅ قسم خیانت نه دې معلوم . ﴿قَالَتِ امْرَأَتُ الْعَزِيزِ ﴾ او امراءة العزیز زلیخا چه مدعیه وه ، او تهمت لګونکې وه هغې هم اقرار اوکړو د پاکئ د یوسف ﷺ په ډیرو وجوهو سره : اول په دې سره چه ﴿أَنَا رَاوَدْتُهُ عَنْ نَفْسِهِ ﴾ دویم ﴿وَإِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ ﴾ ، دریم ﴿ ذَٰلِكَ لِيَعْلَمَ أَنِّي لَمْ أَخُنْهُ بِالْغَيْبِ ﴾ ، بعض وائ چه دا مقوله د زلیخې ده . اومقصود ترینه دا دې چه په وخت د غائب والی دیوسف کښ ما د هغه په باره کښ هیڅ خیانت نه دې کړی ، په بهتان ویلو سره په هغه باندې، لیکن اکثرمفسرین وائی چه داکلام د یوسف ﷺ دې چه دتفتیش او تحقیق کولو نه زما مقصد د چا رسوا کول نه دی ، بلکه دامقصد مې دې چه عزیز مصر اوبادشاه په دې پوهه شی چه ماد عزیز مصرپه کور کښ خیانت نه دې کړې ، او الله ﷻ دخیانت کولو تدبیر نه کامیابوی ، او انجام ئې خراب وی ، د ماقبل او ما بعد کلام نه د دې تول تائید معلومیږی.

دولسمه پاره ختمه شوه ولله الحمد اولاً واخراً

وَمَآ اُبَرِّئُ نَفۡسِىۡ ۚ اِنَّ النَّفۡسَ لَاَمَّارَةٌ ۢ بِالسُّوۡٓءِ اِلَّا مَا رَحِمَ رَبِّىۡ ؕ

او زه نه کړم پاک د خپل ځان بېشکه نفس ډېر فرمان کونکې دې د بدئ . مګر هغه نفس چه رحم وکړي په هغه باندې رب زما

اِنَّ رَبِّىۡ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ۞ وَقَالَ الۡمَلِكُ ائۡتُوۡنِىۡ بِهٖۤ اَسۡتَخۡلِصۡهُ

بېشکه رب زما ښنه کونکې . رحم کونکې دې او وه ويل بادشاه چه دې راولئ ما ته چه زه ئې مقرر کړم

لِنَفۡسِىۡ ۚ فَلَمَّا كَلَّمَهٗ قَالَ اِنَّكَ الۡيَوۡمَ

خاص د کار د خپل ځان لپاره . پس هرکله چه خبرې ئې ورسره وکړې نو وه ويل بادشاه بېشکه ته د نن ورځې نه

لَدَيۡنَا مَكِيۡنٌ اَمِيۡنٌ ۞ قَالَ اجۡعَلۡنِىۡ عَلٰى خَزَآئِنِ الۡاَرۡضِ ۚ اِنِّىۡ

زمونږ په نزد مرتبې والا امانت ګر ئې وه ويل يوسف مقررکړه ما لره په خزانو د زمکې د مصر بېشکه زه

حَفِيۡظٌ عَلِيۡمٌ ۞ وَكَذٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوۡسُفَ فِى الۡاَرۡضِ ۚ

حفاظت کونکې او پوهه يم په تدبير باندې او دغسې مونږ قدرت او اختيار ورکړو يوسف ته په زمکې د مصر کښې

يَتَبَوَّاُ مِنۡهَا حَيۡثُ يَشَآءُ ؕ نُصِيۡبُ بِرَحۡمَتِنَا مَنۡ نَّشَآءُ

اوسوګنه به ئې کوله په دې کښې چرته چه به ئې زړه غوښتله. رسوؤ مونږ خپل رحمت هغه چا ته چه وغواړو

وَلَا نُضِيۡعُ اَجۡرَ الۡمُحۡسِنِيۡنَ ۞ وَلَاَجۡرُ الۡاٰخِرَةِ خَيۡرٌ لِّلَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَكَانُوۡا يَتَّقُوۡنَ ۞

او مونږ نه ضائع کوؤ اجر د نېکی کونکو او خامخا اجر د آخرت غوره دې هغه چا لره چه ايمان ئې راوړې وى او تقوى کوى

﴿ وَمَآ اُبَرِّئُ نَفۡسِىۡ ﴾ حضرت يوسف ﷺ د خپل برآءت دپاره ډېر اهتمام اوکړو . چه د جيل نه تر هغه وخته پورې نه راوته تر څوچه ځزو دمصر دده دبراءت اقرار نه ووکړې . ددې نه عجب خود پسندی معلوميده . اودا هم مذموم صفت دې . نو ددې وجې نه ئې دا کلام ذکر کړو، او خپله تواضع ئې ظاهره کړه. ځکه چې انبياء ﷺ خپل عالى مقام او صفات د فخر په وجه نه ذکرکوى . بلکه تبليغًا ئې ذکرکوى لکه نبى ﷺ فرمايلى دى ((انا سيدولد آدم ولا فخر)) يعنى دا خبره څه د فخر په وجه نه کوم بلکه د تبليغ دپاره ئې کوم ﴿ اِنَّ النَّفۡسَ لَاَمَّارَةٌ ۢ بِالسُّوۡٓءِ ﴾ دا تعليل

د ماقبل دې يعنى د خپل نفس ، تبريه او تزكيه ځكه نه كوم چه نفس خو په خپله اماره بالسوء دې . اوكوم چه اماره بالسوء نه دې بلكه اصلاح ئې شوې ده. نوهغه په فضل او رحم د الله ﷻ شويده ، نو دنفس خپل څه كمال نشته چه تبريه او تزكيه ئې اوشى. او په دې آيت كښې اشاره ده چه نفس دصفاتوپه اعتبار سره درې قسمه دې : يو اماره بالسوء دې .دا نفس د عوامو دې . چه امر كوى انسان ته د ناجائز خواهشاتو اودويم لوامه دې چه په ګناه باندې خپل ځان ملامت كوى ، دې ته اشاره ده په ﴿غَفُورٌ﴾ سره او دريم هغه دې چه كمال اصلاح ئې شوې وى . او په فانى دنيا باندې مطمئن نه وى، بلكه په دائمى نعمتونو دآخرت او دالله په وعدو باندې ئې اطمينان وى ، لكه نفوس د انبياؤ صلحاؤ شو ، نودا نفس مطمئنه دې ﴿إِلَّا مَا رَحِمَ رَبِّيٓ﴾ (ما) عبارت دې د نفس نه او (ما) موصوله دې ، اوعائد د موصول محذوف دې ، نومعنى داشوه چه مګر هغه نفس چه په هغه باندې رحم كړې وى رب ځما په عصمت سره، لكه دنفس دانبياء يا (ما) مصدريه دې ، او وقت مقدر دې ، اى الا وقت رحمة ربى ، ﴿وَقَالَ ٱلْمَلِكُ ٱئْتُونِى بِهِۦٓ﴾ ، بادشاه ته چې كله د واقعې حقيقت واضح شو، نوحكم ئې اوكړو ، چه يوسف ﷺ ماته راولئ ، چه زه ئې خپل مشير خاص جوړ كړم ، يوسف ﷺ چه كله راغې ، او بالمشافه خبرې اترې اوشوې نو بادشاه ته د ده د صلاحيتونو اندازه اوشوه ، نواوې وئيل چه ته مونږ سره لوئ معزز اومعتمد ئې ، مفسرينو ويلى دى چه يوسف ﷺ غسل اوكړو اونوې كپړې ئې واغوستې او د جيل والو دپاره ئې دعا اوكړه ، او تسلى ئې ورله وركړه چه زه به بادشاه ته ستاسو د آزادئ سفارش اوكړم ، او د هغوئ نه رخصت شو ، نوچه د بادشاه مخې ته راغې نوسلام ئې ورته په عربئ ژبه كښې اوكړو، اودعا ئې ورته په عبرانى كښې اوكړه نو بادشاه په دې دواړو ژبو نه پوهيدلو ، نوتپوس ئې اوكړو، نويوسف ﷺ اويل چه دا يوه ژبه يعنى عربى زما د نيكه (دپلار تره) اسماعيل ﷺ ژبه ده ، اودابله يعنى عبرانى زما د آباؤ ژبه ده ، او بادشاه په اوياؤ ٧٠ ژبو يعنى لغاتو باندې پوهيدلو نوپه كومه ژبه چې به ئې د يوسف ﷺ سره خبرې كولې نو دوئ به جواب وركولو. بيا بادشاه يوسف ﷺ ته عرض اوكړو چه زه تاته خپل خوب بالمشافه بيانول غواړم ، نويوسف ﷺ هغه ته اووئيل چه ستا خوب به زه تاته په تفصيل باندې اوايم ، او داسې تفصيل ئې بيان كړو چه تر اوسه پورې بادشاه چاته نه وو ويلې. بادشاه حيران شو ، اوديوسف ﷺ نه ئې مشوره طلب كړه ، نويوسف ﷺ اووئيل چه اووه كاله دې

کرونده اوکړې شی، اوغله دې محفوظه کړې شی، بادشاه اووئيل چه د دې لوئ کار انتظام به څه رنګبه اوکړې شی، نويوسف ﷺ اووئيل ﴿ قَالَ اجْعَلْنِي عَلَىٰ خَزَائِنِ الْأَرْضِ ﴾ زه دا کار کولې شم، ځکه چه زه حفيظ يم ، سرکاری مال نه ضائع کوم ، اوبې ضرورته ئې نه لګوم اوعليم يم په مصارفو، په تدبيرونو، د وزيرخزانه دپاره دوه څيزونه ضروری وی يوامانت، ديانت اوبل واقفيت په مصارفو او پوهه په تدبيرونو، نويوسف ﷺوائی چه دا دواړه صفتونه په ما کښې موجود دی ، بادشاه اګر که ديوسف ﷺمعتقد شوې وو، ليکن بياهم د تجربې دپاره ئې يو کال خپل ځان سره د معززميلمه په حيثيت اوساتلو ، او يوکال بعد ئې ورته وزارت خزانه بلکه د ټول مملکت امورحواله کړل ، مفسرينو ليکلې دی (کمافي شربينی وغيره) چه بادشاه د يو کال نه بعد يوسف ﷺ ته خپل تاج اوګوتئ (شاهی مهر) ورکړل، او خپله توره ئې ورته حواله کړه ، او تخت ئې ورته حواله کړو چه هيرو اوزرونه جوړوو، اوملغلرې، ياقوت پرې لګولې شوی وو، چه طول ئې ديرش ګزه وو، او عرض ئې لس ګزه وو، نويوسف ﷺ اويل چه دتخت په ذريعې سره به زه د ملك استحکام راولم اوپه مهر سره به زه تدبير داموروکوم ،اوهر چه تاج دې ، نودا ندې لباس زما ، اونه د آباؤ زما ، بادشاه يوسف ﷺ ته اووئيل چه بهر شه ، چه بهر شو نو مخ ئې د سپوږمئ پشان پرقيده او په شاهی تخت جلوه افروز شو، او بادشاهان وزيران ئې تابع شول ، محمد بن اسحاق په روايت د ابن زيد سره نقل کړی دی چه د مصر دبادشاه ډيرې خزانې وې نوټولې خزانې او ټول امور دمملکت يې يوسف ﷺ ته حواله کړل، او عزيز مصر (قطفير ) مړشو، او د هغه د بی بی زليخې نيکاح ئې د يوسف ﷺ سره اوکړه ، او يوسف ﷺ دې لره باکره اوموندله، ځکه چه عزيز مصر نامرد وو، اود يوسف ﷺ د دې نه ، دوه نارينه بچی پيداشول، ديونوم افرائيم ، اود بل نوم ميشا وو، داتاريخی روايت دې چه شربينی ،کشاف ،بغوی، وغيره هم په تفصيل سره ذکر کړې دې ، اودا هم روايت دې ، چه يوسف ﷺ به ځان په روټئ باندې نه مړولو، نوچاورته اووئيل چه ته ولې په مړه خيټه روټئ نه خورې، اوحال داچه تاسره د ملك خزانې دی ، نو دوئ اووئيل چه که زه خپل ځان موړ کړم نود غريبانو د لوږې احساس به راته نه کيږې او باورچی ته ئې حکم اوکړو چه ماته صرف د غرمې په وخت د نيمې خيټې روټئ راکوئ ، د دې دپاره چه ماته احساس وی د غرباؤ

**فائده** (۱) : اوس يوسف ﷺ چه ﴿إِنِّي حَفِيظٌ عَلِيمٌ﴾ وائ نومقصود ترينه تزکيه د خپل نفس نده ، او د (فلاتزکوا انفسهم) ماتحت ندی داخل بلکه مقصود د ينه خبرول د بادشاه دی

د خپل فضل اوكمال نه ، د پاره د نفع رسولو مخلوق نه ، او د دې نه معلومه شوه چه نبی په ملكي سياست باندې د ټولو خلقونه زيات پوهيږی

**فايده** (٢): ﴿ٱجْعَلْنِى عَلَىٰ خَزَآئِنِ ٱلْأَرْضِ﴾ طلب دعهدې دې ، او حال دا چه په حديث كښې د دې نه منع راغلې ده، نبی ﷺ عبدالرحمٰن ابن سمره ته اوفرمائل چه د امارت او عهدې طلب مه كوه، اوكه تا داسې اوكړل ، نو د الله د طرف نه به ستا تائيد نه وی . او كه بغير د طلب نه تاته امارت او عهده ملاوشی، نو دالله د طرف نه به تائيد او اعانت وی. دغه شان په بل روايت كښې دی (انا لن نستعمل علی عملنا من اراده) يعنی څوك چه په خپله طلب اوكړی ، نو هغه ته مونږ عهده نه وركوو.

**جواب**: چړ ته چه دامعلومه شی سړی ته چه دا عهده د نا اهل او خود غرض په لاس ورځی او د الله ﷻ د مخلوق سره بې انصافی كوی او دَ خلقو حقوق ضائع كيږي او د خپل ځان په باره كښې ئ دا اميد وی چه څه دا عهده په صحيح طريقې سره سمبالولې شم ، نوپه دې صورت كښې طلب د عهدې جائز بلكه واجب دې ، ليكن د جاه او مال د طلب دپاره جائز نه دې ، بلكه د اللهﷻ دمخلوق د خدمت په جذبه او اراده سره جائز بلكه واجب دې ، د صحابو كرامو چې كوم اختلافات راغلی دی، لكه د علی ؓ اومعاويه ؓ يا دحضرت حسين ؓ يا د عبدالله بن زبير نو دا ټول په دې باندې مبنی وو چه هر يو به دا خيال كولو چه د دې وقت فرائض د خلافت زه د خپل مقابل نه زيات په خې طريقې سره پوره كولې شم ، د جاه او مال طلب د دوئ مقصود نه وو

**فايده** (٣): يوسف ؑ دكافر بادشاه ملازمت او وزارت قبول كړو حال دا چه د (فلن اكون ظهيرا للمجرمين) نه معلوميږی چه د كافر ملازمت ناجائز دې.

مجاهد ؒ وايي بادشاه د مصر په دغه وقت كښې مسلمان شوې وو. او عام مفسرين وائی چه د كافر بادشاه ملازمت په دې شرط سره جائزدې چه په خلاف شرع كار اوقانون جاری كولو باندې مجبوره كول نه كوی څكه چې په دې صورة كښې د مجر م تعاون په جرم او گناه كښې نه رازی او يوسف ؑ ته څه مكمل اختيار حاصل وو.

﴿وَكَذَٰلِكَ مَكَّنَّا﴾ يعنی لكه چې څرنگه مونږ يوسف ؑ د كوهی نه راويستلو اوبيا مو دجيل نه آزاد كړو ، نو د دې نعمت پشان مونږ ده ته بل نعمت هم وركړو چه قوت او اقتدار دې په زمكه د مصر كښې ﴿يَتَبَوَّأُ مِنْهَا حَيْثُ يَشَآءُ﴾ استوگنه ئې كوله چرته چې به ئې زړه غوختل .

خکه چه ټول مملکت د ده په تصرف کښې وو ﴿بِرَحْمَتِنَا﴾ بادشاهي او مالداري چه د دين د پاره استعماليږي نو دا هم رحمت دي ﴿وَلَا نُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ﴾ مومن ته الله د تقوى او ايمان په وجه دنيا کښې خوشحالي، حيات طيبه ورکوي، ليکن دَ دنيوي نعمت ورکولو په وجه ئې د آخرت درجانو کښې کموالي نه راځي ، لکه د حديث مفهوم دي ، چه الله ﷻ په دې وجه د مومن نيکي نه کموي چه په دنيا کښې ئې ورله نعمتونه ورکړي دي ، او کافر چه څه نيکي کړې وي . لکه صله رحمي وغيره. نو د هغې بدله ورله په دنيا کښې پوره پوره ورکوي ، او په آخرت کښې ورله هيڅ نه وي ، نو د دې وجې نه ﴿وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ﴾ ذکر شو، روى مسلم ان الله لايظلم المؤمن حسنة يعطى بها فى الدنيا ويثاب عليها فى الأخرة واما الكافر فيطعم بحسنته فى الدنيا حتى اذا افضى الى الآخرة لم تكن له حسنة يعطى بها خيرًا.

﴿آمَنُوا وَكَانُوا يَتَّقُونَ﴾ يعني د آخرت اجر صرف په ايمان او تقوى سره حاصليږي .

| |
|---|
| وَجَاءَ إِخْوَةُ يُوسُفَ فَدَخَلُوا عَلَيْهِ فَعَرَفَهُمْ وَهُمْ لَهُ مُنْكِرُونَ ۝ وَلَمَّا |
| او راغلل رونړه د يوسف پس داخل شو په هغه پس هغه وپيژندل دوئ لره او دوئ هغه نه پيژندلو. اوهرکله |
| جَهَّزَهُمْ بِجَهَازِهِمْ قَالَ ائْتُونِي بِأَخٍ لَكُمْ مِنْ أَبِيكُمْ |
| چه تيار کړو هغه دوئ لره سامان د سفر د دوئ نو وې ويل چه راولئ ما ته رور ستاسو چه ستاسو د پلار نه دې ، |
| أَلَا تَرَوْنَ أَنِّي أُوفِي الْكَيْلَ وَأَنَا خَيْرُ الْمُنْزِلِينَ ۝ فَإِنْ لَمْ تَأْتُونِي بِهِ |
| آيا تاسو نه ګورئ چه څه پوره درکوم راشن او زه بهترين مهمان نواز يم. پس که تاسو رانه وستلو هغه |
| فَلَا كَيْلَ لَكُمْ عِنْدِي وَلَا تَقْرَبُونِ ۝ قَالُوا سَنُرَاوِدُ |
| نونه به وي طعام راشن تاسو لره ما سره اونه به ما ته نزدې کيږئ. وه ويل دوئ زر دې چه مونږ به طلب وکړو |
| عَنْهُ أَبَاهُ وَإِنَّا لَفَاعِلُونَ ۝ |
| دهغه ، د پلار دَهغه نه او بيشکه مونږ دا کار کونکي يو |

﴿وَجَاءَ إِخْوَةُ يُوسُفَ﴾ دالسم حال دې ، په دې کښې بيان دراتلو د رونړو د يوسف د ع . . ه

کله چې یوسف په مصر باندې خودمختار شو، نو اوه کاله ئې ملك خه آباد کړو. او د غلې زخیره ئې جمع کړه . بیا اوه کاله قحط شروع شو،او دَ قحط اثر د مصر نه علاوه کنعان اوفلسطین ته اورسیدلو ، یوسف ﷺ تقسیم د غلې شروع کړو . او فی کس چه حاضر به وویو بار د اوښ غله به ئې په ډیر مناسب قیمت سره ورکوله ، نو دا خبر یعقوب ﷺ ته اورسیده، نوهغه خپل لس (۱۰) ځامن راولیږل اوهر کله چه یوسف ﷺ ته راغلل نو یوسف اوپیژندل، ځکه چه د دوئ په هیئت، وضع، قطع کښې ډیر تغیر نه وو راغلې. او یوسف د دوئ نه د نوم نسب اومقام تپوسونه هم اوکړل. او دخپل پلار او ټولې کورنئ حالات ئې ترینه معلوم کړل. اودوئ یوسف نه پیژندلو. ځکه چه یوسف ددوئ نه د جداکیدو په وخت کښې وړوکې وو، نوپه هیئت کښې ئې تغیر ډیر راغلې وو، او ددوئ داګمان هم نه ؤو چه یوسف ﷺ به ژوندې وی، او دوئ دا جرأت هم نشو کولې چه د نوم نسب تپوس ئې ترینه کړې وې ، نو د دې وجې نه دوئ یوسف ﷺ اونه پیژندلو، ﴿ وَلَمَّا جَهَّزَهُم بِجَهَازِهِمْ ﴾ جهاز سامان دسفرته وائی، هر کله چې یوسف ﷺ دوئ له غله اونور ضروریات د سفر برابر کړل نو دوئ طلب اوکړو چه زمونږ د غائب رور حصه هم مونږ ته راکړه، نویوسف ﷺ اوفرمائل چه غائب ته حصه نه ملاویږي ، هغه حاضر کړئ نو حصه به ورته ملاؤ شی. او مفسرینوپه روایت د سدی ﷫ سره داهم لیکلی دی چه رونړه د یوسف ﷺ هر کله راغلل، نویوسف خو اوپیژندل ، لیکن د مزید اطمینان دپاره ئې ترینه تفتیش شروع کړو، ورته ئې اووئیل چه تاسو خو د مصر خلق نه یئ اوستاسو ژبه عبرانی ده ، نوتاسو څرنګه دلته راغلی یئ ، نو دوئ اووئیل چه زمونږ په ملك کښې قحط دې، او مونږ ستا صفت اوریدلې وو، نو د غلې وړلو دپاره راغلی یو، یوسف دوئ ته اووئیل چه تاسو چرته زمونږ د دشمن دپاره جاسوسان نه یئ ، دوئ اووئیل معاذالله مونږ د پیغمبر اولاد یو، یعني یعقوب بن اسحاق بن ابراهیم ﷺ، نو یوسف ﷺ ترینه بیا تپوس اوکړوچه تاسو څو رونړه یئ نو دوئ تفصیل بیان کړو چه زمونږ یو رور په وړوکوالی کښې په ځنګل کښې لاپته شوې دې ، او زمونږ دپلار هغه سره ډیر محبت وو. او د تسلی دپاره ئې دهغه یل حقیقی رور دځان سره حصار کړې دې ، اوباقی لس رونړه مونږ د غلې دپاره راغلی یو، یوسف دوئ په شاهی مهمان خانه کښې دیره کړل او ډیر اعزاز او اکرام ئې ورله اوکړو. او د یوسف ﷺ خواهش وو چه دوئ دوباره راشی ، او بل رور د ځان سره راولی نو دوئ دپاره ئې دوه کارونه اوکړل ، یو ترغیب اوترهیب اوبل دا چه د دوئ رقم ئې په

خفیه طورسره واپس کړو، ترغیب دا چه ﴿أَلَا تَرَوْنَ أَنِّي أُوفِي الْكَيْلَ﴾ یعنی غله دانه هم پوره ورکوم اومهمان نوازی هم کوم، او ترهیب دا دي چه ﴿فَإِن لَّمْ تَأْتُونِي بِهِ﴾ که تاسو هغه بل رانه وستلو نو بیا به تاسو ته غله نشی درکولې، او نه به ستاسو اعزاز او اکرام وی. څکه چې ماته به معلومه شی چه تاسو دروغ ویلیدی، نو دوئ اووئیل ﴿سَنُرَاوِدُ عَنْهُ أَبَاهُ﴾ یعنی د پلار نه هغه جدا کول اګر که مشکل دی لیکن مونږ به کوشش کوو چه په څه طریقې سره ئ پلار راضی کړواو رور د ځان سره راولوو

| |
|---|
| وَقَالَ لِفِتْيَانِهِ اجْعَلُوا بِضَاعَتَهُمْ فِي رِحَالِهِمْ لَعَلَّهُمْ يَعْرِفُونَهَا |
| او وه ویل یوسف خپلو نوکرانو ته کیږدئ د دوئ قیمت ادا کړې شوې په سامان د دوئ کښ د دې لپاره چه دوئ ئ وپیژنی |
| إِذَا انقَلَبُوا إِلَىٰ أَهْلِهِمْ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ۝ فَلَمَّا رَجَعُوا إِلَىٰ أَبِيهِمْ |
| کله چه دوئ واپس لاړشی خپلوانوته شاید چه دوئ واپس راشی. پس هرکله چه دوئ واپس ورسیدل پلار ته |
| قَالُوا يَا أَبَانَا مُنِعَ مِنَّا الْكَيْلُ فَأَرْسِلْ مَعَنَا أَخَانَا |
| نو وه ویل دوئ اې پلاره زمونږ! منع کړې شویدې زمونږ نه راشن (په آینده کښ) پس ولیږه زمونږ سره زمونږ دا رور |
| نَكْتَلْ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ۝ قَالَ هَلْ آمَنُكُمْ عَلَيْهِ |
| چه راشن راوړو او بیشکه مونږ به د ده خامخا حفاظت کوؤ. وه ویل ده چه اعتمادیان نه ګرخوم تاسو پده باندې |
| إِلَّا كَمَا أَمِنتُكُمْ عَلَىٰ أَخِيهِ مِن قَبْلُ ۖ فَاللَّهُ خَيْرٌ حَافِظًا ۖ |
| مګر په شان دهغې چه اعتمادیان مې ګرځولی وئ تاسو په رور د ده، مخکښې لدې نه، پس الله تعالی ډیر ښه حفاظت کونکې دې |
| وَهُوَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ ۝ وَلَمَّا فَتَحُوا مَتَاعَهُمْ وَجَدُوا |
| اوهغه زیات مهربانی کونکې دې د نورو مهربانی کونکو نه اوهرکله چه دوئ پرانستل سامانونه خپل نو وه ئ موندلو |
| بِضَاعَتَهُمْ رُدَّتْ إِلَيْهِمْ ۖ قَالُوا يَا أَبَانَا مَا نَبْغِي ۖ هَٰذِهِ بِضَاعَتُنَا |
| قیمت خپل چه واپس کړې شوې وؤ دوئ ته، وه ویل دوئ: اې پلاره زمونږ! مونږ لانور څه غواړو، دا زمونږ قیمت دې |

| وَنَزْدَادُ | اَخَانَا | وَنَحْفَظُ | اَهْلَنَا | وَنَمِيْرُ | اِلَيْنَا | رُدَّتْ |
|---|---|---|---|---|---|---|

چه واپس کړې شوې دي مونږ ته، او غله به راوړو مونږ خپل اهل ته او حفاظت به کوو د خپل رور او زيات به راوړو

كَيْلَ بَعِيْرٍ ۭ ذٰلِكَ كَيْلٌ يَّسِيْرٌ ۞

يو بار د اوښ ، دا (چه مونږ راوړي دي) طعام لږ دي

﴿ وَقَالَ لِفِتْيٰنِهِ اجْعَلُوْا ﴾ دادويم تدبير دي چه يوسف ﷺ نوكرانو ته اووئيل د دوئ هغه رقم د دوئ په بارونو كښې په خفيه طور باندې كيدئ، د دې دپاره چه دوئ بيا واپس راشي مفسرينو په دې كښې يوځو احتمالات ويلي دي. يودا چه يوسف ﷺ د دوئ نه قيمت اخستل نامناسب اوګڼړل اودا خيال ئ اوكړو چه دا قيمت به څه سركاري خزانې ته د خپل طرف نه وركړم ، دويم دا چه كيدې شي چه كور كښې د دوئ قيمت نه وي نوځكه ئ واپس كړو ، دريم دا چه دا قيمت د حكومت مصر د خزانې امانت دې نو دوئ چه دا اويني نو خامخا به ئ واپس كوي، باقي دا سوال چه يوسف ﷺ بادشاه شو او د خبر ليږلو ذرايع ورسره موجود وۆ نو ولې ئ خپل پلار ته خبر نه كولو ،حالانكه هغه په دومره ډير تكليف او غم كښې وو چه د سترګو نظر ئ په ژړاسره ضايع شوې وو ، دَدې جواب كښې تفسير قرطبي اونوروحضراتو داروايت ذكر كړې دې چه الله په ذريعې د وحی سره يوسف منع كړې وو ، دخبرليږلونه ، اود الله په هر كار كښې بيشماره حكمتونه وي نو يو داهم كيدې شي چه دَ امتحان او ازمائش تكميل اوشي، والله اعلم.

﴿ فَلَمَّا رَجَعُوْٓا اِلٰٓى اَبِيْهِمْ ﴾ څامن د يعقوب ﷺ چه كله كور ته واپس شو نو هغه ترينه كارګزاري طلب كړه ، نو دوئ اووئيل چه عزيز مصر (يوسف) زمونږ ډير اعزاز او اكرام اوكړو او غله ئي هم راكړه مګر د بنيامين ئي نه ده راكړې، بلكه دهغه حصه ئ د آينده دپاره منع كړې ده ، تر څو چه دې په خپله نوی حاضر شوې، نو د ددې وجې نه د دوباره غلې راوړلو دپاره ته دې مونږ سره اوليږه ، چه مونږ غله راوړو اومونږ به د ده حفاظت خامخا كوو﴿ مُنِعَ مِنَّا الْكَيْلُ ﴾ دامنع مشروطه ده په نه راوستلو د رور پورې ﴿ نَكْتَلْ ﴾ صيغه د جمع متكلم ئ ځكه ذكر كړه چه كيل د ټولو رونړو مشروط وو په حاضرولو د رور پورې ، ﴿ قَالَ ﴾ يعقوب ﷺ ، اووئيل ﴿ هَلْ اٰمَنُكُمْ عَلَيْهِ ﴾ (هل) د استفهام انكاري دپاره دې، يعنی څه تاسو اعتماديان نه ګرزوم ﴿ اِلَّا كَمَآ اَمِنْتُكُمْ ﴾ ای الا ائتمانا

مثل اعتماد ايا كم ﴿عَلَىٰٓ أَخِيهِ مِن قَبْلُ﴾ يعني تاسو د يوسف عليه السلام په باره كښې هم ﴿وَإِنَّا لَهُۥ لَحَٰفِظُونَ﴾ ويلي وو . او بيا خو مو وعده خلافي كړې وه . نو په تاسو زما اعتماد نشته چه ستاسو په حفاظت كښې يې تاسو سره اوليږم بلكه د الله حفاظت كښې يې ليږم ، ځكه چه هغه بهترين حفاظت كونكې دې ، د دې آيت مقصد دادې چه يعقوب عليه السلام ته د دوئ مطالبه منل نه وه خوخه ، ليكن د ضرورت دوجې نه ئې اومنله ، هغه دا چه كه دې اونه ليږم ، نو ټول خاندان به د لوږې نه هلاك شي . او كه اويې ليږم نو رونړه به دده سره دومره ډير حسد نه كوي ، څومره چه ئې د يوسف سره حسد وو . نو غالب ګمان دې . چه صحيح سالم واپس شي ، او كه بالفرض دا يو هلاك شي نو باقي خاندان خو به بچ شي ﴿فَٱللَّهُ خَيْرٌ حَٰفِظًا﴾ (حافظًا) تميز دې لكه لله دره فارسًا ، يعني الله ډير خه دې په جهت د حفاظت كونكې سره ، يعني ډير خه حفاظت كونكې دې .

﴿وَلَمَّا فَتَحُوا۟ مَتَٰعَهُمْ﴾ دا مخكښې ګفتګو د سامان د كلاولو نه قبل وه ، او هر كله چه سامان ئې كلاؤ كړو ، نو دوئ اوويل ﴿مَا نَبْغِى﴾ د متاع نه مراد غله ده يا ظروف دي او د بضاعة نه مراد قيمت د غلې دې ﴿مَا نَبْغِى﴾ نور وخه غوارو مونږ ، مونږ ته قيمت د غلې واپس كړې شويدې ، دوئ ته دا معلومه شوه چه قيمت ئې مونږ ته د احسان په طريقه واپس كړې دې ، نو قيمت يعني ثمن مونږ سره موجود دې او غلې ته خو ضرورت دې ، نو چه دا رور زمونږ سره لاړ شي ، نو مونږ به خپل اهل ته طعام راوړو او د رور حفاظت به كوو او يو بار به د غلې زيات راوړو ﴿ذَٰلِكَ كَيْلٌ يَسِيرٌ﴾ د دې دوه ترجمې دي ، يو دا چه غله په كم قيمت ملاويږي نو راوړل ئې پكار دي ، دويمه ، دا غله چه مونږ راوړې ده دا لكه ده زر به ختمه شي ، نو ځكه بيا تلل پكار دي .

**فائده** . لفظ د كيل په څلورو معنو سره راځي ، يو په معنى د اوګي سره ، دويم په معنى د غلې سره ، لكه په دې آيت كښې ، دريم : بار ، كيل بَعِيْر ، څلورم ، جوك ، اوفى الكيل .

| قَالَ لَنْ أُرْسِلَهُۥ مَعَكُمْ حَتَّىٰ تُؤْتُونِ مَوْثِقًا مِّنَ ٱللَّهِ لَتَأْتُنَّنِى بِهِۦٓ |
| --- |
| وه ويل يعقوب هرګز نه ليږم دې تاسو سره تر دې چه راكړئ ما ته كلكه وعده د الله تعالى چه ضرور به دې راولئ ما ته |
| إِلَّآ أَن يُحَاطَ بِكُمْ ۖ فَلَمَّآ ءَاتَوْهُ مَوْثِقَهُمْ قَالَ ٱللَّهُ |
| مګر كه راګير كړې شوئ تاسو ، پس هركله چه دوئ وركړه هغه ته پخه وعده ، وه ويل هغه چه الله تعالى |

| |
|---|
| عَلٰى مَا نَقُوْلُ وَكِيْلٌ ﴿٦٦﴾ وَقَالَ يٰبَنِيَّ لَا تَدْخُلُوْا مِنْۢ بَابٍ وَّاحِدٍ وَّادْخُلُوْا |
| په هغې وينا چه مونږ يې وايو نګهبان دې وه ويل ده اې بچو زما ! مه داخلېږئ د يوې دروازې نه او داخلېږئ |
| مِنْ اَبْوَابٍ مُّتَفَرِّقَةٍ ؕ وَمَاۤ اُغْنِيْ عَنْكُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ ؕ اِنِ الْحُكْمُ |
| د جدا جدا دروازو نه، او زه نشم دفع کولې ستاسې نه د تقدير د الله تعالى نه هيڅ شې ، ندې حکم (واك ، اختيار) |
| اِلَّا لِلّٰهِ ؕ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ ۚ وَعَلَيْهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُوْنَ ﴿٦٧﴾ |
| مګر خاص الله تعالى لره دې ، په هغه زما توکل دې او خاص په هغه باندې دې توکل وکړى توکل کونکى |
| وَلَمَّا دَخَلُوْا مِنْ حَيْثُ اَمَرَهُمْ اَبُوْهُمْ ؕ مَا كَانَ يُغْنِيْ عَنْهُمْ |
| اوهر کله چه دوئ داخل شو [1] دهغه ځائ نه چه امر کړې وو دوئ ته پلار د دوئ، نه وو هغه چه دفع کړې ئ وې د دوئ نه |
| مِّنَ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ اِلَّا حَاجَةً فِيْ نَفْسِ يَعْقُوْبَ قَضٰىهَا ؕ وَاِنَّهٗ لَذُوْ عِلْمٍ |
| دتقدير دالله تعالى نه څه شې، مګر يو ارمان وو په زړه د يعقوب کښ چه پوره ئ کړو، بيشکه دې خامخا خاوند دعلم وو |
| لِّمَا عَلَّمْنٰهُ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٦٨﴾ |
| د دې وجه نه چه علم ور کړې وو مونږ هغه ته ليکن اکثر خلق نه پوهيږي |

﴿ قَالَ لَنْ اُرْسِلَهٗ مَعَكُمْ ﴾ يعقوب عليه السلام د خپلو ځامنو نه مضبوطه وعده واغستله چه دې به خامخا واپس راولئ دا ظاهرى اسباب وو، او بيا ئى اظهار د اعتماد وکړو ، په الله ﷻ باندې او دا حقيقت د توکل دې ، او د دې حکم دې هر چاته ﴿ اِلَّاۤ اَنْ يُّحَاطَ بِكُمْ ﴾ يعنى که تاسو ټول په تکليف او بلاء کښ راګير شئ نو پروا نشته که بنيامين تاسو سره ګير شي ، ليکن که تاسو سالم يئ او صرف بنيامين راګير شي نو دا څه نه منم ﴿ وَقَالَ يٰبَنِيَّ لَا تَدْخُلُوْا مِنْۢ بَابٍ وَّاحِدٍ ﴾ هر کله چه دوئ مصر ته دتلو اراده اوکړه ، نو يعقوب عليه السلام ورته اووئيل چه تاسو مصر ته قريب شئ نو متفرق داخليږئ او په يوه دروازه مه داخليږئ، په دې کښ دوه حکمتونه دى : يو دا چه مصر

---

۱ - يورلسم ۱۱ حال

والا حسد اونکړی چه دوئ زمونږ توله غله خلاصه کړه، اودویمه دا چه نظربد په دوئ اونه لږی. یعقوب ﷺ اول څل دوئ ته دا تدبیر نه وو خودلې، ځکه چه په وړومبی ځل خو دوئ د عامو خلقو په شان په غیرد څه امتیازی شان نه داخل شوی وو، اودا دویم واري خلقو پیژندلی وو. او د یوسف ﷺ په دعوت سره مصر ته په امتیازی شان سره داخلیدل ، او بل دا چه اول وار ورسره بنیامین نه وو، او دویم وار ورسره وو، اویعقوب ﷺ د یوسف ﷺ نه بعد د ده سره محبت زیات وو. نود دې وجه نه ئی اهتمام وکړو چه جداجدا داخل شئ.

**فائده** د بد نظرۍ په باره کښې احادیث په کثرت سره راغلیدی ، په یو روایت کښې دی، (العین حق) یعنی نظرِ بد حقیقت دې وهم پرستی نده، او په بل روایت کښې دی (العین حق ولوکان شیئ سابق القدر لسبقته العین) یعنی نظر حق دې ، اوکه څه شې د تقدیر نه مخکښې کیدې شوې نو نظر به ترینه مخکښې شوې وو، لیکن د تقدیر نه څه شې نشی مخکښې کیدې، او په بل روایت کښې دی (ان العین لتدخل الجمل القدر والرجل القبر) یعنی بدنظر اوښ دیګچې ته داخلوې او انسان قبر ته رسوی ، او د چاچې نظر لګی نوهغوئ دې څه څیز ته دعجب په نظر نه ګوری ، یا دې دالله ذکر کوی ، ماشآ ء الله لاقوة الابالله ، لاحول ولا قوة الابالله دې وائی ، او په چاچه نظر لګیدلې وی ، نو د هغه دپاره شرعی دمونه او طریقې دی ، معوذتین (یعنی آخری دوه قُل) او اعیذك بکلمات الله التامة من کل شیطان وهامة ومن کل عین لامة ، دحسن بصری رحمه الله نه منقول دی چه ﴿فَاجْتَبٰهُ رَبُّهٗ فَجَعَلَهٗ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ﴾ تر آخره پورې دنظر بد علاج دې ، او یوه طریقه په حدیث د مسلم کښې (رواه مسلم) (واذا ستُغسِلتُم فاغسلو) راغلیده چه د هغې طریقه علماؤ دا خودلې ده چه لاسونه ځنګلې او خپې، زنګونونه داخل الازار یعنی د لنګ یا د پرتوګ هغه اندرونی حصه چه د بدن سره لګیدلې وی دا اوینځلې شی او اوبه ئ په معیون یعنی په هغه چاچه نظر لګیدلې وی په هغه واچولې شی. مفسرینو ویلی دی چه د نظر حقیقت دادې چه د عائن په نفس کښې خبیث مضر جراثیم وی ، او سترګو د شعاع په ذریعه سره هغه معیون ته ولګی ، نوبیمار شی، امام رازی او نور محققین وائی چه تاثیر څلور قسمه دې : **اول** : تاثیر د جسمانی په جسمانی کښې لکه د زهرویا د دوائی تاثیر په بدن کښې ، **دویم** : تاثیر د روحانی په روحانی کښې لکه دَ صحیح مرشد توجه په نفس د مرید کښې اثر کوی ، **دریم** : تاثیر د روحانی په جسمانی کښې لکه نظر بد

يا سحر اثر په جسم کښې کوی ، **خلورم** : تاثير د جسماني په روحاني کښې لکه تاثير د صور حسنو په نفس دَ انسان کښې چه سړي يو ښائسته صورت ته اوګوري نو د هغه محبت ئې په زړه کښې پيدا شي، يا په ليدلو د قبيح څيز سره د هغې نفرت د هغه په زړه کښې راشي . او تاثير دَ رقص او د ګانو په بعض نفوسو کښې ، داهم د دې قبيلې نه دې . او دا رنګه تاثير د بيان لکه په حديث کښې دی چه ان من البيان لسحرًا .

﴿وَمَآ أُغْنِي عَنكُم﴾ يعني څما په دې تدبير سره تقدير نه دفع کيږي. البته تدبير کول د الله ﷻ حکم دې ، نو تدبير پکار دې ، ليکن اعتماد به صرف د الله ﷻ په ذات وی . ګويا که يعقوب ؈ خپلو ځامنو ته اووئيل چه زما په شان تاسو هم اعتماد د الله په حفاظت کوئ ﴿إِنِ الْحُكْمُ﴾ حکم تکويني او تشريعي دواړه خاص الله ﷻ لره دی ﴿عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ﴾ د اسبابو اختيارولو نه بعد توکل ذکر شو ، نو معلومه شوه چه توکل ترک د اسبابو ته نه وائی .

﴿وَلَمَّا دَخَلُوا مِنْ حَيْثُ أَمَرَهُمْ أَبُوهُم﴾ دا يو ولسم حال دې اوجواب د (لما) محذوف دې (ای وقع ما قضی الله الا حاجةً) ، الاّ په معنی د لکن سره دې او د حاجةً نه قبل فعل محذوف دې چه اظهر دې او (قضاها) په معنی د اظهر سره تفسير د دغه محذوف فعل دې او دحاجت نه مراد شفقت دې په اولاد باندې، ﴿مَّا كَانَ يُغْنِي﴾ يعقوب ؈ ويلی وو ﴿وَمَآ أُغْنِي عَنكُم مِّنَ اللَّهِ مِن شَيْءٍ﴾ نو الله د ده تصديق اوکړو چه ﴿مَّا كَانَ يُغْنِي﴾ اشاره ده د يته چه دغه کلام ئې تواضعًا نه وو ويلې ، بلکه حقيقت وو ، چه يعقوب ؈ دوئ نه تقدير دفع نه کړو دوئ اګر که د نظر بد نه بچ شو ، ليکن تقدير دفع نه شو ، اوبنيامين د غلا په الزام کښې اونيولې شو ﴿وَإِنَّهُ لَذُو عِلْمٍ﴾ يعقوب ؈ تدبير هم اوکړو او اعتماد ئې په تقدير اوکړو نو الله د ده صفت بيان کړو چه دې د لوئ علم خاوند وو. څوك چه په تقدير يقين لری او اسباب هم په استعمال کښې راولی نو دا د علم خاوند دې ، او څوك چه صرف په اسبابو تکيه اوکړی او د تقدير نه انکار اوکړی يا فقط تقدير منی او اسباب معطل کړی نو دا بې علمه وی، عالم عارف تقدير او تدبير دواړه جمع کوی .

﴿وَلَمَّا دَخَلُوا عَلَىٰ يُوسُفَ آوَىٰ إِلَيْهِ أَخَاهُ ۖ قَالَ إِنِّي أَنَا أَخُوكَ﴾

اوهرکله چه دوئ داخل شو په يوسف باندې د خپل ځان سره ئې يوځائ کړو خپل رور ، وې ويل هغه ته بيشکه زه ستا رورېم

فَلَا تَبۡتَىِٕسۡ بِمَا كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ ۞ فَلَمَّا جَهَّزَهُمۡ بِجَهَازِهِمۡ جَعَلَ

پس مه خفه کېږه په هغه کارونو چه دوئ کول پس هرکله چه تيار ئ کړو دوئ لره سامان د سفر د دوئ نو کېښودلو ئ

السِّقَايَةَ فِيۡ رَحۡلِ اَخِيۡهِ ثُمَّ اَذَّنَ مُؤَذِّنٌ اَيَّتُهَا الۡعِيۡرُ اِنَّكُمۡ لَسٰرِقُوۡنَ ۞

جام د اوبو څکلو په بار د رور خپل کښ، بيا اعلان وکړو يو اعلان کونکی : اې قافلې والو بيشکه تاسو غلاګرين

﴿وَلَمَّا دَخَلُوۡا عَلٰى يُوۡسُفَ﴾ هر کله چه دَ يوسف ﷺ رونړه دوباره مصر ته راغلل نو دوئ عزيز مصر (يوسف) ته اويل چه مونږ ستا د حکم موافق کشر رور د ځان سره راوستې دې . يوسف د دوئ اکرام او اعزاز د مخکښ نه هم زيات اوکړو، اوپه يو روايت کښ دی چه دوئ د يعقوب ﷺ سلام اوپيغام يوسف ﷺ ته اورسولونوهغه ډير خوشحاله شو ، او د دوئ دپاره ئ د يو لوئ دعوت بندوبست اوکړو، او دوه دوه کسان به ئ يوځائ کينول نو بنيامين يواځې پاتې شو. نويوسف ﷺ ده لره د خپل ځان سره کينولو، نو د بنيامين عزت زيات شو ، چه د بادشاه سره ورته د طعام خوړلو موقع ملاؤشوه ، بيا دغه شان دوه دوه رونړه ئ په يوه کمره کښ سملاستو دپاره مقرر کړل ، نو بنيامين يواځې پاتې شو، يوسف ﷺ د ځان سره په کمره کښ پاتې کړو، نوپه دې کښ هم د ده اعزاز زيات شو، او دا معنی د دې قول د ﴿اٰوٰۤى اِلَيۡهِ اَخَاهُ﴾ اوبيا تخليه کښ يوسف د ده نه تپوسونه شروع کړل ، او ورته ئ اووئيل چه ستا د نوم (بنيامين) څه معنی ده، نو بنيامين اووئيل چه د دې معنی ده ولد المثکل، يعنی بچې د مثکل يعنی وروك کړي شوی ، وجه داده چه کله زه پيدا شوم، نو زما مور وفات شوه ، نووروکه شوه . نو دې وجې نه زما دپاره دانوم کيخودې شو، بيا ئ ورته اووئيل چه ستا اولاد څومره دی ، نو هغه اووئيل چه لس ځامن دی ليکن افسوس کوم په خپل رور پسې چه په وړوکوالی کښ په ځنګل کښ هلاك شوې دې، نو يوسف عليه السلام ورته اووئيل چه داسې دې نه ده خوخه چه زه ستا رور شم؟ نو ده اووئيل چه ستا په شان رور خو د ډير خوش قسمته سړي وی، ليکن ته د يعقوب او راحيل نه پيدا نه ئې نو څرنګه به زما ورور شې؟ نو يوسف ﷺ په ژړا شو او بنيامين ئې د خپلې سينې سره اولګولو، او ورته ئې اووئيل ﴿اِنِّیۡۤ اَنَا اَخُوۡكَ﴾ يعنی زه ستا رور يم ، خو دا رونړه مه خبره وه . ﴿فَلَا تَبۡتَىِٕسۡ﴾ مه خفه کيږه په هغې چه دوئ ماسره يا تاسره بد سلوکی کړې ده، يعنی دا د زړه نه اوباسه ، رونړو د يوسف لکه څرنګه چه ئ يوسف

ﷺ ته سخت تکالیف رسولی وو ، نو دغه شان د بنیامین ئ هم تحقیر کړي وؤ او د هغه سره ئ بد سلوکی کړي وه ، نو یوسف ده ته اووئیل چه اوس دغه خبرې د زړه نه اوباسه. ځکه چه الله ﷻ مونږ ته خیر راکړیدې اوزمونږ سره ئ احسان کړې دې ، رونړه د یو بل دپاره قوت او بازو دې ، لکه د فارسئ متل دې «**هرکه برادر نه دارد قوت بازو ندارد هر که مادرنه دارد شفقت نه دارد**»

اوپه یوروایت کښ دی چه (المرء کثیر باخیه) سړې د رونړو په وجه ډیر وی. لیکن د دې باوجود شیطان کله د رونړو په مینځ کښ تفرقه راولی ، اوحسد پیداکړی ، حتی چه د آدم ﷺ یو خوی خپل رور قتل کړو ﴿فَلَمَّا جَهَّزَهُم﴾ رونړه دیوسف ﷺ څو ورزې د میلمستیا په حیثیت پاتې شول ، او بیا ورله هغه د غلې باورونه برابر کړل ، بنیامین یوسف ﷺ ته عرض کړې وو چه زما پاتې کولوڅه تدبیر جوړکړه ، او ما د رونړو سره مه لیږه ، نویوسف ﷺ داتدبیر اوکړو چه ﴿جَعَلَ السِّقَايَةَ فِي رَحْلِ أَخِيهِ﴾ سقایه او صُواع د یو لوخی نوم دې دا د سپینو زرو پیاله اوجام وو ، چه یوسف ﷺ نه مخکښ بادشاه په دې کښ اوبه او شراب څکل یوسف علیه السلام چه بادشاه شو نو دا ئ پیمانه مقرر کړه ، او غله به ئ په دې سره ورکوله او «رَحل» کجاوې ته وائی ، او مراد ترینه هغه سامان دې چه په کجاوه کښ ایخودې شی یعنی دا سقایه ئ د رور پ بار کښ کیخوده ﴿ثُمَّ أَذَّنَ﴾ بیا یو اعلان کونکی اعلان اوکړو چه اې قافلې والو! تاسو خو غله یئ سقایه مو غلا کړې ده؟ دلته دا **سوال** راځی چه سقایه خو یوسف په خپله دَ رور په سامان کښ ایخودلې وه، نو بیا په هغوئ باندې د غلا الزام اولګولو داخو تهمت او ګناه کبیره ده ، **جواب** (١) : دادې چه اعلان کونکی اعلان د خپل طرف نه کړې دې ، په امر د یوسف سره ئ ندې کړې،او تهمت د غلا ئ په خپل غالب ګمان سره لګولې دې ، ځکه چه د دې تدبیر نه خو بل څوك نه وو خبر بغیر د یوسف ﷺ او د رور د ده نه ، نو یوسف ﷺ تهمت نه دې لګولې بلکه په بار د رور کښ ئ صرف سقایه ایخې ده ، **دویم جواب** دادې چه دا اعلان د یوسف په امر سره شوې دې لیکن ﴿إِنَّكُمْ لَسَارِقُونَ﴾ په طریقه د توریه سره دې چه همزه د استفهام په کښ محذوف ده (ای ءَاِنکم لسٰرقون) یا دامعنی ده چه انکم لسارقون لیوسف ﷺ عن ابیه، تاسوخو دومره لوئ غلا ګران یئ چه یوسف مودخپل پلارنه راپټ کړې وو

قَالُوْا وَ اَقْبَلُوْا عَلَيْهِمْ مَّا ذَا تَفْقِدُوْنَ ۝٧١ قَالُوْا نَفْقِدُ صُوَاعَ الْمَلِكِ

دوئ وه ويل او مخامخ شو هغوئ ته چه څه ورك كړيدي تاسو وه ويل هغوئ ورك كړي دي مونږ پيمانه (اوګي) د بادشاه

وَلِمَنْ جَآءَ بِهٖ حِمْلُ بَعِيْرٍ وَّاَنَا بِهٖ زَعِيْمٌ ۝٧٢ قَالُوْا تَاللّٰهِ

او جا چه راوړو هغه نو هغه لره بار د اوښ دي په انعام كښ اوزه د دي ذمه دار يم وه ويل دوئ چه قسم په الله تعالى باندي

لَقَدْ عَلِمْتُمْ مَّا جِئْنَا لِنُفْسِدَ فِي الْاَرْضِ وَمَا كُنَّا سٰرِقِيْنَ ۝٧٣

په تحقيق سره تاسو ښه پوهه يئ چه مونږ دي له نه يو راغلي چه فساد وكړو په دي ملك كښ اونه مونږ غلاګر يو

قَالُوْا فَمَا جَزَآؤُهٗۤ اِنْ كُنْتُمْ كٰذِبِيْنَ ۝٧٤ قَالُوْا جَزَآؤُهٗ مَنْ وُّجِدَ

وه ويل دوئ پس څه سزا د غل ده كچري تاسو دروغ وايئ دوئ وه ويل سزا د غلا هغه سړي دي چه ومونديږ شي

فِيْ رَحْلِهٖ فَهُوَ جَزَآؤُهٗ ؕ كَذٰلِكَ نَجْزِي الظّٰلِمِيْنَ ۝٧٥ فَبَدَاَ

په سامان دهغه كښ پس هغه ئ سزا ده، دغه شان سزا وركوؤ مونږ ظالمانو ته (غلاګروته). پس شروع وكړه يوسف

بِاَوْعِيَتِهِمْ قَبْلَ وِعَآءِ اَخِيْهِ ثُمَّ اسْتَخْرَجَهَا مِنْ وِّعَآءِ اَخِيْهِ ؕ

په تفتيش د سامانونو د دوئ مخكښ د تفتيش د سامان د وررور خپل نه بيا ئ راوښكلو هغه لوښي د سامان د رور خپل نه

كَذٰلِكَ كِدْنَا لِيُوْسُفَ ؕ مَا كَانَ لِيَاْخُذَ اَخَاهُ فِيْ دِيْنِ الْمَلِكِ اِلَّاۤ

دغه شان تدبير وخودلو مونږ يوسف ته ، نه وو دي چه را ګير كړي ئ وي رور خپل په قانون د بادشاه كښ، مګر دا چه

اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ ؕ نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ ؕ وَفَوْقَ كُلِّ ذِيْ عِلْمٍ عَلِيْمٌ ۝٧٦

الله تعالى ئ وغواړي (هغه كيږي) اوچتوؤ مونږ درجي د هغه چا چه وغواړو مونږ او پورته د هر خاوند د علم نه عالم شته دي

﴿ قَالُوْا وَاَقْبَلُوْا عَلَيْهِمْ ﴾ رونړو د يوسف ﷺ په حقيقت كښ غلا نه وه كړي ، نو دا په دوئ ډيره نا آشنا اولګيده او د دي وجي نه ئ هغوئ ته مخ كړو او وي وئيل چه ستاسو نه څه ورك شوى دى. نو هغوئ اووئيل چه د بادشاه پيمانه، (اوګى) ﴿ وَلِمَنْ جَآءَ بِهٖ حِمْلُ بَعِيْرٍ ﴾ دا انعام مقرركول دى ، په راوړلو د سقايې باندې او كه څوك **سوال** اوكړي چه سارق خو مستحق د

انعام نه وی بلکه مستحق د سزاوی ، نو **جواب** دادې چه دوئ خو په حقیقت کښې سارقان نه وو ، نو ددې وجې نه ئې ((ولمن جآء به)) ویلی وو ، سرق ئې ندی ویلی او بل **جواب** دادې چه د (جآء به) معنی داده چه خبر ورکړی چه صاع چاسره دې او ددې آیت نه معلومیږي جواز د انعام په جائز کار باندې او دا رنګه د دې نه معلومیږی جواز د کفالت ﴿زَعِيمٌ﴾ ذمه دار اوضامن ته وائی ﴿قَالُوا تَاللَّهِ﴾ رونړه د یوسف حیران شول او جواب ئې ورکړو ، په تا قسمیه کښې د مبالغې او تعجب معنی ده ، نو دوئ تعجب اوکړو په دې الزام لګولو کښې اوپه طریقې د مبالغې سره ئې نفي د غلا دَ الزام اوکړه ، په تا قسمیه کښې هم د مبالغې معنی ده اوبیا دوئ استشهاد اوکړو په علم د دوئ سره ، چه ﴿لَقَدْ عَلِمْتُم﴾ یعني تاسوته علم دي . چه مونږ د چا فساد او سرقه نه کوو ، دوئ چه مصر ته راتلل نود خپلو اوښانو خولې ئې ترلې وې ، د دې دپاره چه د چا فصل اونه خوری نوعامو خلقو اووئیل چه دا ډیر شریف او تقوی والا خلق دی ﴿قَالُوا فَمَا جَزَاؤُهُ﴾ یعنی هغوئ ورته اووئیل چه که تاسو دروغژن ثابت شوئ او صاع ستاسو د سامان نه برآمد شو نو بیا به د هغه څه سزاوی ، نودا تپوس په امر او تعلیم د یوسف ﷺ سره وو ، د دې دپاره چه خپل رورخپل ځان سره پاتې کړی ، بل د دې دپاره چه دوئ دا ګمان اونه کړی چه زمونږ سره ظلم کیږی ، اوپه خپل قانون راته سزارا کوي ﴿قَالُوا جَزَاؤُهُ مَن وُجِدَ فِي رَحْلِهِ﴾ دوئ اووئیل چه زمونږ په دین کښې دغلا سزا داده چه غل به د مالك د مال غلام وی ، دیوکال پورې او د مصر قانون داوو چه د غل نه به دوه چنده تاوان اخستې کیږي ، رونړو د یوسف د خپل قانون شرعی ذکر بې تاًمله اوکړو ځکه چه د دوئ یقین وو چه مونږ غلا نده کړې ، اونه مال مسروقه زمونږ د سامان نه برآمد کیدې شی نودوئ په خپل اقرار کښې ګیر شو ، (جزآء) مبتدا ده او ﴿مَن وُجِدَ فِي رَحْلِهِ﴾ ورله خبر دې ، او ﴿فَهُوَ جَزَاؤُهُ﴾ مبتدا خبر دی اودا جمله تاکید دې داولې جملې ﴿كَذَٰلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ﴾ یعنی دا سزا دغل ده زمونږ په ملت کښې ﴿فَبَدَأَ﴾ د نورو رونړو په سامان لټولو ئې مخکښې شروع اوکړه ، دې دپاره چه دوئ شك اونه کړی چه دا لوخې ئې په خپله ایخې دې نو ضمیر په (فبداء) کښې یوسف ﷺ ته راجع دې ، اوپه دې کښې دا احتمال دې چه یوسف ﷺ په خپله تالاشی اغستې وی ، اودا هم احتمال دې چه نوکرانو ته ئې په دې مخصوص طریقې سره د تالاشی حکم کړې وی .

﴿كَذَٰلِكَ كِدْنَا﴾ د (کید) حقیقي معنی داده چه څوك چاته په خوله باند یوه خبره اوکړي او په زړه کښې ئې اراده د بل څه وی ، نو دلته دا معنی نده مراد بلکه مراد ترینه خفیه تدبیر دي او دي ته حیله ویلي شي . حیله شرعی هغه خفیه تدبیر دي چه توسل کولي شي په هغې سره مصالحو دینیو ته .لکه ایوب ﷺ ته چه الله فرمائلی وو (وخذ بیدك ضغثا) یا حضرت ابراهیم ﷺ سارې ته هذه اختی ویلی وؤ ، دا ټول د منافعو دینیو دپاره وو (کشاف). باقی تفصیل په سورة اعراف کښې تیر شوي دي، د ﴿لِيُوسُفَ﴾ دامعنی نده.چه دا تدبیراوشرعی حیله مختصه وه په یوسف پورې، ځکه چې نبی ﷺ د زانی ضعیف دحد دپاره حیله کړې وه (کمافي السنن) او بلال ﷺ ته ئی هم داحیله خودلې وه چه بِعِ الجمع بالدرهم ثم ابتع بالدراهم الجنیب) ، (رواه البخاری) ، ﴿مَا كَانَ لِيَأْخُذَ أَخَاهُ﴾ یعنی دا تدبیر مونږ یوسف ته ځکه اوخودلوچه ده خپل رور د مصر په قانون کښې نشو نیولي، دمصر دقانون جرمانه وه دوه چنده د مال مسروقه یا تادیب ووپه کوړو وهلو سره ﴿إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ﴾ د استثناء منقطع ده (الاّ) په معنی د (لکن) سره دي اي لکن بمشیته تعالی اخذه فی دین یعقوب، د یعقوب ﷺ په ملت کښې دسارق د یوکال دپاره غلام گرزول کیدل وؤ ، د هغه چا چه غلا به ئې ترینه کړې وه ، نویوسف ﷺ خپل رور د دې قانون مطابق حصار کړو اودا سوال نه رازی چه حُر خو غلام نشی گرزیدلې، ځکه چه یوسف ﷺ خپل روربنیامین په حقیقت کښې غلام کړې نه وو، بلکه بنیامین په خپلې خوښې سره صورت د غلامئ اخیتیا رکړې وو﴿نَرْفَعُ دَرَجَٰتٍ﴾ یعنی الله چه چاته اوغواړی نوعلم اوحکمت او تدبیر ورته اوښایی او درجې ورله اوچتې کړی، لکه یوسف ﷺ ته ئې چه علم اوحکمت ورکړو یا دا معنی چه الله په خپل تدبیر سره د چا درجات اوچتوی ، لکه رونړو د یوسف ﷺ ده لره دَ پلاره نه سرقه کړو اوپه (ثمن بخس) ئې خرڅ کړو نواوس هغوئ د سارقانو په حیثیت سره د یوسف ﷺ په حضور کښې ولاړ دی ، ﴿وَفَوْقَ كُلِّ ذِي عِلْمٍ عَلِيمٌ﴾ یعنی په مخلوق کښې د هرعلم والا ذات دپاسه لوئ علم والا ذات شته دي چه الله دي چه عالم الغیب والشهادت دي، نو د هغه علم کامل دې او صفتِ ذاتی دې او د مخلوقاتو علم عطائی دې ، محتاج دې خالق ته .

قَالُوٓا إِن يَسۡرِقۡ فَقَدۡ سَرَقَ أَخٌ لَّهُۥ مِن قَبۡلُۚ

وه ويل دوئ که ده غلا کړې وی (نوعجیبه نده) خکه چه غلا کړې وه رور د ده (يوسف) پخوا د دې نه.

فَأَسَرَّهَا يُوسُفُ فِي نَفۡسِهِۦ وَلَمۡ يُبۡدِهَا لَهُمۡۚ قَالَ أَنتُمۡ

پس پټ وساتلو يوسف د دې جواب په خپل زړه کښې او ښکاره ئې نکړو دوئ ته په زړه کښې ئې وه ويل چه تاسو

شَرٌّ مَّكَانٗاۖ وَٱللَّهُ أَعۡلَمُ بِمَا تَصِفُونَ ۝ قَالُواْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡعَزِيزُ

د دينه زيات بد حال والا يئ او الله تعالى ښه پوهه دې په هغې باندې چه تاسو ئې بيانوئ. دوئ وه ويل اې عزيزه

إِنَّ لَهُۥٓ أَبٗا شَيۡخٗا كَبِيرٗا فَخُذۡ أَحَدَنَا مَكَانَهُۥٓۖ إِنَّا نَرَىٰكَ مِنَ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ۝

بيشکه د ده پلار دې ډير بوډا دې پس ونيسه بل تن زمونږ نه د ده په ځائ بيشکه مونږ تا وينو د احسان کونکونه

قَالَ مَعَاذَ ٱللَّهِ أَن نَّأۡخُذَ إِلَّا مَن وَجَدۡنَا مَتَٰعَنَا عِندَهُۥٓ

وه ويل يوسف پناه غواړم په الله تعالى سره د دينه چه ونيسم سوا د هغه چا نه چه موندلې دې مونږ سامان خپل هغه سره

إِنَّآ إِذٗا لَّظَٰلِمُونَ ۝

بيشکه مونږ به په دغه وخت کښې خامخا د ظالمانو نه يو.

﴿قَالُوٓا إِن يَسۡرِقۡ﴾ هر کله چه په دوئ باندې غلا ثابته شوه ، نو دوئ د خپل ځان د براءت دپاره اووئيل چه دا بنيامين زمونږ خپل رور نه دې، د ده خپل رور بل وو. او هغه هم غلا کړې وه نو که ده غلا کړې وی نو بعيده نه ده د ﴿سَرَقَ أَخٌ لَّهُۥ﴾ نه د دوئ مراد يوسف ﷺ وو. او دوئ چه يوسف ته د سرقې نسبت کړې دې نو په دې کښې مختلف واقعات دی يو دا چه ده دَ نيکه (دَ مور دَ پلار) نه بُت پټ کړې وو، او مات کړې ئې وو. او د مجاهد رحمه الله نه روايت دې چه ديوسف ﷺ د پيدايش نه بعد چه کله بنيامين پيدا شو نو والده د ده دَ پيدايش په وجه وفات شوه نويعقوب ﷺ يوسف ﷺ خپلې خور ته (د يوسف ترورته) د تربيت دپاره ورکړو نود دې ور سره بې حده زيات محبت پيدا شو نو کله چه يوسف د ګرزيدو شو، نو يعقوب دده دَ واپس کولو طلب اوکړو ، ليکن ترور په واپس کولو راضى نه وه، بيا د يعقوب د زيات

اصرار په وجه ئ مجبوراً واپس کړو لیکن یو تدبیر ئی د واپس کولودپاره داسې اوکړو چه هغې سره یوقیمتی کمر بند وو، او هغه ئی د یوسف ﷺ د قمیص د لاندې په ملا پورې اونړلو اوکله چه یوسف ﷺ پلار واپس کړو نودې دا مشهوره کړه چه زما کمر بند چا سرقه کړې دې د تالاش کولو نه بعد معلومه شوه چه یوسف ﷺ سره دې ، نو دَ یعقوب ﷺ د شریعت د حکم مطابق یوسف دې خپل غلام جوړکړو ، اوتر مرګه پورې ورسره وو. په دې واقعه کښې هم فی الحقیقة سرقه یا استرقاق نشته دې لیکن ظاهراً سرقه ده ﴿فَأَسَرَّهَا يُوسُفُ فِي نَفْسِهِ﴾ ضمیر د (اسرها) مبهم دې او دا قول (بل انتم ـــ الآیه) یې تفسیر دې او ضمیر د مونث راوړې شو ځکه ﴿أَنتُمْ شَرٌّ مَّكَانًا﴾ جمله او کلمه ده یا دا ضمیر راجع دې اجابت (جواب ورکولو) ته یعنی یوسف ﷺ له غصه ورغله لیکن جواب ئی ورته ورنه کړو ، د (أَسَرَّ) نه مراد جواب نه ورکول دی یا ضمیر مقاله ته راجع دې ، اود (أَسَرَّ) نه مراد دادې چه دَ سرقې اصل حقیقت ئی ظاهر نه کړو، ﴿قَالَ﴾ اویل یوسف ﷺپه زړه کښې ﴿أَنتُمْ شَرٌّ مَّكَانًا﴾ تاسو ډیر بد یئ د جهته د مرتبې نه ، ځکه تاسو په حقیقت کښې سرقه کړې دې یوسف دَ پلار نه، نو تاسولوئ ډاکوان یئ ، ستاسو په غلط بیان باندې الله خه پوهیږي .

﴿قَالُوا يَا أَيُّهَا الْعَزِيزُ﴾ دوئ دپلار سره وعده کړې وه چه مونږ به بنیامین خامخا واپس راولو نو د دې وجې نه ئی دعزیز مصر (یوسف ﷺ) منت زاری شروع کړل او درې خبرې ئی ورته پیش کړې : اول دا چه زمونږ د پلار د ده سره محبت زمونږ نه زیات دې ،او د یوسف ﷺ نه بعد هغه تسلې په ده باندې کوی ، او زمونږپلار د عمر په لحاظ سره مشر دې او بوډا دې . او د قدر اومنزلت په لحاظ سره هم ډیر لوئ شان والا پیغمبر دې نو په هغه رحم اوکړه او دا رور زمونږ واپس کړه، اودویم دا چه د ده په بدل کښې یوکس واخله، دریم ئی صفت د عزیز اوکړو چه ته ډیر نیك سړې ئی او احسان کونکې ئی او زمونږ سره دې مخکښې احسان کړې دې نو اوس راسره هم احسان اوکړه ﴿قَالَ مَعَاذَ اللَّهِ﴾ یوسف ﷺ اووئیل چه داسې نشی کیدې چه مونږ دمجرم په ځائ غیر مجرم اونیسو، دا خو ظلم دې او مونږ د ظلم نه پناه غواړو په الله ﷻ سره ﴿إِلَّا مَن وَجَدْنَا مَتَاعَنَا﴾ ئی اویل او (الامن سرق) ئی اونه ویل ځکه چه په حقیقت کښې هغه سرقه نه وه کړې .

فَلَمَّا اسْتَيْـَٔسُوْا مِنْهُ خَلَصُوْا نَجِيًّا ۗ قَالَ كَبِيْرُهُمْ اَلَمْ تَعْلَمُوْٓا

پس هركله چه دوئ ښه نا اُميده شو [۱] دهغه نه جدا شو جرګه كونكي، وه ويل مشر د دوئ. آيا تاسو ته معلومه نده

اَنَّ اَبَاكُمْ قَدْ اَخَذَ عَلَيْكُمْ مَّوْثِقًا مِّنَ اللّٰهِ وَمِنْ قَبْلُ مَا فَرَّطْتُّمْ

چه ستاسې پلار په تحقيق سره اغستې وه ستاسونه كلكه وعده د الله تعالى ، او پخوا هم تاسو قصور كړې وؤ

فِيْ يُوْسُفَ ۚ فَلَنْ اَبْرَحَ الْاَرْضَ حَتّٰى يَاْذَنَ لِيْٓ اَبِيْٓ

په باره د يوسف كښې، پس هيچرې به څه نه پرېږدم دا ملك، ترهغې پورې چه اجازت راكړى ما ته ځما پلار

اَوْ يَحْكُمَ اللّٰهُ لِيْ ۚ وَهُوَ خَيْرُ الْحٰكِمِيْنَ ۝ اِرْجِعُوْٓا اِلٰٓى اَبِيْكُمْ

يا فيصله وكړى الله تعالى ما لره (د ازادولو د رور ځما) ، او هغه ډير ښه فيصله كونكې دې. واپس لاړشئ پلار خپل ته

فَقُوْلُوْا يٰٓاَبَانَآ اِنَّ ابْنَكَ سَرَقَ ۚ وَمَا شَهِدْنَآ اِلَّا بِمَا عَلِمْنَا

پس ووايئ اې زمونږ پلاره! بيشكه ستا ځوى غلا كړېده او مونږ ګواهي نه دركوؤ مګر په هغه څه چه مونږ پرې خبر يو

وَمَا كُنَّا لِلْغَيْبِ حٰفِظِيْنَ ۝ وَسْـَٔلِ الْقَرْيَةَ الَّتِيْ كُنَّا فِيْهَا وَالْعِيْرَ الَّتِيْٓ

اونه يو مونږ د غيب خبرلرونكي. او تپوس وكړه د (اهل) د هغه كلي نه چه مونږ په هغې كښې وؤ او د هغه قافلې نه

اَقْبَلْنَا فِيْهَا ۗ وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ۝ قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ

چه مونږ په هغې كښې راغلي وؤ او مونږ خامخا ريشتيا وايو. وه ويل يعقوب بلكه ښائسته كړيدې تاسو ته

اَنْفُسُكُمْ اَمْرًا ۗ فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ ۗ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّاْتِيَنِيْ بِهِمْ جَمِيْعًا ۗ

ستاسو نفسونو څه خبره، پس ځما كار صبر جميل دې، اميد دې چه الله تعالى به راولى ما ته دا ټول په يوځاى

اِنَّهٗ هُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ۝

بيشكه هغه په هرڅه پوهه، حكمتونو والا دې

---

۱ - دولسم حال.

﴿ فَلَمَّا اسْتَيْـَٔسُوا مِنْهُ ﴾ دا دولسم حال دي . په دي کښ د رونړو د مشورې ذکر او د مشر رور د پاتې کيدلو عزم دې. باب استفعال د مبالغې دپاره دې او ضمير د «منه» راجع دې يوسف ته ﴿ خَلَصُوا ﴾ يو ازې شول ﴿ نَجِيًّا ﴾ مشوره کونکی دا حال دې دضمير د «خلصوا» نه او «نجيا» په اصل کښ مصدر دې. په معنی دَ متناجي او ناجي سره او هر کله چه مصدر نه جمع کيږی نو د دې وجې نه دا جمع نشو . اگر چه ذوالحال ئ ضمير د جمع دې ﴿ قَالَ كَبِيرُهُمْ ﴾ د کبير نه چه د عمر په لحاظ سره مشر مراد شي نو هغه «روبيل» دې . او که مرادترينه رئيس د دوئ شي نو هغه «شمعون» دې. او که د عقل په لحاظ سره مراد شي نو هغه «يهوذا» دې . مشر عزم اوکړو د پاتې کيدلو او سبب ورله يو دا بيانوی چه مونږ د پلار سره عهد کړې وو د واپس کولو د بنيامين نو اوس به پلار ته په کومو سترگو سره اوگورو؟ بل دا چه مونږ د يوسف ﷺ په باره کښ تقصير کړې ووچه د هغې اثر تراوسه پورې موجود دې. نو اوس بنيامين پريخودل اوزمونږ تلل ډير نامناسب دی ﴿ مَا فَرَّطْتُمْ ﴾ د «تعلموا» ماتحت دې او «ما» مصدريه دې ، ای الم تعلموا تفريطكم فی يوسف، يا الذی فرطتم فی يوسف، نو ددې په وجه زه په هيڅ حال نه ځم دلته به يم مگر دا چه پلارماته دراتلوحکم اوکړی يا الله دحکم فيصله اوکړی مثلا دا چه د تقدير په وجه زه يا بنيامين مړه شو ، يا د څه تدبير په وجه بنيامين آزاد شی ﴿ خَيْرُ الْحَاكِمِينَ ﴾ الله ﷻ د عدل فيصله کونکې دې . ﴿ ارْجِعُوا إِلَىٰ أَبِيكُمْ ﴾ يعنی ماپريگدئ اوتاسو لاړشئ . پلار ته اوايئ چه داسې واقعه راغلې ده ﴿ وَمَا شَهِدْنَا إِلَّا بِمَا عَلِمْنَا ﴾ يعنی مونږ چه په ده باندې دغلا گواهی ورکوو . نودا دخپلې مشاهدې اوظاهر حال په وجه سره ورکوو . چه لوخې دده دسامان نه برآمد شوې دې او دَ غيب نه خبر نه يو چه په واقع کښ ده غلا کړې ده يانه؟ . يا دا مطلب دې چه مونږ تا سره عهدکړې وو ، د واپس راتلو د بنيامين نو دا د خپل علم مطابق عهدوو. او مونږ د غيب نه. نه وو خبر چه دې به غلا کوی، يا دامعنی ده چه مونږ چه شهادت يعنی دَ غل حکم بيان کړې وو ، نودا دخپل علم او دَ شريعت مطابق مونږ بيان کړې وو ، اوددې نه مونږ څه خبر وو چه زمونږ رور غلا کړې ده ، ﴿ وَسْـَٔلِ الْقَرْيَةَ ﴾ يعنی زمونږ د صدق معلومولودپاره يو اهل مصر نه تپوس اوکړه يعنی څوك معتمد سړې راوليگه چه د مصر د خلقونه تپوس اوکړې مونږ چه کومه خبره کوو نو داځه پټه خبره نده بلکه په مصر کښ مشهوره خبره ده ،اوبل

د هغه قافلې والو نه تپوس اوکړه چه مونږ د هغې سره مصر ته راغلی وؤ، او دا يو قوم وو د کنعان چه د يعقوب ﷺ ګاونډيان وو﴿ قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ ﴾ رونړه د یوسف چه واپس شول او د مشر رور د هدایاتو مطابق ئی ټوله قصه یعقوب ﷺ ته بیان کړه ، نو یعقوب ﷺ اوفرمائل چه حقیقت خو داسې نه دې چه بنیامین غلاکړې ده ، دا تاسو ځان له په خپل ذهن کښې یوه خبره جوړه کړې ده چه بنیامین تاسو بوتللو او په تهمت د غلا کښې مو حصار کړو. یا دا مطلب دې چه شهادت د غلا په هغه باندې په خیال د نفسونوستاسو دې ، دوئ اول وار دیوسف په باره کښې بې اعتماده شوی وو ، نو یعقوب ﷺ په دوئ اعتماد اونه کړو، د یوسف ﷺ په باره کښې ئ هم داسې ویلی ووچه ﴿بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ أَنفُسُكُمْ أَمْرًا ﴾ ، او د بنیامین په باره کښې ئ ورته هم دغه خبره اوکړه اودا کلام اګر که د واقعې سره موافق نه وو. لیکن یعقوب ﷺ د دې معاملې قیاس کړې وو په اول وار باندې، نو دا یوظن او اجتهاد وو چه مطابق نه وو د واقعې سره . وحی نه وه .اواجتهادی غلطی ګناه نه ده، اوبعض علماؤ د دې کلام دا توجیه کړې ده چه د ﴿بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ ﴾ خطاب جنس اولاد ته دې یوسف ﷺ په کښې داخل دې او مطلب دادې چه بنیامین غلا نه ده کړې بلکه د ده په رونړوکښې چایوه خبره په خپل ذهن کښې جوړه کړې ده اودې ئی د ځان سره حصار کړې دې . اودا خبره ورته په ذریعه د کشف یا دوحی سره معلومه شوې وه . لیکن مزید تفصیل ورته نه وو معلوم شوې . او بعض مفسرینو داسې توجیه کړې ده چه تاسو خود بنیامین د بوتلو په وخت کښې څومره کلکه وعده کړې وه ، بیا مو دهغه دفاع اونه کړه چه ویلې مو وې چه لوخې د ده د سامان نه برآمد شو ، نود دې نه دا څرنګه ثابته شوه چه ده غلا کړې ده، کیدی شی چه دا لوخې بل چا ایخې وی ، نوتاسو دفاع اونه کړه بلکه دا مو اوونیل چه دده رور هم مخکښې غلاکړې وه، په دې سره تاسود ده جرم مستحکم کړو او بیامو فتوی هم ورکړه چه دسارق سزا غلام ګرزول دی نوکه ستاسو په زړونوکښې څه خیرې نه وې نو داسې طرز عمل خوبه مو نه وو اختیارکړې، بهر حال زه به صبر جمیل کوم ﴿عَسَى اللَّهُ ﴾ یعنی دالله ﷻ نه امید دې چه ماته یوسف ﷺ اوبنیامین اوټول ځامن راولی اودا خبره یعقوب ﷺ د یوسف ﷺ د خوب په وجه کړې ده اویا په دې وجه چه هر کله د ده تکلیف اوغم ډیر زیات شو او انتها ته اورسیدلو نودې پوهه شو چه اوس به الله ﷻ آسانی اوراحت راولی .

وَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ يٰاَسَفٰى عَلٰى يُوْسُفَ وَابْيَضَّتْ عَيْنٰهُ

اومخ ئې واړوو د هغوئ نه او وې ويل هائ افسوس دې په يوسف پسې او سپينې شوې دواړه سترګې د ده

مِنَ الْحُزْنِ فَهُوَ كَظِيْمٌ ۝ قَالُوْا تَاللّٰهِ تَفْتَؤُا تَذْكُرُ يُوْسُفَ حَتّٰى

د وجه د غم نه او دې ډك وؤ د خفګان نه وه ويل دوئ قسم په الله تعالى هميشه به ته يادوې يوسف تر دې چه

تَكُوْنَ حَرَضًا اَوْ تَكُوْنَ مِنَ الْهٰلِكِيْنَ ۝ قَالَ اِنَّمَآ اَشْكُوْا بَثِّىْ

ته شې بيكاره (رنځور) يا به شې ته د هلاك شوونه (مړ). وه ويل يعقوب بيشكه څه خو بيانوم خپل سخت غم

وَحُزْنِىْٓ اِلَى اللّٰهِ وَاَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ يٰبَنِىَّ

اوخفګان الله تعالى ته او پوهه يم د الله تعالى د طرف نه په هغه څه چه تاسو پرې نه پوهيږئ اې ځامنو ځما

اذْهَبُوْا فَتَحَسَّسُوْا مِنْ يُّوْسُفَ وَاَخِيْهِ وَلَا تَايْـَٔسُوْا مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ ؕ اِنَّهٗ لَا يَايْـَٔسُ

لاړشئ پس تلاش وكړئ د يوسف او د رور دهغه اومه نا اُميده كيږئ د رحمت د الله تعالى نه، بيشكه نه نا اُميده كيږي

مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ اِلَّا الْقَوْمُ الْكٰفِرُوْنَ ۝

د رحمت د الله تعالى نه مګر قوم كافران.

﴿وَتَوَلّٰى عَنْهُمْ﴾ يعقوب ؑ د خپلو ځامنونه مخ بل طرف ته واړولو، ځكه چې دا خبره پرې ډيره ترخه اولګيده او د نوى غم په وجه ئې مخكښې غم تازه شو، نو ده اووئيل ﴿يٰاَسَفٰى﴾ الف عوض دې د (يا) نه نو دا په اصل كښې (اَسَفِىْ) دې يعنى اې افسوسه اوغمه زما په يوسف ؑ راشه دا ستا د راتلو وخت دې ﴿وَابْيَضَّتْ عَيْنٰهُ﴾ د ډيرې ژړا په وجه د سترګو تورې ختم شوې وې . او د روند والى په باره كښې دوه قوله دى : يوداچه نظر ئې ختم شوې وو، اوبل داچه دا ختم شوې نه وو بلكه كم شوې وو ﴿مِنَ الْحُزْنِ﴾ د سترګو سپين والې د ژړا په وجه وو، او د ژړا دپاره سبب حزن وو، نود دې وجې نه (مِنَ الْحُزْن) اووئيلې شو. ويلې شوى دى چه سترګې د يعقوب ؑ نه وې اوچې شوې د اوښكو نه ، د وخت د فراق د يوسف ؑ نه تر وخت د ملاقات پورې او نه وو په مخ دزمكې زيات عزت مندپه نزد دالله ﷻ ديعقوب ؑ نه . او د

حسن بصري رحمه الله نه روايت دي، چه نبی ﷺ دجبرئيل نه تپوس اوکړو چه د يعقوب غم په يوسف عليه السلام پسې څومره وو، جبرائيل اوفرمائل چه داسې دَ اويا (۷۰) ميندو غم راجمع کړې شي چه بچی ئی مړه وی نو د يعقوب عليه السلام د دې برابر غم وو . نوبيا ئی ترينه تپوس اوکړو چه دوئ له څومره اجر وو، نوجبرئيل عليه السلام اوفرمايل چه دسلوشهيدانو اجر دې ورله ، په حديث کښې دی اشد الناس بلاء الأنبياء ثم الامثل فالا مثل ، يعنی په انبياؤ امتحان د تمامو خلقو نه زيات دې ، او دغه شان چه څومره څوك غوره وی، دهر چا د استعداد موافق امتحان وی. ديعقوب عليه السلام په زړه کښې الله ﷻ ديوسف عليه السلام محبت، د عام عادت نه زيات پيدا کړې وو. او بيا ئ ترينه په داسې دردناکې طريقې سره جدا کړو چه د يعقوب عليه السلام زړه او روح ته سخته صدمه اورسيده اومخلوق ته ئی هيڅ شکايت ښکاره نه کړو، او نه ئی د چانه انتقام واخستلو نو دا صبر جميل وو، او اوښکې ئی بهيدلی او (يَا أَسفٰی) دَ الله جل جلاله په حضور کښې ويل د بې صبرئ علامه هم نه ده ،او د کمالاتو د نبوت سر ه منافی هم نه ده ، روايت کړې دې بخاری اومسلم چه کله ابراهيم رضی الله عنه د نبی ﷺ بچې وفات شو نونبی ﷺ اوژړل (چه دا درقت قلب علامه ده) اوبيا ئی اوفرمايل (ان العين تدمع والقلب يخشع ولانقول الا مايرضی ربنا وانا لفراقك يا ابراهيم لمحزونون) نو د مصيبت په وقت کښې زړه متاثر کيدل اوژړل د رقت قلب علامه ده .

اوبې صبری جزع، فزع نده ﴿ فَهُوَ كَظِيمٌ ﴾ يعنی دې ډك وو د غم نه، مطلب دادې چه په زړه او سترګو باندې ئ څه اختيار نه وو، زړه متاثر کيدل خو طبعی اوبشری تقاضا ده ، ليکن په ژبه ئی د بې صبرئ يا د جزع فزع کلمه نه ده راغلې ﴿قَالُوا تَاللَّهِ تَفْتَؤُا ﴾ دا تسلی ورکول دی دَ خامنو د طرف نه يعقوب عليه السلام ته، د وجې د شفقت نه دپاره د دې، چه ډير مريض نشی. يا مړنشی ﴿تَفْتَؤُا ﴾ په اصل کښې (لا تفتؤ) دې ، ای لاتزال اوپه معنی د اثبات سره دې ، يعنی هميشه به ئی ته چه يوسف به يادوې ﴿حَرَضًا﴾ هغه څوك چه مرض يا د غم د وجې نه ئی جسم ويلی شی او قريب الهلاك يا رنزور شی هغه ته حرض ويلې شی ﴿ قَالَ إِنَّمَا أَشْكُوا ﴾ يعقوب عليه السلام خپلوخامنو ته اووئيل چه آيا تاسوماته تسلی راکوئ ،او صبر راته ښايئ ، بې صبره هغه وی چه دَ مخلوق په مخکښې شکايت اوکړې شی ، اوزه خود خپل تکليف شکايت الله ﷻ ته کوم (بَثّی) هغه ډير غم ته ويلې شی چه بې اختياره خور شی، نو (بث) په معنی د مبثوث سره دې . او په دې کښې اشاره ده غم ديوسف عليه السلام ته ، اوحزن مطلق غم ته ويلې شی، او په دې کښې

اشاره ده غم د جدائی د بنیامین ته. ﴿وَأَعْلَمُ مِنَ اللهِ﴾ او زه په دې هم پوهیږم چه یوسف ﷺ ژوندې دې. مانه به ملاویږي ، او دهغه د خوب تعبیر به پوره کیږي او دا په مابانديې ازمائش دې . عنقریب چه پوره شی ﴿يٰبَنِيَّ اذْهَبُوْا﴾ یعنی تاسو دوباره لاړشئ او دیوسف او دبنیامین دوا ړو تفتیش اوکړئ ﴿مِن رَّوْحِ اللهِ﴾ دابن عباس ﷺ نه د دې ترجمه په رحمت سره مروی ده . او د قتاده نه په فضل سره مروی ده . او د ابن زید نه په فرج یعنی راحت اوخوشخالئ سره مروی ده ﴿إِنَّهُ لَا يَاْيْئَسُ مِن رَّوْحِ اللهِ﴾ د دې نه معلومه شوه چه نا اُمیده کیدل دالله د رحمت نه کفر دې .
اوپه دې کښې یعقوب د توکل نه بعد ظاهری تدبیر اوکړو ، او (تَحَسُّسْ) تفتیش ته وائی په ذریعه دَ حواسو سره . او استعمالیږي په خیر کښې ، او تجسس په جیم سره په پټه سره تفتیش ته وائی او مستعملیږي په شر کښې.

| فَلَمَّا دَخَلُوْا عَلَيْهِ قَالُوْا يٰٓاَيُّهَا الْعَزِيْزُ مَسَّنَا وَاَهْلَنَا الضُّرُّ |
|---|
| پس هرکله چه دوئ داخل شو [1] هغه ته وه ویل دوئ اې عزیزه ! رسیدلې دې مونږ ته او کورنئ زمونږ ته سختی (لوږه) |
| وَجِئْنَا بِبِضَاعَةٍ مُّزْجٰىةٍ فَاَوْفِ لَنَا الْكَيْلَ وَتَصَدَّقْ عَلَيْنَا ؕ |
| او راوړې دې مونږ قیمت ناقص (لږ) پس پوره کړه مونږ ته راشن، او صدقه وکړه په مونږ (لحاظ وکړه په نرخ کښې) |
| اِنَّ اللّٰهَ يَجْزِى الْمُتَصَدِّقِيْنَ ۝ قَالَ هَلْ عَلِمْتُمْ مَّا فَعَلْتُمْ |
| بیشکه الله تعالی به بدله ورکوی صدقه کونکو ته . وه ویل یوسف : آیا تاسو ته یاد دی هغه چه تاسو کړی وو |
| بِيُوْسُفَ وَاَخِيْهِ اِذْ اَنْتُمْ جٰهِلُوْنَ ۝ قَالُوْٓا ءَاِنَّكَ لَاَنْتَ يُوْسُفُ ؕ قَالَ |
| د یوسف سره او د رور دهغه سره کوم وخت چه تاسو ناپوهه وئ. وه ویل دوئ : آیا ته یوسف نه یې ؟ وه ویل ده |
| اَنَا يُوْسُفُ وَهٰذَآ اَخِيْ قَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا ؕ اِنَّهٗ مَنْ يَّتَّقِ |
| چه ځه یوسف یم او دا رور ځما دې یقیناً احسان کړې دې الله تعالی په مونږ باندې. بیشکه چا چه تقوی وکړه |

۱ - دیارلسم حال.

| وَيَصۡبِرۡ فَإِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيۡعُ اَجۡرَ الۡمُحۡسِنِيۡنَ ۞ قَالُوۡا تَاللّٰهِ |
|---|
| او صبر ئ وکړو نو بیشکه الله تعالی نه بربادوی اجر د نیکی کونکو وه ویل دوئ قسم دې په الله تعالی |
| لَقَدۡ اٰثَرَكَ اللّٰهُ عَلَيۡنَا وَ اِنۡ كُنَّا لَخٰطِـِٕيۡنَ ۞ |
| چه خامخا په تحقیق سره غوره کړې ئ ته الله تعالی په مونږ او بیشکه مونږ خطا کار يو |

﴿ فَلَمَّا دَخَلُوۡا عَلَيۡهِ ﴾ دا دیارلسم حال دې، دپلار دحکم په وجه دوئ مصر ته روان شو. د بنیامین د آزادولو په اراده ، ځکه چه د یوسف ﷺ هیڅ پته نه وه . نو دوئ دا خیال اوکړو چه کوم رور معلوم دې یعني بنیامین اول به د ده د خلاصولو کوشش اوکړو. نوچه دې آزادشی. نوبیا به دیوسف ﷺ معلومات کوو، نودوئ چه د یوسف ﷺ څنگ ته لاړل نو اول ئی د خپلې نادارئ او قحط د وجې نه دغلې د ضرورت شکایت اوفریاد اوکړو «مخلوق ته دخپلې واقعی ضرورت تذکره کول چه په کښې شکایت کول دالله ﷻ نه نوی نو جائز دی» دوئ دا خیال اوکړو چه که بادشاه څمونږ سره نرمی اوکړه نومونږ به ترینه د خپل رور د آزادولو مطالبه اوکړو نو دوئ اول دا خبره اوکړه چه اې عزیزه ! د قحط اونادارئ دوجې نه په مونږ او زمونږ په اهل ډیر تکلیف دې، مونږه څه لږ شان قیمت راوړې دې نوته مونږ ته پوره غله راکړه ، او تصدق «صدقه» اوکړه په مونږ باندې یعنی رعایت راسره اوکړه، په نرخ کښې چه داپه منزله دتصدق دې، حقیقی تصدق نه دې مراد ځکه چه انبیاء او اولاد د دوئ صدقه نه اخلی او نه ئ غواړی نوهرکله چه یوسف ﷺ داخبره واوریدله نوپه زړه کښې ئ د رحم جوش راغې ، او دالله ﷻ په حکم او اجازت سره ئی خپل ځان ښکاره کړو ، وې ویل ﴿ هَلۡ عَلِمۡتُمۡ مَّا فَعَلۡتُمۡ بِيُوۡسُفَ ﴾ آیا تاسو ته یاد دی هغه چه تاسو د یوسف ﷺ سره کړی دی ، اوبیاد هغه د جدائی نه بعدد هغه د رور سره مو څه کړی دی ، کله چه تاسوجاهلان وئ ، او دخپل عمل او دانجام او نتیجې نه بې خبره وئ ، دلته مقصود دوئ نه تپوس هم نه دې ، او د هغوئ ملامت کول یا د هغوئ نه شکایت کول هم ندی مقصود بلکه مقصود دادې چه دوئ د ځلوینښت کالونه قبل حالات کر دار مستحضر کړی دپاره د دې چه دماضی او د حال موازنه دوئ اوکړی ، نو دالله ﷻ دهغه احساناتو حقیقت دوئ ته واضح شی کوم چه یوسف باندې شوې دې، د مصیبتونو او تکلیفونو برداشت کولو نه بعد لکه دې ته اشاره ده په دې قول سره ﴿ قَدۡ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيۡنَا ﴾ اوپه ﴿ اِذۡ اَنۡتُمۡ جٰهِلُوۡنَ ﴾

كښې اشاره ده معذرت ته . يعني تاسو چه څه غلطي كړې ده ، نود ناپوهئ په وجه شوې ده
﴿أَإِنَّكَ لَأَنتَ يُوسُفُ﴾ استفهام دلته د تقرير دپاره دې ، نوداجمع كيدې شي د تحقيق سره چه
(ان) دې او لام تاكيدي دې ، رونړو د يوسف ﷺ ده لره اوپيژندلو چه دا يوسف ﷺ دې .
اوسبب د پيژندلو يا دا دې چه تر اوسه پورې ئ يوسف ﷺ ته په غور نه وو كتلي اواوس ئې
چه هركله دا واوريدل چه ﴿هَلْ عَلِمْتُم مَّا فَعَلْتُم بِيُوسُفَ﴾ نوپه غور ئې ورته اوكتل ځكه چه ماجرى
تير شوى حالات، بل چاته نه وه معلومه ، يا دا دى چه يوسف ﷺ دسر نه تاج لرې كړو يادا
چه دوئ يوسف ﷺ دخولې د ثنايا غاښونو نه اوپيژندلو چه هغه پشان د ملغلرو وو ﴿وَهَٰذَا
أَخِي﴾ : دې ذكر دمزيد تعارف او تثبت دپاره دې ﴿قَدْ مَنَّ اللَّهُ عَلَيْنَا﴾ د ضرر د حاسدينو نه بچ
كول او بيا جمع كول روستو د فراق نه او دارنگه توفيق د صبر په تكاليفو اوتمام خيرونه
ددنيا او آخرت مراد دى ﴿إِنَّهُ مَن يَتَّقِ﴾ گوياكښې داجواب د سوال دې، هغه دا چه ته څه رنگه
بادشاه شوې ، نوجواب اوشو ، چه په صبر كولو سره په تكليفونو ، اوتقوى سره ﴿لَقَدْ آثَرَكَ
اللَّهُ عَلَيْنَا﴾ دا اقرار د رونړو دې په غوره والى ديوسف ﷺ باندې او ددې نه معلوميږې چه
دوئ انبياء نه وو ﴿وَإِن كُنَّا﴾ (ان) مخفف من المثقل دې، اسم ئې ضمير شان دې ،
﴿خَاطِئِينَ﴾ په معنى د (متعمدين الاثم) سره دى يعني مونږ تقوى اوصبر اونه كړواوتا اوكړو
نوځكه الله ﷻ تاته بادشاهي اوعزت دركړو،اومونږ ستا په مخ كښې ذليل شو (خطئا خاطئ)
هغه ته وائى چه عمدًا گناه اوكړى، او (خطاء مخطئ) هغه ته وائى چه قصد اوكړى د صواب
ليكن توفيق دَ رسيدلو حق ته ورته ملاو نشى .

| قَالَ لَا تَثْرِيبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ ۖ يَغْفِرُ اللَّهُ لَكُمْ ۖ وَهُوَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ ۝ |
|---|
| وه ويل يوسف نشته هيڅ ملامتيا په تاسو باندې نن ورځ ، بښنه دې وكړى الله تعالى تاسوته اوهغه زيات رحم كونكې دې د رحم كونكو نه |
| اذْهَبُوا بِقَمِيصِي هَٰذَا فَأَلْقُوهُ عَلَىٰ وَجْهِ أَبِي يَأْتِ بَصِيرًا وَأْتُونِي بِأَهْلِكُمْ أَجْمَعِينَ ۝ |
| بوځئ خما دا قميص نو واچوئ ئ په مخ د پلار خما چه شي بينا (روغو سترگو والا)،راولئ ما ته خاندان ستاسو ټول |

﴿قَالَ لَا تَثْرِيبَ﴾ يوسف ﷺ داخلاقِ كريمانه اظهار كوى اوفرمائى چه د خپلو غلطيانو

تذکره هم مه کوئ او زه په تاسو څه الزام نه لګوم . ستاسو ټولې غلطئ مې معاف کړې دی. نو دهغې نوم اغستل ندی پکار ، نوتاسو د خپلو غلطیانو تذکره مه کوئ . او زه ئ هم نه کوم . بلکه ستاسو دپاره د الله تعالی نه مغفرت غواړم ، او د ﴿ٱلْيَوْمَ﴾ مقصد دانه دې چه نن تاسو ته ملامتی یا سزا نه درکوم او روستو به بیاګورو. بلکه مقصد دادې که تاسوته مې ملامتی درکولې نونن به مې درکړې وې ځکه چې په اول ملاقات کښ غصه زیاته وی او چه نن مې درنه کړه ، نوروستوبه ئ په طریقه اولی سره نه درکوم، دا خائسته اخلاق د نبوت دی. چه ظلم کونکو ته معافی اوکړی اوملامت ئی هم نه کړو اوځه ګیله او شکایت ئ هم ترینه اونه کړو. بلکه د هغوئ دپاره ئی دعا د مغفرت اوکړه ، اوهم دغه شان سلوك نبی ﷺ د قریشو سره کړې وؤ په فتح مکه کښ چه ویلی ئ وؤ، څه هغه خبره کوم تاسوته چه کومه یوسف ﷺ کړې وه خپلو رونړو ته ﴿ٱذْهَبُوا۟ بِقَمِيصِى هَٰذَا﴾ یوسف ﷺ ته معلومه شوې وه چه دیعقوب ﷺ په نظر کښ فرق راغلې دې، نوخپل قمیص ئی ورته اولیږلو چه دا په سترګوواچوی نو جوړبه شی . اودا ورته په ذریعه د وحې سره معلومه شوې وه چه دا سبب د شفاء دې په طور د معجزې سره اودا قمیص ذیوسف ﷺ خپل قمیص وو، لکه دا معلومیږي د ﴿بِقَمِيصِى هَٰذَا﴾ نه. اودارنګې د ﴿إِنِّى لَأَجِدُ رِيحَ يُوسُفَ﴾ نه اواکثر مفسرینو د ضحاك او مجاهد ﷫ نه روایت کړې دې چه دا د ابراهیم ﷺ هغه قمیص وو چه کله نمرود دې اورکښ واچولو، نو جبرائیل ﷺ د جنت نه راوړې وو بیا په میراث کښ یوسف ﷺ ته رارسیدلې وو، یعقوب ﷺ ده ته دتعویذ په شان په غاړه کړې وو، کله چه رونړو دې کوهی ته واچولو، نوجبرائیل ﷺ راغې اودغه قمیص ئی ده ته واغوستلو، په دې جنتی قمیص کښ دا اثر وو چه د پریشان حاله سړی پریشانی به پرې ختمیده ، والله اعلم ﴿يَأْتِ بَصِيرًا﴾ اې یصیر بصیرا ، ﴿وَأْتُونِى بِأَهْلِكُمْ﴾ یعني ټول اهل خاندان دې دلته راشی ، مقصود د ده دپلار راتلل وو، خو دهغه ذکر ئی د ادب د وجې نه ندې کړې، دیعقوب ﷺ خاندان په دغه وخت کښ مجموعه نارینه زنانه ټول اویا(۷۰) کسان وو. مفسرینونقل کړی دی چه یهودا اوویل چه دا قمیص به زه پلار ته اوړم . ځکه چه د ده هغه قمیص چه مونږ د دروغوپه وینه رنګ کړې وو نوهغه ما د پلار مخې ته اوړې وو، چه په هغې سره پلار ته ډیره صدمه رسیدلې وه، نود خوشحالئ خبر به هم زه اوړم.

وَلَمَّا فَصَلَتِ الْعِيْرُ قَالَ اَبُوْهُمْ اِنِّيْ لَاَجِدُ رِيْحَ

اوهركله چه جُدا شوه قافله [۱] (د آبادئ د مصر نه) وه ويل پلار د دوئ بيشكه زه خامخا موممه خوشبوئ

يُوْسُفَ لَوْلَآ اَنْ تُفَنِّدُوْنِ ۝ قَالُوْا تَاللّٰهِ اِنَّكَ

د يوسف لره كه تاسو ما ته د نقصان د عقل نسبت نه كوئ وه ويل دوئ قسم په الله تعالى بيشكه ته

لَفِيْ ضَلٰلِكَ الْقَدِيْمِ ۝ فَلَمَّآ اَنْ جَآءَ الْبَشِيْرُ اَلْقٰهُ

خامخا په خپل پخوانى غلط خيال او تصور كښ مبتلا ئې. پس هركله چه راغې زيرې وركونكې واچوؤ ئ قميص

عَلٰى وَجْهِهٖ فَارْتَدَّ بَصِيْرًا ۚ قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ ۚ اِنِّيْٓ اَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ

په مخ د هغه نو بيا واپس بينا شو. وه ويل پلار آيا ما تاسو ته نه وؤ ويلى چه بيشكه څه پوهه يم د الله تعالى د طرف نه

مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ قَالُوْا يٰٓاَبَانَا اسْتَغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَآ

په هغه څه چه تاسو نه پوهيږئ په هغې. وه ويل دوئ اې پلاره زمونږ ببښنه وغواړه مونږ لره د ګناهونو زمونږ

اِنَّا كُنَّا خٰطِئِيْنَ ۝ قَالَ سَوْفَ اَسْتَغْفِرُ لَكُمْ رَبِّيْ ؕ اِنَّهٗ

بيشكه مونږ خطا كار وؤ. وه ويل يعقوب زردې چه ببښنه به وغواړم تاسو لره د رب خپل نه بيشكه هغه

هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ۝

ببښنه كونكې رحم كونكې دې.

﴿ وَلَمَّا فَصَلَتِ الْعِيْرُ ﴾ داخوارلسم حال دې، هر كله چه قافله دمصر نه په طرف د كنعان روانه شوه، او د شهر دحدودو نه بهر شوه ، نوپه يعقوب ﷺ باندې په كنعان كښ ديوسف ﷺ خوشبوئ اولګيده، اوحال دا چه د مصر او دكنعان په مينځ كښ په دغه زمانه كښ د اتو ورځو سفر وو، نويعقوب ﷺ حاضرينو د مجلس ته اووئيل چه په ماباندې د يوسف ﷺ خوشبوئ اولګيده ،كه چرې تاسو ماته بې وقوف او كم عقل نه وايئ نو ځما تصديق به اوكړئ

١ . څوارلسم حال.

. یوسف ﷺ چه په خپل وطن کنعان کښې په یوکوهی کښې درې ورځې وو، نو یعقوب ﷺ نه نی نه علم وو او نه پرې خوشبوئ لګیده، او دلته پرې د دومره لرې نه خوشبوئ اولګیدله . نو ددې نه معلومه شوه چه معجزه د پیغمبر په اختیار کښې نه وی. بلکه دا د الله ﷻ خپل فعل دې چه کله ئی اراده وی نو ظاهره ئی کړی، او دغه شان کرامت د ولی دې. شیخ سعدی فرمائیی . شعر

| | |
|---|---|
| کسي پرسید ازان گم کرده فرزند | که اي روشن گهر پیر خردمند |
| زمصرش بوئي پیراهن شنیدي | چرا در چاه کنعانش نه دیدي |
| بگفت احوال ما برق جهان است | دمی پیدا ودیگر دم نهان است |
| گهي برطارم اعلي نشینم | گهي بر پشت پائي خود نه بینم |

﴿لَوْلَآ أَن تُفَنِّدُونِ﴾ جواب د (لولا) مقدردې چه (لصدقتموني) دې ، ﴿تُفَنِّدُونِ﴾ ای تنسبونی الی الفند والفند بفتحتین فساد العقل والرأی من کبر، یعنی فند دې ته وائی چه په عقل کښې فساد اونقصان راشی، دبوډاتوب دوجې نه شیخٌ مفندٌ ویلې شې، او عجوزٌ مفندةٌ نشی ویلې ، ځکه چه د خزو عقل په ځوانئ کښې هم ناقص وی،﴿قَالُواْ﴾ قائلین د یعقوب ﷺ رشته داران اونمسی دی، ځکه چه ځامن ئی حاضر نه وو، او دضلال نه مراد غلط خیال دې یا محبت دې . او د ګمراهئ په معنی سره ندې ، نسبت د ګمراهئ پیغمبر ته کفر دې ، یعنی ستا په زړه کښې د یوسف ﷺ ډیر محبت پروت دې او همیشه دې تصور اوخیال دیوسف ﷺ وی ، نو هغه درته دیوسف ﷺ خوشبوئ ښکاری ، دومره ډیره زمانه تیره شوه او د یوسف ﷺ هیڅ پته نوم نشان نشته دې نو دا چرته ممکنه ده چه هغه به ژوندې وی ﴿فَلَمَّآ أَن جَآءَ ٱلۡبَشِيرُ﴾ زیرې ورکونکې یهوذی وو، ده قمیص د یوسف ﷺ راوړو، اودیعقوب ﷺپه سترګو ئ راخکلوو ،او سترګې ئی تیک شوې، د سفیان ثوري رحمه الله نه روایت دې چه یعقوب ﷺ د زیری ورکونکی نه اول تپوس دا اوکړو(کیف ترکت یوسف)یعنی یوسف ﷺ په څه حال وو، نوهغه اویل چه (ترکته ملك مصر) یعنی هغه د مصر بادشاه دې، یعقوب ﷺ اووئیل ما اصنع بالملك، علی ای دین ترکته) یعنی زه د بادشاهی سره څه کوم چه بادشاه دې یا فقیر بلکه داتپوس کوم چه په څه دین دې؟ نوهغه جواب ورکړو (علی دین الاسلام) یعنی د دین په اعلی معیار باندې دې، نویعقوب ﷺاویل الأن تمت النعمة ، یعنی اوس دالله ﷻ نعمت پوره شو. حسن رحمه الله نه

روایت دي چه د یعقوب ﷺ اراده وه چه بشارت ورکونکی ته څه ورکړي . ځکه دا سنت دی . لیکن حال ئي داوو چه د اوو (۷) ورځونه ئي په کور کښ روټئ نه وه پخه شوې . نوعذر ئي اوکړو چه څه مالي انعام خو نشته لیکن تاته به په زیري کښ دا دعاء اوکړم چه الله تا باندې سکرات الموت آسان کړي ، قرطبي وائي چه دا ډیر بهترین انعام د زیری وؤ . ﴿قَالَ أَلَمْ أَقُل لَّكُمْ﴾ یعني ما تاسو ته نه وؤ ویلي چه د یوسف خوشبوئ راځي نوهغه خبره رشتیا شوه . یا دا چه ما تاسو ته نه وو ویلي چه لاړشئ اود یوسف تحقیق اوکړئ ﴿قَالُوا يَا أَبَانَا﴾ خامنو درخواست اوکړو چه خمونګ دپاره مغفرت اوغواړه ﴿قَالَ سَوْفَ أَسْتَغْفِرُ لَكُمْ رَبِّيٓ﴾ یعقوب ﷺ اوونیل چه لږ وخت روستو به ستاسو دپاره د مغفرت سوال د خپل رب نه وکړم . دا تاخیر یا د تهجدو وخت پورې دې یا د جمعې د شپې پورې دې، کما في روایة الترمذی وَحَسَّنَه . دا دواړه اوقات د قبولیت دی، یا دا تاخیر وقت دملاقات د یوسف ﷺ پورې دې چه هغه معافي کوي یا نه. ځکه چه د حقوق العباد د معافي دپاره د مالك د حق معافي کول ضروري دی، بعض مفسرینو لیکلي دی چه رونړو د یوسف ﷺ کله چه یوسف ته تعریض دَ معافئ اوکړو په ﴿وَإِن كُنَّا لَخَاطِئِينَ﴾ سره نو یوسف ﷺ فوراً ﴿لَا تَثْرِيبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ يَغْفِرُ اللَّهُ لَكُمْ﴾ اوونیل . اوچه یعقوب ﷺ نه ئي طلب د معافي اوکړونوهغه ﴿سَوْفَ أَسْتَغْفِرُ لَكُمْ رَبِّيٓ﴾ اوونیل نوعطاء خراساني وائي چه معلومه شوه چه طلب د عفو د ځوانانو نه آسان وی په نسبت د بوډاګانو. (قرطبي وغیره).

| فَلَمَّا | دَخَلُوا | عَلَىٰ | يُوسُفَ | آوَىٰ | إِلَيْهِ | أَبَوَيْهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پس هرکله چه دوئ داخل شو په (۱) یوسف باندې نوهغه ځائ ورکړو خپل ځان سره مور پلار خپل ته | | | | | | |
| وَقَالَ | ادْخُلُوا | مِصْرَ | إِن | شَاءَ | اللَّهُ | آمِنِينَ ﴿٩٩﴾ وَرَفَعَ |
| (او یوسف د استقبال لپاره باهر راغلې وؤ) او وې ویل داخل شئ مصرته انشاء الله په امن سره به یئ. او اُوچت ئ کړل | | | | | | |

---
۱ - پنځلسم حال .

| أَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْشِ وَخَرُّوا لَهُ سُجَّدًا ۚ وَقَالَ يَا أَبَتِ هَٰذَا |
|---|
| مور اوپلار خپل په تخت باندې او پرې وتل دوئ طرف د ده ته سجده کونکی ، او وه ویل یوسف اې پلاره ! دا |
| تَأْوِيلُ رُؤْيَايَ مِنْ قَبْلُ قَدْ جَعَلَهَا رَبِّي حَقًّا ۖ |
| تعبیر د خوب ځما دې چه د دې نه مخکښې ما لیدلې وو ، بیشکه وګرځوو دې خوب ځما لره رب ځما رښتیا |
| وَقَدْ أَحْسَنَ بِي إِذْ أَخْرَجَنِي مِنَ السِّجْنِ وَجَاءَ بِكُمْ مِنَ الْبَدْوِ |
| او یقینًا احسان ئ کړې دې ځما سره کله چه ځه ئ راویستلې یم د جیل نه، او تاسو ئ را وستلئ د باندو نه. |
| مِنْ بَعْدِ أَنْ نَزَغَ الشَّيْطَانُ بَيْنِي وَبَيْنَ إِخْوَتِي ۚ إِنَّ رَبِّي لَطِيفٌ |
| بعد دهغې نه چه فساد اچولې وو شیطان په مینځ ځما او د رونړو ځما کښې، بیشکه رب ځما ښائسته تدبیر کونکې دې |
| لِمَا يَشَاءُ ۚ إِنَّهُ هُوَ الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ ۝ |
| دهغه کار چه وې غواړی، بیشکه هغه په هرڅه پوهه او حکمتونو والا دې. |

﴿ فَلَمَّا دَخَلُوا عَلَىٰ يُوسُفَ ﴾ داپنځلسم حال دې په دې کښې ذکر د ملاقات دیعقوب علیه السلام دې او ټولو اهل بیتو دې، هرکله چه یعقوب ﷺ سره داهل عیال نه ، چه اویا (۷۰) کسان وو، یا دوه اویا (۷۲) کسان وواویا درې نوی (۹۳) کسان وو، مصر ته راروان شو، نوچه کله نزدې شو نو یوسف ﷺ د دوئ د استقبال دپاره دمصر نه بهر ولاړوو، اوهلته ئې د هغوئ د آرام دپاره یومجلس جوړکړو او چه راورسیدل نومعانقه ئې ورسره اوکړه او د غم اوښکې ئې د خوشحالئ په اوښکو باندې بدلې شوې ، نوجبرائیل علیه السلام راغې اووې وئیل چه ملائك هم تاسو سره په دې خوشحالئ کښې شریك دی، او بیا یوسف ﷺ مور پلار له خپل ځان سره په خاص مجلس کښې کینول اودا معنی د ﴿ءَاوَىٰٓ إِلَيۡهِ أَبَوَيۡهِ﴾ ده .او د آرام کولو نه بعد ئ ورته اووئیل ﴿ٱدۡخُلُواْ مِصۡرَ﴾ اوبعض وائی چه ﴿ٱدۡخُلُواْ مِصۡرَ﴾ ئې ورته د مصر ته د رسیدو نه بعد ویلی دی، اودخول په معنی د قیام سره دې، یعنی اوسیږئ په مصر کښې. او مفسرینو ویلی دی چه یوسف ﷺ د خپل پلار نه تپوس اوکړو چه تا ولې ځلوېښت کاله وجړل چه د سترګو نظر دې خراب شو؟ آیا تاته دا یقین نه وو چه که زمونږ ملاقات په دنیا کښې ونه

شي نو په آخرت کښې به ضرور کيږي ، يعقوب ﷺ ورته اوفرمائيل چه ته په ورو کوالی کښې خما نه جدا شوې وې نو له ما سره دا تشويش وؤ چه آيا ستا دين به سلامت پاتې شي او که نه خکه چه آخرت کښې به مؤمن او غير مؤمن جدا وي .

او مراد د ﴿أَبَوَيْهِ﴾ نه په قول د جمهورو کښې پلار او خاله دی خکه چه مور خو ئې په ولادت د بنيامين کښې وفات شوې وه، اوبعض مفسرين وائی چه مراد ترينه مور پلار دی اومور ديوسف ﷺ حياة وه، قرطبي دحسن نه روايت کړې دې چه مور د يوسف ﷺ وفات شوې وه، ليکن بيا الله ژوندئ کړه دپاره د رشتياکيدو د رؤيا (خوب) د يوسف ﷺ حتّى چه دې سجده اوکړه. ﴿إِن شَآءَ ٱللَّهُ﴾ دا د (آمنين) سره متعلق دې، يعنی انشاء الله چه تاسو به په امن کښې يئ د قحط نه او د نورو پريشانونه ﴿وَرَفَعَ أَبَوَيْهِ عَلَى ٱلْعَرْشِ﴾ دعرش نه مراد تخت د بادشاه دې. چه بادشاه يوسف ته حواله کړې وؤ، يعنی والدين ئې د اعزاز او اکرام دپاره په تخت باندې کينول. ليکن الله تعالى چه يوسف ﷺ ته کوم عزت مقرر کړې وو نو هغه خامخا واقع کيدونکې وؤ ، نو ددې وجې نه هغوئ ټولو يعنې مور پلار اويوولس رونړو يوسف ﷺ ته د تعظيم دپاره سجده اوکړه، او د خوب تعبير ئې پوره شو، او دا سجده تعظيمی وه يعنی د تعظيم لپاره وه او عبادتی سجده نه وه، تعظيم د غير الله مطلقًا ممنوع ندې، او عبادت د غير الله مطلقًا ممنوع دې او په هر ملت کښې اوهر دَور کښې ممنوع وؤ او هرچه سجده د تعظيم او احترام لپاره ده نو دا د حضرت آدم ﷺ د زمانې نه د عيسى ﷺ د زمانی پورې جائزه وه، او زمونږ په شريعت کښې ممنوع او حرام کړې شويده، او په کثرت سره احاديث په دې باندې دال دی، او بعض مفسرين وائې چه دلته سجده اصطلاحی نده مراد بلکه دا سجده لپاره د سلام وه او په طريقه د سرښکته کولو او لاسونه جوړې کولو سره وه او دا په مخکښو امتونو کښې د اکرام لپاره جائزه وه او زمونږ په ملت کښې منسوخ شويده لکه په روايت د ترمذی کښې دی چه عن انس رضى الله عنه قال : قلنا يا رسول الله ! اينحنى بعضنا الى بعضٍ اذا التقينا؟ قال لا - الخ، او بعض مفسرين وائی چه دا سجده يوسف ﷺ ته نه وه بلکه الله تعالى ته وه، هرکله چه دوئ د يوسف ﷺ عزت او عظمت وليدلو نو د الله تعالى په مخکښې ئې سجده د شکر اداء کړه. نو بنا پدې لام په ﴿وَخَرُّوا۟ لَهُۥ سُجَّدًا﴾ کښې لام اجليه ، سببيه دې، يعنی د يوسف ﷺ د وجه نه ټولو الله تعالى ته سجده وکړه او بعض وائی چه يوسف ﷺ مسجود اليه وؤ لکه قبله، او

مسجود له نه وؤ

﴿وَقَالَ يَٰٓأَبَتِ هَٰذَا تَأۡوِيلُ رُءۡيَٰيَ﴾ يوسف عليه السلام ته مور پلار اورونړو سجده اوکړه نو د دې نه توهم پيدا کيږي دتکبر ا و د تهمت، نو په دې سره ئې دفع اوکړه چه په دې کښې زما څه دخل نه وو، د خوب تعبير الله پوره کړو، ﴿وَقَدۡ أَحۡسَنَ بِيٓ﴾ يوسف عليه السلام د خپل عجزد اظهار دپاره دالله داحساناتو بيان کوی، ﴿إِذۡ أَخۡرَجَنِي مِنَ ٱلسِّجۡنِ﴾ دسجن نه د راوتو ذکر ئې اوکړو او دَ کوهی ذکر ئې اونه کړو نودا څکه چه رونړو سره ئې وعده کړې وه چه (لاتثريب عليکم اليوم) يعنی په تاسو هيڅ ملامتيا نشته دې، اوکه دکوهی ذکر اوکړی نوبيا په هغوئ باندې طعن او ملامتيا ته اشاره راځی او بل داچه يوسف دکوهی نه راوتلو نو بادشاه شوې نه وؤ بلکه غلام جوړ کړې شوې وؤ، او چه د جيل نه راوه وتلو نو بادشاه شو، نودا کامل انعام دې. اوبله دا چه دکوهی نه چه راوتلو اومصر ته ورسيدلو نو د امراءة العزيز اونورو خزو نه په پريشانئ کښې واقع شو، اوچه د جيل نه راوه وتلو نو دخپل پلار او رونړو سره ملاو شو. نودا لوئ انعام دې او بعض وائی چه ﴿إِذۡ أَخۡرَجَنِي مِنَ ٱلسِّجۡنِ﴾ شامل دې کوهی ته هم څکه چه کوهی هم جيل دې ﴿وَجَآءَ بِكُم مِّنَ ٱلۡبَدۡوِ﴾ کنعان اگر که باديه نه وه خو د مصر په نسبت باديه وه، او عام مفسرين وائی چه (بدو) نه مراد د کنعان قريبی صحرا گانې دی چه هلته لگ شان آبادی وه، يعقوب عليه السلام به اکثر هلته تللو او د خلقو سره به ئې مجلس کولو ﴿مِنۢ بَعۡدِ أَن نَّزَغَ ٱلشَّيۡطَٰنُ﴾ دلته يوسف نسبت د فساد او د چکړې شيطان ته اوکړو د دې دپاره چه په رونړو ملامتی رانشی، او هغوئ ته تسلی اوشی چه څومره چه زمونږ په مينځ کښې حسد او فساد پيدا شوې وؤ نودا د شيطان ملعون حرکت دې، څما درونړو شرارت نه وو، ﴿إِنَّ رَبِّي لَطِيفٞ لِّمَا يَشَآءُ﴾ لطيف يوپه معنی د د مهربانئ سره راځی، بل په معنی د باريك بين سره راځی اوعالم بخفيات الامور سره راځي، دلته دا دويمه معنی مراد ده. يعنی الله تعالی په داسې مخفی طريقې سره تدبير کونکې دې چه هيڅ چاته يې علم نشته دې، د يوسف عليه السلام په واقعه کښې د چاوهم او گمان نه شو کيدې چه دداسې حالاتو باوجود به هم دوئ ته عزت او سلطنت ملاوشی.

رَبِّ قَدْ اٰتَيْتَنِيْ مِنَ الْمُلْكِ وَعَلَّمْتَنِيْ مِنْ تَاْوِيْلِ الْاَحَادِيْثِ ۚ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ

ای ربه په تحقیق سره تا راکړی ده ما ته بادشاهي او علم دي راکړېدی ما ته د تعبير د خوبونو . ای پیدا کوونکه د آسمانونو

وَالْاَرْضِ ۟ اَنْتَ وَلِيّٖ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۚ تَوَفَّنِيْ مُسْلِمًا وَّاَلْحِقْنِيْ

او د زمکې ته کار ساز خما ئې په دنيا او آخرت کښ. وفات کړې ما لره په حالت د اسلام او يوځای کړې ما

بِالصّٰلِحِيْنَ ۝ ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهِ اِلَيْكَ ۚ وَمَا كُنْتَ

د نېکانو سره يعنې د مرګ نه. دا چه ذکر شو[1] بعضې د خبرونو د غيب نه دی. وحی کوو مونږ د دې تا ته ای پېغمبره او نه وې ته

لَدَيْهِمْ اِذْ اَجْمَعُوْٓا اَمْرَهُمْ وَهُمْ يَمْكُرُوْنَ ۝

د دوئ سره حاضر. کله چه دوئ کلک عزم وکړو د خپل کار (يعنې يوسف کوهی ته غورزول) او دوئ تدبيرونه کول

وَمَآ اَكْثَرُ النَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِيْنَ ۝ وَمَا تَسْـَٔلُهُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ ۚ

او نه دی اکثر خلق. اګر که ته حرص کوې. ايمان راوړونکی او نه غواړې ته د دوئ نه په تبليغ د دې قرآن څه اجرت

اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ ۝ وَكَاَيِّنْ مِّنْ اٰيَةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

ندې دا مګر نصيحت دې ټولو خلقو لره او ډيرې نښانې (دلائل د توحيد) دی په اسمانونو او زمکه کښ

يَمُرُّوْنَ عَلَيْهَا وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُوْنَ ۝ وَمَا يُؤْمِنُ اَكْثَرُهُمْ

چه دوئ په هغې باندې تېرېږی. او بيا هم دوئ د غوږکولو نه په هغې کښ مخ اړوی. او ايمان نه لری اکثر خلق

بِاللّٰهِ اِلَّا وَهُمْ مُّشْرِكُوْنَ ۝ اَفَاَمِنُوْٓا اَنْ تَاْتِيَهُمْ غَاشِيَةٌ

په الله تعالی باندې مګر دا چه دوئ شرک هم کوی آيا دوئ بې خوفه دی د دېنه چه راشی دوئ ته يو راګيرونکی عذاب

مِّنْ عَذَابِ اللّٰهِ اَوْ تَاْتِيَهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ۝

د عذاب د الله تعالی نه يا به راشی دوئ ته قيامت ناڅاپه او دوئ به نه پوهيږی

---

۱ . دريمه دعوی

﴿رَبِّ قَدۡ ءَاتَيۡتَنِي مِنَ ٱلۡمُلۡكِ﴾ داپه آخر د واقعه کښې ذکر د دعا دیوسف ﷺ دي. یوسف ﷺ د الله ﷻ د مادی انعام ذکر اوکړو، اوبیا ئی د روحانی انعام ذکر اوکړو چه ﴿وَعَلَّمۡتَنِي﴾ اوبیائی دالله تعالی داسماؤ په وسیله سره سوال اوکړو. تفسیر قرطبی وغیره کښې اهل تاریخ په حواله لیکلی دی چه یعقوب علیه السلام په مصر کښې درویشت (۲۳) کاله تیر کړل . اوپه څلویرشتم (۲۴) کال وفات شو. د وفات نه مخکښې ئې خپلو ځامنوته وصیت اوکړو چه په دین اسلام باندې محکم اوسیږئ لکه په سوره بقره کښې د دې ذکر دې ، اوبل دا چه ما د خپل والد اسحاق ﷺ په څنګ کښې دفن کړئ ، د وفات نه بعد د هغه د وصیت مطابق یوسف علیه السلام دوئ په تابوت کښې کیخودلو او د مصر نه ئی فلسطین (بیت المقدس) ته ورسولو. او د اسحاق او ابراهیم علیهما السلام د قبرونو په څنګ کښې ئی دفن کړو او د سعید بن جبیر رحمه الله په روایت کښې دی چه په کومه ورځ د یعقوب علیه السلام جنازه کنعان ته اورسیده نو په دغه ورځ د ده رور عیص بن اسحاق هم وفات شوې وو، یوسف دواړه رونړه قریب قریب دفن کړل، اوبیا مصر ته واپس شو، یعقوب او عیص دواړه توآمین وو دبطن واحدنه پیدا وو. عیص اول پیدا شوې وو، اویعقوب ﷺ روستو ، نو ددې وجې نه دده نوم یعقوب شو (یعنی د روستونه راتلونکې) ، د دواړو عمر ۱۴۷ کاله وو،

یوسف علیه السلام د پلار د وفات نه روستو مزید په مصر باندې دیرش (۳۰) کاله بادشاهی وکړه، د ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې چه خاندان د یوسف علیه السلام چه مصرته داخل شو نو ټول درې نوی (۹۳) کسان وؤ، نارینه ، زنانه، مشران او ماشومان. او د مصر نه ئی چه د فرعون په دور کښې هجرت کولو او د مصر نه وتل نو شپږ لاکه اویا زره (۶۷۰۰۰) کسان وؤ. اوهرکله چه د یوسف علیه السلام د دنیا نه زړه ډك شو او د الله تعالی ملاقات ته ئې ډیر شوق اوشو نو دعاء ئی اوکړه ﴿قَدۡ ءَاتَيۡتَنِي مِنَ ٱلۡمُلۡكِ﴾ دا مادی انعام دې ﴿وَعَلَّمۡتَنِي﴾ دا روحانی انعام دې ﴿تَأۡوِيلِ ٱلۡأَحَادِيثِ﴾ اصل حقیقت او ځائ ته رسول د هرې خبرې که تعبیر د خوب وی یا بله مشکله خبره او معامله وی دهغې حل ، څکه چه د معاملې صحیح حل راؤباسل د هرچا کار ندې، بلکه دې له ډیر صلاحیت پکار دې ، ﴿فَاطِرَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ دلته حرف نداء مقدره ده او دا دُعاء د په وسیله د اسماؤ د الله تعالی سره (فاطر) په معنی دَ خالق سره دې ﴿تَوَفَّنِي مُسۡلِمٗا﴾ پدې کښې دوه وجیه دی (۱) د وفات سوال مقصود ندې

بلکه مقصود دا دي چه کله د وفات وقت راشي نو څما وفات په اسلام وشي. (۲) سوال د وفات مقصود دي. نو سوال واردیږی چه دَ موت سوال کول جائز ندی لکه په حدیث کښې دی ((لاَیَتَمَنَّیَنَّ احدُکم الموت لِضُرٍّ نزل به)) نو جواب دا دي چه د موت سوال کول د بیمارئ او تکلیف د وجه نه جائز ندي لیکن د شوق د لقاء الله د وجه نه یا دَ بل څه صحیح غرض د وجه نه جائز دي لکه ساحرانو د فرعون چه دعاء وکړه : ﴿رَبَّنَآ أَفۡرِغۡ عَلَيۡنَا صَبۡرٗا وَتَوَفَّنَا مُسۡلِمِينَ﴾ حضرت مریم علیها السلام ویلی وو ﴿يَٰلَيۡتَنِي مِتُّ قَبۡلَ هَٰذَا﴾ او د معاذ ﷺ په حدیث کښې دا دعاء مذکور ده چه (وَاِذَا اَرَدْتَ بِقَوْمٍ فِتْنَةً فَاقبِضنِی اِلَيْكَ غَيرَ مَفْتُوْن) او د مسند احمد په روایت کښې دی چه (وَالْمَوْتُ خيرٌ لِلْمُؤمِنِ مِنَ الْفِتَنِ) دارنګه حضرت علی ﷺ په وخت د هجوم د فتنو کښې دا دُعاء اوکړه چه (اللهمّ خُذنی اليك) . او دا سوال د یوسف ﷺ دَ وجه د شوق نه دي لپاره د ملاقات د الله تعالی

﴿وَأَلۡحِقۡنِي بِٱلصَّٰلِحِينَ﴾ د صالحینونه مراد پلار او نیکونه دی، او دا دعاء داسې ده لکه چه نبی ﷺ په وقت د موت کښې ویلی وو (اللهمّ بالرفيق الاعلى) او مقصود د دې دعاء نه اظهار دَ بی رغبتئ دې د دنیانه . یا مقصود حصول د درجاتو عالیؤ د پلار نیکه دې، مفسرینو د اهل تاریخ په حواله لیکلی دی چه یعقوب ﷺ په مصر کښې څلویښت (۴۰) کلونه تیر کړل اوبیا وفات شو او پهشام کښې دَ حضرت ابراهیم ﷺ او اسحاق ﷺ په جوار کښې دفن شو، او یوسف ﷺ د دینه روستو درویشت (۲۳) کاله نور په مصر حکومت اوکړو او بیا ئی د دنیانه زړه اوچت شو او د الله تعالی د ملاقات او د خپلو آباؤ او اجدادو دصحبت شوق ئی پیدا شو، نو دا مذکوره دعاء ئی وکړه او وفات شو، (طیبًا ، طاهرًا) ، او اهل مصر د ده په دفن کښې اختلاف وکړو. هري محلې والا دا غوښتل چه زمونږ سره قریب دې دفن شي، حتی چه نزدې وو چه له یوبل سره قتال وکړی ، نو بالاخره پدې متفق شو چه د ده جسم د سنګ مرمر په صندوق کښې او د دریای نیل په غاړه ئی په داسې مقام کښې دفن کړی چه اوبه په هغې راخی او مصرته خوریږی او ټولو ته یوشان رسیږی، او د حضرت عکرمه ﷺ نه روایت دې چه یوسف ﷺ د دریائ نیل په خی طرف کښې دفن شو ، نو په بل جانب کښې قحط شو نو بیا نقل کړې شو چپ جانب د نیل ته نو په خی طرف قحط راغې نو بیا ئی نقل کړو او په وسط د نیل کښې ئی دفن کړو. اهلِ سیر وائی چه یوسف ﷺ د شپږ شلې (۱۲۰) کالو په عمر کښې وفات شوې دې.

او د عزيز مصر د وفات نه ئې وروستو دهغه د بي بي زليخې سره نكاح شوې وه او دوه خامن ئې ترينه پيدا شوي وو. د يو نوم افرائيم وو او د بل نوم منشا وو. اويوه ئې لور وه چه دهغې نوم (رحمت) وو ، هغه د ايوب ﷺ په نكاح كښې رغلې وه. او د افرائيم خوی (نون) وو او د هغه خوی یوشع ﷺ وو چه د موسی ﷺ رفيق وو، او په يو روايت كښې دي چه يوسف ﷺ وصيت وكړو چه داسې وقت به راشي چه بني اسرائيل به د مصر نه هجرت كوي نو خما جسد دې ځان سره شام ته يوسي، او دَ آباؤ او اجدادو سره دې ما دفن كړي. نو ديوسف ﷺ د وفات نه بعد عمالقه په مصر باندې مسلط شو او بني اسرائيل د هغوئ ماتحت وو ، تر دې چه د موسی ﷺ زمانه راغله، اوكله چه بني اسرائيلو هجرت كولو نو د يوسف ﷺ د وصيت مطابق موسی ﷺ دهغه د قبر تفتيش وكړو چه د سنګ مرمر په تابوت كښې وو، هغه ئې د ځان سره فلسطين ته يوړو او د حضرت اسحاق اوحضرت يعقوب عليهما السلام په څنګ كښې ئې دفن كړو. فسبحان من لا انقضاء لملكه وسلطانه.

**فائده** سلطان محمود غزنوي رحمه الله په خپل دور كښې جهاد شروع كړو نو د غزني نه تر هندوستان پورې ملك ئې فتح كړو او چه د وفات وخت ئې قريب شو نو يوڅو اشعار ئې وه وئيل چه بعض دهغې نه دادي:

**هزار قلعه گرفتن به يک اشارت دست — بسې مصاف شكستم به يک اشارت پائ**

**چون مرگ تاختن اورد هيچ سودنكرد — بقا بقائ خدائيست ملک ملک خدا**

يعني چه ما به په لاس اشاره وكړه چه دا فلانئ قلعه فتح كوؤ ، نو فوج به هغې ته ورسيدلو اوهغه به ئې فتحه كړه اوچه ما به په خپو سره اشاره وكړه چه فلانې ميدانِ جنګ به فتح كوؤ ، نو فوجيان به ورته رسيدلي وو اوهغه ميدان جنګ به ئې فتح كړې وؤ. اوهيڅ مقابل خما دفاع نشوه كولې، ليكن چه مرګ حمله وكړه نو دهغې دفاع نشوه كيدلې. نو حقيقي بقاء د الله تعالى بقاء ده او حقيقي بادشاهي د الله تعالى بادشاهي ده

﴿ ذَٰلِكَ مِنْ أَنۢبَآءِ ٱلْغَيْبِ ﴾ دا دريمه دعوى ده ، يعني ته ريشتني رسول ئې ځكه چه الله تعالى ته د وحى په ذريعه سره د امورو د غيب نه خبر كړې لكه د يوسف عليه السلام او د هغه د رونړو قصه هم يو امر غيبي دې چه الله تعالى تاته د دې اطلاع په ذريعه د وحى سره دركړه.

﴿وَمَا كُنتَ لَدَيْهِمْ ﴾ يعني ته د رونړو د يوسف ﷺ سره حاضر نه وې، ﴿إِذْ أَجْمَعُوٓا۟ أَمْرَهُمْ ﴾ كله چه دوئ بخه كړه اراده خپله چه يوسف ﷺ په كوهي كښې واچوى ﴿وَهُمْ يَمْكُرُونَ ﴾ يعني دوئ د ده

متعلق تدبيرونه شروع كړل چه پلارته اوايو چه دي مونږ سره صحراء ته پريږده ﴿ وَمَآ أَكْثَرُ النَّاسِ ﴾ يعنى باوجود ددي نه چه ستا په صداقت دومره واضح دليلونه موجود دى بيا هم اكثر خلق ايمان نه راوړى . دا زجر دي كفارو ته . ﴿وَمَا تَسْأَلُهُمْ عَلَيْهِ ﴾ دا تسلى ده يعنى كه څوك ايمان نه راوړى نوتاته هيڅ نقصان نشته ، ځكه چه ته خو د دوئ نه څه اجرت (تنخواه) نه غواړې چه هغه به بنده كړې شى . دا خو دَ ټولې دنيا دپاره نصيحت دي. ﴿وَكَأَيِّن مِّنْ ءَايَةٍ ﴾ دا زجر دي مشركينو ته چه دوئ اعراض كوى ﴿يَمُرُّونَ ﴾ مراد د .دي نه نظر تيرول دى يعنى مشاهده كول دى دالله تعالى دَ دلائلو دتوحيد . ليكن دوئ ترينه اعراض كوى ﴿ وَمَا يُؤْمِنُ أَكْثَرُهُم ﴾ دا زجر دي، اومراد د ايمان نه ايمان لغوى دي . يعنى تصديق په وجود دالله او په ربوبيت دالله او په خالقيت دالله .ايمان شرعي نه دي مراد ځكه چه ايمان شرعى دكفر سره نه شي يوځائ كيدي، او مقصود دآيت دادي چه مشركان د الله تعالى دَ خالقيت تصديق كوى يعنى دا عقيده لرى چه صرف الله تعالى خالق دي، رازق دي ليكن بيا هم شرك په عبادت او استعانت كښ كوى، د غير الله عبادت كوى ، هغوئ ته (بُتانو ، قبرونوته) سجدې لګوى او د هغوئ په نوم نذرونه وركوى او د هغوئ نه مدد غواړى لكه دا حالت مشاهده دي په دي زمانه كښ . فالى الله المشتكى، ﴿ أَفَأَمِنُوٓا ﴾ دا تخويف دي، يعنى مشركين چه د الله تعالى د توحيد نه غافل دى نو آيا دوئ د دينه بى خوف دى، او د دينه نه يريږى چه راشى دوئ ته د الله د طرف نه سخت عذاب، ﴿غَٰشِيَةٌ ﴾ اى عقوبة غاشية مُجللة (ابن عباس) ، يعنى عام عذاب په دوئ راشى .

قُلْ هَٰذِهِۦ سَبِيلِىٓ أَدْعُوٓا۟ إِلَى ٱللَّهِ ۚ عَلَىٰ بَصِيرَةٍ أَنَا۠ وَمَنِ ٱتَّبَعَنِى ۖ

ته ووايه چه دا څما لاره ده چه بلنه كوم د الله د توحيد طرفته ، په پوره بصيرت او دليل سره څه او څما تابعداران

وَسُبْحَٰنَ ٱللَّهِ وَمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴿١٠٨﴾ وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا

او پاكى ده الله تعالى لره او نه يم څه د مشركانو د ډلې نه . اوندى ليږلى مونږ ستانه مخكښ مګر نارينه

نُوحِيٓ إِلَيۡهِم مِّنۡ أَهۡلِ ٱلۡقُرَىٰٓۗ أَفَلَمۡ يَسِيرُواْ فِي ٱلۡأَرۡضِ فَيَنظُرُواْ

ته وحي كوله مونږ هغوئ ته د اهل د لويو كلونه. آيا پس دوئ ندي گرځيدلي په ځمكه كښې پس چه وگوري په نظر د عبرت سره

كَيۡفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡۗ وَلَدَارُ ٱلۡأٓخِرَةِ خَيۡرٞ

چه څرنگه وؤ آخري انجام د هغه خلقو چه مخكښې وؤ د دوئ نه او خامخا كور د آخرت ډير غوره دې هغه چا لره

لِّلَّذِينَ ٱتَّقَوۡاْۚ أَفَلَا تَعۡقِلُونَ ۝

چه تقوى كوى، آيا پس بيا هم تاسونه پوهيږئ

﴿ قُلۡ هَٰذِهِۦ سَبِيلِيٓ ﴾ دا ترغيب دې دعوت وركولو ته، دا (هذه سبيلى) جمله مفسَره ده، ﴿أَدۡعُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِۚ﴾ مفسَره ده ﴿عَلَىٰ بَصِيرَةٍ﴾ متعلق د (ادعوا) سره دې، يادا جمله حاليه ده. اى حال كونى على بصيرة، (بصيرت) دزړه بينائى ته وائى اوبصارت د سترگو بينائى ته ويلې شى او مراد د بصيرت نه واضح حجت دې. يعنى ځما دعوت په دليل واضح سره دې يا دا چه ځما دعوت په نور د باطن او په پوره شرح صدر سره دې او الله تعالى ماته يو داسې نور راكړې دې چه په هغې سره ځما د ټوول ملگرو متبعينو دماغ روښانه دى او وهم پرستى او ړوند تقليد ندې، ﴿أَنَا۠ وَمَنِ ٱتَّبَعَنِيۖ﴾ انا تاكيد دې دضمير مرفوعه متصله نه په (ادعوا) كښې او (من اتبعنى) عطف دې په دغه ضمير مرفوعه متصله باندې چه فاعل دې، او معطوف په فاعل باندې خو فاعل وى او دلته اگر كه (من اتبعنى) فاعل د (ادعو) دپاره نشي كيدې ليكن په دې كښې تغليب دې دمتكلم په غير متكلم باندې او اشاره ده اتحاد ته، يعنى دعوت دمتبع بعينه دعوت دمتكلم يعنى ځما دې، يا (انا) مبتدا ده او (من اتبعنى) پرې عطف دې. او (على بصيرة) خبرمقدم دې، ﴿وَسُبۡحَٰنَ ٱللَّهِ﴾ دلته (أقول) مقدردې، يعنى ځما ددعوت خلاصه داده چه الله تعالى پاك دې د شريك او د نظير نه او د ولد نه، اوزه نه يم د مشركانو د ډلې نه. مقصود براءت دې دمشركانونه.

﴿ وَمَآ أَرۡسَلۡنَا مِن قَبۡلِكَ إِلَّا رِجَالٗا ﴾ داجواب دې د جواب دَ شبهې د كفارو نه، چه دوئ ويل چه ته خو بشر يې اوبشر رسول نه وى، نوجواب اوشو چه ټول انبياء بشر وو، يونبى هم فرشته نه وه، اوپه بشر كښې نارينه وو، هيڅ نبى زنانه نه وه ﴿نُّوحِيٓ إِلَيۡهِم﴾ يعني دنبى فرق اوامتياز

ده نورو خلقو نه داوو چه نبي ته به وحی کيدله، اهل سنت والجماعت په دې متفق دی چه زنانه نبيه نشی کيدې، البته وليه او صديقه کيدې شي او په نصوصو کښې چه راغليدی چه د حضرت مريم او حضرت ساره او حضرت آسيه سره ملائکو خبرې کړی دی . نو دا دليل د نبوت ندې بلکه کرامت دې ﴿مِّنْ أَهْلِ الْقُرَىٰ﴾ قرى نه مصر او ډيرې آبادی والا ښار ورنه مراد دې . د حسن بصری رحمه الله نه روايت دې چه الله تعالى نبی ندې راليږلې د باديه (باندې) والا نه ځکه چه په هغوئ کښې سخت مزاجی وی او په ښهر والا کښې حلم او علم وی او کامل عقل والا وی ﴿أَفَلَمْ يَسِيرُوا﴾ دا تخويف دنيوی دې .

| حَتَّىٰ | إِذَا | اسْتَيْأَسَ | الرُّسُلُ | وَظَنُّوا |
|---|---|---|---|---|
| (مخکښې کافرانو ته مهلت ورکړې شوې وو) تر دې پورې چه [1] نا اُميده شو رسولان او ګمان وکړو قوم د دوئ | | | | |

| أَنَّهُمْ | قَدْ | كُذِبُوا | جَاءَهُمْ | نَصْرُنَا | فَنُجِّيَ | مَنْ | نَشَاءُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چه د دوئ سره د دروغو وعده کړې شوې وه، نو را به غې دوئ ته مدد زمونږ پس بچ به کړې شو هغه څوک چه مونږ غوښتل | | | | | | | |

| وَلَا يُرَدُّ بَأْسُنَا عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ ﴿١١٠﴾ لَقَدْ كَانَ فِي قَصَصِهِمْ عِبْرَةٌ |
|---|
| اونه شی واپس کيدې عذاب زمونږ د قوم مجرمانونه يقيناً شته دې په قصو د پيغمبرانو کښې عبرت |

| لِّأُولِي الْأَلْبَابِ ۗ مَا كَانَ حَدِيثًا يُفْتَرَىٰ وَلَٰكِن تَصْدِيقَ الَّذِي |
|---|
| د خاوندانو د عقل لپاره . ندې دا قرآن خبره د ځان نه جوړه کړې شوې . ليکن دې تصديق دې دهغه کتابونو |

| بَيْنَ يَدَيْهِ وَتَفْصِيلَ كُلِّ شَيْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿١١١﴾ |
|---|
| چه د ده نه مخکښې دی او تفصيل دې د هرې ضروری خبرې او هدايت او رحمت دې هغه قوم لره چه ايمان راوړی |

﴿حَتَّىٰ إِذَا اسْتَيْأَسَ الرُّسُلُ﴾ دا د سورت څلورمه دعوی ده . يعني امتحانات اومصائب به راځي ليکن په آخر کښې به الله فتح تاته درکوي ، لکه په نورو انبياؤ باندې دومره امتحانات

---

۱ . څلورمه دعوی

راغلل چه دوئ مايوس كيدو ته نزدې شو ، نوپه دغه وقت كښ به دالله مدد راغې (حتى) غايه ده د محذوف لپاره، تقدير د كلام دارنگه دې لايغررهم تماديهم فيما هم فيه من الدعة والرخاء فان من قبلهم قد امهلوا حتى – الخ ، يعنى د اكفار دې دتاخير دعذاب نه داگمان نه كوى چه عذاب نشته ځكه مخكښ قومونو ته مهلت وركړې شوې وو. اوتاخير د عذاب شوې وو، حتى چه نا اُميده شو رسولان دمغلوب كيدو دكفارو نه په دنيا كښ اوگمان ني اوكړو چه - الخ ، علامه زمخشري وائى چه دا متعلق دې د ﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَا ﴾ سره اى وما ارسلنا قبلك الا رجالا فتراخي النصر حتى اذا – الخ . **سوال** : نا اُميدى د الله تعالى د رحمت او د امداد الهى نه كفر دې نو رسولان به څرنگه نا اُميده شى ، **جواب** (١) مراد يأس طبعى غير اختيارى دې او دا معصيت ندې او د عصمت سره منافى هم ندې بلكه د غير اختيارى وساوسو په باره كښ حضور ﷺ فرمايلى دى (ذاك صريح الايمان). **جواب** (٢) مراد يأس دې په اعتبار د ظاهرى حالاتو سره ، يعنى ظاهرًا اسباب او آثار د نصرت د مؤمنانو او د شكست د كفارو په نظر نه راتلل او نا اُميدى په اعتبار د محض ظاهرى حالاتو سره منافى نده د عصمت سره ، **جواب** (٣) : مراد نا اُميده كيدل دى د ايمان د قوم خپل نه او د نصرت او رحمت الهى نه نا اُميدى نده مراد.

﴿وَظَنُّوٓا أَنَّهُمۡ قَدۡ كُذِبُوا﴾ دلته دوه قرآته دى، يوپه تشديد د ذال سره (كذّبوا) چه د تكذيب نه مشتق دې ، او دويم په تخفيف د ذال سره دې (كذبوا) چه د كذب نه مشتق دې ، په اول قرات كښ دوه توجيه دى : (١) (ظنوا) په معنى د (ايقينو) سره دې . د ظن استعمال په يقين كښ شايع دې ، لكه (وظنوا ان لا ملجاء من الله الا اليه) ، يا (يظنون انهم ملاقوربهم) ، او ضمائر د (ظنوا . انهم كذبو) راجع دى انبياؤ ته ، نومعنى داشوه چه يقين اوكړو رسولانو چه په تحقيق سره زمونږ تكذيب كړې شوې دې دطرف دامت نه . (وكذا فى حواشى البخارى اى جلد اول) . (٢) دويم داچه ضمير په (ظنوا) كښ انبياؤ ته راجع دې، او د (انهم) ضمير اتباع الرسل ته راجع دې. او (قدكذبوا) په معنى د (سيكذبونا) سره دې ، نومعنى داشوه چه رسولان . نا اُميده شو دايمان د قوم نه اونصرت الهى دومره موخر شو چه رسولانو داگمان اوكړو چه اوس به دا زمونږ اَتباع هم زمونږ تكذيب اوكړى، نو په دغه وخت كښ ﴿ جَآءَهُمۡ نَصۡرُنَا ﴾ دا توجيه مروي ده د ام المومنين عايشه رضي الله عنها نه په جواب د سوال د عروه ابن زبير كښ .او په دويم قراء

ب کښ به ظاهر کښ سخت اشکال دي . ځکه چه ظاهره دا ده چه ضمائر ټول راجع دی رسولانو ته . نومعنی دا شوه چه گمان اوکړو رسولانوچه دوئ ته دروغ ويلي شوي وو . يعني وعده خلافی ورسره کړي شوي وه اودا گمان خو د يو ادنی مومن د شان سره ندي مناسب نونبی ﷺ به حرنگه داسي گمان وکړی . نو مفسرينو د دي يوځو جوابونه کړي دی (۱) ضماير ټول راجع دی مرسل اليهم ته يه قرينه د مقام سره چه ذکر ئی په ((وما ارسلنا ـــ الخ )) کښ ضمنا راغليدي . يعني گمان اوکړو دغه قوم چه مونږ ته دروغ ويلی شويدی . د طرف د رسولانو نه يعنی پيغمبرانوچه مونږ ته د عذاب دهمکئ راکولي نو هغه دروغ وو . صرف زمونږ د يرولو دپاره وو . نور څه نه وو . نوپدغه وقت کښ ﴿جَآءَهُمْ نَصْرُنَا﴾ (روح، شاه ولی الله)، (۲) کذب په معنی د دروغو سره ندي بلکه په معنی د نه پوره کولو د وعدې د عذاب دي فی الحال. ځکه چه کذب مقابل د صدق دي . او صدق په معنی د وعدې پوره کولو سره هم راغليدي لکه ((من المومنين رجال صدقوا ما عٰهدوالله)) . دلته صدقوا په معنی د وعدې پوره کولو سره دي نو کذب په معنی د وعدې نه پوره کولو سره دي . معنی داشوه چه کفارو ته طويل مهلت ورکړي شو . او آثار د نصرت نه وو . نورسولانو گمان اوکړو، چه فی الحال يعنی زمونږ په زندگئ کښ به وعده د مغلوب کيدلو د کفارو پوره نه کړي شی. يا به زمونږ د څه لغزش په وجه داوعده پوره نه کړي شی. (۳) د ﴿وَظَنُّوٓاْ أَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُواْ﴾ معنی داده چه پيغمبران د ډيرې پريشانئ د وجې نه قريب وو چه داسي گمان وکړی . دقريب د شی نه کله تعبير په عين شی سره کولې شی. لکه بلغت المنـــزل ای قربت اليه ، (قرطبي) (۴) داظن اختياری نه دي بلکه غير اختياری وسوسه ده. (مدارك ، عثماني )(۵) ضمائر ټول راجع دی انبياؤته اود کذب نه مراد کذب من جانب الله نه دي . بلکه مراد ترينه غلطی اجتهادی ده د جانب د نفسونو د دوئ نه په تعين د وعدې دنصرت کښ . يعنی الله به رسولانو سره د نصرت وعده اوکړه ليکن مطلقه به وه او انبياؤ به خپل اجتهاد سره هغې د وقت متعين کړو او په دغه وقت متعين کښ به نصرت رانغې. نو دوئ به ويل چه مونږ غلطی کړې وه چه په اجتهاد سره مو وقت متعين کړې وو(تهانوی . روح) . (۶) دا د باب د الزام المخاطب بمالا يلتزم د قبيلې نه دي او دا يو مستقل باب دي په قرآن کښ چه مبنی ئی کمال تعلق او محبت دي . لکه الله ﷻ ابراهيم ﷺ ته فرمائي (اولم تومن) او د يونس ﷺ په شان کښ فرمائی چه (فظن ان لن نقدر عليه) . (فيض الباری لشاه

انورشاه كشميري) ﴿وَلَا يُرَدُّ بَأْسُنَا﴾ مجرم ته الله مهلت ورکوی لیکن چه وي نیسی په عذاب سره نوځوك ئې نه شي خلاصولي ﴿لَقَدْ كَانَ فِي قَصَصِهِمْ﴾ ضمير راجع دي انبياء ته .يا يوسف ﷺاو پلار او رونړو د ده ته چه په دې کښ عبرت دې . چه رونړوحسد اوکړونونتيجه ئې ندامت اورسوائی شوه اوچه يوسف ﷺ صبر اوکړو نونتيجه ئې سر بلندی اوعزت او بادشاهي شوه، نوپه صبرکښ سلامتيا اوعزتونه دی . اوپه حسد کښ ذلت اورسوائی ده او دا رنګه په دې کښ دا عبرت دې چه الله ﷻ لکه چه یوسف دکوهی نه راوباسلو اوبادشاهی او عزت ئې ورته ورکړو اوحسد کونکی نادم اوذلیل شول نودغه شان به د حضور ﷺ حاسدین ذلیله کیږی . اوحضور ﷺ ته به الله ﷻ مزیده ترقی اوعزت ورکوی .

﴿مَا كَانَ حَدِيثًا يُفْتَرَىٰ﴾ دا بیان د صداقت دقران دې اوضمیر په کان کښ یا راجع دې قرآن ته یعنی دا قرآن افتراء نده لکه چه مشرکین وائی (ام يقولون افتراه) بلکه داتصدیق دې د مخکنو کتابونو یا دا ضمیر راجع دې قصصو د انبیاؤته یا قصې د یوسف ﷺ ته چه دا قصه افسانه نه ده بلکه حقیقت دې ، اوددینه هدایت ملاویګی اوعقل مند خلق ترینه عبرت حاصلوی ﴿وَتَفْصِيلَ كُلِّ شَيْءٍ﴾ نه مراد دادې چه کوم شئ ته ضرورت وی په دین کښ نو دا د هغې تفصیل دې دټولو دلائلو شرعیو بنیاد اومنبع قرآن دې . نوځکه دې تفصیل د هرڅه شو ، معاملات وی اوکه عبادات یا اعتقادیات وی ﴿وَهُدًى وَرَحْمَةً﴾ دتفصیل داحکامو نه بعد هدایت ملاویږی . او د هدایت نه بعد نزول درحمت کیږی .

اللهم انفعنا بعلوم القران وارزقنا تلاوته آناء اليل وآناء النهار واجعله حجة لنا لا علينا بفضلك ورحمتك يا ارحم الراحمين .

(تم سورة يوسف بحسن توفيقه وكرمه ١٣ ربيع الاول ١٤٣٠)

| رکوع | سورة الرعد مدنية | آیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۶ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | ۴۳ |

خاص په نوم د الله سره چه بیحده مهربان او ډیر رحم کوونکې دې شروع کوم

**رقما حسب التسلسل (۱۳) وحسب النزول (۹۶)**

دترتیب قرانی په لحاظ سره ۱۳نمر سورة دې ، او د نزول په اعتبار سره ۹۶ دې . قبل الرحمن وبعد محمد ، اوپه دې کښ اختلاف دې ، چه آیا دا سورة مکی دې یا مدنی دې. د ابن عباس ﷺاوعلی بن ابی طالحه ﷺ او د سعید بن جبیر رﷺ او د سعید بن منصور رحمه الله نه روایت دې چه دا مکی دې ، او دابن عباس ﷺ نه په بل روایت کښ او عطاء اوقتاده رحمهما الله نه روایت دې چه داسورة مدنی دې ، لیکن دا آیت ((ولایزال الذین کفرو – الخ )) مکی دې او راجح قول دا دې چه دا سورت مکی دې، مگر بعض آیتونه ئې مدنی دی .

**ربط** : ربط اسمی ئې دادې،چه مسئله د توحید لکه څه رنګه چه یوسف ﷺ په جیل کښ د تعبیر د خوب نه قبل بیان کړې ده نو دغه شان رعد فرښته او نورې فرښتې د الله تعالی پاکی وائې د شرك نه،او **ربط مضمونی** ئې دا دې،چه د ماقبل سورت نه ډیر په وضاحت سره معلومه شوه چه کارساز متصرف فی الامور او عالم الغیب صرف د الله تعالی ذات دې،نو مسئله بدیهی شوه لیکن که چا ته په کښ خفاء ښکاریږی نو د خفاء لرې کولو د پاره په دې سورت کښ مزید عقلی تنبیهات ذکر کیږی،یا دا چه په مخکښ سورت کښ نقلی دلیل وو په دې چه متصرف فی الامور او عالم الغیب صرف د الله تعالی ذات دې او په دې سورت کښ عقلی دلائیل بیانیږی د دغه مسئلې د پاره،او بل دا چه د تیر شوی سورت په آخر کښ د قرآن حقانیت ذکرشواوددې سورت په ابتداء کښ هم دغه مضمون بیانیږی،اوبل دا چه په تیر شوی سورت کښ ذکر شو ﴿وَكَأَيِّنْ مِّنْ آيَةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ﴾ نو په دې سورت کښ د هغې ذکر کیږی

**خلاصه** : په اول کښ تمهید مع الترغیب دې،اته (۸) تنبیهات عقلیه په توحید باندې او یونقلی دلیل او دوه وحی دلائیل دی،په درمیان کښ تقابل د منونکو او د نهٔ منونکو دې،او په آخر کښ د مشرکینونه د سوالونو جوابونه دی، **تفصیل دا دې** چه آیت نمبر ۱ تمهید دې،آیت نمبر ۲ نه تر آیت نمبر۴ پورې اوله تنبیه او دلیل عقلی دې بیا شکوه زجر تخویف

دي.دويم عقلي دليل او تنبيه عقلي د پاره دنفي دعلم غيب ده دغير الله نه. ﴿ اللَّهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ ﴾ آيت نمبر٨ نه تر آيت نمبر ١١ پورې . دريم دليل او تنبيه عقلي ﴿ هُوَ الَّذِي يُرِيكُمُ الْبَرْقَ ﴾ ١٢ تا ١٣، څلورم دليل او تنبيه عقلي ﴿ وَلِلَّهِ يَسْجُدُ ﴾ آيت نمبر ١٥ .پنځمه تنبيه او دليل عقلي على سبيل الاعتراف من الخصم. ﴿ قُلْ مَن رَّبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ آيت نمبر ١٦ .شپږمه تنبيه او دليل عقلي بطور مثال ﴿ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً ﴾ تا آيت نمبر ١٧. بيا تقابل د اوصافو د مؤمنانو او د كافرانو او امور متفرعه از آيت نمبر ١٨ تا آيت نمبر ٢٥.اوومه تنبيه او دليل عقلي ﴿ اللَّهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ ﴾ تا آيت نمبر ٢٦ .اتمه تنبيه اودليل عقلي ﴿ أَفَمَنْ هُوَ قَائِمٌ ﴾ آيت نمبر٣٣ او دليل وحى ﴿ كَذَٰلِكَ أَرْسَلْنَاكَ ﴾ آيت نمبر ٣٠ دويم دليل وحى ﴿ إِنَّمَا أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ اللَّهَ ﴾ آيت نمبر ٣٦ دليل نقلي ﴿ وَالَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ ﴾ آيت نمبر ٣٦ ، ﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا ﴾ ، تا آيت نمبر ٣٨ د څلورو سوالونو جوابونه دي.د دې نه پس تخويف او شكوه ده.

| الٓمٓرٰ | تِلْكَ | آيَاتُ | الْكِتَابِ |
|---|---|---|---|
| الله ښه پوهيږي [1] په مراد ځپل سره د دې نه | دا | آيتونه | د كتاب دي |

| وَالَّذِي | أُنزِلَ | إِلَيْكَ | مِن | رَّبِّكَ | الْحَقُّ | وَلَٰكِنَّ | أَكْثَرَ | النَّاسِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوهغه چه | نازل كړې شوې دې | تا ته | د طرف د | رب ستا نه . | حق دې | ليكن | اكثر | خلق |

| لَا يُؤْمِنُونَ ① | اللَّهُ | الَّذِي | رَفَعَ | السَّمَاوَاتِ | بِغَيْرِ | عَمَدٍ | تَرَوْنَهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ايمان نه راوړي . | الله تعالى | هغه ذات دې [2] چه | اوچت كړې ئ دى | آسمانونه | بغير د | ستنو نه | چه تاسو ئې وينئ |

| ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ | وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ | كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُّسَمًّى |
|---|---|---|
| بيا برابر شوې دې په عرش بندې | او په كار ئ لګولى دى نمر سپوږمئ ، | هر يو چليږى د نيټې مقررې پورې. |

١ - تمهيد مع ترغيب
٢ - اول دليل عقلي

يُدَبِّرُ الْأَمْرَ يُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ بِلِقَآءِ رَبِّكُمْ تُوْقِنُوْنَ ②

تدبیر کوی د هر کار. په تفصیل سره بیانوی آیاتونه، د دې لپاره چه تاسو په ملاقات د رب خپل یقین وکړئ

﴿تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ﴾ دا تمهید دې او ترغیب دې او اتباع د قرآن ته (تلك) اشاره ده آیتونو ددې سورت ته او د کتاب نه مراد دا سورت دې، یعنی دا آیتونه د دې سورت کامله عجیبه آیتونه دی چه حق دې او د رب العلمین د طرفه راغلې دې، یا (تلك) اشاره ده دې سورت ته او د کتاب نه مراد قرآن دې، یعنی دا سورت د قرآن آیتونه دی، او مقصود الحاق د جز دې کل سره یعنی کل کتاب چه څه رنګه په کامله اکمل او حق دې او په اعلی معیار د فصاحت او بلاغت کښې دې، او معجز دې، او د رب العلمین د طرفه دې، نو دغسې دا جز هم دې لیکن تعجب دې چه دا داسې واضح او حق منلو نه ډیر خلق انکار کوی ایمان نۀ راوړی ﴿اَللّٰهُ الَّذِیْ رَفَعَ﴾ دا اول دلیل عقلی دې، د ﴿رَفَعَ السَّمٰوٰتِ﴾ معنی دا نۀ ده چه اول ښکته وو او بیا ئې اوچت کړل بلکه معنی ئې دا ده، (خلقهنّ مرتفعاتٍ) یعنی اوچت او مرتفع ئې پیدا کړې دی، ﴿بِغَیْرِ عَمَدٍ﴾ عمد جمع د عمود ده او ﴿تَرَوْنَهَا﴾ ضمیر راجع دې (سَمٰوٰت) ته یعنی تاسو وینئ اسمانونو چه ستنې ورته نشته دې، او ددې نه معلومیږی چه اسمان لیدلې شی، او دا شین رنګ د اسمان دې، او په بل آیت کښې دی، ﴿وَاِلَى السَّمَآءِ كَیْفَ رُفِعَتْ﴾ فلاسفه وائی چه دا رنګ د اسمان نۀ دې، بلکه د رڼا او د تیرې د خلط نه شین رنګ محسوسیږی، ځکه د لاندې نه د ستورو رڼا ده او د پاسه نه تیاره ده نو د دې د خلط نه شین رنګ پیدا شو لیکن د فلاسفو دا تحقیق د دې نه مخالف نه دې، بلکه کیدې شی چه د اسمان رنګ دې هم شین وی، لکه د ابو ذر غفاری رضی الله عنه په تعریف کښې رسول الله ﷺ فرمائیلې دی، (ما اظلت الخضراء ولا اقلت الغبراء علی ذی لهجة اصدق من ابی ذر)، یعنی د آسمان د لاندې او د زمکې د پاسه د ابوذر رضی الله عنه نه ځوك زیات رېښتینې نشته دې، په دې حدیث مبارك کښې ئې اسمان ته خضراء وئیلې دی، یا ضمیر په (تَرَوْنَهَا) کښې راجع دې عمد ته یعنی عمد وله شته دې، خو مرئی نۀ دې یعنی ښکاره نه دې، لکه دا روایت دې د ابن عباس رضی الله عنه نه او دا رنګې د حسن رحمه الله او د قتاده رحمه الله وغیره نه چه (لها عمد ولکن لا نری)، د امام رازی رحمه الله تحقیق دا دې، چه د عمد غیر مرئیه نه مراد د الله تعالی قدرت دې. یعنی دا اسمانونه د الله تعالی په قدرت سره قائم دی، چه هغه په سترګو نۀ

لیدلې کیږی﴿ثُمَّ اسْتَوٰى﴾ (ثُمَّ) د تراخی فی الذکر د پاره راځی. یعنی بیا دا هم واوره. چه الله تعالی استوی علی العرش کړې ده. ددې تفصیل مخکښې تیر شوې دې. چه دا کنایه ده د تصرف نه یعنی اسمانونه الله تعالی پیدا کړې دی او ددې تصرف او چلول الله تعالی په خپله کوی بل چا ته ئې نهٔ دی حواله کړې. ﴿وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ﴾ دا د تصرف بیان دې چه نمر سپوږمۍ ئې په ډیوټئ او کار باندې لګولی دی. د بل چا اختیار په کښې نشته دې. نه د نبی. نهٔ د ولی. نهٔ د بل چا لکه بعض جاهلان اواهل شرك اوبدعت وائی چه نمریا سپوږمۍ په حکم دشیخ عبدالقادرجیلانی قدس سره چلیږی. ﴿لِأَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ مراد د دې نه فنا د عالم ده. ﴿يُدَبِّرُ الْأَمْرَ﴾ یعنی د هر کار تدبیر په خپله کوی. بل چا ته ئې نهٔ دې حواله کړې ﴿يُفَصِّلُ الْآيٰتِ﴾ دلائل د توحید په تفصیل سره بیانوی.

| |
|---|
| وَهُوَ الَّذِي مَدَّ الْأَرْضَ وَجَعَلَ فِيهَا رَوَاسِيَ وَأَنْهٰرًا ۖ وَمِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ |
| او الله تعالی هغه ذات دې چه غوړولې ئې ده ځمکه. او پیدا کړی ئې دی پدې کښې غرونه او سیندونه. او د هر قسم میوونه ئې |
| جَعَلَ فِيهَا زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ يُغْشِي الَّيْلَ النَّهَارَ ۚ إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ۝ |
| پیدا کړیدی پدې کښې جوړې دوه. پټوی په شپې سره ورځې لره بیشکه پدې کښې ډیر دلیلونه دی هغه قوم لره چه فکر کوی |
| وَفِي الْأَرْضِ قِطَعٌ مُّتَجٰوِرٰتٌ وَجَنّٰتٌ مِّنْ أَعْنَابٍ وَزَرْعٌ وَنَخِيلٌ |
| او په ځمکه کښې مختلفې ټکرې دی د یوبل سره پیوست. او باغونه دی د انګورو نه او فصلونه او کجورې |
| صِنْوَانٌ وَغَيْرُ صِنْوَانٍ يُسْقٰى بِمَاءٍ وَاحِدٍ ۖ |
| چه ځینې د یو بیخ نه ډیرو ځاځو والا دی اوځینې یو بیخ نه یو ځاځ والا وی. اوبه کولې شی په یو قسم اوبو سره. |
| وَنُفَضِّلُ بَعْضَهَا عَلٰى بَعْضٍ فِي الْأُكُلِ ۚ إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ۝ |
| او غوره والې ورکوؤ مونږ بعضو لره په بعضو باندې په خوند کښې. بیشکه پدې کښې دلیلونه دی هغه قوم لره چه عقل لری |

﴿وَهُوَ الَّذِي مَدَّ الْأَرْضَ﴾ دا د اول دلیل عقلی حصه ده. او په دې کښې د سفلیاتو ذکر دې او مخکښې د علویاتو ذکر وو یعنی علویات سفلیات ټول د الله تعالی په وحدانیت دال دی. ﴿مَدَّ الْأَرْضَ﴾ زمکه ئې غوړولې ده. او خوره کړې ئې ده. اهل هیئت په دې قائل دی چه زمکه کره ده

ليکن دغه نظريه ددې آيت سره مخالف نهٔ ده، ځکه چه کره کله ډيره لويه وی،نو د هغې هره هره حصه په نظر باندې خوره سطح راځی ﴿وَجَعَلَ فِيهَا رَوَاسِيَ﴾ دا جمع د راسیٌ ده او موصوف ورله (جِبَالٌ) دې او صفت د مذکر لا يعقل جمع کيږی په فواعل سره لکه (جمل بازل و بوازل).حائط او حوائط وغيرذلك.او بعض وائی چه دا جمع د (راسية) ده،او دا موافق ده د قياس سره. رواسی د رسو نه مشتق دې،په معنی ده ثبات د اجسامو ثقيلو سره،نو د رواسی معنی دا ده چه کلك او پاخهٔ غرونه چه په خپله نهٔ خوزيږی د خپل ځائې نه او زمکه ئې هم د خوزيدو نه منع کړې ده کما فى الحديث ﴿زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ﴾ اثنين تاکيد د زوجين دې او په دې کښ اشاره ده دې ته چه زوجين تثنيه د هغه زوج ده چه مصداق ئې امر واحد وی او مراد د زوجينو نه يا مذکر مونث دې ځکه چه په بوټو کښ هم مذکر مونث وی يا ترې نه مراد دوه دوه قسمه دی لکه خوږې تروې،لوندې وچه،تورې سپينې،ګرم يخ مزاج والا ﴿يُغْشِى الَّيْلَ النَّهَارَ﴾ يعنی د شپې دا تور څادر (ظلمت)ورځې ته وراغوندوی،نو هغهٔ پټه شی﴿ وَفِى الْأَرْضِ قِطَعٌ ﴾ دا هم په اول دليل کښ داخل دې يعنی د زمکې ټکړې ټکړې د يو بلې سره متصلې دی، نو ټوله زمکه يو قسمه زمکه ده او په کومو اوبو سره چه اوبهٔ کولې شی هغه هم يو قسم اوبه دی ليکن ميوې فصلونه ئې مختلف دی په خوند ،رنګ،مزاج کښ نو دا هر څه د الله تعالى د لوئې قدرت دلائل دی. ﴿صِنْوَانٌ﴾ جمع د (صنو) ده لکه قينوانٌ جمع د قنوٌ ده د کجورې هغه اونه چه اصل او بيخ ئې يو وی او څانګې ترې نه ډيرې راوتلې وی (ښاښونو والا)او (غيرصنوان) هغه دې چه د بيخ نه يو تنه وی څانګې ئې نهٔ وی،﴿فِى الْأُكُلِ﴾ (أُكل) ما يوکل ته وائی،ميوې،دانې،او بعض ئې تفسير په ثمر سره کړې دې ليکن مقصود حصر نهٔ دې تمثيل دې،يعنی بعضې ميوې او دانې غوره وی د نورو نه په خوند کښ،د بعضې علاقو ميوې،غلې زياتې مزيدارې وی د نورو نه ﴿لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ﴾ اول عقل وی بيا فکر وی بيا يقين وی نو کله ترقی د ادنى نه کيږی اعلى ته يعنی اول يَعْقِلُونَ ذکر شی بيا يَتَفَكَّرُونَ ذکر شی او بيا يُوقِنُونَ ذکر شی،او کله بالعکس اوشی لکه دلته اول يُوقِنُونَ ذکر دې ځکه چه يقين مقصود اصلی دې او بيا ﴿يَتَفَكَّرُونَ﴾ ذکر شو چه د يقين د پاره ذريعه ده او بيا ﴿يَعْقِلُونَ﴾ ذکرشو ځکه فکر د عقل په ذريعه سره کيږی.

وَاِنْ تَعْجَبْ فَعَجَبٌ قَوْلُهُمْ ءَاِذَا كُنَّا تُرٰبًا

اوکه ته تعجب کوې [۱] حیرانیږې د انکار د توحید نه نو د تعجب خبره ده دا قول د دوئ آیا کله چه مونږ خاورې شو

ءَاِنَّا لَفِىْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ۬ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ ۚ وَاُولٰٓئِكَ الْاَغْلٰلُ

آیا مونږ به په پیدایش نوی کښې یو . دا هغه خلق دی [۲] چه کفر ئ کړې دې په رب خپل باندې او دغه خلق طوقونه به وی

فِىْٓ اَعْنَاقِهِمْ ۚ وَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝٥ وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ

په ستونو د دوئ کښې او دغه خلق اور والا دی . دوئ به په هغې کښې همیشه وی او دوئ په تادی سره غواړی ستا نه

بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ الْحَسَنَةِ وَقَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِمُ الْمَثُلٰتُ ؕ وَاِنَّ رَبَّكَ

عذاب مخکښې د راحت. عافیت نه. او په تحقیق سره تیر شویدی مخکښې د دوئ نه عذابونه رسوا کونکی . او بیشکه رب ستا

لَذُوْ مَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ عَلٰى ظُلْمِهِمْ ۚ وَاِنَّ رَبَّكَ لَشَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝٦ وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ

بښنه کونکې دې خلقو ته سره د ظلم د هغوئ نه او بیشکه رب ستا خامخا سخت عذاب ورکونکې دې او وائې هغه کسان

كَفَرُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ اِنَّمَآ اَنْتَ مُنْذِرٌ وَّلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ ۝٧

چه کفر ئ کړې دې. ولې نشی نازلولې پده باندې معجزه د طرف د رب د ده نه، بیشکه ته یرونکې ئ او د هر قوم لپاره لاربنودونکی وو

﴿وَاِن تَعۡجَبۡ﴾ دا شکوه ده او تخویف دې ﴿فَعَجَبٌ قَوۡلُهُمۡ﴾ ای ذوعجب قولهم یعنی که ته حیرانتیا کوې نو د حیرانتیا خبره دا قول د دوئ دې چه دوئ استبعاد کوی د بعث بعد الموت نه نو دا ډیره د حیرانتیا خبره ده ځکه چه د الله تعالی قدرتونه دومره واضح دی چه بدیهی دی نو د داسې واضح امر نه انکار د حیرانتیا خبره ده ﴿وَأُوْلَـٰٓئِكَ ٱلۡأَغۡلَـٰلُ فِيٓ أَعۡنَاقِهِمۡ﴾ دا یا د دوی د دنیا د حال بیان دې په طور د تمثیل سره یعنی د دوئ په غاړه کښې د گمراهئ او د ضلال طوق دې او استعداد او صلاحیت ئې سلب شوې دې نو حق طرف ته نهٔ شی راتلې لکه د قیدې غاړې ته چه طوق واچولې شی،نو هغهٔ لار نه وینی،یا د دوی د آخرت د حال بیان دې چه

---

۱ - شکوه.

۲ - تخویف.

به جهنم كښ به د دوی په غاړو كښ طوقونه وی ﴿وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالسَّيِّئَةِ﴾ دا زجر دې ﴿قَبْلَ الْحَسَنَةِ﴾ د حسنة نه مراد عافيت دې او دلته تقدير دې په كلام كښ (اى قبل انقضاء زمان العافية) .د عافيت د پاره يو زمانه مقرروی او چه د عافيت زمانه ختمه شی نو بيا عذاب راځی ليكن دوی د هغې نه قبل عذاب غواړی،حضرت الشيخ ﷫ فرمائی چه دا حال دې (اى حال كونهم جاعليها قبل الحسنة سيئة) يعنی عذاب د حسنه نه مخكښ غواړی يعنی حسنه او عافيت نۀ غواړی بلكه عذاب غواړی حالانكه د عذاب نه امن غوختل پكار دی مطالبه ئې نۀ ده پكار. ﴿الْمَثُلٰتُ﴾ دا جمع د مَثُلَةٌ ده داسې عذابونه چه رسوا كول كوی،او مثله دَ ميت ته هم مثله په دې وجه وائی چه په هغې سره رسوائې راځی يعنی د دوی نه مخكښ عقوبات،نمونې تيرې شوې دی ليكن دوی عبرت نۀ حاصلوی ﴿لَذُو مَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ عَلٰى ظُلْمِهِمْ﴾ د ظلم نه مراد كفر او شرك دې او د مغفرت نه مراد تاخير د عذاب دې يعنی الله تعالی تاخير د عذاب كوی سره د ظلم او د شرك د دوی نه او فورا عذاب نه وركوی ليكن كله چه دوی توبه نه كوی او په كفر شرك باندې مصر شی نو بيا عذاب راځی،يا مغفرت په خپله معنی سره دې او مطلب دا دې چه الله تعالی مغفرت د كفر او شرك كوی په شرط د توبه سره يا د ظلم نه مراد د كفر نه علاوه گناهونه دی يعنی الله تعالی مومنانو ته د گناهونو مغفرت كوی كله چه اوغواړی،او كه اوغواړی نو سخت عقاب وركوی ﴿وَيَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ دا شكوه ده او مراد د ﴿اٰيَةٌ﴾ نه د دوی غوښتلی شوی معجزه ده.لكه عصا د موسى ﷺ او ناقه د صالح ﷺ ﴿إِنَّمَآ أَنتَ مُنذِرٌ﴾ يعنی دوی چه ستا نه معجزه غواړی نو د دوی دا گمان دې چه معجزه ستا په اختيار كښ ده ليكن دا گمان غلط دې ځكه چه د نبی منصب انذار او تبليغ وی او معجزه ښكاره كول د الله تعالی فعل دې ﴿وَلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ﴾ او دپاره د هر قوم د اقوامو سابقو نه هادی يعنی نبی تير شوې دې په هغوی كښ هيڅا داسې دعوی نۀ وه كړې چه زمونږ په اختيار كښ معجزه ده يا يو داسې خاصه معجزه ده چه كفار معاندين ئې طلب كړی نو هغۀ به مونږ ظاهروو د اثبات د خپل رسالت د پاره بلكه چه الله تعالی به ورته چه كومه معجزه وركړه نو هغه به ئې د اثبات د رسالت د پاره پيش كوله.په دې تقدير دا مستقله جمله ده او (لِكُلِّ قَوْمٍ) خبر مقدم دې او (هادٍ) مبتدا مؤخره ده يا (هادٍ) عطف دې په (مُنذِر) باندې او (لِكُلِّ قَوْمٍ) خبر دې د دواړو د پاره يعنی

(إنما انت منذر و هادٍ لِكُلِّ قَوْمٍ) يعنی ته د هر قوم د پاره منذر او هادی ئې نو دا دليل دی په عموم بعثت د نبی ﷺ باندې

اَللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ اُنْثٰى وَمَا تَغِيْضُ الْاَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ ؕ

الله پوهيږي [1] په هغه څه چه په ګيډه ئ حمل کوی هره ښځه او په هغه څه چه کموی ئ رحمونه او په هغه چه زياتوی ئ

وَكُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهٗ بِمِقْدَارٍ ۝ عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْكَبِيْرُ الْمُتَعَالِ ۝

او هرشي الله تعالى سره په خاص مقدار سره دي عالم دي په پټ او ښکاره باندې ډير لوئ دي اوچت دي شان او مرتبه د ده

سَوَآءٌ مِّنْكُمْ مَّنْ اَسَرَّ الْقَوْلَ وَمَنْ جَهَرَ بِهٖ وَمَنْ هُوَ مُسْتَخْفٍ

يو شان دی الله تعالى ته ستاسو نه هغه څوك چه پټه خبره کوی او هغه څوك چه په زوره خبره کوی . او هغه څوك چه پټ وی

بِالَّيْلِ وَسَارِبٌ بِالنَّهَارِ ۝ لَهٗ مُعَقِّبٰتٌ

د شپې (په تياره کښې) او هغه چه ښکاره روان وی په لارې په ورځ کښې. د هر سړی د حفاظت لپاره فرشتې دی [2] په يو بل پسې راتلونکې

مِّنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ يَحْفَظُوْنَهٗ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُغَيِّرُ

د وړاندې نه او د روستونه. چه حفاظت کوی دهغه په سبب د حکم د الله تعالى سره. بيشکه الله تعالى نه بدلوی

مَا بِقَوْمٍ حَتّٰى يُغَيِّرُوْا مَا بِاَنْفُسِهِمْ ؕ

هغه نعمت چه يو قوم باندې ئ کړې وی تر څو پورې چه دوئ بدل نکړی هغه حالت (شکر. اصلاح) چه په دوئ باندې دی

وَاِذَآ اَرَادَ اللّٰهُ بِقَوْمٍ سُوْٓءًا فَلَا مَرَدَّ لَهٗ ۚ وَمَا لَهُمْ

او کله چه اراده وکړی الله تعالى په يو قوم باندې د څه تکليف پس نوی واپس کونکې هغې لره او نشته دې دوئ لره

مِّنْ دُوْنِهٖ مِنْ وَّالٍ ۝

ما سوی د الله تعالى نه څوك ساتونکې

---

۱ - دويم دليل عقلی

۲ - تخويف دنيوی

﴿ اَللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ ﴾ دا دويم دليل عقلي دې او په دې کښې د سورت يوسف د دويمې دعوې اثبات دې يعني د الله تعالى نه ماسوى هيڅوک عالم الغيب نشته دې،يعني د حمل پوره علم او يقيني علم صرف الله تعالى ته دې.نر ښځه،ښائسته بدشکله،نيک بخت بدبخت.لږعمر والا . ډير عمر والا وغير ذلك.د دې پوره علم او قطعي علم صرف الله تعالى ته دې او د مخلوق علم مکمل هم نۀ وي او قطعي هم نۀ وي﴿تَغِيضُ ﴾ په معنې د کم والي سره دې. ﴿تَغِيضُ ﴾ او ﴿ تَزْدَادُ ﴾ کله لازمي راځي نوبيا (ما) مصدريه دې نو معنى دا شوه په کمولو د رحمونو او په زياتولو د رحمونو.او کله متعدي راځي نو بيا ما مصدريه هم کيدې شي او موصوله هم کيدې شي او عايد د موصول مخذوف دې،(اى ما تغيضه الارحام و تزداده الارحام)، يعني الله تعالى عالم دې په هغې چه کموي ئې رحمونه او زياتوي ئې رحمونه او د کم والي زيات والي نه مراد يا د شمار په اعتبار سره دې چه يو بچى دې په رحم کښې يا زيات دى.يا په اعتبار د مودې سره چه بعض بچى د معتاد وقت نه قبل پيدا شي او بعض د معتاد وقت نه وروستو پيدا شي.يا کم والې زيات والې په اعتبار د اعضاؤ سره دې ځکه د بعض بچو اندامونه کله ناقص الخلقت وي او کله زيات وي لکه د بعض شپږ شپږ ګوتې د هرې يوې ښپې وي. ﴿ عَٰلِمُ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ ﴾ يعني کوم څيزونه چه ستاسو نه پټ دى،او کم چه تاسو ته حاضر دى په ټولو باندې الله تعالى عالم دې.غيب په نسبت سره مخلوق ته وي د الله تعالى په نسبت سره غيب نشته دې نو د عالم الغيب معنى دا ده چه کوم اشياء د مخلوق نه غيب دى په هغې عالم ﴿ ٱلْكَبِيرُ ٱلْمُتَعَالِ ﴾ ډير لوئې د ذات او صافتو په اعتبار سره ﴿ سَوَآءٌ مِّنكُم ﴾ يعني د الله تعالى په علم کښې يو شان دى چه څوک پټه خبره کوي يا په جهر سره کوي په دواړو باندې الله تعالى يو شان عالم دې ﴿ وَمَنْ هُوَ مُسْتَخْفٍۭ بِٱلَّيْلِ ﴾ دا رنګه هغه څوک چه په توره شپه کښې ئې خپل ځان ډير په مبالغې سره پټ کړې وي(باب استفعال د مبالغې د پاره دې (کذا فى الروح) ﴿وَسَارِبٌۢ ﴾ اى ظاهر فى سر به اى طريقه يعني څوک چه په رڼړا ورځې په لاره ځرګند روان وي.نو دا دواړه الله تعالى ته يو شان دى﴿ لَهُۥ مُعَقِّبَٰتٌ ﴾ دا تخويف دنيوى دې ﴿مُعَقِّبَٰتٌ ﴾ يعني نمبر په نمبر راتلونکې او ضمير د (لَهُ) راجع دې (مَنْ) ته يعني د انسان د حفاظت د پاره فرشتې مقرر دى،چه وار په وار د انسان دحفاظت دپاره راځي،د انسان د

حفاظت د پاره الله تعالی فرشتې مقرر کړې دی چه د جناتو او هوامو او شیاطینو نه ئې حفاظت کوی او که دا نهٔ وي نو دوئ به انسان د لږ ساعت د پاره هم روغ نهٔ وي پریخې.او دې ته حفظه فرښتې وئیلې شی.او د دوی په عدد کښې مختلف روایتونه دی.په یو روایت کښې دی چه لس دی او په بل روایت کښې دی چه دوه دی او په بل روایت کښې دی چه درې سوه شپیتهٔ ۳۶۰ دی او دا حفظه فرشتې د کرام الکاتبین نه علاوه دی کرام الکاتبین د اعمالو د محفوظ کولو دپاره دی او دا دوه فرشتې دی.یو یمین (ښی طرف) ته ده نیکی لیکی.او هغهٔ امیر ده او بله یسار (چپ طرف) ته ده او هغه مامورہ ده او د انسان جرم او ګناهونه لیکی.نو چه انسان څه نیکی اوکړی،نو یمین جانب والا فرښته ئې فورا به غیر د څه تپوس نه اولیکی لس چنده یا زیات، او چه صرف د نیکئ اراده ئې کړې وی نو بیا وله یو مثل اولیکی.او چه د انسان نه څه ګناه اوشی نو چپ طرف والا فرشته د امیر نه اجازت د لیکلو اوغواړی نو هغه ورته اووائی لږ صبر اوکړه کیدې شی چه دا انسان توبه اوکړی او الله تعالی ئ توبه قبوله کړی نو ګناه به معاف شی لیکلو ته به ئې ضرورت نهٔ وی،او د څه وخت تیریدلو نه بعد چې انسان توبه اونهٔ کړی نو بیا چپ طرف والا فرشته د امیر نه د لیکلو اجازت اوغواړی نو هغه اجازت اوکړی او ورته اووائی چه صرف یو ګناه اولیکه ﴿يَحْفَظُونَهُ﴾ د شر د جناتو او هوامو نه ئې حفاظت کوی. ﴿مِنْ أَمْرِ اللَّهِ﴾ من سببیه دې یعنی دوئ په حفاظت کولو کښې خود مختار نهٔ دی ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُغَيِّرُ﴾ دا جواب د سوال دې چه هر کله فرشتې د انسان د حفاظت دپاره مقرر وی نو بیا په دهٔ باندې عذاب او مصیبت ولی راځی نو جواب اوشو چه الله تعالی ابتداً چا ته عذاب نهٔ ورکوی او د چا د عافیت والا حالت نهٔ بدلوی،تر څو چه دوی خپل حال نهٔ وی بدل کړې یعنی د اعمال صالحوپه ځائې ئې بد اعمال نوی شروع کړې او کله چه دوی داسې اوکړی نو بیا په دوی عذاب نازل شی او بیا ئې څوك نهٔ شی واپس کولې او د الله تعالی نه ما سوا بل هیڅوك مددګار د دوئ د پاره نهٔ وی.

| هُوَ الَّذِي | يُرِيكُمُ | الْبَرْقَ | خَوْفًا | وَطَمَعًا | وَيُنْشِئُ | السَّحَابَ الثِّقَالَ ﴿١٢﴾ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الله تعالی هغه ذات دې[1] | چه ښائ تاسو ته | بریښنا | لپاره د یرې د تندر | او د طمع د باران | او پیدا کوی | وریځې درنې په باران سره |

[1] - دریم دلیل عقلي

وَيُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهٖ وَالْمَلٰٓئِكَةُ مِنْ خِيْفَتِهٖ ۚ وَ يُرْسِلُ الصَّوَاعِقَ

او د الله پاکی بیانوی رعد فرشته سره د حمد دهغه نه. او نور ملائك د وجه د يرې دهغه نه. او را ليږی تندرونه

فَيُصِيْبُ بِهَا مَنْ يَّشَآءُ وَهُمْ يُجَادِلُوْنَ فِي اللّٰهِ ۚ وَهُوَ شَدِيْدُ الْمِحَالِ ﴿١٣﴾

بس رسوی دې لره هغه چا ته چه وغواړی او دوئ جګړه کوی په باره د توحيد د الله تعالى کښې اوهغه سخت قوت والا دې

﴿ هُوَ الَّذِيْ يُرِيْكُمُ الْبَرْقَ ﴾ دا دريم دليل عقلى دې، مخکښې د علياتو او سفلياتو ذکر وو. او دلته د جوياتو ذکر دې ﴿ خَوْفًا وَّطَمَعًا ﴾ دا منصوب دې. يا بنا په مفعول له باندې دې. يُريكم. دپاره ليکن جمهور نحات د مفعول له د منصوب والى د پاره دا شرط وائى چه فاعل د فعل او د مفعول له دې يو وى او دلته فاعل د فعل (وَ يُرِيْكُمْ ) د پاره الله تعالى دې. او فاعل د خوف اود طمعې بندګان دى، نو اتحاد د فاعل نشته دې، ليکن سيبوئ او بعض نحويان دا شرط ضرورى نهٔ وائى نود هغوى په مذهب څه سوال نهٔ راځى. او جمهور وائى چه دلته مضاف مقدر دې اى ارادة خوف و طمع (کشاف) او فاعل د اراده هم الله تعالى دې يا دا دواړه مفعول مطلق دى د فعل مقدر د پاره اى تخافون خوفا و تطمعون طمعا او مراد د خوف نه د تندر او د طمعې نه مراد طمع دباران ده، يا د باران نه بعض خلق ويريږى لکه مسافر. او اهل البحر، وغيره چه چا ته د باران نه ضرر رسيږى، او د بعضې خلقو باران ته طمع وى، چه چا ته په کښ فائده وى لکه مقيم او اهل البر. ﴿ الثِّقَالَ ﴾ هغهٔ وريځې چه درنې وى. په باران سره ﴿ وَيُسَبِّحُ الرَّعْدُ ﴾ رعد آواز دوريځو ته وائى په وخت د باران وريدلو کښ يعنى (ګړيدل) او په حديث کښ دى (الرعد ملك مؤكل)، يعنى رعد يو فرشته ده چه په وريځو مقرر ده، چه د دوى په لاس کښ چابك (کوړه) وى چه په هغې سره وريځې د يو طرف نه بل طرف ته شړى. په چابك سره چه وريځې. اووهى نو د هغې نه پرق پيدا کيږى. او وريځې چه په خپل مينځ تکراو شى نو د دې نه آواز پيدا کيږى نو دغه رعد دې، دلته د رعد نه مراد که فرشته شى نو د تسبيح نه تسبيحې قولى مراد ده. او که مراد ترې نه آواز د وريځو شى(ګړيدل)نو د تسبيح نه مراد تسبيح حالى ده. يعنى رعد په زبان قال يا حال سره د الله تعالى پاکى بيانوى، عبدالله بن زبير ﷺ به چه د رعد آواز واوريدلو نو خبرې کول به ئې پريخودلې. او دا دعا به ئې ويله : سبحان

الذی یسبح الرعد بحمده والملائکة من خیفته (ابن کثیر) او په بل روایت کښې دا دعا راغلې ده، سبحان من یسبح الرعد بحمده والملئکة من خیفته اللهم لا تقتلنا بغضبك و لا تهلکنا بعذابك و عافنا من بلاءك قبل ذلك او په بل روایت کښې دی چه څوك په وخت د رعد کښې سبحان الله و بحمده اووائی.نو دهٔ ته به صاعقه (تندر) نهٔ رسی﴿ وَيُرْسِلُ الصَّوَاعِقَ ﴾ الله تعالی صاعقه نازلوی چا ته چه نقصان ورکول اوغواړی کله انسان او حیوان مړ کړی.او کله غرونه.ونې خرابې کړی،اسمانی بجلی (تندر)سخت طاقتور څیز دې لیکن د دې نه نقصان رسیدل د الله تعالی په مشیت او ارادې سره دی.مفسرین وائی چه کله په انسان باندې صاعقه اولگی.او کپړې ترې نه لرې کړی،په اونه ئې واچوی.او انسان ته څه نقصان اونهٔ رسی.﴿ وَهُمْ يُجَادِلُونَ ﴾ واو حالیه دې یا استنافیه دې.یعنی دوی د الله تعالی په شان کښې جګړې کوی﴿وَهُوَ شَدِيدُ الْمِحَالِ﴾ الله تعالی سخت قوت طاقت والا دې.محال په کسرې د میم سره قوت . طاقت ته وائی او په فتحې د میم سره ناممکن ته وائی او په ضمې د میم سره دروغ او خلاف واقع ته وائی.ابن کثیر په حواله د ابویعلی سره د انس ﷺ نه روایت کړې دې چه نبی ﷺ یو ځل د عربو یو لوئې متکبر رئیس ته یو کس اولیږلو چه هغه ماته راوبله قاصد لاړلو.او هغه ته ئې او ونیل چه د الله تعالی رسول ﷺ دې غواړی نو دهٔ اووئیل(معاذ الله)چه رسول څوك دې او الله څوك دې آیا د سرو زرو دې او که د سپینو زرو دې، او که د تانبې دې؟ هغه قاصد واپس شو.عرض ئې اوکړو چه هغه خو ډیر سرکش دې،ما ته ئې داسې داسې خبرې اوکړې،نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل چه بیا لاړ شه،نوهغه لاړلو او بیا هم دغه شان گفتگو اوشوه.او په دریم ځل بیا لارو او په دریم ځل هم دغه شان گفتگو ئې کوله چه ناڅاپه پرې لږ شان وریځ راوچته شوه او اوگړځیده او صاعقه ترې نه نازله شوه او د دې متکبر په سر اولگیدله او د سر کوپړۍ ئې ورله د سره نه جدا کړه.او قرطبی او ابن کثیر وغیرهما وئیلې دی چه عامر بن طفیل او آربد ابن ربیعه چه د عامری قبیلې د مشرانو نه وو د نبی ﷺ حضور ته په مدینه منوره کښې په غلطې ارادې سره یعنی د قتل په ارادې سره راغلو.عامر آربد ته اووئیل چه زهٔ به نبی ﷺ په خبرو کښې مشغول کړم او ته پرې د تورې حمله اوکړه هر کله چه دواړه راغلل نو عامر بن طفیل نبی ﷺ ته اووئیل چه اې محمد(ﷺ)که زهٔ ستا اتباع اوکړم نو تهٔ به ماله څه حصه راکړې؟نبی ﷺ ورته اوفرمائیل چه که ته ایمان راوړې نو تا ته به هغه حقوق حاصل وی کوم چه نورو

مسلمانانو نه حاصل دی.او په تا باندې به هغه ذمه وارئ وی،کومې چه په نورو مسلمانانو دی.عامر اووئيل چه ما ته د ديهاتو حکومت راکړه او په شهرونو دې ستا حکومت وی.یا به زۀ ستا نه بعد خليفه يم.نبی ﷺ اوفرمائيل چه حکومت ورکول زما اختيار نۀ دې.بلکه د الله تعالی کار دې.نو بيا عامر اووئيل چه زۀ ستا سره ضروری خبره کوم.زما سره عليحده شه.نبی ﷺ پورته شو،عامر ورسره خبرې شروع کړې او اربد د حملې په نيت توره د غلاف نه راوباسل شروع کړو نو لاس ئې شل شو.توره ئې راونۀ باسله.او د اسمان تندر راغې.حالانکه وريخ نۀ وه.بلکه د شين اسمان نه تندر راغې او په اربد اولګيدلو.دې هلاك شو.او عامر په تيښته روان شو.ويل ئې چه ائې محمد(ﷺ)تا زما ملګری ته بدعا اوکړه قتل دې کړو.نو زۀ به ستا په مقابله کښ دا وادی د پياده او د سورو نه ډکه کړم.نبی ﷺ فرمائيل چه منع به کړی دې لره الله تعالی او انصار د مدينې.په عامر باندې په لاره کښ د طاعون يوه دانه راوختله په لاره کښ د قبيلې د سلول د يوې ښځې خيمه وه هلته ئې پناه حاصله کړه او د تکبر او د جهالت په وجه ئې اووئيل (غدّة کغدة البعير).دا د اوښ د طاعون د دانې په شان دانه ده.او اوئې وئيل چه په کور د سلوليه کښ په بستره مرګ مې خوښ نۀ دې ماله زما اس راولئ نو په اس باندې سور شو.او توره ئې په لاس واخستله او اس زغلول ئې شروع کړل.او نبی ﷺ او ملك الموت ته ئې کنځلې شروع کړې (نعوذ بالله) او وئيل ئې که ملك الموت ما ته راغې نه په دې توره به ئې قتل کړم.غرض دا چه خپل اس ئې زغلولو او په دې حالت کښ هلاك شو.

| لَهٗ دَعْوَةُ الْحَقِّ ؕ وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ |
|---|
| خاص د الله تعالی بلنه حق بلنه ده[1]، او هغه معبودان باطله چه دوئ ترينه سوالونه کوی چه سوی د الله تعالی نه دی |
| لَا يَسْتَجِيْبُوْنَ لَهُمْ بِشَيْءٍ اِلَّا كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ اِلَى الْمَآءِ لِيَبْلُغَ فَاهُ |
| نشی قبلولې دعا د دوئ په هيڅ وجه، مګر پشان دهغه چا چه اُوږده کړی دواړه لاسونه خپل اوبو ته چه ورسيږی خولې د ده ته |
| وَمَا هُوَ بِبَالِغِهٖ ؕ وَمَا دُعَآءُ الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ ۝ |
| اودغه اوبه هرګز پخپله رسيدونکې نوی خُلې د ده ته، اونه ده بلنه د مشرکانو آلهوْ باطلوْ لره مګر په خساره او بطلان کښ ده |

١ - ثمره د دلائلو .

وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا

او خاص الله لره سجده كوى[1] هر هغه څوك چه په آسمانونو كښې دى او څمكه كښې دى په خوشئ سره او زور سره

وَّظِلٰلُهُمْ بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ ۩

او سورې د دوئ صبائ او بيګائى

﴿لَهٗ دَعْوَةُ الْحَقِّ﴾ دا ثمره د وړاندينو دلائيلو ده (له) خبر مقدم دې او (دعوة الحق) مبتدا مؤخره ده او لام د تخصيص د پاره دې او د دې دوه مطلبه كيدې شى (١) (عن ابن عباس ﷺ). دعوة الحق دعوت د توحيد دې او معنې دا ده چه دعوت د توحيد خاص د الله تعالى دعوت دې (٢) (عن الحسن ﷺ) اضافت د دعوت حق ته اضافت د موصوف دې صفت ته معنى دا ده چه حقه بلنه خاص د الله تعالى بلنه ده،او د غير الله بلنه په خپلو حاجتونو مرادونو كښې باطله ده،څكه چه د هغۀ نه ماسوا نۀ بل څوك حاجتونه پوره كونكې شته او نۀ مشكلات لرې كونكې شته،موت، حيات، ترقى، تنزل، صحت، بيمارى هر څه د هغه په قبضه كښې دى او دې توجيه سره دا روستو آيت پوره مناسب دې،﴿ وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ ﴾ د (الذين) نه مراد معبودان باطله دى او (يَدْعُوْنَ) كښې عايد د موصول مقدر دې اي (يدعونهم) يعنى هغه معبودان باطله چه مشركان د هغوى بلنه كوى په خپلو حاجتونو مرادونو كښې﴿ مِنْ دُوْنِهٖ ﴾ دا بيان د (الذين) دې يعنى هغه معبودان چه غير د الله تعالى نه دى﴿ لَا يَسْتَجِيْبُوْنَ لَهُمْ ﴾ د دوئ درخواست نۀ شى قبلولې﴿ اِلَّا كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ ﴾ اى الا استجابةً كا ستجابة كفيه الخ د دې مثال حاصل دا دې چه يو كس ترږې وى ليكن سوال اوبو ته كوى،لاسونه ئې اوبو ته اوږده كړې وى اواز كوى چه اې اوبو راشئ،اې اوبو راشئ،ليكن هغه اوبه دۀ ته نۀ شى رسيدلې،نو دغه مثال د هغه حاجت مند دې چه ما فوق الاسباب،جنات ،اولياء ،ملائكو ته سوالونه كوى،هغوى د دۀ مدد ته نۀ شى رارسيدلې،﴿ وَمَا دُعَآءُ الْكٰفِرِيْنَ ﴾ يعنى كافران چه ما سوا د الله تعالى نه د بل چا نه حاجتونه غواړى نو دا دعا نۀ ده مګر شرك او ګمراهى ده،﴿ وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ ﴾ دا څلورم دليل عقلى دې.د دې

1 - څلورم دليل عقلى

ډيرې ترجمې کړې شوې دی زیات قوی او تحقیقی قول په کښې دا دې چه د سجدې نه مراد معنی لغوی ده چه انقیاد دې یعنی د الله تعالی د تکوینی حکم ماتحت او منقاد دی تمام مخلوق، خواه که اسمان والا دی او که زمکې والا دی په ټولو باندې د الله تعالی تکوینی حکم نافذ دې. د ﴿طَوۡعًا وَكَرۡهًا﴾ معنې دا ده چه که دوئ غواړی یا نهٔ بهر حال د الله تعالی حکم په دوئ نافذ دې. او بعض علماء د دې دا معنې کوی، چه د سجدې نه مراد عبادت دې او (طوعًا) د (مَن في السموات) سره متعلق دې او د (طوعًا) معنی دا ده چه په سجده او عبادت کولو کښې ورته تکلیف نهٔ وی، فرشتو ته په عبادت کښې تکلیف نشته دې بلکه عبادت هغوئ ته داسې دې لکه مونږ چه ساه اخلو. او ﴿وَكَرۡهًا﴾ د (من في الارض) سره متعلق دې، ځکه چه زمکې والو ته په عبادت کښې تکلیف وی، د دې نه علاوه نور توجیهات هم دی خو راجح اوله توجیه ده ﴿وَظِلَٰلُهُم﴾ یعنی مخلوق د خپل سوری اختیار هم نه لری بلکه د الله تعالی په حکم او ارادې سره کمیږی زیاتیږی، او الله تعالی په دې قادر دې چه که اوغواړی نو دا سورې به په یو ځائې ولاړ وی. کم والې زیات والې به په کښې نهٔ راځی، کما قال تعالی ﴿وَلَوۡ شَآءَ لَجَعَلَهُۥ سَاكِنٗا﴾ . ﴿بِٱلۡغُدُوِّ﴾ جمع د غداة ده لکه قِنِیٌّ جمع د قَنَاةٌ ده، او (آصال) جمع د اصل ده او هغه جمع د اصیل ده

| قُلۡ مَن رَّبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ قُلِ ٱللَّهُۚ قُلۡ أَفَٱتَّخَذۡتُم |
| --- |
| ته ووایه څوك دې رب[1] د آسمانونو او د ځمکې . ته ووایه (د دوئ د طرفه) الله دې ، ووایه آیا . تاسو نیولی دی |
| مِّن دُونِهِۦٓ أَوۡلِيَآءَ لَا يَمۡلِكُونَ لِأَنفُسِهِمۡ نَفۡعٗا وَلَا ضَرّٗاۚ قُلۡ |
| ما سوی د الله تعالی نه داسې مددګاران چه اختیار نه لری خپل ځان لپاره د هیڅ نفعې اونه د ضرر . ووایه |
| هَلۡ يَسۡتَوِي ٱلۡأَعۡمَىٰ وَٱلۡبَصِيرُ أَمۡ هَلۡ تَسۡتَوِي ٱلظُّلُمَٰتُ وَٱلنُّورُۗ أَمۡ جَعَلُواْ لِلَّهِ |
| آیا برابر دي ړوند اولیدونکي اوآیا بربردی تیرې او رڼا آیادوئ ګرځولی دی الله تعالی لره |

١ . پنځم دلیل عقلی علی سبیل الاعتراف من الخصم

| عَلَيْهِمْ ط | الْخَلْقُ | فَتَشَابَهَ | كَخَلْقِهٖ | خَلَقُوْا | شُرَكَآءَ |
|---|---|---|---|---|---|

شريکان چه هغوئ څوك پيدا کړي وي لکه الله چه پيدا کړی دی پس مشتبه شوې دې پيدايس په دوئ .

قُلِ اللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ وَّ هُوَ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ﴿۱۶﴾

وه وايه الله تعالى پيدا کونکې د هرڅه دې هغه يو دې زورآور غالب دې.

﴿ قُلْ مَنْ رَّبُّ السَّمٰوٰتِ ﴾ دا پنځم دليل عقلي على سبيل الاعتراف من الخصم دې يعنى د مشرکانو نه تپوس اوکړه چه د اسمانونو او زمکې رب څوك دې يعنى د دې پيدا کونکې حفاظت کونکې څوك دې نو د دې سوال خو بل څه جواب د مشرکينو په نيز هم نشته دې سوا د دې نه، چه الله تعالى دې،ليکن که دوئ د خپل ملزم کيدلو په وجه دا جواب نه ورکوی.نو تهٔ د دوئ د طرفه اووايه﴿ قُلِ اللّٰهُ ﴾ چه الله تعالې دې،يا دلته همزه استفهاميه مقدر دې او استفهام د تقرير د پاره دې (قُلْ ءَاَ اللّٰهُ) الله دې کنه؟﴿ قُلْ اَفَاتَّخَذْتُمْ ﴾ دا دويمه ثمره د دلائيلو ده.يعنى تاسو د الله تعالى نه ماسوى ځان له داسې مددګاران جوړ کړې دې چه هغه د خپل ځان د پاره هم د نفعې او د ضرر اختيار نهٔ شی لرلې .نو دا څرګند حماقت دې﴿ قُلْ هَلْ يَسْتَوِى الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ ﴾ يعنى لکه څه رنګه چه ړوند او ليدونکې برابر نهٔ دی نو دغه شان شرك او توحيد برابر نهٔ دی. ﴿ اَمْ جَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ ﴾ دا زجر دې.ام منقطعه دې په معنې د (بل أ) سره دې. حضرت الشيخ رحمه الله به ددې ترجمه داسې کوله (اچها انهوں نے ٹهرائے ہیں) خا، دوئ ګرځولی دی الله لره شرکاء﴿ خَلَقُوْا ﴾ يعنى آيا ستاسو شرکاؤ څوك پيدا کړی دی لکه الله تعالى چه دا کائنات پدا کړې دی چه تاسو په هغوی باندې ګمان د الوهيت کوئ﴿ قُلِ اللّٰهُ ﴾ ته اووايه چه خالق تن تنها صرف يو الله دې.

اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَسَالَتْ اَوْدِيَةٌۢ بِقَدَرِهَا فَاحْتَمَلَ السَّيْلُ زَبَدًا رَّابِيًا ط

نازلوی د آسمان نه اوبه پس وبهيږی کندې په خپل خپل مقدار سره پس را اوچت کړی سيلاب زګ . چه د اوبو دپاسه وی

| مَتَاعٍ | اَوْ | حِلْيَةٍ | ابْتِغَآءَ | النَّارِ | فِي | عَلَيْهِ | يُوْقِدُوْنَ | وَمِمَّا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

او بعضی د هغې نه چه ګرموی دوئ ،ويلې کوی ئې هغې لره په اور کښ، لپاره د طلب د کالو يا د نور سامان لوخی وغيره

زَبَدٌ مِّثْلُهٗ ؕ كَذٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ الْحَقَّ وَالْبَاطِلَ ۬ؕ فَاَمَّا الزَّبَدُ فَيَذْهَبُ جُفَآءً ۚ

زگونه دي په شان د زگونو د اوبو. دغسې بيانوي الله تعالى مثال د حق او د باطل پس هرچه زگ دې پس لاړشي بې کاره

وَاَمَّا مَا يَنْفَعُ النَّاسَ فَيَمْكُثُ فِي الْاَرْضِ ؕ كَذٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ الْاَمْثَالَ ؕ

او هرچه هغه شې دې چه نفع وركوي خلقو ته نو باقي پاتې شي په ځمکه كښې. دغه شان بيانوي الله تعالى مثالونه

لِلَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِرَبِّهِمُ الْحُسْنٰى ؔؕ وَالَّذِيْنَ لَمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَهٗ

د هغه خلقو لپاره چه خبره ئې ومنله [1] د رب خپل ښائسته حال دې، اوهغه څوك چه خبرې نه منی [2] د رب خپل

لَوْ اَنَّ لَهُمْ مَّا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا وَّمِثْلَهٗ مَعَهٗ لَافْتَدَوْا بِهٖ ؕ

كچرې شی د دوئ لپاره هغه څه چه په ځمكه كښې دی ټول او دومره قدر ورسره نور شی خامخا په جرمانه كښې به وركړی هغې لره

اُولٰٓئِكَ لَهُمْ سُوْٓءُ الْحِسَابِ ۙ وَمَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ؕ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ۟

دغه كسان دوئ لره بد حساب دې ، او ځائ د استوګنې د دوئ جهنم دې او ډير بد ځائ دې تيار كړې شوې

﴿اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً﴾ دا شپږم دليل عقلی دې په ضمن د دوو مثالونو كښې د پاره د حق او د باطل يا د پاره د معبود برحق او معبود باطل. د اول مثال تفصيل دا دې چه كله باران اوشی نو په كندو كښې اوبۀ اوبهيږی،د هرې كندې د وسعت موافق چه په وړه كنده كښې لږی او په لويه كنده كښې ډير اوبه وی نو اوبۀ چه كله روانې شی نو په دې د پاسه ځګونه او ګند بلا وی؛او دا اګر كه د اوبو د پاسه وی،ليكن بې كاره او بې فائدې وی،او د مردارو حيواناتو لكه تپوسان وغيره شو خوراك وی نو دغه شان شرك بدعت ګند بلا دی،او اوبه اګر كه لاندې وی ليكن په دې كښې نفع وی، په دې سره فصلونه ميوې ګلونه وغيره پيدا كيږی بلكه د هر جاندار حيات په اوبو سره دې نو دغه شان ايمان او توحيد سبب د حياتِ ابدی دې،او توحيد چه د انسان زړۀ ته ننوځی نو عبادات نيك اعمال او اخلاق پيدا شی،نو د څه مودې د پاره ځګونه اګر كه غالب وی،ليكن څه وخت وروستو اوچ او ختم شی،او نفع والا شې باقی پاتې

---

۱ - بشارت
۲ - تخويف

وي نو دغه شان حق اګر که په اول کښې مغلوب وي او باطل غالب وي ليکن څه وخت وروستو باطل ختم شي او حق باقي پاتې شي نو مؤمن ته په دې ظاهري نمائش باندې دهوکه کيدل نه دي پکار

او د دويم مثال تفصيل دا دې.چه زرګران سره زر.سپين زر او تانبه قلعي په اور سره ويلي کوي د دې د پاره چه کالي ترې نه جوړ کړي او نور سامان لکه لوخي وغيره ترې نه جوړ کړي.ليکن د دغه ويلي کړي شوو زرو د پاسه هم ځګ او خيرې وي.او څه وخت وروستو هغه ختم شي او سرهٔ زر وغيره باقي پاتې شي چه د هغې نه زيورات.د غاړې هار.وغيره نور سامان جوړ شي، نو توحيد او سنت د سرو زرو هار دې چه په فائده راځي او شرك او بدعت هغهٔ ځګ او خيرې دې چه هيڅ په فائده نهٔ راځي.﴿فَسَالَتْ أَوْدِيَةٌ﴾ اى سالت الماء في الاودية ﴿رَّابِيًا﴾ اى عاليا منتفخا فوق الماء ﴿وَمِمَّا يُوقِدُونَ﴾ ضمير راجع دې ناس ته او د ا خبر مقدم دې او ﴿زَبَدٌ مِّثْلُهُ﴾ ئې مبتدا مؤخره ده﴿ابْتِغَاءَ حِلْيَةٍ﴾ مفعول له دي﴿جُفَاءً﴾ حال دې. جفا الماء بالزبد اذ اقذفه ﴿لِلَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِرَبِّهِمُ﴾ دا بشارت دې ﴿وَالَّذِينَ لَمْ يَسْتَجِيبُوا لَهُ﴾ دا تخويف دې.

| الْحَقُّ | رَّبِّكَ | مِنْ | إِلَيْكَ | أُنْزِلَ | أَنَّمَا | يَعْلَمُ | أَفَمَنْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

آيا پس هغه څوك چه يقين لري[1] پدې باندې چه بيشکه هغه څه چه نازل کړې شويدي تا ته د طرف د رب ستا نه دا حق دې

كَمَنْ هُوَ أَعْمَىٰ إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُولُوا الْأَلْبَابِ ۞ الَّذِينَ يُوفُونَ

پشان دهغه چا کيدې شي چه هغه ړوند وي . بيشکه نصيحت قبلوي خاوندان د عقل داهغه کسان دي چه پوره کوي

بِعَهْدِ اللَّهِ وَلَا يَنْقُضُونَ الْمِيثَاقَ ۞ وَالَّذِينَ يَصِلُونَ مَا أَمَرَ اللَّهُ

وعده د الله تعالى سره اونه ماتوي دوئ وعده . اوهغه کسان دي چه وصل کوي هغه څه چه الله تعالى امر کړې وي

بِهِ أَنْ يُوصَلَ وَيَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ وَيَخَافُونَ سُوءَ الْحِسَابِ ۞ وَالَّذِينَ صَبَرُوا ابْتِغَاءَ

په هغې د وصل کولو، او يريږي د خپل رب نه، او يريږي د بد حساب نه . اوهغه کسان چه صبر ئ کړيدې لپاره د طلب

[1] - دا مرتب دې په مذکور بشارت او تخويف باندې.

وَجْهِ رَبِّهِمْ وَأَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَأَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً

د رضا د رب خپل او پابندي ئ کړیده د مونځونو او خرچ ئ کړیدي دهغې نه چه ورکړیدی مونږ دوئ ته. په پټه او په ښکاره

وَّيَدْرَءُوْنَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ أُولٰٓئِكَ لَهُمْ عُقْبَى الدَّارِ ۝ جَنّٰتُ عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا

او دفع کوی په نکیئ سره بدی. دغه کسان دوئ لره ښه کور د آخرت دی. چه جنتونه د همیشه والی دی داخلیږی به دوئ هغې ته

وَمَنْ صَلَحَ مِنْ اٰبَآئِهِمْ وَأَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيّٰتِهِمْ وَالْمَلٰٓئِكَةُ يَدْخُلُوْنَ عَلَيْهِمْ

اوهغه خوك چه صالح وی د پلارونو د دوئ نه او د بیبیانو نه او د اولادونونه او ملائك به داخلیږی دوئ ته

مِّنْ كُلِّ بَابٍ ۝ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ ۝

د هرې دروازې نه وانې به سلام دې وی په تاسو په سبب د صبر کولو ستاسو. پس ډیر ښه دې ستاسو انجام په دې کور د آخرت کښې

﴿أَفَمَن يَعْلَمُ﴾ دا مرتب دې په مذکور بشارت او تخویف باندې یعنی آیا هغه خوك چه دا یقین لری چه هغه څه چه نازل کړی شوې دی تا ته د طرفه د رب ستا نه دا حق دې نو دا مرتب دې په بشارت باندې په شان د هغه چا کیدې شی چه باطنی ړوند وی یعنی مشرك وی دا مرتب دې په تخویف باندې ﴿إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ﴾ عقلمند خلق او بصیرت والا ښهٔ پوهیږی چه دا یو شان نهٔ دی. ﴿ٱلَّذِينَ يُوفُونَ بِعَهْدِ ٱللَّهِ﴾ د عهد الله نه مراد عهد ازلی دې چه هغه عهد د توحید او رسالت او ټول اوامر نواهی دی او دا بعینه میثاق دې نو یو صفت ثبوتی دې او بل سلبی دې چه (لا ینقضون المیثاق) یا د ﴿بِعَهْدِ ٱللَّهِ﴾ نه مراد حقوق الله دی او د (و لا ینقضون المیثاق) نه حقوق العباد مراد دی یا دا عام دې او اول خاص دې په حقوق الله پورې نو دا تعمیم بعد التخصیص دې ﴿وَٱلَّذِينَ يَصِلُونَ مَآ﴾ یعنی الله تعالی چه د کومو تعلقاتو د قائم ساتلو حکم کړې دې نو هغه قائم ساتی خواه که هغه د ایمان او د توحید تعلق دې یا د صله رحمئ تعلق دې یا د عباداتو اخلاقیاتو تعلق دې یا ټول رسولان ټول کتابونه بلا تفریقه منل دی ﴿وَيَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ﴾ د خشیت او خوف په مینځ کښې فرق دا دې چه د خشیت اکثر استعمال کیږی په مقام د تعظیم کښې او خوف عام دې چه سره د تعظیم نه وی یا بغیر د تعظیم نه وی ﴿وَٱلَّذِينَ صَبَرُوا﴾ یعنی هغه کسان چه د دنیا په مصیبتونو باندې صبر کوی او د حرامو او ګناهونو نه صبر کوی او په

طاعاتو باندې صبر کوي ﴿ٱبْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ﴾ يعنی مقصد ئې د دې هر څه نه رضا د رب وي ﴿سِرًّا وَعَلَانِيَةً﴾ سراً ئې ځکه مقدم کړو چه سري صدقه د علانيه نه زيانه افضله ده ﴿وَيَدْرَءُونَ بِٱلْحَسَنَةِ﴾ يعنی د بدئ بدله په نيکئ سره ورکوي حسن بصري وائي چه څوك ئې د خپل عطاء نه محروم کړي نو دوي هغوي ته ورکوي او چه څوك پرې ظلم اوکړي نو دوي عفو کوي او چه څوك ورسره صله رحمي قطع کړي نو دوي ورسره صله رحمي کوي ﴿عُقْبَى ٱلدَّارِ﴾ د دار نه مراد دار دنيا دې او د عقبی نه مراد د خير او د سعادت انجام او مآل دې د دار دنيا ښه انجام او د سعادت انجام جنت دې نو ځکه وروستو (جَنّٰتُ عَدْنٍ) ذکر شو او بعض وائي چه د دار نه مراد دار د آخرت دې او د عقبی نه مراد عاقبت حسنه دې نو د (عقبى الدار) معنی دا ده چه (العاقبة الحسنة في الدار الاخرة) ښۀ انجام په دار د آخرت کښې چه جنت دې ﴿وَمَن صَلَحَ مِنْ ءَابَآئِهِمْ﴾ آباء تغليبا وئيلې شوې دی په دې کښې امهات هم داخلی دی او د صلح نه مراد ايمان دې او مراد دا دې چه د کامل مؤمن مور پلار ښځه بچي چه مؤمن وي او د جنت مستحق وي ليکن په مرتبه کښې ادنی وي نو الله تعالى به په خپلې مهربانئ سره د دوي درجه اوچته کړي او د کامل مؤمنانو سره به ئې يو ځائې کړي،لکه په سورة طور کښې دی ﴿وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَٱتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُم بِإِيمَٰنٍ أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ﴾.

﴿وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِم مِّن كُلِّ بَابٍ﴾ په صحيح حديث کښې دی چه د جنت اتۀ دروازې دی مطلب دا دې چه د دې کاملينود اعزاز د پاره به فرښتې د هر طرفه تحفې تحائف راوړی حاضري به شی روايت کړې دې احمد او بزاز او حاکم وغيره چه په خلقو کښې به اول هغۀ فقراء مهاجرين جنت ته داخليږی،چه د سختئ او جنگ په وخت کښې بۀ په دوي سره حفاظت کيدلې شو،او په دوي سره د سرحداتو سوراخونه بندولې شو، او چه کوم حکم بۀ دوي ته کولې شو نو د هغې د تعميل د پاره هميشه تيار وو او د دنيا نه په داسې حال کښې تللې وو چه ارمانونه او حاجتونه ئې نه وو پوره شوي،د قيامت په ورځ به الله تعالى اوفرمائی چه زما هغه بندگان چرته دي(يعنی حاضر دې شي) چه زما په لاره کښې جنگيدلې وو او زما د رضا د پاره ئې تکليفونه برداشت کړې وو او جهاد ئې کړې وو لاړ شئ،جنت ته داخل شئ،بيا به الله تعالى ملائکو ته حکم اوکړي چه زما دې بندگانو ته سلام اوکړئ،فرشتې به عرض اوکړي.چه يا الله

مونږ خو ستا بهترین بندګان یو او د اسمان اوسیدونکی یونو یا الله ته مونږ ته حکم کوي؟ چه سکان الارض د زمکې اوسیدونکو ته سلام اوکړئ؟ الله تعالی به اوفرمائی چه دا زما هغه بندګان دی چه زما عبادت ئې کولو او زما سره ئې هیڅ څوك نهٔ وو شریك کړی او په دوی سره د سرحداتو سوراخونه بندولې شو،او د سختئ او د جنګ په وخت کښ په دوی سره حفاظت کولې شو،او د دنیا نه په داسې حالت کښ تلې وو چه هیڅ ارمان او حاجت ئې نهٔ وو پوره شوې نو فرشتې به د دوی په خدمت کښ حاضرې شی او اوبه وائی چه ﴿سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ﴾ او په بل روایت کښ دی چه نبی ﷺ به د هر کال په شروع کښ قبرونو د شهداو ته تشریف اوړلو او دا به ئې فرمائیل ﴿سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ﴾

وَالَّذِيْنَ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مِيْثَاقِهٖ وَيَقْطَعُوْنَ مَآ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖٓ

اوهغه خلق چه ماتوی وعده د الله تعالی روستو د مضبوط کولو نه، او قطعه کوی هغه چه الله تعالی امر کړې دې په هغې

اَنْ يُّوْصَلَ وَيُفْسِدُوْنَ فِى الْاَرْضِ ۙ اُولٰٓئِكَ لَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوْٓءُ الدَّارِ ۞ اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ

د وصل کولو او فساد کوی په ځمکه کښ دغه خلق دوئ لره لعنت دې او دوئ لره بد کور دې الله تعالی فراخ کوی [۱] رزق

لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ ۭ وَفَرِحُوْا بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۭ وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا فِى الْاٰخِرَةِ اِلَّا مَتَاعٌ ۞

چاته چه وغواړی اوتنګوی. او خوشحالی کوی دوئ په ژوند د دنیا باندې، او نه دې ژوند د دنیا په مقابله د آخرت کښ مګر معمولی نفع دهٔ

﴿وَالَّذِيْنَ يَنْقُضُوْنَ﴾ د صفاتو د مؤمنینو په مقابله کښ د منکرینو د صفاتو ذکر او تخویف دې ﴿يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللّٰهِ﴾ په مقابله د ﴿وَلَا يَنْقُضُوْنَ الْمِيْثَاقَ﴾ کښ دې ﴿وَيَقْطَعُوْنَ مَآ اَمَرَ﴾ دا په مقابله د ﴿يَصِلُوْنَ مَآ اَمَرَ اللّٰهُ﴾ کښ دې ﴿وَيُفْسِدُوْنَ فِى الْاَرْضِ﴾ په مقابله د ﴿وَيَدْرَءُوْنَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ﴾ کښ دې ﴿وَلَهُمْ سُوْٓءُ الدَّارِ﴾ په مقابله د ﴿عُقْبَى الدَّارِ﴾ کښ دې.

﴿اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ﴾ دا اووم دلیل عقلی دې یعنی د ټولو کائناتو روزی رسان سرف الله تعالی دې،د روزئ کمې بیشی د الله تعالی په اختیار کښ دې که د چا سره دولت وافر راشی نو هغه دې دا خپل کمال نهٔ ګڼړی او مغرور کیږی دې نهٔ ﴿وَفَرِحُوْا بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ یعنی دوئ د دنیا

---

۱ - اووم دلیل.

په ژوند باندې فخر او خوشحالي کوي.او حال دا چه د دنيا حيوة او مال دولت معمولي د نفعې شې دې لکه په حديث د ترمذی وغيره کښې دی لو كانت الدنيا عند الله تعدل جناح بعوضة ما سقى كافرا منها شربة.

| وَيَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ آيَةٌ مِّن رَّبِّهِ ۗ قُلْ إِنَّ اللَّهَ يُضِلُّ |
|---|
| او وائي کافران [1] ولې نشي نازلولې پده باندې معجزه د طرف د رب د ده نه. ته وه وايه چه بيشکه الله تعالى بې لارې کوي |
| مَن يَشَاءُ وَيَهْدِي إِلَيْهِ مَنْ أَنَابَ ۝ الَّذِينَ آمَنُوا |
| هغه چا لره چه وغواړي او رسوى خپل خان ته هغه څوك چه رجوع او توجه كوي هغه ته دا هغه کسان دی چه ايمان ئې راوړی دی |
| وَتَطْمَئِنُّ قُلُوبُهُم بِذِكْرِ اللَّهِ ۗ أَلَا بِذِكْرِ اللَّهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ ۝ |
| او آرام مومي زړونه د دوئ په ذكر د الله تعالى سره ، خبردار ! صرف په ذکر د الله تعالى سره آرام مومى زړونه |
| الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ طُوبَىٰ لَهُمْ وَحُسْنُ مَآبٍ ۝ |
| هغه خلق چه ايمان ئې راوړې دې او عملونه کوي نيك خوشحالي ده دوئ لره او خائسته انجام دې |

﴿ وَيَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ دا د مخکښې شکوې آيت نمبر ۷ اعاده ده.چه دوی مخصوصه معجزه چه آباؤ اجداد دې ژوندی شی.د مکی غرونه دې د سرو زرو شی وغير ذالك نو الله تعالى فرمائی چه هدايت د الله په قبضه قدرت کښې دې هغه چا ته ملاويږی چه په هغه کښې انابت.حق طلبی وی او څوك چه ضدی.متعصب وی نو هغه ته هر څومره معجزات چه ظاهر کړې شی، نو هغه ته هدايت نۀ ملاويږی او په چا کښې چه انابت او حق طلبی وی نو هر قسم معجزه چه دې وينې د هغه د پاره د هدايت ذريعه ګرځی.﴿ الَّذِينَ آمَنُوا ﴾ دا د ﴿ مَنْ أَنَابَ ﴾ بيان دې او بدل دې ترې نه او مراد د ذکر نه دلائل د توحيد دی.يعنى انابت والا هغه دې چه دلائل د توحيد واوری نو زړه ئې مطمئن شی او د اطمينان نه مراد يقين دې په حقيقت د توحيد رسالت څکه چه ضد او عناد په کښې نۀ وی يا د ذکر نه مراد قرآن دې لکه ﴿ إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ ﴾ او قرآن لويه معجزه ده نو د دې په اوريدلو سره ئې زړه مطمئن شی په توحيد رسالت او تمامو

[1] اعاده د شکوی

احکاماتو شرعیو باندې یا د ذکر نه مراد ذکر د رحمت او مغفرت دې او دا سبب دې دپاره د تسلئ د زړه او د پریشانئ زائله کیدلو نو د اطمینان نه مراد تسلی د زړه ده یا ترې نه مراد مصطلح ذکر لسانی او قلبی دې په طریقه د دوام سره او دا موجب دې د سرور قلبی او اطمینان قلبی د پاره ځکه چه په ذکر سره د الله تعالی د ذات او صفاتو نور او تجلیات او د الله تعالی معیت راځی (وَ انا معه اذا ذکرنی) نو بیا ظاهره ده چه قلق او پریشانی نه شی پاتې کیدې او د دنیا تذکرې خومره چه کیږی نو په دې سره پریشانی راځی او د دې وجه نۀ په موجوده دور کښې انسانانان باوجود د مادی اسبابونو نه په پریشانئ کښې دی ځکه اکثر د ذکر اهتمام نۀ کوی او بعض خلق که ذکر کوی خو په بدعاتو کښې مبتلا وی چه د هغې د وجې نه د ذکر د برکاتو انواراتو نه محروم وی (وفقنا الله لما یحب و یرضی) ﴿أَلَا بِذِكْرِ ٱللَّهِ﴾ په مخکښې جمله کښې تخصیص نۀ وو او په دې کښې تخصیص او تاکید دې او د دې وجې نه أَلاَ (خبردار) ذکر شو او جار مجرور یعنی (بذکر الله) مقدم شو معنې دا شوه چه خبردار صرف او صرف د الله تعالی په ذکر سره اطمینان حاصلیږی زړونو ته.

**سوال** په سورت انفال آیت نمبر ۲ کښې دی ﴿إِذَا ذُكِرَ ٱللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ﴾ یعنی په ذکر د الله تعالی سره خوف راځی او خوف ضد د اطمینان دې نو دا دواړه ایتونه خو په ظاهر کښې متعارض شو. **جواب** د (إِذَا ذُكِرَ الله وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ) معنی دا ده چه کله وعید او تخویف ذکر شی نو په زړه کښې خوف پیدا شی او د ﴿بِذِكْرِ ٱللَّهِ تَطْمَئِنُّ ٱلْقُلُوبُ﴾ معنی دا ده چه د الله تعالی د رحمت او مغفرت په ذکر سره زړونو ته اطمینان او تسلی ملاویږی.نویو په باره د وعد کښې دې او بل په باره د وعید کښې دې او تفسیر مظهری والا وائی چه ذکر الهی په وجه په زړه کښې کیفیت د خوف او رجاء دواړه پیدا کیږی او د دې مثال هغه دې چه نبی ﷺ د یو خوان د بیمار پرسئ د پاره تشریف یوړلو اوهغۀ قریب الموت وو.نبی ﷺ ترې نه تپوس اوکړو چه څه حال دې دې.نو هغه اووئیل اخاف ذنوبی وارجو الله زۀ د خپلو ګناهونو په وجه ویریږم او د الله تعالی د رحمت نه امید لرم.نو نبی ﷺ اوفرمائیل چه د یو بنده په زړه کښې چه دا دواړه څیزونه په دې حالت کښې جمع شی نو خامخا ورته الله تعالی امن ورکوی د هغې نه چه دې ترې نه ویریږی او د کوم شی چه امید لری نو هغه ورله ورکوی.غرض دا چه په زړه کښې دواړه کیفیتونه جمع کیدې شی.**الایمان بین الخوف والرجاء** لکه د پرنده د پاره چه دوه وزرې وی.نو دغه شان د ایمان د پاره خوف او رجاء دی﴿ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ﴾ دا مبتداء ده او ﴿ طُوبَىٰ

لَهُمْ ﴾ ورله خبر دي او طوبی په اصل کښې مصدر دې په معنی د فرح او خوشحالئ سره ا دلته نې نه مراد یا فرح او خوشحالی ده یا ترې نه مراد جنت دې یا د جنت نعمتونه دی.ځکه چه طوبی په معنی د حالت طیبه سره دې نو دا ټولو ته شامل دې یا ترې نه مراد اونه ده په جنت کښې او په حدیث د ابوهریرة ﷺ کښې دی چه په جنت کښې اونه ده چه هغې ته طوبی وئیلې شي نو الله تعالی به ورته اوفرمائي.(تَفَتَّقِي لعبدي عما شاء) ته کولاو شه د پاره د بنده زما هر هغه څیز نه چه دې ئې غواړي (یعنی راوباسه ئې) نو دا اونه به ورله اس د زین سره او د جنتي لباس سره راوباسي او وئیلې شوې دی چه د شجر طوبی اصل د نبی ﷺ په دار کښې په جنت کښې دې اوبیاتقسیم شوی دی څناګی د دی د مؤمنانو په منزلو کښې لکه چه منتشر شوې دې علم او ایمان په ټولو اهل دنیا باندې (قرطبی)او ظاهره ده چه د کومې اونې اصل د نبی ﷺ د دار نه وی نو د هغې میوه بهٔ خومره خوږه او مزیداره وی،او نور نعمتونه چه د هغې نه راوزی نو هغه به څومره عمده وی (اللهم ارزقناها بفضلك و كرمك).

| |
|---|
| كَذٰلِكَ اَرْسَلْنٰكَ فِيْٓ اُمَّةٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهَآ اُمَمٌ لِّتَتْلُوَا |
| او دغه شان لیګلې ئې مونږ ته په داسې امت کښې چه یقینًا تیر شویدی مخکښې د دینه ډیر اُمتونه. لپاره د دې چه ته ولولې |
| عَلَيْهِمُ الَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ وَهُمْ يَكْفُرُوْنَ بِالرَّحْمٰنِ ۭ قُلْ هُوَ رَبِّيْ |
| په دوئ باندې هغه کتاب چه وحی کړیده مونږ تا ته او دوئ انکار کوی د رحمن نه. ته ووایه هغه رب خما دې |
| لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَ اِلَيْهِ مَتَابِ ۝ |
| نشته دې لائق د بندګی سوئ دهغه نه. خاص په هغه باندې خما توکل دې اوهغه ته خما واپس ورتلل دی |

﴿ كَذٰلِكَ اَرْسَلْنٰكَ ﴾ دا کاف اکثر مفسرین د تشبیه دپاره وائی او مشبه به ورله یا ﴿ وَيَهْدِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ اَنَابَ ﴾ دې یعنی لکه څه رنګه چه الله تعالی انابت کونکو ته هدایت کوی نو دغه شان ئې د دې امت د هدایت د پاره تهٔ مبعوث کړې ئې یا مشبه بهٔ ارسال د رسلو سابقینو دې. او مطلب دا دې چه مشرکان چه ستا په رسالت باندې شبهات کوی نو دا غلطه خبره ده ځکه چه رسالت څه نوې خبره نهٔ ده بلکه لکه چه ستا نه مخکښې مونږ انبیاء لیګلې وو نو دغه شان مو تهٔ لیږلې ئې.او بعضې علماء وائی چه کاف په معنی د لام تعلیلیه سره دې یعنی هر کله چه

ذریعه د اطمینان د زړونو ذکر الله او وحی وه نو مونږ ته د دې د پاره راولیږلې او حضرت الشیخ رحمه الله فرمائی چه کاف لبیان الکمال دې .دا کمال او احسان دې چه ته نې رسول کړې نې.او کشاف او آلوسی د کاف لبیان الکمال دا معنی کوی ای ارسلناك ارسالاً له شانٌ و فضلٌ.یعنی په داسې کامل ارسال سره چه دې لره لوئې شان او فضلیت دې او بیان ئې دا دې چه ﴿فِيٓ أُمَّةٖ قَدۡ خَلَتۡ﴾ او دا دلالت کوی په دې چه دا امت آخرالامم دې لکه نبی ﷺ چه آخر الانبیاء دې ﴿وَهُمۡ يَكۡفُرُونَ بِٱلرَّحۡمَٰنِ﴾ یعنی رحمن په خپل رحمت کامله سره قرآن نازل کړو کما قال تعالیٰ ﴿ٱلرَّحۡمَٰنُ ۝١ عَلَّمَ ٱلۡقُرۡءَانَ ۝٢﴾ او ته ئې رحمة للعلمین راولیږلې.لیکن دوی د الله تعالیٰ ډیره لویه ناشکری اوکړه چه په رحمن ئې کفر اوکړو او د هغه د توحید نه ئې انکار اوکړو بلکه د رحمن د نوم نه ئې هم نفرت او انکار او کړ کما قال تعالیٰ ﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ٱسۡجُدُواْۤ لِلرَّحۡمَٰنِ قَالُواْ وَمَا ٱلرَّحۡمَٰنُ﴾ او د حدیبیې د صلحې په وخت کښې ئې د بسم الله الرحمن الرحیم په لیکلو کښې جګړه اوکړه ﴿قُلۡ هُوَ رَبِّي﴾ یعنی د رحمن نه چه تاسو انکار کوئ نو هغه زما مهربان رب دې په هغه زما توکل دې او هغه ته زما رجوع ده زما ابتداء انتهاء د هغهٔ نه ده .نو ستاسو د انکار نه ما ته څه اندیښنه او ضرر نشته دې.

| وَلَوۡ أَنَّ قُرۡءَانٗا سُيِّرَتۡ بِهِ ٱلۡجِبَالُ أَوۡ قُطِّعَتۡ بِهِ ٱلۡأَرۡضُ أَوۡ كُلِّمَ |
|---|
| او کچرې وې یو قرآن چه روانولې شوې په هغه سره غرونه یا ټکرې کولې شوې په هغې سره ځمکه یا خبرې کیدې شوې |
| بِهِ ٱلۡمَوۡتَىٰۗ بَل لِّلَّهِ ٱلۡأَمۡرُ جَمِيعًاۗ أَفَلَمۡ يَاْيۡـَٔسِ |
| په سبب د هغې د مړو سره نو بیا هم دوئ ایمان نه راوړی بلکه خاص الله تعالیٰ لره ټول اختیار دې. پس آیا نه پوهیږی |
| ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَن لَّوۡ يَشَآءُ ٱللَّهُ لَهَدَى ٱلنَّاسَ جَمِيعٗاۗ وَلَا يَزَالُ ٱلَّذِينَ |
| هغه کسان چه ایمان ئې راوړې دې کچرې غوښتلې الله تعالیٰ نو خامخا به ئې هدایت کړې وې ټولو خلقو ته. اوهمیشه به وی |
| كَفَرُواْ تُصِيبُهُم بِمَا صَنَعُواْ قَارِعَةٌ أَوۡ تَحُلُّ |
| کافران خلق چه رسی به دوئ ته په وجه د هغه کارونو چه دوئ ئې کوی. سخت عذاب یا به نازلیږی دا عذاب |

قَرِيبًا مِّنْ دَارِهِمْ حَتّٰى يَأْتِيَ وَعْدُ اللّٰهِ ۚ إِنَّ اللّٰهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ ۝

نږدې کور (کلو) د دوئ نه تر دې پورې چه راشي وعده د الله تعالى. بيشکه الله تعالى خلاف نکوي د وعدې خپلې نه

﴿وَلَوْ أَنَّ قُرْءَانًا سُيِّرَتْ بِهِ ٱلْجِبَالُ﴾ دا زجر دې منکرينو ته. روايت کړې دې ابو يعلى په خپل مسند کښې او واحدى په اسباب النزول کښې دحضرت زبير ﷺ نه چه اهل مکه او ابوجهل نبى ﷺ ته اووئيل چه که تهٔ نبى ئې نو تهٔ په دې خپل کتاب (قرآن) سره غرونه د مکې هموار کړه لکه د داود ﷺ د پاره مسخر شوې وو. ځکه که ته نبى ئې نو ستا مرتبه به د داود ﷺ نه ادنى نه وى، او مسخر کړه زمونږ د پاره هوا چه مونږ په هغې سره شام ته تجارت له ځو. مونږ ته دومره بعيد مسافت قطع کول ګران دى لکه د سليمان ﷺ د پاره هوا مسخره شوې وه نو ته خو د هغهٔ نه ادنى نهٔ ئې په مرتبه کښې، يا زمونږ د پاره دوه درې کسان زمونږ د اجدادو نه ژوندى کړه چه په هغې کښې قصى بن کلاب هم ئې نو دا آيت نازل شو. مراد د ﴿قُرْءَانًا﴾ نه يا په طريقې د عموم سره مطلق لوستلې شوې کتاب دې لکه په صحيح حديث کښې اطلاق د قرآن په زبور باندې راغلې دې، او جواب د (لو) محذوف دې چه (لكان هذا القرآن) يعنى که په آسمانى کتاب سره دا کارونه کيدې شوې نو خامخا به هغه دا کتاب وې ليکن دا کارونه په کتاب سره نهٔ کيږى بلکه د الله تعالى په اختيار کښې دى يا مراد د (قرآنا) نه دا قرآن دې يعنى نکره په معنې د معرفې سره ده، او جزاء د لو محذوفه ده چه (لما آمنوا) يعنى که په دې قرآن سره دا کارونه اوشى نو بيا هم دوى ايمان نهٔ راوړى ﴿سُيِّرَتْ بِهِ ٱلْجِبَالُ﴾ دا اشاره ده معجزې د داود ﷺ ته ﴿أَوْ قُطِّعَتْ بِهِ ٱلْأَرْضُ﴾ د دې نه مراد قطع کول د مسافت دى په لږ وخت کښې او په دې کښې اشاره ده معجزې د سليمان ﷺ ته يا د دې نه مراد دا دې چه زمکه اوچولې شى او نهرونه چشمې ترې نه راوخى. حاصل دا دې چه د قرآن په ذريعه سره خو دا کارونه روحانى طور سره اوشو چه هغه خلق چه په کفر باندې د غرونو په شان کلك وو هغوى ايمان او هدايت طرف ته روان شو او د بنى آدمو سخت زړونه ئې اوچول او د معرف الهى چينې ترې نه جارى شوې، اود وصول الى الله طويله لاره ئې په لږ وخت کښې طې کړه، او په مړو زړونو او قومونو کښې ئې د حيات ابدى روح واچوو، او هر کله چه په داسې قرآن سره تاسو. ته شفاء او هدايت نصيب نهٔ شو نو که بالفرض ستاسو د مطالبې موافق په دې قرآن سره دا کارونه مادى او حسى طور سره

اوشی نو بیا به څه توقع وی چه تاسو به ایمان راوړئ بلکه اصل خبره دا ده چه هدایت د الله په اختیار کښې دې نو چه په چا کښې ضد تعصب نۀ وی او د هدایت طلب ګار وی نو هغۀ ته يې ورکوی. ﴿أَفَلَمْ يَاْيْئَسِ الَّذِينَ﴾ یا ییئس په معنې د یَعْلَمُ سره، دې. یاس په لغت د نخع قبیلې کښې په معنې د علم سره راځی او بعض وائی چه یاس په معنی د علم سره نۀ راځی بلکه په معنی د نا امیدئ سره راځی لیکن د ناامیدئ سره لازم دې علم په دې چه دا کار نۀ کیږی.نو دلته لازمی معنی مراد ده او بعض وائی چه یاس په خپل معنې سره دې او په کلام کښې تقدیر دې ای افلم یایئس الذین آمنواعن ایمانهم علما منهم بان لو یشاء الله الخ، یعنی که الله تعالی اوغواړی جبرا مسلمانول د دوی نو ټولو خلقو ته به ئې هدایت کړې وې لیکن جبری ایمان مقبول عندالله نۀ دې ﴿وَلَا يَزَالُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ دا تخویف دې کفارو ته او تسلی ده مؤمنانو ته ﴿قَارِعَةٌ﴾ ای عقوبة تقرع القلوب یعنی داسې سخت عذاب چه زړونه او ټکوی په اهوالو سره ﴿أَوْ تَحُلُّ قَرِيبًا﴾ یعنی یا بۀ قارعه په دوی نازلیږی یا به دوی ته قریب نازلیږی نو دوی ته به امن نۀ وی بلکه په خوف کښې به وی (تَحُلُّ) صیغه ده واحد مونث ده او ضمیر په کښې راجع دې قارعه ته او د ﴿وَعْدُ اللَّهِ﴾ نه مراد موت دې یا قیامت دې یا (تَحُلُّ) صیغه دمخاطب ده او خطاب نبی ﷺ ته دې او د وعدالله نه مراد فتح د مکی ده،معنې دا ده چه همیشه به وی کافران چه په دوئ به د دوئ د بدو عملونو په وجه قارعه نازلیږی،ابن عباس ﷺ فرمائی چه مراد د قارعه نه هغه سرایا دی چه نبی ﷺ به په کفارو پسې لیږلې،یا به تۀ په خپله نزول اوکړې قریب دار د دوئ ته یعنی په حدیبیه کښې تر دې پورې چه فتح د مکی اوشی او د کفر بیناد ختم شی بیشکه الله تعالی د خپلې وعدې نه خلاف نۀ کوی.

| وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ فَأَمْلَيْتُ لِلَّذِينَ كَفَرُوا |
|---|
| او په تحقیق سره [1] مسخرې کړې شویدی په ډیرو رسولانو پورې مخکښې ستا نه. پس مهلت مې ورکړې وؤ کافرانو ته |
| ثُمَّ أَخَذْتُهُمْ ۖ فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ ﴿٣٢﴾ |
| بیا مې نیولی وؤ دوئ لره، نو پس څرنګه وؤ عذاب زما دوئ لره |

۱. تسلی

﴿ وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ ﴾ دا تسلي ده، يعنى كه په سزا وركولو كښې ځه تاخير اوشى نو دا ګمان مه كوئ چه مجرمان به بچ شى مخكنو مجرمانو ته هم مهلت وركړې شوې وو او بيا ئې په عذاب سره اونيول، نو د هغوى ځه حشر شو ﴿ فَكَيْفَ ﴾ خبر د كان دې مقدم شوې دې ځكه چه استفهام تقاضا د صدارت كوى او د دې نه مقصود بيان د شدت د عذاب دې

| |
|---|
| أَفَمَنْ هُوَ قَآئِمٌ عَلَىٰ كُلِّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ ۗ وَجَعَلُوا لِلَّهِ شُرَكَآءَ ۖ قُلْ |
| آيا پس هغه ذات [۱] چه خبردار دې په هر نفس سره د عملونو د ده نه، او ګرځولى دى دوئ الله لره شركاء. وه وايه |
| سَمُّوهُمْ ۚ أَمْ تُنَبِّـُٔونَهُۥ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِى ٱلْأَرْضِ |
| بيان كړئ كمالات د دوئ. آيا خبروئ تاسو الله تعالى لره دهغه ځه نه چه الله تعالى ته ندى معلوم يعنى نشته دې په ځمكه كښې |
| أَم بِظَٰهِرٍ مِّنَ ٱلْقَوْلِ ۗ بَلْ زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مَكْرُهُمْ |
| يا تاسو دوئ ته آلهه وايئ په سر سرى وينا سره بلكه ښائسته كړې شوى دى كافرانوته بد سوچونه د دوئ |
| وَصُدُّوا۟ عَنِ ٱلسَّبِيلِ ۗ وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِنْ هَادٍ ﴿٣٣﴾ |
| او بند كړې شوى دى د سمى لارې نه. او هغه څوك چه الله تعالى ئې بې لارې كړى پس نه وى هغه لره څوك هدايت كونكې |
| لَّهُمْ عَذَابٌ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ۖ وَلَعَذَابُ ٱلْءَاخِرَةِ أَشَقُّ ۖ وَمَا لَهُم مِّنَ ٱللَّهِ مِن وَاقٍ ﴿٣٤﴾ |
| دوئ لره عذاب دې [۲] په ژوند د دنيا كښې او خامخا عذاب د آخرت ډير سخت دې او نشته دې دوئ لره څوك بچ كونكې |

﴿ أَفَمَنْ هُوَ قَآئِمٌ عَلَىٰ كُلِّ نَفْسٍ ﴾ دا اتم دليل عقلى دې او د فمن هو قائم على كل نفس الخ وروستو په آخر كښې كمن ليس كذالك محذوف دې او استفهام د انكار دپاره دې ﴿ قَآئِمٌ ﴾ نه مراد رقيب نګهبان، نګران حاضر او ناظر دې، ﴿ بِمَا كَسَبَتْ ﴾ اى مع ما كسبت يعنى هغه ذات «الله تعالى» چه په هر چا بندې او د هغه په هر عمل د خير اود شربندې عالم دې نګران دې او په هر ځه قادر دې نو داسې ذات په شان دهغه چا كيدې شى چه دا رنګه نهٔ وى؟ بلكه نهٔ شى

۱ - اتم دليل عقلى

۲ - تخويف دنيوى او اخروى

کيدي.او د داسې ذات د ګرفت نه څوك نه شي بچ کيدې. ﴿ وَجَعَلُوا لِلَّهِ شُرَكَآءَ ﴾ يعنی د دې باوجود دوئ الله تعالی لره شريکان جوړ کړې دی ﴿ قُلْ سَمُّوهُمْ ﴾ يعنی د دوئ صفات او کمالات بيان کړئ چه آيا دوئ آلهه کيدې شی؟ آيا دوئ په هر څه عالمان او قدرت والا دی؟ يا دا مطلب دې چه تاسو د خپلو آلهو نومونه واخلئ.د هغوی په نومونو کښې علامه د تانيث ده نو د هغوی نوم اخستل عار او شرم دې يا دا مطلب دې چه د دوی نوم واخلئ او حقيقت ئې بيان کړئ نو د دوی حقيقت عجز دې نو څه رنګه آلهه کيدې شی؟ ﴿أَمْ تُنَبِّئُونَهُ بِمَا لَا يَعْلَمُ ﴾ ام په دواړو ځايونو کښې منقطعه دې په معنې د (بل ء١) يعنی آيا تاسو الله تعالی ته خبر ورکوئ د هغه څه چه هغه ته معلوم نه دی يعنی نشته دې ځکه يو څيز چه موجود وی نو لازمه ده چه علم د الله تعالی به پرې وی آيا تاسو دوی ته آلهه وايئ په سرسری قول سره يعنی په بې حقيقته او بې دليله قول سره يا ام په معنې د همزه دَ استفهام سره دې او مستفهم عنه مقدر دې ای اتسموهم شرکاء حقيقةً ﴿أَم بِظَٰهِرٍ مِّنَ ٱلْقَوْلِ ﴾ کښې ام متصله دې او حاصل دادې چه که تاسو دوی ته معبودان حقيقةً وايئ نو بيا خو تاسو الله تعالی ته د داسې خبرې خبر ورکړو چه الله تعالی ته نه ده معلومه يعنی نشته دې او که تاسو دوی ته معبودان وايئ په سرسری قول سره نو سرسری قول هغه ته وائی چه بې دليله وی او کومه خبره چه بالکل بې دليله وی نو هغه باطل قول وی نو تاسو بيا د خپل قول د بطلان په خپله اقرار اوکړو ﴿بَلْ زُيِّنَ ﴾ يعنی حقيقت دا دې چه دوی سره هيڅ دليل نشته دې بلکه دوی ته د دوی باطل اوهام،مغالطې،اعمال مشرکانه شيطان ښائسته کړې دی او د شيطان او د نفس دهوکې دوی د حق لارې نه منع کړې دی ﴿وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ ﴾ مهر جباريت چه په چا اولږی نو هغهٔ ته هدايت نهٔ کيږی ﴿ لَّهُمْ عَذَابٌ ﴾ دا تخويف دنيوی او اخروی دې يعنی د داسې ضديانو معاندينو د پاره په دنيا کښې هم عذاب دې او د آخرت عذاب ډير سخت دې او د دوی دپاره به څوك شفاعت کوونکې او بچ کوونکې د عذاب الهی نه نهٔ وی،څنګه چه د دوی ګمان دې.

مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِي وُعِدَ الْمُتَّقُونَ ۖ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ

صفت د جنت هغه چه وعده ئ کړې شويده د متقيانو سره (دادې) چه بهيږی لاندې دهغې نه ولې (د شودو ، شرابو ، شهدو ، اوبو)

| |
|---|
| أُكُلُهَا دَآئِمٌ وَّظِلُّهَا ۚ تِلْكَ عُقْبَى الَّذِينَ اتَّقَوْا ۖ وَّعُقْبَى الْكٰفِرِينَ النَّارُ ۝ وَالَّذِينَ |
| ميوې دهغې هميشه دی او سوري ئې هم هميشه دې، دا انجام د متقيانو دې او انجام د کافرانو اُور دې اوهغه کسان |
| اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَفْرَحُونَ بِمَآ أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمِنَ الْأَحْزَابِ |
| چه ورکړې دې [1] مونږ هغوئ ته کتاب خوشحاليږی په هغه څه چه نازل کړې شوی دی تا ته او د دې ډلو نه |
| مَنْ يُّنْكِرُ بَعْضَهٗ ۚ قُلْ إِنَّمَآ أُمِرْتُ |
| بعضی داسې خلق دی چه انکار کوی د بعضې حصې د قرآن نه، ووايه ته [2] چه بيشکه ماته امر کړې شوې دې |
| أَنْ أَعْبُدَ اللّٰهَ وَلَآ أُشْرِكَ بِهٖ ۚ إِلَيْهِ أَدْعُوا وَإِلَيْهِ مَاٰبِ ۝ |
| چه زه عبادت کوم د الله تعالى او شريك نه ګرځوم د هغه سره، دهغه طرف ته خلق رابلم او دهغه طرف ته ځما رجوع ده |
| وَكَذٰلِكَ أَنْزَلْنٰهُ حُكْمًا عَرَبِيًّا ۚ وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَآءَهُمْ بَعْدَمَا |
| اودغسې مونږ نازل کړې دې دا قرآن حکم عربی، اوکه (بالفرض) تا تابعداری وکړه د خواهشاتو د دوئ روستو د هغې نه |
| جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ مَا لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا وَاقٍ ۝ |
| چه راغليدې تا ته علم، نه به وی تا لره د الله تعالى د عذاب نه مددګار اونه بچ کونکې |

﴿مَثَلُ الْجَنَّةِ﴾ دا بشارت دې،مَثَل په درې معانيو سره مستعمليږی،يو د شبيه،مماثل سره دويم په معنې د قول سائر (مثل) سره دريم په معنې دصفت غريبه سره دلته دا دريمه معنې مراد ده.او دا مبتدا ده او خبر ئې مخذوف دې چه (فيما يتلى عليكم) او ﴿تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ﴾ د هغې محذوف خبر تفسير دې يا خبر ورله (تجرى) دې په تاويل د هذاالبيان سره، ﴿الْأَنْهٰرُ﴾ جنت کښې څلور نهرونه دی(١) من ماء غير آسن(٢) من لبن لم يتغير طعمه (٣)خمر لذة (٤) عسل مصفى ﴿أُكُلُهَا دَآئِمٌ﴾ د جنت ميوې به دائمی وی په هر موسم کښې به وی او فنابه پرې نه

---

١ - دليل نقلی د اهل کتابونه.

٢ - دويم دليل وحی

راخي. ﴿وَظِلُّهَا﴾ د دي خبر مخذوف دي اى و ظلها دائم ﴿وَالَّذِينَ ءَاتَيْنَٰهُمُ الْكِتَٰبَ﴾ دا دليل نقلي دي او مراد د دي نه هغه علماء د اهل كتابو دی چه ضد او تعصب په كښې نۀ وو او اسلام ئې قبول كړې وو. ﴿يَفْرَحُونَ﴾ د دوی خوشحاله كيدل په قرآن باندې ښكه دی چه د قرآن تمام بيانات د اصلی كتب سابقو سره موافق دی.او د احزابو نه مرادهغه اكثر اهل كتاب دی چه اسلام ئې نۀ وو راوړې يا مراد د ﴿ءَاتَيْنَٰهُمُ الْكِتَٰبَ﴾ نه صحابه ﷺ دی او د كتاب نه مراد قرآن دي او د احزابو نه مراد مشركين دی او د ﴿يُنكِرُ بَعْضَهُۥ﴾ نه مراد توحيد دې ښكه چه : مشركينو اصلی خلاف دتوحيد نه، وو ﴿قُلْ إِنَّمَآ أُمِرْتُ﴾ دا دويم دليل وحی دې يعنی ما ته په ذريعه د وحی سره دا حكم شوې دې چه په پخپله په توحيد باندې مضبوط شم او نور خلق هم دې ته راوبلم خواه كه څوك خوشحاله وی يا ناراض وی الله تعالی طرف ته زما تلل دی ماته به زما د محنت اجر راكوی او مخالفينو ته به سزا وركوی ﴿وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَٰهُ﴾ دا متعلق دې د ما قبل تمامو دلائلو سره ﴿حُكْمًا عَرَبِيًّا﴾ دا حال دې د ضمير د (انزلنه) نه ﴿وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ﴾ دا خطاب هر مخاطب ته دې،او وعيد دې په اتباع د اهل كتابو او نورو كفارو باندې يا خطاب نبی ﷺ ته دې ليكن مقصود ترې نه نورو خلقو ته اورول دی ښكه چه په نبی ﷺ كښې دا احتمال نۀ وو چه اتباع د غير به اوكړی.

| وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّن قَبْلِكَ وَجَعَلْنَا لَهُمْ أَزْوَٰجًا وَذُرِّيَّةً ۚ |
|---|
| او په تحقيق سره ليږلی وو مونږ (۱) رسولان مخكښې ستانه او وركړې وې مونږ دوئ ته بيبيانې او اولادونه، |
| وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ أَن يَأْتِيَ بِـَٔايَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ ۗ لِكُلِّ أَجَلٍ كِتَابٌ ﴿٣٨﴾ |
| او نشته دې طاقت هيڅ رسول لره (۲) چه راوړی معجزه مگر په اذن د الله تعالی سره ، هرې نيتې لره ليكل شته دې (۳) |

---

۱ . جواب د اول سوال

۲ . د دويم سوال مقدر جواب .

۳ . د دريم سوال مقدر جواب .

**يَمْحُوا اللّٰهُ مَا يَشَآءُ وَ يُثْبِتُ ۖ وَ عِنْدَهٗۤ اُمُّ الْكِتٰبِ ﴿۳۹﴾**

ورانوي الله تعالى [1] څه چه وغواړي او باقي پريږدي (څه چه وغواړي) اوهغه سره اصل كتاب دې

﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا ﴾ د دلائلو نه بعد د مشركينو په رسالت باندې د څلورو سوالونو جوابونه ذكر كيږي **اول سوال** دا وو چه كه تهٔ نبي وې نو ستا به ببيانې اولادونه نهٔ وو، **جواب** راغئ چه د مخكينيو رسولانو هم ببيانې او اولادونه وو، عربو به په دې فخر كوو چه مونږ اولاد د ابراهيم ﷺ يو، نو دوى ته ضمنا دا اووئيلې شو چه كه د رسولانو ببيانې او اولادونه نهٔ وې نو تاسو څنګه دنبي په اولاد كښ يئ او څنګه پيدا شوئ؟ **دويم سوال** دا وو چه كه ته په رښتيا رسول ئې نو مونږ ته زمونږ مطلوبه معجزه ښكاره كړه نو **جواب** راغې چه ﴿ وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ ﴾ يعني معجزه د پيغمبر په اختيار كښ نهٔ وى **دريم سوال** هر كله چه مونږ ستا رسالت نه منو نو په مونږ عذاب ولې نه راځى جواب اوشو ﴿ لِكُلِّ أَجَلٍ كِتَابٌ ﴾ د هر څه د پاره وخت مقرر دې نو كه تاسو په كفر اوانكار باندې كلك پاتې شوئ نو په خپل وخت به عذاب خامخا راځى **څلورم سوال** چه هر كله عذاب خامخا راځى نو د منلو اود ايمان راوړلو څه فائده شوه نو جواب اوشو ﴿ يَمْحُوا اللّٰهُ مَا يَشَآءُ ﴾ محو اثبات د الله تعالى په لاس كښ دى نو كه تاسو ايمان راوړئ نو الله تعالى به ليكلې شوې عذاب محو كړى، او كه تاسو په كفر باندې ثابت شوئ نو عذاب به هم ثابت پاتې شى.

**فائده (۱)** : د دې ايت تشريح په نورو متعددو وجوهاتو سره شوې ده منجمله د هغې نه دا دى (۱) دا جواب دې د اعتراض د كفارو نه چه دوى ويل چه محمد (ﷺ) يوه ورځ خپلو ملګرو ته يو حكم اوكړى او په بل وخت كښ ورته د هغې خلاف حكم كوى نو معلوميږى چه دا د الله تعالى د طرفه نهٔ دې بلكه د دهٔ د طرفه دى نو جواب اوشو چه دهر وخت دپاره مناسب احكام وى نو الله تعالى چه اوغواړي بعض احكام منسوخ كړى او بعض ثابت اولرى يعني محو اثبات د احكامو په اعتبار سر وى (۲) د حضرت عكرمه رضى الله عنه نه روايت دې چه د دې معني دا ده چه محو كوى الله تعالى ګناهونه د توبه كوونكى او ثابتوى د هغې په ځائې حسنات، كما قال تعالى ﴿ فَأُولَٰئِكَ يُبَدِّلُ اللّٰهُ سَيِّئَاتِهِمْ حَسَنَاتٍ ﴾ (۳) سعيد بن جبير رضى الله عنه

---

[1] - د څلورم سوال مقدر جواب.

وانې چه محو کوی الله تعالی هغهٔ څوك چه اجل ئې راغلې وی او ثابت پرېږدی هغه څوك چه اجل ئې نهٔ وی راغلې (۴) محو کوی الله تعالی یعنی هلکوی هغه قومونه چه الله تعالی ئې اوغوارې او ثابت پرېږدی هغه قومونه چه الله ئې اوغوارې.(۵) علی ﷺ وائی چه محو کوی الله تعالی دنیا او ثابت پرېږدی آخرت (۶) محو کوی الله تعالی په لیلة القدر یا لیلة النصف من شعبان کښې د دفتر(رجسټر) د احیاؤ نه هغه څوك چه خوښه ئې شی او ثابتوی ئې په دیوان (رجسټر) د امواتو نه.

**فائده** (۲) اکثر علماء کرام فرمائی چه تقدیر دوه قسمه دې یو تقدیر معلق دې هغه دا دې چه د چا د عمر یا د بل څه څیز تعلیق راغلې وی په یو عمل کولو پورې مثلا که فلانی سړی صله رحمی اوکړه نو عمر بهٔ ئې سل کاله وی او که او ئې نهٔ کړه نوعمر به ئې اتیا کاله وی ، یا مثلا که فلانی دعا او صدقه اوکړه نو مصیبت به ترې نه لرې شی او که اوئې نه کړه نو لرې به نه شی او دا تقدیر معلق په کتاب المحو والاثبات کښې لیکلې شوې دې نو په دې کښې تغیر راتلې شی،خو دا تغیر په نسبت سره علم د ملائکو ته دې او په نسبت سره علم د الله تعالی ته نهٔ دې ځکه چه د الله تعالی علم چه په یو څیز باندې وی نو د هغې په تغیر سره جهل راځی په الله تعالی کښې (والله تعالی منزه عنه) او دا تقدیر معلق لیکلې شوې دې په صحیفو د ملائکو کښې او دویم قسم تقدیر مبرم دې هغه دا دې چه کوم څیز واقع کیږی،لکه مثلا چه کوم معلق وی په شرط پورې او د وجود د شرط سره واقع کیږی یا د عدم د شرط د وجې نه نهٔ واقع کیږی غرض چه کوم څیز بلا تردد واقع کیږی نو هغه تقدیر مبرم دې او دا په لوح محفوظ کښې لیکلې شوې وی،نو په ﴿يَمْحُوا اللَّهُ مَا يَشَاءُ﴾ کښې تقدیر معلق ته اشاره ده او په ﴿وَعِندَهُ أُمُّ الْكِتَابِ﴾ کښې تقدیر مبرم ته اشاره ده او په دې کښې تغیر او تبدیل نهٔ راځی،او په حدیث کښې چه راغلې دی ان الرجل لیحرم الرزق بالذنب یصیبه ، و لا یرد القدر الا الدعا ولا یزید فی العمر الا البر (رواه احمد) یعنی سړې د گناه په وجه د مقرر شوی رزق نه محرومولې شی او تقدیر صرف په دعا سره بدلیږی او په عمر کښې زیادت په نیکئ سره راځی او په روایت د بخاری کښې دی من احب ان یبسط له فی رزقه و ویُنسأ له فی اثره فلیصل رحمه، د دې نه معلومیږی چه په صله رحمئ سره په عمر او مال کښې زیادت راځی نو اکثر علماء دا حمل کوی په تقدیر معلق باندې او بعض علماء وائی چه د موت او حیات شقاوت او سعادت او د رزق په تقدیر کښې تبدیل نهٔ شی راتلې ا ددې نه علاوه په نورو کښې تغیر او تبدیل راتلې شي.او علامه آلوسی رحمه الله د بعضو علماؤ قول نقل کړې دې چه تغییر تبدیل په هر څه کښې یعنی په

تقدیر معلق تولو کښې راتلې شی،دلیل ئې (١) یو دا دې چه د دعاء قنوت په باره کښې په صحیح حدیث کښې راغلی دی و (قنی شر ما قضیت) نو په دې کښې طلب د حفاظت شوې دې د شر د قضاء ازلی نه نو که په دې کښې تغییر ممکن نهٔ وی نو دا طلب او سوال به صحیح نهٔ وو.
(٢) بل دلیل دا دې چه په باره د تراویح کښې په صحیح حدیث کښې راغلې دی چه نبی ﷺ درې شپې په جمعې سره اوکړې نو بیا بهر ته رانغې او خلق ډیر جمع شوې وو .نو نبی ﷺ عذر اوکړو او ئې فرمائیل (خشیت ان تفرض علیکم فتعجزوا عنها) یعنی زهٔ د دې وجې نه د تراویح د پاره رانغلم چه خطره وه چه په تاسو فرض شی.نو که په قضاء ازلی کښې تغییر نهٔ شوې راتلې نو بیا د دې خطرې هیڅ معنی نهٔ وه او بل دا چه په لیلة المعراج کښې ونیلې شوې وو چه صرف پنځه مونځونه فرض دی زیات نهٔ دی فرض. (٣) او بل دلیل دا دې چه نبی ﷺ به چه کله سخته هوا راغله نو پریشان به وو او فرمائیل به ئې (اخشی ان تقوم الساعة) حالانکه د قیامت نه مخکښې د ظهور د مهدی او دنزول د عیسی ﷺ او د خروج د یاجوج ماجوج او دابة الارض اخبار الله تعالی ورکړې وو نو که په قضاء ازلی کښې تغییر تبدیل نهٔ شوې راتلې نو بیا ددې خشیت او پریشانئ هیڅ معنی نهٔ وه، (٤) او روایت دې د حضرت عمر ﷺ نه چه دهٔ به طواف د بیت الله کوو او ژړل به ئې او دا به ئې وئیل : (اللهم ان کنت کتبتنی فی اهل السعادة فاثبتنی فیها وان کنت کتبت عَلَیَّ الشقاوة فامحنی واثبتنی فی اهل السعادة والمغفرة فانك تمحو ماتشاء و تثبت و عندك ام الکتاب)، او دغسې روایت د ابن مسعود ﷺ نه هم مروی دې او بل دا چه که په قضاء ازلی کښې تغییر نهٔ شی راتلې نو بیا به دعا کول بې فائدې وی ځکه چه د کوم څیز سوال چه کولې شی که دهغې وجود مقدر وی نو سوال ته ضرورت نشته دې هغهٔ به بغیر د سوال او دعا نه واقع کیږی،او که د هغې وجود نهٔ وی مقدر نو د هغې په طلب کښې څه فائده نشته دې یعنی استجب لکم والا فائده په کښې نشته دې،او صاحب د نبراس په شرح د شرح العقائد کښې وائی چه تقدیر دوه قسمه نهٔ دې صرف یو تقدیر دې او په هغې کښې تغییر تبدیل نهٔ شی راتلې ګنی نو علم د الله تعالی به منقلب شی په جهل سره لیکن قوی د اکثرو علماؤ قول دې او د ابن عباس او عکرمه ﷺ نه مروی دې او دې آیت نه ئې تائید کیږی والله اعلم.

وَإِن مَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِي نَعِدُهُمْ أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِنَّمَا عَلَيْكَ

او کچرې ونبایو (١) مونږ تا ته بعضې هغه عذاب چه د دوئ سره ئې وعده کوؤ یا وفات کړو تا. پس بیشکه په تا باندې

١ - تخویف دنیوئ.

| |
|---|
| الْبَلٰغُ وَعَلَيْنَا الْحِسَابُ ۝ اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا نَأْتِي الْاَرْضَ نَنْقُصُهَا |
| رسول دی او په مونږ باندې حساب دې آيا دوئ فكر نكوی چه مونږ قصد كوو دې ځمكې (دكفر) ته چه كموو ئ |
| مِنْ اَطْرَافِهَا ؕ وَاللّٰهُ يَحْكُمُ لَا مُعَقِّبَ لِحُكْمِهٖ ؕ وَهُوَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ۝ |
| د ټولو طرفونونه. او الله تعالى فيصله كوی ، نيشته روستو كونكې د فيصلې د هغه. اوهغه زر حساب كونكې دې |

﴿وَاِنْ مَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِىْ﴾ دا تسلی ده نبی ﷺ ته اوتخويف دنيوی دې يعنی تا خپله فريضه د تبليغ ادا كړه نو اوس كه دوی نه منی نو سخت عذاب بهٔ ورته وركولې شی.خواه ستا په ژوند كښې يا ستا د وفات نه وروستوپه جنگ بدر او بعضو نورو غزواتو كښې مشركينو ته،د مؤمنانو په لاس سره سخته سزا وركړه او دغسې د نبی ﷺ د وفات نه بعد كفار په عذاب سره مبتلا شو،او د كفر خاتمه اوشوه د (اِمَّا نُرِيَنَّكَ) معنی دا ده چه دوی ته ستا په ژوندگئ كښې عذاب وركړې شی اوجزاء د (اِمَّا) محذوفه ده چه فذالك المتمنّی،يافذالك شافيك ﴿اَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ﴾ د دې جزاء هم محذوفه ده چه فلا لوم عليك ده ﴿فَاِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ﴾ دا د محذوفې جزا د پاره علت دې، ﴿اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا نَاْتِي الْاَرْضَ﴾ دا تخويف دنيوی دې يعنی دا كفار دې ته سوچ او فكر نه كوی چه توحيد په اطرافو كښې خوريږی او زمكه د كفر كميږی، بعض خلق په خپل اختيار سره مسلمانيږی او بعض د جهاد په ذريعه سره مغلوب كيږی او دا ايت مدنی دې اگر كه اكثره حصه د سورت مكی ده،او د ابن عباس ﷺ او بعضې نورو سلفو نه دا هم مروی ده چه مراد د زمكې بركات ميوې دی او د عذابونو او طوفانونو راتلل دی په سبب د كفر او شرك او د گناهونو سره او دعطاء وغيره نه مروی ده چه مراد د دې نه د زمكې خرابيدل دی په موت د علماؤ صلحاؤ سره لكه په حديث كښې دی ان الله لا يقبض العلم انتزاعا ينتزعه من العباد و لكن يقبض العلماء حتى اذا لم يبق عالما اتخذ الناس راوسا جهالا الخ او عبد الله بن مسعود ﷺ وائی عليكم بالعلم قبل ان يقبض و قبضه ذهاب اهله انما مثل العلماء كمثل الانف اذا قطعت لم تعد و قال سليمان لا يزال الناس بخير ما بقى الاول حتى يتعلم الاخر و اذا هلك الاول قبل ان يتعلم الاخر هلك الناس. ﴿لَا مُعَقِّبَ﴾ نشته دې روستو كونكې او رد كوونكې دا په موضع د حال كښې دې اى نافذاً حكمه.

وَقَدْ مَكَرَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَلِلَّهِ الْمَكْرُ جَمِيعًا ط

او په تحقيق سره مکرونه کړي وؤ هغه کسانو چه د دوئ نه مخکښ وؤ . پس د الله تعالی په اختيار کښ دی مکرونه ټول

يَعْلَمُ مَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ ط وَسَيَعْلَمُ الْكُفَّرُ لِمَنْ عُقْبَى الدَّارِ ۝

عالم دې الله تعالى په هغه کارونو چه کوی ئ هر نفس. او زر به پوهه شي کافرن چه چا لره دې ښه انجام د آخرت

وَ يَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا لَسْتَ مُرْسَلًا ط قُلْ كَفَى بِاللَّهِ شَهِيدًا بَيْنِي

او وائ هغه کسان [1] چه کفر ئ کړې دې، نه ئ ته رسول. وه وايه کافی دې الله تعالى گواه. په مينځ خما

وَبَيْنَكُمْ لا وَمَنْ عِنْدَهُ عِلْمُ الْكِتٰبِ ۝

او ستاسو کښ اوهغه څوک چه هغه سره علم د کتاب دې

﴿وَقَدْ مَكَرَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ يعنی مخکنو کفارو مکرونه او تدبيرونه کړي وو ليکن د هغوی په تدبيرونو، منصوبو سره عذاب الهی نه وؤ دفع شوې ځکه مکر او تدبير دخير وی او که د شر وی د هغې کاميابيدل د الله تعالى په اختيار کښ دی نو که اوغواړی نو هر مکر او تدبير ناکام کولې شی ﴿يَعْلَمُ مَا تَكْسِبُ كُلُّ﴾ د هر چا په خفيه تدبير باندې خبر دې ﴿وَسَيَعْلَمُ الْكُفَّرُ﴾ او لکه مخکنو کفارو چه د خپل مکر انجام ليدلې وو نو دا موجوده کفار به هم اووينی ﴿وَيَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ دا شکوی ده، يعنی کافران ستا د رسالت نه انکار کوی، نو تهٔ ورته اووايه چه زما په رسالت او صداقت باندې دلائيل اومعجزاتِ واضحه موجود دی نو ستاسو انکار محض عناد او تعصب دې اوزما په نبوت الله تعالى گواه دې او هغه پوره گواه دې، ﴿وَمَنْ عِندَهُ عِلْمُ الْكِتٰبِ﴾ د دې نه مراد شهادت دعلماؤ د اهل کتابو دې کوم چه ضديان متعصب نهٔ وويا مراد د دې نه جبرئيل عليه السلام دې.

**تم تفسير سورة الرعد بفضله وحسن توفيقه ،**

**۲۴ ربيع الاول ۱۴۳۰ هجری ۲۲مارچ ۲۰۰۹ عيسوی**

---

۱ - شکوی.

| آیتونه | سورة ابراهيم مكية | ركوع |
| --- | --- | --- |
| ٥٢ | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | ٧ |
| | خاص په نوم د الله سره چه بیحده مهربان او ډیر رحم کوونکی دې شروع کوم | |

**رقمها حسب التسلسل (١٤) وحسب النزول (٧٢)**

دا سورة مکی دې د ترییب قرآن په لحاظ سره ١۴ دې او د نزول په اعتبار سره ٧٢ دې.د مکې دور اخیر کښ نازل شوې دې،آیتونه ئې ۵٢ دی او رکوعات ئې ٧ دی۔

**ربط** : اسمی ئې دا دې چه یوسف ﷺ په جیل کښ د توحید مسئله بیان کړې ده او رعد فرشته هم د الله تعالی پاکی بیانوی د شرکاؤ نه او ابراهیم ﷺ د توحید د پاره خپل اهل او عیال په حکم د الله تعالی سره په شاړ میدان کښ پریخودل او دعا ئې اوکړه ﴿وَاجۡنُبۡنِي وَبَنِيَّ أَن نَّعۡبُدَ الۡأَصۡنَامَ﴾

**ربط مضمونی** (١) د مخکنی سورت په ابتداء کښ د حقیقت د قرآن ذکر وواو د دې سورت په ابتداء کښ د قرآن د نزول مقصد بیانیږی چه (لِتُخۡرِجَ الناس مِنَ الظلمٰتِ اِلَی النُّور) (٢) په تیر شوی سورت کښ په توحید باندې تنبیهات عقلیه او نقلیه ذکر شو او په دې سورت کښ دلائل دتوحید او وقائع دنیویه اخرویه ذکر کیږی څکه چه بعض خلق په اوریدلو د وقائع دنیوی (تذکیر بایام الله)یا اخروی (تذکیر بما بعد الموت) سره په هدایت باندې راځی.

**د سورت د مضامینو خلاصه** : په دې سورت کښ درې عقلی دلائیل ذکر کیږی دوه مختصر یومفصل،او دوه نقلی دلیلونه ذکر کیږی یو اجمالی یو تفصیلی د ابراهیم ﷺ او شپږ وارې وقائع بیانیږی دوه دنیوی (تذکیر بایام الله)او څلور اخروی (تذکیر بما بعد الموت)

**او تفصیل** د، دې : چه اول یو آیت تمهید دې او بیان د مقصد د نزول د قرآن دې،دلائیل عقلیه درې دی دلیل اول ﴿اللّٰهِ الَّذِي﴾ آیت : (٢) دویم دلیل ﴿أَلَمۡ تَرَ أَنَّ اللّٰهَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ﴾ آیت نمبر ١٩ دا دواړه دلیلونه مختصر دی، دریم دلیل عقلی تفصیلی ﴿ اللّٰهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمٰوٰتِ﴾ آیت نمبر ٣٢ تا ٣۴،او دوه نقلی دلیلونه یو اجمالی ﴿ أَلَمۡ تَرَ كَيۡفَ ضَرَبَ اللّٰهُ﴾ یعنی کلمه طیبه د ټولو انبیاؤمشن دې،دویم نقلی تفصیلی ﴿ وَإِذۡ قَالَ إِبۡرٰهِيمُ رَبِّ اجۡعَلۡ هٰذَا الۡبَلَدَ

﴿ایٰتنا﴾ آیت نمبر ۳۵ تا ۴۱. بیان دوقائعو شپږ واړي کیږي دوه دنیوی او څلور اخروی دی چه شاه صاحب رحمه الله تري نه تعبیر په تذکیر بایام الله سره کوی او تخویف اخروی دي چه دَ دینه تعبیر په تذکیر بما بعد الموت سره کوی اول وار بیان د وقائعو تذکیر بایام الله دي﴿ أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَبَؤُا الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ ﴾آیت نمبر ۹ تا ۱۵ یعنی د امم سابقو د تباهئ نه عبرت واخلئ. دویم وار تذکیر بما بعدالموت ﴿ مِّن وَرَآئِهِۦ جَهَنَّمُ ﴾ ایت نمبر ۱۶ او ۱۷ یعنی د دنیوی عذاب نه به علاوه په آخرت کښې دردناك عذاب وی دریم واري تخویف دنیوی تذکیر بایام الله ﴿إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ ﴾ آیت نمبر ۱۹ یعنی الله تعالی ته څه مشکله نهٔ ده چه تاسو هلاك کړی او نور خلق پیدا کړی څلورم وار ﴿ وَبَرَزُوا لِلَّهِ جَمِيعًا ﴾ دا تخویف اخروی او تذکیر بما بعد الموت دي پنځم واري دا هم اخروی دي ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ بَدَّلُوا ﴾ آیت نمبر ۲۸ یعنی د مشرکینو سزا د جهنم اور دي شپږم وار دنیوی اخروی د دواړو ذکر دي﴿ وَلَا تَحْسَبَنَّ اللَّهَ غَافِلًا ﴾آیت نمبر ۴۲ تا ۴۷ او ۵۱ او په آخر کښې بیان د دعوی دي په طور د ثمره سره.

الٓر كِتَٰبٌ أَنزَلْنَٰهُ إِلَيْكَ لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمَٰتِ إِلَى النُّورِ بِإِذْنِ رَبِّهِمْ

(الر) دا کتاب دي [۱] چه مونږ نازل کړیدي تا ته، لپاره د دي چه ته را ؤباسي خلق د تیرونه رڼا ته په توفیق د رب د دوئ سره

إِلَىٰ صِرَٰطِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ ۝ اللَّهِ الَّذِي لَهُۥ مَا

لارې د هغه ذات ته چه زورآور، ستایلي شوي دي. د هغه الله طرف ته [۲] چه د هغه په اختیار کښې دی هغه څه

فِي السَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۗ وَوَيْلٌ لِّلْكَٰفِرِينَ مِنْ عَذَابٍ شَدِيدٍ ۝ الَّذِينَ

چه په آسمانونو کښې دی او هغه څه چه په ځمکه کښې دی او هلاکت دي کافرانو لره [۳] د عذاب سخت نه دا هغه خلق دی

---

۱ - تمهید مع ترغیب.
۲ - اول دلیل عقلی مختصر
۳ - تخویف

يَسْتَحِبُّوْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا عَلَى الْاٰخِرَةِ وَيَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَيَبْغُوْنَهَا عِوَجًا ط

چه غوره کوی ژوند د دنیا په آخرت باندې او منع کوی نور خلق د لارې د الله تعالی نه او لټوی په هغې کښې کږلیچ

اُولٰٓئِكَ فِیْ ضَلٰلٍۢ بَعِیْدٍ ﴿۳﴾ وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِهٖ

دغه خلق په ګمراهی لرې کښې دی او ندي لیږلي مونږ هیڅ رسول مګر په ژبه (لغت) د قوم د ده

لِیُبَیِّنَ لَهُمْ ط فَیُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ یَّشَآءُ

لپاره د دې چه بیان کړی دوئ ته (احکام د الله تعالی)، پس ګمراه کوی الله تعالی هغه څوک چه وغواړی

وَ یَهْدِیْ مَنْ یَّشَآءُ ط وَهُوَ الْعَزِیْزُ الْحَکِیْمُ ﴿۴﴾

او هدایت ورکوی هغه چا ته چه وغواړی او الله تعالی زورآور او حکمتونو والا دی

﴿ کِتٰبٌ ﴾ دا خبر د مبتدا محذوفي دې (ای هذا کتاب) دا تمهیدي دې او بیان د مقصد د نزول د قرآن دې چه هغه دا دې ﴿لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ﴾ ای ببیانِ الوقائع او هر کله چه د ګمراهئ لارې ډیرې دی او د حق لار یوه ده نو ددې وجې نه ظلمات جمع او نور مفرد ذکر شو ﴿بِاِذْنِ رَبِّهِمْ ﴾ ای بتوفیق ربهم دامتعلق دې د (لتخرج الناس) سره، یعنی پیغمبر چه خلق د ګمراهئ نه هدایت ته راوباسی نو دالله تعالی په توفیق سره کیږی ﴿اِلٰى صِرَاطِ الْعَزِیْزِ الْحَمِیْدِ ﴾ دا بدل دې د ﴿اِلَى النُّوْرِ ﴾ نه په تکرار د عامل سره ﴿اللّٰهِ الَّذِیْ ﴾ عطف بیان دې د (العزیز الحمید) نه او دا اول دلیل مختصر دلیل عقلی دې یعنی د الله په قبضه او تصرف کښې ټول کائنات دې که اسمانونو والا دی یعنی فرشتې او که زمکې والا دی یعنی انبیاء اولیاء ﴿وَوَیْلٌ ﴾ دا تخویف دې او په دې کښې اشاره ده چه خاوندان د ظلماتو کافران دی﴿ اَلَّذِیْنَ یَسْتَحِبُّوْنَ ﴾ یعنی کافران د دنیا زندګئ ته ترجیح ورکوی په آخرت باندې او دنیا دنفعې د پاره د آخرت نقصان کوی،او دا لویه بیماری ده په انسان کښې﴿وَیَصُدُّوْنَ ﴾ یعنی په خپله د کفر او ضلالت په تیرو کښې دی او د ایمان د نور نه محروم دی او نور خلق هم د الله تعالی د دین نه منع کوی ﴿وَیَبْغُوْنَهَا ﴾ دا په اصل کښې (یَبْغُوْنَ لَهَا) دې یعنی په دین حق او توحید کښې شکوک شبهات اچوی او د دې په ذریعه خلق د توحید نه منع کوی﴿ وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ ﴾ دا متعلق دې د ابتداء د سورت سره چه (لیخرج الناس من الظلمت) دې او دا تخصیص بعد التعمیم دې.یعنی مخکنی قومونو ته الله تعالی رسولان رالیږلي وود هغوی په قومی ژبه سره

د دې د پاره چه هغوی ته د الله تعالی احکامات بیان کړی او د ظلمت نه ئې نور ته راولی په قومی لسان سره تعلیم تعلم آسان وی.نو ددې وجې نه الله تعالی په قومی ژبه سره انبیاء علیهم السلام رالیګل.اودا طبعی ترتیب دې او د دی طبعی ترتیب مطابق الله تعالی وحی په عربی لغت سره راولیګله ځکه چه د عربو دخپل قومی لسان سره بیحده شوق او محبت وو.نو دوی د قرآن په حقائقو معارفو باندې مکمله احاطه اوکړه او بیا ئې دا نور مشرق.مغرب.روم. فارس. بلکه ټولې دنیا ته منتشرکړه او په دې آیت کښې (بلسان قومه) وئیلې دی او (بلسان امته) ئې نۀ دې وئیلې ځکه چه د نبی ﷺ قوم عرب وو.لیکن امت ئې د ټول دنیا تمام اقوام.جنس اوانس دی ﴿فَيُضِلُّ اللَّهُ﴾ په دې کښې اشاره ده چه د انبیاؤ کار دعوت ورکول دی او هدایت ورکول یا نۀ ورکول د الله تعالی په اختیار کښې دی ﴿الْعَزِيزُ﴾ تعلق د یهدی سره دې او د (الحکیم) تعلق د ﴿فَيُضِلُّ﴾ سره دې .

| |
|---|
| وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ بِآيَاتِنَا أَنْ أَخْرِجْ قَوْمَكَ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ وَذَكِّرْهُمْ |
| او یقینًا مونږ لیږلې وو موسی [1] په آیاتونو خپلو سره چه را وُباسه خپل قوم، د تیرو نه رڼرا ته ، او وریاد کړه دوئ ته |
| بِأَيَّامِ اللَّهِ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ ﴿٥﴾ وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ |
| عبرتناک واقعات د الله . بیشکه پدې کښې ډیر عبرتونه دی، د هر ډیر صبرناك ډیر شکرګذار لپاره او کله چه وه وئیل موسی |
| لِقَوْمِهِ اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ أَنْجَاكُمْ مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ يَسُومُونَكُمْ |
| خپل قوم ته یاد کړئ احسان د الله تعالی په تاسې، کله چه تاسو ئ خلاص کړئ د فرعونیانو نه . رسولو به ئ تاسو ته |
| سُوءَ الْعَذَابِ وَيُذَبِّحُونَ أَبْنَاءَكُمْ وَيَسْتَحْيُونَ نِسَاءَكُمْ ۚ وَفِي ذَٰلِكُمْ بَلَاءٌ |
| سخت عذاب، او ذبح کول به ئ ځامن ستاسو او ژوندئ به ئ پرېښودلې خزې ستاسو، او په دې کښې امتحان وو |
| مِنْ رَبِّكُمْ عَظِيمٌ ﴿٦﴾ وَإِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكُمْ لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ |
| د طرف د رب ستاسو نه لوئ. اوکله چه خبر درکړو رب ستاسو کچرې شکر وکړو تاسو نو خامخا به زیات درکوم تاسو ته |

[1] . تخصیص بعد التعمیم

وَلَئِنْ كَفَرْتُمْ اِنَّ عَذَابِيْ لَشَدِيْدٌ ۝ وَقَالَ مُوْسٰى اِنْ تَكْفُرُوْٓا اَنْتُمْ وَمَنْ

او كه تاسو كفر وكړو نو بيشكه عذاب ځما ډير سخت دي. او وه ويل موسى كه ناشكري وكړه تاسو اوهغه چا

فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا ۙ فَاِنَّ اللّٰهَ لَغَنِيٌّ حَمِيْدٌ ۝

چه په ځمكه كښې دي ټولو، نوپس بيشكه الله تعالى بې حاجته دې، صفت كړې شوې دې

﴿ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى ﴾ دا هم د ابتداء د سورت سره متعلق دي او تخصيص بعد التعميم دي يعنى لكه څه رنګه چه موسى ﷺ خپل قوم ته د تير شوو قومونو واقعات بيان كړل او د الله تعالى انعامات ئې ورته په ياد كړل او او يې وئيل چه كه تاسو د الله تعالى د نعمتونو شكر كوئ نو الله تعالى به زيات دركړي اوكه ناشكري كوئ نوعذاب بهٔ دركړي نو دغه شان ته هم خپل قوم په واقعاتو اوانعاماتو بيانولو سره د ظلمت نه نور د هدايت ته راوباسه ﴿وَذَكِّرْهُمْ بِاَيّٰىمِ اللّٰهِ﴾ ايام جمع د يو م ده ،په عربى محاوره كښې په دې سره تعبير كيږى د لوئې تاريخ واقعې نه لكه هلاكت د قوم دنوح ﷺ او د عاديانو ثموديانوشو (ايام العرب) جنګونو دعربو ته وائى يا لكه يوم بدر،يوم احد،يوم خندق وغير ذلك،دلته ترې نه هغه واقعات هم اراده كيدې شى چه په مخكنو قومونو باندې د الله تعالى د طرف نه عذاب راغلې وو او دا رنګه هغه نعمتونه ترې نه هم اراده كيدې شى چه مخكنو قومونه ته وركړې شوى وو.يعنى هغه لوئې لوئې نعمتونه چه د هغې بيان د تاريخ حصه ګرځيدلې ده لكه حكومت اقتدار وغيره د (ايام) اضافت (الله) ته د اهتمام شان د پاره دې،يعنى مهتم بالشان واقعات د مصيبتونو او د نعمتونو ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ﴾ يعنى په دې ايام الله كښې يا په تذكير بايام الله كښې ﴿صَبَّارٍ شَكُوْرٍ﴾ دا دواړه صيغى د مبالغې دى ډير صبر كوونكې او ډير شكر كوونكې مؤمن وى،او كله كله صبر كوونكې خو كافر هم وى، د ايام الله په ذكر سره صابر ته صبر كول زده شى او شاكر ته شكر كول زده شى ﴿اِذْ اَنْجٰىكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ﴾ دا د نعمت د نجات بيان دې ﴿وَيُذَبِّحُوْنَ اَبْنَآءَكُمْ﴾ دا د واقعاتو بيان دې نو دې وجې نه دا عطف شو په ما قبل او په سورة بقرة كښې بغير د واو نه ذكر شوې دې،ځكه هلته (يُذَبِّحُوْن). تفسر دې د (يَسُوْمُوْنَكُمْ) د پاره نوواو ورسره نهٔ دې مناسب ،او دلته مقصود تفسير نهٔ وو بلكه بيان د بلې

نوعې د ايام الله وو نو ښكه واو ذكر شو﴿لَئِن شَكَرْتُمْ﴾ د شكر تعريف علماء داسې كوى صرفُ العبدِ جميعَ ما انعمهُ الله تعالى الى ما خُلِقَ لاجله يعنى د هر نعمت خرچ كول او استعمالول د الله په اطاعت او مرضئ كښې،لكه سترګې غوږونه ژبه او تمام اعضاء جوارح د الله تعالى په اطاعت او مرضياتو كښې استعمالول دا شكر دې،او د زياتولو نه مراد د نعمتونو زياتول او د ثوابونو زياتو دى او دا رنګه دنيوى دينى ترقى وركول دى او دا كلام داخل دې په تبليغ د موسى عليه السلام كښې

**فائده** په شكر ادا كولو باندې وعده د ثواب اود بدلئ شوې ده او تاكيد ئې په لام او نون سره شوې دې او په ناشكرئ باندې سزا صراحتا نۀ ده ذكر كړې شوې بلكه دومره ئې اوفرمائيل چه ﴿إِنَّ عَذَابِي لَشَدِيدٌ﴾ نو دا د ارحم الراحمين اكرام الاكرمين د رحم او د كرم سبقيت او غلبې ته اشاره ده په غضب باندې ﴿إِن تَكْفُرُوا أَنتُمْ﴾ يعنى ستاسو د ناشكرئ نقصان تاسو ته رسى الله تعالى د چا د شكر اطاعت محتاج نه دې،د صحيح مسلم په حديث قدسى كښې دى،اې زما بندګانو كه ستاسو مخكنى وروستونى جن ،انس ټول د يو اعلى متقى شخص په نمونه شى نو زما په حكومت كښې يو ذره زيات والې نه راځى او كه ستاسو ټول مخكنى وروستونى،جن او انس ټول بالفرض د يو بد ترين مخلقوق په شان شى (والعياذ بالله)نوزما په مملكت كښې يوه ذره كمې نۀ راځى.

| أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَبَؤُا الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ قَوْمِ نُوحٍ وَعَادٍ وَثَمُودَ ۛ وَالَّذِينَ |
|---|
| آيا ندې راغلې تاسو ته [1] خبر دهغه كسانو چه مخكښې وو ستاسونه، قوم د نوح او عاديان او ثموديان. او هغه خلق |
| مِن بَعْدِهِمْ ۛ لَا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا اللَّهُ ۚ جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُم |
| چه روستو وو د دوئ نه، ندى خبر په هغوئ باندې هيڅوك سوى د الله تعالى نه، راوړى وو دوئ ته رسولانو د دوئ |
| بِالْبَيِّنَاتِ فَرَدُّوا أَيْدِيَهُمْ فِي أَفْوَاهِهِمْ وَقَالُوا إِنَّا كَفَرْنَا بِمَا |
| ښكاره دليلونه نو وه ګرځول دوئ لاسونه خپل په خولو د پيغمبرانو كښې او وه ويل دوئ بيشكه موږ انكار كوو د هغې نه |

١- اوله واقعه مشتمل په تخويف دنيوى سره

اُرْسِلْتُمْ بِهٖ وَاِنَّا لَفِيْ شَكٍّ مِّمَّا تَدْعُوْنَنَآ اِلَيْهِ مُرِيْبٍ ۝

چه تاسو رالیږلی شوی یئ په هغې سره او یقینًا مونږ په شك کښې یو د هغې مسئلې نه چه تاسو مونږ رابلئ هغې ته دیر شك

قَالَتْ رُسُلُهُمْ اَفِي اللّٰهِ شَكٌّ فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ

وه ویل رسولانو د دوئ ایا په توحید د الله تعالی کښې شك دې چه هغه اول پیدا کونکې د آسمانونو او د ځمکې دې

يَدْعُوْكُمْ لِيَغْفِرَ لَكُمْ مِّنْ ذُنُوْبِكُمْ وَيُؤَخِّرَكُمْ اِلٰۤى اَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ

رابلی تاسولره چه بخنه وکړی تاسوته د ګناهونو ستاسو او روستو کړی تاسو لره (بغیر د عذاب نه) نیټې مقررې ته

قَالُوْۤا اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا ؕ تُرِيْدُوْنَ اَنْ تَصُدُّوْنَا عَمَّا

وه ویل دوئ چه نه یئ تاسې مګر بشر یئ زمونږ په شان اراده لرئ تاسو چه مونږ منع کړئ د هغه معبودانو د عبادت نه

كَانَ يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَا فَاْتُوْنَا بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ۝ قَالَتْ لَهُمْ رُسُلُهُمْ

چه د هغوئ عبادت کوؤ زمونږ مشرانو ، نو پس راوړئ مونږ ته معجزه ښکاره . وه ویل دوئ ته رسولانو د دوئ

اِنْ نَّحْنُ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَمُنُّ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ؕ

نه یو مونږ مګر بشر یو ستاسو پشان، لیکن الله تعالی احسان کوی په چا چه وغواړی د بندګانو خپلو نه،

وَمَا كَانَ لَنَآ اَنْ نَّاْتِيَكُمْ بِسُلْطٰنٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ۝

او نشته دې وس مونږ لره چه راوړو تاسو ته معجزه مګر په اجازت د الله تعالی سره، او خاص په الله تعالی دې توکل وکړی مؤمنان

وَمَا لَنَآ اَلَّا نَتَوَكَّلَ عَلَى اللّٰهِ وَقَدْ هَدٰىنَا سُبُلَنَا ؕ

او څه عذر دې مونږ لره چه مونږ به توکل نه کوؤ په الله تعالی باندې او حال دا چه مونږ ته ئې ښودلی دی لارې د خیر زمونږ

وَلَنَصْبِرَنَّ عَلٰى مَآ اٰذَيْتُمُوْنَا ؕ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُوْنَ ۝

او خامخا به صبر کوؤ مونږ په هغه تکلیفونو چه تاسو ئې مونږ ته رسوئ او خاص په الله تعالی دې توکل وکړی توکل کونکی

﴿ اَلَمْ يَاْتِكُمْ ﴾ دا اول څل بیان د وقائعو دې او دا مشتمل دې په تخویف دنیوی باندې یعنی قوم د نوح ﷺ او عاد او ثمود ،او ددوی نه وروستو قومونو ته انبیاء راغلل او د توحید

پیغام ئې ورته وړلو ، لیکن هغوی خبره اونۀ منله او اعتراضونه ئې شروع کړل نو الله تعالی هغوی په عذاب سره تباه و برباد کړل نو موجوده کفار دې هم د دې نه عبرت حاصل کړی ﴿لَا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا اللَّهُ﴾ یعنی دومره ډیر قومونه تیر شوې دی چه د هغوی تفصیلی علم بغیر د الله تعالی نه بل چا ته نشته دې،د دې نه معلومه شوه چه علم غیب او علم کلی بندګانو نه او انبیاء ته نشته دې ابن عباس ﷺ ﴿لَا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا اللَّهُ﴾ اولوستلو او وې فرمائیل چه (کذب النسابون) یعنی د نسبونو د مکمل معرفت دعوی کوونکی دروغ وائی عروه بن زبیر وائی چه مونږ نه څوك داسې نۀ دی معلوم چه د معد بن عدنان نه پورته په تحقیقی طور باندې د نسب حال ښودلې شی ﴿فَرَدُّوا أَيْدِيَهُمْ فِي أَفْوَاهِهِمْ﴾ ددې یوه معنی دا ده چه کفار پیغمبرانو ته ډیر غصه وو نو د ډیر غصې د وجې نه ئې خپل لاسونه په خپلو خولو کښې کیخودل او چکونه ئې پرې لګول﴿عَضُّوا عَلَيْكُمُ الْأَنَامِلَ مِنَ الْغَيْظِ﴾ یا د مسخرې د پاره ئې لاسونه په خولۀ باندې کیخودل یا ئې پیغمبرانو ته اشاره کوله چه چپ شی.او بله معنی ئې دا ده چه د پیغمبرانو په خولو باندې ئې خپل لاسونه کیخودل د چپ کولو دپاره بله معنی ئې دا ده چه د پیغبرانو لاسونه ئې د هغوی په خولو باندې کیخودل چه چپ شئ دا د نهایت توهین طریقه د چپ کولو ده، ﴿لَفِي شَكٍّ﴾ یعنی تاسو داسې داسې خبرې چه په عقل کښې نۀ راځی ﴿مُرِيبٍ﴾ صفت د شك دې د تاکید اومبالغې د پاره ﴿قَالَتْ رُسُلُهُمْ﴾ استفهام په ﴿أَفِي اللَّهِ شَكٌّ﴾ کښې د تعجب د پاره دې یعنی انبیاؤ به اووئیل چه تعجب دې چه تاسو په داسې واضحه مسئله کښې شك کوئ. ﴿أَفِي اللَّهِ﴾ نه مراد توحید د الله تعالی دې ځکه چه د وجود د الله تعالی خو دوی قائل وو ﴿فَاطِرِ السَّمَاوَاتِ﴾ یعنی د اسمانونو او د زمکې پیدا کیدل دلیل د توحید دې نو د داسې مشاهَد واضح دلیل باوجود انکار کول دتعجب خبره ده ﴿يَدْعُوكُمْ﴾ یعنی د توحید دعوت په حقیقت کښې د الله تعالی دعوت دې نو که بالفرض واضح او مشاهَد نۀ وې نو بیائې هم منل پکار وو.حاصل دا چه مسئله دتوحید د نهایت وضوح په وجه منل پکار دی او بل په دې وجه چه دا دعوت د الله تعالی دې نو منل ئې پکار دی﴿وَيُؤَخِّرَكُمْ﴾ یعنی د توحید منلو یوه فائده دا ده چه الله تعالی به ستاسو تیر شوی ګناهونه معاف کړی او بله فائده ئې دا ده چه

تاسو به په عافيت سره بلا عذابه ستاسو اجل ته اورسوی، انبياؤ چه خپلو قومونو ته دعوت ورکړو نو هغوی نامناسب اعتراضونه شروع کړل : (١) يو دا چه ﴿إِنْ أَنتُمْ إِلَّا بَشَرٌ﴾ تاسو زمونږ په شان بشر يئ او بشر رسول نۀ وی (٢) بل دا چه ﴿تُرِيدُونَ أَن تَصُدُّونَا﴾ يعنی تاسو چه وايئ توحيد د الله دعوت دې نو داسې نۀ ده بلکه دا تاسو د خپلې رائې نه وايئ او ستاسو غرض دا دې چه مونږ د هغه معبودانو د عبادت نه منع کړئ چه زمونږ مشرانو ئې عبادت کولو. (٣) بل دا چه که تاسو رسولان يئ نو ﴿فَأْتُونَا بِسُلْطَانٍ مُّبِينٍ﴾ يعنی يو واضحه معجزه مطلوبه پيش کړئ ﴿قَالَتْ لَهُمْ رُسُلُهُمْ﴾ رسولانو د دوی د سوالونو جواب ورکړو د اول سوال جواب دا چه د بشريت او رسالت څه منافات نشته دې بلکه رسول بشر وی ليکن رسالت ملاويږی په احسان د الله تعالی سره ځکه نبوت او رسالت وهبی څيز دې نو محض د الله تعالی په احسان او انتخاب سره ملاويږی نو الله تعالی په مونږ باندې احسان کړې دې اود نبوت د پاره ئې منتخب کړې يو، او د دريم سوال جواب ئې دا اوکړو چه ﴿وَمَا كَانَ لَنَا﴾ يعنی معجزه ښکار کول زمونږ په اختيار کښ نۀ ده، او د دويم سوال جواب کولو ته ضرورت نۀ وو ځکه چه انبياؤ دوی په حقيقت کښ د هغه مشرانو د لارې نه منع کول چه ګمراه وو ﴿إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ يعنی که الله تعالی اوغواړی نو ستاسو مطلوبه معجزه به ښکاره کړی ﴿وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ﴾ يعنی مونږ ستاسو د مخالفت پروا نۀ کوو، بلکه په الله تعالی باندې توکل کوو او ټولو مؤمنانو لر توکل په الله تعالی باندې پکار دې ﴿وَقَدْ هَدَانَا سُبُلَنَا﴾ يعنی الله تعالی مونږ ته د دنيا او د آخر د کاميابئ لارې ښوذلې دی په هغې کښ توکل او صبر هم دې نو د دې وجې نه به مونږ صبر کوو په هغه تکليفونو چه تاسو ئې مونږ ته رارسوئ نو په دې سره به زمونږ درجات زياتيږی ﴿فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُونَ﴾ مخکښ مؤمن ته امر اوشو د توکل نو چه هغه توکل اوکړی نو متوکل شی، او دلته ورته امر د بقاء او د ثبات دې په توکل باندې

| أَرْضِنَآ | مِّنْ | لَنُخْرِجَنَّكُم | لِرُسُلِهِمْ | كَفَرُوا | الَّذِينَ | وَقَالَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

او وه ويل هغه کسانو چه کفر ئ کړې وۀ خپلو رسولانو ته خامخا به مونږ اوباسو تاسو د خپل ملک نه

أَوْ لَتَعُوْدُنَّ فِيْ مِلَّتِنَا ؕ فَأَوْحٰى إِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ لَنُهْلِكَنَّ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۳﴾

یا به خامخا راوګرزئ تاسو زمونږ دین ته، پس وحی وکړه دوئ ته رب د دوئ چه خامخا به هلاك كړو مونږ ظالمانو لره

وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ الْأَرْضَ مِنْ بَعْدِهِمْ ؕ ذٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِيْ

او خامخا به مونږ اوسوو تاسو[1] په ځمکه روستو د هغوئ نه دا وعده ده هغه چا سره چه یریږی د پیشی زما نه

وَخَافَ وَعِيْدِ ﴿۱۴﴾ وَاسْتَفْتَحُوْا وَخَابَ كُلُّ جَبَّارٍ عَنِيْدٍ ﴿۱۵﴾ مِّنْ وَّرَآئِهٖ جَهَنَّمُ

او یریږی د عذاب زما نه اوهغوئ فیصله[2] وغوښتله او نامراده شو هر سرکش طدی چه دهغه مخې ته دوزخ دې

وَيُسْقٰى مِنْ مَّآءٍ صَدِيْدٍ ﴿۱۶﴾ يَّتَجَرَّعُهٗ وَلَا يَكَادُ يُسِيْغُهٗ

اوڅکولی کیږی به هغه ته دهغه اوبونه چه وینې زوې دی ګوټ ګوټ به ئ تیروی[3] او په آسانه به ئ نشی تیرولې

وَيَأْتِيْهِ الْمَوْتُ مِنْ كُلِّ مَكَانٍ وَّمَا هُوَ بِمَيِّتٍ ؕ وَمِنْ وَّرَآئِهٖ عَذَابٌ غَلِيْظٌ ﴿۱۷﴾

او رازی به دوئ ته اسباب د مرګ د هر طرف نه خو نه به وی مړکیدونکې او مخې ته د ده دې عذاب سخت

﴿ وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِرُسُلِهِمْ ﴾ دا د کفارو معاندانهٔ او نا معقول خبرې دی یعنی دوی انبیاؤ ته دهمکی ورکړه چه یا تاسو خپل دعوت پریږدئ او زمونږ په دین کښې داخل شئ یا به مونږ تاسو د خپل وطن نه اوباسو جلاوطن به شئ ﴿ فَأَوْحٰى إِلَيْهِمْ ﴾ الله تعالی په دوی وحی راولیګله چه دوی اراده کوی چه تاسو د خپل وطن نه اوباسی نو دوی داسې نه شی کولې بلکه زهٔ به دوی د عالم دنیا نه بهر اوباسم هلاك به ئې کړم او تاسو به د دوی په ځائې اباد اولرم ﴿ ذٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِيْ ﴾ یعنی دا وعده عامه ده هر موحد او حق پرست لره،مقام مصدر میمی دې او اضافت فاعل ته دې ای خاف قیامی علیه وحفظی لاعماله (کشاف) یعنی د الله تعالی دنګرانئ په وجه د الله تعالی نه ویریږی یا د مقام نه مراد قیام دې په حضور د الله

۱ - بشارت

۲ - تخویف دنیوی

۳ - تخویف اخروی ، تفصیلی بیان د دویمې واقعې

﴿ وَخَافَ وَعِيدِ ﴾ دا جمله عطف ده په ماقبل (خَافَ) باندې او (وعيد) د فعيل په وزن دې اسم مصدر دې وَعَد يعِد نه اضافت ئ شوې دې فاعل ته چه يا د متكلم ده چه په حالت د وقف كښې حذف كيږي او اكتفاء په كسرې باندې كيږي او مراد د (وعيد) نه يا عذاب د الله تعالى دې او يا قرآن او د هغې زواجر ترې نه مراد دى

**فائده** دې نه معلومه شوه چه د مؤمن هغه خوف چه د وجې د عذاب د الله تعالى نه دې هغه به غير وى د هغه خوف چه د وجې د قيام نه په حضور د الله تعالى كښې وى ځكه چه عطف تقاضا د مغايرت كوى نو اول الذكر خوف طبعى دې او دويم خوف عقلى دې.

﴿ وَاسْتَفْتَحُوا ﴾ دا تخويف ذكر كيږي د منكرينو د پاره عطف دې په ﴿ فَأَوْحَىٰ إِلَيْهِمْ ﴾ باندې يعنى كافرانو رسولانو ته وئيل چه ﴿ لَنُخْرِجَنَّكُم ﴾ نو ﴿ وَاسْتَفْتَحُوا ﴾ او ضمير د (واستفتحوا) يا راجع دې رسولانو ته او دا په معنې د فتحه سره دې يعنى رسولانو مدد طلب كړو د الله تعالى نه په خپلو دشمنانو باندې چه كله دوى مايوسه شو د اسلام د هغوى نه لكه نوح ﷺ بددعا اوكړه چه (رَبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ دَيَّارًا) وغيره او يا دا په معنې د

---

۱ - **يو اهم وضاحت**

دا دَ والد محترم (سقى الله مرقده صيبَ الرّضوان) دَ تفسير ليكل شوى آخرى الفاظ دى. او هم دا ئ دَ ژوند آخرى عمل وؤ . چه پدې پسې ئ رُوح مبارك دَ الله جل جلاله په حضور كښې قيام اوكړواو دارِ فانى نه دارِ بقاء ته منتقل شو. دا دومره لويه ښائسته خاتمه دَ الله جل جلاله فضل او دَ والد محترم رحمه الله دَ قرآن او علوم نبوت سره دَ عشق . محبت نتيجه وه. الله جل جلاله دې دَ والد محترم رحمه الله دا خدمت قبول اوكرځوى او دا سعى دې سعيًا مشكورًا اوكرځوى (آمين)

چونكه دَ والد محترم رحمه الله دَ لاسه دا شروع شوې سلسله نيمګړې پريښودل مناسب نه وؤ، نو برادر محترم مولانا ثناء الله صاحب دا سلسله مخكښې روانه كړه او دَ سورة نحل تر آخر پورې دريم جلد مكمل شو

دې ځائ نه په آينده تفسير كښې بنياد دَ والد محترم رحمه الله دَ درس قرآن كيسټې ګرځولې شوى دى چه دا د هغوئ د زندګى معمول وؤ چه دَ مازديګر نه وروستو به ئ طلباؤ ته تفسير كولو . اګرچه په بعض مواضعو كښې دَ تحقيق دپاره دَ مختلفو تفاسيرو نه لكه روح المعانى، تفسير كبير. ابن كثير وغيره نه استفاده هم كړې شوې ده . انسان چونكه دَ نُقص نه خالى ندې نو پدې وجه دَ ټولو لوستونكو رونړو نه درخواست دې چه كچرته دَ دې تفسير په مطالعه كښې څه نقص مخې ته راشى نو په مطلع كولو به ئې تر قيامته شكر ګذار يو . او په آينده كښې به ئې تدارك هم اوكړې شى.

الفتاحة سره دي چه فيصلې ته وئيلې كيږي يعنى رسولانو طلب د فيصلې اوكړو د الله تعالى نه لكه چه په سورة الاعراف كښې دى چه ﴿رَبَّنَا افْتَحْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ قَوْمِنَا بِالْحَقِّ﴾ .او يا ضمير راجع دې كفارو ته او فيصلې طلب كوونكى كفار دى يعنى كافرانو د الله تعالى نه فيصله طلب كړه لكه چه په سورة الانفال كښې دى چې ﴿اللَّهُمَّ إِن كَانَ هَٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِندِكَ﴾ . ﴿وَخَابَ﴾ اشاره ده نتيجې د (واستفتحوا) ته ﴿كُلُّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ﴾ دا دواړه صيغې د مبالغې دى جَبّار هغۀ ته وئيلې كيږي چه د هيڅا حق په ځان نۀ منى او يا هغۀ ته وئيلې كيږي چه د ځان د پاسه څوك نۀ منى او (عنيد) معاند عن الحق ته وئيلې كيږي يعنى د ضد د وجې نه د حق نه ډډه كوونكې،قرطبى وائى دا دواړه اگر چه د لفظ په اعتبار سره جدا دى ليكن په دې آيت كښې د دواړو معنى واحده ده،او په دې جملې كښې خذف الايجاز دې فاء فصيحيه او معطوف عليه محذوف دى تقدير ئې داسې دې چه (استفتحوا ففتح لهم و ظفروا بما سألوا وخاب كل جبار عنيد) يعنى انبياء كرامو عليهم الصلوات والتسليمات چه كله د الله تعالى نه مددطلب كړو نو د الله تعالى مدد راورسيدو انبياء كرامو او د هغوى ملگرى كامياب شو او سركش اومعاندين هلاك او نقصان مند شو ﴿مِّن وَرَائِهِ جَهَنَّمُ﴾ په دې دوه آيتونو كښې تخويف اخروى تذكير بما بعد الموت ذكر كيږي تفصيلا د منكرينو د پاره په شپږو طريقو سره (۱)من ورائه جهنم (۲)ويسقى من ماء صديد (۳)يتجرعه (۴)لا يكاد يسيغه(۵)و ياتيه الموت (۶)و من ورائه عذاب غليظ — من په من ورائه كښې بيانى دې،او دا جمله بيان كوى د ﴿وَخَابَ كُلُّ جَبَّارٍ﴾ او (وراء) په نيز د بعضو دا د اضدادو نه دې مخ او وروستو دواړو دپاره استعماليږى دلته ترې نه مراد مخه ده لكه چه په ﴿وَكَانَ وَرَاءَهُم مَّلِكٌ﴾ كښې دې او په نيز د بعضو (وراء) د تورای نه دې او اسم دې د هر هغه د پاره چه هغه پټ وى ستا نه برابره خبره ده كه هغه وروستو وى يا مخې ته وى نو ددې وجې نه ددې اطلاق په مخې او وروستو دواړو باندې كيږى چه هغه اضداد وى او عذاب د جهنم هم پټ دې د دې وجه لفظ د وراء استعمال شو . او په نيز د بعضو (وراء) په معنې د بَعدُ سره راځى معنى د آيت دا ده چه ان الكافر بعد الخيبة يدخل جهنم ليكن اول قول زيات راجح دې ﴿وَيُسْقَىٰ مِن مَّاءٍ صَدِيدٍ﴾ واو عاطفه دې او معطوف عليه محذوف دې اى يلقى فيها ما يلقى و يسقى ، (صديد) وئيلى كيږى ما يسيل من اجسام اهل النار ته چه هغه

وینی او زوې دی. په نیز د اکثرو (صدید) بیان دې د (ماء) د پاره یعنی د جهنمیانو د اجسامو نه چه کوم وینې زوې راوځی هغه د دوی اوبه وی او قرطبی فرمائی چه دا کلام مبنی دې په تشبیه او په تمثیل باندې ای من ماء مثل الصدید یعنی داسې اوبه به ورکولې کیږی چه هغه په به بدبوئې او په بد ذائقې کښې به د صدید په مثل وی (اعاذنا الله منها) ﴿ يَتَجَرَّعُهُ ﴾ تجرع وتیلې کیږی ګوټ ګوټ څکلو ته او دا به د ډیر ګرموالی او ډیر بدبوئې د وجې نه به ګوټ ګوټ څکی ﴿ وَلَا يَكَادُ ﴾ ذکر د (لا یکاد) د مبالغې د پاره دې په تکلیف کښې ﴿ وَيَأْتِيهِ الْمَوْتُ ﴾ د دې نه مراد اسباب د مرګ دی د هر جهت نه لکه چه په سورة زمر کښې دی ﴿ لَهُم مِّن فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ مِّنَ النَّارِ وَمِن تَحْتِهِمْ ظُلَلٌ ﴾ او یا مکان نه هر هر عضو د جسد مراد ده او یا د دې نه مراد سخت غم او حزن دې ﴿ وَمَا هُوَ بِمَيِّتٍ ﴾ کله کله مرګ سبب د استراحت وی نو دوی به مړ کیږی هم نه چه آرام ورته ملاو شی بلکه د دوی روحونه به معلق وی په مرئ کښې نهٔ به خلې ته راځی چه مړ شی او نهٔ به په بنکته ځی چه د ژوند نه څه فائده حاصله کړی په دې کښې دلیل په دې خبرې دې چه اهل جهنم به فنا کیږی نه. لکه څنګه چه توهم کړې دې بعضو خلقو ﴿ وَمِن وَرَآئِهِ عَذَابٌ غَلِيظٌ ﴾ یعنی صدید د څکلو نه علاوه به نور هم سخت سخت عذابونه وی لکه طعام ضریع، زقوم، غسلین وغیره دی په دې کښې اشاره ده عدم انقطاع او شدت عذاب ته.

| مَثَلُ | الَّذِينَ | كَفَرُوا | بِرَبِّهِمْ | أَعْمَالُهُمْ | كَرَمَادٍ | اشْتَدَّتْ |
|---|---|---|---|---|---|---|

مثال دَ عملونو د هغه کسانو چه کفر ئ کړې دې په خپل رب باندې عملونه د هغوئ پشان دَ ایرې دی چه سخته وچلیږی

| بِهِ | الرِّيحُ | فِي | يَوْمٍ | عَاصِفٍ | لَا يَقْدِرُونَ | مِمَّا | كَسَبُوا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

په هغې باندې سیلئ په داسې ورځ کښې چه تیزې سیلئ والا وی ، نه به وی قادر هغوئ د هغه عملونو نه چه کړې ئ وی

عَلَىٰ شَيْءٍ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ الضَّلَالُ الْبَعِيدُ ﴿١٨﴾

په هیڅ ثواب باندې . دا خو خالص ګمراهی ده لرې (د حق نه).

﴿ مَثَلُ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ دا مثال بیانیږی د کفارو د اعمالو او دفع د یو توهم کیږی د مثال په ذریعه سره توهم دا کیدلو چه د دې کفارو خو ډیر ښه ښه کارونه او عملونه هم شته دې مثلا میلمستیا ورکول غلامان آزادول، صدقې ورکول، صله رحمی کول شو وغیر نو دا نیک اعمال

په دوی نه بکار راشی ؟ نو په دي آیت کښ د هغې جواب ذکر کيږی په طريقه د مثال سره حاصل ئې دا دې چه د دوی د دغې عملونو مثال داسې دې لکه چه د ايرو يو ډيرې وی او په هغې باندې يوه سخته طوفانی سيلئ راشی او ټوله ورځ دغه سيلئ اوچليږی او د ايرو دغه ډيرې والوځوی هيڅ شې هم پاتې نهٔ شی نو دغه شان د قيامت په هغه سخته ورځ کښ به د دوی دا ټول عملونه د ايرو د دغه ډيری په شان هباءًا منثوراً شی او يو عمل به ئې هم پکار رانشی،نود دوی کفر او شرك په شان د سخت طوفانی سيلئ دې،او د هغوئ دَ عملونو مثال په شان د ايرو دې،او د ايرو سره تشبيه ورکول کښ اشاره ده دې ته چه څنګه چه ايرې بې وقعته دی دغه شان د دوی عملونه هم بې وقعته دی او څنګه چه د ايرو نه فائده قليله غير معتد بها اخستلې کيږی نو دغه شان دوی هم د خپلو عملونو نه فائده قليله اخلی چه يوه دنيوی فائده ده (و ما متاع الدنيا فى الاخرة الا قليل) او د انجام په اعتبار سره به بالکلّ بې فائدې وی او څنګه چه ايره پيدا کيږی پس د لرګو سوځولو نه نو دغه شان دوی عملون هم په خاتمه على الشرك سره او سوزی او په شان د ايرې به شی ﴿ مَّثَلُ ٱلَّذِينَ ﴾ (مثل) مرفوع دې او په رفع کښ ئې مختلف توجيهات شوی دی ، سيبويه وائی چه رفع ئې بنا بر ابتدائيت ده چه دې مبتدا دې او خبر ئې محذوف دې او تقدير ئې داسې دې چه فيما سيتلى عليك مثل الذين كفروا – الخ او ﴿أَعۡمَٰلُهُمۡ كَرَمَادٍ﴾ دا جمله مستانفه ده چه واقع شوې ده په سوال د سائل کښ چه هغه د ماقبل نه مستفاد دې ګويا چه سائل سوال کړو چه (كيف مثلهم؟) نو الله رب العزة ورته اوفرمائيل چه ﴿أَعۡمَٰلُهُمۡ كَرَمَادٍ﴾ دويمه توجيه د بعضې نحاتو ده چه مثل په معنې د صفة سره دې او (مثل الذين) په معنې د (صفة الذين) سره دې لکه چه وئيلې کيږی چه صفة زيد عرضه مصون و ماله مبذول،دريمه توجيه د فراء ده هغه فرمائی چه دلته مضاف حذف دې چه هغه (اعمال) دې او اکتفاء شوې ده وروستو په دويم وار ذکر کيدلو سره په جانب د خبر کښ او تقدير د آيت داسې دې چه مثل اعمال الذين كفروا بربهم اعمالهم – الخ لکه چه څنګه چه په دې قول د الله تعالى کښ دی، (و يوم القيمة ترى الذين كذبوا – الخ ) نو په اصل کښ داسې دې چه (و ترى يوم القيمة – الخ) .څلورمه توجيه دا ده چه ﴿أَعۡمَٰلُهُمۡ كَرَمَادٍ﴾ دا بدل واقع شوې دې د ﴿ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِرَبِّهِمۡ﴾ نه او مبدل منه په حکم د تنجيې او ترك کښ وی او مقصود

﴿يَوْمٍ عَاصِفٍ﴾ ـ [illegible] كرمه د عامله مثال چه سو سي د [illegible]
[illegible] صفت دی د [illegible] د صفت [illegible] [illegible] دی [illegible] سحتی کری [illegible]
[illegible] دی خکه چه [illegible] صفت [illegible] د [illegible] د [illegible] سوی د [illegible] صفت [illegible] حو [illegible]
[illegible] ترجمه د [illegible] کری (يوم [illegible] يوم [illegible]) [illegible] لکه چه [illegible] [illegible]
[illegible] بوم عاصف ـ [illegible] سوی دی [illegible] عوض [illegible] او [illegible] دی [illegible] معدر دی [illegible]
﴿لَا يَقْدِرُونَ﴾ ضمير راجع دی کفارو ته او مراد د عدم قدرت نه په آخرت کښ دی
﴿ذَٰلِكَ﴾ مشار اليه دی د [illegible] مدلول د مثال دی او اسم اشاره بعيده ذکر شوه د وحي د [illegible]
[illegible] د ضلال د دوی د حق نه ﴿الضَّلَالُ﴾ يا په خپلې معنی سره دی او يا په معنی د هلاک او
خسران سره دی ﴿الْبَعِيدُ﴾ يا په خپلې معنی سره دی او يا په معنی د الکبير سره دی او تعبير
د الکبير نه په البعيد سره خکه او شو چه د دوی دا ټول عملونه په مرګ سره ضائع او بې فائدې
شو او د مرګ د وجې نه اوس ئې تلافی هم نشي کيدې

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ ۚ إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ
آيا نه ګوري[1] چه بيشکه الله تعالی پيدا کړي دي آسمانونه او ځمکه لپاره د حق که چرته وغواړي[2] نو فنا به کړي تاسو
وَيَأْتِ بِخَلْقٍ جَدِيدٍ ۝ وَمَا ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ بِعَزِيزٍ ۝ وَبَرَزُوا لِلَّهِ جَمِيعًا
او راولي به نوي مخلوق نوی سره او نه دی دا کار په الله تعالی باندې ګران او ميدان کښ به جمع شي[3] الله تعالی ته ټول
فَقَالَ الضُّعَفَاءُ لِلَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا إِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا فَهَلْ أَنتُم مُّغْنُونَ
پس اووايي هغه کسان چه کمزوري دي هغه کسانو ته چه لويي کړيده بيشکه مونږ وو ستاسو تابع پس آيا تاسو دفع کوونکي يئ
عَنَّا مِنْ عَذَابِ اللَّهِ مِن شَيْءٍ ۚ قَالُوا لَوْ هَدَانَا اللَّهُ
مونږ نه د عذاب د الله تعالی نه څه شي. دوی به او وائي که چرته هدايت کړې وې مونږ ته الله تعالی

١ دليل عقلی دوم
٢ بيان د دريمي واقعې . تخويف دنيوی
٣ بيان د څلورمي واقعې . تخويف اخروی

لَهَدَيْنٰكُمْ ؕ سَوَآءٌ عَلَيْنَآ اَجَزِعْنَآ اَمْ صَبَرْنَا مَا لَنَا مِنْ مَّحِيْصٍ ﴿۲۱﴾

نو مونږ به هدایت کړې وؤ تاسو ته. برابردي حالت زمونږ که فریاد وکړو او که صبر کوو مونږ. نشته دي مونږ لره خاي د تښتيدلو

﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ﴾ په دې کښ دویم دلیل عقلی ذکر کیږی په وحدانیت د الله تعالی باندې حاصل د آیت دا دې چه خالق او معبود صرف الله دې ځکه چه د زمکې او اسمانونو تخلیق الله رب العزت په داسې قدرت کامله سره کړې دې چه دې ته د بصیرت په نظر اوکتلې شی نو د الله تعالی دتوحید او د وحدانیت سرګند دلائل دی په کښ ﴿بِالْحَقِّ﴾ جار مجرور متعلق دی په «خلق» پورې او با په خپله معنې سره دی چه ملابست ده او حق په معنی دحکمت سره دې اومقصد دا دې چه الله تعالی زمکی او اسمانونه پیدا کړې دی چه متلبس دی په حکمت کامله بالغه سره چه دا دلیل دې د وحدانیت د الله تعالی او یا «با» په معنی د لام سره ده او الف لام عوض د مضاف محذوفه نه راغلې دې ای لاظهار الحق چه هغه توحید دې ابن جریر طبری رحمه الله فرمائی فتعلم ان الله انشاء السموات والارض بالحق منفردا بانشائها بغیر ظهیر ولا معین او یا مراد دحق نه غرض صحیحه دې چه دا زمکې عبث او فضول نهٔ دی بلکه ددې نه یو صحیح غرض دې چه هغه استدلال دې په دوی سره په قدرت الله تعالی باندې ﴿إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ﴾ دا تذکیر بایام الله ذکرکیږی په دریم وار، یعنی په دریم وار بیان د وقانعوکیږی اوتخویف دنیوی ذکر کیږی. ﴿وَبَرَزُوا لِلَّهِ جَمِيعًا﴾ دا تخویف اخروی ذکر کیږی په څلورم ځل. دا عطف دې په مضمون د ما قبل باندې ای لما استفتحوا فاهلکوا ثم بعثوا للحساب فبرزوا لله جمیعا، او ضمیر راجع دې مطلقا خلائقو ته ابراز اګر چه په لغت کښ ظهور بعد الاستتار ته ونیلې کیږی او دا معنې په الله تعالی کښ محاله ده خو دلته «لله» کښ لام تعلیلیه دې او مضاف مقدر دې چه هغه «حِسابٌ» دې یعنی فبرزو لاجل حساب الله تعالی وحکمه او یا دا کلام واقع شوې دې د کافرانو د اعتقاد موافق ځکه چه د هغوی اعتقاد دا وو چه زمونږ فواحش په الله باندې مخفی دی نو د قیامت په ورځ به دوی ته علم راشی چې دا خو تول الله تعالی ته معلوم وو او هیڅ شئ هم په الله تعالی باندې مخفی نهٔ وو. نو د دوی د استتار دعقیدې په وجه لفظ د برزوا راوړې شو. تعبیر د دې نه او په مابعد کښ د الفاظو نه په ماضی سره او سو دوجې د تعین نه ﴿فَقَالَ الضُّعَفَاءُ﴾ ضعفاء نه مراد ضعفاء فی الفهم والعقل والرائی دی چه

هغه اتباع دی ﴿لِلَّذِينَ اسْتَكْبَرُوٓا﴾ ددې نه مراد د هغوئ يعنى د كفارو مشران دى چه اعراض او تكبر ئ كړې دې د ايمان او د اطاعت د رسول ﷺ نه د دې نه معلومه شوه چه اتباع نه مراد مطلقا اتباع او مقلدين نه دى مراد بلكه هغه اتباع مراد دى چه هغه اتباع د مستكبرين عن الحق وى، چه گمراهى ورنه خوريږى نو د هغوى به يو بل سره دقيامت په ورځ مجادله او منازعه وى، او اتباع د نيكانو خلقو او د ائمه مجتهدينو داسې متابعت مستحسن بلكه نن صبا واجب دې حضرت شيخ القرآن رحمه الله به فرمائيل چه : (اس سے مراد حکام سوء، رہبان سوء او رعلماء سوء ہیں اور آجکل لیڈران سوء بھی اس میں شامل ہیں)

﴿إِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا﴾ جمع د تابع ده لكه چه خادم جمع كيږى په خدم سره او مقصد دا دې چه دوى به وائى مونږ تابع ووستاسو په تكذيب د رسولانو كښ ﴿فَهَلْ أَنتُم مُّغْنُونَ عَنَّا﴾ استفهام يا په خپله معنى دې ځكه چه د جهنم ځنى امور د كفارو نه مخفى وى لكه د دوى دا قول چه (يخفف عنا يوم من العذاب) او يا استفهام توبيخى دې او د (غِنا) صله كښ چه عن راشى نو په معنى د دفعيه سره وى ﴿مِنْ عَذَابِ اللَّهِ مِن شَيْءٍ﴾ اول من د بيان دپاره دې او دويم من تبعيض د پاره دې (اى هل انتم دافعون عنا بعض الشئ الذى هو عذاب الله تعالى) او تقديم د من بيانيه په خپل مبيّن باندې په نيز د بعضو جائز دې او يا من په دواړو ځايونو كښ د تبعيض د پاره دې (اى هل انتم مغنون عنا بعض الشئ هو بعض عذاب الله تعالى) او دا د تاكيد دپاره دې يعنى كم نه كم عذاب دفعيه كولې شئ؟ ﴿قَالُوا﴾ دا اعتذاراً جواب دې د مشرانو له طرفه ﴿لَوْ هَدَىٰنَا اللَّهُ﴾ كه مونږ ته نجات او د خلاصى لاره ملاو شى نو تاسو به هم خلاص كړو. او په سورة مؤمن كښ جواب د مشرانو د طرفه داسې ذكر دې چه ﴿إِنَّا كُلٌّ فِيهَآ إِنَّ اللَّهَ قَدْ حَكَمَ بَيْنَ الْعِبَادِ﴾ وجه دا ده چه دلته دا مخاصمه به په ميدان حشر كښ وى او هلته چه كومه مذكور ده هغه په جهنم دته تللو نه وروستو وى، ﴿سَوَآءٌ عَلَيْنَآ أَجَزِعْنَآ﴾ دنيا كښ كله كله د سړى په جزعه او فزعه باندې خلاصې اوشى او په صبر ورته څه كشادگى راشى (الصبر مفتاح الفرج) ليكن په آخرت كښ به په جزعه فزعه باندې خلاصيدلې نه شى او نه به په صبر ورته څه فائده ملاو شى

وَقَالَ الشَّيْطٰنُ لَمَّا قُضِيَ الْاَمْرُ اِنَّ اللّٰهَ وَعَدَكُمْ وَعْدَ الْحَقِّ

او وبه وائي شیطان هرکله چه فیصله شي دا ټوله خبره چه بیشکه الله تعالی یوه وعده کړې وه تاسو سره وعده حقه

وَوَعَدْتُّكُمْ فَاَخْلَفْتُكُمْ ؕ وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ اِلَّاۤ اَنْ

او ما وعده کړې وه تاسو سره پس مادروغ وئیلې وو تاسوته. اونه وو زما لپاره په تاسو باندې څه قسم زور بغیر د دې نه

دَعَوْتُكُمْ فَاسْتَجَبْتُمْ لِيْ ۚ فَلَا تَلُوْمُوْنِيْ وَلُوْمُوْۤا اَنْفُسَكُمْ ؕ

چه ما تاسو ته بلنه درکړه پس قبوله کړه تاسو بلنه زما پس مه ملامت کوئ تاسو ما لره او ملامت کړئ خانونه خپل

مَاۤ اَنَا بِمُصْرِخِكُمْ وَمَاۤ اَنْتُمْ بِمُصْرِخِيَّ ؕ اِنِّيْ كَفَرْتُ بِمَاۤ اَشْرَكْتُمُوْنِ

نه یم څه فریاد رسان ستاسو اونه تاسو فریاد رسان یئ زما بیشکه ما انکار وکړو دهغې نه چه تاسو شریك جوړ کړې وؤ ما لره

مِنْ قَبْلُ ؕ اِنَّ الظّٰلِمِيْنَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ وَاُدْخِلَ الَّذِيْنَ

مخکښې د دې نه (په دنیا کښې) ، بیشکه د ظالمانو لپاره عذاب دې دردناك او داخل به کړې شي[1] هغه کسان

اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ

چه ایمان ئې راوړې دې اوعملونه ئې کړیدی نیك داسې جنتونو ته چه بهیږی به لاندې دَ بنګلو دهغو نه نهرونه

خٰلِدِيْنَ فِيْهَا بِاِذْنِ رَبِّهِمْ ؕ تَحِيَّتُهُمْ فِيْهَا سَلٰمٌ ۝

همیشه به وی په هغې کښې په توفیق درب خپل سره ، آداب د ملاقات د دوئ به په جنت کښې سلام وی

﴿ وَقَالَ الشَّيْطٰنُ ﴾ په ما قبل آیت کښې مخاصمه د انسی رؤساو او د هغوی د اتباعو ذکر وه په دې آیت کښې مخاصمه په ما بین د انسانانو ا ود ابلیس لعین ذکر کیږی چه هغه د ټولو کفارو رئیس دې او دغه شان تخویف اخروی هم ذکر کیږی په براءت د شیطان سره د خپلو اتباعو نه ،کله چه کافر په جهنم کښې واچولې شی نو دا جهنمیان به په خپلو رؤساو باندې لعن طعن شروع کړی چه مونږ ستاسو خبرې منلې وې ځکه مونږ ته سزا راکولې شی،نو لهذا اصل

---

[1] - بشارت اخروی .

مجرمان تاسو يئ نو هغه رؤسا به شيطان ملامت كوى چه مونږ او زمونږ اتباعو ستاسو خبره منلي وه ځكه مونږ ته سزا راكولې شى او اصل مجرم خو ته يئ لهذا ټوله سزا تا له ردكول پكار دى، اودا درخواست به كفار الله تعالى ته هم اوكړى، نو په جهنم كښې به شيطان له يو منبر د اور كيخودلې شى چه هغې سره به شيطان ته ټول جهنميان ښكارى او دې به ټولو ته ښكارى او بيا به يو تقرير شروع كړى چه هغه په دې آيت كښې ذكر دې ﴿لَمَّا قُضِيَ ٱلْأَمْرُ﴾ الامر نه مراد يا عذاب دې يعنى چه كله عذاب په دوى باندې واقع او متحقق شى او يا ترې نه مراد حساب او كتاب نه فراغت دې چه اهل جنت جنت ته لاړ شى او اهل جهنم جهنم ته ﴿وَعَدَكُمْ﴾ (فَصَدَقكم) ورسره مقدر دې ﴿فَأَخْلَفْتُكُمْ﴾ په معنې د (كذبتُكم) سره دې او يا پخپلې معنې سره دې او مفعول ثانى ورله مقدر دې اى الوعد ﴿وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُم مِّن سُلْطَٰنٍ﴾ دَ سلطان معنى ده زور زبردستى، يعنى څه په زور زبردستئ مې تاسو نه وئ مجبوره كړې او نهٔ مې درباندې څه زور وو او دا حصر د نفى په نسبت سره اضلال ته دې يعنى د شيطان د انسان په ګمراه كولو كښې څه قسمه زرو نيشته دې، باقى پاتې شول نور قسم مضرتونه نو هغه شيطان انسان ته رسولې شى لكه حديث كښې راغلې دى: (ما من مولود يولد الا وقد مسه الشيطن — الخ) يا دغه شان ځنې بيماريو ته شيطانى اثر وئيلې شوې دې، يا د انسان بيهوشه كول، كاڼړى ويشتل وغيره شو خو دا واقعات اكثر مخى ته ځكه نهٔ راځى چه د انسان حفاظت دپاره الله تعالى فرشتې مقرر كړې دى چه هغه د انسان حفاظت كوى ﴿إِلَّآ أَن دَعَوْتُكُمْ﴾ په نيز د اكثرو مفسرينو استثناء منقطع ده په معنې د (غيرُ) سره ځكه چه دعوت د شيطان د جنس د سلطان نه نهٔ دې او د دې نه معلومه شوه چه شيطان صرف وسوسې اچوى نور هيڅ كار هم په اضلال د انسان كښې نهٔ شى كولې، ﴿فَلَا تَلُومُونِي﴾ يعنى تاسو ما مهٔ ملامته كئ ځانونه ملامت كړئ، ځكه چه الله رب العزت حق او باطل دواړه پيدا كړې وو، خو الله تعالى حق په دليل او په حجت سره مبرهن كړو او ما باطل په دروغو سره ښائسته كړو نو تاسو د الله تعالى خبره چه په دلائلو او په حجت سره محكمه وه هغه خو پريخوده او زما خبره مو بلا حجته اومنله او كسب مو د باطل او كفر اوكړو ﴿مَّآ أَنَا۠ بِمُصْرِخِكُمْ﴾ صيغه د اسم فاعل ده چغې ويستونكې ته وئيلې كيږى په لغت كښې بيا استعمال شو د پاره د مدد يعنى زهٔ ستاسو مدد ګار نهٔ شم جوړيدلې، او

(من العذاب) ورسره مقدر دي.اول زجر وو د شيطان له طرفه اوس تبرئيه ذکر کيږي د شيطان د طرفه ﴿وَمَآ أَنتُم بِمُصۡرِخِيَّ﴾ ای فيما يخص من العذاب يعنی چه په کومه نوعه د عذاب سره چه زه خاص يم په هغې کښې تاسو زما څه امداد نۀ شئ کولي ﴿إِنِّي كَفَرۡتُ بِمَآ أَشۡرَكۡتُمُونِ﴾ کفر يا په معنې د انکار سره دې او ما په (بما اشرکتمونی) کښې مصدريه ده چه مدخول خپل ئ په تاويل د مصدر سره ګرځولې دې او ﴿مِن قَبۡلُ﴾ جار مجرور متعلق دې په اشرکتمونی پورې ای کفرت باشراککم ایای لله تعالی فی الطاعة يعنی نۀ منم چه تاسو زۀ شريك ګرځولې ووم د الله تعالی سره په اطاعت کښې او يا ما موصوله ده په معنی د من سره او کفر په خپله مصطلحه معنې سره دې او ﴿مِن قَبۡلُ﴾ جار مجرور متعلق دې په کفرت پورې او عائد چه ضمير دې هغه په کښې محذوف (ای انی کفرت من قبل من اشرکتمونيه) يعنی مخکښې هم ما کفر کړې وو چه هغه د حضرت آدم ﷺ ته د سجدې نه انکار کول وو بيا هم تاسو ما لره شريك او ګرځولو د الله تعالی سره ،ليکن احتمال اول زيات راجح دې ﴿إِنَّ ٱلظَّٰلِمِينَ لَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٞ﴾ په ظاهر کښې دا قول د ابليس لعين د تقرير د تتمې نه دې او د هغه قول دې او بعض فرمائی چه د ابليس خطبه په (من قبل) باندې پوره شوه او دا قول د الله تعالی دې او بعض فرمائی چه دا قول د خزنة جهنم دې (والله اعلم و علمه اتم و احکم) ﴿وَأُدۡخِلَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ﴾ دا بشارت اخروی ذکر کيږی ﴿جَنَّٰتٖ تَجۡرِي﴾ فی پکښې مقدر دې ځکه چه دخول په غير د فی نه نشی متعدی کيدلې ﴿بِإِذۡنِ رَبِّهِمۡ﴾ ای بتوفيق ربهم اشاره ده تعظيم د اهل جنت ته او دغه شان په دې کښې اشاره ده دې خبرې ته چه جنت ته داخليدل محض په فضل د الله سره دی لکه چه په حديث کښې ذکر دی ﴿تَحِيَّتُهُمۡ فِيهَا سَلَٰمٌ﴾ سلام د سلامتئ نه دې، په دنيا کښې سلام دعا ده د سلامتئ غوښتلو دپاره او په اخرت کې سلام مبارکباد دې د په سلامتی ملاويدلو باندې

**أَلَمۡ تَرَ كَيۡفَ ضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلٗا كَلِمَةٗ طَيِّبَةٗ كَشَجَرَةٖ طَيِّبَةٍ أَصۡلُهَا ثَابِتٞ**

آيا نه ګورې[1] ته چه څنګه بيان کړيدې الله تعالی يو مثال: کلمه پاکه (کلمه توحيد) پشان د ونې پاکې ده چه زيلې دهغې کلکې دی

---

۱ - دليل نقلی اجمالی ، تمثيل د توحيد دپاره

وَفَرْعُهَا فِي السَّمَآءِ ۝ تُؤْتِيٓ أُكُلَهَا كُلَّ حِينٍۢ بِإِذْنِ رَبِّهَا ۗ وَيَضْرِبُ اللّٰهُ

او ښانګې دَ هغې په بلندئ کښې دی. ورکوی میوې خپلې په هر وخت کښې په حکم دَ رب خپل سره او بیانوی الله تعالی

الْأَمْثَالَ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ۝ وَمَثَلُ كَلِمَةٍ خَبِيثَةٍ كَشَجَرَةٍ خَبِيثَةٍ

مثالونه لپاره د خلکو د دې لپاره چه دوئ نصیحت قبول کړی. او مثال د کلمې (۱) پلیتې په شانته دَ بوټی پلیت دې

اجْتُثَّتْ مِن فَوْقِ الْأَرْضِ مَا لَهَا مِن قَرَارٍ ۝ يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِينَ

چه ویستلې شوې وی دپاسه د ځمکې نه. نړی د هغې دپاره څه مضبوطوالې مضبوطوی الله تعالی هغه کسان

ءَامَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ ۖ وَيُضِلُّ اللّٰهُ

چه ایمان ئې راوړې دې په هغه قول مضبوط سره په ژوند د دنیا کښې او په ژوند د آخرت کښې او خطا کوی الله تعالی

الظَّٰلِمِينَ ۚ وَيَفْعَلُ اللّٰهُ مَا يَشَآءُ ۝

ظالمانو لره او کوی الله تعالی هغه څه چه خوښه ئې شی.

﴿ أَلَمْ تَرَ كَيْفَ ﴾ دا مسئله د توحید بیانیږی په ضمن د مثال کښې حضرت شیخ القرآن په نیز دا اول دلیل نقلی اجمالی ذکر کیږی د انبیاؤ سابقینو نه، او په نیز دعامو مفسرینو دا یو مثال ذکر کیږی. تعبیر په (الم تر) سره د پاره د ایقاظ او د تنبیه د مخاطب دې، د حضرت شیخ القرآن په نیز خلاصه دا ده چه توحید د شجره طیبه چه هغه کهجوره ده دهغې په شانتې پائیدار او مضبوط دې زیلئ ئې کلکې دی په ټوله دنیا کښې خورې دی او په هر دور کښې انبیاء کرامو علیهم السلام د هغې دعوت او تبلیغ کړې دې او په هر دور کښې موحدینو ترې نه فائده اخستې ده او شرک په منزله د شجرهٔ خبیثه دې جچه هغه مرغونې (حنظل) دې چه ناپائیدار دې او ښانګې ئې هم په زمکه باندې پرتې دی، انبیاء کرامو په خپلو دلائلو سره په هر دور کښې رد کړې دې، او په نیز د عامو مفسرینو د مثال خلاصه دا ده چه الله تعالی د کلمه توحید چه هغه لا اله الا الله ده د دې مثال د کهجورې د ونې سره ورکوی چه د هغې زیلې په

زمکه کښ لاندې پورې کلکې ننوتې وی دغه شان کلمه هم د هر مؤمن په قلب کښ مضبوطه ده چه تعبير ترې نه په تصديق قلبی سره کيږی او څنګه چه د ونې د پاره تنه او شاخونه وی دغه شان د کلمې د پاره اقرار لسانی او اعمال دی څنګه چه د کهجورې ونې د پاره ميوه وی چه فائده ورنه اخستلې کيږی دغه شان د کلمې دپاره هم ميوه ده چه مؤمن ترې نه په هر وخت او په هر حالت کښ خواه دنيا ده که قبر دې او که اخرت فائده ترې نه اخلی. وتصديق قلبی عين ايمان دې او دا نور ورله اجزاء تزئيينه او وجه د شبهې په کښ هغه منافعه کثيره دی باقی د کهجور د انسان سره په ديرو اوصافو کښ مشارکت دې (١) په حديث کښ ورته د انسان عمه (ترور)وئيلې شوې دی لکه اکرموا عمتكم النخلة وجه دا بيانيږی چه نخله الله تعالی دما بقی من طين آدم نه پيدا کړې ده،خو دا حديث علامه ابن جوزی رحمه الله فرمائی چه هذا حديث لا يصح عن رسول الله يعنی دا موضوعی دې (٢) څنګه چه انسان په سر قلم کولو سره مړ کيږی دغه شانتې کهجوره هم په سر کټ کولو سره اوچيږی (٣) څنګه چه د انسان سر په اوبو کښ ډوبولو سره مړ کيږی دغه شان د کهجورې سر په اوبو کښ ډوبولو سره اوچيږی. (٤) څنګه چه انسان په توالد او تناسل کښ وظيفې د زوجيت ته محتاج دې دغه شانتې کهجوره کښ له ميوې د پاره تابير کيږی، (٥) څنګه چه د انسان د منی يو مخصوص بويې وی دغه شانتې د کهجور په ګنګانو (خوشه)کښ هم د هغې په شان بوئې وی.خو دا ټول په مطلق انسان کښ وی اوکهجوره په دې ټولو اوصافو کښ د مطلق انسان سره شريکه ده خو د مؤمن سره خصوصی شراکت په منافع کثيره او په ارتفاع کښ ده او په کلکوالی کښ ده﴿ مَثَلًا كَلِمَةً ﴾ (مثلا) مبدل منه دې او (كلمة) ورله بدل واقع شوې دې او د نحاتو دا قانون چه مبدل منه په حکم د تنحيې او د ترک کښ وی نو دا قانون اکثری دې کلی نهٔ دې، ﴿ كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ ﴾ مراد ترې نه د کهجورې ونه ده لکه په حديث د ابن عمر رضی الله عنه کښ دی﴿ أَصْلُهَا ثَابِتٌ ﴾ نو دا تصديق قلبی مراد شو او تنه ورله په مثال د اقرار لسانی ده ﴿ وَفَرْعُهَا فِي السَّمَاءِ ﴾ نو دا اعمال صالحه شو﴿ تُؤْتِي أُكُلَهَا ﴾ مراد ورنه د هغې ثمر دی او دا اعمال صالحه شو، ﴿ كُلَّ حِينٍ ﴾ استغراق ياعرفی دې او مراد ترې نه هر حين د ميوې دې يعنی چه کله هم حين د ميوې وی نو دا ميوه ورکوی او يا استغراق حقيقی دې او د کهجورې نه ټول کال فائده اخستلې کيږی او په هر وخت او په هر موسم کښ خوړلې کيږی﴿ وَمَثَلُ كَلِمَةٍ خَبِيثَةٍ ﴾ دا د شرک مثال ذکر کيږی کلمه خبيثه نه مراد

شر کيه کلمه ده ﴿ كَشَجَرَةٍ خَبِيثَةٍ ﴾ مراد ترې نه حنظل يعنى مرغونې دې لکه چه په حديث د حضرت انس ﷺ کښې دى اگر چه هغه اونه نۀ ده ليکن اطلاق پرې د ونې مجازا شوې دې يعنى چه څنگه بوټى د مره غونى بدمزه او بيکاره وى دغه شان کلمه شرکيه هم بدمزه ده او مره غونې چه څنگه د هغه دپاره زيلى کلکى نۀ وى او د زمکې د پاسه راخيژى او په معمولى غوندې جهټکې سره خيژى او په پورته نه اوچتيږى څه فائده ترې نه د ميوې نه شى اخستلې نو دغه شان شرک هم دې څه مضبوطى ورله نشته دې اعما ل صالحه د شرک د وجې نه په پورته الله تعالى ته نۀ ځى يعنى اجابت ئې نۀ کيږى او مشرک ته څه فائده هم نۀ ملاويږى.

﴿ يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ ﴾ دا بشارت ذکر کيږى مؤمنين د پاره ﴿ بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ ﴾ مراد د دې نه لا اله الا الله دې چه دا قول ثابت کړې شوې دې په قلب د مؤمن کښې په حجت سره ﴿ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ﴾ يعنى د دنيا په زندگئ کښې که څه تکليفات ازمائشونه مصائب راشى نو الله تعالى مؤمن په ايمان باندې مضبط ساتى او مدد ئې کوى ﴿ وَفِي الْآخِرَةِ ﴾ مراد د دې نه قبر او د نکير منکر سوال او جواب دې چه په هغې کښې به هم الله رب العزة د مؤمن امداد کوى لکه په صحيح روايت کښې د حضرت براء بن عازب ﷺ نه منقول دى چه فرمائى چه حضور ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه اذا اقعد المؤمن فى قبره اتاه اتٍ ثم يشهد ان لا اله الا الله و ان محمدالرسول الله فذلك قوله ثيبت الله الذين امنوا بالقول الثابت فى الحيوة الدنيا و فى الاخرة (رواه البخارى)

﴿ وَيُضِلُّ اللَّهُ الظَّالِمِينَ ﴾ دا تخويف ذکر کيږى چه د چا په زړه کښې تصديق نۀ وى او صرف اقرار لسانى وى چه هغه منافق دې نو په دنيا کښې به هم گمراه وى او په قبر کښې به هم سوال اوجواب کښې به خطاء کيږى   کما ورد فى حديث انس ﷺ اما المنافق او الكافر فيقال له ما كنت تقول فى هذا الرجل فيقول لا ادرى كنت اقول ما يقول الناس فيه،فيقال ما دريت و لا تليت ثم يضرب بمطرقة من حديد ضربة بين اذنيه فيصيح صيحةيسمعها من يليه غير الثقلين (رواه مسلم) د دې نه معلومه شوه چه مراد د ظالمينو نه په دې ځائې کښې هغه منافقين دى.

| أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ بَدَّلُوا نِعْمَتَ اللَّهِ كُفْرًا وَأَحَلُّوا قَوْمَهُمْ دَارَ الْبَوَارِ ﴿٢٨﴾ |
|---|
| آيا نه گورې ته [1] هغه کسانو ته چه بدل کړې ئ دې نعمت د الله تعالى په کفر سره او نازل ئ کړو قوم خپل په کور د هلاکت کښې |

١ - د پنځمې واقعې بيان ، تخويف اخروى

جَهَنَّمَ ۚ يَصْلَوْنَهَا ۖ وَبِئْسَ الْقَرَارُ ۝ وَجَعَلُوا لِلّٰهِ أَنْدَادًا

چه هغه جهنم دې ، داخل به شي په هغې کښې او ډیر بد ځائ د اوسیدو دې گرځولي وؤ دوئ [۱] د الله تعالی سره شریکان

لِيُضِلُّوا عَنْ سَبِيلِهِ ۗ قُلْ تَمَتَّعُوا فَإِنَّ مَصِيرَكُمْ إِلَى النَّارِ ۝

لپاره د دې چه بې لارې کړی خلق د دین د الله تعالی نه. وه وایه نه ورته چه فائده واخلئ تاسو پس بیشکه ورتلل ستاسو اورته دی

قُلْ لِعِبَادِيَ الَّذِينَ آمَنُوا يُقِيمُوا الصَّلَاةَ وَيُنْفِقُوا مِمَّا

او وه وایه ته زما هغه بندگانو ته [۲] چه ایمان ئ راوړې دې پابندی دې کوی د مونځونو او خرچ کوی دی د هغه څیزونو نه

رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَ يَوْمٌ لَا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خِلَالٌ ۝

چه مونږ دوئ ته ورکړیدی په پټه او په څرگنده مخکښې د دینه چه راشي هغه ورځ چه نه به وي خرخول په هغې کښې نه به دوستان وي

﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ﴾ دا زجر ذکر کیږی او بیان د پنځمې واقعې کیږی او تعبیر ترې په ﴿أَلَمْ تَرَ﴾ اوشو د پاره د استعجاب او مراد په ﴿الَّذِينَ بَدَّلُوا﴾ سره مشرکین مکه دی. ﴿نِعْمَتَ اللّٰهِ﴾ (کفر) با مضاف دې مقدر دې (ای شکر نعمت الله و وضعوا موضعه کفرا) او یا نفس نعمت تبدیلی په نفس کفر سره مراد ده او مراد د نعمت الله نه بعثت د حضور ﷺ دې په ټولو نعمتونو کښې لوئي نعمت د حضور ﷺ بعثت دې او دا نعمت د ټول کائنات دپاره عمومی او د قریش او د مشرکینو د مکې دپاره خصوصی دې چه رحمة اللعلمین ﷺ د دوی د قوم او د خاندان نه مبعوث شو،څه رنگه چه یو لیډر یو مشر د قوم دپاره باعث د فخر وی دغه شان د دوی د پاره په خصوصی توگه او د ټولو مسلمانانو د پاره په عمومی توگه حضور ﷺ باعث د فخر وو او دې،حضرت ابوهریرة ﷺ فرمائی چه حضور ﷺ ارشاد اوفرمائیل چه : والذی نفس محمد بیده لیاتینّ علی احدکم یوم و لا یرانی ثم لان یرانی احب الیه من اهله و ماله و معهم (رواه مسلم) نو د دومره لوئې نعمت کفار مکه ؤ قدر اونه کړو بلکه په کفر سره ئې بدل کړو ﴿قَوْمَهُمْ﴾ مراد ترې اتباع دی ﴿دَارَ الْبَوَارِ﴾ بوار هلاکت ته وئیلې کیږی دلته ترې نه مراد جهنم دې﴿ جَهَنَّمَ

۱ - زجر

۲ - امر مصلح . د درې امورو بیان لپاره د دفع دعذاب

﴿يَصْلَوْنَهَا﴾ دا بيان د بوار دي، ﴿وَجَعَلُوا﴾ داعطف دي په (أحلوا) باندې او تفسير دي دپاره د (كفرا) يعنى الم تر الى الذين بدلوا نعمت الله كفرا جعلوا لله انداد — الخ ﴿قُلْ تَمَتَّعُوا﴾ امر دپاره د تهديد دي او صاحب د مدارك فرمائي چه تمتع وئيلې كيږي ان يقضى العبد ما استطاع من شهوته يعني انسان د خپل وس مطابق خپل ټول شهوات پوره كړي په دې كښې اشاره ده دې خبرې ته چه دوى دپاره صرف د دنيا زندگى ده او د هغې عيش او عشرت دې فقط ﴿قُل لِّعِبَادِيَ﴾ په دې آيت كښې دوه امور دفعيه د عذاب ذكر كيږي چه په هغې كښې يو امر مصلح دي چه اقامت د صلوة او انفاق دې او نسبت د عباد، الله رب العزت خپل ځان ته اوكړو دپاره تكريم او تشريف، ﴿يُقِيمُوا الصَّلَوٰةَ﴾ په اصل كښې (ليقيموا) يعني امر غائب بالام وو په قرينه د قل امر سره ځكه چه د يو امر دوجې نه د بل امر نه لام حذف كيدې شى ﴿وَيُنفِقُوا﴾ انفاق نه هر قسمه انفاق مراد دې كه انفاق وجوبى وى لكه زكوة شو يا انفاق نفلى وى لكه نفلى صدقهٔ شوه ﴿سِرًّا وَعَلَانِيَةً﴾ په صدقه كښې پټ والې بهتر دې خو كله كله ترغيب للغير د وجې نه علانية هم افضله وى او يا دَ (سراً) نه صدقه نفليه مراد ده او دَ (علانيةً) نه صدقات واجبه ﴿يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خِلَالٌ﴾ نفى د خلت په حق د كافر كښې ده لكه چه تفصيل په سوة بقرة كښې ﴿وَلَا خُلَّةٌ وَلَا شَفَاعَةٌ﴾ كښې تير شوې دي.

| اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَاَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَخْرَجَ |
|---|
| الله تعالى هغه ذات دي [1] چه پيدا كړي ئ دى آسمانونه او ځمكه او را ورى دَ آسمان دَ طرف نه اوبه پس راوباسى |
| بِهٖ مِنَ الثَّمَرٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ وَسَخَّرَ لَكُمُ الْفُلْكَ لِتَجْرِيَ فِي الْبَحْرِ |
| پدې سره د ميوؤ نه چه رزق دې ستاسو دپاره او پكار ئ لګولى دى ستاسو دپاره كشتئ چه چليږى په درياب كښې |
| بِاَمْرِهٖ وَسَخَّرَ لَكُمُ الْاَنْهٰرَ ﴿۳۲﴾ وَسَخَّرَ لَكُمُ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ |
| په حكم د الله تعالى سره او په كار ئ لګولى دى ستاسو لپاره نهرونه . او په كار ئ لګولى دى ستاسو دپاره نمر او سپوږمئ |

١ - دريم عقلى دليل د توحيد دپاره

| دَآىِٕبَيْنِ ۚ وَسَخَّرَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ ۝ وَاٰتٰىكُمْ مِّنْ كُلِّ مَا |
| --- |
| چه برابر روان دي، او په کار ئ لګولی دي ستاسو لپاره شپه او ورځ او درکړي ي دي تاسو ته بعضې د هر هغه څيزونو نه |
| سَاَلْتُمُوْهُ ؕ وَاِنْ تَعُدُّوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ لَا تُحْصُوْهَا ؕ |
| چه تاسو ئ سوال کړې وؤ ، اوکه چرته شمارئ تاسو نعمتونه د الله تعالی نو نشئ شمارپوره کولی |
| اِنَّ الْاِنْسَانَ لَظَلُوْمٌ كَفَّارٌ ۝ |
| بيشکه انسان خامخا ډیر ظلم کونکې ناشکری کونکې دې |

﴿ اَللّٰهُ الَّذِیْ ﴾ دا دريم دليل عقلى تفصيلى ذکر کيږی چه مشتمل دې په علوی، جوی، سفلی په ټولو باندې ﴿وَسَخَّرَ لَكُمُ الْفُلْكَ ﴾ ، (وسخرلکم البحر) ئ اونه وئيل ځکه چه په عامه توګه دَ سيندونونه په کشتو کښې تلل راتلل، او دَ سامانونو اوړلو او راوړلو فائدې ډيرې حاصليږی، نو ځکه ئې د (فلك) ذکر اوکړو، او په نهرونو کښې د څکلو اوبو او د زراعت فائده ډيراخستې کيږی ددې وجې نه د ﴿وَسَخَّرَ لَكُمُ الْاَنْهٰرَ ﴾ ذکر اوکړې شو. ﴿ وَسَخَّرَ لَكُمُ الشَّمْسَ ﴾ د تسخير معنی ده په کار باندې لګول او لام په دې ټولو مواضعو کښې د پاره د انتفاع دې او مقصد دا دې چه دا ټول څيزونه ستا سو پکار کښې لګولې شوې دی شيخ سعدی رحمه الله فرمائی چه :

ابر و باد و مه و خورشید و فلک درکانده تا تو نانی بکف آری و بہ غفلت نہ خوری

ہمہ از بہر تو سرگشتہ و فرمانبردار شرط انصاف نہ باشد کہ تو فرمان نبری

بعض اهل بدعو دا آيت به دې خائې کښې د غلط مقصد د پاره بيان کړې دې،هغوی وائی چه لام په دې ټولو ځايونوکښې دپاره د اختصاص دې، او د تسخير معنی ده تابع کول، او ضمير د خطاب عبارة دې د حضرت قطب الاقطاب شيخ عبدالقادر جيلانی رحمه الله نه اومقصد دا دې چه دا ټول څيزونه د حضرت شيخ عبدالقادر جيلانی رحمه الله تابع دی او هغه ته قوة تصرفه د خدائې والا حاصل دې،لکه په قصيده حدائق بخشش کښې په قافيه ياء کښې او دغه شان په قافيه را کښې موجود دی ليکن د دوی استدلال په يو څو وجوهو سره باطل دې اولاً ټولو

مفسرينو تصريح کړې ده چه لام په دې ټولو مواضعو کښ د پاره د انتفاع دې **ثانياً** (لکم) ضمير جمع ده تخصيص ئې په شيخ عبدالقادر جيلانی رحمه الله پورې بلا دليل دې **ثالثاً** د قرآني نصوص نه معلومه ده چه دا قوة الله رب العزت بل چا ته نۀ دې ورکړې بلکه دا ټول څيزونه د الله تعالى د حکم تابع دی لکه په سورة النحل کښ دی ﴿وَسَخَّرَ لَكُمُ ٱلَّيْلَ وَٱلنَّهَارَ وَٱلشَّمْسَ وَٱلْقَمَرَ وَٱلنُّجُومُ مُسَخَّرَٰتُۢ بِأَمْرِهِۦٓ ﴾ نو دا ټول د الله تعالى د حکم تابع دی ﴿دَآئِبَيْنِ﴾ متواتر په خپل حرکت باندې جاری دی بغير څه د اسبابو نه ﴿وَءَاتَىٰكُم مِّن كُلِّ مَا سَأَلْتُمُوهُ﴾ من تبعيضيه دې او مراد د سوال نه عام دې که په لسان القال سره وی او که په لسان الحال سره وی چه هغه احتياج دې ﴿وَإِن تَعُدُّوا۟ نِعْمَتَ ٱللَّهِ لَا تُحْصُوهَآ﴾ ځکه چه زمانه د نفس هغه متناهى ده او نعمتونه د الله تعالى غير متناهى دى نو د غير متناهى څيزونو شمار په زمانه متناهى کښ نۀ شی کيدلې، **اشکال** واريديږی چه نعمتونه د الله تعالى په خارج کښ موجود دی او کم شئ چه په خارج کښ موجود وی نو هغه معروض للعدد وی نونعمتونه د الله تعالى هم معروض للعدد شو نو څنګه پرې حکم دعدم متناهى اولګيدلو؟ نويو **جواب** د دې د اپاره دا دې چه غير متناهى په معنى د لا تقف عند حد سره دې او مطلب د (لا تحصوها) دا دې چه تاسو ئې طاقت د شمار نۀ لرئ ځکه چه ددې انعاماتو د پاره علل، اسباب او مقدمات دومره ډير دی چه د هغې شمار د انسان د پاره مشکل دې او که په نفس الامر کښ معروض للعدد او متناهى وی نو څه نقصان په کښ نشته دې، دويم جواب دا دې چه مراد د عدم متناهى نه بالفعل عدم تناهى مراد دې خو انعامات په دوه قسمه دی يو وجودی او بل عدمی، وجودی خو هغه دی چه هغه په خارج کښ موجود وی عدمی مقصد داې چه دَ وجودی انعاماتو دَ موانعوا او نعمتونو عدم والې او نيشتوالې او داهم په حقيقت کښ انعام دې او هغه موانع خو ډير زيات دی نو د هر نعمت د وجود سره بې شماره نعمتونه سلبيه دی او هر نعمت وجودی مستلزم دې بې شماره نعمتونو لره او بيا نعمتونه سلبيه چه هغه غير متناهى وی اولى دی په نسبت سره وجودی نه ځکه چه په وجود کښ جلب منفعت دې او په سلبی کښ دفع دمضرت وی او دفع د مضرت اولى ده په نسبت سره جلب منفعت ته نو د دې وجې نه اوفرمائيل چه ﴿لَا تُحْصُوهَآ﴾.

وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا الْبَلَدَ اٰمِنًا وَّاجْنُبْنِيْ وَبَنِيَّ اَنْ نَّعْبُدَ الْاَصْنَامَ ۝

اوکله چه وه ویل ابراهیم (۱) اې ربه خما ! وګرزوې دا ښار د امن والا اوساتې ما او اولاد خما د عبادت کولو د بتانو نه

رَبِّ اِنَّهُنَّ اَضْلَلْنَ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ ۚ فَمَنْ تَبِعَنِيْ فَاِنَّهٗ مِنِّيْ ۚ

اې ربه خما ! بیشکه عبادت د بتانو ګمراه کړیدی ډیرو خلقو لره . پس چا چه تابعداری وکړه خما پس بیشکه هغه خما نه دی

وَمَنْ عَصَانِيْ فَاِنَّكَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝ رَبَّنَآ اِنِّيْٓ اَسْكَنْتُ مِنْ ذُرِّيَّتِيْ

او چا چه نافرمانی وکړه خما پس بیشه ته بښونکې رحم کونکې یې. اې ربه زمونږ بیشکه ما اوسولی دی بعضې د اولاد خپل نه

بِوَادٍ غَيْرِ ذِيْ زَرْعٍ عِنْدَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ ۙ رَبَّنَا لِيُقِيْمُوا

په هغه کنده بې فصله کښې پخوا دهغه کورستا کښې چه عزت والا دې ، اې ربه زمونږ ! لپاره د دې چه پابندی وکړی

الصَّلٰوةَ فَاجْعَلْ اَفْئِدَةً مِّنَ النَّاسِ تَهْوِيْٓ اِلَيْهِمْ وَارْزُقْهُمْ مِّنَ الثَّمَرٰتِ

د مونځ پس وګرزوه ته زړونه د بعضې خلقو چه مائل شي په طرف د دوئ او رزق ورکړې دوئ ته د مختلف قسم میوؤ نه

لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُوْنَ ۝ رَبَّنَآ اِنَّكَ تَعْلَمُ مَا نُخْفِيْ وَمَا نُعْلِنُ ۗ

لپاره د دې چه دوئ شکر وکړی ستا . اې ربه زمونږ بیشکه ته خبردار یې په هغه چه مونږ یې پټوو او په هغه چه مونږ یې ښکاره کوؤ

وَمَا يَخْفٰى عَلَى اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ فِي الْاَرْضِ وَلَا فِي السَّمَآءِ ۝

او نه پټیږی په الله تعالی باندې هیڅ شي په زمکه کښې اونه په آسمان کښې

﴿ وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ ﴾ دا دويم دليل نقلی تفصيلې دې، د حضرت ابراهيم ﷺ نه، الله تعالی فرمائی چه ګورئ حضرت ابراهيم ﷺ تاسو ټولو ته مسلم شخصيت دې،د عربو نيکهٔ دې او د اهل کتابو هم جد امجد دې هغه هم د خپل اولاد دپاره د توحيد دعا کړې وه او اوله خبره ئې د توحيد کړې وه چه واجنبنی و بنی ان نعبد الاصنام ﴿ هٰذَا الْبَلَدَ ﴾ په سورة البقرة کښې بغير معرف باللام ذکر دې (هذا بلداً) نو هغه دعا په هغه وخت کښې وه چه کله مکه معظمه ښار نهٔ

۱ - دليل نقلی تفصيلی ، دويم دليل د ابراهيم ﷺ نه

وو جوړ شوې.او دا دعا په هغه وخت کښ ده چه کله مکه مکرمه ښار جوړ شوې وو. صاحب د روح المعانی یو قانون ذکر کړې دې چه د (جعل) دپاره یو مفعول معرف اوبل منکر راشی نو ضروری نهٔ ده چه دا معرف دې اول مجعول شوې وی بلکه په دې کښ اشاره وی د مفعول منکر (مفعول ثانی) مقصودیت اهتمام بالشان ته او که دواړه منکر وی نو بیا د دواړو مقصودیت ته په کښ اشاره وی لکه عرب وائی اجعل هذا الخاتم حسنا په دې کښ مقصود بالذات حسن دې او د خاتم مجعولیت بالفعل ضروری نهٔ دې او په اجعل خاتما حسنا کښ دواړه مقصود دی ﴿وَاجْنُبْنِي وَبَنِيَّ﴾ اگر چه د حضرت ابراهیم ﷺ نه د اصنامو عبادتت متصور نهٔ وو خو بیا هم سوال د ځان دپاره یا تواضعا کوی او یا دَ تثبیت او د دوام دپاره کوی ای ثبتنا و ادمنا علی اجتناب عبادتها او د بَنِیّ نه مراد ابناء صلبی دی چه هغه په هغه وخت کې موجود وو تر قیامته پورې اولاد ترې نه مراد نهٔ دی ﴿رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضْلَلْنَ﴾ اصنام ته نسبت د اضلال تسببیا دې ﴿فَمَن تَبِعَنِي فَإِنَّهُ مِنِّي﴾ یعنی هغوی به زما یوه حصه وی د ډیر زیات اختصاص دپاره ئې هغوی د خپل وجود یوه حصه شمار کړه ﴿وَمَنْ عَصَانِي فَإِنَّكَ﴾ مراد د عصیان نه یا ما دون الشرک دې او یا ترې نه مراد شرک دې خو دَ مغفرت او رحمت سوال بعد التوبة دې او یا د حضرت ابراهیم ﷺ د شرک د پاره رحمت او مغفرت غوختل قبل العلم وو ﴿رَّبَّنَا إِنِّي أَسْكَنتُ﴾ حضرت ابراهیم ﷺ حضرت هاجره ﷺ نهه سوه (٩٠٠) میله لرې د الله تعالی په حکم سره بوتله او هلته ئې کینوله او ورسره یو ماشوم بچې حضرت اسمعیل ﷺ وو او د خوراك دپاره ئې لګ غوندې سامان ورله ورکړو.او په خوشې صحرا کښ ئې یواځې پریخودله او څه قسمه تسلی ورکول اجازت هم نه وو حضرت هاجرة ﷺ خو څله تپوس اوکړو چه په دې خوشې بیابان کښ مونږ چا ته پریږدې خو حضرت ابراهیم ﷺ ته د جواب ورکولو اجازت هم نهٔ وو.آخر حضرت هاجرة ﷺ تپوس اوکړو چه د الله تعالی حکم دې نو صرف دومره ئې اوفرمائیل چه آو د الله تعالی حکم دې.حضرت هاجرة ﷺ اوفرمائیل چه اذا لا یضیعنا الله حضرت ابراهیم ﷺ چه کله پناه ځائې ته راورسیدلو چه چا نه لیدو نو دا دعا ئې اوکړه چه ﴿رَّبَّنَا إِنِّي أَسْكَنتُ﴾ - الخ ﴿عِندَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ﴾ په دې کښ اشاره ده چه خانه کعبه د ډیر قدیم وخت نه موجوده ده ﴿لِيُقِيمُوا الصَّلَاةَ﴾ په د په دې کښ اشاره ده چه خانه کعبه بلکه هر دینی مرکز قیام دپاره د اقامت د صلوة او د

توحيد وي ﴿فَاجْعَلْ أَفْئِدَةً مِّنَ النَّاسِ﴾ من د پاره د تبعيض دي او كه چرته «من» مبعضيه نۀ وي راوړې نو خانه كعبه اومكه معظمه كښې بۀ د خلقو ازدحام د وجې نه څه ځائې هم نۀ وو ﴿وَارْزُقْهُم مِّنَ الثَّمَرَاتِ﴾ يعنى هرقسمه ميوه دوى ته وركړه او دا ټولې دعاګانې د اهل مكه په حق كښې قبولې شوې دى

**فائده** مكه معظمه د ټول انسانيت د پاره عموما او د مسلمانانو د پاره خصوصا مركزيت حيثيت لرى،او د مركزيت د حصول دپاره د هغه ځائې اقتصاديات بنيادى حيثيت لرى او كوم قوم چه اقتصادى لحاظ سره كمزورې وى نو هغه ته مركزيت نۀ ملاويدلې نو د اقتصادياتو د پاره ضرورى ده چه په هغه ځائې كښې تجارت وغيره وى،او افراد هم وى،او دا دواړه موقوف دى په امن باندې چه امن وى نو هلته خلق هم ځى او كاروبار او اقتصاديات هم صحيح وى،د دې وجې نه حضرت ابراهيم عليه السلام ددې ښار په باره كښې دغه درې دعاګانې اوغوښتلې، او باقى دعاګانې د اهل بلد دپاره اوغوختلې ﴿رَبَّنَا إِنَّكَ تَعْلَمُ﴾ په دې كښې اثبات دې دَ توسل په دعا كښې په صفاتو د الله تعالى سره ﴿وَمَا يَخْفَىٰ عَلَى اللَّهِ﴾ داقول هم يادحضرت ابراهيم عليه السلام او يا دا قول د الله تعالى دې دپاره د تتمې د حضرت ابراهيم عليه السلام د دعا.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ٱلْحَمْدُ | لِلَّهِ | ٱلَّذِى | وَهَبَ | لِى | عَلَى ٱلْكِبَرِ |

ټول صفتونه «د الوهيت» خاص دى په الله تعالى پورې چه هغه ذات چه رابښلې ئې دې ما ته سره د بوډا والى ځما نه

إِسْمَٰعِيلَ وَإِسْحَٰقَ ۚ إِنَّ رَبِّى لَسَمِيعُ ٱلدُّعَآءِ ۝ رَبِّ ٱجْعَلْنِى مُقِيمَ ٱلصَّلَوٰةِ

اسماعيل او اسحاق ، بيشكه رب ځما خامخا قبلونكې د دعا دې . اې ربه ځما وګرځوې ما پابندې كونكې د مانځه

وَمِن ذُرِّيَّتِى ۚ رَبَّنَا وَتَقَبَّلْ دُعَآءِ ۝ رَبَّنَا ٱغْفِرْ لِى وَلِوَٰلِدَىَّ وَلِلْمُؤْمِنِينَ

او د اولاد ځما نه ، اې ربه زمونږ او قبوله كړې دعا زما . اې ربه زمونږ اوبخې ته ما لره او مور پلار ځما لره او ټولو مؤمنانو لره

يَوْمَ يَقُومُ ٱلْحِسَابُ ۝ وَلَا تَحْسَبَنَّ ٱللَّهَ غَٰفِلًا عَمَّا يَعْمَلُ ٱلظَّٰلِمُونَ ۚ

په كومه ورځ چه اودريږى خلك حساب ته .اوهرګز ګمان مه كوه ته[1] په الله تعالى باندې غافل د هغه عملونو نه چه ظالمان ئې كوى.

---

١ - بيان د شپږمې واقعې سره له دنيوى او اخروى تخويف نه

| |
|---|
| اِنَّمَا يُؤَخِّرُهُمْ لِيَوْمٍ تَشْخَصُ فِيْهِ الْاَبْصَارُ ۙ مُهْطِعِيْنَ |
| بېشکه مهلت ورکوی دوئ ته هغه ورځې ته چه خلاصې به پاتې وی په هغې کښ سترګې منډې وهونکې به وی |
| مُقْنِعِيْ رُءُوْسِهِمْ لَا يَرْتَدُّ اِلَيْهِمْ طَرْفُهُمْ ۚ وَاَفْـِٕدَتُهُمْ هَوَآءٌ ۗ |
| اوچت نیوونکی به وی سرونو خپلو لره نه به واپس کیږی دوئ ته سترګې د دوئ او زړونه د دوئ به خالی وی (د عقل نه) |

﴿ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ وَهَبَ لِیْ عَلَی الْکِبَرِ ﴾ (علی) په معنې د (مع) سر دې ای مع کبر سنی حضرت اسماعیل ﷺ مشر وو چه کله حضرت ابراهیم ﷺ عمر یو کم سل کاله وو نو دې پیدا شو او حضرت اسحاق ﷺ کشر وو په هغه وخت پیدا شوې وو چه کله د حضرت ابراهیم ﷺ عمر ۱۱۲ کاله وو ﴿ رَبَّنَا اغْفِرْ لِیْ وَلِوَالِدَیَّ ﴾ پلار د پاره دعا مغفرت نو دا یا په معنې د هدایت سره دې او یا سوال د مغفرت دوالدینو د پاره بشرط الایمان دې یا د وجې د طمع الایمان دې چه حضرت ابراهیم ﷺ د خپل پلار د ایمان په طمع وو او علم ورته نهٔ وو او چه کله علم ورته اوشو نو بیا ئې پریخو لکه الله تعالی فرمائی ﴿ فَلَمَّا تَبَیَّنَ لَهٗۤ اَنَّهٗ عَدُوٌّ لِّلّٰهِ تَبَرَّاَ مِنْهُ ﴾ او بعض فرمائی چه والدینو نه مراد حضرت آدم ﷺ او حوا علیها السلام دی. ﴿ یَوْمَ یَقُوْمُ الْحِسَابُ ﴾ دَ قیام نسبت حساب ته کول یا مجاز مرسل او استعاره ده لکه (قامت الحرب) شو یا حذف د فاعل سره دې ای یو م یقوم الناس للحساب، تخصیص د یوم الحساب د دې وجې نه دې چه فائده د مغفرت هغه ظاهریږی د حساب په ورځ، خطیب شربینی رحمه الله فرمائی والله تعالی لا یرد دعاء خلیله علیه السلام و فیه بشارة عظیمة للمؤمنین بالمغفرة فنسال الله تعالی ان یغفرلنا ولوالدینا ولمشائخنا ولاحبابنا (امین ثم امین).

﴿ وَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ ﴾ دا بیان دې د واقعې شپږ مې او تخویف اخروی او دنیوی ذکر دیږی ﴿ غَافِلًا ﴾ یعنی پریخودونکې ای یترك عقابهم للطفه و کرمه او خطاب نبی ﷺ د پاره دتثبیت او د دوام دې ﴿ تَشْخَصُ فِیْهِ الْاَبْصَارُ ﴾ تشخص د شخوص نه دې او شخوص وئیلې کیږی د هیبت د وجې نه سترګې وازې پاتې کیدل، کله چه سړې ډیر اوویریږی نو سترګې وازې پاتې شی او هغه خوف والا څائې ته ګوري ﴿ لَا یَرْتَدُّ اِلَیْهِمْ طَرْفُهُمْ ﴾ یعنی د دوئ سترګې به دوئ ته نهٔ

راگرځي، يعنی بانړۀ به نۀ شي ښکته کولی. دا کنايه ده دسخت هيبت او خوف نه ځکه چه په وخت دَ خوف کښې ځان نه ښوك نه ګوری بلکه دَ يرې والا ښيز نه ګوری. ﴿وَأَفْئِدَتُهُمْ هَوَآءٌ﴾ هوا معنی ده خالی، نو خالی به وی يا د عقل نه او يا د خير نه

| |
|---|
| وَأَنذِرِ النَّاسَ يَوْمَ يَأْتِيهِمُ الْعَذَابُ فَيَقُولُ الَّذِينَ ظَلَمُوا رَبَّنَا |
| او وه ويروه خلق دَ هغې ورځې نه چه را ښی دوئ ته عذاب پس وائی به هغه کسان چه ظلم ئې کړې دې اې ربه زمونږ |
| أَخِّرْنَا إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ نُّجِبْ دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ الرُّسُلَ |
| مهلت راکړه مونږ ته يوې نيتې قريبې پورې ، قبول به کړو مونږ دعوت ستا او اتباع به وکړو مونږ د رسولانو |
| أَوَلَمْ تَكُونُوا أَقْسَمْتُم مِّن قَبْلُ مَا لَكُم مِّن زَوَالٍ ۝ وَسَكَنتُمْ |
| آيا نه وئ تاسو چه قسمونه به مو کول مخکې «د نن نه» چه نيشته ستاسو دپاره څه فناء. او اوسيدلی وئ تاسو |
| فِي مَسَاكِنِ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَنفُسَهُمْ وَتَبَيَّنَ لَكُمْ |
| په ځايونو د اوسيدلو د هغه کسانو کښې چه ظلم ئې کړې وۀ په خپلو نفسونو باندې اوڅرګند شوې وه دا خبره تاسو ته |
| كَيْفَ فَعَلْنَا بِهِمْ وَضَرَبْنَا لَكُمُ الْأَمْثَالَ ۝ وَقَدْ مَكَرُوا |
| چه څنګه کار کړې وۀ مونږ دهغوئ سره اوبيان کړی وۀ مونږ ستاسو لپاره مثالونه . اوبيشکه مکر کړې وۀ هغوئ |
| مَكْرَهُمْ وَعِندَ اللَّهِ مَكْرُهُمْ وَإِن كَانَ مَكْرُهُمْ لِتَزُولَ مِنْهُ الْجِبَالُ ۝ فَلَا تَحْسَبَنَّ |
| پوره مکر خپل او الله تعالی سره ده سزا د مکر د دوئ اونه وۀ مکر د دوئ چه زائل شی د وجه دهغې نه غرونه . پس هرګز ګمان مه کوه نه |
| اللَّهَ مُخْلِفَ وَعْدِهِ رُسُلَهُ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ ذُو انتِقَامٍ ۝ |
| په الله تعالی باندې خلاف کوونکې د وعدې خپلې د رسولانو خپلو سره ، بيشکه الله تعالی زورآور دې ، خاوند د بدلې اغستو دې |

﴿وَأَنذِرِ النَّاسَ﴾ دا تخويف دنيوی ذکر کيږی﴿يَوْمَ يَأْتِيهِمُ الْعَذَابُ﴾ د دې ورځې نه مراد دنيا کښې دعذاب ورځ ده، چه په دې دنيا کښې به ورله عذاب الله تعالي ورکړی، او يا د مرګ په هغه وخت کښې عذاب مراد دې چه کله فرشتې اوګوری او هغو ترې نه ډير په سختئ او عذاب سره روح اخلی نو دوی به اووائی چه﴿أَخِّرْنَا إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ﴾ نو په دې اعتبار سره

معنی د (اخرنا) اَمْهِلْنَا ده یعنی مونږ ته مهلت راکړه، او یا ترې نه مراد د قیامت د ورځې عذاب دې نو (اَخرنا) بیا په معنې د (اِرْجِعْنا) سره دې یعنی مونږه واپس کړه ﴿نُّجِبْ دَعْوَتَكَ﴾ ستادعوت به قبول کړو مقصد دا دې چه ستا دین طرفته چه کوم دعوت راکړې شوې وو هغه به قبول کړو.ای دعوة الیك و الی توحیدك ﴿أَوَلَمْ تَكُونُوٓا أَقْسَمْتُم﴾ دا به توبیخا ورته اووئیلې شی یعنی تاسو مهلت غواړئ تاسو خو قسمونه کول چه فناء کیدل نشته دې.او دا قسمونه یا په لسان القال سره وو چه په ژبه باندې به قسمونه خوړل او عقیده ئې داده چه مونږ به په اجتماعی توګه نۀ ختمیږو، اویا په لسان الحال سره وو چه غټې غټې اُمیدونه به ئې ساتل په دنیا کښې مستغرق وو او آخرت ته ئ څه قسمه دهیان نۀ وو ﴿وَسَكَنتُمْ فِى﴾ دا زجر دې د مشرکینو دپاره چه د ایمان نه راوړلو د پاره ستاسو هیڅ عذر هم باقی نۀ دې ځکه چه د تصدیق یقینی د حصول دپاره ځومره اسباب د علم پکار دی هغه ټول تاسو ته حاصل وو ﴿فِى مَسَٰكِنِ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓا﴾ یعنی تاسو هم په هغه علاقو کښې آباد وئ چه ستاسو نه مخکښې نور معاندین پکښې اوسیدلی وو او دَ هغوئ دَ هلاکت او بربادئ احوال تاسوته معلوم شوی وو لیکن بیا هم تاسو عبرت ترینه نه وو اخستې، ﴿وَقَدْ مَكَرُوا۟ مَكْرَهُمْ﴾ (مکرهم) مفعول مطلق دې د (مکروا) دپاره، راوړې شی د پاره د بیان الکمال او د مبالغې یعنی دوئ دَ اسلام خلاف پوره مکر استعمال کړو ﴿وَإِن كَانَ مَكْرُهُمْ لِتَزُولَ مِنْهُ ٱلْجِبَالُ﴾ اِن (۱) یا نافیه دې او د ﴿ٱلْجِبَالُ﴾ نه مراد شرائع دی چه هغه د غرونو په شانتې مضبوط دی او یا جبال په خپل معنې سره دې مقصد دادې چه د دوی مکر کمزورې دې شرائع چه د جبال په شانتې مضبوط دی هغه د خپل ځائې نه نشی زائله کولې یا غرونه د خپل ځائې نه نۀ شی زائله کولې، (۲) او یا ان مخفف عن المثقله دې او ددې اسم ضمیر شان هغه مقدر دې او ﴿لِتَزُولَ﴾ کښې لام مفتوح دې او د دوی د مکر قوت ته په کښې اشاره ده او د الجبال نه مرادغرونه دی او مقصد

---

۱ - ان نافیه په قرآن کښې په پنځو مواضعو کښې ذکر شوې دې یو دا دې دویم په سورة یونس کښې فان کنتا فی شك الخ دریم په سورة الانبیاء کښې لو اردنا ان نتخذ لهوا لاتخذنه من لدنا ان کنا فاعلین څلورم په سورة زخرف کښې (قل ان کان للرحمن ولدا) او پنځم په سورة الاحقاف کښې (ولقد مکنهم فیما ان مکنکم فیه) (قرطبی) .

دا دې چه د دوی مکر بیشکه ډیر لوئې دې چه غرونه ورسره هم زائله کیږی خو ددین او شرائع ورسره نۀ شی زائله کیدې، (۳) او یا دا ان وصلیه دې او مراد د جبال نه غرونه دی نو په دې کښ به هم ددوی د مکر قوت اشاره شی مقصد دا دې چه دوئ مکر اگر چه ډیر لوئې دې چه غرونه ورسره هم زائله کیږی خو شرائع ورسره نۀ شی زائله کیدې یعنی دنیوی نقصان خو کوی خو دین ته څه نقصان نۀ شی رسولې ﴿ فَلَا تَحْسَبَنَّ اللَّهَ ﴾ تسلی ورکولې کیږی پیغمبر ﷺ ته ﴿مُخْلِفَ وَعْدِهِ﴾ چه هغه وعده دنصرت ده.

| |
|---|
| يَوْمَ تُبَدَّلُ الْأَرْضُ غَيْرَ الْأَرْضِ وَالسَّمٰوٰتُ وَبَرَزُوْا |
| په داسې ورځ چه بدله به کړې شی دا خمکه د دینه په بلې خمکې سره او آسمانونه هم او میدان کښ به جمع شی ټول |
| لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ۝ وَتَرَى الْمُجْرِمِيْنَ يَوْمَئِذٍ مُّقَرَّنِيْنَ فِي الْأَصْفَادِ ۝ |
| الله تعالی ته چه یو دې ، ډیر زور آور دې .او وینې به ته مجرمان په دغه ورځ چه یو ځائ به تړلې شوی وی په زنځیرونو کښ. |
| سَرَابِيْلُهُمْ مِّنْ قَطِرَانٍ وَّتَغْشٰى وُجُوْهَهُمُ النَّارُ ۝ لِيَجْزِيَ اللّٰهُ كُلَّ نَفْسٍ |
| قمیصونه د دوئ به د رانزروبه وی او پټوی به مخونه د دوئ اور لپاره د دې چه بدله ورکړی الله تعالی هر نفس ته |
| مَّا كَسَبَتْ ۗ اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ۝ هٰذَا بَلٰغٌ لِّلنَّاسِ |
| بدله دهغه عملونه چه هغه کسب کړې دې ، بیشکه الله تعالی زر حساب کونکې دې دا قرآن رسول دی [۱] خلقو ته |
| وَلِيُنْذَرُوْا بِهٖ وَلِيَعْلَمُوْٓا اَنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ |
| اولپاره د دې چه وه یرولې شی پدې سره خلق او لپاره د دې چه پوهه شی خلق چه بیشکه صرف الله تعالی معبود دې |
| وَّاحِدٌ وَّلِيَذَّكَّرَ اُولُوا الْاَلْبَابِ ۝ |
| چه تن تنها دې ، او لپاره د دې چه نصیحت واخلی خاوندان د عقل. |

﴿ يَوْمَ تُبَدَّلُ الْأَرْضُ ﴾ تبدیل د زمکې یا ذاتی دې چه دا زمکه به بلې زمکې سره بدله شی لکه په حدیث د مسلم شریف کښ دی عن عائشة رضي الله عنها قالت سئل رسول الله عن قوله یوم تبدل

۱ - بیان د دعوی په طور د ثمری او خلاصې د سورت.

الارض غير الارض والسموات فاين يكون الناس يومئذ؟قال على الصراط او يا د تبديلى نه مراد تبديلى وصفى ده.او تبديلى وصفى مقصد دا دې چه زمكه به هم دغه وى خو په كښې به دغه غرونه،نهرونه،سمندرونه لوړې ژورې به په كښې نه وى لكه الله رب العزت فرمائى چه (قاعًا صفصفاً لا ترى فيها عوجا ولا امتا) ، ﴿ مُّقَرَّنِينَ ﴾ يعنى دوى به يو بل سره تړلې شوې وى،او يا به د شيطان سره تړلې شوې وى لكه په بل ځائې كښې الله تعالې فرمائى چه ﴿ وَإِذَا النُّفُوسُ زُوِّجَتْ ﴾ نومؤمنين به د حورالعين سره جوړه كړې شى او دوى به دَ شيطانانو سره. او يا مقصد دا دې چه لاسونه بهٔ ئې د خپو سره اوتړلې شى ﴿ سَرَابِيلُهُم مِّن قَطِرَانٍ ﴾ قطران رانزړو ته وئيلې كيږى د رانزړو اور ډير سخت گرم وى او ډير زر اور اخلى او دغه شانتې بدبودار هم ډير زيات وى او لوگى ئې هم ډير سخت تور وى نو ددې وجې نه رانزړهٔ به ددوى په بدن باندې اومخلې شى او جهنم ته به اوغورځولې شى (اعاذنا الله منها) [1] ﴿ لِيَجْزِيَ اللَّهُ ﴾ دا متعلق دې په (برزوا) پورې ﴿ هَٰذَا بَلَاغٌ ﴾ دا په اخر كښې دعوى د سورة بطور د خلاصې او ثمرې ذكر كيږى،او تعلق د دې د ابتداء د سورت سره دې او په (هذا) سره اشاره ده قرآن مجيد ته چه په ابتداء د سورة كښې ذكر شوې دې چه﴿ كِتَابٌ أَنزَلْنَاهُ إِلَيْكَ لِتُخْرِجَ النَّاسَ ﴾ دې او په دې كښې اشاره ده څلورو فوائدو او مقاصدو د قرآن ته **اول** دا چه دا قرآن تبليغ دې د انسانانو دپاره د الله تعالى د احكاماتو يعنى د الله تعالى احكامات انسانانو ته رسوونكې دې **دويم** دا چه په دې سره انذار كولې شى دعذاب د الله تعالى نه **دريم** دا چه په دې سره علم د توحيد حاصليږى **څلورم** دا چه اولوالالباب او عقل والو دپاره نصيحت دې.

## سورة ابراهيم ختم شو

قد فرغت من تكملة سورة ابراهيم اللتى شرعتها من (مَنْ خَافَ وَعِيد) والحمد لله رب العلمين، قد فرغت من هذا التفسير بحمد الله و بمنه ۷ جمادى الاولى بعد الالف و مائة اربع و احدى ثلاثين من هجرة النبوى ﷺ،اللهم اجعل لوالدنا المحترم الشفيق المشفق ولنا خطا وافرا من دعوة ابراهيم عليه الصلوة والسلام المستجاب وارفع درجاته فى عليين واجعل رفاقته مع النبيين والصدقين والشهداء والصلحين،وافض علينا فيوضاته واسلك بنا مسلك كراماته ولا تحرمنا من بركاته واجعله لنا شفيعا و فرطا فى الاخرة كما جعلته شفيقا لنا فى الدنيا و ابرد صدورنا بلقائنا معه فى جنة الفردوس،ربنا امنا بك و بما انزلت واتبعنا الرسول فاكتبنا مع الشهدين ربنا نؤمن بك و برسولك و بكتبك و بلقائك،اللهم اجرنا من النار وادخلنا الجنة مع الابرار امين ثم امين يا رب العلمين .

---

۱ - دَ قطران ترجمه ، گګر هم كړې شويده چه دَ هغې اور ډير تيز وى او زر لگى.

| رکوع | سورة الحجر مكية | آيتونه |
|---|---|---|
| ۶ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | ۹۹ |
| | خاص په نوم د الله سره چه بیحده مهربان او ډیر رحم کوونکې دې شروع کوم | |

**رقمها حسب التسلسل (۱۵) وحسب النزول (۵۴)**

سورة الحجر مکی سورة دې په ترتیب قرآن کښې پنځلسم (۱۵) او په ترتیب نزولی کښې څلور پنځوستم (۵۴) نمبر سورة دې ، د سورة الانعام نه مخکښې او په سورة یوسف پسې نازل شوې دې او زمانه د نزول ئې دور اخیر د مکې معظمې دې.

**ربط**: ربط اسمی د سورة ابراهیم سره دا دې چه په سورة ابراهیم کښې په دلائلو او په بیان د وقائعو سره مسئله د توحید بیان شوه نو په سورة الحجر کښې حکم ورکولې کیږی چه دا مسئله اومنئ کنې ستاسو انجام به هم د اصحاب الحجر په شانتې وی، او بیا به پښیمانه یئ خو وخت به درنه تیر شوې وی.

**ربط مضمونی**: د سورة ابراهیم سره دا دې چه (۱) په سورة ابراهیم کښې د وقائعو په بیان سره یره ول اوشو او په سورة الحجر کښې دهغې نمونې ذکر کیږی، (۲) دغه شان د سورة ابراهیم په آخر کښې تخویف ذکر شوې وؤ نو د سورة الحجر په ابتداء کښې هم تخویف ذکر کیږی، (۳) همدغه شان په سورة ابراهیم کښې بیان د وقائعو اوشو نو اوس په سورة الحجر کښې ورته اعلان کیږی چه د ایمان راوړلو وخت اوس دې ، (۴) او دغه شانتې په سورة ابراهیم کښې حکمت او فوائد د قرآن ذکر شو او په سورة الحجر کښې صداقت د قرآن ذکر کیږی.

**مضامین**: مختصره خلاصه د مضامینو داده چه پدې سورة کښې اولاً تمهید مع الدعوی ذکر کیږی، بیا په توحید باندې دوه دلیلونه عقلیه ذکر کیږی چه یو تفصیلی اوبل اجمالی دې ، پنځه نمونې د تخویف دنیوی ذکر کیږی ، درې د اُمم سابقونه ، او دوه د مشرکین مکه نه، اونه پکښې حضور ﷺ ته تسلیانې ذکر کیږی او په مینځ کښې پکښې څه زجرونه ، تخویفونه، شکوې او جواب شکوې ذکر کیږی.

او تفصيل ئی دادې چه په آيت نمبر اول ﴿الٓرٰ﴾ کښې تمهيد مع الترغيب دې. په ايت نمبر (٢) ﴿رُبَمَا﴾ کښې دعوی د سورت، تخويف ذکر کيږی ، په آيت نمبر (٣) ﴿ذَرْهُمْ﴾ کښې زجر ذکر کيږی . په آيت نمبر (٤ - ٥) ﴿وَمَآ أَهْلَكْنَا﴾ الی ﴿وَمَا يَسْتَـْٔخِرُونَ﴾ پورې بيا تخويف ذکر کيږی. په ايت نمبر (٦ - ٧) ﴿وَقَالُوا يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِى﴾ تر ﴿إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ﴾ پورې شکوه ذکر کيږی. په ايت نمبر (٨) ﴿مَا نُنَزِّلُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةَ﴾ کښې جواب شکوه مع الزجر ذکر کيږی، په آيت نمبر (٩) ﴿إِنَّا نَحْنُ﴾ کښې ترغيب الی القرآن او تمهيد لپاره د تخويف دنيوی ذکر کيږی، په آيت نمبر (١٠ - ١٣) پورې ﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا﴾ تر ﴿سُنَّةُ ٱلْأَوَّلِينَ﴾ پورې تخويف دنيوی د استهزاء کوونکو لپاره ذکر کيږی. په آيت نمبر (١٤ - ١٥) ﴿وَلَوْ فَتَحْنَا﴾ کښې زجر ذکر کيږی چه متعلق دې په شکوی پورې ، بيا په آيت نمبر (١٦) ﴿وَلَقَدْ جَعَلْنَا﴾ تر آيت نمبر (٢٧) ﴿مِن نَّارِ ٱلسَّمُومِ﴾ پورې اول دليل عقلی تفصيلی ذکر کيږی ، په آيت نمبر (٢٨ – تا - ٤٢) ﴿وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ﴾ تر ﴿إِلَّا مَنِ ٱتَّبَعَكَ مِنَ ٱلْغَاوِينَ﴾ پورې قصه د حضرت آدم ﷺ او ابليس لعين ذکر کيږی لپاره د تخويف اومتعلقه ده په دعوی د سورة پورې، په آيت نمبر (٤٣ - ٤٤) ﴿وَإِنَّ جَهَنَّمَ﴾ الی ﴿جُزْءٌ مَّقْسُومٌ﴾ کښې تخويف اخروی ذکر کيږی ، په آيت نمبر (٤٥ - تر - ٤٨) ﴿إِنَّ ٱلْمُتَّقِينَ﴾ تر ﴿أَنَا ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ﴾ پورې بشارت ذکر کيږی.

په آيت نمبر (٥٠) ﴿وَأَنَّ عَذَابِى﴾ تخويف ذکر کيږی ، په آيت نمبر (٥١ - ٥٦) ﴿وَنَبِّئْهُمْ﴾ الی ﴿إِلَّا ٱلضَّآلُّونَ﴾ کښې تمهيد ذکر کيږی د نمونې اولې لپار ، او بيا پنځه نمونې ذکر کيږی د تخويف دنيوی لپاره، اوله نمونه د امم سابقه نه ﴿قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ﴾ آيت نمبر (٥٧ – تا - ٧٤) پورې ذکر کيږی چه د قوم لوط واقعه ده ، دويمه نمونه ﴿وَإِن كَانَ أَصْحَٰبُ ٱلْأَيْكَةِ﴾ آيت نمبر (٧٨) نه تر (٧٩) پورې ذکر کيږی چه دقوم شعيب واقعه ده، دريمه نمونه د ﴿وَلَقَدْ كَذَّبَ أَصْحَٰبُ ٱلْحِجْرِ﴾ آيت نمبر (٨٠) تر (٨٤) پورې ذکر کيږی ، بيا په مينځ کښې ايت نمبر (٨٥ - ٨٦) ﴿وَمَا خَلَقْنَا ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ کښې دويم دليل عقلی ذکر کيږی ، په آيت نمبر (٨٧ - ٨٨) کښې حضور صلی الله عليه وسلم ته درې تسليانې ذکر کيږی، په آيت نمبر (٨٩) کښې تخويف دنيوی ذکر دې، بيا په آيت نمبر (٩٠)

﴿كَمَآ أَنزَلْنَا﴾ نه تر (٩٣) کښې بيان د نمونې څلورمې کيږی چه د مشرکين مکه واقعه ده چه هغه

دولس کسان چه په موسم د حج کښې به په مختلفو لارو کښې کیناستل او رتلونکی خلك به ئې د حضور صلی الله علیه وسلم د تعلیم او وعظ نه منع کول نو څه په جنګ بدر کښې الله هلاك کړل او څه د جنګ نه مخکښې ، په ایت نمبر (۹۴) ﴿ فَاصْدَعْ ﴾ کښې بیا څلورمه تسلی حضور صلی الله علیه وسلم ته ذکر کیږی، په آیت نمبر (۹۵ - ۹۶) ﴿ إِنَّا كَفَيْنَاكَ الْمُسْتَهْزِئِينَ ﴾ کښې د پنځمې واقعې بیان دې چه د مشرکین مکه هغه پنځه کسان وؤ چه په قرآن پورې به ئې توقې کولې نو الله هلاك کړل. او پنځمه تسلی هم حضور صلی الله علیه وسلم ته ذکر کیږی، په آیت نمبر (۹۷) کښې شپږمه تسلی ده، او په آخری دوه آیتونو (۹۸ - ۹۹) کښې مزیدې درې تسلیانې حضور صلی الله علیه وسلم ته ذکر کیږی، او اصل مقصد بیانیږی چه هغه توحید دې .

| الٓرٰ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ وَقُرْاٰنٍ مُّبِيْنٍ ① |
|---|
| (الر) دا آیاتونه دی[1] د کتاب او د قرآن واضح بیان کونکی . |

﴿ الٓرٰ ﴾ دا تمهید مع الترغیب دې ﴿ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ ﴾ په معنی د جنس کتاب سره دې او مراد ترینه کتب سابقه دی او اشاره ده دیته چه پدې قرآن مجید کښې د امم سابقه ؤ حالات هم ذکر کیږی، او د ﴿ وَقُرْاٰنٍ ﴾ نه مراد قرآن مجید دې او اشاره ده دیته چه د دې امت واقعات هم پکښې ذکر کیږی دوارو لره جامع دې لکه چه دا تقاضا د عطف ده او دا قول د امام مجاهد او قتاده نه مروی دې (الکتاب : الکتب اللتی کانت قبل القرآن) او یا عطف، عطف تفسیری دې او د «الکتاب» نه مراد قرآن دې او دې کښې اشاره ده عظمت او کمال د قرآن ته ، قرآن او مبین دا دواړه صفتونه واقع شوی دی د (الکتاب) لپاره .

---

۱ - تمهید مع الترغیب.

| رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ كَانُوا مُسْلِمِينَ ۝ ذَرْهُمْ يَأْكُلُوا |
|---|
| ډیر واري ارمان به کوي (۱) هغه کسان چه کفر ئې کړی دې چه کاش دوئ مسلمانان وې . پريږده ته دوئ چه خوراك کوي |
| وَيَتَمَتَّعُوا وَيُلْهِهِمُ الْأَمَلُ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ۝ وَمَا أَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ |
| او مزې اخلي او غافل کړی دی دوئ لره اميدونو پس زر ده چه پوهه به شي دوئ . اونه دی هلاك کړی مونږ دَ يو کلی خلك |
| إِلَّا وَلَهَا كِتَابٌ مَعْلُومٌ ۝ مَا تَسْبِقُ مِنْ أُمَّةٍ أَجَلَهَا وَمَا يَسْتَأْخِرُونَ ۝ |
| مگر وؤ دهغو لپاره ليکل مقرر . نه مخکښ کيږي هيڅ يو اُمت دَ نيټې خپلې نه او نه وروستو کيږي |

﴿ رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ دا ذکر د اصل مقصود دې چه ضد او عناد پريږدئ او ايمان راوړئ بيا به افسوس کوئ خو هغه وخت به د ايمان راوړلو نه وی ﴿ رُبَمَا ﴾ په تخفيف او په تشديد دواړو قرائتونو سره مروی دې ، او (ما) پکښ يا زائده ده ځکه چه (رب) په فعل باندې بالذات نه داخليږی او يا په معنی د شئ منکر سره ده عند البعض (طبری) ، او د شئ منکر نه مراد (ودّ) دې ((ای رب ود يوده اللذين كفروا – الخ)) او ((رُبّ)) کله دتقليل لپاره رازی او کله د تکثير لپاره ، دلته يا د تکثير لپاره دې چه دا کافران به بار بار تمنا کوی او يا د تقليل لپاره دې ځکه چه احوال د قيامت به ډير سخت وی نو اکثر حالاتو کښ به دوئ بيهوشه او حواس باخته به وی خو چه کله هم هوش ئی رازی نو دوئ به تمنا کوی چه کاش مونږ مسلمان شوی وې، ((ربّ)) اگرچه د اکثرو نحاتو د تصريح مطابق په فعل مضارع باندې نشی راتلې بلکه په ماضی باندې داخليږی خو چونکه ترقب په اخبارو د الله تعالی کښ دا په تقين کښ په شانته د ماضی وئ نو ((يَوَدُّ)) په معنی د (ودّ) سره شو گويا که چه دوئ دا تمنا کړيده نو ځکه پرې ((رُبّ)) داخل شو ، او په نيزد د بعضو لکه ابن هشام دخول د رب په مضارع باندې جائز دې لکه څنگه چه په ماضی باندې ئی دخول جائز دې په دليل د دې قول د شاعر

فان اهلك فرُب فتًی سيبكی على مهذب رخص البنان

((مغنی اللبيب ، حرف الراء ، صفحه نمبر (۳۷۵))

---

۱ - ذکر د اصل مقصود

نو لهذا (یودُ) په خپله معنی سره دي او په معنی د ((وُدّ)) سره ونیل دا تکلف نه خالي ندی

﴿لَوْ كَانُوا﴾ دا تمنا به دوئ کله کوی؟ نو پدې کښې متعدد اقوال دی (۱) بعضی وائی چه دا تمنا په وخت د فتح د مسلمانانو کښې کوی، دا مروی دې د ابن مسعود رضی الله عنه. (۲) بعضې وائی چه په وخت د حلول اونزول د مرګ کښې به کوی چه کله دوئ ته مرګ حاضر شی او عالم غیب پرې منکشف شی نو دوئ به تمنا اوکړی. (۳) او بعضې وائی چه دا تمنا به د قیامت په ورځ دوئ په هغه وخت کښې وکړی چه کله خدائ پاك د مؤمناو اکرام وکړی د حساب، کتاب نه وروستو مؤمنان جنت ته لاړشی نو دوئ به او وائی چه ﴿لَوْ كَانُوا﴾، (۵) او بعضې فرمائی چه کله الله آخری مسلمان د جهنم نه او باسی نو دوئ به هم تمنا وکړی چه کاش مونږ هم مسلمانان وو، لکه ابن جریر طبری رحمه الله په سند صحیحه سره د حضرت ابو موسی رضی الله عنه نه او طبرانی د حضرت جابر رضی الله عنه نه نقل کړیدی چه کفار به په جهنم کښې ځینې هغه مسلمانانو ته چه د خپلو بدو اعمالو د وجه نه جهنم ته تللی وی پیغور ورکړی نو الله ﷻ به په خپل رحمت سره هغوئ د جهنم نه را اوباسی، جنت ته به ئی داخل کړی، نو کافر به تمنا اوکړی چه ﴿لَوْ كَانُوا﴾ لیکن په ټولو توجیهاتو کښې غوره توجیه د ابن الانباری ده، هغه فرمائی چه کله هم الله ﷻ کافرانو ته عذاب ورکوی که دنیا کښې وی د مرګ په وخت کښې وی قبر کښې وی، میدان حشر کښې وی، جهنم کښې وی، او مسلمانانو ته الله جل جلاله اکرام او عزت ورکوی نو دوئ به د هغه تمنا بابار کوی ﴿ذَرْهُمْ﴾ دا زجر ذکر کیږی چه دوئ پریږده په نصیحت او وعظ سره. ﴿يَأْكُلُوا وَيَتَمَتَّعُوا﴾ په دې کښې اشاره ده چه د کافرانو خوراك د بهائمو په شانتې دې چه صرف د خواهشاتو پوره کولو لپاره خوراك کوی او دنیوی عیش عشرت ئی مقصود اصلی ګرځولې دې ﴿وَيُلْهِهِمُ الْأَمَلُ﴾ لویو لویو امیدونو دوئ د آخرت نه غافله کړیدی ځکه ایمان نه راوړی نو د طول امل مقصد دا دې چه انسان د آخرت نه غافله شی، حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه کوم سړې اوږده اوږده اُمیدونه ساتی نو دهغه عمل به ضرور خراب وی، اوحدیث شریف کښې د حضرت انس رضی الله عنه نه مروی دی فرمائی چه: ((قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اربعة من الشقاء، جمود العين وقساوة القلب وطول الامل والحرص على الدنيا)) یعنی خلور ځیزونه دا د انسان د بدبختئ علامتونه دی د سترګو اوچوالې د زړه سختوالې اوږد امید، په دنیا باندې حرص ﴿فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ﴾ یعنی آخرت کښې به الله رب العزت ورته بدله ورکړی او یا ترینه پدې دنیا کښې سزا مراد ده، چه هغوئ قتل کیدل شو او قید کیدل شو، دا حکم مخکښې د جهاد نه وؤ او په آیت د

جهاد سره بیا منسوخ شو ﴿ وَمَآ أَهۡلَكۡنَا ﴾ دا تخویف دنیوی دې چه په کافرو باندې به عذاب راځي خو د هر چالپاره یوه خپله نیټه ده او د دې مهلت مقصد دا نه دې چه دوئ ته الله عذاب نه ورکوی.

﴿مِن قَرۡيَةٍ ﴾ ای من اهل قریة ﴿ مَّا تَسۡبِقُ مِنۡ أُمَّةٍ ﴾ په دې کښې مِنۡ زائد دې دپاره دَ تاکید او (امة) فاعل دې د (تسبق) لپاره ای ما تسبق امةٌ ، باقی د دې آیت مکمله تشریح په سورة اعراف آیت نمبر (۳۴) کښې تیره شویده (من شاء فلیطالع ثمه فانه بحث انیق) .

| وَقَالُوا يَا أَيُّهَا الَّذِي نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ إِنَّكَ لَمَجْنُونٌ ۝ |
|---|
| او وائ هغه کافران [۱] اې داسې سړیه چه نازل شویدې په هغه باندې قرآن بیشکه ته خامخا لیونې یې |
| لَوْ مَا تَأْتِينَا بِالْمَلَائِكَةِ إِنْ كُنْتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ۝ مَا نُنَزِّلُ الْمَلَائِكَةَ إِلَّا بِالْحَقِّ |
| ولې نه راولې ته مونږ ته فرښتې کچرته ئ ته دَ ریشتونو نه . نه نازله وؤ مونږ [۲] فرښتې مګر په عذاب سره |
| وَمَا كَانُوا إِذًا مُنْظَرِينَ ۝ |
| او نه به وی دوئ لپاره په دغه وخت کښې مهلت ورکول. |

﴿ وَقَالُوا ﴾ دا شکوی ذکر کیږی، قائلین د دې قول یا عام کفار مکه دی او یا خصوصی طور یو څو کسان دی چه هغه عبدالله ابن امیه، نضر بن حارث، نوفل بن خویلد ، او ولید بن مغیره دی چه دوئ به حضور صلی الله علیه وسلم ته دا خبرې کولې . ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِي ﴾ نداء به ئې استهزاءً کوله ﴿الذِّكْرُ ﴾ مراد ترینه قرآن دې ﴿إِنَّكَ لَمَجْنُونٌ ﴾ نسبت د جنون به ئې (نعوذ بالله) حضور ﷺ ته یا به ئې د دې وجه نه کولو چه دوئ د حضور ﷺ نه نبوت مستبعد ګنړلو او یا ئې د دې وجه نه کولو چه د حضور ﷺ حالت نزول الوحی به مشابه وؤ د حالت دغَشْيِ سره نو ځکه ورته دوئ د جنون نسبت کولو . ﴿ لَوۡ مَا تَأۡتِينَا ﴾ یعنی یو خو دوئ ایمان نه راوړی او بل حضور ﷺ ته د جنون نسبت هم کوی او بیا دَحضور ﷺ نه دا مطالبه هم کوی چه فرښتې دې نازلې شی

۱ - شکوی
۲ - جواب شکوی.

او ستا د نبوت علی الاعلان تصدیق دې وکړی ﴿ لَّوْمَا ﴾ کښې میم یا بدل راغلې دې د «لا» نه او یا «لوما» په معنی د «لولا» سره دې ځکه چه عرب کله په ځائ د لولا «لوما» هم استعمالوی . او لولا د دوه معنو لپاره رازی . کله لپاره د انتفاء الثانی لوجود الاول رازی او کله د تحضیض لپاره رازی. چه په کوم ځائ کښې لپاره د انتفاء الشئ وی نو هلته د «لولا» سره اسم نزدې وی، لکه «لولا علی لهلك عمر» اوچه په کوم ځائ کښې لپاره د تحضیض وی نو هلته ورسره فعل یلی وی ظاهراً یا مضمراً ، نو دلته «لوما» د تحضیض لپاره دې په معنی د «هلا» سره دې . ﴿ مَا نُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ ﴾ دا جواب شکوی ذکر کیږی چه د فرشتو نزول د یو حکمت ماتحت وی او فرشتې تاسو ته عیاناً راتلل لپاره د تصدیق د نبوت د حضور ﷺ نو پدې کښې هیڅ حکمت نشته دې ځکه چه د تصدیق د حضور ﷺ لپاره نورې هم ډیرې نشانئ دی، او د فرشتو نزول په تولو مراحلو کښې وروستنئ مرحله ده اوکچرته ستاسو فرمائش پوره شی او فرشتې نازلې کړې شی او بیا هم تاسو ایمان نه راوړئ لکه دا چه زیات متوقع ده نو د فرشتو د نزول او د اقوامو د فرمائش پوره کولو نه وروسته چه کله ایمان را نه وړې شی نو سنة د الله رب العزت پدې جاری دې چه بیا په هغه قوم باندې عذاب راولی، اوهغو ته هیڅ قسم مهلت نه ورکولې کیږی . ﴿ إِلَّا بِالْحَقِّ ﴾ مراد د حق نه یا عذاب دې یا ترینه مراد حکمت او مصلحت دې او یا ترینه وحی مراد ده . ﴿ وَمَا كَانُوٓا إِذًا ﴾ داجواب شرط دې اوشرط ورله محذوف دې ((ای لونزلنا الملائکة بالعذاب اذا ماکانو منظرین)) .

| إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحٰفِظُونَ ۝ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا |
|---|
| بیشکه مونږ[1] نازل کړیدې دا قرآن او بیشکه مونږ دهغه خامخا حفاظت کونکی یو . او په تحقیق سره مونږ لیږلی وو[2] |
| مِنْ قَبْلِكَ فِي شِيَعِ الْأَوَّلِينَ ۝ وَمَا يَأْتِيهِمْ مِّنْ رَّسُولٍ إِلَّا كَانُوا |
| مخکښې ستا نه رسولان په امتونو مخکنیو کښې . او نه به راتلو هغو ته د یو رسول نه مگر وؤ به هغوئ |

۱ - ترغیب الی القرآن .

۲ - تخویف دنیوی برای مستهزئین .

| |
|---|
| بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ۝ كَذٰلِكَ نَسْلُكُهٗ فِيْ قُلُوْبِ الْمُجْرِمِيْنَ ۝ لَا يُؤْمِنُوْنَ |
| چه په هغه پورې به ئې توقې کولې. دغه شانته ورننه باسو مونږ دا استهزاء په زړونو د مجرمانو کښې. ايمان نه راوړی دوئ |
| بِهٖ وَقَدْ خَلَتْ سُنَّةُ الْاَوَّلِيْنَ ۝ وَلَوْ فَتَحْنَا |
| په دې قرآن باندې او بيشکه تيره شويده طريقه دَالله د مخکښنيو خلکو په باره کښې. او کچرته پرانزو مونږ[1] |
| عَلَيْهِمْ بَابًا مِّنَ السَّمَآءِ فَظَلُّوْا فِيْهِ يَعْرُجُوْنَ ۝ لَقَالُوْٓا اِنَّمَا |
| په دوئ باندې دروازه د آسمان نه او په رڼا ورځ په هغې کښې دوئ وخيژی نوخامخا به بيا هم وائی دوئ چه بيشکه |
| سُكِّرَتْ اَبْصَارُنَا بَلْ نَحْنُ قَوْمٌ مَّسْحُوْرُوْنَ ۝ |
| بند کړې شويدی نظرونه زمونږ بلکه مونږ داسې قوم يو چه سحر را باندې شوې دې. |

﴿ اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا ﴾ ترغيب الى القرآن ذکر کيږی او تمهيد دې لپاره د تخويف دنيوی او دليل ذکر کيږی په صدق د نبوت د حضور صلی الله عليه وسلم چه الله رب العزة فرمائی چه دا وحی زما له طرفه ده او حضور صلی الله عليه وسلم مجنون ندې ځکه چه دا قرآن که چرته د يو بشر يا د الله نه علاوه د بل چا کلام وې اومنزل من عند الله نه وې نو پدې کښې به ډير لوئ اختلافات وو هم لفظًا او هم معنًا ، لکه چه الله تعالى فرمائی : ﴿وَلَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللّٰهِ لَوَجَدُوْا فِيْهِ اخْتِلَافًا كَثِيْرًا ﴾.

﴿ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ ﴾ دا آيت صريح دې په حفاظت د قرآن باندې الله رب العزة د قرآن مجيد د حفاظت ذمه داری اغستې ده لفظًا هم او معنًا هم، د لفظًا حفاظت لپاره د الله ﷻ بې شماره قرّاء او حفاظ پيدا کړيدی چه هغوئ د قرآن مجيد په حفاظت باندې مامور دی د دوئ په سينو کښې الله رب العزة قرآن مجيد محفوظ کړيدې، يو يو آيت ، يو يو حرف حتى چه اعراب پورې الله جل جلاله دوئ ته آسان کړيدی ، اوځه قسم ردو بدل پکښې ممکن نه دې ، اودغه شانتې د قرآن د معنًا حفاظت لپاره الله ﷻ په مختلفو ادوارو کښې ائمه پيدا کړيدی چه هغوئ مختلف علوم مدون کړيدی، صحابه کرام رضوان الله عليهم اجمعين ته په برکت د صحبت د حضور ﷺ د نورو علومو چه فهم د قرآن لپاره ضروری دی د هغې ضرورت نه وؤ خو په مرور د زمانې سره چه کله دغه ضرورت محسوس شو

---

۱ - زجر متعلق بشکوی.

نو الله رب العزة په خپل قدرت بالغه كامله سره مختلف ائمه پيدا كړل او هغو ته ئې د مختلفو فنونو، علومو القاء او الهام اوفرمايلو ، چا ته ئې د اصول تفسير ، چاته ئې د اصول حديث، چا ته ئې اشتقاق ، چاته ئې نحوی، چاته ئې د صرف وغيره القاء اوكړه ، او دغه وجه ده چه په سوونو كاله تيريدو با وجود قرآن مجيد كښې نه څه لفظًا تحريف ، نقص يا زياتې راغليدې اونه معنًا . پدې مقام كښې هغه واقعه چه قرطبی ذكر كړيده د مامون الرشيد او يهودی والا يا دغه شانتې په نورو مقاماتو كښې لكه واقعه د حجاج او دهغه قبيلې چه انكار ئې كړې وو د ميلمستيا د موسى ﷺ نه . قابل ديد دی ، او كچرته بد طينت كوشش هم كړې دې نو الله ﷻ ورل رجال پيدا كړی دی اوهركله چه احاديث د رسول الله صلی الله عليه وسلم معنی او تشريح د قرآن ده او قرآن په مذهب د اهل سنت والجماعت اسم دې د لفظ او معنی دواړو لپاره او وعده د حفاظت د قرآن بجميع اجزائه ده نو دا وعده د حفاظت احاديثو د رسول الله صلی الله عليه وسلم ته هم شامله ده، او دغه وجه ده چه ذ احاديثو د حفاظت لپاره الله ﷻ محدثين پيدا كړل ، هغو په لاكهونو احاديث راجمع كړل او په هغې كښې ئې موضوعی د غير موضوعی نه جدا كړل، صحيح او ضعيف ئې واضح كړل او اصحاب جرح والتعديل احوال د رواتو او دهغو اقسام وغيره مكمل طريقې سره ذكر كړل.

كه څوك اشكال اوكړی چه هركله د قرآن دحفاظت وعده الله كړې وه نو څه ضرورت وو جمع د قرآن ته په دور د ابوبكر صديق رضی الله عنه كښې، او ولې اوفرمائيل حضرت عمر رضی الله عنه «وَاِنِّى اَخْشٰى اَنْ يَّسْتَحِرَّ الْقَتْلُ بِالْقُرَّاءِ فِى الْمَوَاطِنِ فَيَذْهَبُ كَثِيْرٌ مِّنَ الْقُرْآنِ اِلاَّ اَنْ تَجْمَعُوْهُ» نو جواب دا دې چه جمع د قرآن په دور د حضراتو شيخينو كښې دا هم يو سبب وو د اسبابو د حفاظت د قرآن نه چه القاء او الهام كړې وو الله رب العزت اولاً په زړه د حضرت عمر ﷺ كښې بيا په زړه د حضرت ابوبكر صديق رضی الله عنه كښې او بيا په زړه د حضرت زيد بن ثابت ﷺ كښې لكه چه پدې دلالت كوی الفاظ د حضرت ابوبكر ﷺ او د حضرت زيد ﷺ، حضرت ابوبكر رضی الله عنه فرمائی چه «فَلَمْ يَزَلْ عُمَرُ يُرَاجِعُنِىْ فِيْهِ حَتّٰى شَرَحَ اللهُ لِذٰلِكَ صَدْرِىْ» او حضرت زيد ﷺ فرمائی چه «فلم ازل اراجعه حتى شرح الله صدری للذی شرح الله له صدر ابی بكر وعمر» ، «رواه البخاری».

دغه شان دا آيت صريح رد دې په مذهب د شيعه گانو باندې چه بعضې فرقې د هغو نه بلكه نن صبا ټولې فرقې د هغو په تحريف د قرآن قائله دی، او دا وائی چه په اصل قرآن كښې تحريف شوې دې او لس (١٠) هغه سپارې چه مشتملې وې په فضائلو د اهل بيت نو حضرات شيخين (نعوذ بالله) هغه ترينه ويستلی دی ، او دلې د رد په مذهب د دوئ باندې دا دې كه په قرآن كښې تحريف اوشی نو

لازم به شی یا عجز په الله تعالی کښ او یا مخالفت د وعدې خپلې او تالی په دواړو شقوقو سره باطل دې بداهةً مقدم ئې مثل دې، دلیل د ملازمې دا دې چه کله الله رب العزت وعده د حفاظت اوکړه نو اوس به ئی یا د قدرت با وجود نه پوره کوی نو مخالفت د وعدی خپلې راغې، اوکه په پوره کولو ئې قدرت نه وی او حضرات شیخین مانع ګرځیدلی وی لپاره د صدور د فعل نو لازم شوې عجز په باری تعالی کښ، اوکه شیعه ګان اعتراض وکړی چه استدلال دې تام ندې ، نه مخالفت د وعدې شته دې اونه عجز شته دې ځکه چه وعده دحفاظت دهغه قرآن په حق کښ ده چه کوم په لوح محفوظ کښ دې، او مقصد دا دې چه قرآن مجید په لوح محفوظ کښ محفوظ دې او تحریف پدې موجوده قرآن کښ دې ، **اول جواب** ترینه دا دې چه الله ﷻ الفاظ استعمال کړیدی د «نزلنا» او منزل دغه قرآن دې چه کوم موجود دې، **دویم جواب** دا دې چه حفاظت ضرورة په هغه ځائ کښ وی چه په کوم ځائ کښ د نقصان او د تحریف امکان وی نو لوح محفوظ خو د هر قسم خطراتو نه محفوظ دې ، نو بیا اعتراض کوی چه استدلال دې بیا هم تام ندې ځکه چه موعود په حفاظت سره هغه قرآن دې چه په غارسرمن کښ دې او تحریف په دې موجوده قرآن کښ شوې دې .
جواب ترینه اولاً دا دې چه قول په وجود د غار سرمَن دا قول بلا دلیل دې او د واهیاتو نه دې او په وجود باندې ئی نه دلیل عقلی شته دې اونه نقلی شته دې او ثانیًا په تقدیر د تسلیم سره په غار سرمن کښ د حفاظت ضرورة نشته دې ، د چوکیدار ضرورت په هغه ځائ کښ وی چه په کوم ځائ کښ د دشمن نه خطره موجوده وی او چه په کوم ځائ کښ خطره نه وی نو په هغې ځائ کښ چوکیدار اودرول لغو او عبث وی او که څوك او وائی چه ممکنه ده چه دا آیت دې حضراتو شیخینو د خپل ځان نه زیات کړې وی نو جواب دا دې چه متواترات او د یقینیاتو په مقابله کښ توهمات باطل او قابل اعتبار نه وی.

﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا﴾ دا تخویف دنیوی ذکر کیږی د استهزاء کوونکو لپاره او «رسلاً» پکښ مقدر دې د وجه د دلالت نه په دې باندې د «ارسلنا» ، ﴿فِي شِيَعِ﴾ دا جمع د شیعة ده، هغه جماعت او فرقې ته وئیلې کیږی چه په یوه خبره باندې متفق وی او دغه شانتې متبعینو ته هم وئیلې کیږی، دلته ترینه مراد امتونه دی. ﴿كَذَٰلِكَ نَسْلُكُهُ﴾ «نسلك» بالفتح وئیلې کیږی (ادخال الشئ فی الشئ) ته لکه څرنګه چه تار اچولې کیږی په ستنه کښ او مقصد دا دې چه کله د دوئ سرکښی اوعناد زیات شو نو الله د دې په وجه سره د دوئ په زړنو باندې مهر جباریت ثبت کړو لکه چه په ((ختم الله علی قلوبهم)) کښ تیر شویدی، او پدې ځائ کښ مشبه به محذوفه ده ((ای کما سلکنا الکفر فی

قلوب شیع الاولین بالاستهزاء کذلك نسلکه فی قلوب المجرمین)) او مراد په مجرمین سره کفار مکه دی ، او ضمیر په (نسلکه) کښې راجع دې یا استهزاء ته اویا تکذیب ته چه هغه مذکور دی حکمًا په ضمن د «یستهزئون» کښې او ضمیر راجع کول «الذکر» ته دا ضعیف دی او پدې آیت کښې رد دې په مذهب د معتزلو باندې چه هغوئ انسان خالق متصور کوی د خپلو افعال اختیاریو لپاره ﴿وَقَدْ خَلَتْ سُنَّةُ الْأَوَّلِينَ﴾ مراد د سنت نه، سنت اوعادة د الله تعالی دې ، لفظ د الله یا مقدر دې چه هغه مضاف الیه دې اویا اضافت اولین ته د وجه د ادنی ملابست نه دې ځکه چه هغه سبب گرځیدلې وؤ او هغه سنیت د دوئ په باره کښې جاری شوې وؤ نو د دې وجه نه اضافت ئې اولین ته اوشو. او مقصد دا دې چه د الله سنت او عادت دمخکنی خلکو په باره کښې دا چه کله دهغوئ سرکښی زیاته شوه نو الله به هلاك کړل په خپل عذاب سره نو دغه شانتې مشرکین مکه به هم هلاك کړی، او یا دسنت اضافت هم ضمیر ته دې چه هغه مقدر دې او اضافت په خپل ظاهر باندې محمول دې ((ای سنتهم الاولین فی تکذیبهم)) . ﴿وَلَوْ فَتَحْنَا عَلَيْهِم﴾ دا زجر ذکر کیږی چه متعلق دې په شکوی پورې، یعنی د دوئ مطالبه داده چه فرشتې دې نازلې شی، نو الله ﷻ فرمائی چه که دوئ آسمان ته هم اوخیژولې شی او هلته د ورځې په وخت کښې فرشتې په خپلو سترگو اوگورې د قدرت ټول مناظر مشاهده کړی نو بیا هم دوئ په خپل کفر باندې کلك دی او ایمان نه راوړی لکه څنگه چه انشقاق قمر وغیره مناظر د قدرت دوئ مشاهده کړی دی ﴿فَظَلُّوا﴾ ضمیر په (ظلوا) او(یعرجون) کښې یا راجع دې فرشتو ته او یا راجع دې کفاروته او (ظل) امام راغب فرمائی چه ((یعبر به عما یفعل به النهار)) او امام رازی فرمائی چه ((لاتقول العرب ظل یظل الا لکل عمل عمل بالنهار)) په دې کښې اشاره ده چه د دوئ دا ټول مناظر کتل دا به بالکل صاف سترا اوپه رڼرا ورځې کښې وی ﴿لَقَالُوا إِنَّمَا سُكِّرَتْ﴾ تسکیر په سترگو باندې وی ((ای سدت ابصارنا)) یعنی نظر بندی کریده ، او «انما» پدې مقام کښې د حصر لپاره نه دې بلکه مجرد تاکید لپاره دې ځکه چه د تسکین ابصار په مقابله کښې نور افراد محتمله نشته دې نو حصر بلا فائده دې . ﴿بَلْ نَحْنُ﴾ (بل) یا لپاره د ترقی دې ځکه چه تسکیر په سترگو وی او سحر په عقل باندې وی لکه صاحب د بحر فرمائی ((انتقالاً الی درجة عظمی من سحر العقل)) او یا (بل) د اعراض لپاره دې ځکه چه تسکیر او په سکر کښې هغه شې چه په کوم باندې جادو کړې شوې وی هغه هرچاته څه بل شې په حقیقت کښې په نظر رازی، او په سحر کښې هغه

شي مسحوره صرف مسحورينو ته په بل حقيقت کښ ښکاري، نو اولاً به دوئ او وائی چه دا خو نظر بندی ده او په حقيقت کښ هيڅ شي هم نشته دي او د ټولو خلکو نظر بندي شوي ده خو بيا به او وائی چه نه صرف په مونږ باندي سحر شوي دي ، او يا ئی مقصد دا دي چه اولاً به دوئ او وائی چه مونږ آسمان ته نه يو خيژولي شوی ، صرف نظربندی شوي ده ، بيا به او وائی چه نه آسمان ته خيژولي شوی يو خو په سحر سره خيژولي شوی يو .

| وَلَقَدْ جَعَلْنَا فِي السَّمَآءِ بُرُوجًا وَّزَيَّنّٰهَا لِلنّٰظِرِيْنَ ﴿۱۶﴾ |
|---|
| او بيشکه پيدا کړيدی مونږ [1] په آسمان کښ غټ ستوری او خائسته کړي دي مونږ دا آسمان دپاره د کتونکو |
| وَحَفِظْنٰهَا مِنْ كُلِّ شَيْطٰنٍ رَّجِيْمٍ ﴿۱۷﴾ اِلَّا مَنِ اسْتَرَقَ |
| اوحفاظت کړي دي مونږ د دې آسمان د هر شيطان رټلی شوی نه . مگر هغه شيطان چه په غلا سره يوسی |
| السَّمْعَ فَاَتْبَعَهٗ شِهَابٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۸﴾ |
| هغه خبره اوريدلې شوې ، پس روانه شی په هغه پسې شغله ښکاره . |

﴿وَلَقَدْ جَعَلْنَا﴾ اول دليل عقلی تفصيلی ذکر کيږی چه مشتمل دي دَ آفاقی په دري اقسامو باندي چه هغه علوی ، جوی او سفلی دی او دغه شان مشتمل دي په دليل عقلی انفسی باندي

﴿بُرُوجًا﴾ دليل عقلی علوی دي ، دا د برج نه دي چه ماخوذ دي د (برجت المرأة نه ای اذا ظهرت)، د بروج نه په نيزد د بعضو هغه منازل د سياراتو مراد دی چه هغه دولس منازل او د اووه (۷) سياراتو لپاره دی ، هغه دولس منازل دادی : ((حمل ، ثور، جوزاء ، سرطان، اسد ، سنبله، ميزان، عقرب، قوس ، جدی ، دلو ، حوت))، نو اسد لپاره د شمس دي ، قمر لپاره د سرطان دي، مريخ لپاره دحمل او عقرب ، زهره لپاره د ثور او ميزان، عطارد لپاره د جوزاء او سنبله ، مشتری لپاره قوس اوحوت، زحل لپاره جدی او دلو ، نو هر برج مشتمل دي په ديرش (۳۰) درجو باندي او يا هر برج مشتمل دي په دوه منزله او يو ثلث منزل باندي، نو نمر په ورځ کښ يوه درجه او يا په ديارلس (۱۳) ورځو کښ يو منزل پوره کوی، او قمر په (۲۸) ورځو کښ د هغه منازل پوره کوی، او تفصيل ئی په سورة (يونس) آيت نمبر (۵) کښ تير شوي دي ، او امام مجاهد رحمه الله ترينه تفسير په ((هی النجوم العظام))

---

۱ - اول دليل عقلی تفصيلی، نفی د شرك فی التصرف او شرك فی العلم .

یعنې غټ غټ ستورو سره کړې دې ، په دلیل د عطف د ((زیناها)) سره څکه تزئین د آسمان په ستورو سره دې ، او بعضې فرمائی چه مراد ترینه هغه لوئ لوئ محلونه دی په آسمان کښې چه د فرشتو د پهره دارئ لپاره جوړ کړې شویدی ﴿وَزَيَّنَّهَا لِلنَّظِرِينَ﴾ مراد په نظر کوونکو سره په نظر د عبرت سره نظر کوونکی دی ، په دې کښې اشاره ده دیته چه دا ستوری محض زینت لپاره نه دی بلکه په دې سره نورفوائد هم اخستلې کیږی څکه چه اسباب د عبرت په دو کښې متعدد دی ﴿وَحَفِظْنَهَا﴾ یو مقصد د ستورو نه هغه تزئین د آسمان وؤ او عبرت سره نظر کوونکو ته پکښې اسباب د عبرت دی، دغه شانتې یوبل مقصد هغه حفاظت د آسمان دې په دې سره د شیاطینونه، د اسمان حفاظت د شیاطینو نه د دې مقصد څه دې ؟ څکه چه شیاطین خو په ورانولو د آسمان نه دی قادر ، د دې مقصد دادې چه حفاظت د قربت او مقاربة نه مراد د دې نو په نیزد د بعضو شیاطین دجنت نه د رتلو نه پس آسمان ته ندی ختلی او په نیزد دبعضو د بعثت د حضور صلی الله علیه وسلم نه پس ندی ختلی او د دې وضاحت په اثر د ابن عباس ﷺ کښې راغلیدې چه هغه فرمائی چه شیاطین به بغیر د څه مانع نه آسمانونو ته ختل او هلته به ئی د فرشتو مختلفې خبرې واوریدلې د غیب والا او بیا به ئی کاهنانو ته هغه دغیب خبرې راوړلې ، چه کله ولادت د حضرت عیسی ﷺ اوشو نو دوئ په درې آسمانونو باندې بند کړې شو خو دې نورو ته به بلا ممانعت ختل، خو چه کله ولادت مبارکه د حضور صلی الله علیه وسلم وشو نو دوئ په ټولو آسمانونو باندې بند کړې شو،نوهرکله چه دوئ هغه خپلو مقاعدو باندې بند کړې شو نو دوئ دغه فریاد ابلیس لعین ته وکړو نو هغه ورته او وئیل چه ضرور څه نوې واقعه به شوې وی، نو هغوئ ئی ولیږل چه تاسو وګورئ ، نوهغوئ ګرځیدل چه څینې طائفې د دوئ نه د حضور ﷺ قرآن مجید واوریدلو نو وې وئیل چه بس همدغه واقعه رونما شویده څکه مونږ په آسمانونو باندې بند کړې شوی یو ، نو هرکله چه دوئ په آسمان باندې بند کړې شو نو بیا دوئ د فرشتو د کلام اوریدو لپاره قریب اسمان ته څی نو الله رب العزة د آسمان حفاظت د دوئ د مقاربت نه په ذریعه د ستورو سره اوکړو .

﴿شَيْطَنٍ رَّجِيمٍ﴾ دا د رجم نه دې ، رجم د اصل لغت په اعتبار سره رمی بالحجارة ته وئیلې کیږی، بیا ئی توسعًا اطلاق په مختلفو معانیو باندې کیږی، اطلاق ئی په لعن او طرد «رټل» باندې کیږی لکه اعوذبالله – الخ ، کله ئی اطلاق په قول تخمینی غیر یقینی باندې کیږی لکه په سورة الکهف کښې دی ((رجمًا بالغیب)) ، کله یې په معنی د شتم اوکنځلو سره رازی لکه په سورة مریم کښې په واقعه د حضرت ابراهیم ﷺ کښې ((لارجمنك واهجرنی)) اوکله په معنی د هر ویشتلې شوی شئ سره

رازی لکه په سورة الملك کښې دی ((وجعلناها رجومًا للشياطين)) اوکله په معنیٰ د قتل سره هم رازی لکه عرب وائی چه ((رجمت فلان)) او شیطان ته رجیم د دې وجه نه وئیلې کیږی چه دې رټلې شوې دې، ملعون شوې دې او یا ورته د دې وجه نه وئیلې کیږی چه دې ویشتلې کیږی بار بار فرشتې ئې په شهاب ثاقب سره ولی ﴿إِلَّا مَنِ ٱسۡتَرَقَ ٱلسَّمۡعَ﴾ (استرق) د باب افتعال نه دې په معنی د سرقه سره. یعنی اخذ الشئ بخفیة. او (السمع) په معنی د مسموع سره دې او استثناء بناء بر مذهب اکثر منقطع ده ځکه چه دا سرقه په ماقبل کښې د اخله نده ځکه چه کوم شې دویٔ اوریدلې دې هغه بهر د آسمان نه دې او غیر دې د وحې نه او چه کوم محفوظ دې نو هغه په آسمان کښې دې او هغه دویٔ اوریدلې نشی چه هغه وحې ده او یا استثناء متصله ده او مراد په (حفظناها) سره حفاظت علی الاطلاق دې او سرقه فی الجمله دویٔ کوی (روح). ﴿فَأَتۡبَعَهُۥ شِهَابٞ مُّبِينٞ﴾ (فاء) په جواب د (من) موصوله کښې راغلیده (او اتبع) باب افعال دې، فرق په مابین د اتبع او تبع کښې دا دې چه تبع مطلقًا په جا پسې روستو تللو ته وئیلې کیږی او اتبع هغه تللو ته وئیلې کیږی چه تیز وی اومخکښې را اونیسی، د دې وجه نه الله ﷻ لفظ د اتبع استعمالوی. او شهاب وئیلې کیږی م((شعلة نار ساطع)) یعنې د اور سپینې پړه قیدونکې شغلې ته وئیلې کیږی، او مقصد دا دې چه کله هم دویٔ آسمان کښې د فرشتو د خبرو اوریدلو کوشش کوی نو فرشتې ئې په هغه شهاب ثاقب باندې ولی، لکه په حدیث د حضرت ابو هریرة ﷺ کښې چه راغلیدی چه امام بخاری رحمه الله ذکر کړیدې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمایلو چه کله الله پاك د یوې خبرې او یا یو کار په آسمان کښې فیصله اوکړی نو فرشتې د اطاعت او احترام له وجه نه خپلې وزرې وه رپوی او دهغې نه داسې آواز پیدا شی لکه د یو غټ کمر په کانړی باندې د زنځیر راښکلو سره چه څنګه آواز پیدا کیږی، اوکله چه د زړونو نه خوف ختم شی نو یو بل ته او وائی چه ستاسو رب څه اوفرمائیل نو نورې فرشتې په جواب کښې ورته او وائی چه بالکل حق وئیلی دی الله ، اوهغه بلند او لویٔ ذات دې ، نو دغه شیاطین چه هغه مسترقین السمع دی هغویٔ دغه کلمه او دغه خبره واوری او دویٔ د یو بل د پاسه وی نو هر یو چه دپاسه ولاړوی هغه لاندینی ته هغه خبره اوروی حتی چه هغه د ټولو نه اخیری شیطان هغه کاهن ته دغه خبره راورسوی ، نو کله داسې اوشی چه د دغه خبرې د را رسولو نه مخکښې مخکښې فرشته هغه شیطان په شهاب باندې وه ولی او کله دې را رسولو کښې کامیاب شی او فرشته ئې روستو او ولی – الخ ، او په دویم

حدیث کښې دا مضمون داسې راغلیدې چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه فرښتې دهغې فیصله شوې خبرې تذکره په وریځو کښې کوی او دغه شیاطین هغه خبره په غلا باندې واوری او بیا ئی د کاهن په غوږ کښې واچوی، او کاهن ورسره سل (۱۰۰) دروغ یوځائ کړی - الخ

په دې مقام کښې یو څو مباحث دی: **اول بحث** دا دې چه. شیاطین به قبل البعثت ویشتلی کیدل اوکه نه؟ نو پدې کښې دوه اقوال دی: یو قول دا دې چه قبل البعثت د شیاطینو رجم نه وؤ بلکه دا بعد البعثت شروع شویدې، لپاره د تشریف او تعظیم د نبوت د حضور ﷺ لکه دا قول د زجاج وغیره دې، او دلیل ئی نیولې دې په روایت د حضرت ابن عباس رضی الله عنه سره چه په صحیحینو کښې مذکور دې چه فرمائی: حضور ﷺ د یوې ډلې د اصحابو سره عکاظ بازار ته لاړو او بیشکه د شیاطینو او آسمانی خبرو کښې حائل واقع شوی وؤ او په هغوئ باندې شهاب ثاقب ویشتل شروع شوی وؤ -الخ ، او دغه شانتې د حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه: «لَمَّا كَانَ يَوْمُ الَّذِيْنَ نُبِئَ رَسُوْلُ اللهِ فَرُمِيَ بِهَا» یعنی چه کله حضور ﷺ ته نبوت ورکړې شو نو د شیاطینو ویشتل شروع شو او دغه شانتې د حضت ابی بن کعب رضی الله عنه قول دې چه فرمائی: «لَمْ يَرْمِ بِنَجْمٍ مُنْذُ رُفِعَ عِيْسٰى عليه السلام حَتّٰى نُبِئَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم فَرُمِيَ بِهَا» یعنی شیاطین به په ستورو نه ویشتل کیدل کوم وخت نه چه عیسی علیه السلام آسمان ته اوچت کړې شوې وؤ تر دې پورې چه حضور صلی الله علیه وسلم ته نبوت ملاؤ شو نو د هغوئ ویشتل شروع شول.

دویم قول چه د اکثرو مفسرینو قول دې هغه دا دې چه شیاطین به قبل البعثت هم ویشتلې کیدلې خو دغه ویشتل ئی کم وؤ اوبعد البعثت پکښې کثرت راغلو، او د دې قول لپاره ډیر شواهد دی لکه په سورة الجن کښې الله ﷻ د جناتو او شیاطینو قول نقل کړې دې چه ﴿مُلِئَتْ حَرَسًا شَدِيدًا وَشُهُبًا﴾ د دې نه معلومیږی چه اول نه به هم وؤ خو بعد البعثت پکښې شدت او دیر والې راغلې، یعنې دا چوکیداری زیاته شوه او سخته شوه حتی چه ټول مواضع ئی ډك اوبند کړل.

دویم شاهد د دې قول لپاره هغه دا قول د الله تعالی دې چه په سورة الملك کښې فرمائی: ﴿وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيحَ وَجَعَلْنَاهَا رُجُومًا لِّلشَّيَاطِينِ﴾ نو پدې آیت کښې الله رب العزة د ستورو یوه فائده دا ذکر کړیده چه دا زینت دې لپاره د آسمان او دویمه فائده ئی دا ذکر کړیده چه دا رجومًا للشیاطین دی نو څنګه چه زینت قبل البعثت موجود وؤ نو دغه شانتې رجم للشیاطین به هم قبل البعثت وی.

دریم شاهد هغه حدیث د ابن عباس رضی الله عنه دې چه نقل کړیدې بیهقی په کتاب القسامة ، باب ما

جاء فی النهی عن الكهانة ، فرمائی چه : ((بینا النبی صلی الله علیه وسلم جالسًا فی نفر من اصحابه اذ رُمیَ بنجم فاستنار فقال علیه الصلوة والسلام : ماکنتم تقولون فی مثل هذا فی الجاهلیة، قالوا کنا نقول یموت عظیم او یولد عظیم، فقال النبی صلی الله علیه وسلم انما لاترمی لموت احد ولا لحیاته ولکن الله سبحانه وتعالی اذا قضی امرًا فی السماء سبح حملة العرش – الخ )) دا حدیث صریح دې پدې خبره چه دا به په جاهلیت کښې هم وؤ او دغه شانتې چه کله د امام زهری رحمه الله نه تپوس اوکړې شو چه ((اَکان فی الجاهلیة؟ قال نعم)) .

څلورم شاهد هغه اشعار د جاهلیت دی، د جاهلیت په اشعارو کښې د دې تذکرې میلاویږی، لکه د جاهلیت د زمانې شاعر اوس بن حجر هغه په خپلو اشعارو کښې تذکره کړیده :

فانقض کالدری یتبعه　　　　نقع یثور تخاله طنب

او په شعر د عوف بن خرم کښې دی :

یرد علینا العیر من دونه الفه　　　　اوالثور کالدری یتبعه الدم

او په شعر د ذوالرمة کښې دی

کانه کوکب فی اثر عفریة　　　　مسوّم فی سواد اللیل منقضب

او پنځم شاهد د دې قول لپاره هغه اتفاق د فلاسفو متقدمینو او متاخرینو دې په دې چه سبب د انقضاض د شهاب څنګه چه بعد البعثت موجود دې نو دغه شانتې قبل البعثت هم موجود وؤ چه هغه ارتفاع د بخاراتو ده او بیا د شدت حرارت دوجه نه لمبه واخلی نو تعبیر ترینه کیږی په شهاب ثاقب سره .

بعضې خلکو تطبیق داسې کړیدې چه قبل البعثت به شهاب ثاقب موجود وؤ خو د نورو فوائدو لپاره او رجم د شیاطینو به ورسره نه کیدلو او بعد البعثت ترینه دا فائده اخستلې کیږی، خو دا قول بلا دلیل دې او مخالف دې د سورة الجن دآیت د مضمون سره او د حدیث د ابن عباس ﷺ سره، نو زیات صحیح مذهب دا دې چه قبل البعثت هم دا رجم موجود وؤ خو بعد البعثت پکښې تشدید او زیاتوالې راغلې دې، تعظیمًا وتشریفًا لنبوة نبینا صلی الله علیه وسلم .

**دویم بحث هغه** دا دې چه آیا شیاطین په رجم سره مړه کیږی اوکنه ؟ حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه یو قول دا منقول دې او دا قول راجح دې چه هغه فرمائی : شهاب سره دوئ قتل کیږی نه بلکه کله ورسره ګډ شی، کله ورسره لیونې شی چه بیا په لارو کښې خلک یروی، ماشومان یروی، او د حضرت حسن بصری رحمه الله نه روایت دې، هغه فرمائی چه په شهاب سره دوئ قتل کیږی. اوبعضې

علماء اودغه شانتې حضرت ابن عباس ﷺ ته هم دا قول منسوب دې چه فرمائي چه په شهاب سره خینې ګډ اوشل شی، حینې ورسره لیونی شی او خینې ورسره قتل شی. لیکن دا وروستنی دواړه اقوال مرجوح دی.

**دویم بحث** هغه څه سوالات اوجوابات دی پدې موضوع کښې چه امام رازی ﷫ وغیره نقل کړیدی: (۱) **اول اشکال**: دا دې چه هرکله شیاطین په شهاب ثاقب سره قتل کیږی او یا ورته نور نقصان رسیږی نو څه وجه ده چه هغوئ بیا بیا عود کوی، څکه چه په کوم شی کښې نقصان متیقن وی نو هغې کارته څوك هم عود نه کوی، نو معلومه شوه چه دوئ ته به څه نقصان نه رسی. نو **جواب** دا دې چه د انسان ګمراه کول دا د دوئ د زندګئ مقصد دې او د مقصد د حصول لپاره هر قسم تکلیف برداشت کول آسان وی، حضرت مولانا شبیر احمد عثمان ﷫ فرمائي چه څنګه بعضې خلکو د خپلې زندګئ مقصد د قطب جنوبي او دهمالیه اوچتو غرونو تحقیق کول ګرزولیدی او په هغې کښې مختلفو افرادو ته نقصانات ملاؤ شیدی حتی چه اکثر پکښې مړه شی خو بیا هم نور کسان دغه جداوجهد نه پریږدی نو دغه شانته پدې باندې د شیاطینو جدوجهد هم قیاس دې، اوامام رازی ﷫ فرمائي چه کله قضاء راشی نو سترګې ړندې شی او د نقصان والا کار کښې بیا هغه ته خوند او سرور محسوسیږی اوهغه کار پریخودلو ته تیار نه وی.

**دویم اشکال** دا دې چه د ثخن د آسمان پنځه سوه کاله د مسافت برابر دې اوس به یا شیاطین آسمان ته داخل شوی وی او یا به نوی داخل شوی، اول یعنی دخول ئې باطل دې څکه چه هغه مستلزم دې فطور لره په آسمان کښې او فطور په آسمان کښې نشی راتلې له وجه د دې قول د الله تعالی نه چه فرمائي: ﴿فَارْجِعِ الْبَصَرَ هَلْ تَرَىٰ مِن فُطُورٍ﴾ اوکه داخل شوې نه وی نو دومره بعید مسافت نه څنګه دوئ د فرشتو کلام اوری؟ نو **جواب** اولاً په تقدیر دمنع سره دې چه نه منم چه ثخن د آسمان د پنځه سوه کاله مسافت برابر دې بلکه د احادیثو د تصریح مطابق دا مسافت دیو آسمان نه بل آسمان پورې دې، او ثانیًا په تقدیر د تسلیم سره دغه کلام د فرشتو چه دوئ ئې آوری دا په عنان او په وریځ کښې وی لکه په حدیث د بخاری شریف کښې ذکر دی چه مخکښې تیر شوې دې، او مولانا شبیر احمد عثمانی ﷫ فرمائي چه دا اوریدل داسې وی لکه نن صبا وائرلس، موبائل فون وغیره شو، نو ممکنه ده چه دې شیاطینو هم د فرشتو د کلام اوریدلو لپاره دغه شانتې څه طریقې ئ اختیار کړې وی.

**دريم اشكال** دا دې چه شهاب ثاقب د أور لمبه ده او د شياطينو تخليق هم د أور نه شوې دې، نو اور خو اور ته تقويت ورکوى ، نقصان نه ورکوى، نو څنګه به ورسره شيطان قتل شى يا به ګډ اوشل شى؟ نو **جواب** دا دې چه د شيطان دمادې تخليق صرف د أور نه ندې بلکه أور پکښې عنصر غالب دې لکه څنګه چه د انسان مادهٔ تخليق صرف خاوره نده بلکه خاوره پکښې عنصر غالب دې د دې وجه نه خاوره د انسان وجود خورى، نو هرکله چه د شيطان ماده دَتخليق صرف اور نه شو بلکه اور پکښې عنصر غالب شو او شهاب ثاقب خو خالص اور دې نو د دې وجه نه په شهاب ثاقب سره شيطان ته نقصان رسيږى.

**خلورم اشكال** پدې مقام کښې دا دې چه الله پاك د دوئ نه د آسمان ته قريب ختلو والا طاقت ولې نه سلب کوى چه بيا په شهاب ثاقب سره د ويشتلو ضرورت هم پاتې نشى ؟ نو **جواب** دا دې چه په هر کار کښې د الله پاك يو خپل حکمت او مصلحت وى ، د آسمانونو نظام الله پاك په داسې يو مضبوطې طريقې سره جوړ کړې دې چه شيطان هلته د قدم اينېخودلو بالکل طاقت نه لرى او يا د آسمانى فيصلو په باره کښې څه معلومات حاصل کړئ دا بالکل ممکن نده، خو د ډېر لوئ محنت نه وروستو يو لفظ د فرشتو نه په پټه را تښتول که چرته الله رب العزة اراده شوې وې دا به ئې هم منع کړې وؤ خو دا طريقه نه بنده ول پدې کښې د الله پاك ضرور يو حکمت او مصلحت وى لکه د انسان آزمائش وغيره شو.

**پنځم مشهور اشكال** هغه دا وارديږى چه سرقه د کلام ممکنه ده، خو ورستو له صوت او آواز نه، او صوت حاصليږى په تموج د هوا سره څکه چه د صوت تعريف د علماؤ نه داسې منقول دې چه ((كيفية قائمة بالهواء يحملها الى الصماخ )) يعنى صوت هغه کيفيت ته وئيلې کيږى چه قائم وى په هوا پورې او هوائى غوږونو ته رسوى، اوعلامه تفتازانى ﷫ د دې تشريح داسې کړيده : فرمائى چه ((والصوت يحصل من التموج المعلول للفرع الذى هو اساس عنيف، والقلع الذى هو تفريق عنيف بشرط مقاومة المقروع للقارع والمقلوع للقالع)) نو معلومه شوه چه آواز پيدا کيدل دا د هواء د وجه نه دى او په مقعر الفلك کښې هو انشته دې نو څنګه صوت پيدا شو چه شياطين دهغې سرقه کوى ؟ **جواب** دا دې چه الله پاك قادر مطلق ا و فاعل مختار ذات دې نو ممکنه ده چه الله پاك په هغه ځائ کښې د صوت پيدا کولو لپاره بل سبب پيدا کړې وى ، او يا د فرشتو دا کلام تحت مقعر الفلك وى يعنى په خلاء کښې دې نه وى بلکه په وريځ کښې دې وى لکه چه حديث کښې ذکر شوى دى چه مخکښې تير شو او وريځ په خلاء کښې نده بلکه هلته هواء موجوده ده .

**تنبیه** دفلاسفهؤ او سائنسدانانو تحقیق دا دې چه شهاب ثاقب حقیقت هغه د زمکې بخارات دی چه په هغې کښې څه ماده د اور هم وی او چه کله بره اوخیژی نو دشدت حرارت نه د اُور یو د لمبه ترینه جوړه شی، د دوئ دا قول د قرآن مجید سره څه منافات نه لری ځکه چه قرآن د اشیاؤ د ساخت او اجزاؤ د ترکیب نه بحث نه کوی بلکه د هغې مقاصد بیانوی او سائنس هغه د اشیاؤ ساخت بیانوی نو ممکنه ده چه د دې اجزاء او حقیقت دې هغه بخارات وی چه مشتمل دی په ماده ناریه باندې، او الله پاک دې د دې تخلیق درجم شیاطین لپاره کړې وی.

| |
|---|
| وَالْأَرْضَ مَدَدْنٰهَا وَأَلْقَيْنَا فِيْهَا رَوَاسِيَ وَأَنْۢبَتْنَا فِيْهَا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ |
| او زمکه غوړولې ده مونږ او ایخی دی مونږ په هغې کښې غټ غرونه او زرغون کړی دی مونږ په دې کښې د هر څیز نه |
| مَّوْزُوْنٍ ۝ وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيْهَا مَعَايِشَ وَمَنْ لَّسْتُمْ لَهٗ |
| په اندازې سره . او گرزولی دی مونږ ستاسو لپاره په هغې کښې اسباب د ژوند تیرولو اوداسې مخلوق چه نه یئ تاسو هغوئ ته |
| بِرٰزِقِيْنَ ۝ وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا عِنْدَنَا خَزَآئِنُهٗ ۚ وَمَا نُنَزِّلُهٗٓ اِلَّا بِقَدَرٍ مَّعْلُوْمٍ ۝ |
| روزی ورکونکی . او نیشته هیڅ شې مگر زمونږ سره دهغې خزانې دی ، او نه نازله وؤ مونږ هغې لره مگر په اندازې معلومې سره . |

﴿ وَالْأَرْضَ مَدَدْنٰهَا ﴾ دا دلیل دې د سفلیاتونه، «مد دنا» په معنی د «بسطنا» سره دې ، د زمکې د بسط نه تعبیر په مختلفو الفاظو سره شوې دې ، کله ترینه تعبیر په لفظ د «مد» سره کیږی لکه پدې ځائې کښې او په سورة الرعد آیت نمبر «۳» ﴿ وَهُوَ الَّذِىْ مَدَّ الْأَرْضَ ﴾ کښې شو ، کله ورله لفظ د «دحو» استعمالیږی لکه په سورة النازعات ، آیت نمبر «۳» ﴿ وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذٰلِكَ دَحٰىهَا ۝ ﴾ کښې شو او په ځینې مقاماتو کښې په لفظ د فرش سره ذکر شوې دې لکه په سورة البقرة ، آیت نمبر «۲۲» ﴿ الَّذِىْ جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ فِرٰشًا ﴾ کښې ، یا په سورة الذاریات ، آیت نمبر «۴۸» ﴿ وَالْأَرْضَ فَرَشْنٰهَا فَنِعْمَ الْمٰهِدُوْنَ ﴾ کښې شو ، د دې ټولو نه مراد بسط او خورول د زمکې په داسې طریقې سره دی چه اوسیدونکی ترینه فائده واخلی ، باقی د اهل هئیت دا خبره چه زمکه کرّه ده او سطح مستوی نده پدې آیت کښې د دوئ د دې قول څه نفی نشته دې ځکه چه زمکه کره عظیمه ده ، اوکره عظیمه په شانته دې سطح مستوی ، **اشکال** واردیږی چه په سورة انشقاق آیت نمبر «۳» ﴿ وَاِذَا الْأَرْضُ مُدَّتْ ﴾ کښې الله پاک «مد» د زمکې په ورځ د قیامت خودلې دې ، او پدې آیت کښې ئې قبل القیامت ښودلې دې ، **جواب** دا دې

چه هلته ترینه مراد مد کامل اوبسط کامل دی چه نه به پکښې غرونه وی اونه به پکښې څه کندې وی لورې او جورې به پکښې نه وی ، خالص یو مستوی میدان به وی لکه الله پاك فرمائی ﴿لَّا تَرَىٰ فِيهَا عِوَجًا وَلَا أَمْتًا ﴿١٠٧﴾﴾ او دلته ترینه مراد مطلق بسط او مطلق مد دې په داسې طریقې سره چه فائده ترینه اخیستلې کیږی

﴿وَأَلْقَيْنَا فِيهَا رَوَاسِيَ﴾ جمع د راسیه ده اوهغه جمع د راس ده گویا که چه دا جمع الجمع ده ، غرونو ته وئیلې کیږی ، یعنی الله پاك دا غرونه په زمکه باندې د میخونو په طور اولگول لکه په سورة النباء ، آیت نمبر (۷) کښې فرمائی ﴿وَالْجِبَالَ أَوْتَادًا﴾ اودغه شانته په سورة النحل آیت نمبر (۱۵) کښې فرمائی چه ﴿وَأَلْقَىٰ فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَن تَمِيدَ بِكُمْ﴾ ، د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه منقول دی چه فرمائی : کله چه الله پاك زمکه په اوبو باندې خوره کړه نو دا خوزیدله لکه څنگه چه کښتئ یو طرف او بل طرف ته خوزیږی نو الله پاك دپاسه دهغې غرونه پیدا کړل لپاره د دې چه قابل د انتفاع شی ﴿وَأَنبَتْنَا فِيهَا﴾ ظاهر دا دې چه ضمیر راجع دې زمکې ته ، او بعضې فرمائی چه (رواسی) یعنی غرونو ته راجع دې ځکه چه هغه قریب دی ﴿مِن كُلِّ شَيْءٍ مَّوْزُونٍ﴾ موزون په معنی د اندازې سره دې ، په دې کښې اشاره ده دیته چه د هرشی لپاره الله رب العزة د مصلحت مطابق یوه اندازه مقرر کړیده چه دغه شئ د هغه اندازې نه بهرته نشی وتلې ، حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمائی ((هر نوع را صورتی وصفتی است که از آنجا تجاوز نمیکند)) ، او یا ترینه مراد اشیاء موزونه دی لکه سپین زر ، سره زر ، پیتل ، اوسپنه ، رانجه وغیره شو چه دا ټول معدنیات چه تللې کیږی الله پاك د زمکې نه پیدا کړی دی ، او یا د موزون نه مراد قابل رتبه اشیاء دی او مقصد دا دې چه پدې زمکه کښې څه اشیاء داسې هم دی چه هغوئ ته یوه خصوصی رتبه حاصله ده (مظهری) .

﴿وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيهَا مَعَايِشَ﴾ جمع د معیشة ده ، وئیلې کیږی (ما یعیش به الانسان) ته ، یعنی اسباب د ژوند د تیرولو په دنیا کښې لکه خوراك ، څښاك وغیره شو دا ټول د زمکې نه دی . ﴿وَمَن لَّسْتُمْ لَهُ بِرَازِقِينَ﴾ په معطوف علیه د ((من لستم)) کښې دوه احتماله دی ، یو احتمال دا دې چه دا دې عطف شی په (لکم) کښې په (کم) ضمیر مجروره باندې او دا احتمال زیات راجع دې او مقصد د آیت دا دې چه ستاسو لپاره اوستاسواولاد ، خادمانو وغیره لپاره د روزی اسباب مونږ دزمکې نه پیدا کړیدی ، باقی پاتې شو د نحویانو قانون چه (اذَا عُطِفَ عَلَى الضَّمِيرِ الْمَجرور

أُعِيدَ الْخَافِضُ» نو دا قانون کلی نه دي ، صرف د بصریانو په مذهب اعاده دخافض واجبه ده .
او دویم احتمال دا دي چه دا دي عطف شی په «معایش» باندي او مقصد د آیت دا دي چه ستاسو لپاره مونږ معایش هم پیدا کړیدی په زمکه کښې اوهغه اشیاء هم چه تاسو ورله رزق ورکوونکی یئ، او مراد د (من لستم) نه واړه بچی، غلامان، وینزې او څناور وغیره دی . او پدې کښې رد دې د کفارو په هغه فاسدې عقیدې باندې چه غلامان ، وینزې او ماشومان بچونه رزق مونږ ورکوو ، نو الله پاك اوفرمائیل : رزق ورکوونکې ټولو ته صرف زه یم. اسباب د روزی د ټولو لپاره ما پیدا کړی دی .

**تنبیه** : «مَنْ» د ذوی العقولو لپاره مختص دې او په آیت کښې ذوی العقول او غیر ذوی العقول دواړه مراد دی خو بیا هم «مَنْ» راوړې شو ، وجه دا ده چه کله په یو کلام کښې ذوی العقول او غیر ذوی العقول دواړه جمع شی نو غلبه به ذوی العقول ته ورکولې کیږی د دې وجه نه دلته هم من راوړې شو ، او بعضې فرمائی چه په آیت کښې صرف عیال، ممالیك ، خدم او عبید مراد دی، په دلیل د استعمال د لفظ «من» سره ، اوبعضې فرمائی چه «من» په معنی د «ما» سره دې او مراد ترینه غیر ذوی العقول دی ، او «من» کله کله په معنی د «ما» سره راځی لکه څنګه چه «ما» کله کله په معنی د«من» سره راځی، او امام رازی رحمه الله فرمایی چه «من» د غیر ذوی العقول لپاره هم استعمالیږی حقیقةً ، ځکه چه غیر ذوی العقول مشابه دی د ذوی العقول سره په طلب د حاجت پوره کولو کښې د الله تعالی نه، او د دې وجه نه خطاب ورته په صیغې د جمع عقلاؤ سره شوې دې په سورة النمل کښې چه ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّمْلُ ٱدْخُلُوا۟ مَسَٰكِنَكُمْ﴾ اودغه شان په سورة الانبیاء آیت نمبر (۳۳) کښې هم ذکر شوی دی په صیغه د جمع عقلاؤ سره چه ﴿كُلٌّ فِى فَلَكٍ يَسْبَحُونَ﴾ ، امام رازی رحمه الله واقعه نقل کړیده چه بعضې علاقو کښې ګرمی سخته شوه او اوبه ختمې شوې نو ځینې څناور وکتلې شو چه هغوئ خپل سرونه آسمان ته اوچت کړی وؤ د سختې تندې د وجهې نه ، نو وریځ راغله او باران اوشو چه ټولې وادیانې د اوبونه ډکې شوې . ﴿وَإِن مِّن شَىْءٍ إِلَّا عِندَنَا﴾ حرف نفی اوحرف استثناء مفید لپاره د حصر دی، پدې ایت کښې دوه قدرتونو باندې تصریح ده : یو دا چه ټولې خزانې د رزق د الله پاك په قدرت کښې دی ، دویم دا چه تصرف کوونکې ، تقسیم کوونکې هم الله پاك دې، که د چا دا عقیده وی چه د الله پاك نه علاوه یو بزرګ ، ولی حتی چه پیغمبر هغه د خزانو د رزق مالك دې ، یا ورسره تصرف خدائی دې د آیت په رو سره مشرك او کافر دې ﴿خَزَآئِنُهُۥ﴾ مراد د خزائنونه یا باران دې ځکه

چه پدې سره زمکې نه نباتات او رزق را خیژی او هرشې ورسره ژوندې کیږی او باران سبب د رزق د انسانانو ،وحوشو ، طیورو دې ، او یا ترینه مراد مفاتیح د خزائنو دی ((ای فی السماء مفاتیح الارزاق)) . (قرطبی) ، په دې کښې اشاره ده وسعت د قدرت ته (روح) ﴿وَمَا نُنَزِّلُهُۥٓ إِلَّا بِقَدَرٍ مَّعْلُومٍ﴾ په دې کښې اشاره ده بلوغ دحکمت ته ، یعنی الله سره بې حسابه خزانې دی د رزق دی ، خو مخلوقاتو ته ئې د مصلحت مطابق ورکوی، او مراد د نزول نه ابداع، ایجاد او انشاء ده او تعبیر ترینه په نزول سره د دې وجه نه اوشو چه د خزانو ایجاد دا په طریقه د تفضل او امتنان سره دې دعالم علوی نه عالم سفلی ته او ﴿بِقَدَرٍ مَّعْلُومٍ﴾ نه مراد دادې چه په هرې زمکې کښې الله پاك د باران لپاره یو حد او مقدار مقرر کړې دې.

| |
|---|
| وَأَرْسَلْنَا الرِّيٰحَ لَوَاقِحَ فَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَأَسْقَيْنٰكُمُوهُ |
| او لیگو مونږ هواگانې بارې کونکې (بلاربونکې دی (وریځو لره) پس را اوورو مونږ د آسمان نه اوبه، پس اوڅکو تاسو ته هغه |
| وَمَآ أَنتُمْ لَهُۥ بِخٰزِنِينَ ﴿٢٢﴾ وَإِنَّا لَنَحْنُ نُحْىِۦ وَنُمِيتُ وَنَحْنُ الْوٰرِثُونَ ﴿٢٣﴾ |
| او نه یئ تاسو هغې لره جمع کونکی . او بیشکه صرف مونږ ژوندی کول او مره کول کوؤ او مونږ باقی پاتې کیدونکی یو |
| وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَقْدِمِينَ مِنكُمْ وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَـْٔخِرِينَ ﴿٢٤﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ |
| او بیشکه پیژنو مونږ مخکنی خلك د ستاسونه او بیشکه پیژنو مونږ روستنی خلك اوبیشکه رب ستا |
| هُوَ يَحْشُرُهُمْ ۚ إِنَّهُۥ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴿٢٥﴾ |
| هغه به جمع کړی هغوئ لره، بیشکه هغه دې حکمتونو والا او عالم دې په هرڅه باندې. |

﴿وَأَرْسَلْنَا الرِّيٰحَ لَوَاقِحَ﴾ بل قدرت د الله تعالی ذکر کیږی ، دلیل دې د وجوبیاتو نه ، (ریاح) جمع د ریح ده ، وئیلې کیږی ((جِسْمٌ لَطِيفٌ مُنِيبٌ فِي الجَوِّ سَرِيعُ المَمَرِّ)) د دغه حرکت لپاره به یو سبب وی او دغه سبب ذات د هوا نشی جوړیدلې اوکه تو لازم به شی حرکت د هوا په دوام ذاتی سره او دا باطل دې، نو معلومه شوه چه د دې لپاره سبب هغه ذات د الله تعالی دې چه قادر مطلق او فاعل مختار دې ﴿لَوَاقِحَ﴾ جمع د لاقح ده په معنی د حامل سره او هواته لاقح د دې وجه نه وئیلې شی چه دا حامله د سحاب لپاره ده ، او یا حامله ده د هغه اوبو لپاره چه وریځې ته ئې رسوی، لکه

په قول د ابن مسعود ﷺ کښې دي چه فرمائي الله تعالی هواګانې اوچلوي اوهغوئ اوبه را اوچتې کړي او بيا ئې په وريځ کښې واچوي او هغه وريځې بيا د هوا سره ځي يعني د هواء د وجې نه هغه وريځ روانه وي ، او اوبه ورکوي په شانته د پئ ورکولو د اوښې . او امام ابو عبيده رحمه الله فرمائي چه (لواقح) په معنی د ملاقح سره دی چه جمع د (ملقحة) ده ، اومعنی ئې ده غير لره حامله کوونکې، لکه پدې قول د شاعر کښې دي ع- ومختبط مما تحيط الطوائح

(طوائح) په معنی د مطاوح سره دې. مقصد د آيت دا دې چه وريځ اول شنده وی چه هواګانې ورسره اولګی نو باری اوحامله شي او باران اووره وی لکه څنګه چه دغه هوا په ونو اولګی نو ميوې پکښې پيدا شي، او امام راغب رحمه الله فرمائي چه دلته لفظ د (ذو) مقدر دې. «ای ذات لقاح وحمل» او عرب ريح لاقح هغې ته وائي چه په هغې کښې خير اوباران وی ، او د دې ضد ريح عقيم دې او دا هغې ته وئيلې کيږی چه په هغې کښې خير نه وی.

﴿وَمَا أَنتُمْ لَهُ بِخَٰزِنِينَ﴾ يعنی دا باران زمونږ په خزانو کښې دې، تاسو د دې خزانو مالکان نه يئ، او يا خازنين په معنی د حافظين سره دې، او يا په معنی د مانعين سره دې (ای ما انتم له بمانعين لانزاله من السماء) ﴿وَنَحْنُ ٱلْوَٰرِثُونَ﴾ مراد دَ وارث نه ملك تامه او حقيقيه دې، يعنی چه کله مجازی مالکان فناء شی، ملکيت مجازی به ئې ختم شي او صرف تن تنها د الله ﷻ ذات به پاتې شی چه دا ټول څيزونه دهغه په ملك کښې دی حقيقةً او متصرف بالذات اوحقيقةً هغه ذات د الله تعالی دې ، او متصرف صورةً او مجازی اومالك مجازاً هغه الله تعالی انسان جوړ کړي دې نو د انسان په فناء کيدو سره تصرف صوری او ملکيت مجازی به ختم شي، نو د دې حالت نه تعبير اوشو په وراثت سره چه هغه ارث تامه دې. ﴿وَلَقَدْ عَلِمْنَا ٱلْمُسْتَقْدِمِينَ مِنكُمْ﴾ پدې کښې اشاره ده ديته چه عالم به ماکان او به ما يکون باندې صرف الله تعالی دې ، د مستقدمين او مستاخرين ډيرې ترجمې شويدی : (۱) حضرت عکرمه اوقتاده رحمهما الله فرمائي چه مستقدمين نه مراد هغه دی چه تر نن ورځې پورې پيدا دی او د مستاخرين نه مراد هغه دی چه وروستو پيدا کيدونکی دی (۲) حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه (المستقدمين) نه مراد هغه دی چه کوم مړه دی او (المستاخرين) نه مراد هغه دی چه ژوندی دی ، (۳) امام مجاهد د (المستقدمين) مصداق مَن تَقَدَّمَ امة محمد صلی الله عليه وسلم ګرزولی دی او د المستاخرين مصداق ئې امة محمديه ګرزولې دې (۴) حضرت حسن بصری او د حضرت قتادة دويم قول دا دې چه (المستقدمين) نه مراد هغه دی چه مخکښې کيدونکی وی په خير او طاعت کښې او

مستاخرين نه مراد معصيت اوشر كوونكي دي، يعني روستى كيدونكي په خير او طاعت كښې (٥)
حضرت سعيد بن مسيب رحمه الله د (المستقدمين) او د (المستاخرين) نه صفوف الحرب په جهاد كښې مراد
كړيدى (٦) قرطبي فرمائي چه مستقدمين هغه دي چه شهداء دي او مستاخرين هغه دي چه لا تر
اوسه پورې ندي شهيدان شوي (٧) امام شعبي رحمه الله فرمائي چه (المستقدمين) اول الخلق دي او
(المستاخرين) بعد الخلق دي (٨) له حضرت امام اوزاعي رحمه الله نه روايت دې چه المستقدمين نه مراد
هغه دي چه مونځ كوونكي وي په اول وقت كامله مستحبه كښې او مستاخرين هغه دي چه په اخر
وقت كښې مونځ ادا كوونكي وي (٩) د حضرت ابن عباس رضي الله عنه دويم روايت دا دې چه المستقدمين نه
مراد هغه دي چه اول صف ته مخكښې كيدونكي وي او مستاخرين نه مراد هغه دي چه وروستي
صفونو كښې وي ، او دا آخرى معنى زياته مناسبه ده دشان نزول سره چه ذكر كړيدې امام ترمذي
رحمه الله په كتاب التفسير كښې او امام نسائي په باب المنفرد خلف الصلوة كښې او ابن ماجه په
الخشوع في الصلوة كښې او ابن كثير اوابن جرير طبري په خپلو تفاسيرو كښې چه حضرت ابن عباس
رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه : يوه حسينه زنانه وه چه مونځ به ئي كولو شاته د رسول الله ﷺ نه نو
ځيني كسان به دهغې د ليدلو نه د ځان بچ كولو لپاره اول صف ته مخكښې كيدونكي وو او ځيني
كسان دهغې د ليدلو لپاره به وروستو صف كښې اودريدل او بيا به ئي په ركوع كښې لاندې د خپلو
ترخونو (اباط) نه هغې ته كتل، نو الله تعالى دا آيت نازل كړو .

**فائده** (١) : دا واقعه قبل نزول الحجاب وه (٢) ابن كثير دا روايت نقل كړيدې او بيا ئي
فرمائلي دي چه : ((وهذا الحديث فيه نكارة شديدة — الخ )) وجه داده چه ابو الجوزا چه هغه د
صحيحينُ راوى دې او ثقه دې دهغه نه دا روايت عمروبن مالك چه هغه مدار سند دې نقل كړې دې
اوعمرو بن مالك د سنن اربعه راوي دې ، حافظ رحمه الله دهغه په باره كښې فرمائي چه ((صدوق
حسن)) بيا دعمروبن مالك نه دا روايت جعفر بن سليمان او نوح بن قيس الحداني دواړو نقل
كړيدې، خو جعفر بن سليمان ئي موقوف د ابو الجوزاء وائي او نوح بن قيس هغه ئي رفع كوي ابن
عباس ته ، او جعفر بن سليمان او نوح بن قيس دواړه ثقه او د صحيح مسلم راويان دي خو جعفر بن
سليمان زيات اوثق دې د نوح بن قيس نه ، وجه داده چه د نوح بن قيس په باره كښې حافظ ابن حجر
فرمائي چه ((ثقة الا انه رمى بالتشيع)) او جعفر بن سليمان باندې هم د تشيع الزام دې خو دهغه نه د
حضرات شيخينو په باره كښې فضائل او مدح مروي ده او ابن عدي د ده په باره كښې فرمائي چه .
((ارجو انه لا باس به يجب ان يقبل حديثه)) نو د دې وجه نه د ابن عباس رضي الله عنه ته مرفوع كول دا منكر

دي، نو زیاته صحیح خبره داده چه دا د مراسیل د ابو الجوزاء چه هغه ثقه راوی دي شمار کړې شي «والله اعلم» (۳) په دې کښې اشاره ده فضیلت د صف اول ته هم او په حدیث د بخاری کښې راغلیدی «(لویعلم الناس مافی النداء والصف الاول – الخ)» یعنی حضور ﷺ فرمائی چه که دا خلك په هغه ثواب خبر شي چه کوم په اذان ورکولو کښې دي او په صف اول کښې په اودریدو کښې دي نو که بیا دوئ ته بغیر د خسنې (قرع، استهام) موقعه نه میلاویږی نو دوئ به دهغې اسان ثواب د حاصلولو لپاره خسنې هم کوی. ﴿وَإِنَّ رَبَّكَ﴾ کاف ضمیر خطاب چه عبارت دي د حضور ﷺ نه هغې ته نسبت د رب کول دا لطفاً دي ﴿هُوَ﴾ ضمیر فصل دي لپاره د تقویت دحکم راوړې شوې دي.

| وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ ﴿۲۶﴾ |
| --- |
| او بیشکه پیدا کړیدې مونږ انسان د خاورې ټنګارکوونکې د ختې زړې شوې بد بوئ کوونکې نه. |
| وَالْجَانَّ خَلَقْنَاهُ مِنْ قَبْلُ مِنْ نَّارِ السَّمُومِ ﴿۲۷﴾ |
| او پلار د پیریانو پیدا کړیدې مونږ مخکښې د آدم نه د اورګرم نه. |

﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا﴾ دا دلیل دي د انفسیاتو نه چه انسان ته الله فرمائی چه خپل حقیقت باندې سوچ وکړه چه ته څه شې وې او څنګه پیدا شوې یې او چا پیدا کړې یې، شیطان ستاسو ازلی دشمن دې دهغه په تابعداری کښې چرته شرك اونکړئ ﴿مِن صَلْصَالٍ﴾ زمخشری لیکی چه «(الصلصال الطین الیابس الذی یصلصل وهو غیر مطبوخ واذا طبخ فهو فخار)» یعنی هغه اوچې خاورې ته وئیلې کیږی چه کړنګارې کوی یعنی کچه کودرې، اوچه کله پخه شی په اورنو باندې نو بیا ورته (فخار) وئیلې کیږی، او فراء ورسره د یوبل قید اضافه هم کړیده چه «(هو طین خلط برمل)» یعنی هغه خته چه شګه ورسره ګډه کړې شوې وی، نو خلاصه دا شوه چه صلصال وئیلې کیږی هغه خاورې ته چه شګه ورسره ګډه کړې شوې وی او کړنګارې کوی.

اوبعضې مفسرین فرمائی لکه مجاهد او کسائی شو چه (صلصال) ماخود دې د (صل اللحم) نه چه کله بدبوداره او متغیره شی غوښه، خو دا قول ضعیف دې ځکه چه بناء پدې قول فرق به پاتې نه شی په مابین د (صلصال) او (حماء) کښې. ﴿حَمَإٍ﴾ جمع د حماءة ده هغه ختې ته وئیلې کیږی چه ډیر وخت لونده پریخودې شی چه خمیره شی او رنګ ئې تور شوې وی ﴿مَّسْنُونٍ﴾ د دې په ماخذ او پ

معنی کښې شپږ اقوال دی، د ټولو نه زيات راجع قول دا دې چه دا ماخوذ دې د ((اسن الماء اى اذا تغير)) نه . لکه په سورة محمد کښې الله تعالی فرمائی : ﴿أَنْهَٰرٌ مِّن مَّآءٍ غَيْرِ ءَاسِنٍ﴾ دا صفت وقع شويدې د ﴿حَمَإٍ﴾ لپاره ، مقصد دا دې چه هغه خټه چه متغيره شوې وی او بدبو داره شوې وی .

**فائده** دحضرت آدم ﷺ دپيدائش اطوار او مراحل اووه ۷ دی او ترتيب ئې دا دې : **اول** خاوره (تراب) وه لکه په سورة الحج آيت نمبر (۵) کښې دی ، **دويم** بيا خټه (طين) شوه لکه په سورة مؤمن آيت نمبر (۱۲) کښې دی ، **دريم** : بيا څه وخت پريخودې شوه نو سليخناکه (لازب) شوه لکه په سورة الصفت آيت نمبر (۱۱) کښې دی ، **څلورم** : بيا څه وخت (څلويښت کاله) پريخودې شوه نو خميره اومتغيره ((حماء مسنون)) شوه ، **پنځم** : بيا چه اوچه شوه او کړنګار ئې کولو نو کچه کودرې (صلصال) شوه لکه چه دا دواړه پدې آيت کښې مذکور دی ، **شپږم** : بيا چه آواز ئې مشابه شو د ټکرې سره نو کالفخار شوه لکه په سورة الرحمن آيت نمبر (۱۴) کښې دی ، **اووم** : او بيا اوومه مرحله د روح ده لکه راتلونکی آيت نمبر (۲۹) کښې دی او د روح ترتيب دا وو چه روح د سر د طرفه شروع شوې وو چه کله سترګو ته راغې نو د الله تعالی قدرتونه ئې اوليدل، چه کله پوزې ته را اورسيدلو نو پرنجې (چهينك) ئې اوکړو ، اوچه کله خولې ته را اورسيدلو نو (الحمد الله) ئې اوويلو ، او بيا چه خيټې ته را ورسيدلو نو لوږه ورته اولګيده او د خوراك خواهش ئې اوشو ، نو د دې وجه نه الله تعالی فرمائی چه ﴿وَكَانَ ٱلْإِنسَٰنُ عَجُولًا﴾ اوبيا آخرته را ورسيدلو او حضرت آدم ﷺ مکمل شو ، امام راغب رحمه الله فرمائی چه کله خټه سليخناکه شوه او دهغې نه وروستو بيا حماء مسنون يعنی خميره شوه او دهغې نه وروستو اوچه کړې شوه نو صلصال شوه نو دغه پوخوالې دا په هوا سره شوې وو او د صلصال نه وروستو کالفخار پدې کښې د اور څه نه څه کردار داخل وو ، مقصد دا دې چه د انسان ماده هغه صرف خاوره نده بلکه خاوره ، اوبه ، هوا او اور دا څلور واړه دی خو خاوره پکښې عنصر غالب دې .

﴿وَٱلْجَآنَّ خَلَقْنَٰهُ﴾ مراد د جان نه ابوالجن دې چه هغه د جناتو پلار دې لکه څنګه چه آدم ﷺ پلار د انسانانو دې، او ابليس پلار لپاره د شيطانانو دې، او فرق په مابين دجناتو او د شياطينو کښې دا دې چه په جناتو کښې کافر او مسلمان وی، خوراك او څکاك کوی ، توالد ، تناسل پکښې وی ، مړه کيږی . ژوندی کيږی لکه دبنی آدم په شان، او په شياطين هغو کښې مسلمان نه وی بلکه هغوئ مردود دی اګرچه نفس امکان پکښې شته دې او استعداد د ايمان ورته ورکړې شوې دې (ورنه لازم

به شي تکلیف بما لایطاق، خو وقوع د ایمان ترینه نده متحققه. او دغه شانته هغوئ مړه کیږي هم نه بلکه هغه وخت کښې به مړه کیږي چه کله ابلیس لعین مړ شي ، دا راجح قول دې ، اوبعضې مفسرین فرمائي چه (جان) او ابلیس یو دی، وهب بن منبه فرمائي چه دجناتو دوه قسمونه دی یو قسم هغه دی چه د هغوئ بچې پیدا کیږي خوراك څکاك کوي دا په منزله د انسانانو دی ، دویم قسم هغه دی چه هغه په منزله د هوا دی بچې ئې نه پیدا کیږي ، خوراك اوڅکاك نه کوي، هغه شیاطین دی.

اوامام رازي رحمه الله فرمائي چه زیاته صحیح خبره داده چه شیاطین قسم د جناتو دې خو چه کوم کافر دی هغوئ ته شیاطین وئیلې کیږي اوچه کوم کافر ندی هغوئ ته شیاطین نه وئیلې کیږي، اوبعضې مفسرین دا فرمائ چه دا دواړه جدا جدا نوعې دی او اطلاق په شیاطینو باندې دجنات لکه په ((الا ابلیس کان من الجن)) دا په معنی لغوی سره دې څکه چه په دواړو کښې استتار معنی ده ﴿خَلَقْتَهُ مِن قَبْلُ﴾ مخکښې د آدم نه ﴿مِن نَّارِ ٱلسَّمُومِ﴾ سموم وئیلې کیږي ((ریح حارة تدخل مسام الإنسان فتقتله من قوة حرارتها)) یعنی هغه ګرمه هوا چه ننوځي په مساماتو د انسان کښې پس د سخت حرارت له وجه نه انسان قتل کوي، او اضافت د (نار) ، سموم ته یا اضافت بیانی دې او یا اضافت د موصوف دې صفت ته .

**فائده** : د دینه معلومه شوه چه د جناتو وغیره ماده صرف اور نه دې بلکه اور پکښې عنصر غالب دې .

| |
|---|
| وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّي خَٰلِقٌۢ بَشَرًا مِّن صَلْصَٰلٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ ﴿٢٨﴾ |
| اوکله چه اوئیل رب ستا [1] فرښتوته بیشکه څه پیدا کونکې یم یو بشر لره د خاورې ټنګارکوونکې د ختې زړې شوې بدبوداري نه . |
| فَإِذَا سَوَّيْتُهُۥ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِن رُّوحِي فَقَعُوا۟ لَهُۥ سَٰجِدِينَ ﴿٢٩﴾ |
| پس هرکله چه زه برابر کړم هغه او پوکړم په هغه کښې د روح خپل نه پس پریوځئ تاسو هغه ته سجده کوونکي |
| فَسَجَدَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ ﴿٣٠﴾ إِلَّآ إِبْلِيسَ أَبَىٰٓ أَن يَكُونَ مَعَ ٱلسَّٰجِدِينَ ﴿٣١﴾ |
| پس سجده اوکړه ملائکو ټولو په جمع سره. مګر ابلیس (سجده اونکړه) انکار اوکړو هغه چه شي هغه د سجده کوونکو سره . |

۱ - ذکر د تخویف چه متعلق دې له دعوی د سورت سره .

﴿ وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ ﴾ قصه د حضرت آدم ﷺ او د ابليس لعين ذكر كيږي په دريم وار لپاره د تخويف چه د ابليس ستاسو سره دشمنی ډيره زړه ده داسې نه چه تاسو د شيطان په دهوكې كښې راشئ او شرك اختيار كړئ ﴿ بَشَرًا ﴾ مراد ترينه انسان دې، تعبير ترينه په بشر سره اوشو له وجه د ظهور د بشرى د ده نه، او بعضې فرمائى چه مراد د بشر نه هغه جسم كثيفه دې چه ملاقى كيږى د نورو اشياؤ سره او مصداق د دې صرف انسان دې ځكه چه ملائك اوجنات دهغوئ اجسام لطيف دى، په دې كښې اشاره ده ديته چه د ټولو انسانانو پلار حضرت آدم ﷺ بشر وؤ، نو اولاد به ئې هم بشر وى اگرچه انبياء كرام وى . ﴿ فَإِذَا سَوَّيْتُهُ ﴾ مراد د تسويه نه يا تشكل دې په صورة انسانى اوخلقتِ بشرى سره ((اى عدلت صورته واتممت خلقه)) او يا ترينه مراد برابروالې د اجزاؤ د بدن دې ﴿ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِن رُّوحِى ﴾ نفخ په عرف كښې وئيلې كيږى : ((اجراء الريح من الفم اوغيره فى تجويف جسم)) نه يعنى رسول د هواء مينځ د خالى جسم ته، خو دلته ئې ذكر تمثيلاً شويدې نه حقيقةً، او مراد ترينه پيدا كول د روح دى په ماده اوصورت كښې، ((اى افاضة مابه الحياة بالفعل على المادة القابلة لها)) . او روح يو مخلوق دې د مخلوقاتو د الله تعالى نه چه د بدن د ژوندون لپاره يو سبب عادى دې، يعنى عادة د الله تعالى پدې جارى شوې دې چه كله د دې روح تعلق د بدن سره راشى نو الله تعالى پدې بدن كښې حياة او ژوندون پيدا اوفرمائى ، او اضافت د روح الله تعالى ته دا تشريفًا اوتكريمًا دې، لكه (ارضى، سمائى، بيت الله) وغيره شو، بعض خلكو د دې اضافت د وجه نه د حلول او اتحاد مذهب ثابتولو كوشش كړې دې خو د دې متعلق يو مناسب تفصيل په سورة بنى اسرائيل ((ويسئلونك عن الروح)) كښې به راشى (ان شاء الله تعالى) .

﴿ فَقَعُوا لَهُ سَاجِدِينَ ﴾ دا خطاب فرشتو او ابليس ټولو ته دې ، تفصيل د دې سجدې په سورة البقرة او په سورة اعراف كښې تير شوې دې ، د دې آيت په ظاهر كښې د سورة البقرة د ايت سره تعارض معلوميږى ځكه چه په سورة البقره كښې حكم د سجدې د پيدائش او دخليفه جوړيدو د آدم ﷺ نه وؤ، او په دې ځائ كښې حكم قبل د پيدائش د آدم ﷺ نه معلوميږى، دفع د تعارض داده چه امر په دوه قسمه دې : يو امر تعليقى او معلق دې او دويم امر تنجيزى دې نو په سورة البقره كښې امر تنجيزى دې او دلته امر معلق دې .

﴿ فَسَجَدَ الْمَلَائِكَةُ ﴾ سجده د ملائكو د اكرام او تعظيم وه، لكه چه تفصيل ئې تير شويدې، دا جمله نص دې په تعظيم د آدم ﷺ كښې اوهر كله چه احتمال د تخصيص پكښې وؤ چه ممكنه ده چه

بعضې فرشتو دې سجده نوی کړې او دا دې عام مخصوص منه البعض وی نو په لفظ د ﴿كُلُّهُمْ﴾ سره احتمال د تخصيص ختم کړې شو چه دا سجده ټولو فرشتو کړیده . البته احتمال د تاویل پکښې بیا هم وؤ چه سجده د دوئ اجتماعًا وه که متفرقًا؟ نو دغه احتمال په لفظ د ﴿أَجْمَعُونَ﴾ سره ختم کړې شو ، نو ایت بجمیع اجزائه مفسر اوګرزیدلو ﴿إِلَّآ إِبْلِيسَ﴾ پدې باندې اتفاق دې چه ابلیس مامور بالسجده وؤ ، اختلاف ئې په کیفیت کښې دې چه آیا دې دجنس د فرشتونه وؤ او که نه ؟ اوځنګه مامور بالسجده شو او د استثناء نوعیت څه دې ؟ استثناء د محققینو نحاتو په مسلك متصله ده بالجزم، اود مشهورینو نحاتو په مسلك یا استثناء متصله ده او ابلیس جنس د فرشتونه شمار کړې شوې دې حقیقةً لکه چه دا دبعضو مذهب دې او یا استثناء منقطعه ده څکه چه ابلیس جنس د فرشتو نه ندې لکه چه الله تعالی فرمائی ﴿كَانَ مِنَ الْجِنِّ فَفَسَقَ عَنْ أَمْرِ رَبِّهِۦ﴾ خو تغلیبًا د جنس د فرشتو نه شمار کړې شوې دې او یا ابلیس ته حکم د سجدې مستقلاً شوې وؤ لکه چه پدې باندې آیت د سورة اعراف ﴿قَالَ مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ﴾ دلالت کوی، تفصیل ئې په سورة بقره کښې تیر شوې دې . ﴿أَبَىٰٓ أَن يَكُونَ﴾ دا جمله مستانفه ده واقع شویده په جواب د سوال د سائل کښې چه ګویا سائل سوال اوکړو چه «هل سجد؟» نو جواب اوشو چه ﴿أَبَىٰٓ أَن يَكُونَ﴾ په لفظ د ‹ ابی › کښې اشاره ده دیته چه ابلیس د الله حکم اونه منلو او په لفظ د ﴿مَعَ ٱلسَّٰجِدِينَ﴾ کښې اشاره ده دیته چه جماعت د ملائکو نه ئې مخالفت اوکړو نو دجماعت نه مخالفت کول دا هم یوه لویه ګمراهی ده، حضرت مولانا خیر محمد جالندهری رحمه الله په خپل کتاب آثارخیر کښې لیکلی دی «جب اللہ نے فرشتو کو سجدہ کا حکم دیا تو قرآن میں هیں کہ ﴿فَسَجَدَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ ۝٣٠ إِلَّآ إِبْلِيسَ﴾ ملائک نے بلا طلب دلیل محض اعتماد پر سجدہ کیا تو یہ مقلد ہوئے اور ابلیس لعین نے بغیر دلیل سجدہ کرنے سے انکار کیا جو غیر مقلد ٹھرا» ، «آثار خیر صفحه نمبر ۲۶ » یعنی چه کله الله پاك د سجدې حکم اوکړولو ، نو ملائکو بغیر د طلب د دلیل نه محض په اعتماد باندې سجده اوکړه نو مقلدین شو او ابلیس لعین انکار اوکړو د بې دلیله سجدې کولو نه نو غیر مقلد شو . ٠

| قَالَ يَٰٓإِبۡلِيسُ مَا لَكَ أَلَّا تَكُونَ مَعَ ٱلسَّٰجِدِينَ ۝ قَالَ لَمۡ أَكُن |
|---|
| اوفرمائيل الله تعالى اي ابليسه ! څه عذر وؤ تا لره چه نشوې ته د سجده كوونكو سره اونيل هغه چه نه يم څه |
| لِّأَسۡجُدَ لِبَشَرٍ خَلَقۡتَهُۥ مِن صَلۡصَٰلٍ مِّنۡ حَمَإٍ مَّسۡنُونٍ ۝ |
| چه سجده اوكړم هسې بشر ته چه پيدا كړې دې تا هغه لره د خاورې ټنګار كوونكې د ختې زړې شوې بدبو دارې نه |
| قَالَ فَٱخۡرُجۡ مِنۡهَا فَإِنَّكَ رَجِيمٞ ۝ وَإِنَّ عَلَيۡكَ ٱللَّعۡنَةَ إِلَىٰ يَوۡمِ |
| اوفرمائيل الله پس اوځه ته د دې ځائ نه پس بيشكه ته رټلې شوې ئې او بيشكه په تا باندې لعنت دې تر ورځې |
| ٱلدِّينِ ۝ قَالَ رَبِّ فَأَنظِرۡنِيٓ إِلَىٰ يَوۡمِ يُبۡعَثُونَ ۝ |
| د بدلې (قيامت) پورې . اونيل هغه اې ربه ځما ! پس مهلت راكړه ما له تر هغه ورځې پورې چه دوباره پورته كولې شى خلك . |
| قَالَ فَإِنَّكَ مِنَ ٱلۡمُنظَرِينَ ۝ إِلَىٰ يَوۡمِ ٱلۡوَقۡتِ ٱلۡمَعۡلُومِ ۝ |
| اونيل الله پس بيشكه ته ئى د مهلت دركړې شوونه تر ورځې د هغه وقت مقرر پورې . |

﴿قَالَ يَٰٓإِبۡلِيسُ﴾ زجرًا او توبيخًا سوال كوى الله پاك د ابليس نه ، دجمهور مفسرينو په نيزد دا كلام د الله پاك له طرفه ابليس ته بغير د واسطې نه وؤ او براه راست وؤ او د الله له طرفه چا سره بغير د واسطې نه كلام كول اګرچه لوئ منصب او د فخر خبره ده خو په هغه وخت كښې چه كله دا مكالمه او خبرې لپاره د اكرام او اعظام وى او كچرته على سبيل الاهانة والاذلال وى نو منصب عاليه ندې .

﴿مَا لَكَ أَلَّا تَكُونَ﴾ يعنى څه مانع وؤ ستا لپاره په سجدې نه كولو كښې او څه غرض وؤ ستا ؟ ((اى اىُّ غرض لك فى ابائك السجود)) ﴿قَالَ لَمۡ أَكُن﴾ د نص په مقابله كښې شيطان يو خپل عقلى دليل پيش كړو (تفصيل ئى تير شوى دې) او لام په ﴿لِّأَسۡجُدَ﴾ كښې د تاكيد دنفى لپاره دې ، ﴿قَالَ فَٱخۡرُجۡ مِنۡهَا﴾ ضمير په (منها) كښې يا راجع دې جنتونو ته، يا آسمان ته او يا ټولى اوجماعت د فرشتو ته، او دا جواب د كلام د شيطان او دليل د شيطان لپاره على سبيل التصريح خو ندې ليكن على سبيل التنبيه دې، چه د نص په مقابله كښې قياس پيش كوونكې سزا هغه رجم دې او ملعون كيدل دى ، او مخكښې تير شويدى چه د دې نه هغه قياس ندې مراد چه هغه يو حجت شرعى دې . ﴿وَإِنَّ عَلَيۡكَ

﴿ اللَّعۡنَةَ ﴾ شيطان ته د سجدې نه کولو د وجه نه دوه سزاګانې ملاؤ شوې يوه دا چه اوړتلې شو دجنت نه ، دويمه دا چه هميشه لپاره لعنتي شو . او لفظ د «الی» اګرچه د انتها د غايه فائده ورکوي او ظاهر د ايت نه دا معلوميږي چه دا لعنت به صرف تر ﴿ يَوۡمِ ٱلدِّينِ ﴾ يعنی قيامت د ورځې پورې وی اوبيا به نوی . خو حقيقت داسې ندې بلکه مراد د دې نه تابيد دې، ځکه چه دا هغه ابعده غايه ده چه خلك اوعرف عام ئی د تابيد لپاره ذکر کوی لکه چه وئيلې کيږی چه قيامت پورې به ځه دا کار اونکړم، دا مقصد ندې چه قيامته پورې به ئی نه کووم او بيا به ئی کوم بلکه هميشه لپاره نه کول مراد وی، او د دې نظير دا قول د الله تعالی دې چه ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ ٱلسَّمَٰوَٰتُ وَٱلۡأَرۡضُ ﴾ او يا د آيت مقصد دا دې چه (يوم الدين) پورې بغير د عذاب نه به ملعون وی او يوم الدين کښې به بيا سخت ترين عذاب ورکولې شی اګرچه لعنت به هلته هم وی خو هغه لعنت به په منزله د زائل وی، فيصير اللعين حينئذ كالزائل بسبب شدة العذاب تذهل عنه «رازی» ﴿ قَالَ رَبِّ فَأَنظِرۡنِيٓ ﴾ ابليس لعين د توبې په ځائ د انسانانو بې لارې کولو لپاره مهلت طلب کړو چه دا هم يو غټ جرم دې (فا) په (فانظرنی) کښې متعلقه ده په محذوف پورې چه په هغې دلالت کوی ماقبل کلام ، تقدير ئی دا دې چه «اذا جعلتنی رَجِيمًا فَأَنْظرنی – الخ» مزيد تفصيل د دې آيتونو په سورة اعراف کښې تير شوې دې ﴿ إِلَىٰ يَوۡمِ ٱلۡوَقۡتِ ٱلۡمَعۡلُومِ ﴾ په نيزد اکثرو مفسرينو دعاء د ابليس قبوله کړې شوه خو نا تمامه، ځکه چه هغه مهلت غوختلې وؤ تر (يوم البعث) پورې او الله تعالی مهلت ورکړو تر نفخهٔ اولی پورې، ﴿ يَوۡمِ ٱلۡوَقۡتِ ٱلۡمَعۡلُومِ ﴾ نه مراد وخت دنفخهٔ اولی دې چه په هغې کښې به الله تعالی ټول مخلوقات فناء کړی نو ابليس به هم مړ شی، او په نيز د بعضو مفسرينو دُعاء د ابليس مکمله قبوله کړې شوې ده او «وقت المعلوم» نه مراد نفخهٔ ثانيه ده خو دا قول ضعيف دې ، ځکه چه نفخهٔ ثانيه لپاره د بعثت اودوباره ژوندی کيدلو ده، نه د مړکيدو لپاره، او دغه شانته د قيامت د قيام نه وروستو بيا مرګ نشته دې، نوکه په نفخهٔ اولی سره ابليس لعين مړ نشی نو دې به هميشه لپاره ژوندې پاتې کيدونکې شی، اودغه شانته مقصد دابليس لعين په مهلت غوختلو سره هغه انسانان بې لارې کول دی ، دغه مقصد په نفخهٔ اولی سره پوره کيږی، نفخهٔ اولی نه وروستو د ابليس ذمه داری وغيره به ختمه شی نو د ژوندی پپاتې کيدلو مقصد ئی نشته دې.

**فائده** : د دعاء قبليدل کله د دعاء کوونکې د اکرام او دعزت لپاره وی اوکله د دعاء کوونکی د

زيادت د شقاوت او عذاب او د مصيبت لپاره وى، نو دابليس دعاء قبليدل د قسم ثانى نه دى

| قَالَ | رَبِّ | بِمَآ | اَغْوَيْتَنِي | لَأُزَيِّنَنَّ | لَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اووئيل هغه چه اې ربه څما په سبب د هغې سره چه تا څه گمراه کړې يم خامخا به څه خائسته ښکاره کوم لپاره د دوئ گناهونه | | | | | |
| فِي الْاَرْضِ وَلَاُغْوِيَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿٣٩﴾ اِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿٤٠﴾ | | | | | |
| په زمکه کښې او گمراه کوم به څه دوئ ټولو لره . مگر بندگان ستا د دوئ نه هغه چه اخلاص کونکى دى (په عمل کښې | | | | | |
| قَالَ هٰذَا صِرَاطٌ عَلَيَّ مُسْتَقِيْمٌ ﴿٤١﴾ | | | | | |
| اوفرمائيل الله ، دا (اخلاص) لاره ده څما طرف ته نيغه | | | | | |

﴿ قَالَ رَبِّ بِمَآ اَغْوَيْتَنِي ﴾ (با) يا د سببيت لپاره ده (اى بسبب اغوائك اياى) او يا د قسم لپاره ده او ما مصدريه ده او ﴿ لَأُزَيِّنَنَّ ﴾ ورله جواب قسم دې (اى اقسم باغوائك اياى لأزين لهم) لکه په صورت (ص) آيت نمبر ۸۲ کښې دغه مضمون په قسم سره ذکر دې ﴿ قَالَ فَبِعِزَّتِكَ لَاُغْوِيَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴾ خو فرق په مابين د دې آيت او په هغې آيت کښې دا دې چه هلته قسم په صفاتو د ذات باندې دې او دلته قسم په صفاتو د افعالو باندې دې، په صفاتو د ذات باندې قسم بالاتفاق جائز دې او په صفاتو د افعالو باندې قسم خوړل پدې کښې د فقهاؤ اختلاف دې خو راجح پکښې قول د جواز دې ، دا آيت دليل دې په دې چه خالق د شر او کفر هم الله پاك دې او سزا په کسب اختيارى باندې ملاويږى ، او مراد په ﴿ اَغْوَيْتَنِي ﴾ سره اخراج دهغه وؤ د جنت نه يا د آسمانونو نه، اويا ترينه مراد گمراه کول دهغه دى ﴿ لَأُزَيِّنَنَّ لَهُمْ فِي الْاَرْضِ ﴾ مراد د تزئين نه مشغول کول دى د انسانانو په محبت د دنيا سره په طريقه د وسوسو اچولو سره او مراد د اغواء نه ښائسته ښکاره کول د گناهونو او ترغيب ورکول د گناهونو دى انسانانو ته په طريقې د وسوسو سره، پدې آيت کښې رد دې په مذهب د معتزله وؤ باندې چه هغوئ د دې خبرې قائل دى چه اصلح ماهو للعبد واجب دې په الله تعالى باندې ، ﴿ اِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِيْنَ ﴾ پدې کښې دوه قرائتونه دى : يو قرائت په کسرې دلام سره دې په صيغه د اسم فاعل سره، معنى داده چه هغه بندگان ستا چه خالص کونکى دى د عبادت او اطاعت تا لره. ((اى المؤمنين الذين اخلصو لك التوحيد والطاعة والعبادة)) ، (خازن) او دويم قرائت په فتح د لام سره

په صیغه د اسم مفعول سره دي چه دا قرائت اکثر دي ، مقصد دا دي چه هغه بندګان چه الله پاك خاص کړیدی د خپل عبادت لپاره، ابلیس لعین اولاً د ټولو انسانانو د اغواء دعوه اوکړه او بیا ئی مخلصین مستثنی کړل ځکه چه د ده پدې باندې علم وو چه ځما مکر او کید په مخلصینو باندې نه چلیږی او هغوئ ځما کید نه قبلوی

**فائده** (۱) امام رازی رحمه الله فرمائی چه ابلیس لعین دا استثناء ځکه اوکړه چه ځان ئی د دروغو نه بچ کولو، نو معلومه شوه چه دروغ یو داسې قبیح شې دې چه ابلیس ترینه هم ځان ساتلیدې (۲) دا آیت دلیل دې په عصمت د انبیاؤ علیهم الصلوة والسلام باندې ځکه چه که انبیاء کرام معصوم نشی نو نور هغه خلك چه د دې آیت مصداق دی د هغوئ فضیلت به ثابت شی په انبیاء کرامو باندې او دا د اصولو د شرع نه خلاف خبره ده (۳) حضرت رویم رحمه الله فرمائی چه اخلاص په عمل کښې عبارت دې د دې نه چه د عمل کوونکی اراده د خپل عمل نه عوض نوی په دارینو کښې. صرف د الله تعالی رضاء ئی مقصود وی ، حضرت جنید بغدادی رحمه الله فرمائی چه ((الإِخْلَاصُ سِرٌّ بَيْنَ الْعَبْدِ وَبَيْنَ الله تعالى لاَ يَعْلَمُهُ مَلَكٌ فَيَكْتُبُهُ وَلاَ شَيْطَانٌ فَيَفْسُدُهُ وَلاَهَوىً فَيَمِيْلُهُ )) یعنی اخلاص د الله او د بنده په مینځ کښې د هغه راز نه عبارت دې چه نه فرشتې ته معلوم وی چه وې لیکی او نه شیطان ته معلوم وی چه عمل ورله فاسد کړی، او نه نفسانی خواهش ته علم وی چه هغې طرفته مائله شی. او په یو حدیث شریف کښې (چه ذکر کړې دې امام زبیدی په اتحاف السادة المتقین کښې) د حضور صلی الله علیه وسلم نه داسې مروی دی چه ((سَأَلتُ جبرئیل عن الاخلاص ماهو، قال سألت رب العزة عن الاخلاص ماهو، قال سرٌّ استودعته فی قلب من احب عن عبادی)) یعنی حضور صلی الله علیه وسلم فرمائی چه ما تپوس اوکړو د حضرت جبرئیل علیه السلام نه د اخلاص په باره کښې چه دا څه شې دې ؟ نو جبرئیل علیه السلام اوفرمائیل چه ما د الله پاك نه د دې تپوس اوکړو، نو الله پاك اوفرمائیل چه دا هغه راز دې چه ځما په بنده ګانو کښې چه څوك ماته محبوب وی نو د هغه په زړه کښې ئی ایږدم (۴) صاحب د خازن فرمائی چه حقیقت د اخلاص دا دې چه یوکار او عمل خالص د الله لپاره اوشی چه شائبې د غیر نه پاك وی پس هرڅوك چه عمل کوی د طاعاتو نه نو دا به خالی نوی یا به پدې سره مقصود صرف رضاء د الله پاك وی او یا به مقصود رضا د غیر الله وی او یا به دواړه وی، اول قسم مقبول عندالله دې، دویم قسم مردود او باطل دې او دریم قسم کچرته په هغې کښې جانب د الله د رضا راجح وو نو امید د قبلیدو دې عند الله. او کچرته جانب د غیر الله پکښې راجح وو نو مردود دې ﴿ قَالَ هَـٰذَا صِرَٰطٌ عَلَىَّ ﴾ پدې آیت کښې مختلف توجیهات دی : یوه توجیه داده چه په (هذا) سره اشاره ده

اخلاص ته چه هغه مذکور دي په ضمن د (مخلصين) کښې او (عليّ) په معنی د (الی) سره دي ، مقصد دا دي چه عبادت او په عمل کښې اخلاص او د شرك اوريا نه ځان بچ کول هغه نيغه لار ده چه ماته په هغې سره رسيدل کيږی ((ای ان الاخلاص طريق يؤدی الی کرامتی ورضوانی)) ، (خازن) ، دويمه توجيه داده چه په (هذا) سره اشاره عبديت ته ده چه په هغې باندې (عبادك) دلالت کړيدې او (عليّ) په معنی د (الیّ) سره دي نو معنی د ايت دا شوه چه دا بندګی نيغه لاره د رسيدو ده ماته ، دريمه توجيه داده چه په (هذا) سره اشاره شی عبديت ته او (علی) سره عبارت مقدر شی ((ای هذا صراط تقريره وبيانه وهو مستقيم حق وصدق)) ، (رازی) ، څلورمه توجيه داده چه (هذا) سره اشاره اخلاص فی العبودية ته شی او (علی) په ځيلې معنی سره شی.((ای هذا الطريق فی العبودية طريق علی مستقيم)) ، پنځمه توجيه داده چه په (هذا) سره اشاره ده مضمون د ماقبل ته چه هغه تفويض دې ځکه چه ابليس په ماقبل کښې اولاً د مطلق انسان ګمراه کول بيان کړل بيائی ترينه مخلصين مستثنی کړل چه هغه د الله پاك منتخب بندګان دی نو دا کلام متضمن شو تفويض او ارادې د الله تعالی ته لکه صاحب د تفسير ابو السعود فرمائی : ((والاشارة الی ما تضمنه الاستثناء وهو تخليص المخلصين من اغوائه)) نو معنی د آيت دا شوه چه ﴿هَٰذَا صِرَٰطٌ﴾ ((ای تفويض الامور الی ارادتی ومشيئتی طريق علی مستقيم)) ، (کبير) بناء پدې تولو توجيهاتو غوره والې د (علی) چه رازی لپاره د استعلاء په ځائ د (الی) چه راځی لپاره د انتهاء دا تمثيلاً دې ، اشاره ده پکښې تاکيد صحت او استقامت دعمل ته اودغه شانتې اشاره ده پکښې مقبوليت من عند الله ته . شپږمه توجيه د بعضې مفسرينو نه داسې منقوله ده چه (عليّ) په تنوين سره د علونه دې په معنی د رفع او بلندئ سره او صفت دې د صراط لپاره، نو معنی دا شوه چه دا اخلاص يا عبديت يا تفويض (صراط عليّ) رفيعه او اوچته لاره ده (مستقيم) چه کوږوالې پکښې نشته دې (قرطبی) ، او اوومه (٧) توجيه دامام مجاهد او امام کسائی نه دا منقوله ده چه دا کلام حمل دې په وعيد او تهديد باندې، لکه يو سړې بل ته دهمکی ورکوی او ورته وائی چه لاره دې په ما باندې ده، او د دې نظير هغه قول د الله تعالی دې چه په سورة الفجر کښې ذکر دې چه ﴿إِنَّ رَبَّكَ لَبِالْمِرْصَادِ﴾ والله سبحانه وتعالی اعلم وعلمه اتم واحکم .

إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ إِلَّا مَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْغَاوِينَ ۞ وَإِنَّ جَهَنَّمَ

بيشكه بندگان خما نيشته دي تا لره په هغوئ باندي څه غلبه ((دگمراهئ)) مگر هغه څوك چه تابعداري كوي ستا د گمراهانو نه او بيشكه دوزخ [1]

لَمَوْعِدُهُمْ أَجْمَعِينَ ۞ لَهَا سَبْعَةُ أَبْوَابٍ لِكُلِّ بَابٍ مِنْهُمْ جُزْءٌ مَقْسُومٌ ۞

خامخا ځائ د وعدې د دوئ د ټولو دې . دهغې لپاره اووه دروازې دي، د هرې دروازې لپاره د دوئ نه حصه ده تقسيم كړې شوې

﴿ إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ ﴾ پدې آيت كښې د ابليس د ماقبل كلام د يوې حصې تصديق او يوې حصې تكذيب دې چه هغه وئيلي وؤ چه ﴿وَلَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ۞ إِلَّا عِبَادَكَ ﴾ چه د ټولو انسانانو د گمراه كولو قدرت ماته حاصل دې ، صرف مخلصين نشم گمراه كولې چه هغوئ ته الله پاك حفاظت وركوي، نو د يوې حصې تصديق اوشو چه مخلصين شيطان نشي گمراه كولې، خو دا بله حصه چه په نورو انسانانو ماته قدرت حاصل دې نو د دې تكذيب اوشو ، چه يو بنده باندې هم تاته قدرت ندې حاصل، البته كچرته يو انسان په خپل كسب اختيارى سره ستا اتباع اوكړه نو هغه به گمراه شي، نو دا اتباع هم په قدرت دابليس سره نده بلكه په خپل اختيار سره ده، نو ابليس لعين مخلص بندگان مستثنى كړي وؤ د اغواء شوى خلكونه او مقصد ئې دا وؤ چه په نورو باندې ماته قدرت حاصل دې، او الله پاك غاوين مستثنى كړل دينكو بندگانو نه اشاره ئې ديته اوكړه چه هغه ته په چا باندې هم قدرت ندې حاصل ، اضافت كه په (عبادي) كښې د استغراق حقيقى لپار شي نو استثناء به په ((الامنن اتبعك — الخ)) كښې متصله وى اوكه اضافت د عباد (ياء) د متكلم ته عهدى وى او مراد ترينه مخصوص عباد وى چه هغه مخلصين دى نو بيا استثناء منقطعه ده اومراد له نفى نه په ﴿لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ ﴾ كښې نفى د مطلق غلبې نده چه تعارض پيدا شي دحضرتُ آدم او حواء د واقعې سره چه دوئ د الله مخلصين بندگان وؤ خو بيا هم الله تعالى فرمائى چه ((فازلهما الشيطان)) اودغه شانتې دځينې مخلصينو بندگانو په باره كښې الله تعالى فرمائى چه ﴿إِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطَانُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوا ﴾ بلكه مراد په نفى د غلبې سره مخصوصه غلبه ده چه هغه غلبه په قلوب او په زړونو باندې وى چه دهغې د وجه نه توفيق د توبې هم نشې ميلاويدلې كه څوك اشكال وكړى چه د دې

---

[1] - تخويف اخروى .

آیت د نورو آیتونو سره تعارض دې ځکه چه د دې آیت نه نفی دغلبې د عباد مخلصین فقط معلومیږی او (غاوین) چه هغه أتباع د ابلیس او د شیطان دی نو په هغوئ باندې ابلیس ته غلبه حاصله ده او د سور ابراهیم آیت نمبر (۲۲) ﴿وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُم مِّن سُلْطَانٍ﴾ نه معلومیږی چه غلبه او قدرت بالکل حاصل نه دې ، نه په عباد مخلصین اونه په غاوین باندې، نو **جواب** دا دې چه پدې مقام کښې اثبات د غلبې او د سلطان دا تسبیبًا دې یعنی په دوئ باندې غلبه او قدرت دا شیطان ته حاصل دې په سبب د انقیاد د دوئ دهغه لپاره ((ای فان لك علیهم سلطانًا بسبب کونهم منقادین لی الامر والنهی)) ، (رازی) ، لکه چه په سورة النحل آیت نمبر (۱۰۰) کښې الله تعالی فرمائی ﴿إِنَّمَا سُلْطَانُهُ عَلَى الَّذِينَ يَتَوَلَّوْنَهُ﴾ او په سورة ابراهیم کښې ترینه مراد سلطان او غلبه بالذات دې یعنی بالذات غلبه او سلطان شیطان ته ندې حاصل، ﴿وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمَوْعِدُهُمْ﴾ پدې دوه آیتونو کښې تخویف اخروی ذکر کیږی ﴿أَجْمَعِينَ﴾ یا تاکید لپاره د (هم) ضمیر دې او یا ورنه حال دې ، او (موعد) یا مصدر میمی دې اوعامل دې په (اجمعین) کښې اویا اسم مکان دې پدې تقدیر بیا به دې عامل نوی ﴿لَهَا سَبْعَةُ أَبْوَابٍ﴾ مراد ترینه یا حقیقةً دروازې دی چه دجهنم لپاره اوه ۷ دروازې دی لکه څنګه چه د جنت لپاره اته ۸ دروازې دی د جنت یوه دروازه زیاته ده چه هغه باب الفضل ده چه په هغې باندې به هغه کسان داخلیږی چه څه عمل ئې نوی کړې بلکه محض په فضل د الله تعالی سره څی، نو د جهنم اوه ۷ دروازې دی او هره دروازه د مخصوص ګناهګارانو لپاره به وی لکه مشرك شو ، زانی ، ډاکو وغیره شول ، او یا د ابواب نه مراد طبقات د جهنم دی چه هغې ته درکات وئیلې کیږی لکه څنګه چه د جنت طبقاتو ته درجات وئیلې کیږی، نو دجهنم اوهٔ طبقات دی ، د حضرت علی ﷺ نه مروی دی چه دغه طبقات د یوبل د لاندې دی اوحضرت ابن عباس ﷺ نه دهغې نومونه داسې منقول دی (۱) جهنم (۲) لظی (۳) حطمه (۴) سعیر (۵) سقر (۶) جحیم (۷) هاویه، او حضرت علی ﷺ نه داهم منقول دی چه هره لاندې طبقه دپاسه طبقې ته اویا ۷۰ برخې زیاته ګرمه ده ، مثلاً لظی دجهنم په نسبت ، حطمه د لظی په نسبت وغیره اویا ۷۰ حصې زیاتې ګرمې دی ، جهنم طبقه د عصاة مؤمنینو لپاره ده چه د دې نه دنجات امید کولې شی، لظی د نصاری لپاره ده ، حطمه د یهودو لپاره ده، سعیر د صابئینو لپاره ده ، سقر د مجوسو لپاره ،جحیم د مشرکینو لپاره او هاویه د منافقینو لپاره مختص دی، ځکه الله پاك د منافقینو په باره کښې فرمائی چه : ﴿إِنَّ الْمُنَافِقِينَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ

مِنَ النَّارِ ﴾

﴿ جُزْءٌ مَّقْسُومٌ ﴾ يعنى هره دروازه د هغه ګناه لپاره متعينه ده چه پدې دروازه باندې به فلانې ګناه والا داخليږي او پدې باندې به فلانى داخليږي. او يا مصداق دا دې چه د هرې طبقې دجهنم لپاره قومونه مخصوص کړې شوېدي.

**تنبيه** بعض علماء فرمائى چه د جهنم لپاره دووه دروازو کښې حکمت دا دې چه مصادر د سيئاتو لپاره هغه اعضاء سبعه دى : (۱) سترګې (۲) غوږونه (۳) ژبه (۴) خيټه (۵) عورت (فرج) (۶) لاسونه (۷) خپې ، نو څکه ابواب د جهنم اووه پيدا کړې شول. او هرکله چه همدغه اعضاء سبعه مصادر دحسناتو لپاره هم وؤ خو نيت پکښې اضافي شرط وؤ نو هغه په منزله د اتم شو نو د دې وجه نه دروازې د جنت اته دى ، اوبعض مفسرين فرمائى چه دا اوه دروازې دهغه اوه لويو لويو ډلو مذکوره د اتباع د ابليس د وجه نه دى ، او د هرې ډلې جرم او ګناه د بلې په نسبت زيات سخت دې د دې وجه نه اوه طبقات د يوبل لاندې اويا ۷۰ درجې يات سختې پيدا کړې شو .

| إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّٰتٍ وَعُيُونٍ ۞ ٱدْخُلُوهَا بِسَلَٰمٍ ءَامِنِينَ ۞ |
|---|
| بيشکه متقيان [۱] کسان په باغونو او چينو کښې به وى (اوئيلې به شي ورته) ورننوځئ دېته په سلامتيا سره بې غمه به يئ |
| وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنْ غِلٍّ إِخْوَٰنًا عَلَىٰ سُرُرٍ |
| او اوبه باسو به مونږ هغه چه په زړونو د دوئ کښې پاتې وى څه خفګان رونړه به وى (ناست به وى) په تختونو باندې |
| مُّتَقَٰبِلِينَ ۞ لَا يَمَسُّهُمْ فِيهَا نَصَبٌ وَمَا هُم مِّنْهَا بِمُخْرَجِينَ ۞ |
| يوبل ته مخامخ .نه به رسيږي دوئ ته په هغې کښې څه ستومانتيا اونه به دوئ دهغوئ دجنت نه ويستلې کيدې شي |

﴿ إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّٰتٍ ﴾ دا بشارت ذکر کيږي د نيکانو لپاره، مراد د متقين نه څوك دى؟ نو معتزله اودغه شان بعض مفسرين وائى چه متقين نه مراد هغه کسان دى چه د ټولو انواعو د کبائرونه ځان بچ اوساتى ((اى من يتقى ما يجب اتقاؤه مما نهى عنه))، (کشاف) وجه داده چه متقين اسم مدح دې اومدح په هغه وخت کښې متحقق کيږي چه کله دټولو انواعو د ګناسونو نه ځان بچ کړى ،

۱ - بشارت.

او جمهور مفسرين او اهل سنت والجماعت فرمائی چه مراد د متقین نه هغه دی چه ځان ئی د شرك نه بچ کړې وی ((ای اتقوا الشرك بالله تعالی)) دا توجیه راجحه ده نقلاً او عقلاً، هرچه ده نقلاً نو وجه دا ده چه د دې لپاره د نصوصو نه مؤیدات کثیره دی چه دال دی پدې چه مرتکب د گناه کبیره به جنت ته داخلیږی، او هرچه ده عقلاً نو وجه دا ده چه متقین صیغه د اسم فاعل ده او اسم فاعل مرکب دې د ذات مع الوصف نه او دتحقق دا سم فاعل لپاره کل افراد او انواع دهغې وصف ضروری ندی بلکه په یو فرد سره هم دې موجودیږی ځکه چه دغه وصف یو مطلق ماهیت دې چه موجودیږی په وجود د فردمًا سره لکه څنگه چه موجودیږی په وجود د کل افرادو سره لکه ضاربٌ شو، دا دتحقق لپاره کل افراد د ضرب ضروری ندی بلکه په یو فرد د ضرب سره هم دې متحقق کیږی، نو دغه شانتې د متقی اطلاق به په هر هغه شخص باندې هم کیږی چه په هغه کښې یو فرد د تقوی موجود وی چه ځان بچ کول دی د شرك نه، که څوك اشکال اوکړی چه بناء پدې بیا خو یو کافر او مشرك ته هم متقی وئیل پکار دی چه کله ځان بچ کړی د یو گناه نه، مثلاً یو کافر ځان بچ کړی د زنا نه یا د غلا نه نو یو فرد د تقوی پدې ځائ کښې هم حاصل شو نو پکار ده چه د قاعدې مطابق پده باندې حکم د متقی اولگی اوجنت ته دې داخل شی اوحال دا دې چه ده ته څوك هم متقی نه وائی، جواب دا دې چه حصول د دې حکم دا مشروط دې په تقوی عن الکفر سره نو فرد تقوی عن الکفر دا شرط دې د نورو افرادو د تقوی لپاره او د دخول دجنت لپاره ترڅو پورې چه تقوی عن الکفر نوی راغلې نو نور افراد او انواع د تقوی غیر معتبر دی، اوداخله جنت ته ناممکنه ده، اوکله چه تقوی عن الکفر راشی نو یو فرد معتبره د تقوی حاصل شو نو مطلق تقوی په ضمن د دغې فرد کښې حاصله شوه نو جنت ته د داخلیدو امکان راغې، نو د دې دوجه نه نور افراد او انواع هم بیا معتبر کیږی ﴿وَعُيُونٍ﴾ مراد ترینه هغه انهار د لبن، عسل، خمر او د اُوبو دی چه په سورة محمد آیت نمبر (۱۵) کښې ذکر دی ﴿ادْخُلُوهَا﴾ دلته (قد قیل) ورسره مقدر دې ((ای وقد قیل لهم ادخلوها بسلام — الخ)) ﴿بِسَلَامٍ﴾ ای متلبسین بسلام، یعنی پدوئ باندې به سلامونه وی د جانبه د الله تعالی نه او له جانبه د فرشتونه په وخت د داخلیدو کښې جنت ته، او د سلام تفصیل په سورة ابراهیم، آیت نمبر (۲۵) کښې تیر شوې دې ﴿آمِنِينَ﴾ یعنی په امن کښې به وی د ویستلو نه یا د مرگ نه، دائمی به وی.

﴿وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنْ غِلٍّ﴾ (غل) وئیلې کیږی هغه بې اختیاره خفگان ته چه په دنیا کښې د یو بل سره وی بغیر د اغراض دنیوی نه لکه مشاجرات د صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم

اجمعین شو ، د دې وجه نه حضرت علی ﷺ اوفرمائیل چه «انی لأرجوا ان اکون انا وطلحة والزبیر ممن قال الله ونزعنا ما فی - الخ» او له حضرت ابن عباس ﷺ نه مروی دی ، فرمائی چه اهل جنت چه کله جنت ته داخلیږی نو د هرڅه نه مخکښې به دوئ ته دوه چینې راوړې شی نو د یوې چینې نه چه دوئ اوبه وڅکی نو د دوئ په زړونو کښې د یوبل سره خفګان به الله پاك ختم کړی او یوبل سره به ئې محبت په زړونو کښې پیدا کړې شی بیا به بلې چینې ته بوتلې شی او په هغې کښې به داخل کړې شی او غسل به ورته ورکړې شی ، نو په هغې سره به د دوئ مخونه اوپړقیږی (قرطبی) بعض مفسرین فرمائی چه د (غل) نه مراد هغه بی اختیاره خفګان دې چه پیدا کیږی په زړونو د انسانانو کښې له وجه د تفاوت د مرتبې نه خو اوله معنی زیاته راجحه ده ﴿مُّتَقَٰبِلِينَ﴾ پدې کښې اشاره ده دیته چه په جنت کښې به جنتیان یوبل ته ظاهری طور باندې هم شا نه ګرځوی ﴿لَا يَمَسُّهُمْ فِيهَا نَصَبٌ﴾ اشاره ده دیته چه جنت صرف جزاء ده او څه قسم عمل به پکښې نه وی ﴿بِمُخْرَجِينَ﴾ اشاره ده دیته چه دخول فی الجنت به خلود بلا زوال وی، بقاء بلا فناء ، کمال بلا نقصان به وی .

| نَبِّئْ عِبَادِيٓ أَنِّيٓ أَنَا ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ ۝ وَأَنَّ عَذَابِي هُوَ ٱلْعَذَابُ ٱلْأَلِيمُ ۝ |
|---|
| خبرکړه بندګان خما [1] چه بیشکه څه بخونکې رحم کونکې یم . او بیشکه عذاب خما هم دغه عذاب دردناك دې . |
| وَنَبِّئْهُمْ عَن ضَيْفِ إِبْرَٰهِيمَ ۝ إِذْ دَخَلُوا۟ عَلَيْهِ فَقَالُوا۟ |
| اوخبر ورکړه دوئ ته [2] (دقصې) د میلمنو د حضرت ابراهیم نه. کله چه داخل شو په هغه باندې پس اوئیل هغوئ |
| سَلَٰمًا قَالَ إِنَّا مِنكُمْ وَجِلُونَ ۝ قَالُوا۟ لَا تَوْجَلْ إِنَّا نُبَشِّرُكَ |
| سلام وایو مونږ په تا. اوئیل هغه چه بیشکه مونږ ستاسونه [3] یره کونکی یو. اوئیل هغوئ مه یریګه نه بیشکه مونږ زیرې درکوو تاته |
| بِغُلَٰمٍ عَلِيمٍ ۝ قَالَ أَبَشَّرْتُمُونِي عَلَىٰٓ أَن مَّسَّنِيَ ٱلْكِبَرُ |
| په هلك پوهه سره . اوئیل هغه چه آیا زیرې راکوئ تاسو ماته سره د دې چه رسیدلې دې ما ته بوډا والې |

۱ - له ابتداء د سورت سره متعلق .

۲ - د اولې نمونې لپاره تمهید.

۳ - نفی د علم غیب له ابراهیم علیه السلام نه .

فَبِمَ تُبَشِّرُوْنَ ۝ قَالُوْا بَشَّرْنٰكَ بِالْحَقِّ فَلَا تَكُنْ

پس په کوم څيز سره زيري راکوئ تاسو ماته . اوئيل هغوئ چه زيرې درکوؤ مونږ تاته په يقيني څيز سره پس مه کيږه ته

مِّنَ الْقٰنِطِيْنَ ۝ قَالَ وَمَنْ يَّقْنَطُ مِنْ رَّحْمَةِ رَبِّهٖٓ اِلَّا الضَّآلُّوْنَ ۝

د نا اُميدئ کوونکونه او وئيل ده[1] او څوك دي چه نا اُميده کيږي به د رحمت د رب خپل نه مگر گمراهان (چه دوئ مايوسه کيږي.

﴿نَبِّئْ عِبَادِىٓ﴾ پدې کښې تتمه د بشارت ذکر کيږي ، دا متعلق دې د اول د سورت سره چه ((ربما يود الذين)) دې يعنی چه بيا ارمان کوئ او وخت درنه تير وی نو اوس مغفرت او غواړئ اوس وخت دې، او په راتلونکی آيت نمبر (۵۰) کښې تتمه د تخويف ذکر کيږي په طريقې د لف نشر غير مرتب سره، او پدې آيتونو کښې دوه خبروته اشاره ده : يوه دا چه رحمت د الله تعالى ته سبقيت حاصل دې په غضب د الله تعالى باندې، (د دې وجه نه داسې ونه وئيلې شو چه ((انی معذب)) نو پدې کښې اشاره ده سبقيت او غلبيت د رحمت ته په غضب باندې دويمه دا چه ايمان بين الخوف والرجاء وی، او اضافت د عبادی (ياء) د متکلم ته لپاره د کمال مشرف او کمال لطف دې . ﴿وَنَبِّئْهُمْ عَنْ ضَيْفِ﴾ تمهيد ذکر کيږي دنمونې اولې لپاره چه هغه د قوم لوط واقعه ده او بيا واقعه د تخويف لپاره ذکر کيږي، او عطف د دې په ماقبل «نبئ» باندې دې پدې کښې اشاره ده ديته چه وعده د رحمت د الله تعالى او وعيد دعذاب دالله تعالى د آخرت په شان په دنيا کښې هم ظاهريږي . ﴿ضَيْفِ اِبْرٰهِيْمَ﴾ دغه ميلمانه فرشتې وې ، تعداد دهغو دولس (۱۲) ، يا لس (۱۰) او يا درې (۳) وؤ بناء بر اختلاف اقوال، ضيف مفرد راوړې شو ځکه چه دا په اصل کښې مصدر دې د (ضاف يضيف) نه خو بيا اسم اوگرځيدو د ميلمه لپاره نو د اعتبار د اصل نه دلته جمع رانه وړې شو .

که څوك اشکال وکړی چه اطلاق د ضيف په ملائکو باندې ندې صحيح، ځکه چه ضيف وئيلې کيږي ((هوالمنضم الی غيره لطلب القری)) او دا معنی په فرشتو کښې نده موجوده، نو يو جواب د دې لپاره دا دې چه اطلاق په دوئ باندې د ضيف له وجه د ظن او دگمان د ابراهيم ﷺ نه شوې دې ، دويم جواب دا دې چه اطلاق په دوئ باندې د ضيف صورتًا شوې دې، يعنی دوئ په

[1] ۱ - د اولې نمونې بيان .

صورت د میلمنو کښې راغلی وؤ نو د دې وجه نه میلمانه ورته او وئیلې شو. دریم جواب دا دې چه هر هغه څوك چه د چا کورته لاړشی نو صحیح وی په هغه باندې اطلاق د میلمه اګرچه خوراك نه کوی ((ای ان من یدخل دار انسان ویلتجیٔ الیه یسمی ضیفًا وان لم یأکل)) ، (شربینی)، او فرشتې اولاً حضرت ابراهیم ﷺ ته په راتللو کښې حکمت داوؤ چه دغه میلمانه ملائك د حضرت ابراهیم ﷺ لپاره رحمت او زیرې ورکوونکی وؤ نو ﴿أَنِّي أَنَا الْغَفُورُ الرَّحِيمُ﴾ ثابت شو او دغه فرشتې بیا د قوم لوط لپاره د عذاب او د اهلاك ذریعه جوړ شو، نو ﴿وَأَنَّ عَذَابِي هُوَ الْعَذَابُ الْأَلِيمُ﴾ ثابت شو. دریم حکمت پکښې دا وؤ چه په اهلاك د قوم لوط سره حضرت ابراهیم ﷺ ته خفګان رسیدلو نو دهغې د ازالې لپاره فرشتې حضرت ابراهیم ﷺ ته اولاً راغلې او هغه ته ئی په بودا والی حالت کښې د بچی زیرې او د قوم لوط د نیکانو خلکو دنجات زیرې ورکړو ﴿إِذْ دَخَلُوا﴾ د حضرت ابراهیم ﷺ د کور څلور دروازې وې لپاره د دې چه په کوم طرف هم میلمه داخلیږی چه څه قسم تکلیف ورته نوی او د دې وجه نه دحضرت ابراهیم علیه السلام کنیت ابو الفیضان وؤ ﴿فَقَالُوا سَلَامًا﴾ دا مفعول مطلق دې ، تقدیر د عبارت داسې دې ((سلمت علیك سلامًا)) یا داسې دې چه ((نسلم علیك سلامًا)) ﴿قَالَ إِنَّا مِنكُمْ﴾ پدې ځائ کښې اختصار شوې دې څکه د سلام جواب او د طعام ذکر دلته ندې شوې چه هغه مذکور دی په صورة هود کښې ، دا یا په لسان الحال سره وؤ چه هغه آثار د پریشانئ ظاهریدل وؤ په مخ مبارك د حضرت ابراهیم ﷺ کښې او یا په لسان المقال سره وئیل مراد دی یعنی په ژبه باندې حضرت ابراهیم ﷺ اووئیل چه ﴿إِنَّا مِنكُمْ﴾ پدې اشکال واردیږی چه د دې آیت دبل ایت سره تعارض دې څکه چه په سورة الذاریات ، آیت نمبر (۲۸) کښې الله تعالی فرمائی چه ﴿فَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً﴾ نو دهغې نه معلومیږی چه خوف ئی صرف په زړه کښې محسوس کړې وؤ او په ژبه باندې ئی څه نه وؤ وئیلی او د دې آیت نه دا معلومیږی چه په ژبه باندې ئی ورته وئیلی وؤ، نو جواب دا دې چه په سورة الذاریات کښې ذکر د ابتدائی کیفیت دې چه ابتداءً حضرت ابراهیم ﷺ دغه خوف صرف محسوس کړو او پټ ئی کړو په زړه کښې خو چه کله پریشانی زیاته شوه نو انتهاءً بیا ئی اظهار اوکړو، پدې آیت کښې اختصار شویدې څکه چه د سلام جواب او طعام چه هغه عجل سمین دې دلته ندې ذکر شوې چه مذکور دې په سورة هود کښې اوپه سورة ذاریات کښې ﴿وَجِلُونَ﴾ اې خائفون ، (وجل) وئیلې کیږی، ((اضطراب النفس لتوقع ما تکره)) ته، یعنی د ناخوښې شی د

رسيدلو د توقع دوجه نه په نفس کښ چه کوم اضطراب او پريشانی پيدا کيږی هغې ته وجل وئيلې کيږی، او سبب د دې وجل لپاره يا دهغه فرشتو خوراك نه کول وو چه دا دهغې زمانې دستور وو چه ميلمه به دا طعام نه خوړلو نو دا به علامه وه چه دا ميلمه د ضرر رسولو لپاره راغلې دې ، بناءپدې توجيه حضرت ابراهيم ﷺ ته علم نه وو چه دا فرشتې دی، نو هغوئ ورته خپل تعارف اوکړو او تسلی ئی ورکړه چه ﴿لَا تَوْجَلْ﴾ او صاحب کشاف فرمائی چه حضرت ابراهيم ﷺ ته علم وو چه دا فرشتې دی او په هغوئ باندې ئی آثار د غصې او غضب معلوم کړل نو خوف ئی محسوس کړو چه دوئ د چا د عذاب لپاره راغليدی، آيا خما قوم هلاك کوی يا بل قوم ؟ نو هغوئ ورته او وئيل چه ((انا أرسلنا الى قوم لوط)) او بعض مفسرين اوحضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمائی چه د حضرت ابراهيم عليه السلام خوف محسوس کول يو طبعی او فطری امر وو ځکه چه هغه فرشتو سره په دغه وقت کښ د الله تعالی عذب وو چه هغه ئی په قوم لوط باندې نازلولو نو د هغې يو فطری اثر په حضرت ابراهيم ﷺ باندې اوشو او وې فرمائيل چه ﴿إِنَّا مِنكُمْ وَجِلُونَ﴾ ، دا درې احتمالات زيات راجح دی اګرچه نور احتمالات هم پکښ ذکر شوی دی.

﴿إِنَّا نُبَشِّرُكَ﴾ علت دې د نفی د وجل لپاره په صورت د استئناف کښ ﴿بِغُلَامٍ﴾ مراد ترينه حضرت اسحاق ﷺ دې لکه په سورة هود کښ چه تفصيلی واقعه تيره شوې ده ﴿عَلِيمٍ﴾ مراد ترينه حليم دې يا ترينه مراد ذی علم کثير دې اويا ترينه مراد نبوت دې دا احتمال زيات راجح دې ﴿أَبَشَّرْتُمُونِي عَلَىٰ أَن مَّسَّنِيَ﴾ (على) يا په معنی د حالْ سره دې او يا په معنی د (مع) سره دې او (ان) مصدريه دې معنی ئی داده چه ((حالة مس الكبر اياى)) يا ئی معنی داده چه ((مع مس الكبر اياى)) ﴿فَبِمَ تُبَشِّرُونَ﴾ (بم) په اصل کښ (بما) وو په معنی د (ای شئ) سره ، دا استفهام يا تعجبی دې او يا حقيقی دې، تعجبی وئيل د سباق د کلام سره زيات اوفق دی ځکه چه ابتداء د کلام ﴿أَبَشَّرْتُمُونِي﴾ محمول دې په تعجب باندې، او حقيقی وئيل د سياق د کلام سره زيات اوفق دی چه هغه ﴿قَالُوا بَشَّرْنَاكَ﴾ دې که استفهام تعجبی شی نو معنی به ئی دا شی چه ((بایّ اعجوبة بشرونی؟)) اوکه استفهام حقيقی شی نو معنی به ئی دا شی چه (بای شئ تبشرونی؟)) په دواړو تقديرونو **اشكال** واردیږی ځکه چه استفهام تعجبی شی نو تعجب دلالت کوی په استبعاد باندې او په قدرت د الله تعالی کښ استبعاد کول جائز ندی، نو ولې حضرت ابراهيم ﷺ تعجب اوکړو؟ يو **جواب** دا دې چه

تعجب د حضرت ابراهیم ﷺ دا په اعتبار د عام عادت سره دې نه د وجه د استبعاد نه په قدرت د الله تعالی کښې لکه حافظ ابن کثیر رحمه الله فرمائی چه ((متعجبًا من کبره وکبر زوجته ومتحققًا للوعد)) نو په داسې احوالو کښې تعجب یو عام عادت دې، **دویم جواب** دادې چه د حضرت ابراهیم ﷺ نه صدور د دې لام په حالت غیر اختیاری کښې شوې دې ځکه چه کله کله د انسان نه په شدت فرحت او خوشحالۍ کښې د داسې کلام صدور اوشی چه په عام احوالو کښې هغه سخته ګناه شمارلې کیږی لکه په حدیث د فضیلت د توبې کښې ذکر دی چه هغه انسان ته چه کله خپله سواری دخوراك اوڅکاك د اسبابو سره میلاؤ شی نو د ډیرې خوشحالۍ نه دې دا او وائی چه «خدایه ته زما بنده او زه ستا رب یم» نو داسې حالت غیر اختیاری معفو عنها وی (کبیر) ، او که چرته استفهام حقیقی شی نو پدې هم اشکال واردیږی چه استفهام خو د شك او تردد لپاره وی نو په قدرت د الله تعالی کښې شك او تردد جائز ندې؟ نو جواب د دې لپاره دادې چه دا شك او تردد په نفسْ قدرت او په اعطاء خداوندی کښې نه وو بلکه دا سوال او تردد دا په کیفیت اعطاء کښې وو چه په کوم کیفیت سره ماته بچې راکوی؟ په حالت د بوډا والی کښې به وی او که بیا به ځوانۍ حالت ته واپس کیږم، دویم جواب دا دې چه کله کله استفهام د وجې د تردد او شك نه وی په شئ مستفهم عنه کښې او کله کله لپاره د تلذذ وی د مستفهم عنه نه، نو دلته لپاره د تلذذ دې نه لپاره د شك وغیره . ﴿ قَالُوا بَشَّرْنَٰكَ ﴾ هرکله چه فرشتو د حضرت ابراهیم ﷺ د کلام نه ظاهری مطلب فهم کړو چه هغه تعجب یا تردد دې نو د ازالې لپاره ئې او وئیل چه ﴿بَشَّرْنَٰكَ ﴾ ، ﴿بِالْحَقِّ ﴾ مراد د حق نه هغه یقینی قضاء او فیصله وه د الله تعالی چه هغه د حضرت ابراهیم ﷺ د صلب نه حضرت اسحاق ﷺ پیدا کول او بیا دهغه د صلب نه نور اولاد پیدا کول وو ﴿فَلَا تَكُن مِّنَ ﴾ د حضرت ابراهیم ﷺ چه د أُولو العزم انبیاء کرامو نه وو نو ظاهری کلام دهغه د شان نه مخالف وو نو د دې وجه نه ملائکو ورته اووئیل چه ﴿فَلَا تَكُن ﴾ او منع د انسان د یوشی نه دا تقاضا د دې نه کوی چه دې فاعل دمنهی عنه دپاره دې لکه په سورة الاحزاب کښې الله تعالی نبی کریم ﷺ ته فرمائی چه ﴿وَلَا تُطِعِ الْكَافِرِينَ وَالْمُنَافِقِينَ ﴾ ، ﴿ قَالَ وَمَن يَقْنَطُ ﴾ استفهام انکاری دې یعنی نه مایوس کیږی ، هرکله چه ملائکو د حضرت ابراهیم ﷺ د کلام نه ظاهری مطلب فهم کړې وو نو حضرتِ ابراهیم ﷺ دهغې رد اوکړو په دلیل سره چه دا تعجب یا استفهام له وجه د قنوط او مایوسئ نه ندې بلکه له وجه د ظاهری اسبابو نه دې ﴿إِلَّا

﴿ٱلضَّآلُّونَ﴾ یعنی نا امیده کیدل د جاهل سړی کار دې ځکه چه هغه منکر وی د قدرت د الله تعالی نه او پیغمبر خو جاهل کیدې نشی، نو معلومه شوه چه تعجب یا استفهام د حضرت ابراهیم ﷺ د مایوسئ او قنوط له وجه نه نه وؤ ، او مراد د ﴿ٱلضَّآلُّونَ﴾ نه کافر دی لکه په سورة یوسف کښ الله تعالی فرمائی ﴿وَلَا تَاْيْـَٔسُوا مِن رَّوْحِ ٱللَّهِ إِنَّهُۥ لَا يَاْيْـَٔسُ مِن رَّوْحِ ٱللَّهِ إِلَّا ٱلْقَوْمُ ٱلْكَـٰفِرُونَ﴾ ، (یوسف ، ایت نمبر ۷۸) ، خو هلته صراحتًا کفر ذکر شو او دلته ضلالت ذکر شو . وجه داده چه دلته قنوط ذکر دې نو د دې سره مناسب ضلالت دې ځکه چه قنوط وئیلې کیږی هغه نا اُمیدئ ته چه په هغې کښ اثر د خفګان په مخ باندې ښکاریږی، او د ضلال استعمال هم په ظاهری ګمراهی کښ کیږی، او هلته (یاس) ذکر دې چه هغه صرف د زړه نا اُمیدئ ته وئیلې کیږی او کفر هم تعلق د زړه سره ساتی نو د دې وجه نه ورسره د کفر لفظ استعمال شو .

| قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ أَيُّهَا ٱلْمُرْسَلُونَ ۝ قَالُوٓا إِنَّآ أُرْسِلْنَآ |
|---|
| اوئیل هغه پس کوم لوئ کار (منصوبه) دې ستاسو اې رالیږلې شوو (ملائکو) ! هغوئ اوئیل چه بیشکه مونږ رالیږلې شوی یو |
| إِلَىٰ قَوْمٍ مُّجْرِمِينَ ۝ إِلَّآ ءَالَ لُوطٍ إِنَّا لَمُنَجُّوهُمْ أَجْمَعِينَ ۝ |
| قوم ته چه جرم کوونکی دی مګر صرف کورنئ د لوط چه بیشکه مونږ خامخا بچ کوونکی یو هغوئ ټولو لره |
| إِلَّا ٱمْرَأَتَهُۥ قَدَّرْنَآ إِنَّهَا لَمِنَ ٱلْغَـٰبِرِينَ ۝ |
| مګر ښځه دهغه[1] چه مقرر کړیده مونږ چه بیشکه وی به دا خامخا د پاتې کیدونکی خلکونه |

﴿قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ﴾ د دې ځائ نه تر آیت نمبر (۷۷)﴿إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَةً لِّلْمُؤْمِنِينَ﴾ پورې د تخویف دنیوی اوله نمونه بیانیږی چه هغه د حضرت لوط ﷺ د قوم واقعه ده، د حضرت لوط ﷺ د قوم واقعه په ترتیب سره په سورة هود کښ ذکر شویده او دلته د تخویف لپاره بطور نمونه څه په تقدیم او تاخیر سره ذکر کیږی، (خطب) وئیلې کیږی امر عظیم ته ، امام راغب رحمه الله فرمائی چه (الخطب الامر العظیم الذی یکثر فیه التخاطب) یعنی خطب هغه عظیم امر ته وئیلې کیږی چه په هغې کښ یوبل ته په کثرت سره خطاب وی، نو هرکله چه فرشتو حضرت ابراهیم ﷺ ته بشارت ورکړو نو

[1] - د نفی د تصرف او اختیار له لوط ﷺ نه

ابراهيم ﷺ ته دا پته هم اولګیده چه د فرشتو اصل مقصد هغه ماته صرف بشارت راکول ندی بلکه د دوئ مقصد یوبل لوئ کار دي نوځکه ئي اوفرمائیل چه ﴿فَمَا خَطْبُكُمْ﴾ او حضرت ابراهیم ﷺ ته دا علم څنګه اوشو چه مقصود اصلی هغه یوبل امر عظیم دې. نو بعض علماء فرمائی چه حضرت ابراهیم ﷺ د تعدد د فرشتونه معلومه کړه چه د دوئ مقصد صرف ماته بشارت راکول ندی بلکه امر عظیم دې. ځکه چه د بشارت ورکولو لپاره یوه فرشته هم کافي وه لکه په واقعو د حضرت زکریا ﷺ او حضرت مریم بی بی کښ چه صرف یوه فرشته راغلې وه او دلته کښ چونکه فرشتې په ډیر تعداد کښ راغلې وې نو حضرت ابراهیم ﷺ محسوسه کړه چه د دوئ په ذمه یو لوئ کار دې، لیکن دا توجیه کمزورې ده ځکه چه څنګه د بشارت لپاره یوه فرشته کافي کیدې شی نو دغه شان د عذاب لپاره هم یوه فرشته کافي کیدې شی نو د تعدد نه دا فهم کول چه ګنې د عذاب لپاره غیر مناسب دی دا فکر صحیح ندې، بعض فرمائی چه حضرت ابراهیم ﷺ ته علم د فرشتو د کلام نه اوشو چه هغوئ حضرت ابراهیم ﷺ ته اوئیل چه ﴿لَا تَوْجَلْ إِنَّا نُبَشِّرُكَ﴾ نو حضرت ابراهیم ﷺ محسوسه کړه چه کچرته د دوئ مقصود صرف ماته بشارت راکول وې نو پکار وه چه دوئ په راتلو سره ماته بشارت راکړې وې، خو بشارت دوئ ضمنی راکړو لپاره د خوف د ختمیدلو . نو معلومه شوه چه مقصود اصلی هغه بل څه کار دې نو ځکه ئی اوفرمائیل چه ﴿فَمَا خَطْبُكُمْ﴾ اویا حضرت ابراهیم ﷺ ته علم د فرشتو دهغه غصې نه اوشو لکه څنګه چه ماقبل کښ د زمخشری رایه ذکر شوې وه چه هغه فرشتې ډیرې غصه وې نو حضرت ابراهیم ﷺ محسوسه کړه چه مقصد د دوئ ماته زیرې او بشارت راکول ندی ځکه چه بشارت راوړونکې غصه نه وی ، نو معلومه شوه چه د دوئ مقصد اصلی بل امر عظیم دې، او دحضر شاه صاحب رحمه الله توجیه پدې تولو کښ بې غباره ده چه حضرت ابراهیم ﷺ دهغه فطری اثر نه معلومه کړه چه دا فرشتې اصالةً ماته د بشارة لپاره ندی راغلی، بلکه دوئ د یو بل مقصد لپاره راغلیدی ، ﴿قَالُوا إِنَّا أُرْسِلْنَا﴾ فرشتې د خپل راتګ اصل مقصد ذکر کوی ﴿إِلَىٰ قَوْمٍ مُجْرِمِينَ﴾ مراد ترینه مشرکین او کافر دی چه هغه قوم لوط دې او ((ولنهلکنم)) ورسره مقدر دې ﴿إِلَّا آلَ لُوطٍ﴾ دا استثناء یا متصله ده او یا منفصله ده که مستثنی منه ورله (قوم) شی چه هغه متصف دې په (مجرمین) سره نو استثناء به منقطع وی ځکه چه (آل لوط) په هغو کښ جزمًا داخل نه وؤ او که مستثنی منه ورله ضمیر شی چه په مجرمین کښ دې چه هغه راجع دې مطلق قوم ته بغیر د اتصاف نه په مجرمین سره نو بیا استثناء متصله ده ﴿إِلَّا امْرَأَتَهُ﴾ دا

استثناء د ماقبل استثناء نه ده چه هغه (لمجوهم) دي يعنې قوم مجرمان به ټول هلاك كيږي مګر آل لوط به بچ كيږي، او آل لوط به ټول بچ كيږي مګر ښځه به ئې نه بچ كيږي ﴿قَدَّرْنَا﴾ تقدير په لغت كښې وئيلې كيږي چه يو شي د بل شي په اندازې باندې جوړول اودلته ترينه مراد قضاء او فيصله د الله تعالى ده چه هغه عذاب وؤ په قوم د لوط ﷺ باندې، او دا فعل د الله تعالى دې لكه څنګه چه نجات وركول فعل د الله تعالى دې ليكن په دواړو خايونو كښې يعنى (انا لمنجوهم) او (قدرنا) كښې فرشتو نسبت خپل ځان ته اوكړو، وجه داده چه مرسَل د مرسِل سره اختصاص وى نو د فرشتو د دغه خصوصى قربت د اظهار لپاره د دغې افعالو نسبت ځان ته اوكړو (كبير، مظهرى)، يا وجه داده چه كلام د مرسَل هغه كلام د مرسِل دې، مرسَل د خپله طرفه څه كلام نشى كولې، هغه صرف پيغام رسونكې وى نو دلته هم فرشتو ابتداءً دا او وئيل چه ﴿إِنَّا أُرْسِلْنَا﴾ يعنى مونږ صرف قاصدان يو، او دا حقيقةً پيغام د الله تعالى دې، دريمه وجه داده چه نسبت د فرشتو خپل ځان طرفته دا تسبيًا دې يعنى د اسباب ظاهريه له وجه نه دې ورنه حقيقتًا مافوق الاسباب نجات وركوونكې اوفيصله كوونكې هغه ذات د الله تعالى دې (افضل التراجم)، اوحضرت مولانا شبير احمد عثمانى رحمه الله فرمائى چه ممكنه ده چه دا كلام د الله تعالى وى نو بيا څه قسم اشكال هم نشته دې (از تفسير عثمانى)، ﴿إِنَّهَا لَمِنَ الْغَابِرِينَ﴾ يعنى دا به وى د باقى پاتې كيدنكو نه، غابر وئيلې كيږي هغه پيږ ته چه د غوا د لشلو نه وروستو په تيونو كښې پاتې وى.

فَلَمَّا جَاءَ آلَ لُوطٍ الْمُرْسَلُونَ ۝ قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ مُنْكَرُونَ ۝ قَالُوا

پس هركله چه راغلل كورنۍ د لوط ته هغه ليږلې شوى. اوئيل هغه چه بيشكه يئ تاسو يو قوم نا آشنا. هغوئ ورته اوئيل

بَلْ جِئْنَاكَ بِمَا كَانُوا فِيهِ يَمْتَرُونَ ۝ وَآتَيْنَاكَ

بلكه راوړې دې مونږ تاته خبر دهغه شي (عذاب) چه وؤ هغوئ چه په هغې كښې به ئې شك كولو. او راغلى يو مونږ تاته

بِالْحَقِّ وَإِنَّا لَصَادِقُونَ ۝ فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِنَ اللَّيْلِ

په هغه يقينى خبر (د عذاب سره) او بيشكه مونږ خامخا رشتينى يو. پس روان كړه ته كورنۍ خپله په يوې حصې كښې د شپې نه

وَاتَّبِعْ أَدْبَارَهُمْ وَلَا يَلْتَفِتْ مِنْكُمْ أَحَدٌ وَامْضُوا حَيْثُ تُؤْمَرُونَ ۝

او ځه ته وروستو په دوئ پسې اونه دې ګورى شاته د ستاسو نه هيڅ څوك او ځئ هغه ځائ ته چه تاسو ته ئ حكم كولې شى.

وَقَضَيْنَآ إِلَيْهِ ذَٰلِكَ ٱلْأَمْرَ أَنَّ دَابِرَ هَٰٓؤُلَآءِ مَقْطُوعٌ مُّصْبِحِينَ ﴿٦٦﴾

او وحی اوکړه مونږ ده ته د دې خبرې (فیصله شوې) چه بیشکه جرړې د دې خلکو به پریکړې شی په وخت د صبا کښې

﴿ فَلَمَّا جَآءَ ءَالَ ﴾ دا د قصې ابتدائی حصه ده، او شروع ده په اهلاک د قوم لوط او په نجات د آل لوط کښې او وضع د اسم ظاهر په ځائ د مضمر اوکړې شوه لپاره د تنبیه پدې چه مقصود اصلی د فرشتو د راتګ هغه دا واقعه ده ﴿قَوْمٌ مُّنكَرُونَ ﴾ هرکله چه فرشتې په حضرت لوط ﷺ باندې اچانک داخلې شوې اوهغه اونه پیژندې نو ورته ئی اوفرمائیل ﴿إِنَّكُمْ قَوْمٌ مُّنكَرُونَ ﴾ (منکر) یا په معنی د ناګوار او خلاف طبعیت سره دې او مقصد ئی دا دې چه څه تاسونه خطره محسوسه وم او بد ګنړم تاسو ((ای تنکرکم نفسی منك)) ، (کنباف) اویا دمنکر معنی ده نا آشنا او غیر معروف . او مقصد ئی دا ذې چه تاسو نا اشنا یئ او تاسو نه د دې خلکو هغه بد خوئ او بد اخلاقی نده معلومه . او وجه دا وه چه حضرت لوط ﷺ ته فرشتې په ډیر ښائسته صورت کښې د میلمنو راغلې وې. نو حضرت لوط ﷺ د خپل قوم د طرفه دا خطره محسوسه کړه چه داسې نه چه دا قوم دې میلمنو ته څه نقصان اونه رسوی نو ځکه ئی هغوئ ته او وئیل چه ﴿إِنَّكُمْ قَوْمٌ مُّنكَرُونَ ﴾ او یا د منکر معنی ده عجیب . او دا کلام حضرت لوط ﷺ په هغه وخت کښې اوکړو چه کله قوم د دغې خائسته میلمنو نه خبر شو او راغلل . نو حضرت لوط علیه السلام مسلسل د میلمنو مدافعت کولو اوهغه میلمانه په آرام سره ناست وؤ هیڅ ئی هم نه وئیل ، حتی چه حضرت لوط علیه السلام مجبور شو نو وې فرمائیل چه ﴿لَوْ أَنَّ لِى بِكُمْ قُوَّةً أَوْ ءَاوِىٓ إِلَىٰ رُكْنٍ شَدِيدٍ ﴾ . (هود، آیت نمبر ۸۰) ، او چه زیات تنګ شو نو میلمانو ته ئی اووئیل چه ﴿إِنَّكُمْ قَوْمٌ مُّنكَرُونَ ﴾ چه تاسو هم څه عجیبه قوم یئ چه څه امداد هم خما نه کوئ (روح) ، ﴿بَلْ جِئْنَٰكَ ﴾ اعراض دې په ماقبل کښې دهر قسم خوف نه، او د دینه مخکښې تقدیر دې ((ای ما جئناك لضرك بل جئناك – الخ)) ﴿بِمَا كَانُوا۟ فِيهِ يَمْتَرُونَ ﴾ دلته هم تقدیر دې (ای بخبر ما) مراد ترینه عذاب دې چه دوئ به دهغې په نزول کښې شك کولو ((ای العذاب کنت تتوعدهم به فیمترون ویشکون)) ، (روح) ، اویا ترینه مراد توحید دې چه دوئ به په هغې کښې شك کولو ﴿ وَأَتَيْنَٰكَ بِٱلْحَقِّ ﴾ مراد ترینه یا صدق دې او یا عذاب دې ﴿وَإِنَّا لَصَٰدِقُونَ ﴾ د مزید تاکید لپاره دې چه ګپ شپ ندې ﴿ فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ ﴾ پدې کښې مبادی د نجات ذکر کیږی چه هغه څلور دی (۱) د شپې

تلل (۲) امیر او مشر د تولو نه په اخیر کښ تلل (۳) شاته نه کتل (۴) مقام متعینه ماموړ به ته تلل ، ﴿ فَأَسْرِ ﴾ په قطع د همزه او په وصل د همزه په دواړو قرائتونو سره مروی دي دا کثر علماؤ په نیزد (اسری) او (سری) دواړه وئیلې کیږی د شپلې تللو ته وائی ﴿بِقِطْعٍ مِّنَ الَّيْلِ﴾ یا د تاکید لپاره دي او یا په (اسر) کښ تجرید شوي دي چه دهغې نه مراد مطلق ذهاب وؤ نو ځکه ﴿بِقِطْعٍ مِّنَ الَّيْلِ﴾ ذکر شو. او مراد ترینه یا یوه حصه د شپې ده او یا ترینه مراد (آخر اللیل) دي ﴿وَاتَّبِعْ أَدْبَارَهُمْ﴾ یعنی په خپله د تولونه وروستو شه لپاره د حفاظت دهغوئ چه څوك پاتې نشی ، اودغه طریقه به دحضور صلی الله علیه وسلم په اکثرو غزواتو کښ وه ﴿وَلَا يَلْتَفِتْ مِنكُمْ﴾ یعنی څوك دې هم په تاسو کښ شاته نه ګوری له وجه د دینه چه هغه سخت عذاب اونه ګوری چه په زړه کښ ئی د اقاریو سره څه نرمی او همدردی پیدا نشی چه بیا به په دوئ عذاب راشی ، او بعض فرمائی چه عدم التفات کنایه ده د سرعت نه په تللو کښ ځکه چه په شا کتلو سره مقصد ته په رسیدو کښ سستی پیدا کیږی، او بعض فرمائی چه عدم التفات دا علامه ده د نجات میلاؤوونکو ته د آل لوط لپاره (خازن) ، ﴿وَامْضُوا حَيْثُ تُؤْمَرُونَ﴾ مراد ترینه یا ملك د شام دي او یا ترینه مصر اویا عدن مراد دي، او (حیث) پدې ځائ کښ د ظرف مکان مبهم لپاره دي د دې وجه نه تعدیه د فعل ورته بالذات شوي ده چه هغه په مبهم کښ جائز دي ﴿ وَقَضَيْنَا إِلَيْهِ ﴾ دا ادخال الهی دي او لفظ د (قَضَيْنَا) متضمن دي معنی د (أَوْحَيْنَا) لره نو د دې وجه نه په (الی) سره متعدی شو ﴿ذَٰلِكَ الْأَمْرَ﴾ مراد ترینه هغه قطعی فیصله ده د قوم لوط په باره کښ ﴿أَنَّ دَابِرَ هَٰؤُلَاءِ﴾ دا تفسیر د دغه امر دي، اولاً ئی ذکر اوشو په ابهام سره او بیا ئی تفسیر اُوشو لپاره د تفخیم او تعظیم شان د دغې امر، (دابر) وئیلې کیږی آخر د شی ته، زیلی او جرړې ته، پدې کښ اشاره ده چه عذاب به په دوئ باندې احاطه کوونکې وی، څوك به ترینه هم نه بچ کیږی ((یستأصلون من اخرهم حق لایقی منهم احد)) ، (کشاف)، ﴿مُّصْبِحِينَ﴾ حال دي د (دابر) نه چه هغه مفعول مالم یسم فاعله دي په اعتبار د ضمیر مستتره سره چه په مقطوع کښ دي چه راجع دي دابر ته.

وَجَاءَ أَهْلُ الْمَدِينَةِ يَسْتَبْشِرُونَ ۝ قَالَ إِنَّ هَٰؤُلَاءِ ضَيْفِي فَلَا تَفْضَحُونِ ۝

او راغلل اوسیدونکی د دغه ښهر خوشحالیدل . اوئیل (لوط) چه بیشکه دا کسان میلمانه ځما دی پس مه شرموئ تا سو ما لره .

وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَلَا تُخْزُوْنِ ۞ قَالُوْٓا اَوَلَمْ نَنْهَكَ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ۞

او او یریږئ د الله نه اومه رسوا کوئ ما لره اوئیل هغوئ چه آیا نوې منع کړې مونږ ته «د تعلق ساتلو» دخلکونه

قَالَ هٰٓؤُلَآءِ بَنٰتِيْٓ اِنْ كُنْتُمْ فٰعِلِيْنَ ۞

اوئیل هغه دا زنانه لونړه دی څما کچرته یئ تاسو کوونکی د دې کار

﴿ وَجَآءَ أَهْلُ ﴾ د واقعې او د قصې دویمه حصه بیانیږی او پدې سورت کښې د دې واقعې ترتیب ندې ملحوظ ځکه چه د میلمنو راتلل اول وؤ بیا په هغو پسې د قوم راتلل وؤ . بیا د حضرت لوط ﷺ د طرف نه مسلسل مدافعت وؤ ، بیا په آخر کښې فرشتو هغه ته خپل خبر ورکړو ، او واو د مطلق جمع لپاره دې او وجه د د دې داده چه د دې واقعې دلته ذکر کول اول مقصد هغه مؤمنانو ته بشارت ورکول دی ، او دویم مقصد هغه تخویف دې منکرینوته نو ځکه تقدیم دهغه حصې اوشو چه په هغې کښې بشارت ذکر دې او بیا وریسې د تخویف والا حصه ذکر شوه ﴿ يَسْتَبْشِرُوْنَ ﴾ استبشار وئیلې کیږی اظهار د سرور ته، نو کله چه دا خبره مشهوره شوه چه د حضرت لوط ﷺ کورته خائسته بې ږیرې میلمانه راغلی دی نو د قوم لوط هغه ګمراه خلکو ته هم خبر اوشو نو هغوئ د خپل ناجائز خواهش پوره کولو لپاره د حضرت لوط ﷺ کورته په منډه منډه په خوشحالئ سره راغلل، بعض مفسرین فرمائی چه خبر ورکوونکې ښځه د لوط ﷺ وه ، ﴿ قَالَ ﴾ لوط ﷺ هغوئ ته منت او زارئ شروع کړه ﴿ فَلَا تَفْضَحُوْنِ ﴾ معنی ئې ده (لاتخجلون) ، فضح وئیلې کیږی د داسې امر ظاهریدل چه هغه سبب د عار اوګرځی، نو د میلمه بې عزتی کول دا د کوربه او میزبان بې عزتی اودهغه شرمول دی او دهغه لپاره سبب د عار وی ﴿ وَلَا تُخْزُوْنِ ﴾ یا مشتق دې د «خزیٌ» نه په معنی د ذلت سره ، اویا مشتق دې د «خزایة» نه په معنی دشرم سره، نو د مشر خبره نه منل د میلمنو په مخ کښې دا د هغه شرمول او دهغه تذلیل وی، ﴿ قَالُوْٓا اَوَلَمْ نَنْهَكَ ﴾ دا دهغوئ انتهائی درجې بی حیایی وه چه مخامخ پیغمبر ته وائی چه ته خپله بې عزتی په خپله کوې مونږ ته دخلکو د میلمستیا نه منع کړې نوې څه ؟ او یا ته مونږ د خلکو د سفارش نه منع کړې نه یې څه ؟ چه پدې بد کارئ کښې به ته مونږ نه منع کوې او سفارش به نه کوې او دا استفهام انکاری دې په معنی د نهی سره، حضرت شیخ الاسلام مولانا شبیر احمد عثمانی ﷫ فرمائی چه د دینه دا معلومیږی چه دې خلکو به همیشه لپاره نا آشنا مسافرو سره د دې افعال شنیعه ارتکاب کولو ، اوحضرت لوط ﷺ به همیشه دوئ د

دینه منع کول ﴿قَالَ هٰٓؤُلَآءِ بَنَاتِيٓ﴾ مراد د بنات نه یا بنات صلبیه دی او یا ترینه زنانه دقوم مراد دی، ځکه چه پیغمبر دهغوئ لپاره په منزله دپلار وی ، او خبر دلته مقدر دې چه (فتزوجوهن) دې ، تفصیل په سورة هود کښ تیر شوې دې ، ﴿إِن كُنتُمْ فَٰعِلِينَ﴾ یعنی کچرته تاسو څما خبرې منلو ته تیار یئ، او دهغې مقتضی مطابق عمل کولو ته تیار یئ، نو حضرت لوط ﷺ ته یو قدرتی او فطری شك وؤ چه آیا دا بې حیا خلك به څما دا خبره قبوله کړی اوکه نه؟ نو د دې وجه نه ئی په شك او تردد سره کلام اوکړو، او یا ئی مقصد دا دې چه کچرته تاسو خامخا خپل شهوت پوره کوونکی یئ نو په محل حلال کښ ئی پوره کړئ، څه ضرورت دې ارتکاب د حرامو ته، او د دواړو توجیهاتو کښ جزاء مقدره ده چه هغه (فهو خیرلکم) ده.

| لَعَمْرُكَ إِنَّهُمْ لَفِي سَكْرَتِهِمْ يَعْمَهُونَ ۝ فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ |
|---|
| قسم مې دې وی ستا په ژوند بیشکه دوئ خامخا په خپلې نشه کښ سرگردانه وؤ. پس اونیوؤ هغوئ لره یو سخت آواز |
| مُشْرِقِينَ ۝ فَجَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ |
| په وخت د نمر خاته کښ. پس اوگرځولو مونږ بره طرف د هغې کلو لاندې طرف دهغې ته او را اووروَل مونږ په هغوئ باندې |
| حِجَارَةً مِّن سِجِّيلٍ ۝ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّلْمُتَوَسِّمِينَ ۝ |
| کاڼړی د پخو شوو خاورو نه . بیشکه پدې واقع کښ خامخا ډیرې نشانئ د عبرت دی لپاره د فکر کوونکو . |
| وَإِنَّهَا لَبِسَبِيلٍ مُّقِيمٍ ۝ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّلْمُؤْمِنِينَ ۝ |
| او بیشکه هغه کلی پراته دی په لارې نیغې باندې . بیشکه پدې کښ لویه نشانی ده لپاره د مؤمنانو |

﴿لَعَمْرُكَ﴾ دا د ابتداء د سورت سره متعلق دې چه ((ما ننزل الملائكة — الايه)) دې ، یعنی دوئ ایمان نه راوړی او امید قطع شو نو اوس به فرشتې په حق عذاب سره نازلیږی او دوئ ته به څه مهلت هم نه میلاویږی، (لعمرك) کښ لام قسمیه دې او عُمر عَمر (بالضم والفتح) دواړو یوه معنی ده خو چه کله قسم خوړې شی نو بیا بالفتح عَمر استعمالیږی ، امام راغب رحمه الله فرمائی ((العَمْر والعُمر واحد لکن خص القسم بالعَمر دون العُمر)) ځکه چه استعمال د قسم کثیر وی نو فتحه چه هغه اخف الحرکات ده ورسره زیاته مناسبه ده، (لعمرك) مبتداء ده او خبر ورله حذف دې وجوبًا چه هغه

قسمي، دې او قسم كوونكې يا الله دې او يا فرشتې دی او مقسم به ي عمر دحضور ﷺ دې او يا د لوط ﷺ، جمهورو مفسرينو اول احتمال غوره كړې دې، دا ادخال الهی دې لپاره د اعزاز او اكرام او د تسلی دحضور ﷺ لپاره، امام بيهقی په دلائل النبوة اوابن جرير په تفسير طبری كښې د حضرت ابن عباس ﷺ نه اوابن مردويه دحضرت ابوهريرة ﷺ نه روايت نقل كړې دې چه الله تعالى په ټول كائنات اومخلوقات كښې چاته هم دحضور صلى الله عليه وسلم نه زياته مرتبه نده وركړې او د دې وجه نه الله تعالى د بل پيغمبر يا د يوې فرشتې په ژوند قسم ندې كړې . ((ما خلق الله ما ذرأ وما برأ نفسًا اكرم على الله من محمد صلى الله عليه وسلم وما سمعت الله اقسم بحياة احد غيره)) . (طبری. ج ۷، ص ۵۲۶)

امام قرطبی د ابن العربی او د قاضی عياض نه نقل كړيدی چه ((اجمع اهل التفسير فى هذا انه قسمٌ من الله جل جلاله بمدة حياة محمد صلى الله عليه وسلم)) بعض مفسرين فرمائی چه قسم كوونكی هغه فرشتې دی اومقسم به عمر د حضرت لوط ﷺ دې ځكه چه په ماقبل كښې ټول كلام د فرشتو دې د حضرت لوط ﷺ سره، اوس كه په مينځ كښې ادخال كيږی نو سلسله د كلام به منقطعه شی، ليكن دا قول ضعيف دې ، صاحب د روح المعانی فرمائی چه : ((وهو مع مخالفته للماثور محتاج لتقدير القول اى قالت الملائكة للوط – لعمرك – الخ ، وهو خلاف الاصل وان كان سياق القصة شاهدًا له وقرينة عليه) او بعض معاصر مفسرينو يو دريم احتمال هم ذكر كړې دې اوهغې ته ئې غوره ونيلې دې چه قسم كوونكې الله تعالى دې ليكن مقسم به عمر د حضرت لوط ﷺ دې لپاره د دې چه سلسله د كلام منقطع نشی ، ليكن د ډير تلاش نه وروستو بيا هم دا احتمال په معتبرو تفاسيرو كښې د نظر لاندې رانغې اوسره د دې چه د آثار مرفوعه نه هم خلاف دې .

**تنبيه (۱)** : الله تعالى چه دخپل ذات او صفاتو نه علاوه په يو مخلوق قسم اوكړی نو دهغې متعدد فوائد وی ، كله الله تعالى هغه شې په استشهاد كښې پيش كوی لكه (والعصر) يا (والليل) وغيره شو ، كله دهغې شی منافع كثيره ته پكښې اشاره وی لكه (والتين والزيتون) شو ، كله د مقسم به اكرام او تعظيم ته پكښې اشاره وی لكه (لا اقسم بهذا البلد) شو ، اوكله كله دمقسم به لپاره دُعا مقصد وی وی لكه پدې مقام كښې شو ، نو د اكثر مفسرينو په نيزد دا قسم لپاره د اكرام او د تعظيم دې ليكن حضرت والد صاحب رحمه الله واسعة به فرمائيل چه زمونږ استاد حضرت شاه منصور باباجی ﷺ به فرمائيل چه پدې ځائ كښې دا قسم د دعا لپاره دې اومعنی ئې داده چه (ژوندې دې

او سي نه)

**تنبيه** (۲) الله تعالى په خپلو مخلوقاتو كښې مطلقًا په مختلف شيونو باندې قسم خورى دا د الله سره خاص دې ځكه چه الله تعالى قادر مطلق او مختار كل دې دهغه شان دا دې چه ﴿لَا يُسْـَٔلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْـَٔلُونَ﴾ ليكن د مخلوق لپاره مطلقًا په غير الله باندې قسم خوړل جائز ندى بلكه په هغې كښې تفصيل بيان شوې دې چه قسم كله لپاره د تعظيم دمخلوق په وى چه دې ته يمين شرعى او حقيقى وئيلې كيږى. نو داسې قسم صرف په ذات او په صفاتو د الله تعالى باندې خوړې شى او قرآن مجيد چه صفت د الله تعالى دې نو په هغې هم خوړې شى، او د دينه علاوه چه غير الله باندې داسې قسم خوړل جائز ندى نو كچرته دغه شان قسم چا په غير الله باندې پدې عقيدې سره اوخوړلو چه دا مخلوق به قادر مطلق او متصرف وى نو دا شرك دې او په حديث كښې چه راغلى دى ((من حلف بغير الله فقد اشرك)) د دې نه مراد داقسم حلف دې او كچرته پدې عقيدې سره نوى نو بيا حرام دې او احاديث دنهى پدې قسم محمول دى، اوكله كله قسم په غير الله باندې صرف د توكيد او توثيق دحكم لپاره وى بغير د تعظيم دمحلوف به نه ، نو داسې قسم حلف او يمين په غيرالله باندې جائز دې، لكه په حديث دضمان بن ثعلبه كښې په روايت د مسلم شريف سره چه مذكور دى چه حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل : ((افلح الرجل ان صدق وابيه)) امام نووى رحمه الله فرمائى چه دا قسم هغه ندې چه هغه د تعظيم د محلوف به لپاره وى بلكه دا صرف د توكيد لپاره دې، اوعلامه عينى رحمه الله د دې حديث په تشريح كښې فرمائى چه : ((والنهى انما ورد فى القاصد بحقيقة الحلف لما فيه من تعظيمه المخلوق)) ، (عمدة القارى، ج : ۱ ، ص : ۲۷۰) ، او په دغه شان قسم كښې كله الفاظ د قسم ذكر وى اوكله نوى ذكر، اودغه شان قسم چه پدې سره مقصود توكيد دحكم وى كله لپاره د استشهاد وى يعنى توكيد دحكم په استشهاد سره اوكړې شى لكه پدې قول د شاعر كښې چه دى ع :

*قسم بلب مى گون تو وزلف شبگون تو ــ كه تو محبوب دلربائى*

اوكله دا توكيد د حكم په بد دعاء سره وى يعنى دا قسم په بد دعاء سره وى، لكه پدې شعر دحسان بن ثابت رضي الله عنه كښې چه راغليدى :

ثَكلتُ بُنَيَّتِى اِنْ لم تَرَوْهَا ... تُثِيرُ النقعُ مِن طرفَىْ كداءِ

نود فتح مكه په ورځ حضور صلى الله عليه وسلم صحابه كرامو ته اوفرمائيل چه تاسو مكې ته دكداء جانب نه

داخل شئ چه دحضرت حسان ﷺ قسم پوره شي نو حضور صلی الله علیه وسلم دحضرت حسان ﷺ الفاظ ((ثکلت بنیق)) ته قسم وئیلې وؤ، او کله دغه توکید په دعا سره وی لکه دا قول د یو سړی بل نه شو «الله تعالی دې تاته هدایت اوکړی خه ریشتیا وایم».

﴿ لَفِي سَكْرَتِهِمْ ﴾ مراد ترینه گمراهی ده او یا غفلت دې ﴿ يَعْمَهُونَ ﴾ مراد ترینه سرگردانی او پریشانی ده او حضرت قتادة ﷺ ترینه په (یلعبون) سره ترجمه کړیده. یعنی دوئ په خپلې گمراهئ کښې او یا په غفلت کښې سرگردانه پراته دی نو څنګه به ستا خبره قبوله کړی ﴿ فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ ﴾ الف لام یا جنسی دې او مراد ترینه جنس صیحة دې او یا عهدی دې مراد ترینه صیحه دحضرت جبرئیل ﷺ ده لیکن اول احتمال زیات راجح دې ځکه چه په تعین باندې څه دلیل نشته دې او ابن جریج فرمائی چه هر عذاب چه په هغې سره قومونه هلاک کړې شوی دی هغې ته صیحه او صاعقه وئیلې کیږی (عثمانی) ، ﴿ مُشْرِقِينَ ﴾ دا حال دې د ضمیر مفعول د ((اخذهم)) نه یعنی په حال کون د دوئ کښې چه دوئ په وخت د اشراق کښې داخلیدونکی وؤ، او په آیت نمبر ۶۶ کښې اودغه شان په سورة هود کښې وخت دعذاب صبح وئیلې شوې دې او دلته وخت د اشراق ذکر شو نو امام قرطبی یوه وجه دتطبیق داسې ذکر کړیده چه مراد د مشرقین نه اشراق الفجر دې ، او یا تطبیق داسې دې چه ابتداء دعذاب د سحر په شروع کیدو سره شوې وه اوچه وخت د اشراق کیدلو نو دهغوئ معامله ختمه کړې شوې وه ﴿ فَجَعَلْنَا عَالِيَهَا ﴾ تفصیل د دې په سورة هود کښې په طریقې اتم سره ذکر شوې دې ﴿ لَآيَاتٍ لِلْمُتَوَسِّمِينَ ﴾ امام مجاهد ﷫ د دې ترجمه په (متفرسین) سره کوی یعنی متوسم هغه ته وئیلې کیږی چه هغه بعض ظاهری علامات اوقرائن اوگوری اوپه هغې سره دبل یوپټ حقیقت پته اولگوی، د دې وجه نه حضرت حسن بصری ﷫ د دې ایت په تفسیر کښې داسې فرمائی ((المتوسمون هم الذین یتوسمون الامور فیعلمون ان الذی اهلك قوم لوط قادر علی ان یهلك الکفار)) ، (قرطبی) ، او د متفرسین معنی امام ترمذی ﷫ په سند ضعیفه سره د حضرت ابو سعید خدری ﷺ نه روایت کړیده چه هغه د حضور صلی الله علیه وسلم نه نقل کړیده چه حضور ﷺ ارشاد اوفرمائیلو : ((اتقوا فراسة المؤمن فانه ینظر بنور الله ثم قرأ : إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِلْمُتَوَسِّمِينَ)) نو د دې روایت په سند کښې عطیة العوفی دې چه هغه بالاتفاق ضعیف راوی دې، او دا حدیث په سند صحیحه سره د حضرت ابن عمر، حضرت ثوبان او دحضرت انس رضی الله عنهم نه په مختلفو الفاظو سره مروی دې خو په

هغی کښې ((ثم قرأ ان في ذلك – الخ)) دا الفاظ نيشته دي . د فراست اقسام او دهغې امثله او واقعات صاحب د خازن او امام قرطبي په خپلو تفاسيرو کښې پدې مقام کښې ذکر کړيدی چه قابل د مطالعې دی. او هرکله چه په فکر او غور کولو سره په اهلاك د قوم لوط کښې ډير عبرتونه حاصليدل نو د دې وجه نه ئې آيات جمع ذکر شوه ﴿ وَإِنَّهَا ﴾ ضمير قرية ته راجع دې ﴿لَبِسَبِيلٍ مُّقِيمٍ﴾ مراد ترينه هغه لار ده چه د مکې نه شام ته وتلې ده او د کفار مکه په هغې باندې آمد ورفت وو لکه په سورة الصافات کښې الله تعالى فرمائي چه ﴿ وَإِنَّكُمْ لَتَمُرُّونَ عَلَيْهِم مُّصْبِحِينَ ۝١٣٧ وَبِاللَّيْلِ ﴾ او دغه هلاك شوي ښار ئې د قرآن مجيد د ارشاد موافق دسطح سمندر نه په ډير لاندې والی سره د يو لوئ صحرا په صورت کښې اوس هم موجود دې ، او دهغې په يوې حصې باندې يو خاص قسم اوبه هم دی چه هغې ته بحر لوط اوبحر ميت وئيلې کيږی او دهغې اوبو خاصيت دادې چه څه قسم ثقيل شې په هغې کښې نه ډوبيږی ځکه چه کښې ثقل هغه په بره راغلې دې اوڅه قسم د اوبو څناور پکښې ژوندی نه پاتې کيږی اګرچه دماهرينو د نظر مطابق پدې کښې اجزاء د اوبو کم او د تيلو اجزاء پکښې زيات دی د دې وجه نه څه حيوان پکښې ژوندې نه پاتې کيږی، خوبعيده نده چه اصل سبب هغه د قهر الهی اوغضب الهی اثرات وی اګرچه ظاهری وجوهات څه هم کيدې شی ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً ﴾ مشار اليه د (ذلك) لپاره واقعه عظيمه ده، او تنوين په (آيةً) کښې د تعظيم لپاره دې، او (آيةً) مفرد راوړې شو ځکه چه د مؤمن لپاره يوه نښانی هم کافي وی.

| |
|---|
| وَإِن كَانَ أَصْحَابُ الْأَيْكَةِ لَظَالِمِينَ ۝٧٨ فَانتَقَمْنَا مِنْهُمْ وَإِنَّهُمَا |
| اوبيشکه [1] وو ځنګل والا د ظالمانونه پس بدله واغسته مونږ دهغوئ نه او بيشکه هغه دواړه کلی |
| لَبِإِمَامٍ مُّبِينٍ ۝٧٩ وَلَقَدْ كَذَّبَ أَصْحَابُ الْحِجْرِ الْمُرْسَلِينَ ۝٨٠ |
| واقع دی په لاره ښکاره باندې . اوبيشکه نسبت [2] د دروغو کړې وو اوسيدونکو د حجر (ثموديانو) پيغمبرانو ته |
| وَآتَيْنَاهُمْ آيَاتِنَا فَكَانُوا عَنْهَا مُعْرِضِينَ ۝٨١ وَكَانُوا يَنْحِتُونَ |
| او ورکړې وې مونږ هغوئ ته معجزې خپلې پس وو هغوئ دهغې نه مخ ګرځوونکی . او وو هغوئ چه کنستل به ئې |

١ - بيان د دويمې نمونې.
٢ - بيان د دريمې نمونې.

مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا اٰمِنِيْنَ ﴿٨٢﴾ فَاَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُصْبِحِيْنَ ﴿٨٣﴾ فَمَآ اَغْنٰى

د غرونو نه (خان نه) کورونه چه بیغمه به وؤ. پس اونیول هغوئ لره یو سخت آواز په وخت د صبا کښې پس دفع نه کړو

عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿٨٤﴾

دهغوئ نه (عذاب) هغه عملونو چه هغوئ به کولو

﴿ وَاِنْ كَانَ ﴾ دویمه نمونه د تخویف دنیوی ذکر کیږي دامم سابقه نه . او دا د حضرت شعیب ﷺ د قوم واقعه ده، او (انْ) پدې ځائ کښې بناء بر قول اصح مخفف عن المثقل دې او اسم ورله ضمیر شان دې چه هغه محذوف دې ﴿ اَصْحٰبُ الْاَيْكَةِ ﴾ آیکه وئیلې کیږي ډیرو ونو ته یعني ځنګل او بن ، نو معنی ئې ده د ځنګل والاوته، د دوئ په تعین کښې اختلاف دې لکه چه په سورة هود کښې تیر شوی دی ، بعض مفسرین فرمائي چه اصحاب الآیکه او مدین دواړه یو قوم وؤ خو مدین ورته دهغوئ د نیکه ته د نسب د وجه نه وئیلې کیږي او اصحاب الآیکه ورته ځکه وائي چه دهغوئ په علاقه کښې ونې ګڼړې وې ، او بعض فرمائي چه مدین ئې نسبي نوم وؤ او آیکه دهغوئ مذهبي نوم وؤ او دغه وجه د فرق ده چه آیکه سره لفظ د (آخُوهم) نه ذکر کیږي او د مدین سره ذکر کیږي ځکه چه شعیب ﷺ دهغوئ د نسب نه نۀ وؤ خود مذهب نه ئې وؤ، اوبعض مفسرین فرمائي چه آیکه جدا قوم وؤ او مدین جدا قوم وؤ ، مدین دحضرت شعیب ﷺ خپل قوم وؤ چه اول ورته دې مبعوث شوې وؤ د احکاماتو د نه منلو د وجه نه هغوئ الله تعالی په صیحې او په رجفې سره هلاك کړی وؤ او دهغې نه وروستو بیا شعیب ﷺ اصحاب الایکه ته مبعوث کړې شو چه هغوئ هم د احکاماتو د نه منلو د وجه نه په عذاب یوم الظله سره هلاك کړې شوی وؤ، او دا هم وجه د فرق ده د لفظ د (اخوهم) د یو سره د ذکر کیدلو او دبل سره د نه ذکر کیدلو ﴿ لَظٰلِمِيْنَ ﴾ چه هغه نقص د مکیال او میزان وؤ او دهوکې وغیره وې چه په سورة هود او اعراف کښې تیرشویدی ﴿ فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ ﴾ مراد ترینه هغوئ ته دهغوئ دجرم سزا ورکول دی یعني عذاب، اوهغه عذاب داسې وؤ چه پدوئ باندې څو ورځې سخته ګرمی راغله نو بیا دوئ اوکتل چه یوځائ کښې وریځ راغله نو دوئ خوشحاله شول او ټول هلته راجمع شول نو په هغې کښې اور وؤ چه په هغې سره دوئ هلاك کړې شو، ﴿ وَاِنَّهُمَا ﴾

۱ - نفی د اختیار د تصرف له معبودان باطله نه .

ضمیر د تثنیه راجع دي اصحاب الأیکه اومدین ته او یا راجع دي قوم لوط او قوم شعیب ته ﴿لَبِإِمَامٍ مُّبِينٍ﴾ مراد ترینه هغه لویه لار ده چه د ډیرو خلکو تګ وربانديي وی یعنی شاهراه او لفظ د امام ورته استعمال شو ځکه چه امام وئیلي کیږی مایؤتم به ته یعنی چه دچا اتباع کولی شی، او چونکه د لارې هم اتباع کولی شی او مسافر دهغې اتباع کولو سره خپل منزل مقصود ته رسی نو د دې وجه نه ورته امام وه وئیلي شو، او په کومه لاره کښې چه دحضرت لوط ﷺ د قوم اثار موجود دی نو ورسره بالکل قریب کښې لږ لاندې دحضرت شعیب ﷺ د قوم آثار هم موجود دی چه مکې نه شام ته تلونکي اوراتلونکی ته ښکاریږی. ﴿وَلَقَدْ كَذَّبَ أَصْحَٰبُ ٱلْحِجْرِ﴾ د تخویف دنیوی دریمه نمونه ذکر کیږی دا هم د امم سابقه وؤ نه ده چه د حضرت صالح ﷺ دقوم واقعه ده، (كذّب) کښې اشاره ده سبب عذاب د دوئ ته (حجر) په ډیرو معانیو کښې استعمالیږی خو دلته ترینه مراد دقوم ثمود هغه مرکزی شهر دې چه دوئ به پکښې پاتې کیدل ﴿ٱلْمُرْسَلِينَ﴾ هرکله چه د ټولو رسولانو اصول یو وؤ نو د یو پیغمبر تکذیب مستلزم وؤ دټولو رسولانو تکذیب لره، نو د دې وجه نه مرسلین جمع راوړې شو، او یا د مرسلین نه مراد صالح ﷺ او دهغه والا مؤمنین اتباع دی او په هغوئ باندې د مرسلین اطلاق تغلیبًا دې او یا جمع تعظیمی ده (خازن)، ﴿وَءَاتَيْنَٰهُمْ ءَايَٰتِنَا﴾ هرکله چه وؤ په ناقې دحضرت صالح ﷺ کښې آیات کثیره نو ځکه آیات جمع راوړې شو، صاحب د روح المعانی فرمائی چه په هغه ناقه کښې پنځه لوئې نشانې وې: (۱) د ګټ نه راوتل (۲) زر لنګیدل (۳) غټې والې د بدن دهغې (۴) ډیر پئ ورکول (۵) ډیرې اوبه څکل، او بعض فرمائی چه آیات جمع ذکر کولو وجه داده چه د حضرت صالح ﷺ لپاره د ناقې نه علاوه نور معجزات هم وؤ چه تفصیل ئی مونږ ته ندې بیان شوې، او بعض فرمائی چه مراد ترینه آیتونه د کتاب دی چه حضرت صالح ﷺ ته ورکړې شوی وؤ ﴿وَكَانُواْ يَنْحِتُونَ﴾ په دې کښې اشاره ده مهارت د دنیا د دوئ ته او د دوئ دنیا پرستئ ته ﴿ءَامِنِينَ﴾ یعنی د الله تعالی د عذاب نه څه خوف ورسره وؤ، او یا د آمنین نه مراد دادې چه د انهدام نه او دغلو او د دشمن نه په امن کښې وؤ ﴿فَأَخَذَتْهُمُ ٱلصَّيْحَةُ﴾ په سورة اعراف آیت نمبر (۷۸) کښې درجفې ذکر دې او دلته په سورةهود آیت نمبر (۶۷) کښې ذکر د صیحې دې، نو غوره قول د تطبیق پکښې دا دې چه په دوئ باندې دوه عذابونه نازل شوی وؤ دپاسه نه صیحه وه او د زمکې د طرف نه رجفه وه، تفصیل ئی په سورة اعراف اوهود کښې تیر شوې دې ﴿مَّا كَانُواْ يَكْسِبُونَ﴾ د دینه مراد دهغوئ صنعتکاری

دنیوی ترقی او لوئ لوئ محلات او پاخه مکانات وغیره دی چه کله د الله تعالی عذاب راغې نو دا
څیزونه دوئ ته بکار رانغلل، اویا ترینه دهغوئ اعمال شرکیه او افعال خبیثه مراد دی (خازن). لکه
دا مضمون په سورة احقاف آیت نمبر (۲۸) ﴿ فَلَوْلَا نَصَرَهُمُ الَّذِينَ اتَّخَذُوا ﴾ کښې ذکر دې . او په سورة
هود آیت نمبر (۱۰۱) ﴿ فَمَآ أَغْنَتْ عَنْهُمْ ءَالِهَتُهُمُ ﴾ کښې هم ذکر دې.

وَمَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ اِلَّا بِالْحَقِّ ؕ

او ندي پيدا کړي مونږ آسمانونه [1] او زمکې اوهغه څيزونه چه په مينځ د دې دواړو کښې دی مګر لپاره د ښکاره کولو د حق

وَاِنَّ السَّاعَةَ لَاٰتِيَةٌ فَاصْفَحِ الصَّفْحَ الْجَمِيْلَ ۝ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ الْخَلّٰقُ

او بيشکه قيامت خامخا راتلونکي دې پس ته اعراض اوکړه اعراض ښائسته . بيشکه رب ستا هغه پيدا کوونکې

الْعَلِيْمُ ۝ وَلَقَدْ اٰتَيْنٰكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِيْ وَالْقُرْاٰنَ الْعَظِيْمَ ۝

عالم دې په هرڅه باندې اوبيشکه درکړی دی مونږ [2] تا ته اووه آياتونه دهغې نه چه بيا بيا لوستې شی او قرآن چه لوئ شان والا دی

﴿ وَمَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ ﴾ د درې نمونو د بيان نه پس مختصر دليل عقلی ذکر کيږی په دويم واری
﴿ اِلَّا بِالْحَقِّ ﴾ يعنی دا آسمانونه او زمکې مونږ د اظهار حق او د اثبات توحيد لپاره پيدا کړی دی
نو مراد د حق نه اثبات د توحيد دې (جواهر)، او يا (باء) سببيه ده او د حق نه مراد عدل دې، يعنی دا
آسمانونه او زمکې ئی لپاره د عدل پيدا کړيدی او عدل دا دې چه مجرمانوته سزا ورکړې شی
﴿ وَاِنَّ السَّاعَةَ ﴾ دا تخويف اخروی ذکر کيږی ﴿ فَاصْفَحِ الصَّفْحَ ﴾ يعنی ته اعراض اوکړه په ښه
اعراض سره ، (صفح الجميل) يعنی ښه اعراض ديته وائی چه خالص د الله تعالی لپاره اعراض
اوکړې شی بغير د جزع ، فزع نه لکه په سورة مزمل آيت نمبر (۱۰) ﴿ وَاهْجُرْهُمْ هَجْرًا جَمِيلًا ﴾ کښې هم
داسې حکم دې، د مفسرينو يو جماعت دې ته ذهاب کړې دې چه پدې آيت کښې د ترک قتال حکم
دې او دا آيت منسوخ دې په آيت السيف سره ، دا قول د مجاهد ، قتاده ، ضحاک وغيره دې، ليکن
د مفسرينو يو لوئ جماعت دا فرمائی چه د نسخ ضرورت نيشته دې بلکه پدې آيت کښې الله تعالی

۱ - دويم نمبر عقلی اجمالی دليل.
۲ - اوله تسلی.

حضور ﷺ ته د حسن خلق تعلیم ورکوی، او د آیت مقصد دا دي چه ته دوئ نه اعراض اوکړه په خپلو حقوقو کښې. او د بدلې اغستلو کښې تیزی مه کوه، امام رازی رحمه الله فرمائی چه: ((لان المقصود من ذلك ان یظهر الخلق الحسن والعفو والصفح، فكیف یصیر منسوخًا)) ، (رازی، ص ۱۵۸ ، ج ۷).

﴿إِنَّ رَبَّكَ هُوَ الْخَلَّاقُ الْعَلِيمُ﴾ دواړه د مبالغې صیغې دی او علت دې د ماقبل آیت ﴿وَإِنَّ السَّاعَةَ لَآتِيَةٌ﴾ لپاره ﴿وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ﴾ دا یو څو تسلیاني ذکر کیږی حضور ﷺ ته، او دا اوله تسلی ده چه الله تعالی فرمائی چه کچرته دا کافر ستانه انکار کوی اوتاته تکلیف درکوی نو ته مه خفه کیږه ځکه چه تاته ما ډیر لوئ نعمت در کړیدي ﴿سَبْعًا﴾ په تعین د مصداق د دې کښې متعدد اقوال راغلی دی خو راجح پکښې دا دي چه د دینه مراد سورة الفاتحه ده لکه په حدیث د ابوسیعد بن معلی کښې راغلی دی چه نقل کړیدي امام بخاری رحمه الله په کتاب التفسیر کښې چه: ((قال صلی الله علیه وسلم الحمد لله رب العالمین هی السبع المثانی والقرآن العظیم الذی اوتیته)) او﴿مِنَ الْمَثَانِي﴾ ورله بیان دي . او سورة الفاتحه ته ((سبعًا)) ځکه وائی چه دا مشتمله ده په اوو آیاتونو باندې (قسطلانی) ، او (مثانی) یا ماخوذ دې د ثناء نه نو سورة الفاتحه ته مثانی ځکه وئیلې کیږی چه دا مشتمله ده په ثناء د الله تعالی باندې، او یا (مثانی) ماخوذ دې د تثنیه نه په معنی د اعادې اوتکرار سره، نو سورة الفاتحه ته مثانی (مکرر) وئیل (۱) یا په اعتبار د حروفو سره دی چه په دې کښې ځینې حروف مکرر راغلی دی لکه (الرحمن الرحیم) ، (ایاك، ایاك) ، (صراط، صراط) ، شو (عینی)، (۲) او یا ورته مثانی په اعتبار د د نزول سره وئیلې شویدی ځکه چه د دې نزول دوه واره شوې دې ((لانها نزلت مرتین مع كل مرة منها سبعون الف ملك مرةً بمكة من اوائل ما انزل القرآن ومرةً بالمدینة))، (۳) او یا ورته مثانی په اعتبار د مصلین داهل الارض اواهل السماء سره وئیلې شوې دي چه دواړه انواع د مصلینو په خپلو مونځونو کښې قرآئت کوی، (۴) او یا ورته مثانی په اعتبار د قرائت سره وئیلې شوې دي چه د مونځ په هر رکعت کښې د دې د قرائت اعاده کولې شی او دا قول زیات راجح دي .

﴿وَالْقُرْآنَ الْعَظِيمَ﴾ دا په نصب سره عطف دې په (سبعًا) باندې کچرته مراد په قرآن عظیم سره مجموعه مابین الدفتین شی نو بیا د عطف، د عطف العام علی الخاص د قبیلې نه دې ، اوکچرته مراد په القرآن العظیم سره سورة الفاتحه شی لکه چه دا راجحه هم ده د حدیث مذکوره د وجه نه نو بیا عطف عطف تفسیر دې، او علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه دا سې واو د جمع بین الوصفین لپاره

وي نو د سورة الفاتحه لپاره دوه وصفه ذکر شو. (سبعًا من المثاني) او (القرآن العظيم) نو دا دواړه د واو په ذريعې سره جمع کړې شو . او سورة الفاتحه ته قرآن العظيم د دې وجه نه وئيلې کيږي چه هغه کل مضامين چه په ټول قرآن مجيد کښې تفصيلاً ذکر دي نو په سورة الفاتحه کښې اجمالاً ذکر شوي دي او د دې تفصيل په ابتداء کښې تير شوې دې.

| لَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ إِلَىٰ مَا مَتَّعْنَا بِهِۦٓ أَزْوَٰجًا مِّنْهُمْ |
|---|
| مه اوږدوه سترګې[1] خپلې هغه څيزونو ته چه مزې ورکړې دي مونږ په هغې سره مختلف فرقوته دهغوئ (کافرو) نه |
| وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِلْمُؤْمِنِينَ ۝ وَقُلْ إِنِّىٓ أَنَا ٱلنَّذِيرُ ٱلْمُبِينُ ۝ |
| او مه خفه کيږه په هغوئ باندې او ښکته کړه وزرې خپلې نرمي لپاره د مؤمنانو او اووايه ته چه بيشکه څه يره وونکې يمه ښکاره |
| كَمَآ أَنزَلْنَا عَلَى ٱلْمُقْتَسِمِينَ ۝ ٱلَّذِينَ جَعَلُوا۟ ٱلْقُرْءَانَ عِضِينَ ۝ |
| لکه څنګه چه نازل کړې وو[2] مونږ عذاب په تقسيم کوونکو باندې. هغه کسان چه ګرځولې ئې وو قرآن حصې. حصې (ټوټې ـ ټوټې) |

﴿ لَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ ﴾ دا دويمه تسلي ذکر کيږي رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ، الله تعالی فرمائي کچرته ما کافرو ته دنيوي مال ، دولت ورکړې دې نو ديته مه پسخيږه ، ما تاته لوئ دولت درکړې دې چه هغه قرآن مجيد او ايمان دې ، او پدې کښې اګرچه خطاب حضور ﷺ ته دې ليکن تعليم ما او تاته دې څکه چه حضور ﷺ نه کفاروته پسخيدل دا بالکل ممکن هم نه وو او د دې وجه نه د حضور ﷺ ارشاد دې چه ((ليس منا من لم يتغن بالقرآن)) ، ﴿أَزْوَٰجًا مِّنْهُمْ﴾ ازواج په لغت کښې وئيلې کيږي صنف ته، دلته ترينه مراد هغه مالدار خلک دي چه يوبل سره په مال، دولت کښې مشابه وي . اي الاغنياء بعضهم امثال بعض في الغنیٰ فهو ازواج. (قرطبي) او دا حکم په سورة طه ، آيت نمبر (۱۳۱) ﴿ وَلَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ إِلَىٰ مَا مَتَّعْنَا ﴾ کښې هم دې ﴿وَلَا تَحْزَنْ﴾ دريمه تسلي ده، دحضور ﷺ خواهش دا وو چه دا کفار ايمان راوړي اوهغوئ د ايمان نه راوړو دوجې نه به حضور ﷺ ته تکليف رسيدلو او پريشان کيدلو به نو الله پاك تسلي ورکوي کچرته دوئ ايمان نه راوړي نو ته مه پريشانه

---

۱ . دويمه تسلي

۲ . د خلورمې نمونې بيان

کیږه او مراد ترینه داسې پریشانی ده چه خلل واقع شی دهغې دوجه نه د دعوت او تبلیغ په فریضه کښې ﴿وَٱخۡفِضۡ جَنَاحَكَ﴾ مراد ترینه جانبین دی او دا کنایه ده د دوه څیزونو نه (۱) شفقت (۲) مدافعت. لکه څنګه چه مرغئ وزرې اوغوړوی او خپل بچی د وزرونو لاندې پټ کړی د وجې د شفقت نه او لپاره د مدافعت د دشمن او د نقصان ورکوونکی نه نو دغه شان الله تعالی رسول کریم صلی الله علیه وسلم ته فرمائی چه ته هم د مؤمنانو سره نرمی او شفقت کوه او دهغوئ مدافعت او حوصله افزائی کوه او د کفارو په ایمان نه راوړلو باندې مه خفه کیږه. حضرت والد صاحب ﷫ به فرمائیل چه پدې کښې یو عالم او استاذ ته ادب خودلې کیږی چه د یو عالم علم به هله نافع ګرځیږی چه د ده د خپلو شاګردانو سره شفقت او محبت وی لکه څنګه محبت ئی چه د خپل بچی سره وی او دغه شان دهغوئ مدافعت هم کوی، حوصله افزائی ئی هم کوی. ﴿وَقُلۡ إِنِّيٓ﴾ او کچرته دوئ فرمائشی معجزې غواړی نو الله پاك نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته فرمائی چه ته ورته دا او وایه چه دا خو څما په لاس کښې ندی، زه خو صرف د الله پاك د عذاب نه صاف صاف یروونکې یم. په ﴿ٱلۡمُبِينُ﴾ کښې اشاره ده چه په انذار او په تبلیغ کښې تلبیس کول ندی پکار ﴿كَمَآ أَنزَلۡنَا﴾ د تخویف دنیوی څلورمه نمونه بیانیږی (ك) حرف تشبیه دې ، دغوره قول مطابق دا متعلق دې په ﴿أَنَا ٱلنَّذِيرُ ٱلۡمُبِينُ﴾ پرې او مشبه به ورله محذوف وی او تقدیر ئی داسې دې ((انذارکم عذابًا کعذاب انزلناه بالمقتسمین)) . (خازن) . د ﴿ٱلۡمُقۡتَسِمِينَ﴾ په تعین کښې اختلاف دې، بعض فرمائی چه د دینه مراد یهود او نصاری دی چه هغوئ دا قرآن مجید تقسیم کړې وؤ چه کومه حصه به د تورات او انجیل موافقه وه نو هغه به ئی قبوله کړه او کومه حصه به ئی چه موافقه نه وه نو هغه به ئی پریخوده ، او بعض فرمائی چه د دینه د حضرت صالح ﷺ د قوم هغه نهه کسان مراد دی چه هغوئ د حضرت صالح ﷺ د قتل قسمونه خوړلی وؤ نو پدې تقدیر ﴿ٱلۡمُقۡتَسِمِينَ﴾ نه مراد قسم خوړونکی دی او د دې دواړو احتمالاتو په بناء بیا دا آیت نمونه د امم سابقه ؤ نه ګرځیږی. او بعض مفسرین فرمائی چه د دینه مراد قریش مکه دی لا علی التعین چه هغوئ قرآن مجید حصې کړې وؤ ، څینې حصې ته به ئی سحر وئیلې ، څینې حصې ته به ئی کهانت وئیلې وغیره ، خو په ټولو کښې راجح قول دا دې چه د دینه مراد د مکې هغه شپاړس کسان دی (د راجح قول مطابق) چه ولیدبن مغیره مقرر کړی وؤ چه دوئ به په موسم د حج کښې د مکې لارې تقسیم کړې وې او په هغه لارو کښې به ناست وؤ او بهرنه راتلونکی خلکو ته به ئی وئیل چه ګوره مکه کښې چه کوم مدعی د نبوت دې نو

ساحر دې او کله به ئې وئیل چه کاهن دې ، تاسو د ده په دهوکه کښې رانښئ او په خپله به ولید بن مغیره د مسجد حرام په دروازې سره ناست وؤ اوهغه راتلونکو خلکو به چه دهغه نه تپوس اوکړو چه ستا فیصله څه ده ؟ نو هغه به ورته او وئیل چه دوئ صحیح وائی او دهغو شپاړس کسانو نومونه صاحب د روح المعانی دا ذکر کړی دی : (۱) حنظله بن ابی سفیان، (۲) عتبه بن ربیعه، (۳) شیبه بن ربیعه (۴) ولیدبن مغیره (۵) ابوجهل ، (۶) عاص بن هشام (۷) ابو قیس بن الولید (۸) قیس بن الفاکه (۹) زهیربن امیه (۱۰) هلال بن عبد الاسود (۱۱) سائب بن صیفی (۱۲) نضربن حارث، (۱۳) ابوالبختری بن هشام (۱۴) زمعه بن حجاج (۱۵) امیه بن خلف ، (۱۶) او اوس بن مغیره، او د دې ټولو مشر ولید بن مغیره وؤ او دا ټول کسان الله پاك څه دجنګ بدر نه مخکښې او څه په جنګ بدر کښې هلاك کړل . ﴿ جَعَلُوا الْقُرْآنَ عِضِينَ ﴾ دا یا صفت دې د مقتسمین لپاره چه دوئ قرآن ټکړې ټکړې کړې وؤ چه بعضو به وئیل چه سحر دې ، بعضو به وئیل چه شعر دې ، بعضو به وئیل چه کذب دې، بعضو به وئیل چه اساطیرالاولین دې وغیره، بعض مفسرین فرمائی چه د (عضین) مقصد دا دې چه دوئ قرآن نمسخراً او استهزاءً تقسیم کړې وؤ ، یو به پکښې اووئیل چه بقره خما ده . آل عمران ستا دې ، عنکبوت د فلانی دې او یا د ټکړې کولو مقصد دا دې چه کومه حصه ددوئ دخواهش مطابقه وه نو هغې ته به خوشحاله شو او اقرار به ئې کولو اوکومه حصه به چه د دوئ له خوښې سره موافقه نه وه دهغې نه به ئې انکار کولو او یا دا جمله مبتداء ده او خبر ورله مابعد جمله ﴿ فَوَرَبِّكَ ﴾ ده (رازی).

| فَوَرَبِّكَ لَنَسْأَلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ۝ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۝ فَاصْدَعْ |
|---|
| پس قسم دې په رب ستا چه مونږ به خامخا تپوس اوکړو د هغوئ ټولو نه . دَهغه عملونو چه هغوئ کول . پس ته څرګند تبلیغ کړه |
| بِمَا تُؤْمَرُ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ ۝ إِنَّا كَفَيْنَاكَ الْمُسْتَهْزِئِينَ ۝ |
| دهغې چه تاته حکم کړې شوې دې اومخ اوګرځوه د مشرکانونه . بیشکه مونږ کافی یو [1] تا لره په مقابلې د ټوقو کوونکو کښې |

﴿ فَوَرَبِّكَ ﴾ دا تخویف اخروی ذکرکیږی، ﴿ لَنَسْأَلَنَّهُمْ ﴾ (هم) ضمیر د راجع احتمال مطابق راجع دې مطلق مکلفینو ته چه هغه مذکور دی حکمًا په ضمن د ﴿ إِنِّي أَنَا النَّذِيرُ الْمُبِينُ ﴾ کښې

۱ - د پنځمې نمونې بیان سره د پنځمې تسلی نه .

(رازی) . دقیامت په ورځ به د هرچا نه تپوس کیږی حتی چه د پیغمبر علیه الصلوة والسلام نه به هم تپوس کیږی او د کافرونه به هم کیږی. اوحساب کتاب ضروری ندې چه د هرچا نه وشی . (رازی) .
که څوك اشکال وکړی چه د دې آیت د سورة الرحمن د آیت نمبر (۳۹) سره تعارض دې ځکه چه هلته داسې وئیلې شوی دی چه ﴿ فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُسْـَٔلُ عَن ذَنۢبِهِۦٓ إِنسٌ وَلَا جَآنٌّ ﴾ نو یو جواب ترینه دا دې چه سوال په دوه قسمه دې یو سوال لپاره د استعلام وی او یو لپاره د توبیخ وی نو نفی چه په سورة الرحمن کښې مذکوره ده هغه د استعلام ده او اثبات د توبیخ دې ، دویم جواب ترینه دادې چه نفی راجع ده یو وخت ته او اثبات راجع دې بل وخت ته ځکه چه د قیامت ورځ ډیره اوږده او طویله ده او په هغې کښې مختلف مواقف دی. نو په څینې مواقفو کښې به تپوس نه کیږی او په څینې نورو کښې به کیږی. او د دې نظیر هغه دې چه الله تعالی په یو ځائ کښې فرمائی چه ﴿ هَٰذَا يَوْمُ لَا يَنطِقُونَ ﴾ (المرسلات. آیت ۳۵) . او په بل ځائ کښې فرمائی چه ﴿ ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ عِندَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُونَ ﴾ . (الزمر ۳۱) . ﴿ عَمَّا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾ مراد ترینه د اکثر مفسرینو دقول مطابق تپوس دې د (لا اله الا الله) په باره کښې او دا اګرچه قول دې خو تعبیر ترینه په عمل سره ځکه اوشو چه هغه قول چه بغیرد عمل نه وی دهغې څه فائده معتد بها نه وی، او یا ترینه مراد تپوس د اعمالو په باره کښې دې او د قول نه ذکر کول د وجې د عدم فائدې معتد بها نه دی اګرچه د هغې متعلق به هم تپوس کولې کیږی.

﴿ فَٱصْدَعْ ﴾ خلورمه تسلی ذکر کیږی حضور ﷺ ته چه د حق او د توحید اظهار علی الاعلان کوه او دکفارو څه پرواه مه ساته، (صدع) یا ماخوذ دې د صَدْعُ الامر نه ای فصله (راغب)، یعنی دا توحید ښه تفصیلاً بیان کړه، اویا ماخوذ دې د صدیع نه په معنی د اظهار رفع الحجاب اوجهر سره لکه چه وئیلې کیږی دهغه سرې په باره کښې چه هغه په چغو چغو سره خبرې کوی صدع بالحجة (کشاف، مدارك) . نو معنی ئې داده چه دا توحید په چیغو چیغو سره بیان کړه، او یا دا ماخوذ دې د (صدعُ الزجاجة) نه چه کله شیشه تکړې تکړې شی ، نو معنی ئې داده چه د کفارو جماعت په توحید سره زره زره او جدا جدا کړه (قرطبی) ، او یا ئې معنی داده چه دا مسئله د توحید داسې بیان کړه چه حق او باطل جدا جدا شی چه څه التباس پکښې هم پاتې نشی لکه څنګه چه اجزاء د شیشې دماتیدلو نه وروستو جوړیدل اومیلاویدل ممکن نه وی نو دغه شان حق او باطل هم جدا کړه (زجاج) او صاحب د زاد المسیر د دې ترجمه داسې کوی چه اوچوه ته زړونه د مشرکینو په بیان د

قرآن سره ، د دې آیت د نزول نه وړاندې به رسول الله صلی الله علیه وسلم په تبلیغ کښې پټوالې کولو خو چه کله دا آیت نازل شونو بیا هغې نه وروستو ئې علانیه تبلیغ شروع کړو. ﴿وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ﴾ مراد ترینه ترك البالات دې دهغوئ نه چه د دوئ د استهزاء او د توقو پرواه مه کوه . او مراد ترینه ترك القتال ندې چه بیا قول اوکړې شی په نسخ باندې په ((فاقتلوا المشركين)) سره لکه څنګه چه قول کړې دې بعضې مفسرینو ﴿إِنَّا كَفَيْنَاكَ الْمُسْتَهْزِئِينَ﴾ دا دتخویف دنیوی پنځمه نمونه بیانیږی او پنځمه تسلی هم ده حضور صلی الله علیه وسلم ته او مراد د ﴿الْمُسْتَهْزِئِينَ﴾ نه هغه پنځه سرداران دی چه دوئ به په رسول الله صلی الله علیه وسلم پورې توقې او مسخرې کولې او دهغوئ نومونه دادی (۱) ولیدبن مغیره مخزومی چه د دې تولو مشر وؤ (۲) عاص بن وائل سهمی (۳) اسود بن مطلب بن حارث بن اسد بن عبدالعزی (۴) اسود بن عبد یغوث بن وهب بن مناف چه د حضور صلی الله علیه وسلم د ماما زوئ وؤ (۵) حارث بن قیس بن الطلاله ، او واقعه د هلاکت د دوئ داسې ده چه حضور صلی الله علیه وسلم طواف کولو ، حضرت جبرئیل ﷺ تشریف راوړو او هریو تن د دې پنځونه به تیریدلو نو حضرت جبرئیل ﷺ به د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس کولو چه دا څنګه سړې دې ؟ نو حضور صلی الله علیه وسلم به د دې هریوتن په باره کښې وئیل چه دا ډیر بد سړې دې، حضرت جبرئیل ﷺ اوفرمائیل چه ما ته امر کړې شوې دې چه زه تا د دوئ نه فارغ کړم ، نو حضرت جبرئیل ﷺ د ولید بن مغیره پنډئ ته اشاره اوکړه نو یوه ورځ ولیدبن مغیره په یو نبّال یعنی غشو جوړونکی باندې تیریدلو نو په ازار (لنګ) کښې ئې غشې اونختلو نو د تکبر د وجې نه ښکته نشو چه هغه غشې ئې لرې کړې وې بلکه هغه خپل ازار (لنګ) ئې رانښکلو نو پنډئ ئې زخمی شوه او د دغه زخم د وجې نه بیا هلاك شو، او د عاص بن وائل دخپې تلی ته حضرت جبرئیل ﷺ اشاره اوکړه نو دې هم یوه ورځ د خپلو خامنو سره مکې نه بهر چکرته وتلې وؤ نو په یوې وادی کښې د ده په خپه کښې ازغې مات شو او ده چیغې کړې چه څه څه څیز اوچیچلم اوهغه خپه ئې اوپړسیده چه د اوښ دڅټ پشانتې شوه (کینسرشو) او په هغه وخت کښې هلته مړ شو ، او د اسود بن مطلب سترګو ته حضرت جبرئیل ﷺ اشاره اوکړه نو هغه ړوند شو، او په ځینې روایاتو کښې داسې رازی چه حضرت جبرئیل ﷺ دې په یوه شنه پاڼړه باندې اووهلو نو د ده په سترګو کښې سخت درد شو او نظر ئې ختم شو، او د درد د وجې نه ئې خپل سردیوال سره جنګولو او په داسې حالت کښې مړ شو، او په یوبل روایت کښې داسې ذکر دی چه حضرت جبرئیل ﷺ دې د سرنه ونیولو او د ده سرئې ونې له را پرېښودلو نو ده د خپل غلام نه مدد اوغوښتلو . هغه ورته او

ونيل چه خه خو خه خيز نه وينم ، داخوته په خپله دا حركت كوي نو پدغې حال كښې هلاك شو . او د اسود بن يغوث خيټې ته حضرت جبرئيل ﷺ اشاره اوكړه نو هغه استطلاق البطن شو اوهلاك شو. او دحارث بن قيس د پوزې طرف ته حضرت جبرئيل ﷺ اشاره اوكړه نو دهغه د پوزې نه پيپ ران شو او هلاك شو او په بعض رواياتو كښې دي چه پده باندې تنده لګيدلې وه او په اوبو څكلو څلكو سره ئې خيټه اوچودله اوهلاك شو

**تنبيه (١)** د مقتسمين او د مستهزئين د نومونو د تعداد په باره كښې روايات مختلف دي خينو كښې كم او خينو كښې زيات ذكر شوى دى ، دلته مونږ هغه روايت ذكر كړې دې چه په ټولو كښې اصح دې

**تنبيه (١)** د مستهزئينو د استهزاء طريقې مختلفې وې كله به دوئ حضور صلى الله عليه وسلم پورې ټوقې كولې ، كله به ئې حضور صلى الله عليه وسلم ته په لاره كښې ازغى اچول، كله به ئې حضور صلى الله عليه وسلم ته په مونځ كښې تكليف وركولو ، غرض دا چه دغه مذكوره كسان به په مكې كښې هر وخت موجود وو او په څه ناڅه طريقې سره به ئې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته تكليف رسولو اوهغه به ئې تنګولو .

| |
|---|
| الَّذِيْنَ يَجْعَلُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ۝ وَلَقَدْ نَعْلَمُ |
| هغه كسان چه ګرځوى د الله تعالى سره معبود بل، پس زرده چه دوئ به پوهه شي . او بيشكه پوهيږو مونږ [١] |
| اَنَّكَ يَضِيْقُ صَدْرُكَ بِمَا يَقُوْلُوْنَ ۝ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ |
| چه بيشكه تنګيږى سينه ستا په هغه خبرو چه كوى ئې دوئ . پس پاكى بيانه وه [٢] سره دحمد درب [٣] خپل نه |
| وَكُنْ مِّنَ السّٰجِدِيْنَ ۝ وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتّٰى يَاْتِيَكَ الْيَقِيْنُ ۝ |
| او هميشه اوسه ته د سجدې كوونكو نه . او عبادت كوه د رب خپل تر دې پورې چه راشى تاته مرګ . |

﴿ اَلَّذِيْنَ يَجْعَلُوْنَ ﴾ دا صفت كاشفه دې د (المستهزئين) لپاره او په دې كښې اشاره ده سبب د

---

١ . تسلى نمبر ۶

٢ . درې نورې تسليانې

٣ . نفى د استحقاق د انواعو د عبادت له غير الله نه .

استهزاء ته هم، او په ځائ د ماضي . مضارع استعمال شوه لپاره د استحضار د حالت ماضيه

﴿ وَلَقَدْ نَعْلَمُ ﴾ شپږمه تسلي ده حضور صلی الله علیه وسلم ته ، چه الله پاك فرمائي . اې حما محبوبه ! ماته ښه معلومه ده چه ستا زړه اوسينه له دغه استهزاء نه تنګيږي خو ته د دوئ د دغې استهزاء پروا مه ساته ، او دا تنګوالي د زړه دا يو امر طبيعي دې بلکه کچرته د بغض في الله دوجې نه عقلاً پيدا شوې وی نو عين عبادت دې .

﴿ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ ﴾ په دې آخری آيتونو کښ درې تسلياني مزيدې حضور صلی الله علیه وسلم ته کيږی . (۱) فسبح بحمدربك ، (۲) وكن من الساجدين ، (۳) واعبد ربك ـ الخ . او اصل مقصد هم بيانيږی چه هغه توحيد دې اودغه شان علاج بيانيږی د زړه د تنګوالی لپاره چه الله پاك فرمائي چه کله هم ستا زړه تنګ شی نو بيا تبليغ او د توحيد بيان له زور ورکړه ﴿ فَسَبِّحْ ﴾ يعني سبحان الله اووايه او يا تنزيه اوپاکی بيان کړه دهغه څيزونو نه چه دوئ ئی الله پاك له ثابتوی لکه شريك، ولد ، بنات وغيره شو . ﴿ بِحَمْدِ رَبِّكَ ﴾ چه متلبس وی په حمد درب ستا سره، او دحمد نه هم يا مراد الحمد لله وئيل دی او يا ترينه مراد دا دې چه هغه صفات د الوهيت ټول الله پاك لره ثابت کړه چه کوم دوئ نفی کوی نو په «سبح» کښ دټولوصفات سلبيه حکم دې او په ﴿ بِحَمْدِ رَبِّكَ ﴾ کښ د ټولو صفات ثبوتيه حکم دې ﴿ وَكُن مِّنَ السَّاجِدِينَ ﴾ مراد ترينه مونځ دې خوچونکه سجده جزء افضل او اعظم د مونځ دې نوځکه ذکر د سجدې اوشو لکه په حديث شريف کښ رازی چه هغه روايت کړې دې امام مسلم ، ابو داؤد ، نسائي په کتاب الصلوة کښ ((اقرب ما يكون العبد من ربه وهو ساجد فاخلصوا الدعاء)) او مراد ترينه سجده دتلاوت نده لکه دا ګمان کړې دې بعضې خلکو . او صاحب د روح المعاني علامه الوسی ﷫ فرمائي چه په دې کښ اشاره ده اوا ترغيب دې په جمع سره مونځ کولو ته ﴿ وَاعْبُدْ رَبَّكَ ﴾ په دې کښ اشاره ده دوام ته په عبادت باندې ﴿ حَتَّىٰ يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ ﴾ د جمهور أئمه لغت او دجمهورو مفسرينو پدې اتفاق دې چه لفظ د «يقين» په معنی حقيقی کښ استعمال شوې دې . د يقين لپاره معنی حقيقی هغه موت دې لکه صاحب د لسان الميزان فرمائي ((حتى ياتيك الموت)) او صحب د تاج العروس فرمائي چه ((اليقين الموت لانه تيقن لحاقه لكل مخلوق حی)) يعني هر ژوندی څيزته د دې رسيدل يقيني دی نو ځکه ورته يقين وئيلې کيږی ، اوبيا فرمائي چه ((مال كثيرون الى انه حقيقي وصوب بعضهم الى انه مجازی)) او دجمهور صحابه کرامو اوتابعينو هم پدې

انفی دي چه یقین نوم دي دمرګ لپاره . لکه صاحب دبحر فرمائی چه ((والجمهور على ان المراد باليقين الموت)). بلکه قرآن مجید کښې هم دموت لپاره لفظ د یقین استعمال شوي دي لکه الله تعالی فرمائی حکایةً د کفارونه ﴿ وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ الدِّينِ ۝ حَتَّىٰ أَتَانَا الْيَقِينُ ۝ ﴾ (مدثر، آیت نمبر ٣٧) . او په حدیث شریف کښې هم د مرګ لپاره لفظ د یقین استعمال شوي دي لکه په حدیث دبخاری شریف کښې چه په کتاب الجنائز کښې ذکر دي دحضرت عثمان بن مظعون ﷺ نه چه دحضور صلی الله علیه وسلم رضاعی ورور وؤ دهغه په باره کښې حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو چه ((اما عثمان فقد جاءه اليقين وانى لارجو له الخير)) .

**فائده** (١) امام قرطبی رحمه الله فرمائی چه د ﴿ وَاعْبُدْ رَبَّكَ ﴾ نه وروستو د ﴿ حَتَّىٰ يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ ﴾ اضافه ځکه اوشوه چه مقصود پدې آیت سره هغه حکم دې په دوام د عبادت باندې او دا مقصد بغیر د دینه نه حاصلیدلو اوکچرته ﴿ حَتَّىٰ يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ ﴾ نوې ذکر شوې نو بیا که یو شخص یوځلې هم عبادت کړې وې نو هغه ته به مطیع وئیلې کیدلو نو د دې وجه نه اضافه د ﴿ حَتَّىٰ يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ ﴾ اوشوه، د دینه معلومه شوه چه امر تقاضا د تکرار نه کوی اونه احتمال د تکرار لری لکه څنګه چه احناف رحمهم الله فرمائی .

**فائده** (٢) امام رازی رحمه الله فرمائی چه الله تعالی څلور څیزونه د زړه د تنګوالی دختمیدو لپاره ذر کړل نو پدې څیزونو سره ازاله څنګه رازی نو اهل سنت والجماعت فرمائی چه هرکله انسان د تکلیف په وخت کښې دغه عمل خپل کړی نو د ده په زړه کښې په الله پاك یو نور پیدا کړی او د ده انشراح صدر به اوشی دهغه نور د وجه نه اوده ته به د دنیا حقارت معلوم شی نو بیا دې دهغې تکلیفونو ته څه التفات نه کوی لکه څنګه چه دهغې نعمتونو ته څه التفات نه کوی ، اوبعض فرمائی چه کله انسان ته څه تکلیف اورسی او دې طاعاتو طرف ته متوجه شی نو دا عملاً رضا بالقضا ده نو د دې وجه نه الله تعالی ده ته سکون ورکړی .

**فائده** (٣) ابن کثیر رحمه الله فرمائی چه بعضی نام نهاد متصوفو د یقین نه معرفت د الله تعالی اراده کړې دې او د آیت مقصد ئی دا بیان کړې دې چه انسان په مسلسل عبادت کولو سره مرتبې د معرفت ته رسیږی، اوچه کله دې مرتبې د معرفت ته اورسیږی نو دهغه نه تکلیف شرعی ساقط شی. اوعبادت کول ورته معاف شی اودهغه ګناه ته ګناه نه وئیلې کیږی لیکن د دوئ دا قول مبنی دې په جهل باندې او دا ګمراهی ده ځکه چه د انبیاء کرام علیهم الصلوة والتسلیمات نه او دصحابه

کرامو رضوان الله علیهم اجمعین نه زیات ځوك هم د معرفت او یقین والا نه شی جوړیدې اوحال دادې چه هغوئ تر مرگ وخته پورې عبادت ندې پریخودلې بلکه د معرفت او دیقین په زیادت سره عبادت او اطاعت اوخشیت نور هم زیاتیږی لکه چه پدې دلالت کوی الفاظ دحدیث چه نقل کړیدی امام ترمذی په کتاب الایمان کښ په باب قول النبی صلی الله علیه وسلم ((انا اعلمکم بالله)) چه حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو ((ان اتقاکم واعلمکم بالله انا)) نو لهذا د یقین نه مراد هغه دې چه کوم د حدیث صحیحه نه ا د اقوالو د سلفو نه ثابت دې چه هغه مرگ دې ، نو مقصد د آیت دادې چه د الله پاك عبادت تر مرگ پورې کوئ او دمرگ نه پس بیا عبادتونه نشته دې چاچه د مرگ نه مخکښ نیك اعمال اونکړل نو بیا به تمنا کوی چه (لوکانو مسلمین) .

**د سورة الحجر تفسیر ختم شو**

قد فرغت من تفسیر سورة الحجر بعون الله تعالی ومنته فی سبعة عشر من رجب المرجب بعد الف مائة واحدی وثلثون من هجرة النبویة علی صاحبها الف الف تحیة وسلام، المطابق ١٣ جولائی من سنة : ٢٠٠٩ ع .

اللهم وفقنا لما تحب وترضی واجنبنا وذریتنا واقاربنا واحبابنا من سوؤ الاعمال ودرك الشقاء واکتبنا یا الهی بفضلك وبرحمتك فی عبادك الصالحین اللذین سعدوا فی الدارین، ولاتخزنا یوم یبعثون ، ربنا آتنا فی الدنیا حسنة وفی الآخرة حسنة وقنا عذاب النار، آمین یا رب العالمین .

وصلی الله تعالی علی محمد النبی وعلی آله وصحبه وسلم اجمعین.

| رکوع | سورة النحل مكية | آيتونه |
|---|---|---|
| ۱۶ | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | ۱۲۸ |
| خاص په نوم د الله سره چه بیحده مهربان او ډیر رحم کوونکي دی شروع کوم | | |

## رقمها حسب التسلسل (۱۶) وحسب النزول (۷۰)

**سورة النحل** مکی سورة دی صرف آخری دوه آیتونه په کښې مدنی دی، په ترتیب قرآنی کښې شپاړسم نمبر او په ترتیب نزولی کښې اویاوم (۷۰) نمبر سورة دی، د سورة نوح نه مخکښې او په سورة الکهف پسې نازل شوی دی، زمانه دنزول ئې دور آخیر د مکې معظمې دی.

**ربط**: ربط اسمی یې د سورة حجر سره دادی، چه په سورة حجر کښې نمونې د هلاك شوی قومونو بیان شوی دی د پاره د عبرت ((ان فی ذلك لاية للمؤمنين)) (حجرایت نمبر (۷۷) په سورة النحل کښې بیان کیږی چه په هغې سره مو عبرت حاصل نه کړو نو د شهد (ګبین) مچۍ نه عبرت واخلئ، چه یو وړوکې مخلوق په څه عجیبه طریقې سره کثیر المنفعت شې تیاره وی، دا دالله ﷻ دقدرت یوه نمونه ده، (ان فی ذالك لاية للمؤمنين). (نحل آیت: ۶۹)

**ربط مضمونی**: ئی دادی چه په سورة الحجر کښې دهلاك شوی قومونو حال بیان شوی وو.

په سبب دنه منلو د احکاماتو د الله ﷻ او حکم شوی وو چه د ایمان راوړو وخت اوس دی، کنې دعذاب راتلو او دهلاکت نه روستو به بیا تمنا کوئ چه (لو كانوا مسلمين) خو هغه تمنا به فائده به پکار نه راځی، او په سورة النحل کښې خبرداری ورکولې کیږی چه هغه عذاب الهی په تاسو هم راغې، نو پدې سورة کښې بیان د عذاب الهی دی، چه دکومې نمونه په ما قبل کښې بیان شوی وه، او دغه شانتې په سورة حجر کښې تخویف بیان شوی وو د نه منونکو دپاره، او په سورة نحل کښې د ایمان د نه راوړلو دپاره عذر باطل د هغوی رد کیږی.

**دعوی د سورت**: د سورت دعوی هغه اثبات د توحید دی، په نفی د شرك اعتقادی او فعلی سره او رد دی په هغه دلیل د مشریکینو باندې چه کوم به هغوئ د جواز او اثبات د شرك دپاره پیش کولو، چه هغه تعلق د مشیت او ارادې دی دالله ﷻ په شرك پورې، لکه چه په آیت نمبر ۳۵ کښې دهغوی قول نقل شوی دی چه (وقال الذين اشركوا)، نو جاهلانو به تلازم ثابته وو په مینځ د ارادې د الله ﷻ کښې او په رضا د الله ﷻ کښې او دا به ئې د جواز د شرك د پاره دلیل پیش کوو.

**مضامین د سورت** : د سورت مضامین دوه حصوته او یوې خاتمې ته منقسم دی اوله حصه د آیت (۱) ﴿أَتَىٰٓ أَمۡرُ ٱللَّهِ﴾ نه تر آیت ۱۱۲ ﴿بِمَا كَانُواْ يَصۡنَعُونَ﴾ پورې دې په دې حصه کښې مقصد د سورت ، درې خلې دعوی د سورة په ضمن د نفی د شرك اعتقادی کښې ذکر کیږی، شپږ پکښې دلائل عقلیه، یو دلیل نقلی، یو وحی ذکر کیږي ،لس خلې پکښې تخویف اخروی ذکر کیږی، پنځهٔ خلې پکښې تخویف دنیوی ذکر کیږی، څلور پکښې بشارتونه ، اووه خلی پکښې شکوی سره د جواب شکوی،دوه پکښې دهغوی د اعتراضاتو جوابونه او دوه پکښې تسلیانې ذکر کیږی، حضورﷺ ته

دویمه حصه د آیت نمبر (۱۱۳) ﴿فَكُلُواْ مِمَّا رَزَقَكُمُ ٱللَّهُ﴾ نه تر آیت (۱۱۹) ﴿لَغَفُورٞ رَّحِيمٌ﴾ پورې ده ، پدې حصه کښې دعوی دسورت په ضمن د نفی د شرك فعلی کښې ذکر کیږی ، چه رد دې په تحریمات لغیر الله او په نذر لغیر الله باندې، نو په دې کښې یو تخویف اخروی ، یو پکښې بشارت ، او یو پکښې د کفارو د اعتراض جواب ذکر کیږی، او بیا د آیت (۱۲۰)﴿إِنَّ إِبۡرَٰهِيمَ﴾ نه خاتمه شروع کیږی، چه په هغې کښې یو دلیل نقلی تفصیلی دَ حضرت ابراهیم علیه السلام نه ذکر کیږی، یو پکښې دلیل وحیی دې ، یو بشارت او یو پکښې د کافرو د اعتراض جواب دې، او درې پکښې حضورﷺ ته تسلیانې ذکر کیږی.

تفصیل یې دادې چه په اوله حصه کښې په آ نمبریت (۱)﴿أَتَىٰٓ أَمۡرُ ٱللَّهِ﴾ کښې مقصد د سورت ذکر کیږی، په آیت نمبر (۲)﴿يُنَزِّلُ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةَ﴾ کښې اول خلې دعوی د سورت ذکر کیږی، د آیت (۳)﴿خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ﴾ نه تر آیت (۹) ﴿وَلَوۡ شَآءَ لَهَدَىٰكُمۡ أَجۡمَعِينَ﴾ پورې اول دلیل عقلی ذکر کیږی ، دپاره ددعوې په ضمن د نفی د شرك فی التصرف کښې، او په دې کښې الله تعالی دمختلفو شیونو پیدائش بیانوی ، د آیت نمبر ۱۰ ﴿هُوَ ٱلَّذِيٓ﴾ نه تر آیت ۱۶ ﴿وَبِٱلنَّجۡمِ هُمۡ يَهۡتَدُونَ﴾ پورې دویم دلیل عقلی ذکر کیږی، په دې کښې د باران نازلیدل، دهغې په نتیجه کښې مختلفې میوې پیدا کیدل ، شپه او ورځ، سپوږمۍ او ستوری د انسان په خدمت باندې مامور کول، نهرونو او سمندرونونه د انسان فوائد حاصلول ددې تولو تذکره کوی ، چه دا صرف د الله ﷻ په قدرت باندې کیږی، په آیت (۱۷-۱۸) ﴿أَفَمَن يَخۡلُقُ﴾ نه تر ﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَغَفُورٞ رَّحِيمٞ﴾ پورې دواړو دلیلونو باندې نتیجه او ثمره مرتبه کیږی ، چه دا کمزورې مخلوق ددومره لوئ قادر ، خالق ، متصرف ذات سره تاسو برابره وئ؟ ، دا څرنه کیدې شی؟ په آیت نمبر(۱۹)کښې﴿وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ مَا تُسِرُّونَ﴾ دریم دلیل عقلی ذکر کیږی، مقصود ترینه نفی دشرك فی العلم ده ، چه عالم الغیب صرف اوصرف ذات دالله تعالی دې ، نو لهذا متصرف

به هم هغه وی ، په آیت نمبر (۲۰ - ۲۱) ﴿ وَالَّذِينَ يَدْعُونَ مِن ﴾ نه تر ﴿أَيَّانَ يُبْعَثُونَ ﴾ پورې په درې وارو دليلونو باندې تفريع ذکر کيږي ، په آيت (۲۲) ﴿ إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ﴾ کښې په دريم وار دعوی د سورت ذکر کيږي، په آيت (۲۳)﴿ لَا جَرَمَ أَنَّ اللَّهَ ﴾ کښې اعاده د نتيجې کيږي ، په دلائلو مذکورو باندې ، په آيت نمبر (۲۴)﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُم ﴾ کښې شکوی ذکر کيږي، چه دا منکرين د هدايت والاکتاب ته ﴿أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴾ وايي ، په آيت نمبر (۲۵) کښې ﴿ لِيَحْمِلُوا أَوْزَارَهُمْ ﴾ کښې اول خلې تخويف اخروی ذکر کيږي ، په آيت نمبر(۲۶)﴿ قَدْ مَكَرَ الَّذِينَ ﴾ کښې اول خل تخويف دنيوی ذکر کيږي ، د آيت نمبر (۲۷) ﴿ثُمَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ﴾ نه تر آيت نمبر(۲۹) ﴿فَلَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ ﴾ پورې تخويف اخروی ذکر کيږي ،د آيت نمبر (۳۰) ﴿وَقِيلَ لِلَّذِينَ اتَّقَوْا ﴾ نه تر آيت نمبر (۳۲)﴿ادْخُلُوا الْجَنَّةَ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ پورې اول خل بشارت ذکر کيږي ، په آيت نمبر (۳۳ - ۳۴)﴿ هَلْ يَنظُرُونَ ﴾ نه تر آيت ﴿مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴾پورې تخويف دنيوی ذکر کيږي ، په آيت نمبر (۳۵) ﴿وَقَالَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا ﴾ کښې دمشرکينو نه شکوی او جواب او د هغوی دليل او دهغې اجمالی رد ذکر کيږي، چه هغوی به وئيل که چرته دالله خوښه وې نو زمونږ پلارانو او نيکونو به هم هيڅ قسمه شرک نه وو کړې نو ليکن د الله ﷻ په دې رضا ده چه مونږه شرك اوکړو، نو ځکه مونږ شرك کوو، ﴿كَذَٰلِكَ فَعَلَ الَّذِينَ ﴾ سره ورته جواب اوشو، چه دا څه نوې خبره نه ده ،مخکينو مشرکينو به هم داسې وئيل ،او مشيت او رضا کښې به نی تلازم ثابته ولو ، په آيت نمبر (۳۶)﴿ وَلَقَدْ بَعَثْنَا ﴾ کښې دليل نقلی اجمالی ذکر کيږي ، دټولو انبياء کرام ﷺ نه او ورسره په ﴿فَسِيرُوا ﴾ کښې تخويف دنيوی ته هم اشاره کيږي، په آيت نمبر (۳۷) ﴿ إِن تَحْرِصْ ﴾ کښې زجر او تسلی ذکر کيږي ، په آيت نمبر (۳۸) ﴿وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ ﴾ کښې زجر بطور شکوی ذکر کيږي ، چه دا مشرکين بعث بعد الموت بعيد ګڼري د عقل نه، په ﴿بَلَىٰ وَعْدًا عَلَيْهِ ﴾ سره جواب شکوی ذکر کيږي ، په آيت نمبر (۳۹)﴿لِيُبَيِّنَ لَهُمُ ﴾ کښې حکمت د بعث بعدالموت ذکر کيږي ، په آيت (۴۰) ﴿إِنَّمَا قَوْلُنَا ﴾ کښې دويم جواب دپاره دشکوی ذکر کيږي، چه دا بعث بعد الموت خلاف عقل او مشکل کار لپاره د الله ﷻ نه دې، په آيت نمبر (۴۱ - ۴۲) ﴿ وَالَّذِينَ هَاجَرُوا ﴾ نه تر ﴿وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ ﴾ پورې ترغيب الی الهجرة او بشارت ذکر کيږي، په آيت نمبر (۴۳ - ۴۴) ﴿وَمَا

أَرْسَلْنَا ﴾ نه تر ﴿ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ ﴾ پورې د مشركينو ديو سوال جواب ذكر كيږي. چه هغوى به حضورﷺ ته داسې وئيل چه مونږ. به ستا دا پيغام توحيد اومنو خو كچرته فرشتې هم مونږ ته دا پيغام راكړي، نو الله ﷻ دهغې جواب اوكړو ،چه محض د بشريت د وجې نه انكار كول دا بالكل غلطه خبره ده ، څكه څومره انبياء كرام عليهم السلام تير شوى دى ،هغوئ ټول انسانان وو ، دا دالله سنت مستمره دى چه نبى به دانسانانو نه وو ، نو په دې سره اثبات درسالت دحضورﷺ هم اوشو ، د آيت نمبر (۴۵) ﴿ أَفَأَمِنَ الَّذِينَ ﴾ نه تر آيت نمبر (۴۷)﴿ فَإِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴾ پورې تخويف دنيوى ذكر كيږي، په آيت نمبر (۴۸ ۴۹- ۵۰) كښې ﴿ أَوَلَمْ يَرَوْا ﴾ نه تر ﴿ مَا يُؤْمَرُونَ ﴾ پورې په څلورم خل دليل عقلى ذكر كيږي، هر شې كه هغه په زمكه كښې وى كه په آسمان كښې د الله ﷻ د تكوينى حكم مطيع دې ،او الله ﷻ ته سجده كونكې دې ، په په آيت نمبر (۵۱ - ۵۲) ﴿ وَقَالَ اللَّهُ ﴾ نه تر ﴿ فَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ ﴾ پورې په دريم وازې دعوى د سورت ذكر كيږي ، په آيت نمبر (۵۳ - ۵۴ - ۵۵) كښې ﴿ وَمَا بِكُم مِّن نِّعْمَةٍ ﴾ نه تر ﴿ فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴾ پورې زجر ذكر كيږي په صورت دامتنان كښې، او په آيت (۵۷) كښې ﴿ وَيَجْعَلُونَ لِمَا ﴾ كښې بيا زجر ذكر كيږي ، په صورت دشكوى كښې او په دويم خلې نفى د شرك فعلى ته پكښې اشاره ده، او آيت (۵۷) نه تر آيت نمبر (۶۱) ﴿ وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ الْبَنَاتِ ﴾ نه تر ﴿ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴾ پورې ، بيا زجر بطور شكوى سره د جواب نه ذكر كيږي، په آيت نمبر (۶۱)﴿ وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللَّهُ ﴾ كښې تخويف دنيوى ذكر كيږي، په آيت نمبر (۶۲)﴿ وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ ﴾ كښې زجر سره دتخويف اخروى نه ذكر كيږي، په آيت نمبر (۶۳ - ۶۴) ﴿ تَاللَّهِ لَقَدْ أَرْسَلْنَا ﴾ نه تر ﴿ وَهُدًى وَرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴾ پورې زجر سره د تخويف اخروى نه ذكر كيږي، او اول خل تسلى ذكر كيږى حضورﷺ ته، د آيت نمبر (۶۵) نه تر آيت نمبر (۷۱) ﴿ وَاللَّهُ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً ﴾ نه تر آيت ﴿ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ قَدِيرٌ ﴾ پورې پنځم دليل عقلي ذكر كيږي په دعوى دسورت باندې ، په آيت نمبر (۷۱)﴿ وَاللَّهُ فَضَّلَ ﴾ كښې مثال بيانيږى دپاره د معبوديت دالله ﷻ او دپاره د بطلان د معبوديت دغيرالله ، په آيت نمبر (۷۲)﴿ وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُم ﴾ كښې ذكر دنعمت د الله كيږى، په آيت نمبر (۷۳ ۷۴-) ﴿ وَيَعْبُدُونَ ﴾ نه تر ﴿ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴾ پورې زجر بطور ثمرې دما قبل دپاره ذكر كيږى، په آيت (۷۵ - ۷۶) ﴿ ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا ﴾ نه تر ﴿ وَهُوَ عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾ پورې دوه مثالونه بيانيږى ،دپاره د معبود

برحق او د معبود باطل ، په آیت نمبر (۷۷) ﴿ وَلِلَّهِ غَيْبُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ ﴾ کښې تتمه د مثال او جز د دعوې سره تخویف اخروی ذکر کیږی، د آیت (۷۸) ﴿ وَٱللَّهُ أَخْرَجَكُم مِّنۢ بُطُونِ ﴾ نه تر آیت (۸۱) ﴿ لَعَلَّكُمْ تُسْلِمُونَ ﴾ پورې شپږم دلیل عقلی تفصیلی ذکر کیږی، په دعوې د سورت باندې ، په آیت (۸۲) ﴿ فَإِن تَوَلَّوْا ﴾ کښې دویمه تسلی ذکر کیږی حضورﷺ ته ، په آیت نمبر (۸۳) ﴿ يَعْرِفُونَ ﴾ کښې زجر ذکر کیږی، د آیت (۸۴) نه تر (۸۸) ﴿ وَيَوْمَ نَبْعَثُ ﴾ نه تر ﴿ بِمَا كَانُوا۟ يُفْسِدُونَ ﴾ پورې تخویف اخروی ذکر کیږی .

په آیت نمبر (۸۹) ﴿ وَيَوْمَ نَبْعَثُ ﴾ کښې اعاده د تخویف اخروی کیږی، او ورسره په ﴿ وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ ﴾ سره ذکر د دلیل وحی هم کیږی چه دا مسئله د توحید حضورﷺ د خپل خان نه نده جوړه کړې بلکه په ذریعه د وحی سره ورته حکم شوې دې ، په آیت نمبر (۹۰ - ۹۱) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَأْمُرُ بِٱلْعَدْلِ ﴾ نه تر ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُ مَا تَفْعَلُونَ ﴾ پورې امور دفعیه د عذاب ذکر کیږی، په آیت نمبر (۹۲) ﴿ وَلَا تَكُونُوا۟ كَٱلَّتِى ﴾ کښې د نقض عهد والو مثال بیانیږی ، په آیت نمبر (۹۴-۹۳- ۹۵) ﴿ وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ ﴾ نه تر ﴿ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ پورې مزید تاکید او اهتمام بیانیږی دپاره د ایفاء عهد .

په آیت نمبر (۹۶- ۹۷) ﴿ مَا عِندَكُمْ ﴾ نه تر ﴿ مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾ پورې تزهید فی الدنیا او ترغیب فی الاخرة بیانیږی سره د بشارة اخروی نه ، په آیت نمبر (۹۸ - ۹۹ - ۱۰۰) ﴿ فَإِذَا قَرَأْتَ ٱلْقُرْءَانَ ﴾ نه تر ﴿ وَٱلَّذِينَ هُم بِهِۦ مُشْرِكُونَ ﴾ پورې متعلق دې په دلیل وحی پورې، په دې کښې ترغیب الی القرآن سره د آدابو بیانیږی، په آیت نمبر (۱۰۱) ﴿ وَإِذَا بَدَّلْنَآ ءَايَةً ﴾ کښې د کافرو یو اعتراض او شکوی بیانیږی چه متعلق دې په دلیل وحی پورې، چه دوی به وئیل چه (العیاذ باالله) دا څنګه قرآن او د الله کلام دې چه کله یو آیت او حکم راشی او کله منسوخ شی او د هغه په ځائ بل آیت او حکم راشی، په آیت (۱۰۲) ﴿ قُلْ نَزَّلَهُ ﴾ کښې جواب ذکر کیږی، په آیت نمبر (۱۰۳) ﴿ وَلَقَدْ نَعْلَمُ ﴾ کښې دویم سوال او شبه ذکر کیږی، په ﴿ لِّسَانُ ٱلَّذِى يُلْحِدُونَ ﴾ سره د دغې شبهې جواب ذکر کیږی، چه تفصیل ئې راروان دې ،د آیت نمبر (۱۰۴) نه تر (۱۰۹) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ نه تر ﴿ هُمُ ٱلْخَٰسِرُونَ ﴾ پورې تخویف اخروی ذکر کیږی، په آیت نمبر (۱۱۰) ﴿ ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ ﴾ کښې بشارت ذکر کیږی دپاره د مهاجرینو ، په آیت نمبر (۱۱۱) ﴿ يَوْمَ تَأْتِى ﴾ کښې اعاده د تخویف اخروی ذکر کیږی، په آیت نمبر (۱۱۲

-۱۱۳) ﴿ وَضَرَبَ ٱللَّهُ ﴾ نه تر ﴿ وَهُمْ ظَٰلِمُونَ ﴾ پورې مثال بیانیږي د پاره د تخویف. او متعلق دې په ابتدا د سورت پورې چه جلدي مه کوئ د الله ﷻ عذاب راغې ﴿ أَتَىٰٓ أَمْرُ ٱللَّهِ ﴾او ددينه روستو مشرکین مکه ترڅو کالو پورې په سخته قحطي کښې مبتلا وو.

دې پورې دسورت اوله حصه پوره شوه ،د آیت نمبر (۱۱۴) نه د سورت دویم مضمون شروع کیږي چه په دې کښې د شرك فعلي ددوه شقونو نفي ده چه هغه تحریمات لغیرالله او نذر لغیرالله دی ، په آیت نمبر (۱۱۴)﴿ فَكُلُواْ مِمَّا ﴾ کښې نفي د تحريمات لغيرالله ده، او په آيت نمبر (۱۱۵)﴿إِنَّمَا حَرَّمَ ﴾ کښې نفي د نذر لغيرالله ده، په آيت نمبر ( ۱۱۶- ۱۱۷) ﴿ وَلَا تَقُولُواْ ﴾ نه تر ﴿وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ پورې تفریع ذکر کیږي په ما قبل باندې په طریقې د لف نشر غیر مرتبه سره، او دتخویف اخروی ذکر هم کیږي سره د زجرنه، په آیت نمبر (۱۱۸)﴿ وَعَلَى ٱلَّذِينَ ﴾ کښې دیو مقدر جواب دې، چه هر کله دا څیزونه حلال وو نو په یهودو باندې ولې حرام کړې شوی وو؟ نو جواب اوشو چه دا خود ساخته تحریمات دی، په آیت نمبر (۱۱۹) ﴿ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ ﴾ کښې بشارت ذکر کیږي. د آیت نمبر (۱۲۰) نه خاتمه د سورت شروع کیږي ، په آیت نمبر (۱۲۰- ۱۲۱- ۱۲۲) ﴿ إِنَّ إِبْرَٰهِيمَ ﴾ نه تر ﴿لَمِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴾ پورې دلیل نقلي تفصیلي ذکر کیږي، د ابراهیم علیه السلام نه دپاره دنفي د شرك في الاعتقاد او شرك فعلي، په آیت نمبر (۱۲۳)﴿ ثُمَّ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ ﴾ کښې دلیل وحي ذکر کیږي د پاره د نفي د دواړو اقسامو د شرك، په آیت نمبر (۱۲۴)﴿ إِنَّمَا جُعِلَ ٱلسَّبْتُ ﴾ کښې دیو اعتراض جواب کیږي چه مشرکینو به دا اعتراض کولو :که چرته حضور ﷺ واقعي په ملت ابراهیمي باندې وی نو پکار دی چه د خالي (شنبې) دورځې تعظیم یې کولې ځکه چه حضرت ابراهیم علیه السلام به د خالي د ورځې تعظیم کولو، نو جواب ترینه او شو چه د خالي د ورځې د تعظیم نسبت حضرت ابراهیم علیه السلام ته کول دا غلط دی، دا د حضرت موسی علیه السلام په قوم باندې ضروري کړې شوی وو ، په آیت نمبر (۱۲۵- ۱۲۶) ﴿ ٱدْعُ إِلَىٰ سَبِيلِ ﴾ نه تر ﴿لَهُوَ خَيْرٌ لِّلصَّٰبِرِينَ ﴾ پورې دا په آخر کښې طریقه ددعوت او دتبلیغ او د تعلیم ذکر کیږي ، په آیت نمبر (۱۲۸)﴿ إِنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلَّذِينَ ٱتَّقَواْ ﴾ کښې بشارت سره د شرائطو ذکر کیږي چه د داعي د پاره دوه خبرې ضروري دي : یو تقوی او دویم احسان چه دا دوه خبرې موجودې شي نو د الله ﷻ نصرت به راشي او تاسو به دکافرانو د شر نه محفوظ شئ او کا فرانو باندې به د خدائی عذاب راشي او دوئ به هلاك شي چه د کوم عذاب بیان په ابتداء د سورت کښې شوې وو .

| |
|---|
| أَتَىٰٓ أَمْرُ ٱللَّهِ فَلَا تَسْتَعْجِلُوهُ ۚ سُبْحَٰنَهُۥ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ① |
| راغې حکم د الله[1] پس مه کوئ تاسو تلوار هغې ته، پاك دې الله او اوچت دې دهغې نه چه دوئ ورسره شريك جوړوي |
| يُنَزِّلُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةَ بِٱلرُّوحِ مِنْ أَمْرِهِۦ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦٓ |
| نازله وي الله فرشتې[2] په وحى سره د وحې د حکم خپل نه په هغه چا باندې چه خوښه ئې شي د بندګانو خپلو نه |
| أَنْ أَنذِرُوٓا۟ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنَا۠ فَٱتَّقُونِ ② |
| چه خلق خبردارکړئ پدې چه شان د خبرې دادې چه نشته دې لائق د عبادت سيوا ځمانه پس او ويريږئ ځما نه |

﴿أَتَىٰٓ أَمْرُ ٱللَّهِ﴾ ذكر د مقصد دسورت دې بغير د توطيه او تمهيد نه ﴿أَتَىٰٓ﴾ يا حقيقة (صورة او معنا) صيغه د ماضى ده او مراد ترينه د مبادياتو او د اسبابو اتيان دې چه الله ﷻ د حضور ﴿أَتَىٰٓ أَمْرُ ٱللَّهِ﴾ نصرت او فتح او د كافرو دهلاكت هغه اسباب ټول پيدا كړى دى او پوره شوى دى نو معنى ئى دا شوه چه پوره پوره راغليدى اسباب د الله ﷻ له طرفه نه د پاره د هلاكت ددوئ «رازى» او يا «اتى» مجازا ماضى ده ، يعنى صرف صورةً ماضى ده او معنًى مضارع ده خو تعبير ترينه په ماضى باندې لوجه د تيقن نه او يا د قريب الوقوع نه او شو ځكه چه كوم شى راتلونكې وى نو هغه قريب وى او په منزله د واقع كښې وى نو ځكه ترينه تعبير په ماضى سره اوشو ،او مراد د «امر الله» نه يا عذاب دنيوى دې چه په صورةً د قتل ،غلامئ ، او دَ نهب د اموالو كښې وو ، او يا په صورت د قحط كښې وو چه د حضور ﷺ د بد دعا په وجه باندې الله تعالى په دوئ مسلط كړې وو ، چه په آيت نمبر (۱۱۲) كښې د هغې ذكر دې ، او يا د «امر الله» نه مراد قيامت دې چه ددې تائيد په هغه واقعه د شان نزول سره كيږى چه هغه ذكر كړې ده ابن جرير طبرى په خپل تفسير كښې، علامه سيوطى په اسباب النزول كښې په سند ضعيفه سره د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه ،كشاف ،قرطبى ،مظهرى ،خازن ،روح المعانى وغيره هم په دې ځاى كښې ذكر كړې ده .

﴿فَلَا تَسْتَعْجِلُوهُ﴾ بنا بر قول اصح خطاب كفارو ته دې ، استعجال و نيلې كيږى د وخت نه مخكښې شى غوختلو ته، نومقصد ئى دادې چه عذاب بالكل قريب راغلې دې او قيامت بالكل

---

۱ . بيان د مقصود د سورت .

۲ . دعوى د سورت .

قريب راغلي دي خو د هغې دپاره يو وخت الله ﷻ مقرر کړي دي کچرته تاسو جلتی کوئ نو پديکښې څه فائده نشته دي نو جلتی مه کوئ دغه فيصله خامخا راتلونکی ده. او ((فا)) په ((فلا تستعجلوه)) کښې جزائيه ده او دا جمله جزاء ده واقع شويده په جواب د شرط مقدره کښې چه تقدير ئې دادي (ان طلبتم الامر فلاتستعجلوه) ﴿سُبْحَـٰنَهُۥ وَتَعَـٰلَىٰ﴾ دا ذکر دتوحيد دې د پاره د امن د عذاب د الله نه ، يعنې که دعذاب د الله ﷻ نه بچ کيدل غواړئ نو توحيد لاره اختيار کړئ، د مشرکانو طور طريقې مه اختياروئ ، او ((ما)) په ((عما)) کښې يا موصوله ده ، او د ﴿يُشْرِكُونَ﴾ جمله ورله صله ده او عائد ((ه)) ضمير هغه محذوف دې، او يا مصدريه ده ، او ((يشركون)) په معنى ده ((اشراکهم)) سره دې ، او بنا په هر تقدير ((فلا تشركوا به احدا)) ورسره په آخر کښې محذوف دې.

﴿ يُنَزِّلُ ٱلْمَلَـٰٓئِكَةَ ﴾ په دې کښې دعوى د سورت ذکر کيږي خو اول تنبيه کيږي په دې خبره چه دا مسئله د توحيد د الله ﷻ د طرفنه په واسطه د فرشتو سره راليگلې شوې ده او دا ټول انبياءکرام ﷺ په دې متفق وو ، ((ينزل)) صيغه د مضارع استعمال شوه د پاره د دلالت په عادت مستمره د الله باندې ، او ((ملئکة)) نه مراد صرف حضرت جبرائيل عليه السلام دې ، هر کله چه واحد اعلى او مشر وى په افرادو باندې نو تسميه ورله په جمع سره جائز وى ((رازى بحواله واحدى)) يا ترينه مراد جبرائيل عليه السلام سره د حفظة الوحى دې (ابو سعود) ﴿بِٱلرُّوحِ﴾ جار مجرور متعلق دې په متلبس پورې او دا حال واقع شويدې د ملئکة نه (اى حال کوفهم متلبسين بالوحى) او روح په شپږو معانيو کښې استعماليږي خو د زيات صحيح قول مطابق دلته ترينه مراد وحى او قران دې په طريقه د استعارې سره ، لکه څنگه چه روح سبب گرځي د پاره د ژوندون د بدن نو دغه شانتې وحى ذريعه د پاره د حيات او ژوند گرځي دپاره د هغه زړونو چه مړه وى په جهل سره ، او يا د وحى نه مراد توحيد دې او دا توحيدپه دين کښې داسې دې لکه څنگه چه روح وى په جسد کښې ((ابى سعود)) .

قرآن مجيد کښې په څينو ځايونو کښې په وحى باندې اطلاق د روح کيږي ،لکه (۱) ﴿وَكَذَٰلِكَ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ رُوحًا مِّنْ أَمْرِنَا﴾ (شورى آيت: ۵۲ ) . (۲) ﴿يُلْقِى ٱلرُّوحَ مِنْ أَمْرِهِۦ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ﴾ (المؤمن آيت : ۱۵) امام رازى رحمه الله فرمائي چه وحى او قرآن ته روح وئيل د ډير لوئ مناسبت اومشاكلت دوجې نه، دى بلکه روح حقيقى او اصلى هغه قرآن او وحى ده څکه په دې سره انسان د جهالت او د غفلت د خوف نه خلاصې مومى او ددې په ذريعې سره انسان د حيوانيت د پستئ نه بام ملكية ته انتقال كوى، او وجه داده چه د انسان بدن بغير د روح نه مظلم او مړ وى، کله چه ورسره د روح اتصال راشى

نو دې ژوندې شي، او نوراني شي،او د نورانيت آثار يې په حواس خمسه کښې ظاهر شي، خو دا روح هم بذاته ظلماني او جاهل وي لکه الله ﷻ فرمائي چه ﴿ وَٱللَّهُ أَخْرَجَكُم مِّنۢ بُطُونِ أُمَّهَٰتِكُمْ لَا تَعْلَمُونَ شَيْـًٔا ﴾ (النحل ايت ۷۸) خو چه کله اتصال د عقل ورسره راشي نو دې مُشرق او نوراني اوګرځي. بيا دا عقل هم کامل نوراني او مشرق نه دې چه ترځو پورې معرفت د ذات او افعالو د الله ورته نه وي حاصل شوې، نو د عقل استکمال او نورايت په دې معارفو سره راځي، او دغه هيئت په نور د وحي او عقل سره حاصيليږي ، نو په وحي او قرآن سره استکمال د عقل راځي او په عقل سره جوهر د روح کامليږي او په روح سره کمال د حال دجسد او دبدن راځي، نو معلومه شوه چه اصل او حقيقة روح هغه وحي او قرآن دې

﴿ مِنْ أَمْرِهِۦ ﴾ من بيانيه دې او دا جمله بيان دې د روح د پاره چه دا روح امر دالله دې، او يا من سببيه دې ((اى ينزل الملئکة بسبب امره اولاجله)) يعنى دا نزول دَ ملائکو چه وى نو صرف او صرف د الله ﷻ په امر سره وى لکه په بل ځائى کښې الله ﷻ فرمائى : ﴿ وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ ﴾ (مريم ۶۴)، ﴿عَلَىٰ مَن يَشَآءُ ﴾ په دې کښې د ليل دې په دې خبره چه نبوت عطائى شې دې کسبى نه دې ﴿أَنْ أَنذِرُوٓاْ ﴾دا دعوى د سورت ده چه دا خلك پدې پوهه کړئ چه بل معبود، بل حاجت روا، بل مشکل کشا نيشته دې ، صرف او صرف يو الله دې ،﴿أَنْ أَنذِرُوٓاْ ﴾ بدل دې د ((الروح)) نه او مبدل منه په حکم دَ تنحيى او ترك کښې وى نو تقدير ئى داسې دې ((ينزلهم متلبسين بان اَنذروا)) او ((ان)) يا محففه عن المثقله دې ،او ضمير شان چه هغه اسم دې دپاره دده هغه ورله محذوف دې ((اى ينزلهم متلبسين بان الشان اقول لکم ان انذروا)) او يا ((ان)) مفسره دې او دا جمله تفسير دې د پاره د ((ينزل الملئکة)) او ((انذار)) ونيلې کيږى اعلام سره د تخويف ته، معنى داده چه ((اعلموالناس قولى لا اله الا انا فاتقون)) ،(مدارك ،کشاف ). ﴿فَٱتَّقُونِ ﴾ بنأ بر قول اصح خطاب مستعجلين ته دې په طريقه د التفات سره او ((فا)) په کښې فصيحيه ده ((ابوسعود)) او په دې کښې اشاره دې ته ده چه د وحى تعلق د دوه شيونو سره دې : يو توحيد چه د قوت علمى او نظرى تکميل او انتها ده، او دويم تقوى چه د قوت عملى تکميل او انتها ده ،((مظهرى)).

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ۭ تَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ③

پیدا کړي دي الله آسمانونه [1] او زمکې لپاره د ښکاره کولو د حق، اوچت دې د هغې نه چه دوئ ورلره شریك جوړوی

خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ فَاِذَا هُوَ خَصِيْمٌ مُّبِيْنٌ ④ وَالْاَنْعَامَ

پیدا کړې ئې دې انسان لره د نطفې (پلیتو اوبو) نه نو ناڅاپه دغه انسان جګړه کوونکې دې ښکاره او څاروی.

خَلَقَهَا ۚ لَكُمْ فِيْهَا دِفْءٌ وَّمَنَافِعُ وَمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ⑤

پیدا کړیدی الله هغوئ ستاسو لپاره په هغوئ کښې اسباب د ګرموالی دی او ډیرې فائدې دی او ځینې دهغې نه تاسو خورئ

وَلَكُمْ فِيْهَا جَمَالٌ حِيْنَ تُرِيْحُوْنَ وَحِيْنَ تَسْرَحُوْنَ ⑥

او دې ستاسو لپاره په هغې کښې ښائست چه کوم وخت (ماښام) واپس بې راولئ تاسو او کوم وخت (صبا) چه صحراء ته ئې بوځئ تاسو

﴿ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ ﴾ اول دلیل عقلی تفصیلی ذکر کیږی په نفی د شرك فی التصرف باندې ﴿بِالْحَقِّ﴾ مراد ترینه اظهار دتوحید دې یعنی د ټولو کائناتو دپیدا کولو مقصد دادې چه په دې سره استدلال اوشی په وحدانیت او په کمال قدرت دالله باندې ((ای للدلالة علی قدرته وان له ان یتعبد العباد باالطاعة ان یحیی الخلق بعد الموت)) (قرطبی) ﴿ خَلَقَ الْاِنْسَانَ ﴾په مخکښې آیت کښې استدلال په وحدانیت او په قدرت د الله باندې په اجرام فلکیه عالیه سره وو او په دې کښې استدلال په احوالو د انسان سره دې چه دا انسان الله تعالی دخومره حقیرې نطفې نه په مختلفو اطوارو سره دنیا ته راوړه ویستلو او یو حسین صورت ئې ورله ورکړو خو بیا هم دې دالله په قدرت او وحدانیت کښې جګړې کوی، دا آیت اګر چه د شان نزول په اعتبار سره خاص دې، او «الانسا» نه مراد أبی ابن خلف الجمحی دې ، خو زیات مناسب د مقام سره دا دې چه اعتبار دعموم د الفاظو اوکړې شی او «الانسان» نه مراد جنس انسان شی ﴿ خَصِيْمٌ ﴾ په وزن دفعیل سره په معنی د مفاعل مخاصم سره دې لکه چه نسیب په معنی د مناسب سره دې ، د راجح قول مطابق، مراد د خصیم نه منکر د توحید دې او منکر د قدرت دالله ﷻ دې ، او بعض فرمائی چه مراد د خصیم نه منطیق یعنی خبرې کونکې (تیز ژبان) دې ، مجادل عن نفسه دې ، یعنی دا انسان یوه نطفه بی حسه پلیته وه ، د الله په قدرت سره ئې انتقال

---

[1] - اول دلیل عقلی لپاره د نفی د شرك فی التصرف.

اوكړو يو حالت شريفه ته ،احساس او روح پكښې پيدا شو ((اى فاذا هو منطيق مجادل عن نفسه مكافح للخصوم مبين للحجة بعد ماكان نطفة من منى جمادا لاحس به ولا حركة)) (كشاف،كبير) ﴿وَالْأَنْعَامَ﴾ په مخكښې آيت كښې استدلال وو په ذكر د احوالو د انسان سره او په دې كښې استدلال دې په پيدائش د هغه اشياؤ سره چه انسان ورته په ژوند تيرولو كښې محتاج دې ، مراد دانعام نه ازواج ثمانيه ((ضان، معز ، بقر ، ابل )) دې ،او ((الانعام)) منصوب دې او د قبيلې د ما أضمر على شريطة التفسيرنه دې ﴿دِفْءٌ﴾ ونيلې كيږى هغه څيز ته چه په اغوستلو كښې ئې گرمائش حاصيليږى او يخنى پرې دفعه كيږى او جوړيږى دوړئ او دپشم او ويختو نه . ﴿وَمَنَافِعُ﴾ په دې كښې اشاره ده پيو، غوړو ، غوښو ، بچو ، او ركوب ته ﴿وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ﴾ اكل دا دمعظمو منافعو نه وو نو خكه خاص طور پر ذكر شو ، او تقديم د جار مجرور په فعل باندې د پاره د حصر دې خو دا حصر په اعتبار د اغلب او دعموم سره ،خكه چه ددې نه علاوه د نورو شيونو غوښې هم خوړلې شى لكه چرگ وغيره شو ، خو هغه مشابه دى د غير معتاد سره ، او جارى دى په مجرى د تفكه، نو ددې وجه نه حصر اوكړې شو ،او په دې آيت كښې ذكر د ملبوساتو مقدم كړې شو په مطعوماتو باندې اگر چه مطعومات عظيم المنفعت دى وجه داده چه ملبوسات اكثر دى په اعتبار دبقاء سره نو خكه مقدم كړې شو ﴿وَلَكُمْ فِيهَا جَمَالٌ﴾ يعنى ددغې فوائدو سره سره الله دغه حيوانات ستاسو دپاره د زينت او خايست ذريعه هم گرخولې ده چه كله ئې تاسو صحرا ته بوخئ او يائې راؤلئ ، نو ستاسو د عزت او شان او شوكت يوه نخه ده ﴿تُرِيحُونَ﴾ رواح ونيلى كيږى د چارپايانو صحرا نه دمابنام وخت كښې واپس راوستلو ته ، او سرح ونيلى كيږى دسحر په وخت كښې دوئ صحرا ته بوتلل ، د ترتيب په اعتبار سره سرح مقدم وى د رواح نه خو دلته تقديم د رواح په سرح باندې خكه اوشو چه په رواح كښې خايست د سرح نه زيات وى ، خكه چه د واپس راوستلو په وخت كښې دوئ ماړه شوى وى په خوراك او څكاك سره نو ډير خايسته خكارى.

﴿وَتَحْمِلُ أَثْقَالَكُمْ إِلَىٰ بَلَدٍ لَّمْ تَكُونُوا بَالِغِيهِ إِلَّا بِشِقِّ الْأَنفُسِ ۚ﴾

او پورته كوى دوئ بوجونه ستاسو داسې شهرونو ته چه نه يئ تاسو رسيدونكى هغې ته مگر په مشقت د نفسونو سره

﴿إِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ۝ وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ﴾

بيشكه رب ستاسو خامخا ډير شفقت كوونكې ، رحكم كوونكې دې او (پيدا كړيدى الله) اسونه اوقچرى او خرونه

| لِتَرْكَبُوْهَا وَزِيْنَةً ۚ وَيَخْلُقُ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٨﴾ |
|---|
| لپاره د دې چه سورلئ او کړئ تاسو په هغې باندې او لپاره د خائست . او پیدا کوی هغه څیزونه چه تاسو ئی نه پیژنئ |
| وَعَلَى اللّٰهِ قَصْدُ السَّبِيْلِ وَمِنْهَا جَآئِرٌ ۚ وَلَوْ شَآءَ |
| او د الله [١] په ذمه باندې دې بیان د سمې لارې او ځینې د دې لارونه کږې دی، او کچرته خوښه شوې وې د الله |
| لَهَدٰىكُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿٩﴾ |
| خامخا هدایت به ئی کړې وو تاسو ټولو ته |

﴿وَتَحْمِلُ﴾ اثقال جمع د ثقل ده ، درون سامان د مسافر ته ونیلې کیږی (کبیر) بله فائده دچارپایانو او احسان دالله ذکر کیږی ، چه انسان دمشقت نه د بچ کیدو دپاره خپل درون بار په خناورو باندې واچوی او هغوی ئې بغیر د څه چون وچرا نه هغه ځائی ته رسوی چه هغې ته د انسان رسیدل بغیر د سامان نه د مشقف نه خالی نه وی ((ای قد علتم انکم لاتبلغونه بانفسکم الا بجهد و مشقة فضلا ان تحملو علی ظهورکم اثقالکم)) (کشاف) ﴿بِشِقِّ الْاَنْفُسِ﴾ قرات د د عامو او اکثرو هغه بالکسر دې ، او شَق بالفتح . بعض فرمائي چه دَ دوارو معنی یوه ده په معنی د مشقت سره ، او هیڅ فرق پکښې نشته دې لکه رِطل او رَطل، او بعضی فرمائی چه دَچه د شَق (بالفتح) حقیقی معنی مشقت دې او شِق (بالکسره) ونیلی کیږ ی نصف ته لکه په حدیث کښې راغلی دی ((اتقوالنار ولو بشق التمرة)) نو معنی داده چه هغه ته رسیدو کښې ستاسو نصف قوت خرچ کیږی، رجعه ددې قول هم تکلیف او مشقت ته کیږی.

**تنبیه** : منکرین د کراماتو د اولیاء په دې آیت سره استدلال کوی چه دا آیت په دې دلالت کوی چه انتقال دیو بلد نه بل بلد ته دا بغیر د مشقت نه ممکن ندې، نو لهذا د مثبتینو د کراماتو دا خبره چه ولی هغه بغیر د مشقت نه په لګ وخت کښې دیو شهر نه بل شهر ته انتقال کوی؟ د آیت د ظاهر سره مخالفه ده ، نو **جواب** ترینه دادې چه کرامات د اولیاء الله هغه په نورو دلائلو سره ثابت دی او هغه د لائل ددې آیت دپاره مخصص دی (کبیر) ﴿وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ﴾ دا منصوب دې او عطف دې په «والانعام»

[١] دویمه معنی : او الله ته رسیږی سیدها لار دَ توحید – او بعض لارې دَ شرک دی.

باندې او په دې آيت کښې د درې قسمه حيواناتو دوه لوئې فائدې ذکر کيږي. يو زينت او دويمه سورلی، ﴿وَزِينَةً﴾ دا يا مفعوله له دې او عطف دې په محل د ((لتركبوا)) باندې او يا مفعول به دې د فعل مقدر د پاره ((اى خلقها زينة)) ذکر دَ ((رکوب)) په فعل سره اوشو ځکه چه رکوب کله کله وی هميشه نه وی، او ((زينة)) مصدر سره ذکر شوه ځکه چه په زينة کښې دوام او ستمرار وی ، په دې آيت کښې د خيل او بغال او حمير مقصد الله ﷻ سورلی او زينت بيان کړو او دهغوی د غوښې دخوراك ذکر ئې او نه کړو نو د ظاهر د آيت نه دا معلوميږی چه ددې درې واړو خوراك جائز نه دې کچرته دَ دوئ خوراك جائز وې نو دهغې ذکر به خامخا شوې وؤ ځکه چه سوق ددې آيت دپاره د امتنان دې او په ټولو کښې لوئ نعمت هغه خوراك دې ، نو په معرض د امتنان کښې اعلی شی پريخودل او ادنی ذکر کول دا دحکيم ذات سره لائق او مناسب نه دی، نو معلومه شوه چه ددې د ټولو خوراك جائز نه دې لکه دا مسلك ابتداءً د حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله وو ليکن روستو ئې بيا د اس په باره کښې رجوع اوکړه نو د جمهورو فقهاؤ په نيزد د خچر اود کورنئ خرغوښه ناجائزه ده او داس په باره کښې د جمهورو احنافو قول د کراهيت تنزيهی دې د وجې د اختلاف د رواياتو نه او د وجې ددينه چه دا اسباب او آله د حرب او د جهاد ده ﴿وَيَخْلُقُ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾ زيات راجح قول دادې چه ددې نه مراد مطلقا خلق دې برابره خبره ده که په هغه وخت کښې موجود وو او د انسان علم پرې نه وو يا بالکل موجود نه وو لکه ريل ګاډی جهاز وغيره شو يا په راتلونکی وخت کښې نور داسی ايجادات وشو چه نن صبا انسان سره د هغې علم نشته دې.

**فائده** : (۱) په دې آياتونو کښې دليل دې په دې خبره چه چار پايانو باندی بوج بار کول او په هغوئ باندې سورلی کول جائز دی، ليکن د هغوئ د برداشت او استطاعت نه زيات شې په هغوئ بار کول يا د هغوی د خوراك څکاك خيا ل نه ساتل ، جائز نه دی، (۲) د دې آيت نه د جمال او زينت جوازهم معلوميږی چه دا حسن او خائست د شريعت د حدودو لاندې جائز دې ، دفخر اوتکبر دپاره زينت حرام دې.

﴿وَعَلَى اللَّهِ﴾ (على) يا په معنى د (الى) سره دې ، او ﴿قَصْدُ السَّبِيلِ﴾ وئيلې کيږی، استقامت الطريق ته خو دلته ترينه مراد توحيد دې او په ځائې د ((الى)) باندې ((على)) راوړل دپاره د تاکيد د استقامت دې (ابو سعود) يعنی دا د توحيد والا لار الله ته رسيدونکې لار ده او يا ((على)) په خپله معنى باندې دې ، ا و لفظ دبيان ورسره مقدر دې ((اي وعلى الله بيا ن قصد السبيل)) (قرطبى) او على د

وجوب دپاره وی خو دلته ترینه وجوب تفضیلی مراد دې ﴿وَمِنْهَا جَآئِرٌ﴾ جائر وئلي کیږی ((مائل عن الحق ومنحرف عنه لایوصل سالکه الیه)) ته (ابو سعود) او دضمیر په مرجع کښ متعدد اقوال دی. بعض فرمائی چه مرجع جنس سبیل دې ، او سبیل مذکر اومونث دواړه استعمالیږی ، د دې وجې نه ضمیر دمونث ورته راجع شو، او مقصد د آیت هغه تقسیم دې سبیل حق او سبیل باطل ته ، دا زیات راجح دې ، بعض فرمائی چه ضمیر راجع دې «سُبُل» جمع ته او« من» تبعیضیه دې ، اوضمیر اګر چه مفرد دې خو واقع دې په ځائ د جمع باندې ، «زاد المسیر» او ابن عطیه فرمائی چه ضمیر راجع دې «السبیل» ته او الف لام دپاره د عهد دې او مراد ترینه سبیل د شرع دې ، او مقصد دادې چه په شرع کښ ځینې لارې اوفرقې صحیح دی او ځینې فرقې ناجائر او باطل اومنحرف عن الدین دی نوپه دې کښ اشاره ده فرق باطلو ته، ﴿وَلَوْ شَآءَ﴾ «لو» دپاره د انتفاء الثانی راځی د وجې د انتفاء داول نه ، نوپه دې کښ اشاره ده چه هدایت په ارادې او په مشیت د الله سره دې ، نو دکافرو نه مشیت د الله منتفی شوې دې نو ځکه ورته هدایت نه دې ملاؤ (خازن).

﴿لَهَدَىٰكُمْ أَجْمَعِينَ﴾ یعنی اضطراراً او الجاءً، پدې آیت کښې رد دې په مذهب د قدریو باندې.

| هُوَ الَّذِيٓ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً لَّكُمْ مِّنْهُ شَرَابٌ وَّمِنْهُ |
|---|
| الله هغه ذات دې [1] چه راوروی د طرفه د آسمان نه او به ستاسولپاره دهغې نه څکل دی او د دغې نه (پیداکیږی) |
| شَجَرٌ فِيْهِ تُسِيْمُوْنَ ۝ يُنْۢبِتُ لَكُمْ بِهِ الزَّرْعَ وَالزَّيْتُوْنَ |
| ونې چه په هغې کښ څروئ تاسو (څاروولره). رازرغونه وی (الله) تاسو لره په هغې سره فصل اوخونه |
| وَالنَّخِيْلَ وَالْاَعْنَابَ وَمِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ ۗ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ۝ |
| او کهجورې او انګور او د هر قسم میوونه بیشکه پدې کښ دلیل د توحید دې لپاره د هغه قوم چه فکر کوی |

﴿هُوَ الَّذِيٓ اَنْزَلَ﴾ دویم دلیل عقلی ذکر کیږی په توحید پدې کښ احوال د نباتاتو د باران وریدل او د نمر، سپوږمۍ او ستورو د انسا ن په کا ریاندې لګولو تذکره ده، ﴿لَكُمْ مِّنْهُ شَرَابٌ﴾ پدې آیت کښ حصر مقصود ندې او په دې کښ نفی ددې نشته دې چه انسان د څکاك لره د اوبو نه

[1] . دویم دلیل عقلی دپاره د نفی د شرك فی التصرف علی سبیل الترقی.

بل څه طريقه نشته دي بغير د باران نه، بلکه په دې کښې صرف دَ باران نه د څکاك د فائدې اغستلو ذکر دې . او په تقدير د تسليم د حصر سره څومره اوبه چه دی هغه دباران نتيجه ده، که هغه د چشمو دی ياد کوياڼو دی يا د نهرونو اوبه دی. لکه الله فرمانی : ﴿وَأَنزَلْنَا مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءًۢ بِقَدَرٍ فَأَسْكَنَّٰهُ فِى ٱلْأَرْضِ﴾ . (المومنون ١٨) . ﴿وَمِنْهُ شَجَرٌ﴾ (من) يابسببيه دې (اي سببه انبات شجر) (روح) اويا تبعيضيه دې، يعنی ځنې د دغه اوبو نه هغه ونې دی، دا نسبت مجازی دې ځکه چه دا ونې وجود حاصليږی په اوبو سره نوګويا چه دا د دې يو جزء دې ((لان شجرة لما کان حاصلا بسقيه جعل کانه منه)) . (روح) او ((شجر)) په لغت کښې وئيلی کيږی هغه بوټی ته چه هغه لره ساق (تنه) وی او کله کله ئی اطلاق په کلاء (واښو) باندې هم کيږی. لکه حديث کښې چه راغلی دی ((لاتاکلو ثمن شجر فانه سحت)) (رواه عبدالرزاق فی مصنفه) دلته ترې نه مراد هغه ټول ځيزونه دی چه زمکه ئی را زرغونه وی ﴿فِيهِ تُسِيمُونَ﴾ معنی ئی ده ((تَرْعَوْنَ)) څرولو ته وئيلي کيږی ﴿يُنۢبِتُ لَكُم﴾ دا جمله يا صفت دې د ﴿مَآءً﴾ دپاره او يا جمله مستانفه ده چه واقع شوې ده په سوال د سائل کښې، ګويا چه سائل سوال اوکړو ، چه ((هل له منافع اخر)) نو جواب ترينه اوشو چه ((ينبت لکم به الزرع – الخ)) د اوبو په ذريعې سره کله غذا د حيواناتو پيدا کيږی اوکله دانسانانو، نوپه ماقبل کښې له ((فيه تسيمون)) سره غذا د حيواناتو ذکر شوه او په دې آيت کښې غذا اوخوراك د انسانانو ذکر کيږی، او تقديم د خوراك د حيواناتو اوشو دپاره د تنبيه په مکارم اخلاق باندې ځکه چه اخلاق حميده دادی چه انسان د خپل ځان نه د هغه شی خيال زيات اوساتی چه کوم د ده ماتحت دی، يا د تقديم وجه داده چه د حيواناتو خوراك اقوی بالامتنان دې ځکه چه د هغې په زرغونيدو کښې دانسان او د مخلوق هيڅ دخل نشته په خلاف دانسان د خوراك د انسان چه په هغې کښې د انسان د کسب او محنت ضرورت وی، ﴿ٱلزَّرْعَ﴾ خوراك انسانی کله دپاره دغذا وی اوکله تفکه محض وی، او کله پکښې دواړه فائدې وی اوکله په کښې د دې دواړو نه علاوه نور منافع وی، نو ((الزرع)) په دې کښې غذا ده، او هرکله چه دا اصل وو په غذائيت کښې نو ددې وجې نه ئې تقديم هم اوشو په نورو باندې ﴿وَٱلزَّيْتُونَ وَٱلنَّخِيلَ﴾ دا دواړه مِن وجهٍ غذا هم دی او فاکهه هم دی ،او تقديم د زيتون د وجې د شرافت او تبرك نه دې ﴿وَٱلْأَعْنَٰبَ﴾ جمع د عنب ده، انګور ته وئيلي کيږی په دې کښې تفکه ده سره د علاج نه، او جانب د غذائيت په کښې ناقص دې، نخيل او اعناب جمع ذکر شول د دوجی د

مختلفة الاصناف نه. چه د دې اصناف مختلف اوكثير دى. صاحب د روح المعانى فرمائى چه د كهجورو تقريبا درې سوه قسمونه دى. او د انګورو پنځوست قسمونه دى. او تخصيص د دې ځلورو انواعو ځكه اوشو چه د دغې مذكورو فوائدو نه علاوه په نورو ډيرو منافعو باندې هم مشتمل دى ﴿وَمِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ﴾ «من» تبعيضيه دې. ځكه چه ټولې ميوې به په جنت كښې وى. د دنيا ميوې د آخرت او دجنت د ميوو دپاره ياد دهانى او تذكره ده. نوپه دنيا كښې صرف ځينې ميوې الله پيدا كړى دى. ﴿ذَٰلِكَ لَآيَةً﴾ په دې كښې د الله د قدرت او وحدانيت لوئى نشانئ دى. چه د يوې زمكې نه او په يو تاثير فلكيه او تحريك كوكبيه سره مختلف الطبائع ميوې چه د هغو طبائع خوند، رنګ، بوئ جدا جدا وى. پيدا كيږى. نو مبادى د ټولو متحد او نتيجه يې مختلفه ده. دا صرف د يو قادر مطلق او متصرف ذات كار دې. اود هغه د قدرت نخه ده.

| |
|---|
| وَسَخَّرَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ ۙ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ۖ وَالنُّجُومُ مُسَخَّرَاتٌ بِأَمْرِهِ ۗ |
| او په كار ئى لګولى دى ستاسو لپاره شپه او ورځ او نمر اوسپوږمئ. او ستورى چه تابع كړى شوى دى په حكم دهغه سره |
| إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ۝ وَمَا |
| بيشكه چه پدې كښې خامخا ډير دليلونه د توحيد دى هغه قوم لره چه عقل نه كار اخلى　او (پيدا كړى ئى دى) هغه څه |
| ذَرَأَ لَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُخْتَلِفًا أَلْوَانُهُ ۗ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً |
| چه خواره كړى ئى دى ستاسو لپاره په زمكه كښې چه جدا جدا دى رنګونه دهغې بيشكه پدې كښې خامخا دليل دې |
| لِّقَوْمٍ يَذَّكَّرُونَ ۝ وَهُوَ الَّذِي سَخَّرَ الْبَحْرَ لِتَأْكُلُوا |
| دهغه قوم لپاره چه نصيحت قبلوى . او الله داسې ذات دې چه تابع كړې ئى دې درياب لپاره د دې چه اوخورئ تاسو |
| مِنْهُ لَحْمًا طَرِيًّا وَتَسْتَخْرِجُوا مِنْهُ حِلْيَةً تَلْبَسُونَهَا ۖ وَتَرَى الْفُلْكَ |
| دهغې نه غوښه تازه او را اوباسئ تاسو دهغې نه كالى (زيورات) چه اغوندئ تاسو هغه. او وينې ته كشتئ |
| مَوَاخِرَ فِيهِ وَلِتَبْتَغُوا مِن فَضْلِهِ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ۝ |
| سيرونكى د ابودى په هغې كښې او لپاره د دې چه طلب كړئ فضل د الله او د دې دپاره چه شكر اوكړئ تاسو . |

﴿وَسَخَّرَ﴾ معنى د تسخير تيره شوې ده ﴿الَّيْلَ﴾ دد آرام دپاره او ﴿وَالنَّهَارَ﴾ د معاش دپاره ﴿وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ﴾ چه دا په خپل مدار باندې صحيح روان دی، او په دوی باندې الله د انسانانو خپنی مصالح مرتب کړی دی، نو دوی په کاملې طريقې سره د هغې دپاره سر ته رسونکی دی. او د تسخير معني په دې مقام کښې هغه نه ده چه کومه معنی په سورة زخرف آيت نمبر (١٣) ﴿سُبْحَٰنَ الَّذِى سَخَّرَ لَنَا هَٰذَا﴾ کښې مراده ده، هلته د تسخير نه مراد تمکين او قدرت ورکول دی انسانانو ته، چه څنګه تصرف په کښې غواړی نو کولې يې شي، ﴿وَالنُّجُومُ﴾ مرفوع دې بنا بر ابتدائيت، په تغير د اسلوب کښې اشاره ده دې ته چه د دې په فوائدو باندې عام خلق نه پوهيږی ﴿إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَآيَٰتٍ﴾ هر کله چه په شمس، قمر وغيره هر يو کښې جدا جدا فوائد وو، نو ځکه آيات جمع راوړې شوه، او هر کله چه آثار د دوی ظاهر وو په دلالت کښې په قدرت د الله باندې او فکر چلولو ته پکښې ضرورت نه وو نو ځکه ﴿يَعْقِلُونَ﴾ ذکر شو ﴿وَمَا ذَرَأَ لَكُمْ﴾ واو عاطفه دې او (ما) موصول مبنى واقع شوې دې په محل د مفعول به کښې او داعطف دې په ما قبل جمله کښې په «الليل» باندې او د (سخر) ماتحت واقع شوې دې او مراد د دې نه هغه حيوانات، اشجار وغيره دی چه مختلفو رنګونو باندې مشتمل دی ﴿إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَآيَةً﴾ اختلاف د الوانْ امر واحد دې نو ځکه آية مفرد ذکر شو ﴿وَهُوَ الَّذِى سَخَّرَ الْبَحْرَ﴾ مخکښې آيت کښې منافع د بر (اوچې) ذکر شول او په دې آيت کښې دمنافعو د بحر بيان دې، د تسخير مقصد دادې چه الله انسان ته قدرت ورکړې دې چه دې په دې کښې لامبو وهی په کشتو کښې په کښې ګرځی او قيمتی څيزونه ترينه راوباسی، او د «البحر» نه مراد جنس بحر دې که خوږ وی او که مليح (نمکين) وی ﴿لِتَأْكُلُوا﴾ خوراك د لويو منافعونه وو د دې وجې نه مقدم کړې شو ﴿مِنْهُ لَحْمًا طَرِيًّا﴾ دلته دحيوان لفظ مقدر دې ((اى لتاكلو ا من حيوانه، لحما طريا))، (بحر) اومرا د ترينه ماهی (سمك) دې او تعبير ترينه په لحما سره اوشو اګر چه دا حيوان دې، د وجې د انحصار د انتفاع د ده نه په اکل سره (ابی سعود) او يا د دې وجې نه چه په ده کښې هډوکی کم دی (روح) او په «طريًا» کښې اشاره ده چه دا نرم خوراك او غذا ده او تنبيه ده په دې کښې چه د دې په خوراك کښې جلدی پکار ده ځکه چه دې زر خرابيدونکې دې او دغه شانتې تنبيه ده په لوئی قدرت د الله باندې چه د بيکاره او ترخو اوبو نه ئې تازه او خوږ ماهی پيدا کړو

**تنبیه**: په ماهی باندې په دې ځای کښې د لحم اطلاق شوې دې. خو دا اطلاق مجازًا دې. ځکه چه لحم د التحام نه دې په معنې د شدت سره او شدت بغیر د وینې نه نشی حاصلیدې او په ماهی کښې وینه نه وی او په عرف کښې هم ماهی د غوښې نه مطلقا لحم او غوښه نه وئیلې کیږی د دې وجې نه امام ابو حنیفه رحمه الله فرمائی: که چرته یو انسان د غوښې د خوراك نه قسم اوکړو اوبیا ئې ماهی اوخوړلو نودا حانث نه دې لکه څنګه چه یو سړې قسم اوکړی د ماڼځه نه په بساط باندې . او بیا مونځ اوکړی په زمکه باندې نو دا حانث نه ګرځی حالانکه په قرآن مجید کښې په زمکه باندې اطلاق د بساط شوې دې لکه الله فرمائی ﴿وَٱللَّهُ جَعَلَ لَكُمُ ٱلۡأَرۡضَ بِسَاطٗا﴾ (نوح آیت : ١٩) یا دغه شانتې یو سړی قسم اوکړو د سورلئ نه په دابه باندې او بیا ئې سورلی اوکړه په یو کافر باندې نوحانث نه ګرځی حالانکه الله په قرآن مجید کښې کافرو ته دواب وئیلې دی، لکه چه فرمایی: ﴿إِنَّ شَرَّ ٱلدَّوَآبِّ عِندَ ٱللَّهِ﴾، (سورة الانفال ، آیت : ٥٥ – ٢٢) ځکه چه دارومدار د قسمونو په معنی عرف باندې دې او د دې وجې نه داحنافو په نزد که چرته یو سړې غلام له پیسې دپاره د غوښې ورکړی او هغه ورله ماهی راوړو نو مالك ته د انکار حق حاصل دې، ﴿وَتَسۡتَخۡرِجُواْ مِنۡهُ حِلۡيَةٗ﴾ مراد ترینه مرغلرې او مرجان وغیره دی، بعضې مفسرین فرمائی چه خوراك د تریخ او خوږ دواړو سمندرونو نه ملاویږی اوحلیه او کالی صرف د تریخ سمندر نه ملاویږی او خوږ نه، نهٔ ملاویږی، او بعض فرمائی چه د خوږ سمندر نه هم ملغلرې ملاویږی خو هغه کمې وی او علاج او دوائی کښې پکار راځی «بحر».

﴿تَلۡبَسُونَهَا﴾ دا کالې لباس صرف د زنانو دې او نسبت ئې ذکورو (نارینو) ته تسبیبا دې او یا ئې نسبت نارینو ته اصالةً دې ځکه زنانه د نارینو تابع وی او یا وجه داده چه زنانه مامورې دی په حجاب او اخفا د زینت سره دغیر محارمو نه نو خفا د تصریح د نسبت د لبس هم راغله د دوئ نه او نسبت ئې ذکورو ته اوشو ، ((لما ان النساء مامورات با لحجاب واخفاء الزینت عن غیر محارم اخفی التصریح بنسبة الیهن لیکون الفظ کا لمغنی)) ، ((روح)) ﴿مَوَاخِرَ فِيهِ﴾ مخر په لغت کښې وئیلې کیږی شق او څیرلو ته، دلته په معنی د جاریةٌ سره دې یعنی چه روانې دی په حکم د الله سره ﴿وَلِتَبۡتَغُواْ مِن فَضۡلِهِۦ﴾ عطف دې په ((لتستخرجون)) باندې ، او یا ورله معطوف علیه مقدره ده ((ای لتستخرجوا لذالك ولتبتغوا من فضله)) مراد ترینه تجارت دې ﴿وَلَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُونَ﴾ یعنی

تاسو د الله د دغه نعمتونو دوجې نه د الله معرفت حاصل کړئ او په اطاعت او وحدانيت سره د هغه شکر ادا کړئ ((فتقومون بادائها باالطاعة والتوحيد))، (ابی سعود) . اوهر کله چه دا نعمت اقوی وو په باب د نعمتونو کښې څکه چه د خطرې والا څيز الله ﷻ د ډيرې لوئې فائدې دپاره ذريعه اوګرزوله او لوئې لوئې سفرونه په لږه موده کښې بغير دځه حرکت نه په آرام او په سکون سره قطع کيږی، دې وجې نه د دې نعمتونو په ذکر پسې ﴿وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ ذکر شولو.

| وَأَنْهَارًا | بِكُمْ | تَمِيدَ | أَنْ | رَوَاسِيَ | الْأَرْضِ | فِي | وَأَلْقَى |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او ايخې دی (الله) په زمکه کښې پاخه غرونه چه اونه خوزيږی زمکه په تاسو باندې او نهرونه (ئې پيدا کړی دی) | | | | | | | |
| وَسُبُلًا | لَعَلَّكُمْ | تَهْتَدُونَ ﴿١٥﴾ | وَعَلَامَاتٍ | وَبِالنَّجْمِ | هُمْ | يَهْتَدُونَ ﴿١٦﴾ | |
| او لارې لپاره د دې چه تاسو هدايت اوموميئ او (پيدا کړی ئې دی) ډيرې نخې او په ستورو سره دوئ لاره مومی | | | | | | | |
| أَفَمَنْ | يَخْلُقُ | كَمَنْ | لَا | يَخْلُقُ | أَفَلَا | تَذَكَّرُونَ ﴿١٧﴾ | |
| آيا پس هغه ذات چه پيدا کوی هرڅه [1] په شانته دهغه چا دې چه نشی پيدا کولې هيڅ څيز، آيا پس تاسو نصيحت نه اخلئ ؟ | | | | | | | |

﴿وَأَلْقَىٰ فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ﴾ (القی) په معنی دَ (جَعَلَ) او يا (خَلَق) دې (رواسی) وئيلې کيږی په يو ځائې باندې ولاړو غرونو ته ﴿أَن تَمِيدَ بِكُمْ﴾ په نزد بصريانو لفظ د کراهية ورسره مقدر دې او په نزد د کوفيانو د ((ان)) نه وروستو ((لا)) محذوف دې ((اي لان لا تميد بکم)) او (ميد) وئيلې کيږی ((الحرکة والاضطراب يمينا وشمالا)) ته يعنی هغه ګډوډ حرکت چه کله يو طرف ته وی او کله بل طرف ته ، کله چه اول دا زمکه پيدا شوه نو د کرويت د وجې نه په ادنی سبب سره به يې د کشتئ په شانتې يوطرف ته اوبل طرف ته حرکت کولو، الله ﷻ په دې کښې غرونه پيدا کړل ، او د دې بوج مرکز ثقل طرف ته شو نو هغه حرکت ئې ختم شو، او هر کله چه دنيا دار الاسباب ده نو د دې وجې نه الله انسان ته د تعليم دپاره په اسبابو سره دغه حرکت ختم کړو، ګني لله ﷻ په دې قادر دې چه نه ئې به زمکه کښې څه حرکت پيدا کړې وې اويا ئې بغير د غرونو نه دغه حرکت ختم کړې وې. ﴿وَأَنْهَارًا﴾ عطف دې په رواسی باندې او د اکثرو انهارو منابع هغه په غرونو کښې دی نو څکه رواسی پسې د

[1] نتيجه او ثمره چه مرتبه ده په دوه ذکر شوو دليلونو باندې.

انهارو ذكر اوشو، او ﴿وَسُبُلًا﴾ دا هم عطف دې په رواسي باندې اوپه بل ځائې كښې ﴿وَسَلَكَ لَكُمْ فِيهَا سُبُلًا﴾، (طه ۵۳) . ﴿لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ﴾ دا تعليل يا صرف د سبلاً سره تعلق لرى او يا د درې وارو (غرونو ، نهرونو ،او لارو ) سره تعلق لرى ځكه چه د غرونو او نهرونو په ذريعې سره هم ملكونه معلوميږى، او علاقې د يو بل نه جدا كوى، او يا دا كلام مبنى دې په توريه باندې او مقصد دادې چه دغه آثار اومقامات په بطلان دشرك او په وجود دفاعل حكيم باندې راهنمائى كونكى دى، (روح) ﴿وَعَلَامَاتٍ﴾ داهم عطف دې په رواسي باندې او مراد له علامات نه هغه نخې په لارو كښې دى چه د هغې په ذريعې سره تلونكى خپل مقصود ته رسى، لكه غر او گوذر او هوا وغيره شول، امام رازى رحمه الله په خپل تفسير كښې او شيخ الاسلام مولانا شبير احمد عثمانى رحمه الله په خپل تفسير كښې خپلې مشاهدې ذكر كړى دى، چه ځينى خلقو او بانډيچيانو (اعرابيانو) به د خاورې په بوئى سره د لارې پته لگوله ﴿وَبِالنَّجْمِ﴾ (النجم) نه مراد يا هغه څلور ستورى ((ثريا ، فرقدان ، بنات نعش، جدى)) دى، اويا ترينه مراد جدى او فرقدين دى او يا ترينه صرف جدى مراد دې چه ددې په ذريعې سره قبله معلوميږى او يا ((النجم)) اسم جنس دې اومراد ترينه جميع نجوم دى چه كله د شپې توره تياره شي نو مختلفو ستورو ته مسافر گورى، او دهغې په ذريعې سره لارې معلوموى ، حضرت والد صاحب د شاه منصور باباجى قول نقل كولوچه حضرت باباجى به فرمائل چه د ((النجم)) نه مراد علماء دى او چه څنگه غرونه، لارې، نهرونه د ظاهرى مقصد ته د رسيدو ذريعه ده دغه شان علماء باطنى او حقيقى منزل ته د رسيدو ذريعه ده. ﴿أَفَمَن يَخْلُقُ﴾ يَخلق دَپاره مفعول حذف دې چه (كل شئ) دې، دا نتيجه ذكر كيږى چه متفرعه ده په ماقبل دوارو دليلونو باندې چه دماقبل نه معلومه شوه چه دهر څه پيداكونكې الله دې ، او بتان چه مشركانو به ورته خپل خدايان وئيل هغوئ د هيڅ ځيزپه پيدايش باندې قادر نه دى ، نو معلومه شوه چه د دومره لوئ رب او د دې كمزورى مخلوق تسويه په عبادت كښې كول خلاف عقل دى، او دا تسويه نه ده پكار، په ﴿أَفَمَن﴾ كښې استفهام انكارى دې يعنې داسې نشى كيدې ، او ((فاء)) د راجع قول مطابق تفريعيه ده ﴿كَمَن لَّا يَخْلُقُ﴾ دا تشبيه مقلوبه ده په ظاهر كښې وئيل داسې پكار وو چه ((افمن لا يخلق كمن يخلق)) ځكه چه مشركينو غير خالق د خالق سره برابر كړې وو، خو داسې اونه وئيلې شو دپاره د دې چه دا رد او انكار د دوئ د اعتقاد موافق شي، ځكه چه دوئ بتانو ته خدايان وئيلى وو، بلكه د هغوئ په

عبادت کښې به ئې مبالغه کوله او هغوئ به ئې په منزله د اصل گر ځولي وو، او خالق حقيقي ئې په منزله د فرع گرځولې وو، نو د دې وجې نه کلا م په صورت دتشبيه مقلوبه کښې ذکر شو. او دغه شانتې په دې سورة کښې تنبيه ده په کما ل قبحه په فعل د هغوئ باندې چه د دوئ د دې عمل د وجې نه بتان د خپلې مرتبې نه اوچت نه شو، بلکه په دې سره د الله ﷻ انحطاط راځي د مرتبې د ربوبيت نه مرتبې د جماديت ته، او دا ډير قبيح دې «روح» او مراد په «من» سره يا ټول معبودان غير الله دي که هغه د ذوی العقولو نه وی او يا د غير ذوی العقولو نه او استعمال د من دوجې د تغليب نه دې. د ذوی العقولو په غير ذوی العقولو باندې، او يا د مشرکينو د اعتقاد موافق د غير ذوی العقولو او اصنامو سره معامله د ذوی العقو لو شوې ده، او «مَنْ» ورله استعمال شوې دې، او يا د «مَنْ» استعمال مشاکلة دې، چه په اول ځائ کښې استعمال د «من» اوشو نو مشاکلة ثانيا هم ذکر د «من» اوشو او يامراد په «من» سره صرف ذوی العقول دی، هر کله چه د ذوی العقولو عدم تسويه ثابته شوه نو د غير ذوی العقولو په طريقه اولی سره ثابته شوه.

| وَإِنْ تَعُدُّوا نِعْمَةَ اللَّهِ لَا تُحْصُوهَا ۗ إِنَّ اللَّهَ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝ |
|---|
| او کچرته شمارئ تاسو نعمتونه د الله، نشئ پوره راويستلې په شمار کښې هغې لره، بيشکه الله خامخا بخښونکې مهربان دې. |
| وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُسِرُّونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ۝ وَالَّذِينَ يَدْعُونَ |
| او الله پيژنی [1] هغه څه چه پټوئ تاسو اوهغه چه ښکاره کوئ تاسو. او هغه کسان چه دوئ [2] حاجتونه غواړی |
| مِنْ دُونِ اللَّهِ لَا يَخْلُقُونَ شَيْئًا وَهُمْ يُخْلَقُونَ ۝ أَمْوَاتٌ غَيْرُ أَحْيَاءٍ ۖ وَمَا يَشْعُرُونَ |
| سوا د الله نه نشی پيدا کولې هيڅ شې او دوئ پيدا کړې شويدی. دوئ مړه دی ندی ژوندی اونه پوهيږی دوئ |
| أَيَّانَ يُبْعَثُونَ ۝ |
| چه کله به دوباره ژوندی کيږی. |

﴿ وَإِن تَعُدُّوا ﴾ په دې کښې اشاره ده چه نعمتونه د الله ﷻ بې حسابه دی، صرف هغه نه دی چه

---

۱ - دريم دليل عقلی لپاره د نفی د شرک فی العلم.

۲ - نتيجه متفرعه په دلائل مذکوره ثلاثه.

کوم ذکر شول، ﴿إِنَّ اللَّهَ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ دغه شانتې ذکر په سورة ابراهیم آیت نمبر ۱ ۳۴، کښې هم وو خو هلته د آیت اختتام ﴿إِنَّ الْإِنسَانَ لَظَلُومٌ كَفَّارٌ﴾ سره شوې وو، وجه د فرق ئې داده چه هلته کښې د ناشکرۍ کونکو او ظلم اوشرك کونکو ذکر وو، نو د آیت د اختتام سره مناسب ظلوم او کفار وو، او په دې آیت کښې ذکر د تفضلاتو او انعاماتو د الله وو، اوبیا ورپسې بطور نتیجه ((افمن يخلق)) ذکر شو، دپاره د زجر ، په آخر کښې تنبیه هم ذکر شوه چه الله په دې دوه اوصافو باندې متصف دې که یو انسان د مخلوق عبادت پریږدی او د الله عبادت شروع کړی نو کړی گناهونه ب ورته الله معاف کړی، او رحم به ورباندې اوکړی (بحر) او امام رازی فرمائی چه په سورة ابراهیم کښې د دوه اصافو ذمیمه ؤ ذکر وو چه ظلوم او کفار دی، او په دې آیت کښې تفریعا الله ﷻ دخپلو اوصافو ذکر فرمائی، تفسیر ئې داسې دې چه دټولو نعمتونو خالق الله دې ، نو انسان ته الله ﷻ نعمتونه ورکړی دی، نو دا انسان اغستونکې د نعمتونو د الله شو، نو هر کله چه اغستونکې دنعمتونو شو نو د ده دپاره دوه صفتونه جوړ شو : ((ظلوم او کفار)) ځکه چه دې د الله د نعمتونو کما حقه شکریه نشی ادا کولې او دغه شانتې گناهونه ترینه هم صادریږی نو تفریعا په هغې باندې الله ﷻ په دې آیت کښې دخپلو دوو صفتونو ذکر اوکړو، که چرته، ته ظلوم ئې نو زه غفور یم ، اوکه ته کفار ئې نو زه رحیم یم (کبیر) ﴿وَاللَّهُ يَعْلَمُ﴾ دا دریم دلیل عقلی ذکر کیږی اومقصود ترینه نفی د شرك فی العلم ده، ﴿مَا تُسِرُّونَ﴾ مراد ترینه عقائد او د زړه ارادې دی ﴿وَمَا تُعْلِنُونَ﴾ مراد ترینه افعا ل او اعمال د جوارحو دی، (مظهری) ﴿وَالَّذِينَ يَدْعُونَ﴾ د درې دلیلونو د ذکر نه پس اوس تفریعات ذکر کیږ ی، نو دا په اول دوو دلیلونو باندې تفریع ده چه د دې دواړو دلیلونو نه معلومه شوه چه هر څه کونکې او متصرف صرف الله دې، دحاجتونو پوره کونکې هغه دې، ټول کاینات ئې پیدا کړی دی، او مخلوقات عاجزه دی او په خپل وجود کښې محتاج دی، نو هغوئ نه متصر ف دی او نه حاجتونه پوره کولې شی . ﴿أَمْوَاتٌ غَيْرُ أَحْيَاءٍ﴾ دا په دریم دلیل باندې تفریع ده چه په هر څه باندې عالم ذات صرف الله دې، او دمشرکینو معبودان هغه دائما یا مآلاً یا حالا مړه دی، او هغوئ د دوئ دغه دعا او عبادت نه ناخبره دی، نو لهذا د هغوئ عبادت هم نه دې پکار ، اله او معبو فقط الحی القیوم دې ، علامه آلوسی فرمائی چه په اموات کښې عموم مجاز دې او په ((والذین یدعون من دون الله)) سره مراد کل معبودان غیر الله دی، که هغه ذوی العقول دی یا غیر ذوی العقول دی، نو په غیر ذوی العقولو یعنی جمادا تو کښې دائما موت دې، حیات په کښې نشته دې.

او د ذوي العقولو دوه قسمه دي: ځيني هغه دي، چه له اول نه پکښې حيات وو خو حالاً مړه دي لکه عزير ﷺ (يا لکه نن صبا بزرګان شول) چه د هغوئ د قبرونو عبادت کيږي ، او ځيني هغه دي، چه حالاً ژوندي دي خو مآلا مړه دي، لکه عيسى ﷺ او فرشتې شوې ، نو اموات د عموم مجاز د وجې نه دې ټولو ته شامل شو ،او استدلال د قادياني عليه اللعنة پدې آيت سره صحيح نشو ۔ ﴿غَيْرُ أَحْيَآءٍ﴾ چه د (من دون الله) نه مراد د مشرکينو بتان شي، نو د راجح توجيه مطابق دا بيا تاسيس دي، ځکه چه بعض اموات شيونو کښې داسې وي چه وروسته حيات راتللې شي، لکه نطفه او د مشرکينو والا بتان داسې دي چه په دوئ پس روسشو هم حيات نشي راتلی ، اوکه د ﴿مِن دُونِ اللَّهِ﴾ نه مراد بطور عموم مجاز ټول معبودان شي، نو د راجح توجيه مطابق دا بيا تاکيد دې ﴿وَمَا يَشْعُرُونَ﴾ د غوره قول مطابق ضمير په (يشعرون) کښې آلهة ته راجع دې ، اوپه (يبعثون کښې عبادت کوونکو ته راجع دې، او دا ورته ټهکمًا وئيلې شوي دي چه تاسو د کومو معبودانو عبادت کوئ نو هغوئ ته د دې علم نيشته دې چه تاسو به کله په دويم ځلې ژوندي کيږئ ، چه د عبادت بدله تاسو ته در کړي، او کله چه هغوي ته د دويم ځلې د ژوندي کيدو علم نيشته دې نو تاسو ته بدله ستاسو د عمل نشي درکولې، او ياضمير نه دواړو کښې کفارو ته راجع دې، او مقصد دادې، چه دې کفارو ته دا علم نيشته دې چه دوئ به په دويم ځل کله ژوندي کيږي دپاره د عذاب ، او يا په دواړو کښې آلهة ته راجع دې ، او مراد ترې نفع د عالم الغيب بالکليه ده، يعنى د خپلو احوالو په باره کښې هم عالمان نه دي.

| إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ۚ فَالَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ قُلُوبُهُم مُّنكِرَةٌ |
|---|
| لائق د عبادت ستاسو [1] يو معبود دې، پس هغه كسان چه يقين نه لري په آخرت باندې زړونه د دوئ بد ګڼړي توحيد لره، |
| وَهُم مُّسْتَكْبِرُونَ ۝ لَا جَرَمَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا |
| او دوئ لوئي کونکي دي. حقه ده دا خبره [2] چه بيشكه الله پوهيږي په هغه څه چه دوئ يې پټوي اوپه هغه څه |

۱ - اعاده ذ دعوی د سورت.

۲ - اعاده د نتيجې.

| |
|---|
| يُعۡلِنُوۡنَ ؕ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الۡمُسۡتَكۡبِرِيۡنَ ۝ وَاِذَا قِيۡلَ لَهُمۡ |
| چه دوئ ئې ښکاره کوي . بېشکه الله محبت نه کوي د لوئي کوونکو سره او په هغه وخت کښ چه او وئيلې شي[1] دوئ ته |
| مَّاذَاۤ اَنۡزَلَ رَبُّكُمۡ ۙ قَالُوۡۤا اَسَاطِيۡرُ الۡاَوَّلِيۡنَ ۝ لِيَحۡمِلُوۡۤا |
| چه څه شې نازل کړيدې رب ستاسو؟ دوئ وائي د دروغو قصې دي د مخکنو خلکو لپاره د دې چه اوچته وي به دوئ |
| اَوۡزَارَهُمۡ كَامِلَةً يَّوۡمَ الۡقِيٰمَةِ ۙ وَمِنۡ اَوۡزَارِ الَّذِيۡنَ يُضِلُّوۡنَهُمۡ |
| پېتې (بوجونه) خپل پوره پوره په ورځې د قيامت او د پېتو (بوجونو) د هغه چا نه چه گمراه کړي وو دوئ هغوئ لره |
| بِغَيۡرِ عِلۡمٍ ؕ اَلَا سَآءَ مَا يَزِرُوۡنَ ۝ |
| بغير د څه دليل نه، خبردار شئ! ډېر بد دي هغه څه چه دوئ ئې پورته کوي . |

﴿ اِلٰهُكُمۡ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ﴾ دا په دويم ځلې دعوى د سورة ذکر شوه سره د تفريع نه په ماقبل دليلونو باندې ﴿فَالَّذِيۡنَ ﴾ دا زجر دې نه منونکو ته، او په ذکر کولو د «فا» سره اشاره ده ديته چه د دوئ اصرار په کفر او دوام په استکبار دا واقع شوې دې، په ځائ د نتيجې ددلائلو باندې، او په صله کښ اشاره ده علت د کفر او استکبار ته، چه د دوئ اصرار په کفر او دوام په استکبار د وجې د يقين نه ساتلو دې په ورځې د قيامت باندې ، اوکله چه د انکار دپاره محل زړه وو نو ددې وجې نه نسبت ئې زړه ته اوشو ، او د استکبار اسناد زړه ته اونه شو ، ځکه چه دا ښکاره کيږي په قو ل او عمل سره ﴿ لَا جَرَمَ ﴾ دا هم زجر دې ، په استکبار د توحيد نه ، او اعاده د نتيجې کيږي ﴿اَنَّ اللّٰهَ يَعۡلَمُ مَا يُسِرُّوۡنَ ﴾ په دې کښ اشاره ده غلطو عقائدو ا و انکار د زړه ته ﴿وَمَا يُعۡلِنُوۡنَ ﴾ او په دې کښ اشاره ده استکبار ظاهر ی ته، ﴿اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الۡمُسۡتَكۡبِرِيۡنَ ﴾ ذکر د استکبا ر اوشو نه د تکبر ځکه چه استکبار هميشه دپاره مستعمليږي په ناحقه لوئي کښ په خلاف د تکبر نه چه دا کله کله مستعمليږي په لوئي د هغه چا کښ چه هغه لره حق د لوئي وي، د دې وجې نه دا الله ﷻ په اسماؤ کښ متکبر هم دې نو استکبار زيات قبيح وو ، د دې وجې نه ذکر شو ﴿ وَاِذَا قِيۡلَ لَهُمۡ ﴾ په دې کښ شکوه

---

۱ - شکوی.

ذكر كيږي په مشركينو باندې، قائل د دې قول عند البعض نذربن حارث دې، يا تو ل كافر دى. يعني چه كله دوئ ته اوئيلى شى چه په دې قرآن كښې توحيد وغيره نازل شوى دى. ددې په باره كښې تاسو څه وايئ؟ نودا كفار جواب كوى چه دا ﴿أَسَٰطِيرُ ٱلۡأَوَّلِينَ﴾ دى چه د پخوانو خلقو د دروغو قصې دى، يعني افسانې دى، ﴿لِيَحۡمِلُوٓاْ﴾ دا تخويف اخروى دې، او لام دپاره د عاقبت دې يعنى د دوئ د دې خبرو انجام به په آخرت كښې داوى چه په دوئ باندې به د خپلې گناه پيتې او دهغه خلقو دگناه پيتې چه د دوئ د وجې نه گمراه شوى دى بار شى، او يالام تعليليه دې يعنى ددوئ د دې خبرو علت دادې چه په دې سره دوئ خلق گمراه كوى (اي قالو ذلك اضلالا للناس وصدًا عن رسو ل الله ﷺ) (كشاف) او يا لام امر دې، او دا دوئ ته تهديداً وئيلې شوى دى، ﴿كَامِلَةً﴾ يعنى د دوئ په دې گناهونو كښې به څه قسم كمې نه راځى ، او دا د دفع د توهم دپاره اوئيلې شو نو كيدې شى چه دوئ ځينى گناهونه په سبب د هغه تكليفو نو چه دوئ ته رسيدلى دى په دنيا كښې يا دوئ نيك كارونه كړى دى په دنيا كښې، د هغې دوجې نه دې معاف شوى وى، الله ﷻ اوفرمائل چه ﴿كَامِلَةً﴾ چه څه قسم كمې به پكښې نه وى، او په دې كښې اشاره ده چه دمؤمينو د ځينى گناهونو عذاب الله ﷻ هغوئ ته معاف كوى ، ((هذا يدل على انه تعالى يسقط بعد العقاب عن المومنين اذ لوكان هذا المعنى حاصلا فى حق الكل لم يكن لتخصيص هولاء الكفار لهذا التكميل معنى)) (كبير) ﴿وَمِنۡ أَوۡزَارِ﴾ بعضې فرمائى چه ((من)) تبعيضيه دې، ليكن زياته راجحه داده چه من دپاره د جنس دې ، او مقصد دادې چه هغه ټول گناهونه چه د دوئ د وجې نه ددوئ متبعينو كړي دى هغه به هم په دوئ بار شى (اي يحملون كل اوزار الذين يضلونهم) (فتح القدير) او صاحب د زاد المسير فرمائى : ((من )) زائده دې د تاكيد د كلام دپاره راوړې شوې دې، په دواړو صورتو كښې معنى ئى يو شانتې ده، او دغه شانتې مضمون په سورة عنكبوت آيت نمبر (١٣) كښې هم ذكر دې ﴿بِغَيۡرِ عِلۡمٍۚ﴾ دا حال دې د ((هم)) ضمير مفعول نه ، او په دې كښې اشاره د ه چه د دوئ متبعين ټول جاهلان دى اوپه ذوى العقولو باندې د دوى مكر نه چليږى ، او په دې كښې تنبيه ده چه د متبعين والا جهل عذر نه دې، ځكه چه دوئ دپاره تحقيق كول پكاروو چه دحق او باطل فرق ئى كړې وي ((اي لانه كان عليه ان يبحث وينظر بعقله حق يميز المحق والمبطل)) ، (كشاف) .

قَدْ مَكَرَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَأَتَى اللَّهُ بُنْيَانَهُمْ

په تحقیق سره مکر کړی وو [۱] هغه کسانو چه مخکښې تیر شویدی د دوئ نه پس راغی (حکم، عذاب) د الله بنیادونو د دوئ ته

مِنَ الْقَوَاعِدِ فَخَرَّ عَلَيْهِمُ السَّقْفُ مِنْ فَوْقِهِمْ وَأَتَاهُمُ الْعَذَابُ

د ویخونونه پس را پریوتلو په دوئ باندې چت دپاسه د دوئ نه او راغی دوئ ته عذاب

مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُونَ ۝ ثُمَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُخْزِيهِمْ وَيَقُولُ أَيْنَ

د داسې ځائ نه چه دوئ نه پوهیدل . بیا په ورځې د قیامت [۲] رسوا به کړی دوئ او اوبه وائی (الله) کوم ځائ دی

شُرَكَائِيَ الَّذِينَ كُنْتُمْ تُشَاقُّونَ فِيهِمْ قَالَ الَّذِينَ

شریکان خما هغه چه مخالفت به کولو تاسو (دمؤمنانو سره) په باره د هغوئ کښې اوبه وائی هغه کسان

أُوتُوا الْعِلْمَ إِنَّ الْخِزْيَ الْيَوْمَ وَالسُّوءَ عَلَى الْكَافِرِينَ ۝ الَّذِينَ

چه ورکړې شوې دې هغوئ ته علم چه بیشکه رسوائی د نن ورځې او عذاب ټول په کافرانو باندې دې . (دا) هغه کسان دی

تَتَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي أَنْفُسِهِمْ فَأَلْقَوُا السَّلَمَ

چه مره کوی دوئ لره فرشتې په داسې حال کښې چه ظلم کوونکی دی په ځانونو خپلو باندې پس مخکښې به کړی دوئ روغه (صلحه)

مَا كُنَّا نَعْمَلُ مِنْ سُوءٍ بَلَى إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ۝ فَادْخُلُوا

چه ندې کړې مونږ عمل څه قسم بد ، (داسې نده) بلکه بیشکه الله پوهه دې په هغه کارونو چه تاسو کول . پس ورننوځئ تاسو

أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا فَلَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ ۝

دروازو د جهنم ته چه همیشه به وبئ په دې کښې پس خامخا بد ځائ د استوګنې دې (داجهنم) د لوئی کوونکو لپاره

﴿ قَدْ مَكَرَ الَّذِينَ ﴾ په دې آیت کښې تخویف دنیوی بیانیږی ، سره د مثا ل نه د امم

---

۱ - تخویف دنیوی.

۲ - تخویف اخروی

سابقينو نه ﴿فَأَتَى ٱللَّهُ﴾ بعض مفسرينو دا په حقيقت باندې محمول كړې دې، او دا آيت ئې حمل كړې دې په نمرود باندې ، چه هغه يو لوئ محل تعمير كړې وو د پار. د ختلو آسمان ته، حضرت ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه د هغې اوږدوالې په بره پنځه زره ګزه وو، او پلنوالې ئې درې زره ګزه وو، نو الله پاك پرې هوا اوچلوله نو هغه ئې منهدم كړو او ځينې مفسرينو د دې مصداق قوم لوط ګر خولې دې ، چه الله تعالى د هغوئ پوره ملك د هر څه سره تباه كړې وو، ليكن غوره قول دادې چه دا كلام مبنى دې په تمثيل باندې ، او مراد ترينه د مخكنو قومونو مكر دى، چه هغه په شانتې د لويو لويو محلونو وو چه بنيادونه او بيخ ئې خه مضبوط وو ليكن ناګهانه دا چت په دوئ راپريوځى ، او دغه شانتې د كافرانو تدبيرونه هم الله ناكام كړل ، او دوئ ئې هلاك كړل ، نو الله ﷻ مشركين مكه ته هم فرمائى چه د پيغمبر مخالفت پريږدئ ، كنې ستاسو هره منصوبه به د ستاسو دهلاكت ذريعه ګرځى ، ﴿فَخَرَّ عَلَيْهِمُ ٱلسَّقْفُ مِن فَوْقِهِمْ﴾ په زياتوالى د فوق كښې اشاره ده چه د دوئ تدبيرونه ددوئ د هلاكت ذريعه اوګرزيده، ځكه چې كله داسې وى چې محض هغه تدبير او مكر ناكام كړې شى،او كله داسې وى چې هغه تدبير د تدبير كوونكو دَ هلاكت ذريعه اوګرځى، نو په ﴿مِن فَوْقِهِمْ﴾ كښې دې قسم ثانى ته اشاره ده ﴿وَأَتَىٰهُمُ ٱلْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ﴾ مراد ترينه عذاب عاجل يعنى دنيوى عذاب دې ﴿ثُمَّ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ﴾ دا تخويف اخروى دې يعنى په دنيا كښې هم دوئ ته ددوئ د تدبيرونو سزا ملاؤشوه،او په قيامت كښې هم لويه رسوائى به ورله وى، «ثم» دپاره د تراخى د زمانې ده، او په دې كښې اشاره ده فرق ته په ما بين دعذاب دنيوى او عذاب اخروى كښې او معطوف عليه ورله مقدر دې ((فعلهم الله فى الدنيا ثم يعلمهم فى العقبى)) (روح) او تقديم دظرف په فعل باندې دپاره دقصر دمخصوصې رسوائى دې په ورځ دقيامت، يعنى دغه مخصوصه رسوائى چې وروستو را روانه ده ﴿وَيَقُولُ أَيْنَ﴾ سره، نودغه مخصوصه رسوائى منحصره ده په ورځ دقيامت پورې، او يا وجه داده چې اصل رسوائى هغه دآخرت ده چې دخول دې نار ته،او هغه فردكامل درسوائى دپاره دې لكه الله تعالى فرمائى ﴿رَبَّنَآ إِنَّكَ مَن تُدْخِلِ ٱلنَّارَ فَقَدْ أَخْزَيْتَهُۥ﴾ (آل عمران ۱۹۲) نو ددې وجې نه په حصر سره ذكر شو ﴿وَيَقُولُ﴾ توبيخا به ورته اوئيلې شى ﴿أَيْنَ شُرَكَآءِىَ﴾ اضافت دشركاء خپل ذات ته كول دَ وجې داعتقاد دهغوى نه دى ((اى بزعمكم فى دعواكم اى الهة اللتى عبدتم دونى)) (قرطبى) او مقصد داستفهام نه استحضار د بتانويا دَ معبودانو دې، دپاره

دشفاعت او یا د مدافعت د عذاب په طریقې داستهزاء سره ﴿تُشَٰٓقُّونَ فِيهِمْۚ﴾ یعنی تاسو به جګړې کولې دهغوئ په شان کښې یا «فاء» سببیه ده ((ای تعادون انبیائی بسببهم)) (قرطبی) ، ﴿قَالَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡعِلۡمَ﴾ دغوره قول مطابق مراد انبیاء کرام او مؤمنین دی ((وهم الانبیاء والمؤمنون الذین اوتوا علمًا بدلائل التوحید وکانوا یدعونهم فی الدنیا الی التوحید فیجادلونهم)) ، (روح) .

﴿إِنَّ ٱلۡخِزۡيَ﴾ مراد ترینه کامله رسوائی او ماهیت د رسوائی ده،چې دا خاص دې په کافر پورې، او آیت نه استدلال کول په دې چې عصاة المؤمنینو دپاره عذاب باالکلیه نشته او دنیك اعمالو څه فائده نشته، نۀ دبدو اعمالو څه نقصان شته، لکه څنګه چې مرجئه وائی بطلان ئې ظاهر دې ﴿وَٱلسُّوٓءَ﴾ نور انواع دعذابونو ترینه مراد دی یا تاکیداً ذکر دې «روح» ﴿ٱلَّذِينَ﴾ دا صفت دې د ﴿ٱلۡكَٰفِرِينَ﴾ دپاره په دې کښې یوه بله وجه دعذاب بیانیږی چې د زنکدن په وخت کښې کله چې دوئ دعذاب معائنه اوکړی نو دوئ به منقاد شی او دشرك کولو نه به انکار اوکړی لیکن په دې وخت کښې به ددوئ توبه نه قبلیږی ﴿ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ﴾ مراد ترینه حضرت ﷺ عزرائیل او دهغه ما تحت اعوان دی ﴿ظَالِمِيٓ أَنفُسِهِمۡۖ﴾ دا حال دې دضمیر منصوبه د «تتوفهم» نه ﴿فَأَلۡقَوُاْ ٱلسَّلَمَ﴾ مراد ترینه انقیاد او دهغوئ خضوع ده او په کمال خضوع باندې لفظ د «القی» استعمال شو چې اصل استعمال دهغې دپاره داجسامو دې او دا جمله دماقبل جملې ﴿وَيَقُولُ أَيۡنَ شُرَكَآءِيَ﴾ په جواب کښې ده ﴿مَا كُنَّا نَعۡمَلُ﴾ منصوب دې بنا په دې چې قول ورله مقدر دې او هغه حال واقع شوې دې د ضمیر د «القو» نه ((ای القوالسلم قایلین ماکنا نعمل)) (روح) اویا تفسیر د «السلم» دپاره دې او مقصد دادې چې دوئ به په دغه وخت کښې غاړه کیږدی داسلام قبلولو ته ،او دشرك نه به انکار او کړی، لکه په سورة انعام کښې نقل شوی دی چې دوئ به وائی ((والله ما کنا مشرکین)) ، (الانعام ۲۳) ﴿بَلَىٰٓۚ إِنَّ ٱللَّهَ﴾ دا رد دې ددوئ ددغې انکار نه اوقائل ددې یا اولواالعلم دی یا فرشتې دی ، او یا الله ﷻ دې . ﴿فَٱدۡخُلُوٓاْ﴾ دا هم تخویف اخروی دې او ((فیقال لهم)) ورسره مقدر دې، او دا به د مرګ په وخت کښې د دوئ روحونو ته اوئیلې شی، نو د مرګ نه پس به ئې روحونه جهنم ته لاړشی، او بدن ته به ئې سختی په واسطه د روح سره رسی لکه څنګه چه په دنیا کښې روح ته تکلیف په واسطه د بدن سره رسی، او په قیامت کښې به ئ ارواح په بدنونو کښې واچولې شی او جهنم ته به د همیشه

دپاره داخل شی.دا دلیل شو په عذاب قبر باندي . ﴿أَبْوَٰبَ جَهَنَّمَ﴾ په دې کښې اشاره ده فرق د مراتبو ته په اعتبار د عذاب سره څکه چه مختلفې دروازې به د مختلفو صنفونو د کفارو دپاره وی او د هرې دروازې عذاب به د بلې نه سخت وی، (اعاذنا الله منها) او دا تفسیر په سورة حجر . آیت نمبر (۴۴) کښې تیر شوې دې ﴿فَلَبِئْسَ مَثْوَى ٱلْمُتَكَبِّرِينَ﴾ مخصوص بالذم ورله مقدر دې ((ای جهنم)) په ذکر د عنوان دمتکبرینو کښې اشاره ده علتیت د انکار او دخول فی النار ته

| وَقِيلَ لِلَّذِينَ اتَّقَوْا مَاذَا أَنزَلَ رَبُّكُمْ قَالُوا |
|---|
| او چه اوویلې شی [1] هغه کسانو ته چه ځان نی ساتلې وی د شرک نه چه څه شې نازل کړیدې رب ستاسو؟ وائی دوئ |
| خَيْرًا ۗ لِّلَّذِينَ أَحْسَنُوا فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ ۚ |
| چه خیر (نازل کړیدې) لپاره دهغه کسانو چه نیکی کوی (په توحید منلو سره) په دې دنیا کښې (هغوئ لره) ښه ژوند دې |
| وَلَدَارُ الْآخِرَةِ خَيْرٌ ۚ وَلَنِعْمَ دَارُ الْمُتَّقِينَ ۝ جَنَّاتُ عَدْنٍ |
| او خامخا کور د آخرت ډیر غوره دې ، او خامخا ډیر ښه دې کور د متقیانو چه هغه جنتونه د همیش والی دی |
| يَدْخُلُونَهَا تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ۖ لَهُمْ فِيهَا مَا يَشَاءُونَ ۚ |
| داخلیږی به هغې ته چه بهیږی به دلاندې دهغې ونونه نهرونه، لپاره د دوئ په هغې کښې هغه څه دی چه دوئ نی غواړی |
| كَذَٰلِكَ يَجْزِي اللَّهُ الْمُتَّقِينَ ۝ الَّذِينَ تَتَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ طَيِّبِينَ ۙ |
| دغه شان بدله ورکوی الله پاك متقیانو ته. دا هغه کسان دی چه وفات کوی دوئ لره فرشتې په داسې حال کښې چه پاك وی (د شرك نه |
| يَقُولُونَ سَلَامٌ عَلَيْكُمُ ۙ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ۝ |
| وائی به فرشتې سلامونه دې وی په تاسو باندې ، داخل شئ تاسو جنت ته په سبب د عملونو ستاسو |

﴿وَقِيلَ لِلَّذِينَ ٱتَّقَوْا۟﴾ د کفارو حال او دهغوی دپاره تخویف ذکرکولو نه پس اوس د مؤمنانو حال او د هغوئ دپاره بشارت دنیوی او اخروی ذکر کیږی ﴿ٱتَّقَوْا۟﴾ اشاره ده چه دا جواب د دوئ د وجو

[1] . بشارت.

د تقوی نه دي ﴿مَاذَآ أَنزَلَ﴾ په معنی د (ای شئ) سره دي . يعنی چه کله دمؤمنانو نه دقرآن په باره کښې تپوس وشی ﴿قَالُوا۟ خَيْرًا﴾ دا په مقابله د قول دمشرکانو کښې دي . چه مخکښې تير شوي دي . يعنی مؤمنان وائی چه الله سراسر خير اوهدايت نازل کړي دي او هر کله چه مشرکانو ايمان نه لرلو په نزول د قرآن نو قول د هغوئ چه اساطير الاولين دي په رفع سره ذکر شو نو ځکه هغه خبر دي د مبتدا محذوفې دپاره يعنی ((هو اساطير الاولين)) چه دا قرآن نازل شوي نه دي بلکه دا اساطير الاولين دی او مؤمنانو چه ايمان لرلو په نزول د قرآن باندې نو قو ل د دوئ ذکر شو په نصب سره ځکه چه دا مفعول د فعل مقدر دپاره دي نو تقدير ئې دادي . ((انزل الله خيرا)) يعنی د الله دطرف نه خير نازل شوي دي ﴿لِّلَّذِينَ﴾ دا يا بد ل دي د خير نه ، او يا دا خبر مقدم دي ، او ﴿حَسَنَةٌ﴾ ورله مبتداء موخره ده، اومراد د احسان نه نيك اعمال دی، لکه عقيده د توحيد وغيره شو. ا و مراد د «حسنة» نه اکثر مفسرين فرمائی چه نصرت، فتح او غنيمت دي ((اي اليوم حسنة في الدنيا من النصر والفتح والغنيمة ))، (قرطبي) اودا بشارت دنيوی دي ، امام رازی فرمائی چه دا احتمال هم کيدې شی چه ددې نه مراد هغه ترقی شی په سلوك کښې او مقصد د آيت دادې چه کله تاسو احسان اوکړو نو د الله د طرف نه به په تاسو باندې دروازې د مکاشفاتو ، مشاهداتو او الطافاتو خلاصې شی، (کبير) ﴿وَلَدَارُ ٱلْـَٔاخِرَةِ﴾ دا بشارت اخروی دي ، ﴿وَلَنِعْمَ دَارُ﴾ مخصوص بالمدح ورله مقدر د ې چه ((دار الاخرة)) دي .

**فائده** . په تير شوی آيت د تخويف کښې ذکر د «مثوی» وو او په دې آيت کښې ذکر د «دار» دي ، وجه د فرق ئې داده چه مثوی هغه مقام ته وائی چه بغير د رضا او دَ اختيا رنه وی، نو هغه مقام د جهنم دي ځکه چه هغې ته د کافر رضا او اختيار به نه وی،ا و دار هغه مقام ته وائی چه په رضا او اختيا رسره حاصليږی چه هغه جنت دې نو ځکه ذکر د دار اوشولو .

﴿ جَنَّٰتُ عَدْنٍ ﴾دا يا بدل دي ، د «دارُالمتّقين» نه او يا خبر دي د مبتداءٔ محذوف دپاره چه «هي» دي په دې کښې تفصيل د بشارت اخروی بيانيږی ، ﴿ لَهُمْ فِيهَا مَا يَشَآءُونَ ﴾ يعني کوم شې چه د دوئ د زړونو خواهش وی هغه به ورته ملاويږی ، په يو حديث کښې راغلی دی چه ذکر کړي دي ابن کثير چه په جنت کښې به يو وريځ په مجلس د جنتيانو تيره شی نو ځوك چه د څه څيز خواهش کوی هغه به په هغه باندې د هغه څيز باران کوی، حتی چه يو جنتی به ورته اوايی چه په ما باندې د

کواعب اتراب یعنی د ځوانو او همزولو جینکو باران اووروه نو په هغه باندې به د هغې باران اورووی . «اللهم ارزقناه» ﴿يَجْزِي اللَّهُ الْمُتَّقِينَ﴾ مراد ترینه راسخین فی التقوی دي ﴿الَّذِينَ تَتَوَفَّاهُمُ﴾ په دې کښې ذکر د حالت د ځنکدن دې د مومنانو په مقابله د حالت د ځنکدن د مشرکانو کښې ﴿طَيِّبِينَ﴾ په دې کښې ډیر توجیهات شوی دی خو غوره توجیه داده چه «طیبین» حال دې د ضمیر دمفعوله د «توفهم» نه . او ذکر شوې دې په مقابله د ((ظالمی انفسهم)) کښې ﴿يَقُولُونَ﴾ دا به ورته د وفات په وخت کښې دپاره د بشارت وائی چه تاته د هر قسم مصیبت نه سلامتیا ده ((ان الملئكة تقبض ارواح هولاء المتقين وهي تقول لهم سلام عليكم صيروا الى الجنة)) (طبری) ابن جریر . طبری ، او بیهقی په خپلو اسنادو سره ، د محمد ابن کعب القرظی نه روایت نقل کړې دې ، چه کله ملك الموت د مؤمن روح قبض کولو له راشی نو د ټولو نه اول ورته سلام اوائی، ((السلام عليك يا ولی الله)) او بیا ورته اوائی : ((الله يقرء عليك السلام)) چه الله تاته سلام وائی او بیا د هغې نه روستو د ده روح قبض کړی ، «طبری ج۷، ۵۸۱» ﴿ادْخُلُوا الْجَنَّةَ﴾ دا خطاب ارواحو ته دې یا د وفات په وخت کښې به وی. لکه څنګه چه د وفات نه روستو د کافر روح جهنم ته ځی او دکافر بدن ته د روح په واسطې سره تکلیف رسی نو دغه شان د مؤمن والا روح به جنت ته ځی ، او د هغه بدن ته هم د روح په واسطې سرور او خوشحالی رسیږی ، او د دې وجې نه قبر ته په حدیث کښې باغیچه وئیلي شوې ده ((القبر روضة من رياض الجنة)) په دې توجیه باندې دا آیت به د مخکښې آیت پشان شی، اویادا خطاب به په ورځې د قیامت کښې وی ځکه چه متبادر د دخول نه دخول د ارواحو سره د.ابدانو دې.

| |
|---|
| هَلْ يَنْظُرُونَ إِلَّا أَنْ تَأْتِيَهُمُ الْمَلَٰئِكَةُ أَوْ يَأْتِيَ أَمْرُ رَبِّكَ ۚ |
| انتظار نه کوی [1] دوئ مګر دې خبرې ته (انتظارکوی) چه راشی دوئ ته فرشتې (د عذاب) او یا راشی حکم (عذاب) د رب ستا |
| كَذَٰلِكَ فَعَلَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ وَمَا ظَلَمَهُمُ اللَّهُ وَلَٰكِنْ كَانُوا |
| دغه شان کار کړې وو هغه چا چه مخکښې تیر شویدی د دوئ نه او ظلم نه وو کړې په دوئ باندې الله لیکن وو دوئ |

---

۱ - تخویف دنیوی.

| أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ۞ فَأَصَابَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا عَمِلُوا وَحَاقَ بِهِم |
|---|
| چه په خپلو ځانونو باندې ئې ظلم کولو. پس اورسيدلې دوئ ته ناکاره سزاګانې د عملونو د دوئ اوګېر کړی دی دوئ لره |
| مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ ۞ |
| هغه عذاب چه وو دوئ په هغې پورې به ئې توقې کولې |

﴿ هَلْ يَنظُرُونَ ﴾ په دې کښې د تخويف دنيوی ذکر کيږی نه منونکو ته چه دومره وضاخت نه وروستو هم دا کافران مسئله دتوحيد نه منی او ايمان نه راوړی پشانتې د متقيانو نو بيا چه کله ملائك راشی دپاره د قبض د ارواحو ددوئ او ياپه دوئ باندې د الله عذاب راشی نو په هغه وخت کښې به ايمان راوړی ، او دغه ايمان به ئې قبول نه وی، او دوئ شمارل د منتظرين نه دا مجازا دی، ځکه چه دوئ د دغه وخت انتظار نه وو کړې ، خو ليکن چه کله هم دغه امور واقع شی نو دوئ به ايما ن داسې قبلوی لکه په شانتې د منتظر نو ځکه تعبير ترينه په منتظر سره اوشو ﴿أَن تَأْتِيَهُمُ الْمَلَائِكَةُ﴾ دپاره دقبض د ارواحو او بعضې فرمائی چه اتيان د ملائکو دپاره د تصديق د نبوت د حضور ﷺ مراد دې ﴿أَوْ يَأْتِيَ أَمْرُ رَبِّكَ﴾ مراد ترينه عذاب الهی دې ، ځينې تشريح د دې آيت په سورة الانعام (۱۵۸) کښې تيره شوې ده، ﴿كَذَٰلِكَ﴾ يعنې دا څه نوې خبره نه ده، بلکه مخکښې کفارو به هم دغه شانتې خبرې کولې، په دې آيت کښې تقديم او تاخير شوې دې ، اصل کښې داسې دې ((كذالك فعل اللذين – الخ فاصابهم – الخ)) او مراد د سيئات نه سزاګانې دی او هر کله چه دغه سزاګانې سختې او ډير قسمونه ئې وو، نو دې وجې نه ورله لفظ دجمع «سيئات» راوړې شو

| وَقَالَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا عَبَدْنَا مِن دُونِهِ |
|---|
| او وائی هغه کسان [1] چه شرك ئې کريدې کچرته خوښه شوې وې د الله نو عبادت به نه وو کړې مونږ ما سوا د الله نه |
| مِن شَيْءٍ نَّحْنُ وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِن دُونِهِ مِن شَيْءٍ ۚ كَذَٰلِكَ |
| د بل هيڅ څيز، نه مونږ اونه مشرانو زمونږ ، اونه به حرام کړې وو مونږ سوا د الله «دحکم نه» څه څيز ، دغه شان |

---

۱. شکوی سره دجواب شکوی.

فَعَلَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ فَهَلْ عَلَى الرُّسُلِ إِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ۝

کار کړي وؤ هغه کسانو چه مخکښې تیر شوی دی د دوئ نه پس نیشته په رسولانو باندې مگر رسول دی صفا (ښکاره)

﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ﴾ دا شکوی ده او دَ مشرکانو دلیل ذکر کول او د هغې نه جواب دې، مشرکانو د خپل شرک د جواز دپاره دلیل ویلو چه که چرته زمونږ شرک الله ته خوښ نه وی نو نه به مونږ شرک کړې وو او نه زمونږ پلارانو او نیکونو ، ځکه چه هر کار د الله په اراده او مشیت سره کیږی نو زمونږه شرک هم د الله په مشیت او ارادې سره دې ، او دا خبره چه دوئی کوله یا ئی عقیده همدغه شانتې وه چه هر کار په مشیت او اراده د الله تعالی سره وی او یا ئی الزاماً وئیل مؤمنانو ته چه تاسو خو هرڅه په مشیت او په ارادې دالله تعالی سره وایئ نو زمونږ دا کفر هم په مشیت او په ارادې د الله تعالی سره دې. نو د دوئ دَ دلیل خلاصه داده چه دوئ جاهلانو اراده او رضاء دَ الله تعالی یوه گرځولې وه او په دې کښې دَ تلازم قائل نه وؤ، حالانکه په دې کښې فرق دې، معصیت او کفر دَ بنده په ارادې د الله تعالی سره دې لیکن په رضاء دَ الله تعالی سره ندې ، الله تعالی فرمائی : ﴿وَلَا يَرْضٰى لِعِبَادِهِ الْكُفْرَ﴾ دَ دې آیت ښینې تشریح په سورة الانعام آیت نمبر (۱۴۸) کښې تیره شوې ده .﴿مَا عَبَدْنَا مِنْ دُوْنِهٖ﴾ په دې کښې اشاره ده شرک فی العبادة ته ﴿وَلَا حَرَّمْنَا﴾ لکه سائبې او بحیرې شولې ، دا اشاره ده شرک فی التحلیل والتحریم ته، او تخصیص دَ دې دوارو قسمونو دَ شرک لپاره دَ حصر ندې بلکه وجه دَ تخصیص ئی شهرت اوعظمت دې چه دَ دوئ په شرکونو کښې دا دواړه قسمونه لوئ هم وؤ او مشهور هم وؤ، نو د دې وجه نه خاص کړې شو په ذکر سره ﴿كَذٰلِكَ فَعَلَ الَّذِيْنَ﴾ دا اول جواب دې د دوئ د دغه استدلال نه او دا جواب په شان دَ جواب الزامی دې، ((فعل)) په معنی د کذیب او استهزاء سره دې او ((فَاَهْلَكُوْا)) ورسره مقدر دې (( ای مثل هذا التكذيب والاستهزاء فعل من كان قبلهم بالرسل فاهلكوا)) ، (قرطبی) . نو د دې جواب خلاصه داده چه دا تلازم به مخکنو کفارو هم لازمولو او کچرته دا تلازم ثابت وې او شرک مرضی دَالله تعالی وې نو مخکنی کفار به ئی ولې هلاکول؟ نو دَ هغوئ هلاکت دا په دې دلیل دې چه شرک مرضی دَ الله تعالی ندې ﴿فَهَلْ عَلَى الرُّسُلِ﴾ دا دویم جواب دې چه مرضی دَالله تعالی هغه ده چه دَ کومې دَ تبلیغ لپاره ئی انبیاء کرام مامور کړی وؤ، او دهغې تبلیغ ئی په انبیاء کرامو او په مسلمانانو واجب کړې دې، نو دَ خپلې مرضی ظاهرولو لپاره ئی انبیاء کرام په دَعوت او تبلیغ باندې مامور کړی وؤ، باقی ایمان راوړل یا نه راوړل دا موقوف دی په ارادې د الله تعالی باندې، نو اراده د الله تعالی عامه ده چه متعلقه کیږی په افعال شرعیه، کونیه دواړو پورې او مرضی د الله تعالی دا خاصه ده متعلقه کیږی په افعال

شرعیه او امور حسنه پورې، نو مشیت او اراده دالله تعالی په دوه قسمه شوه يوې ته مشيت كونيه وئيلې كيږي او بلې ته مشيت شرعيه وئيلې كيږي، نو استدلال په افعال شرعيو كښې په ارادې او په مشيت كونيه سره كول دا باطل دي بلكه په مشيت او ارادې كونيه سره استدلال په افعال كونيه پورې متعلق كيږي لكه تور والې او سپين والې د انسان شو يا دغه شانتې نور امور تكوينيه شول.
او په افعال شرعيو كښې به استدلال په مشيت شرعيه سره (چه هغه عبارت دې د رضاء د الله تعالى نه) كولې شى، اوكچرته اراده او رضا يوه شى نو لازم به شى جبر په انسان، او تالى باطل دې فالمقدم مثله، هرچه دليل د تلازم دې نو هغه دادې چه په كوم شى پورې اراده د الله تعالى متعلقه شى نو هغه شې وجود ته رازى نو كچرته اراده او رضا متحد شى نو په هر انسان كښې به مرضيات د الله تعالى بالجبر حاصل شى، او هرچه دې بطلان التالى نو ځكه چه جبر منافى دې د غرض د تكليف نه ځكه چه دارومدار د ثواب او عقاب او سزا او جزا دا له وجه د اختيار د عبد نه دې نو كچرته عبد مجبور شى نو د ده نه به تكليف ساقط شى .

| وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِيْ كُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوْلًا اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاجْتَنِبُوا |
|---|
| او په تحقيق سره ليګلې دى مونږ[1] په هر امت كښې رسول پدې خبره چه عبادت كوئ تاسو د دالله او ځان اوساتئ |
| الطَّاغُوْتَ ۚ فَمِنْهُمْ مَّنْ هَدَى اللّٰهُ وَمِنْهُمْ مَّنْ |
| (عبادت) د غير الله نه، پس خينې د دوئ نه هغه خوك دى چه هدايت ورته كريدې الله او خينې د دوئ نه هغه خوك دى |
| حَقَّتْ عَلَيْهِ الضَّلٰلَةُ ۗ فَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ |
| چه پخه شوې وه په هغه باندې ګمراهى، پس اوګرځئ[2] تاسو په زمكه كښې پس اوګورئ تاسو چه څنګه وو انجام |
| الْمُكَذِّبِيْنَ ۝ اِنْ تَحْرِصْ عَلٰى هُدٰىهُمْ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ مَنْ |
| د تكذيب كوونكو . كه حرص كوې[3] ته په هدايت د هغوئ باندې پس بيشكه الله هدايت نه كوى هغه چا ته |

۱- دليل نقلى اجمالى له انبياء عليهم السلام نه .
۲- اشاره تخويف دنيوى ته .
۳- ز:ح

| يُضِلُّ وَ مَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿٣٧﴾ |
| --- |
| چه گمراه ئې کړي او نيشته لپاره د دوئ هيڅ څوك مددګاران |

﴿ وَلَقَدْ بَعَثْنَا ﴾ په دې آيت کښې دليل نقلي اجمالي په توحيد باندې ذکر کيږي د ټولو انبياء کرامو عليهم السلام نه چه هر پيغمبر دَ توحيد تعليم او د شرك نه ځان بچ کولو تعليم ورکړيدې، او دغه شانتې دَ سابقه دليل تفصيل ذکر کيږي، کجرته رضا او اراده دَ الله تعالى يوه وې نو بيا به ئې انبياء کرام دَ رد دشرك لپاره نه راليږل، بلکه د الله تعالى مرضى داده چه دَ الله نه بغير دَ بل چا عبادت دې نشي کيدلې، بلکه صرف اوصرف د هغه عبادت دې وکړې شي.

تنبيه: علامه زمخشري رحمه الله پدې مقام کښې دَ دې آيتونو نه مسلك د اعتزال ثابته ولو کوشش کړې دې او په مذهب دَ اهل سنت باندې ئې رد کړې دې ، علامه آلوسى رحمه الله د ده په باره کښې فرمائي چه ((ولعمري انه فسر الايمان على وفق هواه وهي عليه لا له)) ، (روح) ، امام رازى رحمه الله اودغه شانتې نور محققينو مفسرينو دَ ده د استدلالاتو او جوابونو اودهغې رد ئې په تفصيل سره په خپلو تفاسيرو کښې کړې دې. ﴿أَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ﴾ ذکر د توحيد دې ﴿وَاجْتَنِبُوا﴾ په دې کښې رد د شرك دې ﴿الطَّاغُوتَ﴾ مراد ترينه شيطان او هر ګمراهئ ته رابلونکې دې او يا اسم دې د هر معبود ما سوى الله لپاره ﴿فَمِنْهُم مَّنْ هَدَى اللّٰهُ﴾ په دې کښې اشاره ده چه خالق دخير او د شر فقط الله تعالى دې او دغه شانتې اشاره ده ديته چه هدايت او ضلالت دواړه په ارادې د الله تعالى سره دى او دغه شانتې دا آيت صريح دې په دې کښې چه ايمان امر عام دې په حق د هرچا کښې او اراده د ايمان خاص ده په حق د بعضو کښې نو پدې آيت کښې دليل دې په دې خبره چه کله کله امر دَ الله تعالى موافق دَ ارادې د الله تعالى سره نوى، يعنى کله کله الله تعالى امر د يو کار وکړى خو مريد ئې نوى، او کله منع دَ يو کار نه وکړى خو هغه ئې مريد وى، لکه دا مسلك د اهل سنت والجماعت دې نو دا آيت صريح ردَ دې په مسلك د معتزلو باندې ﴿فَسِيرُوا﴾ دا تخويف دنيوى دې چه ستاسو نه دمخکنيو کافرانو انجام څه وؤ ؟ لږ غور اوکړئ ﴿إِن تَحْرِصْ﴾ دا زجر دې کفاروته او تسلى ذکر کيږى حضور ﷺ ته چه ستا په ذمه صرف تبليغ کول دى دوئ ته، او هدايت او ضلالت دَ الله تعالى په لاس کښې دې، په هغې باندې ځان مه پريشانه کوه.

وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَا يَبْعَثُ اللَّهُ مَنْ يَمُوتُ

او قسمونه کریدی دوئ [۱] په الله باندې پاخه قسمونه چه ژوندې به نکړی الله هغه څوك چه مړه کړی ئی دی

بَلَىٰ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ۝ لِيُبَيِّنَ

ولې نه، بلکه وعده [۲] ده په الله باندې يقيني (وعده) ليکن ډير د خلکونه نه پوهيږي (لپاره د دې به بعثت کوی، چه بيانکړی الله

لَهُمُ الَّذِي يَخْتَلِفُونَ فِيهِ وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّهُمْ

دوئ ته هغه خبرې چه اختلاف کوی دوئ په هغې کښې اوچه پوهه شی هغه کسان چه کفر ئی کړې دې چه بيشکه دوی

كَانُوا كَاذِبِينَ ۝ إِنَّمَا قَوْلُنَا لِشَيْءٍ إِذَا أَرَدْنَاهُ

دروغژن وو . بيشکه قول (حکم) زمونږ [۳] د يوشی په باره کښې چه کله مونږه اوغواړو (پيدا کيدل دهغه،

أَنْ نَقُولَ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ ۝

دادې چه اووايو مونږ هغه ته چه شه! نو پس هغه پيدا شی.

﴿وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ﴾ دا زجر بطور شکوی ذکر کيږی چه دا مشرکين د بتانو عبادت هم کوی اوبيا ورسره د حشر اونشر نه انکار هم کوی او دا بعيد کنړی د عقل نه ﴿وَأَقْسَمُوا﴾ دا عطف دې په ﴿وَقَالَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا﴾ باندې يعنی د شرك سره سره دوئ د حشر نه هم انکار کوی ﴿جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ﴾ دا يا حال دې د «اقسموا» دَ ضمير مرفوعه نه، ((ای حال کونهم جاهدين فی ايمانهم)) ، (روح) او يا مفعول مطلق دې دَ فعل مقدره لپاره، مراد ترينه سخت سخت قسمونه دی ﴿لَا يَبْعَثُ اللَّهُ﴾ اشاره ده ديته چه ايمان په بعث بعد الموت باندې د اصولو نه دې او انکار ئی د کفر د اصولونه دې ﴿بَلَىٰ وَعْدًا﴾ دا ردّ دې د دوئ د دغې قول ﴿وَعْدًا﴾ مفعول مطلق دې، ای وعد الله وَعْداً ﴿حَقًّا﴾ هم

---

۱ - زجر سره له تخويف اخروی او سره له شکوی نه.

۲ - جواب د شکوی.

۳ - دويم جواب لپاره د شکوی.

مفعول مطلق دي اى حَقّه حَقًا (منير). ﴿لِيُبَيِّنَ﴾ لام تعليليه دي او متعلق دي په كلام مقدر پوري چه په هغې باندې تيرشوې آيت دلالت كوي ((اى يبعثهم ليبين لهم)) او پدې كښې د بعثت حكمت او فائدې ذكر كيږي، اوله فائده په «ليبين» سره ذكر ده چه د قيامت حكمت او فائده داده چه ډير امور اختلافيه چه د هغې فيصلې په دې دنيا كښې ممكن ندى نو دهغې فيصلې به الله پاك په قيامت كښې وكړي ﴿وَلِيَعْلَمَ﴾ دا دويمه فائده اوحكمت د قيامت ذكر كيږي چه كله دوئ مشاهده د قيامت وكړي او هرڅه دوئ ته عيانًا راشي نو دوئ به د خپلو خبرو تكذيب وكړي ﴿إِنَّمَا قَوْلُنَا﴾ په دې كښې دويم ردّ ذكر كيږي د دوئ د قول چه دَ انسانانو پيدا كول په دويم ځلې الله تعالى ته څه مشكل ندى ځكه چه كله هم الله تعالى د يو كار اراده اوكړي نو هغه فوراً وجود ته راځي نو د «قولنا» او «نقول» مطلب دا ندې چه الله تعالى د دغې كلمې تلفظ ته محتاج دې بلكه مقصد دا دې چه كه غټ شې وې يا وړوكې هرڅنگه چه وي نو دهغه په وجود كښې د راتللو لپاره صرف د الله تعالى اراده كافى ده چه څنگه اراده وشى نو فوراً دغه شانتې ورسره هغه شې هم پيدا شى او لام په «لشئ» او په «له» كښې لپاره د تبليغ دې ، د دې آيت ځينې ضروري تشريح په سورة البقرة آيت نمبر (۱۱۷) كښې تيره شويده.

| |
|---|
| وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا فِي اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مَا ظُلِمُوْا |
| او هغه كسان [۱] چه هجرت ئې كړيدې د الله دَ رضاء دَپاره وروستو د دينه چه پدوئ ظلم كړې شويدې |
| لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً ۭ وَلَاَجْرُ الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ۝ |
| خامخا به مونږ ځائ وركړو هغوئ ته په دنيا كښې خائسته، او خامخا اجر د آخرت ډير لوئ دې كچرته وې دوئ چه پوهيدلې. |
| الَّذِيْنَ صَبَرُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ۝ وَمَآ اَرْسَلْنَا |
| دوئ هغه كسان دى چه صبر ئې كړيدې په مصائبودهجرت او خالص په رب خپل باندې توكل كوي او ندى ليږلى [۲] مونږ رسولان |
| مِنْ قَبْلِكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوْحِيْٓ اِلَيْهِمْ فَسْـَٔلُوْٓا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ |
| مخكښې ستا نه (اې محمده !) مگر نارينه چه وحى كوله مونږ دوئ ته پس تپوس اوكړئ تاسو دعلم والو نه كچرته تاسو نه پوهيږئ. |

۱ - ترغيب الى الهجرت او بشارت.

۲ - جواب د سو ال مقدر

﴿ وَالَّذِينَ هَاجَرُوا ﴾ په دې آيت كښې ترغيب الى الهجرة او مهاجرينو ته بشارت دنيوى او اخروى ذكر كيږى ﴿ هَاجَرُوا فِي اللَّهِ ﴾ «فى» په معنى د لام سره ده «اى لله» او د دې آيت مصداق ټول مهاجرين صحابه كرام دى چه دَ الله ﷻ دَ دين لپاره ئې تكليفونه برداشت كړل او بيا ئې په آخر كښې د الله ﷻ د رضاء لپاره هجرت اوكړو، ((هؤلاء اصحاب محمد ظلمهم اهل مكة فاخرجوهم من ديارهم حتى لحق طوآئف منهم بالحبشة ثم بوأهم الله المدينة بعد ذلك فجعلها لهم دار هجرة))، (طبرى، ج : ۷، ص ۵۸۵) او بعض فرمائى چه د دې مصداق هغه شپږ صحابه كرام ((حضرت صهيب، حضرت بلال، حضرت عمار، حضرت خباب، حضر عابس او حضرت جبير رضى الله تعالى عنهم)) دى چه د اسلام نه د واپس كيدو لپاره كفارو په دوئ باندې سخت سخت ظلمونه كول، الله تعالى دوئ ته نجات وركړو او بيا دوئ هجرت وكړو ﴿ لَنُبَوِّئَنَّهُمْ ﴾ الخ، د ﴿ حَسَنَةً ﴾ په تعيين كښې متعدد اقوال راغليدى (۱) نزول المدينة، دا په شرافت د مدينې منورې باندې دليل دې (۲) رزق حسن. يعنى حلال رزق (۳) نصرت على الاعداء يعنى په اهل مكه باندې فتح (۴) لسان صدق، يعنى وروستنو خلكو كښې نيك ذكر (۵) فتوحات د بلادو، يعنى د دنيا مختلف بلاد او ملكونه د هغوئ په قبضې كښې راوستل، ليكن راجح قول دا دې چه دا ټول ترينه مراد دى، ((وكل ذلك اجمع لهم بفضل الله والحمد لله))، (قرطبى) ﴿ وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ أَكْبَرُ ﴾ بشارت اخروى دې ﴿ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ﴾ ضمير يا راجع دې كفاروته او زجر دې لپاره د هغوئ او يا ضمير راجع دې مسلمانانو ته، تاكيد مقصود دې په ترغيب الى الهجرة كښې ﴿ الَّذِينَ صَبَرُوا ﴾ د غوره توجيه مطابق دا صفت دې دَ اول ﴿ الَّذِينَ ﴾ لپاره او په دې كښې دَ مؤمن د دوه عملونو ذكر دې چه يو صبر دې په مصائبو اوتكاليفو باندې او دويم دَ الله تعالى په امداد باندې توكل اوبروسه كول دى، امام رازى رحمه الله فرمائى چه په دې آيت كښې د سلوك دمبدا او منتهى ذكر دې، په صبر سره قهر او مغلوبيت د نفس رازى چه دا ابتداء د سلوك ده، لكه رحمان بابا فرمايى چه : شعر :

**چه په يو قدم تر عرشه پورې رسى　　ما ليدلې دې رفتار د درويشانو**

او په توكل سره د مخلوق نه انقطاع بالكليه رازى او توجه بالكليه حق او خالق طرفته رازى، چه دا انتهاء د سلوك ده ﴿ وَمَا أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ ﴾ په دې آيت كښې د مشركينو د يو سوال جواب او اثبات د رسالت دحضور ﷺ كيږى، مشركينو به شبه او اعتراض دا كولو چه نبوت يو

دير لوئ اعزاز دې او دا اعزاز منافي دې د بشريت سره نو بشر رسول نشي كيدلې، كچرته دغه مسئله د يوې فرشتې په ذريعې سره راغلې وې نو مونږ به منلې وه. نو الله تعالى د هغې په جواب كښې فرمائي چه مونږ څومره انبياء كرام ليږلي دي مخكښې نو هغه ټول بشر وو كچرته رسول اوبشر يو بل سره منافي وې نو پكار ده چه هغوئ هم بيا بشر نه وې، نو عادة مستمره د الله تعالى دا دې چه نبي او رسول په بشر كښې ليږي چه هغه د جنس د مبعوث اليهم نه دې او په ﴿إِلَّا رِجَالًا﴾ كښې اشاره ده دې خبرې ته چه ټول رسولان او انبياء كرام هغه بشر وو. او دغه شانتې رجال نارينه وو، اوهرچه نبوت د حضرت عيسى عليه السلام دې نو هغه د دې آيت معارض ندې ځكه چه هلته ذكر په وړوكوالى كښې د نبوت دې.

﴿فَسْـَٔلُوٓا۟ أَهْلَ ٱلذِّكْرِ﴾ يعنى چه په خپله نه پوهيږئ نو داهل علم نه تپوس كوئ، دا آيت دلالت كوى پدې خبره چه په وخت د عدم دَ علم كښې مراجعت او تپوس كول د علماؤ نه واجب دى، دغه شانتې دا آيت صريح دې په تقليد كښې، مشهور مفسر قرآن علامه آلوسى رحمه الله په خپل تفسير روح المعانى كښې فرمائي چه: ((وفى الاكليل للجلال السيوطى انه استدل بها على جواز التقليد العامى فى الفروع)) يعنى علامه جلال الدين سيوطى رحمه الله په اكليل كښې فرمائي چه پدې آيت سره استدلال كولې شى پهٔ جواز دَ تقليد دَ عامى باندې په فروعاتو كښې، او لږ مخكښې بيا وريسې فرمائى. ((ويؤيد ذلك ما نقل عن الجلال المحلى انه يلزم غير المجتهد عاميًا كان او غيره التقليد للمجتهد لقوله تعالى: فسئلوا اهل الذكر ان كنتم لا تعلمون)) يعنى د دې تائيد په هغې سره كيږى كوم چه نقل كړې شويدى د جلال محلى نه چه هغه فرمائي چه لازمه ده په غير مجتهد باندې كه دې عالم وى اوكه عامى وى تقليد د مجتهد - الخ ((روح المعانى، ج: ۱۴، ص: ۱۴۸).

**تنبيه**: د رسول اكرم صلى الله عليه وسلم په زمانه مباركه كښې په مسائلو باندې د عمل كولو لپاره درې طريقې وې: (۱) ذات اقدس د حضور صلى الله عليه وسلم (۲) اجتهاد (۳) تقليد، وجه دا وه چه كله به هم صحابه كرام رضى الله عنهم ته يوه مسئله مخې ته راغله نو كچرته د حضور صلى الله عليه وسلم سره به نزدې وو نو فوراً به ئې ترينه تپوس اوكړو او كچرته به لرې وو نو بيا كچرته د خط په ذريعې سره به تپوس ممكن وو نو د خط په ذريعې سره به ئې تپوس اوكړو اوكچرته به دا دواړه صورتونه ممكن نه وو يعنى نه به مشافهةً تپوس ممكن وو اونه به كتابتًا نو بيا به ئې اجتهاد كولو، كچرته قوت اجتهاديه ورته حاصل وو او كچرته به ورته قوت اجتهاديه حاصل نه وو نو بيا به ئې تقليد كولو او دا صورت د صحابه كرامو رضى الله عنهم په دور كښې زيات وو.

تقلید په لغت کښې هار اچولو ته وئیلی کیږی په غاړه کښې. او په اصطلاح کښې مختلف تعریفونه دهغې شوېدی، زیات غوره پکښې درې تعریفونه دی : (۱) اتباع الغیر علی ظن انه محق بلا نظر فی الدلیل (شامی)، یعنی تقلید ویلې کیږی اتباع کولو دغیر ته پدې حسن ظن سره چه دې حق دې بغیر د فکر نه په دلیل کښې (۲) دویم تعریف د بعضې علماؤ نه داسې منقول دې چه ((هر عبارة عن اتباعه فی قوله او فعله معتقدًا للحقیة من غیر تامل فی الدلیل)) ، (ابن العینی) ، یعنی تقلید عبارت دې د غیر د اتباع نه په قول کښې یا فعل کښې په اعتقاد د حقیقت دهغه سره بغیر د سوچ کولو نه په دلیل کښې . (۳) دریم تعریف مولانا محمدعلی تهانوی رحمه الله په خپل کتاب کشاف فی اصطلاحات الفنون کښې د حینې شروحو د حسامی نه داسې نقل کړې دې : ((اتباع الانسان غیره فیما یقول او یفعل معتقدًا للحقیة من غیر نظر الی الدلیل کان هذا المتبع جعل قول الغیر او فعله قلادة فی عنقه من غیر مطالبة دلیل)) ، یعنی تقلید دیته وئیلې کیږی چه دبل چا اتباع کول په قول او په فعل دهغه کښې پدې اعتقاد سره چه دې حق دې بغیر د نظر کولو نه دهغه دلیل ته.

د دې درې تعریفاتو نه دوه خبرې معلومې شوې : یوه دا چه تقلید او اتباع یو شې دې ، دویمه دا چه مقلد د مجتهد قول معلوم کړی او محض د حسن ظن د وجه نه په هغې باندې عمل کوی. د تسلیم اوعمل په وقت کښې ابتداءً عدم مطالبه د دلیل وی یعنی مقلد دَ دغې خبرې منلو کښې دلیل ته محتاج نوی، اگرچه دلیل په خپل ځائ کښې موجود وی، اوهغه دلیل بعینه کله وروستو مقلد ته معلوم شی او کله کله د دغې مسئلې متعلق مقلد په خپلې جستجو اوکوشش سره نور ډیر دلائل معلوم کړی، نو دلیل معلومیدل دا د تقلید منافی ندی.

او هرکله چه دَ وفات د حضور ﷺ نه وروستو احکام د شریعت په درې قسمه شول ، ځینې هغه دی چه هغه منصوص او واضح الدلالة او قطعی الثبوت دی، لکه تعداد د مونځونو او تعداد د رکعاتو د مونځونو وغیره شول، ځینې هغه دی چه هغه منصوص مبهم دی او ابهام یا د وجې د لفظ نه وی چه دغه لفظ مشترک وی اود اشتراك د وجه نه پکښې خفاء او ابهام پیدا شوې وی، لکه «ثلاثة قروء» چه لفظ د «قرآ» مشترک دې په مینځ د حیض او طهر کښې او کله دا خفاء او ابهام د وجه د تعارض د ادله ؤ نه وی، چه په دغې باب کښې ادله د شرع متعارض راغلی وی، لکه قرائت د فاتحه خلف الامام شو، چه پدې کښې احادیث متعارض دی ((لاَ صَلٰوةَ اِلاَّ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ)) معارض دې د ((مَنْ كَانَ لَهُ اِمَامٌ فَقِرَاءَةُ الاِمَامِ قِرَاءَةٌ له)) سره ، او ځینې هغه قسم دی چه هغه ظاهرًا غیر

منصوص دی، لکه ربا (سود) د شپږ هغو نه علاوه شو چه د هغې ذکر په حدیث کښې دې. نو په قسم اول کښې نه د اجتهاد ضرورت شته او نه د تقلید ضرورت شته، باقی دوه قسمه چه دی نو په دې کښې یا به اجتهاد کولې کیږی او یا تقلید، بله لار ئې نشته، که څوك په اجتهاد قادر وؤ او شرائط د اجتهاد پکښې پوره وؤ چه کوم ذکر کړیدی علماؤ چه یاد والې دې دهغه پنځه سوه (۵۰۰) آیتونو هم لفظًا اوهم معنًا کوم نه چه استنباط د احکامو کیږی، او قادر به وی په معنی لغوی دهغې باندې او په معنی مراد دهغې باندې، او دغه شانتې چه د کومو احادیثو نه استنباط د احکامو کیږی هغه به هم ورته معلوم وی سندًا او متنًا چه هغه درې زره (۳۰۰۰) احادیث دی ، اودغه شانتې احوال د راویانو به ورته معلوم وی جرحًا اوتعدیلاً ، اودغه شانتې عامل به وی په کل احادیث موضوعی باندې. اودغه شانتې عالم به وی په اجماع باندې اوعالم به وی په اصول فقه باندې او عالم به وی په قیاس باندې هم نو د دغه شان سړی لپاره اجتهاد کول جائز دی، خو که په اجتهاد قادر نه وؤ او شرائط د اجتهاد پکښې پوره نه وؤ لکه څنګه چه نن صبا دور کښې د ناممکناتو نه دی نو بیا به تقلید کوی.

تقلید بیا په دوه قسمه دې : (۱) تقلید غیر شخصی چه هغې ته تقلید عام هم وئیلې کیږی (۲) دویم تقلید شخصی ، د تقلید غیر شخصی مقصد دا دې چه مقلد دځان لپاره یو خاص امام اومجتهد معین نکړی ، بلکه په ځینی مسائلو کښې د یو امام مسلك اختیار کړی او په ځینې نورو کښې د بل امام، او د تقلید شخصی مقصد دا دې چه مقلد دځان لپاره د معین امام او مجتهد تخصیص وکړی او په هره مسئله کښې د هغه قول یا دهغه د ملګرو قول اختیار کړی. ، او د دینه د تقلید حقیقت هم معلوم شو چه د تقلید حقیقت صرف او صرف دا دې چه څوك هم په شرائطو د اجتهاد او استنباط باندې پوره نه وی او اجتهاد په خپله نشی کولې نو د مجتهد په قول باندې اعتماد وکړی اودهغه د تشریحاتو مطابق په قرآن او په سنت او دهغې په احکاماتو باندې عمل وکړی.

په عهد د صحابه کرامو کښې تقلید غیر شخصی عام وؤ او تقلید شخصی هم رائج وؤ ، د حضرت عثمان غنی رضی الله عنه ټول خلق په یو قرائت باندې جمع کول د تقلید شخصی مثال دې ، په باقی خیر القرون کښې یعنی د تابعینو او تبع تابعینو په دور کښې تقلید شخصی ډیر رائج وؤ او ډیر لوئ لوئ جبال علم به د مجتهد تقلید کولو اګر چه تقلید غیر شخصی هم وؤ چه دهغې تفصیل امام اهل سنت حضرت مولانا سرفرازخان صفدر رحمه الله اودغه شانتې نورو اکابرو په خپلو تصانیفو کښې کړې دې ، د دویمې صدئ نه وروستو فقهاؤ د تقلید شخصی په وجوب باندې فتوی ورکړه ځکه چه په دې کښې انتظام دې او په دې کښې اتباع د خواهشات نفسانی هم نه راځی، چه هغه مؤدی ده فساد

ل، په دین کښې، او تعارض د اصولو پکښې هم نه راځی

**تنبیه** (۱): نن صبا چه کوم خلق ځانته غیر مقلدین وایی نو دوئ په حقیقت کښې مقلدین دی د جهلاؤ ځکه چه د قرآن او سنت نه ناخبره سړي به دغه سړی اتباع کوی چه هغه به د شرائطو د اجتهاد نه خالی وی لکه څنګه چه مخکښې تیر شو چه شرائط د اجتهاد نن صبا په چا کښې ممکن ندی، بلکه د قرآن او د حدیث په تشریح به هم قادر نه وی او داسې تقلید په شریعت کښې انتهائی مذموم دې.

**تنبیه**: (۲) ځینې معاصر مفسرین د دې آیت په ضمن کښې په تقلید شخصی باندې ردّ کوی او لیکی چه: (**د دې ایت نه استدلال کول په اثبات د تقلید جامد او د تقلید شخصی صحیح او جائز ندی**.) او بیا د خپلې دعوی د اثبات لپاره یو څو دلائل هم ذکر کړیدی چه په اهل علمو باندې دهغې سقم مخفی ندې، اولاً خو دا دعوه صحیح نده ځکه چه په سلف او خلف کښې چا هم دا ندی وئیلی چه پدې آیت سره اثبات د تقلید شخصی کیږی بلکه پدې سره اثبات د مطلق تقلید او د تقلید عام کیږی، **اګرچه هغه** مستلزم دې د تقلید شخصی ثبوت لره، ځکه چه تقلید شخصی د مطلق تقلید لپاره یو فرد دې او ثبوت دحکم لپاره دعام دا مستلزم وی لپاره د خاص هم، او بیا د دې دعوی لپاره اول دلیل او وجه ذکر کوی: (**چه «الذکر» نه مرد وحی ده، یعنی دهغه چا نه تپوس کوئ چه دلیل د وحی ذکر کوی (قران اوسنت) او د دلیل تابعداری نه تقلید نشی وئیلې کیدې**) (انتهی کلامه).

د بناءُ الفاسد علی الفاسد نه علاوه پدې دلیل کښې نور ډیر وجوهات د ضعف دی: ﴿فَسۡـَٔلُوٓاْ أَهۡلَ ٱلذِّكۡرِ﴾ تشریح دا کول چه تپوس دهغه چا نه کوئ – الخ، جمهورو مفسرینو نه خلاف دې، تمام جمهور مفسرین پدې متفق دی چه (اهل الذکر) نه مراد علماء دی او علماء چه څنګه دلیل وحی ذکر کوی نو همدغه شانتې اجماع، قیاس، دلیل عقلی اونقلی هم ذکر کوی، او دغه شانتې خبر متواتر هم په دلیل کښې ذکر کوی، **دویمه وجه** د ضعف دا ده چه لیکی: (**چه د دلیل تابعداری نه تقلید نشی وئیلې کیدې**)، نو د دې ضعف هم په هیڅ چا پټ ندې ځکه چه تقلید د عدم اتباع دَ دلیل نه، عبارت ندې بلکه په تقلید کښې عدم مطالبه د دلیل وی خو هغه هم صرف ابتداءً، دا مقصد ندې چه په تقلید کښې یا دلیل نوی او یا اتباع د دلیل نوی، صاحب هدایه او دغه شانتې نور فقهاء با وجود د دې چه مقلدین دی او ځومره دلائل ئی د مسائلو لپاره ذکر کړیدی او بیائی د قوت او دضعف په اعتبار سره دهغې اتباع هم کړیده.

**دریمه وجه** داده چه د دې تشریح مطابق په خپل کلام کښې تعارض راغلیدې ځکه چه په دویمه

وجه کښې ئې ليکلي دي چه «عدم د تعلم دوه درجې دي - الخ» نو دهغې نه معلوميږي چه «اهل الذکر» هغه نفس مـ ـله هم نښائی او دليل لپاره د مسئلې هم نښائی، دَ دواړو ښودونکی اهل الذکر دی، او بدی ځائ کښې تشريح داسې کوی چه «تپوس دهغه چا نه کوئ چه په جواب کښې دليل د وحی ذکر کوی» نو د دينه دا معلوميږي چه «اهل الذکر» به صرف دليل وحی ذکر کوی، او نفس مسئله خودونکی به اهل الذکر نوی، دا واضح تعارض دې په خپل کلام کښې.

**دويمه وجه** د خپلې دعوې د اثبات لپاره ذکر کوی او ليکي : «چه د عدم دعلم دوه درجې دی اول عدم علم دحکم او دويم عدم علم د دليل نو د دواړو تپوسونه کول لازم دی نو چه دليل ورته معلوم شی نو دا خوتقليد نشو **انتهی**» . د دې دليل دوه حصې دی اوله حصه داده چه «د عدم علم دوه درجې دی - الخ» . دويمه حصه داده چه «د دواړو تپوسونه کول لازم دی» اوبيا ئې په اخير کښې نتيجه متفرع کړيده چه «دليل ورته معلوم شی نو دا خو تقليد ندې» نو دليل اوله حصه مسلمه ده ليکن دويمه حصه غير مسلمه ده ځکه کچرته تپوس د دواړو ضروری او لازمی شی نو لازم به شی اتحاد په مابين د اقوی او دغير اقوی کښې ، تالی باطل دې بداهةً ، مقدم ئې مثل دې، دليل د ملازمې دا دې چه تپوس کول په وخت د عدم علم د حکم کښې زيات ضروری دې او د هغې علم حاصلول اقوی دی په نسبت سره عدم علم د دليل ته، ځکه چه د عدم علم دحکم دوجې نه کله کله لزوم د کفر راځی، او په نيشتوالی د علم په دليل باندې دهغې د وجه کفر نه راځی، مثلاً يو سړی ته د دې پته نشته چه حضور صلی الله عليه وسلم خاتم النبيين دې ، نو دا سړې مسلمان ندې، او د دليل په نه پيژندلو سره دا سړې کافر نه ګرځی، بلکه کله کله د دليل نه تپوس کول د نقصان باعث او ذريعه ګرځی، او د دې وجه نه علامه خطيب بغدادی رحمه الله په خپلې فتوی کښې په صفحه نمبر (۶۸) کښې د اُمی سړی د تقليد په باره کښې فرمائی چه : ((لانه لس من اهل الاجتهاد فکان فرضه التقليد کتقليد الاعمی فی القبلة فانه لما لم يکن معه آلة الاجتهاد فی القبلة کان عليه تقليد البصير فيها)) يعنی امی سړې چه اهل د اجتهاد ندې نو په ده باندې تقليد داسې ضروری دې لکه څنګه چه په ړوند سړی باندې د قبلې په باره کښې د بينا (بصير) تقليد ضروری وی، پس هرکله چه دغه ړوند سړې (لکه څنګه ظاهری آله اجتهاد نه خالی وی د قبلې معلومولو په سلسله کښې نو په ده باندې تقليد د بينا ضروری دې «او د دليل مطالبه او تپوس نه کوی دغه شانتې چه آله د اجتهاد او استنباط د مسائلو نه چه خالی وی نو هغه به هم تقليد د مجتهد کوی».

اوبيا چه کومه نتيجه د دې نه اخذ کړې شوې ده «چه دليل ورنه معلوم شی نو دا خو تقليد

ندي» نو په اهل علمو باندې دهغې عدم صحت هم مخفي ندې ځکه چه د دې مقصد به يا دا وی چه د هر تپوس نه به وروستو به خامخا علم راځی په مسؤل باندې. دا خو ظاهر البطلان دې ځکه چه ډیر ځلې د يو شی په باره کښې تپوس اوکړې شی خو دهغې جواب میلاؤ نشی. او يا به مقصد دا وی چه علم د هغې حکم معتبر دې چه په هغې کښې تپوس شوې وی د دليل نه. او بيا علم په دليل راغلې وی، اوکه تپوس د دليل په باره کښې اوشی او دهغې جواب ورته میلاؤ نشی يا بالکل تپوس اونشی نو دَ دغه شانتې حکم اعتبار به نوی. نو پدې صورت کښې به لازم شی عدم اعتبار د مقلد فی الايمان او د مقلد فی الايمان تکفیر به لازم شی «العياذ بالله» ځکه چه مقلد فی الايمان نه هغه دَ دليل تپوس نه کوی اونه ورته دليل معلوم وی، بلکه کله کله تپوس هم وکړی خو تفصيلاً د دليل خودلو حاجت نه وی، او مقلد فی الايمان خو مؤمن وی په نيزد د اهل سنت والجماعت باندې.

او بله خبره داده چه عالم کيدل په دليل باندې دا منافی د تقليد ندی، لکه څنګه چه مخکښې تير شويدی، او بيا د دعوې په اثبات کښې دريمه وجه داسې ذکر کوی چه «**الله تعالی اهل الذکر عام ذکر کړيدی او مقلد حنفی خو دَ شافعی عالم نه تپوس نه کوی بلکه مونځ کول وريسې هم جائز نه ګڼړی - انتهی**» دا اعتراض هم انتهائی درجې سطحی او خلاف حقيقت دې، مقلد حنفی لپاره اهل ذکر عالم حنفی دې ځکه چه هغه عالم دې په جزئياتو د فقهې حنفی باندې او که عالم شافعی عالم وی په فقه حنفی باندې نو دهغه نه تپوس کولو کښې څه قسم ممانعت نيشته دې. باقی دا خبره مطلقًا کول چه مونځ وريسې هم جائز نه ګڼړی دا بالکل صراحتًا افتراء ده، ځکه چه هر کله ځينې نصوص د يو بل سره متعارض وؤ او هر يو مجتهد دَ اصولو په رڼا کښې دهغې تشريح کړيده نو دَغې نصوصو کښې دتعارض د وجې نه په ځينو مسائلو فروعيو کښې د مذاهبو په مينځ کښې هم اختلاف واقع شويدې، مثلاً وينه «دم» ناقض لپاره د اودس دې اوکنه ؟ نو پدې کښې روايات متعارض دی ، احنافو ترجيح ورکړيده نافی رواياتو لره نو د احنافو په مسلك وينې سره اودس ماتيږی او شوافعو ترجيح ورکړيده مثبت رواياتو لره، او د دوئ په مذهب کښې وينې سره اودس نه ماتيږی، نو آيا اوس مقلد حنفی په مقلد شافعی پسې وروستو مونځ کولې شی او که نشی کولې ؟ نو زمونږ فقهاء کرام فرمائی چه که مقلد شافعی د مقتديانو د مذهب رعايت کونکې وؤ نو په ده پسې بلا کراهيت مونځ کول جائز دی، او د دې واضح او عملی مثال مونځونه دَ حاجيانو او د عمرې کونکو دی په امامانو د حرمينو پسې چه هر کال په لاکهونو مقلدين حنفيان په عالم او مقلد حنبلی پسې مونځونه کوی، بلکه زمونږ فقهاؤ خو په غير مذهبو پسې هم د اقتداء اجازت ورکړې دې چه عقيده ئې صحيح وی

او په امامانو او اسلافو پعسې غلطې خبرې نکوي او د مقتديانو د مذهب رعايت کوي په مانځه کښې

او بيا په اخير کښې يوه څلورمه وجه علی طريق التنزل په طور سره ليکي چه «**صحيح ده چه پدې ايت کښې اثبات د تقليد دې د أمي ليکن هرکله چه وروستو وخت کښې دغه شخص أمي ته چه صحيح حديث دمخکنی قول نه خلاف معلوم شي نو دې به دغه قول پريږدي او په حديث به عمل کوي او داسې شامي د علامه بيری نه نقل کړيدي - الخ**» که دې عبارت ته د حقيقت په نظر اوکتلې شي نو پدې کښې د جمهور سلف او خلف دقول مخالفت دې او په ائمه مجتهدينو پورې مذاق او ټوقی هم شويدی ، هرچه دې مخالفت د سلفو او دجمهورو نه، نو هغه دادې چه ټول جمهور سلف او خلف پدې متفق دی چه کوم سړی ته قوت د اجتهاد نوی حاصل نو هغه به تقليد کوي، برابره خبره ده که هغه عالم وی او که غير عالم وی. صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې به چه چا ته مرتبه د اجتهاد نوه حاصله نو هغه به د بل صحابی تقليد کولو، او د دې قول نه معلوميږی چه تقليد صرف د امی سړی کار دې ، نو «العياذ بالله» مقلدين صحابه کرام د دې دور د ځينې خواهش پرستو په نسبت امیان وؤ، او هرچه دې مذاق او ټوقې په ائمه مجتهدينو پورې نو هغه داسې شويدی چه د دې عبارت واضح مقصد دا دې چه د دې پنځلسمې صدئ يو اُمی سړې چه هغه په فتنو او فساد کښې گير، د دنيا په مصروفياتو کښې غرق، د علم نه ناخبره، په استنباط او په اجتهاد باندې غير قادر او د اصول حديث نه ناواقفه هغه ته چه نفس يو حديث صحيح مخې ته راشی نو هغه به مخکنې قول «تقليد د مجتهد» پريږدی اودغه سړئ به په دغه حديث باندې دخپلې تشريح مطابق عمل کوی، اوهرچه دې مذهب اوتقليد نو د دې تشريح او قول مطابق هغه د يو امام خپل قول دې چه مخالف دې د صحيح حديث نه اوهغه ائمه مجتهدين چه په خير القرون کښې وؤ او دهغوئ دخير پيشگوئی حضور صلی الله عليه وسلم په احاديث مبارکه کښې کړې ده ديو يو حديث لپاره ئی لرې لرې سفرونه کړی وؤ، د دنيوی مشاغلو نه ئی ځان فارغ کړې وؤ، وظيفه ئی صرف د رسول الله ﷺ د احاديثو جمع کول وؤ، په استنباط او اجتهاد باندې قادر وؤ او هغوئ واضعين د اصول حديث دی نو هغوئ ته دغه حديث ندې رسيدلې، هغوئ جاهل وؤ په حديث باندې اودهغوئ تشريحات دخپل ځان نه دی؟، څومره لوئ جرات دې د ائمه مجتهدينو خلاف او څومره لوئ مذاق دې په هغوئ پورې «اعاذنا الله من سوؤ الادب» . حالانکه دهغوئ سره د شاگردئ په نسبت حاصليدلو باندې لوئ لوئ جبال علم فخر کوی . حضرت عبدالله بن مبارک رحمه الله فرمائی چه «لولا اعانني الله بابي حنيفة وسفيان لكنت

کسائر الناس)) د امام بخاری رحمه الله دهغه ثلاثیات احادیث اکثر راوی چه په هغې باندې امام بخاری رحمه الله فخر کوی مکی بن ابراهیم د امام ابو حنیفه رحمه الله په شاگردئ باندې فخر کوی. او دخپلې زمانې د ټولونه لوئ محدث ئې شماری او فرمائی چه ((کَانَ اَعْلَمُ اَهْلِ زَمَانِه)) اودهغه په باره کښې حضرت سفیان ثوری، مقاتل بن حیان، حمادبن سلمه، او حضرت جعفر صادق رحمه الله په شانتې لوئ هستئ فرمائ چه ((انت سید العلماء فاعف عنا)) اودهغه د مذهب په باره کښې امام شعرنی په شانتې محقق فرمائی چه د مسلك حنفی بنیاد یا په ایت قرآنی باندې دې یا په احادیثو د رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې، یا د صحابه کرامو په یو اثر باندې. او یا د دینه مستنبط شوی یو مفهوم. اویا په هغه قیاس باندې چه په یو صحیح اصل باندې متفرع وی، او بیا په اخیر کښې فرمائی چه ((فانی بحمد الله تبعت منهبه فوجدته فی غایة الاحتیاط والورع)) ، «میزان الکبری» ، اوبیا ئې لوئ ظلم دا کړې دې چه د مشهور مقلد حنفی قول ئې د سیاق او سباق نه بغیر په یو غلط انداز کښې ذکر کړیدې او تقلید شخصی چه هغه واجب دې هغې ته ئې حرام وئیلې دی ، علامه شامی رحمه الله دغه قول په مطلب د ولادت او وفات او حالت حیاة د ائمه کرامو کښې ذکر کړیدې، او په هغې کښې ئې دا خبره ذکر کړیده چه فقه حنفی د څه شی نه عبارت ده ؟آیا صرف د امام ابو حنیفه رحمه الله د اقوالو نه عبارت ده او که د نورو ملګرو د اقوالونه هم، نو صاحب د در المختار فرمائی چه ((قال لاصحابه ان توجه لکم دلیل فقولو به - الخ)) یعنی امام ابو حنیفه رحمه الله خپلو ملګرو ته اوفرمائیل چه کچرته تاسو ته یو دلیل معلوم وی‌نو خامخا ئې پیش کوئ، علامه شامی رحمه الله د دې لاندې د فقه حنفی تدوین او دهغې اصول بیانوی په نقل د مسند خوارزمی نه چه : ((ان الامام اجتمع معه الف من اصحابه اجلهم وافضلهم اربعون قد بلغوا حد الاجتهاد فقربهم وادناهم قال لهم انی الجمت هذا الفقه واسرجته لکم فاعینونی ........ فکان اذا وقعت واقعةً شاورهم وناظرهم وجاورهم وسألهم فیسمع ما عندهم من الاخبار والآثار ویقول ما عنده ویناظرهم شهرًا او اکثر ............ حتی اثبت الاصول علی هذا المنهاج شوری لا انه تفرد بذلك)) .

ترجمه : یعنی امام ابو حنیفه رحمه الله خپل زر شاگردان جمع کړل چه په هغې کښې څلویښت لوئ او اجل علماء وو چه هغوئ درجې د اجتهاد ته رسیدلی وو «مجتهدین فی المذهب وو» او بیا ئې ورته اوفرمائیل چه څه دغه فقه جمع کوم اوستاسو لپاره دغه شمع روښانه کوم ، تاسو څما امداد وکړئ. او بیا فرمائی چه کله به هم یوه مسئله مخې ته راغله نو دهغوئ سره به ئې مشوره کوله او مناظره به ئې کوله او دهغوئ نه به ئې تپوس کولو دهغوئ والا احادیث او آثار به ئې واوریدل اوخپل به ئې

هغوئ نه واورول. يوه يوه مياشت او زيات وخته پورې به دغه بحث جارى وؤ، نو بيا فرمائى چه په دغې طريقې سره په دغه اصولو سره به يوه شورى وه، نو فقه حنفى د دغې شورۍ نه عبارت ده

او په اخير كښ وروسـې بيا فرمائى چه ((ونظير هذا ما نقله العلامة بيرى فى اول شرحه على الاشباه عن شرح الهداية لابن الشحنة ونصه اذا صح الحديث وكان على خلاف المذهب عمل بالحديث ويكون ذلك مذهبه ولايخرج مقلده عن كونه حنفيًا بالعمل به – الخ))

مقصد د دې عبارت دادې چه هركله يو مقلد عالم (چه مجتهد فى المذهب وى) هغه ته يو صحيح حديث معلوم شي چه مخالف وى دمذهب دهغه نو عمل دې كوى په حديث باندې اوپه حديث باندې دعمل كولو په وجه سره دې د تقليد دحنفيت نه نه اوځى (ځكه چه فقه حنفى د صحيح احاديثو د مجموعې نوم دې لكه مخكښې چه تيرشو).

اوبيا فرمائى چه ((ولايخفى ان ذلك لمن كان اهلاً للنظر فى النصوص معرفة محكمها من منسوخها)) يعنى دا د هرچا كار ندې بلكه دا دهغه سړى كار دې چه هغه اهل وى لپاره د سوچ او فكرپه نصوصو كښې او محكم،منسوخ وغيره كښې فرق كولې شى((شامى، ج ۱، ص : ۵۰))

د علامه شامى د قول مقصد دادې چه فقه حنفى دهغې معتمدې شورى د اقوالو نه او دهغوئ د رواياتونه عبارتْ دې چه په هغه شورئ كښې زر (۱۰۰۰) اجل فضلاء اوعلماء ، حفاظ حديث وؤ چه په هغې كښې څلويښت (۴۰) مجتهدين فى المذهب وؤ، په يوې يوې مسئلې باندې به لوئ تحقيق كيدلو . د ډير تحقيق نه وروستو د آيت قرآنيه، احاديث نبويه، آثار صحابه نه فقه حنفى مرتّبه او مدونه كړې شوه. اودغه شورى صرف د امام ابو حنيفه رحمه الله په دور كښې نه وه بلكه وروستو هم موجوده وه ، او د پوره تحقيق نه وروستوكچرته به ورته يو قول مرجوح معلوم شو په مقابله د بل قول كښې نو دهغې نه به ئى رجوع اوكړه، نو دغه شانتې كچرته يو عالم ته «چه ماهر وى د اصول حديثو په علم باندې» يو صحيح حديث معلوم شي او د تحقيق نه وروستو هغه ته خپل مذهب د دغه حديث مخالف معلوم شي نو عمل دې په حديث كوى او د دې وجه نه دې غير مقلد كيږى نه، او فرمائى چه دا رجوع وغيره د هر چا كار ندې، امى خو ډيره لويه خبره ده بلكه كه يو عالم هم وى خوچه په اصول د حديث باندې ماهر نه وى ، ناسخ ،منسوخ ، راجح ، مرجوح او په هغه ټولو رواياتو چه هغې نه احكام مستنبط كيږى خبر نوى نو دهغه لپاره هم د دې گنجائش نيشته دې چه مذهب پريږدى. نو ځومره غلط مقصد ئى ذكر كړيدې د علامه شامى او د بيرى د قول چه شخص امى دې تقليد پريږدى. ((سبحانك هذا بهتان عظيم)) ، د دې آيت ځينې بحث په سورة النساء آيت

نمبر (۵۹) کښې تیر شوي دي

| بِالْبَيِّنٰتِ | وَالزُّبُرِ | وَاَنْزَلْنَآ | اِلَيْكَ | الذِّكْرَ | لِتُبَيِّنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| (ښیرلي وژمونږ) په ښکاره معجزو سره او په کتابونو سره او نازل کړیدي مونږ[1] تاته دا قرآن لپاره د دې چه وضاحت اوکړې ته | | | | | |
| لِلنَّاسِ | مَا | نُزِّلَ | اِلَيْهِمْ | وَلَعَلَّهُمْ | يَتَفَكَّرُوْنَ ۞ اَفَاَمِنَ |
| خلکو ته دهغه احکامو چه نازل کړې شویدي دوئ ته او لپاره د دې چه دوئ فکر اوکړي آیا پس په امن کښې شول[2] | | | | | |
| الَّذِيْنَ مَكَرُوا | السَّيِّاٰتِ | اَنْ يَّخْسِفَ | اللّٰهُ بِهِمُ | الْاَرْضَ | اَوْ يَاْتِيَهُمُ |
| هغه کسان چه منصوبې جوړه وې د بدوکارونو د دینه چه ژوندي به خښ کړي الله دوئ په زمکه کښې او یا را به شي دوئ ته | | | | | |
| الْعَذَابُ مِنْ | حَيْثُ | لَا يَشْعُرُوْنَ ۞ | اَوْ | يَاْخُذَهُمْ | فِيْ تَقَلُّبِهِمْ |
| عذاب د داسې ځائ نه چه دوئ به پرې نه پوهیږي. یا به اونیسي دوئ لره په وخت د ګرځیدلو (سفر کولو کښې) | | | | | |
| فَمَا هُمْ | بِمُعْجِزِيْنَ ۞ | اَوْ | يَاْخُذَهُمْ | عَلٰى تَخَوُّفٍ | فَاِنَّ رَبَّكُمْ |
| پس ندي دوئ عاجزه کوونکي الله لره. یا به اونیسي دوئ لره په یرې سره پس بیشکه رب ستا سو | | | | | |
| لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ۞ | | | | | |
| خامخا دیر شفقت کوونکي رحکم کوونکي دي. | | | | | |

﴿بِالْبَيِّنٰتِ﴾ دَ دې په متعلق کښې ئې دیر احتمالات دی، زیات غوره پکښې دا دې چه دا متعلق دې په «لاتعلمون» پورې، او یا په «ارسلناهم» مقدر پورې، او په دې کښې ترغیب الی القرآن او تشجیع ذکر کیږي لپاره د حضور ﷺ، مراد د «بینات» نه معجزې دی چه لپاره د اثبات د رسالت وی او مراد د ﴿وَالزُّبُرِ﴾ نه کتابونه دی چه لپاره د بیان د شرائعو وؤ. ﴿وَاَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الذِّكْرَ﴾ مراد ترینه قرآن دې ﴿لِتُبَيِّنَ﴾ اشاره ده احادیثو د رسول الله صلی الله علیه وسلم ته، د دینه معلومه شوه چه حضور صلی الله علیه وسلم صرف حامل د وحی نه وؤ، بلکه شارح د وحی هم وؤ، نو دا صراحتًا رد

۱- ترغیب الی القرآن.
۲- تخویف دنیوی.

شو په منکرینو د حدیث باندې ﴿مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ﴾ مراد ترینه احکام او شرائع دی چه مجمل وی ((فقوله لتبين للناس ما نزل اليهم محمول على المجملات)) ، (رازی) ﴿وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ﴾ په دې کښې اشاره ده قیاس ته. نو دا رد دې په منکرینو د قیاس باندې

**فائده** د دې آیت نه لکه څنګه چه دا معلومه شوه چه ادله دشرع څلور دی . په ((الذکر)) سره مراد کتاب الله دې ((لتبین)) کښې اشاره سنت ته ده، او په ((لعلهم يتفكرون)) سره اشاره ده اجماع او قیاس ته. نو دغه شانتې دا هم معلومه شوه چه تشریح د قرآن موقوفه ده په احادیثو د رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې اوهغه تشریح د قرآن معتبره ده کومه چه دحضور صلی الله علیه وسلم د احادیثو نه فهمیږی . او دغه شان دا هم معلومه شوه چه منکر د سنت او د احادیثو د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حقیقت کښې منکر د قرآن دی .

﴿أَفَأَمِنَ الَّذِينَ﴾ د مشرکینو د شبهاتو جوابونه او ترغیب الی القرآن نه وروستو اوس دنه منونکو لپاره تخویف دنیوی ذکر کیږی په څلور قسمه عذاب سره : (۱) خسف په زمکه کښې (۲) ناګهانه آفت آسمانی (۳) د سفر په حالت کښې هلاکت (۴) د مال اوفصل په نقصان سره هلاکت.

﴿مَكَرُوا السَّيِّئَاتِ﴾ په دې کښې حذف دې او ((السیئات)) صفت دې د مصدر محذوف لپاره (((ای مکروا المکرات السیئات)) ، (کشاف) او (یا مکروا) فعل لازمی متضمن دې فعل متعدی لره چه هغه ((عملوا)) دې ، او ((السیئات)) ورلره مفعول به دې ((ای عملوا السیئات ماکرین)) ، (روح) ، او مراد ترینه هغه مخالفتونه او شبهات دی کوم چه مخکښې ذکر شول، او استفهام انکاری دې ، مقصد دا دې چه دوئ د اسلام مخالفت کوی او شبهات پیدا کوی په اسلام کښې نو د الله تعالی د عذاب نه دې نه بې غمه کیږی ﴿أَن يَخْسِفَ﴾ د غوره توجیه مطابق دا مفعول دې د ﴿أَفَأَمِنَ﴾ لپاره. دا اوله طریقه د عذاب ده ﴿أَوْ يَأْتِيَهُمُ الْعَذَابُ﴾ دا دویمه طریقه د عذاب ده چه داسې یو آسمانی آفت به راشی او ناګهانه به ټول هلاك شی لکه څنګه چه قوم لوط هلاك کړې شوې وو ﴿أَوْ يَأْخُذَهُمْ فِي تَقَلُّبِهِمْ﴾ د غوره توجیه مطابق اشاره ده تعمیم د عذاب ته په اعتبار د امکنه سره، چه د الله تعالی عذاب صرف په کور باندې نه راځی بلکه عین ممکنه ده چه دوئ ته د الله عذاب د سفر په حالت کښې راشی چه کوم سفرونه دوئ د دنیا د حصول لپاره کوی او داسې فرمائیلی دی الله تعالی په سورة آل عمران، آیت نمبر (۱۹۶) کښې هم، او نن صبا د دې یو ښه مثال د ایکسیډنټ صورت دې .

او یا تعمیم د عذاب ته اشاره ده په اعتبار د عموم د ازمنه سره . او مراد د «تقلب» نه په بسـرې باندې اوریدل راوریدل دی. یعنی د الله عذاب صرف د ورځې وخت سره ندې خاص بلکه د شپې هم راتلې شی ﴿ أَوْ يَأْخُذَهُمْ عَلَىٰ تَخَوُّفٍ ﴾ څلورمه طریقه د عذاب ذکر کیږی. «تخوف» یا ماخوذ دې د «تخوفة» نه په معنی د نقصان اوکموالی سره یعنی د دوئ هلاکت به د دوئ د اموالو او مواشی او فصلونو په کموالی اوهلاکت سره وکړې شی ((ای تنقص من اموالهم ومواشیهم وزروعهم)) . «قرطبی» . او یا ماخوذ دې د خوف نه او مقصد دا دې چه اولاً الله تعالی یره ورکوی په عذاب سره چه یوه فرقه او طائفه پکښې هلاکه کړی نو په هغې بلې باندې اولاً خوف مسلط شی او بیا وروسـې هلاکت راشی. نو د دې توجیه مطابق عَلی په معنی د مَعَ سره دې ((والمعنی انه تعالی لایأخذهم بالعذاب اوّلاً بل یخیفهم اولاً ثم یعذبهم بعده)) . «کبیر» ﴿ فَإِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴾ اشاره ده سبقیت د رفآت او رحمت د الله تعالی ته چه د قدرت باوجود دوئ ته مهلت ورکوی، اوجلتی نه کوی په عذاب سره

| |
|---|
| أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَىٰ مَا خَلَقَ اللَّهُ مِن شَيْءٍ يَتَفَيَّأُ ظِلَالُهُ عَنِ الْيَمِينِ وَالشَّمَائِلِ |
| آیا نه گوری دوئ [1] هغه څیزونو ته چه پیدا کړیدی الله د هرڅیز نه چه گرځی سورې دهغو ښی طرف نه اوچپ (گس) طرفونو نه |
| سُجَّدًا لِّلَّهِ وَهُمْ دَاخِرُونَ ۝ وَلِلَّهِ يَسْجُدُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ |
| سجده کوونکی دی الله ته او دوئ عاجزی کوونکی دی . اوخاص الله لره سجده کوی هغه څه چه په آسمانونو کښې دی |
| وَمَا فِي الْأَرْضِ مِن دَابَّةٍ وَالْمَلَائِكَةُ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ۝ |
| اوهغه څه چه په زمکه کښې دی د هرقسم گرځیدونکو نه اوفرښتې هم (سجده کوی) او (حال دادې) چه دوئ لوئی نه کوی |
| يَخَافُونَ رَبَّهُم مِّن فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ ۝ |
| ویریږی دوئ د رب خپل نه په داسې حال کښې چه الله غالب دې پدوئ او کوی دوئ هغه کار چه دوئ ته حکم کولې شی |

﴿ أَوَلَمْ يَرَوْا ﴾ دا په توحید باندې څلورم دلیل عقلی ذکر کیږی چه هر شې د الله د حکم منقاد

۱ - څلورم دلیل عقلی .

او مطیع دي . حتی چه یو سورې ورکونکی شی والا سورې هم الله تعالی سجده لګونکې دې ﴿مِن شَيْءٍ﴾ بیان د ما خلق الله دې او مراد ترینه هغه اشیاء دی چه هغه کثیف او د سوری والا وی. لکه غرونه . ونې وغیره شول ﴿يَتَفَيَّؤُا﴾ د اصل په اعتبار سره (فیء) وئیلی کیږی عود کولو ته. مقصد دا دې چه دغه سورې د یو جانب نه بل جانب ته بدلیږی، په اول النهار کښې په یو حالت کښې وی او په آخر النهار کښې په بل حالت کښې وی، کله کمیږی اوکله زیاتیږی. نو د دې سورو کموالې . زیاتوالې یو طرفته اوبل طرفته بدلیدل رابدلیدل دا په حقیقت کښې د دوئ سجده ده الله تعالی ته .

﴿ظِلَالُهُ﴾ دا فاعل دې لپاره د «يتفيئو» او په دې کښې اشاره ده چه پدې سوری کښې حرکت ارادیه نیشته دې اوغوره قول دا دې چه دا تفیئ او حرکت یومیه مراد دې.

﴿عَنِ الْيَمِينِ وَالشَّمَآئِلِ﴾ مراد ترینه دوه طرفین د یوشی دی ، او دیمین مفرد او دشمائل جمع راوړلو وجه داده چه په ﴿مَا خَلَقَ اللَّهُ﴾ کښې (ما) لفظًا مفرد وؤ، اومعنًی جمع ده نو په «الیمین» سره د صورت اعتبار شوې دې نو ځکه مفرد راوړې شوې دې، او په (الشمائل) کښې د معنی اعتبار کړې شوې دې نو ځکه جمع راوړې شوې دې، دا توجیه د فراء ده ، بعضی مفسرین فرمائی چه «الیمین» اګرچه په اعتبار د لفظ سره مفرد دې خو په معنی کښې جمع ده، ځکه چه هرکله په یوشی کښې دوه متضاد علامات جمع شی نو عرب یو مفرد او بل جمع ذکر کوی، او مراد د دواړو نه جمع وی، لکه ((یخرجهم من الظلمات الی النور))، (البقرة : ۲۵۷) یا لکه : ((جعل الظلمات والنور)) ، (الانعام ۱) ، (قرطبی) دریمه توجیه د بعض علماؤ نه داسې منقوله ده چه هرکله سورې شروع کیږی د جانب د مشرق نه چه هغه جانب یمین د فلك دې نو د ده لپاره یو حالت وی نو ګویا چه جانب یمین واحد شو او بیا چه جانب شمال ته ګرځی نو په هغې کښې انحرافات کثیره او احوال مختلفه وی نو ځکه «الشمائل» جمع راوړې شو (کبیر) .

﴿سُجَّدًا﴾ دا حال دې د (ظلاله) نه او په سجده کښې دوه اقوال دی : یو دا چه سجده په معنی د انقیاد سره ده یعنی دا سورې انقیاد کونکې دې الله تعالی ته، ځکه چه د ده زیاتیدل کمیدل په حکم د الله تعالی سره دی، د دې انقیاد نه تعبیر په سجدې سره اوشو ، او دویم قول دا دې چه د سجدې اطلاق په دې سورې باندې مشاکلةً شویدې، ځکه چه دا سورې عین استواء د شمس او نصف النهار په وخت کښې ولاړ وی، بیا چه کله زوال اوشی نو دې لړ لړ زیاتیږی نو دزمکې سره الصاق او بیا رو رو زیاتدل نو دا داسې دی لکه په مونځ کښې حالت د قیام او بیا د قیام نه رکوع اوبیا د

رکوع نه سجدې ته تلل، نو ځکه ورته سجده وه وئیلې شوه، او دا مشاکلت اګرچه د پوره مونځ سره دې خو سجده چونکه جزء اعظم دې نو د دې وجه نه ئې تخصیص اوشولو. او د دې وجه دحضرت حسن بصری رحمه الله نه منقول ده چه فرمائی چه ((اما ظلك فیسجد لربك واما انت فلا تسجد لربك بئسما صنعت)) یعنی هرچه دې سورې ستا نوهغه الله تعالی ته سجده کوی او هرچه ئې ته نو الله تعالی ته سجده نه لګوې» اودغه شانتې قول مروی دې د حضرت مجاهد رحمه الله نه هم چه فرمائی ((ظل الكافر يصلى وهو لايصلى)) او امام رازی رحمه الله فرمائی چه ((ان الوجه الاول اقرب الى الحقائق العقلية والثانى الى الشبهات الظاهرة)) ، (کبیر) ، ﴿وَهُمْ دَاخِرُونَ﴾ مراد ترینه ذوی العقول اوغیر ذوی العقول ټول دی خو تغلیبًا د ذوی العقولو جمع استعمال شوه، او یا د غیر ذوی العقولو د سجدې دوجه نه مشابه شو د ذوی العقول سره لکه څنګه چه د عبادت نه کولو د وجه نه ذوی العقولو ته غیر ذوی العقول او انعام وئیلې شوی دی ، نو د دې وجه نه صیغه د ذوی العقولو استعمال شوه.

﴿وَلِلَّهِ يَسْجُدُ﴾ په ماقبل آیت کښې ذکر د سجدې د اشیاء کثیفه وؤ او په دې کښې د مطلق مخلوقاتو د سجدې ذکر کیږی، مراد د سجدې نه د غوره قول مطابق انقیاد دې چه دهغې لپاره دوه افراد دی یو فرد متعارف چه هغه سجده تعبدی ده، اوبل فرد غیر متعارف چه خضوع ده او جار مجرور متعلق دې په «یسجد» پورې ، او تقدیم لپاره د قصر دې ، یا قصر افراد دې او یا قصر قلب په اعتبار د حالاتو د مخاطب سره ﴿مِن دَابَّةٍ وَالْمَلَائِكَةُ﴾ (من) بیانیه دې، دا بیان دې د ماقبل جملې لپاره، او (دابة) ماخوذ ده د «دَبیب» نه په معنی د حرکت جسمانی سره که هغه په زمکه کښې وی یا آسمان کښې وی، او مراد د ﴿وَالْمَلَائِكَةُ﴾ نه یا ټول ملائك دی که په زمکه کښې دی یا په آسمان کښې، او یا ترینه صرف د زمکې والا ملائك مراد دی، او دغوره توجیه مطابق ملائك په دابه کښې داخل دی او دا تخصیص بعد التعمیم دې لپاره د رد په مشرکینو باندې چه هغوئ به ملائکوته بنات الله وئیل او د الله تعالی سره به ئې په عبادت کښې شریك کولې ، او بعض مفسرین فرمائی چه ﴿وَالْمَلَائِكَةُ﴾ په جر سره عطف دې په «دابة» باندې او دا بیان دې لپاره د «مافی السماوات» او «من دابة» بیان دې لپاره د «مافی الارض» ، او پدې آیت کښې لف نشر غیر مرتب دې، دا آیت صریح شو پدې کښې چه ټول مخلوقات دی ټول د الله منقاد دی که هغه اشرف دی اوکه اخس دی، ((بین هذه الآية ان الحيوانات باسرها منقادة لله تعالى لان اخسها الدواب واشرفها الملائكة)) ، (کبیر)

﴿وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ﴾ ضمير راجع دي ملائكو ته چه د لوئ شان باوجود دوئ د الله د عبادت نه تکبر نکوی ﴿يَخَافُونَ﴾ دا جمله يا حال واقع شوي ده د ضمير د «لايستكبرون» نه ، ((اى لايستكبرون حال كونهم خائفين)) ، (كشاف) ، او بيان دي د نفى د استكبار د ملائكو نه په دوه صفتونوسره چه يو خوف دي دعذاب د الله تعالى نه او بل امتثال د امر د الله تعالى دي. ﴿مِّن فَوْقِهِمْ﴾ جار مجرور يا متعلق دي په «يخافون» پوري او يا متعلق دي په «ربهم» پوري اوحال واقع شوي دي دهغې نه. امام راغب رحمه الله دفوق د استعمال شپږ مواقع بيان کړی دی : (۱) مکان (۲) زمان (۳) جسم (۴) عدد (۵) منزلت (۶) قهر او غلبه. داهل سنت والجماعت په دې اجماع ده چه فوقيت په اعتبار د مکان سره په الله تعالى کښې محال دي او دا کفريه عقيده چه الله له ثبوت دمکان دې ذا دمجسمو عقيده ده، د دې وجه نه اهل سنت والجماعت مفسرين د دې آيت څو قسمه تشريح کوی چه په هغې کښې زيات غوره دوه توجيهات دی : (۱) يوه توجيه داده چه د فوق نه مراد غلبه ده . علامه الوسى رحمه الله فرمائى : ((ومعنى كونه سبحانه وتعالى فوقهم قهره وغلبته لان الفوقية المكانية مستحيلة بالنسبة اليه تعالى)) ، فخر المفسرين امام رازى رحمه الله فرمائى چه : ((ويجب حمل هذه الفوقية على الفوقية بالقدرة القهر)) او بيا فرمائى چه ((لانها هى موجبة للخوف واما الفوقية بالجهة والمكان فهى لاتوجب الخوف بدليل ان جالس البيت فوق الملك بالمكان والجهة مع انه اخس عبيده)) ، (كبير) ، علامه زمخشرى رحمه الله د دې آيت تفسير داسې کوی : ((يخافون ربهم عاليًا لهم قاهرًا)) ، (كشاف)، جلالين د دې آيت په ترجمه کښې داسې فرمائى چه : ((اى عاليًا عليهم بالقهر)) ، (۲) دويمه توجيه داده چه دلته کښې عبارت محذوف دي چه هغه لفظ د عذاب دې ((اى عقاب ربهم وعذابه لان العذاب المهلك انما ينزل من السماء)) ، (قرطبى)، علامه زمخشرى رحمه الله داسې فرمائى ((اى يخافونه ان يرسل عليهم عذابًا من فوقهم))، (كشاف) امام رازى رحمه الله فرمائى : ((معناه يخافون من ان ينزل عليهم العذاب من فوقهم)) ، (كبير)، نو د دې ټولو خلاصه داده چه اهل سنت والجماعت فوقيت په اعتبار دمکان سره لپاره د الله تعالى نه ثابتوی ، هرچه دې قول د ځينې معاصرو مفسرينو چه د فوق تاويل کول کول په غلبې سره غلط دی، نو دا په خپله غلط دي او د خواشهات نفسانى اتباع ده او د دې آيت ځينې تشريح په سورة الانعام آيت نمبر (۶۱) کښې تيره شويده

﴿وَيَفْعَلُونَ﴾ په دې کښې دهغوئ امتثال حکم ته اشاره ده

**فائده** (١) امام رازی رحمه الله فرمائي چه پدې آيتونو کښې الله تعالى د فرښتو اوصاف بيان کړل چه دهغوئ نه گناه متصورهم ندي ، معصوم دی د هرقسم گناه نه . ((هي دلالة قارة قاطعة على عصمة الملائكة عن جميع الذنوب)) نو د دينه دا هم معلومه شوه چه ابليس د جنس د ملائکونه نه وو .

**فائده** (٢) امام رازی رحمه الله فرمائي چه د خوف يو قسم هغه دې چه هغه د مجرم خوف وی نو هغه خوف صرف د سزا وی ، دويم قسم خوف هغه دې چه هغې ته خوف اجلال او کبرياء ويلې کيږي، نو خوف د فرښتو هغه له دې وجه نه ندې چه دوئ نه گناه صادريږي، بلکه دا خوف اجلال دې ((ذلك الخوف خوف الاجلال ........... وهذا يدل على انه كلما كانت معرفة الله تعالى كان الخوف عنه اعظم وهذا الخوف لايكون الاخوف الاجلال والكبرياء)) (کبير)

| وَقَالَ اللّٰهُ لَا تَتَّخِذُوْٓا اِلٰهَيْنِ اثْنَيْنِ ۚ اِنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ فَاِيَّايَ فَارْهَبُوْنِ ﴿۵۱﴾ |
|---|
| اوفرمائيلي دی الله [١] چه مه نيسئ تاسو خدايان دوه بيشکه هغه معبود يو دې پس خاص خما نه اويريږئ تاسو |
| وَلَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلَهُ الدِّيْنُ وَاصِبًا ؕ |
| اوخاص دهغه په اختيار کښې دی هغه څيزونه چه په آسمانونو اوپه زمکه کښې دی اوخاص هغه لره تابعداری لازمه ده [٢] |
| اَفَغَيْرَ اللّٰهِ تَتَّقُوْنَ ﴿۵۲﴾ وَمَا بِكُمْ مِّنْ نِّعْمَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ |
| آيا پس سيوا د الله (بل چانه) يريږئ تاسو؟ اوهغه چه په تاسو باندې څه نعمت دې [٣] پس دطرفه دالله نه دې |
| ثُمَّ اِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فَاِلَيْهِ تَجْـَٔرُوْنَ ﴿۵۳﴾ ثُمَّ اِذَا كَشَفَ الضُّرَّ |
| بيا هرکله چه اورسيږي تاسوته ضرر (تکليف) پس هم ده ته تاسو فرياد کوئ بيا هرکله چه لرې کړی (الله) هغه ضرر (تکليف) |
| عَنْكُمْ اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْكُمْ بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُوْنَ ﴿۵۴﴾ لِيَكْفُرُوْا |
| د ستاسونه نو ناگاه يوه ډله (جماعت) د ستاسونه د رب خپل سره شريکان جوړوی (انجام به داشي) چه ناقدری اوکړی دوئ |

١- دريم خل د سورت د دعوی اعاده .

٢- دويمه ترجمه او عبادت خاص دَ الله حق دې.

٣- زجر د امتنان په صورت کښې .

| بِمَآ | اٰتَيْنٰهُمْ | ط | فَتَمَتَّعُوْا | قف | فَسَوْفَ | تَعْلَمُوْنَ | ⑤ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

دهغه نعمت چه مونږ ورکړې دې دوئ ته، پس مزې واخلئ تاسو، پس زردې چه پوهه به شئ تاسو

﴿وَقَالَ اللّٰهُ﴾ دا په دريم ځلې دعوی د سورت ذکر کيږي او دا جمله عطف ده په ماقبل جملې ﴿وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ﴾ باندې معنی داده چه کله هر يو شې تکوينی طور د الله تعالی منقاد دې اوهغه ته سجده کونکې دې نو تاسوهم نور خدايان دځان لپاره مه نيسئ بلکه صرف او صرف دهغه عبادت کوئ ﴿لَا تَتَّخِذُوْٓا اِلٰهَيْنِ﴾ جمع د عدد او معدود د واحِد او د اثنين نه علاوه په نورو اعدادو کښ راځی او دلته چه کومه جمع راغليده نو د دې مختلف توجيهات بيان کړې شوی دی : (۱) يوه توجيه داده چه پدې کلام کښ تقديم اوتاخير دې ، اصل عبارت داسې دې چه ((لاتتخذوا اثنين الهين)) ، (۲) دويمه توجيه داده چه هغې ته امام رازی رحمه الله زياته راجحه وئيلې ده ، هغه داده چه زيادت د اثنين لپاره د تاکيد دې او مقصود پدې سره د شرک قباحت او نفرت د اظهار دې په طريق اتم سره ځکه چه کله هم يو شې ډير قبيح وی نو دهغه د قباحت زياتوالی ځرګندولو لپاره ډير عبارات ذکر کولې شی، نو په هر يو عبارت سره به د دغه شی والا قباحت مستقلاً ظاهريږی، (۳) دريمه توجيه داده چه نفی د ((الهين)) کښ د دوه څيزونو دثبوت احتمال دُې يو دا چه مقصود په نفی سره دې ثبوت د اله وحد وی چه (الهين) مه نيسئ بلکه يو اله ونيسئ ، دويم دا چه مقصود په نفی سره دې ثبوت د (آلهه) متعدده وی چه ((الهين)) مه نيسئ بلکه زيات آله ونيسئ، نو چه اثنين نوې ذکر شوې نو دا پته نه لګيده چه پدې نفی سره د کوم احتمال ثبوت مقصود دې نو هرکله چه ذکر د اثنين وشولو نو پته اولګيده چه مقصود نفی د تعدد ده او ثبوت د واحد دې ، (۴) څلورمه توجيه داده چه په اسم مفرد او تثنيه کښ دلالت په دوه شيونو وی ، يو دلالت په جنس باندې وی او دويم دلالت په عدد مخصوص باندې وی نو کچرته اثنين نوې زيات کړې شوې نو بيا به دا پته نه لګيده چه مقصود نفی د مطلق اوجنس الهين ده اوکه نفی د عدد ده، نو د اثنين په زياتوالی سره پته اولګيده چه د جنس اله نفی نده مراد بلکه د هغه نه د عدد مخصوص نفی مراد ده، او د دې وجه نه وروستو وريسې صرف الهٌ ونه وئيلې شو بلکه ((اله واحد)) اوئيلې شو ځکه چه مقصود دجنس اله اثبات ندې بلکه د اله واحد اثبات دې ، (۵) يوه پنځمه توجيه امام رازی رحمه الله ذکر کړيده چه مقصود پدې نفی سره تنبيه ده په اجتماع د متنافيينو باندې عقلاً په تقدير د ثبوت د شرک سره يعنی کچرته تعدد د اله راشی نو لازم به شی اجتماع د متضادينو او تالی باطل دې بداهةً نو مقدم ئی مثل دې، هرچه دې دليل

دملازمې نو هغه امام رازی رحمه الله ذکر کړي دي په وجوه اربعه سره ((من شاء فلیطالعه ثمه)).

﴿إِنَّمَا هُوَ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ﴾ دا په منزله د نتیجې دي د ماقبل لپاره چه هرکله تعدد نفی شو نو معلومه شوه چه معبود برحق یو دي چه هغه تن تنها ذات د الله تعالی دي ﴿فَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ﴾ پدې کښې التفات دي د غائب نه متکلم ته ځکه چه دا ابلغ دې په ترهیب کښې په نسبت سره غائب ته، داسې ذکر په سورة البقرة کښې هم شوې دې ﴿وَلَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ﴾ دا دلیل عقلی دې او متعلق دې په څلورم دلیل عقلی ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا﴾ پورې او دهغې حصه ده ﴿وَلَهُ الدِّينُ وَاصِبًا﴾ مراد د دین نه عبادت او انقیاد دې او واصب په معنی د دائم سره دې اویا په معنی د خالص سره دې ﴿أَفَغَيْرَ اللَّهِ تَتَّقُونَ﴾ دا زجر دې چه هرڅه د الله تعالی په تصرف کښې دی او هر یو څیز خالص دهغه په اطاعت باندې مامور دې نو تقوی او خوف هم دهغه نه پکار دی ، نو د «تتقون» نه مراد مخصوصه تقوی ده چه هغه توحید ته وئیلې کیږی او استفهام لپاره د انکار دې، یعنی الله تعالی نه علاوه د بل چا خوف خدائی په زړه کښې ندی راوستل پکار، او یا استفهام لپاره د تعجب او توبیخ دې چه د قدرت د دومره دلائلو د ذکر کولو نه پس هم تاسو د بل چا نه یریږئ او هغه ته مشکل کشا وایئ ؟ دا څنګه کیدې شی؟ (بحر).

﴿وَمَا بِكُم مِّن نِّعْمَةٍ﴾ دا امتنان په طور د زجر کښې دې چه څومره نعمتونه دی دا ټول د الله تعالی د طرفه دی او دهر تکلیف دفعیه هم د الله تعالی په قبضه کښې ده او تاسو د تکلیف په وخت کښې هغه ته فریاد کونکی یئ، نو پکار ده چه صرف او صرف د هغه عبادت دې اوکړې شی، خو بیا هم تاسو دهغه سره شریك جوړوئ «ما» په «مابکم» کښې موصوله ده متضمنه ده معنی د شرط لره او «ب» یا شرطیه ده او فعل شرط ورله مقدر دې اوجار مجرور په هغه پورې متعلق دی ((ای ما یکن بکم)) . (قرطبی) . او «من» لپاره د استغراق دې شامل دې هر قسم نعمت ته، ظاهری وی یا باطنی، دینی وی اوکه دنیوی، بدنی وی اوکه مالی وی ﴿مَسَّكُمُ الضُّرُّ﴾ مراد ترینه مرضونه، قحط او تکلیفونه دی ﴿تَجْأَرُونَ﴾ جوار په اصل کښې د ځنګل ځناور او یا د غوایه آواز ته وئیلې کیږی او مراد ترینه دلته په اوچت آواز سره او په عاجزئ سره دعا او مدد غوختل دی د الله تعالی نه ﴿ثُمَّ إِذَا كَشَفَ الضُّرَّ عَنكُمْ﴾ په دې کښې اشاره ده دیته چه لرې کوونکې د تکلیفونو هغه الله تعالی دې ﴿إِذَا فَرِيقٌ مِّنكُم﴾ «اذا» مفاجائیه ده او «من» په «منکم» کښې یا بیانه دې چه د فریق بیان ئې اوکړو

او خطاب كافرو ته دي ((اى هي فريق هي انتم تشركون)) او يا «من» تبعيضيه دي څکه خيني د مشركينو به داسي هم وئ چه کله به ورته تکليف اورسيدلو او بتانو به ئې څه اونکړل او الله تعالى ته به ئې سوال اوکړو او الله پاك به د دوئ سوال قبول کړو نوهغوئ به بيا خپل کفر پريخودلو او ايمان به ئې راوړو لکه څنګه چه ذکر دی په دې قول د الله تعالى کښ ﴿فَلَمَّا نَجَّىٰهُمْ إِلَى ٱلْبَرِّ فَمِنْهُم مُّقْتَصِدٌ﴾ . (لقمان. آيت نمبر ۳۲) صاحب د روح المعانى د دې آيت په ضمن کښ فرمائى چه ((وفى الآية ما يدل على ان صنيع اكثر العوام اليوم من الجوار الى غيره تعالى ممن لايملك لهم بل ولا لنفسه نفعًا ولا ضرًا عند اصابة الضر لهم – الخ)) . يعنى پدې آيت کښ دلالت دې پدې چه کوم خلك نن صبا خپل حاجتونه د الله تعالى نه علاوه له نورو داسې مخلوقاتو نه پوره کول غواړى چه هغوئ دوئ ته د څه قسم فائدې يا ضرر ورکولو مالکان ندى بلکه د خپل ځان لپاره مالکان ندى اومحتاجه دى الله تعالى ته «لکه اولياء الله اويا دهغوئ قبور شول» نو د دوئ دا ګمراهى د مخکنيو مشرکينو د ګمراهئ نه بدتره ده (روح المعانى . ج ۱۴ . ص ۱۶۶) ﴿لِيَكْفُرُوا﴾ د غوره قول مطابق لام لپاره د عاقبت دې ﴿فَتَمَتَّعُوا﴾ امر لپاره د تهديد دې ﴿فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ﴾ دا تخويف اخروى دې چه کوم وخته پورې به کفر کوئ؟ ستاسو د بدو اعمالو سزا به زر درته ملاؤ شي.

| |
|---|
| وَيَجْعَلُونَ لِمَا لَا يَعْلَمُونَ نَصِيبًا مِّمَّا رَزَقْنَاهُمْ ۗ |
| اومقرره وى دوئ لپاره [1] دهغه چا (بتانو) چه نه پوهيږى، برخه بعضې دهغه مال نه چه مونږ ورکړې دې دوئ ته |
| تَاللَّهِ لَتُسْأَلُنَّ عَمَّا كُنتُمْ تَفْتَرُونَ ﴿٥٦﴾ وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ |
| قسم دې په الله [2] خامخا تپوس به اوشى ستاسو نه دهغه څه چه تاسو دروغ جوړوئ اومقرره وى دوئ لپاره د الله |
| الْبَنَاتِ سُبْحَانَهُ ۙ وَلَهُم مَّا يَشْتَهُونَ ﴿٥٧﴾ وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم |
| لونړه. پاك دې الله . او دى دوئ لره هغه څه چه دوئ ئې خوښه وى اوکله چه زيرې ورکړې شي يو کس د دوئ ته |

[1] زجر د شکوى په صورت کښ او اشاره ده نفى د شرك فعلى ته.
[2] تخويف اخروى

بِالْأُنْثٰى ظَلَّ وَجْهُهٗ مُسْوَدًّا وَّهُوَ كَظِيْمٌ ۝

په لور سره نو اوګرځي مخ د ده تك تور او دې ډك وي د غصې نه

﴿ وَيَجْعَلُونَ ﴾ پدې کښې زجر او په دويم ځلې نفې دشرك فعلي ذکر کيږي يعنی الله تعالى فرمائي چه نعمتونه ما درکړي دي او تاسو ئې د غير الله په نوم باندې نذر کوئ او دهغوئ لپاره تحريمات کوئ. او «يجعلون» عطف دې په «يشركون» باندې او تفسيردې لپاره دهغې ﴿لِمَا لَا يَعْلَمُونَ ﴾ «ما» موصوله عبارت دې د بتانو نه او ضمير په «لايعلمون» کښې يا راجع دې مشرکينو ته او مقصد دا دې چه دا مشرکين نه پوهيږي په احوالو د خپلو معبودانو باندې ((اى لايعلمون احوالها وانها لاتضر ولاتنفع))، «روح»، او يا ضمير دجمع راجع دې «ما» ته چه هغه عبارت دې د آلهه نه، او مقصد دا دې چه د دوئ اله د دوئ د نذرونو او د دوئ د عبادت نه بالکل ناخبره دي او په هيڅ هم نه پوهيږي ﴿نَصِيبًا مِّمَّا رَزَقْنٰهُمْ ﴾ مراد ترينه مطلق عبادات ماليه دي که هغه څاروي دي يا فصل دې وغيره. او دا آيت منافی د ايصال ثواب سره ندې ﴿تَاللّٰهِ لَتُسْـَٔلُنَّ ﴾ دا تخويف دې. او دا سوال به تخويفًا او تقريعًا وي. او مراد ترينه يا سوال په آخرت کښې دې او يا په قبر کښې او يا قريب الموت وخت کښې چه کله معاينه اوکړي دملائکو دعذاب ﴿عَمَّا كُنْتُمْ تَفْتَرُوْنَ ﴾ مراد ترينه عقائد شرکيه او مسائل شرکيه دي. التفات د غائب نه خطاب ته او دغه شانتې کلام په قسم سره ذکر کولو کښې اشاره ده کمال غضب او شدة الوعيد ته ﴿ وَيَجْعَلُونَ لِلّٰهِ الْبَنٰتِ ﴾ زجر بطور شکوی دې چه ځينې مشرکينو «بنی خزاعه، کنانه» به ملائکو ته د الله تعالى بنات او لونړه وئيل. او دخپل ځان لپاره به ئې نه خوخولې، نو چه کوم شې دوئ دځان لپاره ناخوښ کنړلو نوهغه به ئې الله تعالى ته ثابته ولو.

﴿سُبْحٰنَهٗ ﴾ دا ردّ دې د قول د مشرکينو او «سبحانه» يا تقديس اوتنزيه د الله تعالى ده د انتساب د ولد نه هغه ته. او يا تعجيب د مخلوقاتو دې د دغه صريح جهل نه چه دوئ ملائکوته اناث «زنانه» او وئيل او بيا ئې نسبت د ولديت «دبچو» اوکړو الله تعالى ته نو دا ډير لوئ او صريح جهل وؤ نو خکه پدې باندې «سبحانه» اووئيلې شول ((تعجيب الخلق من هذا الجهل القبيح وهو وصف الملائكة بالانوثة ثم نسبتها بالولدية الى الله تعالى)) ، «كبير»، او يا دا په معنى د معاذ الله سره دې ﴿ وَلَهُمْ مَّا يَشْتَهُوْنَ ﴾ مراد ترينه نارينه اولاد دې ﴿ وَإِذَا بُشِّرَ ﴾ دا جواب شکوى او دمشرکينو د قول الزامی

جواب دې، ((تبشير)) وئيلې کيږي هغه اول خبر ته چه په هغې سره سړې خوشحاله کيږي. خو دلته ترينه مراد مطلق خبر ورکول دي ځکه چه د لور د پيدائش په خبر باندې به دوئ نه خوشحاله کيدل.

او امام رازي رحمه الله فرمائي چه تبشير د اصل په اعتبار سره وئيلې کيږي هغه خبر ته چه په هغې سره تغير او تبديل په رنګ د بشرې او مخ کښې راځي ((عبارة عن الخبر الذى يؤثر فى تغير بشرة الوجه)).

(كبير) نو د دې په اعتبار سره لفظ د بشارت مشترك دې په خبر د خير او د شر کښې ځکه چه څنګه په خبر دخير سره په مخ کښې تغير او تبديل راځي نو دغه شانتې په خبر د شر سره هم راځي. اګرچه په اعتبار د عرف سره خاص دې په هغه خبر پورې چه مفيد وي لپاره د خوشحالئ ﴿ظَلَّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا﴾ په معنی د متغيراً سره دې او دا کنايه ده د سخت غم او پريشانئ نه او مراد د سواد نه خاص هغه ندې چه کوم ضد د بياض راځي اګرچه دا آيت هغې ته هم شامل دې . دلته ترينه مراد دمخ والا رنګ بدليدل دي ((وليس يريد السواد الذى هو ضد البياض وانما هو كناية عن غمه بالبنت)) ، (قرطبي) .

﴿وَهُوَ كَظِيمٌ﴾ ماخود دې د کظامة نه چه هغه د متکي خولې بندولو ته وئيلې کيږي، مراد ترينه دادې چه دې دغصې نه ډك وي او خبرې کولې نشي (قرطبي).

| |
|---|
| يَتَوَارَىٰ مِنَ الْقَوْمِ مِن سُوٓءِ مَا بُشِّرَ بِهِۦٓ ۚ أَيُمْسِكُهُۥ |
| پټ ګرځي دې د خپل قوم نه له وجه د ناخوښئ دهغې نه چه ده ته زيرې ورکړې شويدې په هغې سره، آيا اوساتي دې هغه |
| عَلَىٰ هُونٍ أَمْ يَدُسُّهُۥ فِى التُّرَابِ ۗ أَلَا سَآءَ مَا يَحْكُمُونَ ۝ |
| په ذلت سره يا ئې ژوندئ ښخه کړي په خاورو کښې ، خبردار شئ ډيره بده ده هغه فيصله چه دوئ ئې کوي |
| لِلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْءَاخِرَةِ مَثَلُ السَّوْءِ ۖ وَلِلَّهِ الْمَثَلُ الْأَعْلَىٰ ۚ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ۝ |
| لپاره دهغه کسانو چه يقين نه لري په آخرت باندې حال دې ډير بد ، او الله لره خاص دې صفت اُوچت او هغه غالب، حکمتونو والا دې |

﴿يَتَوَارَىٰ مِنَ الْقَوْمِ﴾ يعنی د شرم او د پيغور د وجې نه پټ ګرځي او ((من)) ابتدائيه دي ﴿مِن سُوٓءِ﴾ دا ((من)) تعليليه او اجليه دي ﴿أَيُمْسِكُهُۥ عَلَىٰ هُونٍ﴾ د دې نه مخکښې عبارت مقدر دې چه ((يحدث نفسه وينظر – الخ)) دې او ((ه)) ضمير راجع دې ((مابشر به)) ته او تذکير د ضمير په اعتبار د لفظ موصول سره دې او (هون) ياحال واقع دې د ضمير فاعل نه . او صفت دې دپاره د پلار: هغې مولودې او معنی ئې داده چه دې دا فکر شروع کړي چه آيا اوساتمه دا پلار دغه مولوده په

حال کون سره د رضا نه په ذلت د نفس خپل باندې . او یا حال دې د مفعول نه اوصفت دې دپاره د ﴿مَابُشِّرَ بِهِۦٓ﴾ چه هغه لور ده او چه او ساتي دغه مولوده په حال کون د دې کښې چه دا به ذلیله وی. چه هغه ترجیح ده اولاد نارینه ته او حرمان د هغې دې د میراث نه ﴿أَمۡ يَدُسُّهُۥ فِي ٱلتُّرَابِۗ﴾ دویمه نوعه د سلوك بیانیږی د لونړو سره. یوه طریقه په ذلت سره د هغې ژوندی پریښودل وو او دویمه طریقه د سلوك چه ژوندئ به ئې په خاورو کښې ښخولې د لونړو د ژوندی ښخولو دپاره به کله سبب پیغور اوشرم وو . او کله به د خرڇې یره وه ﴿أَلَا سَآءَ مَا يَحۡكُمُونَ﴾ چه کوم ذات د بی بی د اولاد نه منزه دې نو د هغه دپاره هغه اولاد ثابتوئ او د خان دپاره ئې لوئ شرك گنړئ ، څومره شرمناکه فیصله ده ﴿لِلَّذِينَ لَا يُؤۡمِنُونَ بِٱلۡأٓخِرَةِ مَثَلُ ٱلسَّوۡءِۖ﴾ په دې کښې د مشرکینو دقول شناعت ته اشاره ده، او مراد په ((مثل السوء)) سره بیکاره صفات دی . چه هغه احتیاج دې اولاد ته . او غوره والې د نارینه اولاد دې په زنانو باندې ، ا ولونړه د شرم یاخوف فقر نه ژوندئ ښخول شوئ. ((هی الحاجة الى الاولاد الذكور وكراهة الاناث وادهن خشية الاملاق)) (کشاف) ﴿وَلِلَّهِ ٱلۡمَثَلُ ٱلۡأَعۡلَىٰۚ﴾ مراد ترینه اوچت صفات د الوهیت دی که هغه صفات ثبوتیه دی، او که سلبیه دی، لکه وجوبی ذاتی، غنی مطلق قدرت وغیره شول.

| وَلَوۡ يُؤَاخِذُ ٱللَّهُ ٱلنَّاسَ بِظُلۡمِهِم مَّا تَرَكَ عَلَيۡهَا |
|---|
| اوکچرته نیولې [1] (فی الحال) الله خلکو لره په سبب د ظلم دهغوئ سره، نه به وې پریښې په مخ د زمکې باندې |
| مِن دَآبَّةٖ وَلَٰكِن يُؤَخِّرُهُمۡ إِلَىٰٓ أَجَلٖ مُّسَمّٗىۖ فَإِذَا جَآءَ أَجَلُهُمۡ |
| هیځ قسم گرځیدونکې خولیکن روستو کوی دوئ لره تر هغه نیټې مقررې پورې چه کله راشی نیټه د دوئ |
| لَا يَسۡتَـٔۡخِرُونَ سَاعَةٗ وَلَا يَسۡتَقۡدِمُونَ ۝٦١ وَيَجۡعَلُونَ لِلَّهِ مَا يَكۡرَهُونَ |
| نه به وروستو کیدې شی یو ساعت اونه به مخکښې کیدې شی . او مقرره وی دوئ الله لره هغه څه چه بد گنړی دوئ (دخان لپاره) |

---

[1] - تخویف دنبوی سره د زجر نه

| وَتَصِفُ أَلْسِنَتُهُمُ الْكَذِبَ أَنَّ لَهُمُ الْحُسْنٰى ۖ لَا جَرَمَ أَنَّ لَهُمُ النَّارَ |
|---|
| اوبيانوي ژبې د دوئ دروغ دا چه بېشکه شته ښېګڼې د دوئ ښه حالت. حقه ده داخبره چه بېشکه ښيګڼې د دوئ اور دې |
| وَ أَنَّهُمْ مُفْرَطُونَ ۝ |
| او بېشکه دوئ به ورته مخکښې او غورځولي شي. |

﴿ وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ ﴾ په دې کښې تخويف دنيوی ذکر کيږی ، ا و وجه ذکر کيږ ی د فوری عذاب نه راتلو دپاره. چه د کفارو والا کفر او افتراء انتهاء ته رسيدلې ده ، خو الله فوری عذاب دوئ باندې نه راولی بلکه مهلت ورکوی، اوکه چرته الله مجرم ته د هغه په جرم باندې فوری سزا ورکولې په مخ د زمکې باندې به هيڅ شې هم ژوندې نه وو پاتې شوې ﴿بِظُلْمِهِمْ﴾ باء سببيه ده ((اي بسبب ظلمهم ماترك عليها من دآبة)) ((عليها)) کښې ضمير راجع دې ((الارض)) ته چه هغه مدلول د ((الناس)) دې ځکه انسانان په زمکه باندې پاتې کيږ ی. او مراد ((دآبة)) نه د غوره قول مطابق عام مخلوقات دی ، نو هر چه دې ظالم نو هغه به د خپل ظلم د وجې نه هلاك کړې شی ا وهرچه دی باقی مخلوقات نو هغوئ به يا د دوئ دګناه د نحوست دوجې نه هلاك شی چه بارانونه به بند شی، فصلونه به ختم شی لکه په حديث دابو هريره ﷺ کښې ذکر دی چه ((ان الحبارى لتموت فى وكرها بظلم ظالم)) (ابن کثير) او يا د وجې د عموم د عذاب نه په دنيا کښې ، لکه په بل ځائی کښې الله تعالى فرمائی ، ﴿ وَاتَّقُوا فِتْنَةً لَا تُصِيبَنَّ الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنكُمْ خَاصَّةً ﴾ (سورة الانفال ، آيت ٢٥) او يا د دې وجې نه چه حيوانات، الله تعالى د انسان دمنافعو دپاره پيدا کړی دی، نو چه کله دانسان نيول فوری طور باندې کيږی ،او دې هلاك شی نو د نورو حيواناتو به هم بيا ضرورت نه وی، نو ځکه به هغوئ ختم کړې شی. او هر چه دی انبياء کرام او مبلغين نو د هغوئ دنيا ته د بعثت او تبليغ به ضرورت هم پاتې نشی. په دې صورت کښې ((واذا هلكو جميعا وبطل نسلهم لا يبقى احد من الناس وحينئذ هلك الدوآب لانها مخلوقة لمنافع العباد،وصالحهم)) ، (روح ) او بعض مفسرين فرمائی چه مراد ((د آبة)) نه صرف مشرکين دی ((والمعنى المراد من دآبة كافرة)) (قرطبی) او يا دا کنايه ده د ګرفت د الله تعالى نه اوهلاکت مقصود نه دې .( جواهر ).

**تنبيه** په دې آيت سره منکرين د عصمت انبياؤ استدلال کوی چه انبياء کرام معصوم نه دی

...که چه الله اضافت د ظلم کړې دې ټولو انسانانو ته. چه فرمائیلې ئې دی. ﴿ وَلَوْ يُؤَاخِذُ ٱللَّهُ ٱلنَّاسَ بِظُلْمِهِم ﴾ او په «الناس» کښې خو انبیاء کرام هم داخل دی نو معلومه شوه چه انبیاء کرام معصوم نه دی د ظلم نه؟ امام رازی رحمه الله په جواب کښې فرمائی چه دا آیت عام مخصوص منه البعض دې او تخصیص د انبیاء کرامو د سورة فاطر په آیت نمبر (۳۲) ﴿ ثُمَّ أَوْرَثْنَا ٱلْكِتَٰبَ ٱلَّذِينَ ﴾ سره شوې دې. (کبیر) او بعض مفسرین فرمائی چه مراد د «الناس» نه صرف کافر دی لکه څنگه چه د «دآبة» نه مراد مشرك دې. او بعض مفسرین په جواب کښې داسې ذکر کړې دې چه مراتب د ظلم مختلف دی د ټولو نه لویه مرتبه هغه شرك دې، او بیا رو رو کمیږی حتی چه د مقربین ظلم هغه حسنات د عام خلقو شمارلې کیږی. لکه څنگه چه مشهوره ده ((حسنات الابرار سیئات المقربین)) نو د دې مطابق ظلم ثابت دې انبیاء کرامو ته هم. خو دا ظلم مخالف د عصمت د انبیاء کرامو نه دې ځکه چه مخالف د عصمت نه هغه ذنب او گناه ده چه هغه ذنب او گناه وی په نسبت سره غیر د انبیاؤ ته، او هر چه دې ذنب او گناه په نسبت سره د دوئ خپل مقام ته نو هغې ته حقیقة ذنب نه وئیلې کیږی او نه هغه د عصمت سره منافی دې، ((والعصمت الی ترعی للانبیاء انما هی اللعصمة ممایعد ذنبا بالنسبة الی غیرهم امااالعصمة ممابعد ذنبا بالنسبة الی مقامهم ومرتبهم فلاترعی لهم)) (روح ج۱۴ص ۱۷۱) او د دې وجې نه حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائلو ((لوان الله یواخذنی وعیسی ابن مریم بذنوبنا لعذبنا مایظلمنا شیئا)) (روح بحواله مردویه) نو که چرته بالفرض انبیاء کرامو ته هم دا آیت شامل شی نو څه نقصان پکښې نشته دې، دا د هغوئ د عصمت منافی نه دې، البته انبیاء کرامو ته یا دغه شانتې یونبی ته ظالم وئیل بالاستقلال جایز نه دی، او په تبع د خلقو سره چه داسې اوئیلې شی چه خلق ظالمان دی، او ظاهره خبره ده چه په خلقو کښې انبیاء کرام هم داخل دی نو دا جائز دی ځکه چه ډیر ځلې د یو شی نسبت یو ذات ته تبعا جائز وی خو استقلالا جائز نوی، لکه چه داوئیل چه الله خالق د سپو دې او د خنزیرانو دې جائز نه دی، او داسې وئیل چه الله خالق د هر شی دې، نو په هغې کښې سپی او خنزیران هم داخل دې «روح»، د دې مکمل تفصیل به په سورة الفتح آیت نمبر (۲) کښې راشی، انشاء الله تعالی. ﴿ وَلَٰكِن يُؤَخِّرُهُمْ ﴾ تاخیر په معنی د مهلت سره دې چه الله په خپل فضل اوکرم سره دوئ ته د ایمان راوړلو دپاره موقعه او مهلت ورکوی ﴿ فَإِذَا جَآءَ ﴾ د دې تشریح په سورة الاعراف او یونس کښې تیره شوې ده. ﴿ وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ ﴾ په دې آیت کښې هم زجر

دي د مشرکينو په شرك باندې او په بې دروغ دعوې باندې چه د الله سره شريك او هغه لره دېنان نابولو سره دا دعوى هم کوى چه دوئ لره (حُسنٰى) ده ﴿مَا يَكْرَهُونَ﴾ مراد ترينه لونړه او شريکان دى. دا په دوئ خاص طور باندې خان دپاره بد گنړلو ((مايكرهون لانفسهم من البنات من شركاء فى رياستهم)) ، (کشاف) ﴿وَتَصِفُ﴾ واو په معنى د مع سره دې او ﴿أَنَّ لَهُمُ الْحُسْنَىٰ﴾ بيان د کذب د دوئ دې او بدل دې د (الكَذِب) نه او مراد د ((حسنٰى)) نه يا جنت دې اومقصد دادې چه که چرته بعثت حق وې او دويم ځلې ژوندى کيدل وې، لکه څنګه چه رسول الله ﷺ وائى ، نو مونږه به هلته هم په جنت کښې وو ((اي ان لهم حسنى عندالله وهي الجنت ان كان البعث حقا)) ، (مدارك) اودغه شان په ((حم السجده)) آيت نمبر ٥٠ کښې ذکر دى ، او ياترينه په دنيا کښې خوشحالى، عيش او عشرت او په آخرت کښې جنت مراد دې ((ان لهم الحسنى فى الدنيا وان كان ثم معاد ففيه ايضا ان لهم الحسنى)) . (ابن كثير) ﴿لَا جَرَمَ أَنَّ لَهُمُ النَّارَ﴾ دا تخويف اخروى دې .او د هغوئ د دعوې باطلې رد دې چه دوئ به خامخا جهنم ته ځى ﴿وَأَنَّهُم مُّفْرَطُونَ﴾ ماخوذ دې د فرط نه په معنى د مخکښې تلونکى سره يعنې دوئ به جهنم ته مخکښې ليږلې شى. يا په معنى د ((مُعْجَلون)) سره دې ، چه په جلتئ سره به ليږلى کيږى. او يا په معنى د هير کړې شوى سره دې ((متركون منسيو ن فى النار)) ، (قرطبى) .

تَاللَّهِ لَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَىٰ أُمَمٍ مِّن قَبْلِكَ فَزَيَّنَ لَهُمُ

قسم دې په الله [١] چه په تحقيق سره ليږلي وو مونږ (رسولان) ډيرو امتونو ته مخکښې ستا نه، پس خائسته کړل دوئ ته

الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ فَهُوَ وَلِيُّهُمُ الْيَوْمَ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝ وَمَا أَنزَلْنَا

شيطان (بد) عملونه د دوئ پس هغه ملګرى دې د دوئ نن ورځ او لپاره د دوئ عذاب دردناك دې . او ندې نازل کړې مونږ

عَلَيْكَ الْكِتَابَ إِلَّا لِتُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِي اخْتَلَفُوا

په تا باندې دا کتاب (قرآن) مګر لپاره د دې چه واضح بيان اوکړې ته دوئ ته دهغه خبرو (توحيد) چه دوئ اختلاف کړيدى

[١] زجر سره له تخويف اخروى او سره له تسلى نه حضور صلى الله عليه وسلم ته

فِيهِ ۙ وَهُدًى وَّرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ۝ وَاللّٰهُ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَحْيَا

په هغې کښې او هدايت او رحمت دی لپاره د هغه قوم چه ايمان لري او الله راوروی ‹١› د طرفه د آسمان نه اوبه باران بس ژوندی سبه کړی

بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّسْمَعُوْنَ ۝

په هغې سره زمکه وروستو د مرگ (اوچوالي) دهغې نه ، بيشکه يدی (زرغونتيا) کښې خامخا دليل دې لپاره دهغه قوم چه آوری

﴿ تَاللّٰهِ لَقَدْ اَرْسَلْنَآ ﴾ په دې آيت کښې تسلی ذکر کيږی حضور ﷺ ته او زجر سره د تخويف اخروی نه ذکر کيږی منکرينو ته چه څومره انبياء کرام مخکښې تير شوی دی. نو دهغوئ تولو تکذيب شوې دې. او کفارو ته د هغوئ بد اعمال شيطان خائسته کړی دی ﴿ فَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ ﴾ د تزيين مقصد مخکښې تير شوې دې ،اومراد داعمالونه اعمال قبيحه دهغوئ دی ﴿ فَهُوَ وَلِيُّهُمُ الْيَوْمَ ﴾ «هم» ضمير يا راجع دې امم ماضيو ته او مراد د «اليوم» نه (١) يا ټول ژوند د دنيا دې (٢) يا دا حکايت حالی دې دماضی نه دپاره د استحضار د سامع هغه صورت لره ځکه چه حکايت حال د ماضی نه وی نو په هغې کښې مقصود استعاره وی د حضور خارجی دپاره دذهنی. (٣) اويا حکايت حال دې د زمانې راتلونکې نه ، او مراد ترينه دقيامت ورځ ده اومقصود په دې سره نفی د ناصر اومددگار په طريقې د ابلغ سره ده په ورځ د قيامت کښې چه نن ورځ شيطان چه هغه د ځان نه هم عذاب نشی دفع کولې نو د دوئ نه به ئې په طريقه اولی نشی دفع کولې ، (۴) او ياهم ضمير راجع دې مشرکين مکه ته ، مقصددادې چه دا شيطان څنګه مخکښې قومونو ته د هغوئ بد اعمال خائسته کړ ي وو نو دغه شانتې دنن زمانې والا د مشرکانو هم ملګرې دې ، او دوئ ته د دوئ والا بد اعما ل خائسته کوی ﴿ وَمَآ اَنْزَلْنَا ﴾ دا تشجيع ذکر کيږ ی، حضور ﷺ ته په تبليغ د قرآن سره چه مونږه تاته قرآن درکړې دې د دې تبليغ اوکړه اوکه څوك ئې نه منی نو دهغې پروا مه کوه ﴿ الَّذِی اخْتَلَفُوْا ﴾ مراد ترينه توحيد ، اثبات المعاد ، نفی د شرك وغيره ده ﴿ وَهُدًى وَّرَحْمَةً ﴾ تخصيص د مؤمنانو دَ وجې د کامل نفعې اخستلو نه دې په قرآن سره. تشويح ئې مخکښې تيره شويده ﴿ وَاللّٰهُ اَنْزَلَ ﴾ په دې آيتونو کښې پنځم دليل عقلی تفصيلی ذکر کيږی. په اثبات ددعوی باندې ﴿ فَاَحْيَا بِهِ

---

١ - پنځم دليل عقلی.

﴿ٱلْأَرْضَ﴾ احيا او موت بطور استعاره ذکر دی. دپاره د زرغونیدو او وچ والی ﴿لِّقَوْمٍ يَسْمَعُونَ﴾ مراد به سماع سره سماع قبول مراد دې چه په کوم سړی کښې سماع دقبول نه وی نو هغه په منزله د کونړ دې او به عدول کښې د. ((یبصرون)) نه ((یسمعون)) نه اشاره ده چه د دې دلائلو صرف اوریدل هم کافی دی. کتل ئې ضروری نه دی

وَإِنَّ لَكُمْ فِي الْأَنْعَامِ لَعِبْرَةً ۖ نُّسْقِيكُم مِّمَّا فِي بُطُونِهِ مِن بَيْنِ فَرْثٍ

او بېشکه ستاسو لپاره په خاورو کښې لوئ عبرت دې. څکو مونږ تاسو ته دهغې نه چه په خیټو دهغې کښې دی د مینځ دغوښانو

وَدَمٍ لَّبَنًا خَالِصًا سَائِغًا لِّلشَّارِبِينَ ﴿٦٦﴾ وَمِن ثَمَرَاتِ النَّخِيلِ وَالْأَعْنَابِ تَتَّخِذُونَ

او وینی نه. پئ صفا. چه په مرئ کښې اسان تیریدونکی دی. څوندور دی لپاره د څکونکو او د میوو د کهجورو او انګورو نه چه جوړه وئ تاسو

مِنْهُ سَكَرًا وَرِزْقًا حَسَنًا ۗ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿٦٧﴾

دهغې نه نشه کوونکی څیزونه او خوراك ښائسته بیشکه په دې کښې شته دې خامخا لوئ دلیل لپاره دهغه قوم چه عقل نه کار اخلی

﴿وَإِنَّ لَكُمْ فِي الْأَنْعَامِ﴾ د ماقبل دلیل عقلی تفصیلی جزء دې چه په دې څاروو کښې هم ستاسو دپاره دلیل دعبرت موجود دې ﴿لَعِبْرَةً﴾ عبرة ونیلي کیږی د غیر مشاهد شی والا تشبیه د مشاهد شی سره ورکول، دپاره د دې چه دغیر مشاهد حقیقت معلوم شی په طریقه د مشاکلت سره ((والعبرة اصلها تمثیل الشئ بالشئ ، لتعرف حقیقة من طریق المشاکلة)) (قرطبی) او مراد ترینه دلائل دقدرت دی دالله تعالی او د وحدانیت د الله. ﴿نُّسْقِيكُم مِّمَّا فِي بُطُونِهِ﴾ دا استیناف بیانی دې ګویا چه سائل سوال اوکړو چه کیف العبرة فیها؟ نو جواب اوشو چه ((نسقیکم — الخ))، او ضمیر په (بطونه) کښې راجع دې (الانعام) ته اوهر کله چه انعام اسم جمع ده، مفرد دې په اعتبار د لفظ سره او جمع ده په اعتبار د معنی سره نو د دې وجه نه ورته کله ضمیر د مفرد راجع کیږی لکه دلته چه دې او کله ورته ضمیر د مونث راجع کیږی لکه په سورة المؤمنون آیت نمبر (۲۷) کښې دې او یا ارجاع د ضمیر مفرد په تاویل دمذکور سره دې، او رعایت دلفظ یا د معنی دا په اعتبار د کثرت فوائدو او عدم کثرت سره دی یعنی چه په کوم ځائ کښې د انعامو کثرت فوائد ته اشاره مقصود وی نو هلته به ضمیر د مونث راوړې شی لکه په سورة مومن کښې اوچه په کوم ځائ کښې عدم کثرت ملحوظ وی نو ضمیر به د واحد مفرد مذکرر راوړلې شی لکه په دې ځائ کښې چه دې ﴿مِن بَيْنِ فَرْثٍ وَدَمٍ﴾ یعنی د غوښیانو او د

ويني د مينځ نه صفا ستهرا پئ راوباسي او د دې مقصد دا دې چه کله يو ښاروي خوراك اوكړي نو هغه معدې نه لاړشي نو معده هغه پوخ كړي نو د معدې د دې عمل د وجې نه غوښيان لاندې به لړى كښې كيني دپاسه ورباندې پئ راشي او د پيو دپاسه بيا وينه راشي اوبيا د كبد (جگر) په ذريعه وينه رگونو ته لاړه شي او پئ د ښاروى غولانځوته لاړشي او هغه فضله (غوشيان) هلته پاتې شي چه بيا په مخصوصو لارو سره بهر ته راوځى . نو د الله يو عظيم قدرت دې چه د دې مخې ته د انسان عقل بيا كار نه وركوى او انسان خامخا د دې اعتراف كوى چه دا د لوئ قادر مطلق ذات د قدرت نښانې دى، نو الله انسان ته د دې رنگ او خوند نه پاك پئ وركوى حالانكه د درې واړو دپاره سبب يو خوراك دې، د جوړيدو ځائى يو دې نو د دې احسان په شكريه كښې دالله داسې عبادت كوئ چه هغه د شرك د بد بوئى او نجاست نه او د ريا او د بدعت د خوند او رنگ نه پاك وى، د توحيد خائسته رنگ او داخلاص خوږ خوند ورباندې غالب وى (از حضرت والدصاحب رحمه الله رحمة واسعة) . ﴿لَّبَنًا خَالِصًا﴾ يعنى صاف ستهرا ((اي لا يستصحبه لون الدم ولا رائحة الفرث)) ، (روح) امام رازى فرمائى چه په دې آيت كښې لكه څنگه چه دليل دې په وجود د صانع حكيم او د هغه په قدرت باندې نو دغه شانتې په دې كښې دليل دې په ثبوت د حشر، نشر او په دويم ځلې پيدا كيدلو باندې چه عقلاً هم دا ممكنه ده چه په حشر اونشر به كيږى ، ځكه چه الله داوبو په ذريعې سره د زمكې نه گيا پيدا كړى او هغه گياه ښاروى وه خورى نو دهغې نه پئ پيدا شى، نو په دې كښې الله تبديلى د يو ذات راوسته په بل ذات سره ، او بيا د دغه پئيو نه انسان كُچ او غوړى، ماسته، شوملې جوړه وى، نو په دې كښې تبديلى د اوصافو راغله په نورو اوصافو سره ، اوبيا د انسان د استعمال نه وروستو هغه په وينى او فضلې وغيره باندې بدل شى، نو دغه شانتې الله په دې قادر دې چه اجزاء د وجود د انسان بدل كړى په خاورو سره اوبيا دې د دې خاورو نه راپيدا كړى اوصفت دحياة دې بدل كړى په صفت د موت سره اوبيا دې صفت د موت په حيات سره بدل كړى . (كبير ج٢٠ ص٢٣٤) ﴿وَمِن ثَمَرَٰتِ ٱلنَّخِيلِ﴾ جار مجرور متعلق دې په محذوف پورې چه هغه (نسقيكم) دې او په دې صورت كښې د (تتخذون) نه د اسقاء حقيقت وضاحت مقصود دې ، اويا جارمجرور متعلق دى په تتخذون پورې ، او تكرار د من دپاره د تاكيد دې ، اوضمير په «منه» كښې راجع دې مضاف محذوف ته ((اي ومن عصير ثمرات النخيل والاعناب تتخذون منه)) ، (مدارك) ﴿سَكَرًا وَرِزْقًا حَسَنًا﴾ مراد د (سكراً) نه خمر (شراب) دى او په رزق حسن سره مراد باقي جميع حلال مشروبات

او ماکولات دي . او دا آیت د تحریم خمر نه مخکښې نازل شوې دې. ځکه چه دا آیت په اتفاق د مفسرینو سره مکی دې.او دا آیت منسوخ دې په سورة بقرې او سورة مائدې سره . اګر چه په دې آیت کښې هم تحریم د خمر ته اشاره ده. ځکه «رزقا حسنا» په دې عطف شوې دې . او عطف تقاضا د مغایرت کوی نو معلومه شوه چه شراب رزق حسن نه دې اویا دا جمع بین العتاب والاحسان ده. اومقصد دادې . چه ما درله میوې درکړې اوتاسو دهغه نه هغه شیونه جوړکړل چه هغه حرام دی. لیکن زیاته غوره اوله توجیه ده. او یا د سکر نه مراد نبیذ دی. اونبیذ دانګورو اوکهجورو وغیره هغه شیرې ته وائی چه هغه په اور باندې پخه کړې شی، دوه حصې ختمه شی او یوه حصه صرف پاتې شی. او بیا په هغې کښې تینګوالې راشی، او په دې باندې د سکر اطلاق ځکه شوې دې. چه کله دا ډیر وخت پریخودې شی نو په دې کښې بیا سکر (نشه) پیدا کیږی نو که چرته دا حد سکر ته رسیدلې وو نو بیا حرام دې اوکه مسکر نه وو، نوبیا ندې حرام اوهر چه دی شراب نو هغه حرام لعینه دی برابره خبره ده چه مسکر وی اوکه نه وی او د دې وجه نه دا الله تعالی په مقام د امتنان کښې ذکر کړو اوکه چرته دا مطلقا حرام وی لکه شراب چه دی نو بیا په مقام د امتنان کښې نه ذکر کیدلو، او دا توپه احسنه ده او موافق ده دَ مذهب دَ احنافو سره ، اویاسکراً نه مراد سرکه ده ځکه چه په لغت حبشی کښې سرکې ته سکر وئیلې کیږی، او یا ذکر د سکر دې اومراد ترینه مطعومات فاکهه دی

**تنبیه** .- د احنافو په مسلك خمر د عصیر العنب نه جوړیږی چه هغه حرام لعینه دی د هغې قلیل او کثیر مسکر، غیر مسکرپه حرمت کښې برابر دې ، او نبیذ التمر یا نبیذ الزبیب اونبیذ الشعیر (داوربشو شربت) ته خمر حقیقة نه وئیلې کیږی که مسکر وونو حرام دی اوکه په غیر مسکر درجه کښې ئې څوك استعمال کړی نو حلال دی او هرچه دې قول د څنې معاصر مفسرینو چه خمر په انګورو پورې خاص نه دی بلکه دنورو څیزونو نه لکه اوربشې جوار وغیره نه هم جوړیږی نو دا د وجې د عدم فرق کولونه دې په حرام لعینه او لغیره کښې او د وجې د عدم علم نه دې په اصطلاح د عربو کښې او دغه شانتې حضور ﷺ نه د نبیذ څکل په احادیثو سره ثابت دی، اوحالانکه د خمر څکل حضور ﷺ نه قبل التحریم هم ثابت نه دی او دغه شانتې آیت هم اشارة النص دې په فرق باندې د عامو مسکر اشیاؤ د خمر نه . ((والتفصیل فی کتب الفقه والاحادیث)) .

وَأَوْحَىٰ رَبُّكَ إِلَى النَّحْلِ أَنِ اتَّخِذِي مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا وَمِنَ الشَّجَرِ

او په زړه کښې واچوله رب ستا دګبین مچئ ته «داخبره» چه جوړه وه ته د غرونو نه کورونه او د ونو نه هم

وَمِمَّا يَعْرِشُونَ ۝ ثُمَّ كُلِي مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ فَاسْلُكِي سُبُلَ رَبِّكِ ذُلُلًا ؕ

او دهغې نه چه خلك ئې آبادوي بیا خوره ته د هر قسم میوو نه بس روانه شه په لاره د رب خپل بدې حال کښې چه آسانوې شوې دي

يَخْرُجُ مِنْ بُطُونِهَا شَرَابٌ مُّخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ فِيهِ شِفَاءٌ لِّلنَّاسِ ؕ

را اوزي د ګېډې دهغې نه د څکلو څیز (ګبین) چه مختلف دی رنګونه دهغې په هغې کښې شفاء ده لپاره د خلکو

إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ۝ وَاللّٰهُ خَلَقَكُمْ ثُمَّ

بیشکه پدې کښې خامخا لوئ دلیل دې لپاره دهغه قوم چه فکر کوی (پدې کښې) او الله پیدا کړی یئ تاسو . بیا به

يَتَوَفّٰكُمْ ؕ وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّرَدُّ إِلٰى أَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْ لَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ

مړه کوی تاسو او ځینې د تاسونه هغه دی چه اورسولې شی خوار (ناکاره) عمر ته عاقبت داشی چه نه پوهیږی وروستو د علم نه

شَيْئًا ؕ إِنَّ اللّٰهَ عَلِيمٌ قَدِيرٌ ۝

په هیڅ څیز باندې بیشکه الله پوهه دې قدرت والا دې

﴿ وَأَوْحٰى رَبُّكَ ﴾ دا هم د ماقبل سره متعلق دې اوبل قدرت د الله ذکر کیږی چه په مچئ د ګبین سره عبرت واخلئ چه ګلان وخوری او اوبه اوڅکی نو الله د هغې نه په خُله کښې ورلره ګبین کړې او لګئ کښې ورلره زهر جوړ کړی . او دوحی نه معنی اصطلاحی نه ده مراد بلکه مراد ترینه الهام او القاء ده اومقصد ئی دادې چه الله په خپل قدرت سره د دوئ په نفسونو کښې د دې اعمالو عجیبه پوهه پیدا کړې ده ((والمراد من الالهام انه تعالى قدر فى انفسها هذه الاعمال العجيبة اللتى يعجزعنها العقلاء من البشر)) (کبیر) اوعلامه آلوسی د دې اعمال عجیبه وضاحت کړې دې او د دوئ ځینې واقعات ئې ذکر کړی دی چه هغه دکتلو قابل دی ﴿ أَنِ اتَّخِذِي ﴾ «ان» یا تفسریه دې او دا تفسیر دې دا «اوحی» دپاره او یا «ان» مصدریه دې په تقدیر دباء سره ﴿ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا ﴾ دا ذکر دې د مکان او کور جوړولو د دوئ په درې مواضعو کښې : (۱) په غرونو کښې (۲) په ونو کښې (۳) دخلقو په آبادو کښې . او مراد په بیوت سره د دوئ ڇت دې او هغه مشابه وی د کورونو سره نو څکه پرې اطلاق د بیت اوشو ﴿ ثُمَّ كُلِي مِن ﴾ په دې کښې ذکر د طریقې جوړولو دعسل (ګبین) دې او په (ثم) کښې اشاره ده عجیب صنعت ددې ته، او من یا دپاره د تبعیض دې او یا د ابتداء الغایه دې او په دې کښې اشاره

ده چه عطايات د الله عادة دا وروستو دمشقت نه وي ﴿فَٱسْلُكِي سُبُلَ رَبِّكِ﴾ اضافت د «سبيل» ، «رب» نه دخلق د وجي نه دي چه الله خالق د دې لارو دې او مقصد د «فاسلكي» نه داخليدل دی په دې لارو كښې دپاره د طلب د رزق «اي ادخلي طرق ربك لطلب الرزق في الجبال وخلال الشجر» (قرطبي) ذللا دا حال دې يا د سبلاً نه چه دا تولې لارې تاته آسانې كړې شوې دی . او ياحال دې د (فاسلكي) د ضمير نه چه عبارت دې دنحل نه چه په حال كون ستا كښې چه منقاد به ئې الله ته ، يا د هغه خپلو اربابو ﴿يَخْرُجُ مِنۢ بُطُونِهَا﴾ (من) دپاره د ابتداء دغايې دې اوپه دې سره ذكر مبداء غايه اولي دې چه دا ګبين د تولو نه اولاً جمع كيږي په خيټه كښې او مبدا غايه اخيره څه شئ دې ؟ نو دهغې ذكر نه دې شوې البته جمهور علماء فرمائي چه دخولې دمچۍ (نحل) نه راوځي اوهغه ورله مبدا اخيره ده اوبعض علماء فرمائي چه دبطون نه بطون د خلو مراد دی ځكه چه هر خالي او داخل د جسم نه بطن ويلې كيږي او بعض فرمائي چه د لارې متعارفې يعني لكئ د طرف نه راووځي او هغه ورله مبدا اخيره ده، اوبعض فرمائي چه د مبدا اخير معلومه نه ده ﴿مُّخْتَلِفٌ أَلْوَٰنُهُۥ﴾ چه ځينې سره وي ځنې زيړوي ځينې سپين وي او دا اختلاف په رنګونو يا محض په ارادې او په قدرت د الله دې چه مبدا د تولو دپاره يوه ده خو د هغې نه الله په خپل قدرت سره مختلف الانواع غذا پيدا كوي او يا د وجې د اختلاف د مرعى نه وي لكه څنګه چه اختلاف د مرعى نه اختلاف په خوند كښې راځي نو دغه شانتې اختلاف په رنګونو كښې هم راځي او يا له وجې د اختلاف دموسم نه وي﴿فِيهِ شِفَآءٌ لِّلنَّاسِ﴾ يا بنفسه او انفرادي طور نو حكماء فرمائي چه شهد انفرادي طور باندې د ۹۹ امراضو لپاره مشفي دی او يا سره د تركيب نه د غير سره اوكله چه مركب شي د غير سره نو بيا د ډيرو زياتو مرضونو علاج پكښې دې، امام قرطبي فرمائي چه شفاء نكره په سياق داثبات كښې واقع شوې ده، اونكره چه كله په سياق د اثبات كښې واقع شي، نو عموم نه فائده كوي نو معلومه شوه چه په ګبين كښې د تولو امراضو نه شفاء نيشته دې بلكه بعض امراضو نه پكښې شفاء ده، ليكن بعض اهل صدق او نيكانو د حسن نيت په وجه په عموم باندې حمل كړې دې او دغه شانتې د ځنې احاديثو او آثار د صحابو نه هم عمومه شفا معلوميږي او دا آيت دليل په دې هم دې چه علاج كول د توكل نه خلاف نه دی، او بلكه د مرض په وخت كښې علاج كول جائزبلكه پكار دې ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَءَايَةً﴾ تنوين دپاره دتعظيم دې چه سوچ كولو والو دپاره دالله د قدرت يوه لويه نشاني ده چه څنګه

د زهريله ورو کې څيز نه کثير المنفعت څيز په څه عجيبه طريقې سره راوخي ﴿ وَاللَّهُ خَلَقَكُمْ ﴾ داهم د دليل عقلي نه جزء دې او په دې کښې انقلابات د انسان ذکر کيږي چه دعدم نه وجود ته راغې او بيا په وجود کښې مختلف مراحل دی او ددې دنيا دژوند اخيري انتها په مرګ باندې راځي نو ژوند او مرګ دا هم د الله په قبضه قدرت کښې دی، ﴿وَمِنكُم مَّن يُرَدُّ إِلَىٰ أَرْذَلِ الْعُمُرِ﴾ معطوف عليه ورله مقدر دې (اي فمنکم من تعمل وفاته ومنکم – الخ)) (روح) اومراد په (ارذل العمر) سره هغه حالت د انسان دې چه په هغې کښې د انسان قوت ناقص شي، عقل ئې کار پريږدی علم او پوهه ترينه لاړه.شي اوحالت د ده دماشوموالی شي او تخصيص په مخصوصو کالونو پورې نيشته دې او د داسې حالت نه پناه غوختل دحضور صلی الله عليه وسلم نه په احاديثو مبارکه ؤ کښې اوحضرت عکرمه ﷺ نه مروی دی چه فرمائی ((من قراء القران لم يصر بهذه الحالة)) يعنی چه کوم سړې په کثرت سره قرآن لولی نوپه هغه باندې به دا وخت نه رازی ﴿إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ قَدِيرٌ﴾ په دې کښې اشاره ده چه دا تفاوت د آجالو دقادر مطلق د قدرت او د هغه د حکمت ماتحت دې.

وَاللَّهُ فَضَّلَ بَعْضَكُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ فِي الرِّزْقِ ۚ فَمَا الَّذِينَ فُضِّلُوا

اوالله غوره والې درکړيدې [۱] خينې ستاسوته په خينو باندې په رزق کښې. پس ندی هغه کسان چه غوره کړې شوی دی

بِرَادِّي رِزْقِهِمْ عَلَىٰ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَهُمْ

ورکوونکی رزق خپل هغه چا ته «وينځې غلامان چه مالکان ئې دی ښی لاسونه د دوئ چه پس شی هغوئ

فِيهِ سَوَاءٌ ۚ أَفَبِنِعْمَةِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ ۝ وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُم

په دې اختيار کښې برابر «د دوئ سره» آيا پس په نعمت د الله باندې انکار کوی دوئ. او الله پيدا کړی دی [۲] لپاره د ستاسو

مِّنْ أَنفُسِكُمْ أَزْوَاجًا وَجَعَلَ لَكُم مِّنْ أَزْوَاجِكُم بَنِينَ وَحَفَدَةً وَرَزَقَكُم

د نفسونو ستاسونه بيبيانې او پيدا کړی ئې دی لپاره د ستاسو د بيبيانو ستاسونه ځامن او نوسی او روزی ئې درکړيده تاسوله

---

۱- بيان د مثال لپاره د توحيد او شرک، اومعبود برحق او معبود باطل.

۲- بيان د ذکر دنعمت.

| |
|---|
| مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ۚ أَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُونَ وَبِنِعْمَتِ اللّٰهِ هُمْ يَكْفُرُونَ ۝ |
| د پاکو خیزونو نه. آیا پس په باطل (معبودانو) باندې ایمان لری دوئ او د نعمت د الله نه (دین اسلام نه) انکار کوی دوئ |
| وَيَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللّٰهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَهُمْ رِزْقًا مِّنَ السَّمٰوٰتِ |
| اوعبادت کوی دوئ [1] سیوا د الله نه د هغه چا چه اختیار نه لری دوئ لره د رزق ورکولو د آسمانونونه |
| وَالْأَرْضِ شَيْئًا وَّلَا يَسْتَطِيعُونَ ۝ |
| او د زمکې نه هیڅ قسم او نه ئې وس رسی. |

﴿ وَاللّٰهُ فَضَّلَ بَعْضَكُمْ ﴾ په دې آیت کښ رد دشرك دې په یو مثال سره چه د الله په درکړې شوی رزق کښ تاسو متفاوت یئ څوك مالك او څوك مملوك دې، څوك آقا دې او څوك نوکر او څوك غلام دې خو جنس او نوع کښ ئې اتحاد دې خو د دې اتحاد باوجود هیڅ کله هم یو مالك خپل مملوك ته دومره مال او قدرت نه ورکوی چه هغه څان سره برابر کړی بلکه کچرته غلام په حالت دغلامئ کښ دمال مالك جوړ کړې شی نو هغه مال هم د ده نه دې هغه هم د مالك دې نو هر کله چه متحد الجنس والنوع مخلوقاتو کښ مساوات او برابری نشی راتلې نو څنګه به خالق او مخلوق په معبودیت کښ برابر شی، اوڅنګه به یو کمزوری مخلوق ته صفات او قدرت دخالقینت حاصل شی؟

﴿أَفَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ يَجْحَدُونَ ﴾ استفهام انکاری دې اومقصد دادې چه رزق، مال، دولت وغیره صرف الله درکړی دی او تاسو د الله سره په دې کښ بیا شریکان ګرځوئ او د الله نعمت نه انکار اوکفر کوی نو دا کفر مه کوئ صرف د الله عبادت کوئ، ﴿ وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ ﴾ داهم دلیل عقلی دې . او متعلق دې د ماقبل سره او په دې کښ ذکر د نعمت دې په بیان د ازواجو سره چه ستاسو د آرام او سکون دپاره ستاسو د جنس نه ئې تاسو لره ازواج پیدا کړی دی ﴿مِّنْ أَنفُسِكُمْ أَزْوَاجًا ﴾ په دې کښ اشاره ده چه د نکاح دپاره مجانست ضروری دې د انسان نکاح د پیری سره نه کیږی د نور نکاح د بشر سره نه کیږی﴿وَجَعَلَ لَكُم مِّنْ أَزْوَاجِكُم بَنِينَ ﴾ په دې کښ اشاره ده مقصد اونتیجې د نکاح ته ﴿وَحَفَدَةً ﴾ جمع د حافد ده په معنی دخدمتګار سره اومراد ترینه دلته نوسی دی او بعض وائی

---

[1] ثمره د دلائل مذکوره بطور زجر

چه عام خدمتګاران نږي نه مراد دی ﴿وَرَزَقَكُم مِّنَ الطَّيِّبَاتِ﴾ (من) تبعيضيه دي. او مراد د طيبات نه لذيذ او خوارږه دی. او یا حلال دی ﴿أَفَبِالْبَاطِلِ﴾ مراد ترينه معبودان باطله دی. چه دا ټول انعامات الله تعالى ورکړی خو ناشکره انسان الله هير کړي دي يا بت ته ياپيرى ته او يا نې يو بابا ته منسوب كوى ((اي يسترون نعم الله عليهم ويضيفوها الى غيره)) (ابن كثير) ﴿وَيَعْبُدُونَ﴾ په دي كښ زجر ذكر كيږي او تفسير دي د ،،افبالباطل،، دپاره چه په باطل باندې دايمان مقصد د هغې عبادت كول دی. جانی يا مالی هرقسم ﴿مَا لَا يَمْلِكُ لَهُمْ﴾ يعني د دوئ دا معبودان دخپل ځان دپاره هم، آسمان نه باران او د زمکې نه په فصل راويستلو باندې نه دی قادر، تنوين په شيئاً كښ د تقليل دې ﴿وَلَا يَسْتَطِيعُونَ﴾ دا ضمير د جمع د غوره قول مطابق راجع دې معبودانو د دوئ ته چه دهغې نه تعبير په (ما) سره شويدي چه وضع دهغې لپاره د غير ذوی العقول ده نو هلته ترينه تعبير په (ما) سره په اعتبار د نفس الامر سره شويدې او دلته ورته ضمير د مذكر يعقل راجع كول له وجې د اعتقاد ددوئ نه دې او مراد په نفی د استطاعت سره نفی بالقوة ده لکه څنګه چه په ،،لايملك،، سره نفی بالفعل مراد وه، يعني دوئ نه في الحال د څه شي مالكان دی او نه په راتلونكې زمانه كښ به دوئ ته دا قدرت ورکړې شی ((اي لا يستطيعون ان يملكوا ذالك ولايمكنهم)) ، (روح) يامحمول ده دا نفی په تاكيد باندې دپاره د ماقبل.

| |
|---|
| فَلَا تَضْرِبُوا لِلَّهِ الْأَمْثَالَ إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ۝ ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا |
| پس مه بيانوئ لپاره د الله مثالونه (شريكان) بيشكه الله پوهيږي او تاسو نه پوهيږئ . بيانوی الله [1] يو مثال |
| عَبْدًا مَّمْلُوكًا لَّا يَقْدِرُ عَلَىٰ شَيْءٍ وَمَن رَّزَقْنَاهُ |
| چه بنده مملوك (مريی) وی وس نه لري په هيڅ څيز باندې او (بل) هغه څوك چه رزق وركړيدې مونږ هغه ته |
| مِنَّا رِزْقًا حَسَنًا فَهُوَ يُنفِقُ مِنْهُ سِرًّا وَجَهْرًا ۖ هَلْ يَسْتَوُونَ ۚ |
| د خپل طرف نه رزق خائسته، پس هغه خرچ كوی دهغې نه پټ او په ښكاره آيا برابر كيدې شی دوئ ؟. |

[1] اول مثال لپاره د معبود حق او معبود باطل.

| |
|---|
| الْحَمْدُ لِلّٰهِ ۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٧٥﴾ وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا رَّجُلَيْنِ |
| ټول صفتونه (دالوهيت) خاص الله لره دي، بلکه زيات د دوئ نه نه پوهيږي او بيانوي الله [1] يو مثال چه دوه سړي وي |
| أَحَدُهُمَا أَبْكَمُ لَا يَقْدِرُ عَلَىٰ شَيْءٍ وَهُوَ كَلٌّ عَلَىٰ مَوْلَاهُ أَيْنَمَا يُوَجِّهْهُ |
| چه يو د هغوئ نه ګونګ (چاړ) وي چه نوي قادر په هيڅ خيز باندې اوهغه بوجهـ وي په مالك خپل باندې کوم خواته چه ليږي يې |
| لَا يَأْتِ بِخَيْرٍ ۖ هَلْ يَسْتَوِي هُوَ ۙ وَمَنْ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ ۙ وَهُوَ عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٧٦﴾ |
| نو نشي راوړي هيڅ خير آيا برابر دي هغه او (بل) هغه څوك چه حکم کوي په انصاف سره اوهغه وي په لاره نيغه (سمه) باندې |

﴿فَلَا تَضْرِبُوا﴾ دا متعلق دې د ((ويجعلون لله البنات)) سره چه مشركينو به فرشتوته د الله لونړه وئيلې نو الله ددوئ په عقيدې باندې رد اوکړو چه دالله دپاره امثال مه ثابتوی اوتشبيه ئې د مخلوق سره مه ورکوئ چه تاسو وايئ چه ملائك د الله لونړه دی، نو د والد او مولود په مينځ کښې خو تماثل او کفو وی، نو الله خو د تماثل او کفو نه منزه دې ((اي لا تجعلو لله مثلا لانه واحد لامثل له)) (كبير) او يا مقصد دادې چه دالله دپاره داسې مثالونه مه بيانوئ چه د هغې نه دشرك لارې کولاويږی چه دوئ به وئيل چه الله ډير لوئ دې او لوئ ذات ته څان رسول بغير د سفارش نه، نه کيږی نو زمونږ دا واړه واړه خدايان سفارشيان دی دپاره د الله اويا مقصد دادې چه تاسو د الله جل جلاله لپاره څوك مثيل اوشريك مه جوړوئ . يقول سحانه ((لا تجعلوا معی الها غيری فانه لا اله غيری)) (روح )

**نو خلاصه**: داده چه دا نفی د مماثل ده يا د امثله باطله او يا د شريك اومثيل نفی مراد ده .

﴿إِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾ دا علت اودليل اجمالی دې د بطلان التالی دپاره چه الله لره ولد مه ثابتوئ او کنه نو لازم به شی تماثل په الله ﷻ کښې، تالی باطل دې مقدم مثل دې، هر چې دې دليل دملازمې نو هغه خو با الکل واضح دې چې په ولد او په والد کښې تماثل فی النوع يا فی الجنس ضروری وی اوهر چې دې دليل دپاره دبطلان الثانی نو هغې ته الله ﷻ اشاره اوکړه او ذکر ئی کړو اجمالا چې دالله ﷻ حقيقت اوکنه بغير دالله ﷻ نه بل چاته معلومه نهٔ ده، هغه معلوم بالوجه دې (والتفصيل فی کتب المنطق) . ﴿ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا﴾ په ماقبل کښې نهی او ممانعت وُو دغلطو مثالونو نه

[1]. دويم مثال لپاره د مشرك او مؤمن.

اوس الله ﷻ فرمائی چې صحيح مثال دمعبود برحق او دستاسو دمعبودان باطله ؤ څه دې. هغې نه غوږ شئ نو اول مثال دادې چې يو مړيئ او غلام وی چې په هيڅ څيز باندې وس او طاقت ئې نه وی چې ترڅو پورې دمالك دطرفنه اجازت ورته نوی ملاؤ شوې. اوبل هغه آزاد سړې دې چې هغه ته بنه فراخ مال ورکړې شوې وی اوپه خپل اختيار سره دهغې مال نه هغه خرچ کوی نو آيا دا مالك اومملوك چرته برابر کيدې شی؟ نو چې کله دا ظاهری اومجازی مالك او مملوك نشی برابريدې نو حقيقی مالك او مملوك به څنګه په تصرف او قدرت کښې برابر شی ﴿عَبۡدٗا مَّمۡلُوكٗا﴾ د عبد نه وروستو دمملوك اضافه ځکه اوکړې شوه چې مخلوقات په نسبت دالله ﷻ عباد او بندګان دی. نو دحر او آزاد دخارجولو لپاره اضافه اوشوله ﴿لَّا يَقۡدِرُ عَلَىٰ شَيۡءٖ﴾ دعبد ماذون او مکاتب داخراج لپارهددې قيد اضافه اوکړې شوه ﴿وَمَن رَّزَقۡنَٰهُ﴾ مراد د (مَن) نه حر دې او دا (مَن) نکره موصوفه ده او نکره ځکه ده چې موافق شی د ﴿عَبۡدٗا﴾ سره ځکه چې هغه هم منکر موصوف واقع شوې دې ﴿رِزۡقًا حَسَنٗا﴾ مراد ترينه واسع او حلال رزق دې ﴿هَلۡ يَسۡتَوُۥنَ﴾ هرکله چې په دې اوصاف مذکوره سره متصف ددغې دواړو والو جنسين ؤوچې دهغې لپاره افرادکثيره دی نوددې وجې نه په صيغې د جمع ذکر شو ،اګر چې دظاهر تقاضا تثنيه وه.او جواب د ﴿هَلۡ يَسۡتَوُۥنَ﴾ مقدر دې چې ((لا يستوون)) دې ﴿ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِۚ﴾ دا تفريع ده په وضاحت دمثال باندې او په دې کښ اشاره ده چې ټول صفات دالوهيت الله لره دی هغه منعم حقيقی دې اودهغه هيڅ څوك هم په هيڅ يو صفت کښ نشی شريك کيدې.((ای هوالمستحق دون مايعبدون من دونه اذلا نعمة للاصنام عليهم فتحمد عليها)) (بحر) .

﴿وَضَرَبَ ٱللَّهُ﴾ دا دويم مثال بيانيږی لپاره دفرق په مينځ دمعبود برحق اودمعبود باطل کښ اودا مثال اوضح دې په نسبت سره ماقبل ته اوفرق په مينځ ددې مثال کښ اومخکنی مثال کښ دادې چې هغه مثال په اعتبار دنفی دشرك فی التصرف سره ؤو فقط . او دا مثال په اعتبار دنفی دقدرت ،کلام، سمع، علم دټولو سره دې، حاصل دمثال دادې چې دوه کسان دی ، يو هغه سړې دې چې (۱) چاړا او کونړ وی (۲) په هيڅ څيز باندې قادر نه وی، (۳) دې بوج وی په خپل مالك او ولی باندې. يعنی ټوله سنبالی ئې دمالك او ولی په ذمه وی، (۴) او مالك که هر څه ورنه اوغواړی نو هيڅ قسم خير او فائده ورته نشی رسولې ځکه چې عقل او علم پکښ هم نه وی او بل هغه سړې دې

جي (١) خبري كولي شي (٢) امر كوي په عدل او انصاف باندي (٣) قدرت ورته هم حاصل وي (۴) په خپل اختيار سره په نيغه لار روان وي، چي هغه خير او هدايت والا لار ده. (۵) دعقل سليم دوجي نه دسمي لاري دغلطي لاري نه تميز كولي شي، نودا دواړه كسان چرته هم نشي برابر كيدي باوجود ددي چي اتحاد ئي په جنس او نوعه كښې هم شته دي. فرق ئي صرف په اعتبار د عوارضو سره دي.
نو ستاسو دا معبودان باطله چي دمعبود حقيقي سره ئي مجانست او مماثلت هم نشته دي حتى چي دخان نه دمچ په شړلو قادر نه دي پښي او لاسونه يې كار نه وركوي ديو ځائ نه بل ځائ ته نقل كولو كښې تاسو ته محتاج دي. او كچرته څه حاجت ترينه اوغواړئ نو پوره كولي ئي نشي. نو دا به دهغه معبود حقيقي چي الله دي هغه سره به څنګه برابر شي چي هغه امر كونكي دي په انصاف سره. په هر څه باندي قادر دي او چلونكي دټول نظام دي او پالونكي دټول عالم دي ﴿أَحَدُهُمَا أَبْكَمُ﴾ (ابكم) پيدائشي چاړا ته وئيلي كيږي ((الابكم الذى ولد اخرس (كشاف) فكل ابكم اخرس وليس كل اخرس ابكم)) (سراج المنير،خازن) نودا اولني عيب ذكر شو ﴿لَا يَقْدِرُ﴾ دا دويم عيب دي چي په هيڅ باندي قادر نه وي، په دي كښې اشاره ده عجز تام او نقصان كامل ته ﴿وَهُوَ كَلٌّ﴾ دا دريم عيب دي چي دخپل ځان دسمبالولو هم نه وي، او مولى نه مراد ولى دي ﴿أَيْنَمَا يُوَجِّهْهُ﴾ دا دڅلورم عيب ذكر دي. توجيه وئيلي كيږي ديته چي يو معين ځائ ته څوك ليږل، (كښې) نو مقصد دادي كه چرته د كار دپاره اوليږلي شي نو هغه هم نشي كولي، په دي كښې اشاره ده عقل ا وعلم ته، چه څه عقل او علم په كښې هم نه وي ﴿هَلْ يَسْتَوِي هُوَ﴾ (هو) ضمير منفصل دپاره د تاكيد د ضمير مرفوع متصل دي. د وجي د عطف دما بعد نه دا تاكيد راغلي دي، او مراد ترينه (ابكم) دي چه متصف دي په دي څلور صفاتو سره، او هر كله چه دا مثال په نسبت سره اول ته ډير واضح وو نو د دي وجه نه (هل يستوى) په مينځ كښې ذكرشو، ﴿وَمَن يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ﴾ دا د (ابكم) په مقابله كښې دي، ﴿وَهُوَ عَلَىٰ صِرَاطٍ﴾ داد باقي دريو په مقابله كښې دي.

| وَلِلَّهِ غَيْبُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ وَمَا أَمْرُ السَّاعَةِ إِلَّا كَلَمْحِ الْبَصَرِ |
| --- |
| او خاص الله لره دي علم د پټو څيزونو د آسمانونو او د زمكي، او نده معامله د راتلو د قيامت مگر په شانته د رپ د سترگي ده |

---

١ - تتمه د مثال . د دعوى جز سره د تخويف اخروى نه .

أَوْ هُوَ أَقْرَبُ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٧٧﴾

بلکه هغه (قيامت) ډير نژدې دې، بيشکه الله په هر څيز باندې قادر دې

﴿ وَلِلَّهِ غَيْبُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ په دې آيت کښې تتمه د مثال سره د تخويف اخروى ذکر کيږى . او واو تعليليه دې، په دې کښې اشاره ده کمال علم ته . لکه څنگه چه په ماقبل کښې نفى د قدرت او علم وه نو د هغې په مقابله کښې په دې ځائ کښې اثبات دکما ل علم دې او د (لله) په تقديم کښې اشاره ده دې ته چه علم غيب خاصه صرف د الله ده چه څوك ورسره هم شريك نه دى او مراد د غيب نه هغه دى چه مخلوق د هغې ادراك په حس او عقل سره نشى کولې ((والغيب لايدرك بالحس ولا يفهم بالعقل)) ، (بحر) ﴿ وَمَا أَمْرُ السَّاعَةِ ﴾ دا تخويف اخروى دې او مراد ترينه راتلل او قائم کيدل دقيامت دى ﴿ كَلَمْحِ الْبَصَرِ أَوْ هُوَ أَقْرَبُ ﴾ په دې کښې اشاره ده کما ل قدرت ته ، چه داسې قادر ذات دې چه کله وخت دقيام دقيامت راشى نو دومره زر به قيامت قائم کړى لکه د ستر گى د رپ پشان او مراد د ((کلمح البصر)) نه تمثيل دې په سرعت کښې . او «او» دپاره دشك يا تخيير نه دې بلکه دپاره د ابهام دمخاطب دې لکه په دې قول د الله کښې چه ذکر دې ((وارسلنا الى مائة الف او يزيدون)) او يالکه په دې قول د الله کښې ذکر دى ((اتاها امرنا ليلا او نهارا)) (او) يا په معنى د (بل) سره دې (بيضاوى) او مقصد په دې سره ترقى ده په تمثيل کښې چه دسترگې د رپ نه به هم زر وى ځکه چه لمح البصر جزء دې د زمانياتو نه ځکه هغه زمانه چه په هغې کښې لمح البصر حاصل شوې دې هغه مرکبه ده د آنات متعاقبه نه . او الله قادر دې په راوستلو د قيامت باندې ، په آن واحده کښې چه هغه بالکل ابتدائى حرکت دې د زمانې چه غير منقسم دې آناتو نه ((والزمان الذي يحصل فيه لمح البصر مركب من انات متعاقبة والله قادر على اقامة القيامة في آن واحد من تلك الانات)) (کبير).

وَاللَّهُ أَخْرَجَكُم مِّن بُطُونِ أُمَّهَاتِكُمْ لَا تَعْلَمُونَ شَيْئًا وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ

او الله راويستلى يئ [1] تاسو د گيډو د ميندو ستاسو نه چه نه پوهيدلئ تاسو په هيڅ څيز او پيدا کړې ئې دى تاسو لره غوږونه

---

١ - شپږم دليل عقلى

وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ ۙ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝ اَلَمْ يَرَوْا اِلَى الطَّيْرِ مُسَخَّرٰتٍ فِيْ جَوِّ

او سترګې او زړونه لپاره د دې چه تاسو شکر اوکړئ آیا نه ګوری دوئ مارغانو ته چه تابع کړې شويدی په فضاء

السَّمَآءِ ۭ مَا يُمْسِكُهُنَّ اِلَّا اللّٰهُ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ۝

د آسمان کښې. نه ‌ئې ټینګ کړی دوئ سیوا د الله نه (بل هیچا) بیشکه په دې کښې خامخا ډیر دلیلونه دی لپاره د هغه قوم چه ایمان لر.

﴿ وَاللّٰهُ اَخْرَجَكُمْ ﴾ دا شپږم دلیل عقلی تفصیلی ذکر کیږی په دعوی د سورة باندې چه الله تاسو د امهاتو د بطون نه په داسې حالت کښې پیدا کړی یئ چه تاسو په هیڅ څیز باندې نه پوهیدئ نو همدغه شان به الله پاك تاسو دَ بطون الارض نه هم دوباره پیدا کړی، ﴿وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ ﴾ دا ذکر دې د اسبابو د علم هر کله چه نفس انسانی خالی وو د معارف او علومو نه نو الله دا حواس دپاره د حصول دعلم ورته عطا کړل ، (سمع) ئی عطا کړه دپاره د دې چه په دې سره نصوص دکتاب الله اوسنت واوریدلې شی، او په دې سره د امور دینیه اصلاح اوکړې شی، او (بصر) ئې عطا کړو لپاره د دې چه په دې سره عجائب مصنوعات او غرائب مخلوقات د الله اوکتلې شی اوپه دې سره دلیل او نیولې شی په وحدانیت د الله باندې او ﴿ وَالْاَفْـِٕدَةَ ﴾ یعنی زړونه یې عطا کړی دی دپاره د دې چه د اشیاء په مفهوماتو باندې غور او فکر اوکړې او په دې سره حاصل کړې شی عظمت د الله تعالی. هرکله چه فائده دسمع، بصر او افئدة ظاهریږی پس د اخراج نه او قبل الاخراج د دې فائده نه ظاهریږی نو د دې وجه نه دا مذکور څیزونه جدا ذکر شول په لفظ د جعل سره ، او په دې آیت کښې دلالت په دې خبره نیشته دې چه دا مذکور څیزونه د اخراج نه روستو دی، ځکه چه واو دپاره د مطلق جمع دې .

**فائده** (۱) : دَ دینه معلومیږی چه دَ الله په نعمتونو کښې لوئ او اولنې نعمت دَ علم دې ځکه ئ دَ (اَخرجکم) نه روستو دَ علم ذکر اوکړو.

**فائده** (۲) : لفظ د سمع په قرآن مجید کښې چرته هم جمع نه دې استعمال شوې په خلاف د لفظ دبصر ا و فؤاد چه دوئ جمع استعمالیږی ، وجه داده چه لفظ د سمع په اصل کښې مصدر دې او مصدر چه کله هم اسم اوګرځولې شی نو دې مفرد استعمالیږی، (انوار البیان) اویا د دې وجې نه چه مدرکات د بصر ډیر دی چه هغه اجرام ، الوان ، انوار ، ظلمات ، او ټول محسوسات دی، او دغه شانتې مدرکات دفؤاد هم ډیر دې چه هغه مختلف مفهومات، معقولات معانی وغیره دې ، او

مدرك د بصر صرف يو دي چه هغه صوت دي نو د دي وجه نه ابصار او افئده جمع ذكر كيږي.
اوسمع مفرد ذكر كيږي.

**فائده** (۳): هميشه دپاره په قرآن كښ تقديم د سمع وي په بصر باندې ، او چرته تقديم د بصر په سمع باندې ندي راغلې . وجه ئې داده، چه دا ذريعه د اوريدو د وحى ده، نو د دې وجې نه ابتلا د بعض انبياء كرامو په عمى سره راغلې ده، په صمم سره نه ده راغلى. او يا وجه داده چه ادراك د سمع مقدم وى په ادراك د بصر باندې ، او انفع للدين او انفع للقلب دې او زيات موثر دې دپاره د زړه په نسبت سره بصر ته، (ابن عجيبه ، ).

﴿لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ چه تاسو دالله دنعمتونو شكريه ادا كړئ او دغه اسباب مذكوره د الله د معرفت دحصول دپاره استعمال كړئ ﴿أَلَمْ يَرَوْا﴾ داهم جز دې، د دليل عقلى نه چه كوم قوت باصره تاسو ته الله در كړې دې په هغې باندې تاسو مارغانو ته اوگورئ چه دالله په قدرت سره الوزى ((الى الطير)) جمع د طائر ده او دغه شانتې طائر په فعول او په افعال سره هم جمع كيږى ﴿مُسَخَّرَتٍ﴾ په دې كښ اشاره ده دې ته چه الوتل د مارغانو دطبيعت تقاضا نه ده بلكه خالص د الله په قدرت سره الوزى ﴿جَوِّ السَّمَآءِ﴾ (جوّ) جوف ته وئيلې كيږى، مراد ترينه فضا ده په مينځ د آسمان او د زمكې كښ ﴿مَا يُمْسِكُهُنَّ﴾ يعنى الله مارغانو ته وزرې وركړى دى، او هغوئ كله وزرې راغوندې كړى او كله يې خورې كړى ، په ټولو حالاتو كښ په فضاء كښ ددوئ ټينگول صرف د الله په قدرت سره دى ، ځكه چه د مارغانو جسم ثقيل دې ، اوجسم ثقيل په هوا كښ معلق كيدل بغير د څه علاقې او دعائم نه ممتنع دې، نو معلومه شوه، چه ددې دپاره يو اودرونكې شته چه هغه الله دې . او په دې كښ دليل دې په دې چه د مخلوقاتو دافعال اختيا رېږ خالق صرف الله تعالى دې ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ﴾ اگر چه دا نشانى دقدرت او د وحدانيت د الله تعالى لپاره د ټولو ذوى العقولو ده خو تخصيص د مؤمنانو دوجې د انتفاع دې په دې سره.

| وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُم مِّن بُيُوتِكُمْ سَكَنًا وَجَعَلَ لَكُم مِّن جُلُودِ الْأَنْعَامِ |
| --- |
| او الله پيدا كړيدى تاسو دپاره د كورنو ستاسو نه ځائ د اوسيدلو او پيدا كړى ئى دى تاسو دپاره د څرمنو د څاروونه |

بُيُوتًا تَسْتَخِفُّونَهَا يَوْمَ ظَعْنِكُمْ وَيَوْمَ إِقَامَتِكُمْ وَمِنْ أَصْوَافِهَا

کوټې (خیمې) چه سپك مومئ تاسو هغې لره په ورځ د سفر ستاسو او په ورځ د اقامت ستاسو کښې، او د وړئ دهغې نه

وَ أَوْبَارِهَا وَ أَشْعَارِهَا أَثَاثًا وَمَتَاعًا إِلَى حِينٍ ۞

او د پشم دهغې نه او دويختو دهغې نه، سامان د کور او نور د فائدې څيزونه تر يو وخته پورې

﴿وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُم﴾ داهم ددليل عقلی نه جزء دې ، په تذکير د نعمتونو د کورونو . خيمو وړئيو پشم او ويښتو او د هغې نه جامې اونور سامانونه جوړول ، چه الله ﷻ انسان نه د فلك پشانتې متحرك دائم پيدا کړې دې، او نه يې د غرونو پشان ساکن دائم پيدا کړې دې، بلکه کله متحرك وی او کله ساکن وی نو بيا د ده دپاره د کور د خيمو د ګرمئ او يخنئ نه د بچ کيدو د پاره يې انتظامات هم کړی دی. نو دا د الله ﷻ انعامات دی، که چرته د الله رضا شوې وې نو دا انسان به ئې يا مضطرب پيدا کړې وو او يا هميشه دپاره ساکن ((هذه نعمة فان الله سبحانه لوشاء لخلق العبد مضطربا دائما کالافلاك ولو شاء لخلقه ساکنا ابدا کالارض)) ، (فتح القدير) ﴿لَكُم مِّنۢ بُيُوتِكُمْ﴾ تقديم د (لكم) دپاره دتشويق دې او مراد د ﴿مِّنۢ بُيُوتِكُمْ﴾ نه هغه کورونه دی چه کوم نه منتقل کيږی لکه د ختو ، کانړو خختو نه جوړ شوي وی ﴿سَكَنًا﴾ په معنی د مَسكَن سره دې ﴿وَجَعَلَ لَكُم مِّن جُلُودِ الْأَنْعَامِ﴾ د دې نه مرا د هغه بيوت دی چه منتقل کيږی د يو ځائ نه بل ځائ ته اويا مراد داول بيوت نه عام کورونه دی، اود دويم بيوت نه خاص کورونه مراد دی چه جوړيږی د څرمنو دڅاروو نه . چه هغه خيمې دی دپاره د تنبيه په اکثر حالاتو د عربو باندې ، (بحر) او يا د اول بيوت نه مراد د ښارونووالا کورونه دی، او د دويم نه مراد د باندو اوصحرا والا کورونه مراد دی، او (من) په دواړو کښې تبعيضيه دې ، او په دې کښې اشاره ده چه اوسيدل په بعض حصه د کور کښې کيږی ﴿تَسْتَخِفُّونَهَا﴾ سين او تا دپاره د طلب نه دی بلکه دپاره د وجدان دی ((ای تجدونها خفيفة سهلة الماخذ)) (روح) يعنی په حالت د سفر کښې منتقل کول آسان دی، او په حالت د اقامت کښې ئې اودرول آسان دی ﴿وَمِنْ أَصْوَافِهَا﴾ ضمير په دې ټولو کښې راجع دې انعام ته . (الاصواف) جمع د صوف ده، د ګډو ويښتو ته وئيلې کيږی، ﴿وَأَوْبَارِهَا﴾ (اوبار) جمع د وبر ده د غوايه ويښتو ته وئيلې کيږی، او ﴿وَأَشْعَارِهَا﴾ اشعار جمع د شعر ده، د بيزو (چيلو) ويښتو ته وئيلې کيږی

﴿أَثَاثًا وَمَتَاعًا﴾ اثاث وئیلې کیږی هغې ته چه هغه اغوستلې شی او یا لاندې غوړولې شی او متاع وئیلې کیږی سامان دتجارت او د آرائش اسبابو ته . اوامام رازی رحمه الله فرمائی چه اثاثه هغه ده چه هغه د انسان د اغوستلو او په نورو ضروریاتو کښې پکار راځی . او متاع هغې ته وئیلې کیږی چه هغه د مکان په خائست کښې استعمالیږی ((الاثاث ما یکتسی به المرء ویستعمله فی الغطاء والوطاء والمتاع وما یفرش فی المنازل ویزین به)) (کبیر) ﴿إِلَىٰ حِينٍ﴾ مراد ترینه یا وخت دپوره کیدو د حاجاتو دې یا ترینه مراد هغه وخت د زړیدلو د دې اشیاؤ دې او یاترینه وخت د مرګ مراد دې

**فائده** : د دې آیت نه فقهاؤ استنباط کړې دې چه د مړ ښاروی د څرمنې او وینښتو نه نفع اخستل جائز دی ، ((فیه الدلالة علی جواز الانتفاع بما یوخذ منها من ذالك بعد الموت اذ لم یفرق بین اخذها بعد الموت وقبله)) (احکام القران جصاص).

| |
|---|
| وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُم مِّمَّا خَلَقَ ظِلَالًا وَجَعَلَ لَكُم مِّنَ الْجِبَالِ أَكْنَانًا |
| او الله جوړ کړیدی تاسو دپاره دهغې نه چه پیدا کړې ئې دی سورې او پیدا کړې ئې دی تاسولره د غرونو نه ځایونه د پټیدلو |
| وَجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيلَ تَقِيكُمُ الْحَرَّ وَسَرَابِيلَ تَقِيكُم |
| او پیدا کړې ئې دی تاسو لره قمیصونه چه بچ کوی تاسو د ګرمئ نه او قمیصونه (بل قسم) چه ساتی تاسو د ضرر نه |
| بَأْسَكُمْ ۚ كَذَٰلِكَ يُتِمُّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تُسْلِمُونَ ۝ |
| په وخت د جنګ کښې دغسې پوره کوی الله نعمت خپل په تاسو باندې لپاره د دې چه تاسو د الله حکم اومنئ |
| فَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ۝ يَعْرِفُونَ نِعْمَتَ اللَّهِ |
| پس کچرته دوئ مخ اوګرځولو [1] پس بیشکه ستا په ذمه باندې رسول دی واضح (ښکاره) پیژنی دوئ [2] نعمت د الله |
| ثُمَّ يُنكِرُونَهَا وَأَكْثَرُهُمُ الْكَافِرُونَ ۝ |
| بیا انکار کوی د هغې نه او زیات د دوئ نه کفر کوونکی دی. |

١ - متعلق له دلائلو د توحید سره او تسلی ده حضور ﷺ ته.

٢ - زجر.

﴿ وَٱللَّهُ جَعَلَ لَكُم ﴾ داهم په دليل عقلي پورې متعلق دې ، او جز دې د هغې نه او په دې كښ ذكر د نعمتونو د سُورو ، غارونو ، اوقميصونو ، اوزغرو دې ، ﴿خَلَقَ ظِلَٰلًا﴾ غوره توجيه مطابق د دې نه مراد هغه ټول څيزونه دى چه هغه سورې وركونكى دى، لكه اونې ديوالونه غرونه وغيره شول. ﴿وَجَعَلَ لَكُم مِّنَ ٱلْجِبَالِ أَكْنَٰنًا﴾ (اكنان) جمع د (كن) ده، هر هغه څيز ته وئيلې كيږى چه په هغې سره بل شى پټيږى ، مراد ترينه دلته غارونه دى، چه په هغې كښې انسان د ضرورت په وخت كښې باد او باران طوفان وغيره نه خان بچ كوى ﴿تَقِيكُمُ ٱلْحَرَّ﴾ څنګه چه لباس سره حفاظت د ګرمئ نه راځى هم دغه شان يخنئ نه هم راځى ، خو دلته اكتفاء صرف په ګرمئ اوشوله او د يخنى ذكر اونه شو ، يا د دې وجې نه چه د قرآن اولاً مخاطبين عرب وو او د عربو دپاره د ګرمئ نه حفاظت اصل وو ، چه د عربو په ملك كښې يخنى ډيره كمه وى، نو د هغوى زيات اهم حاجت داوو چه د هغوئ د ګرمئ نه حفاظت اوشى، نود دې وجې نه ئې اكتفا په ګرمئ اوكړه ،اويا د دې وجې نه چه اكتفاء په ضد واحد شوې ده، څكه چه كومو دوه ضدينو په مينځ كښې تلازم ذهنى وى نو هلته اكتفاء باالذكر په احدهما سره جائز وى لكه يخنى، ګرمى، نور، ظلمت سواد، بياض وغيره شو، يا د دې وجې نه چه كوم شې حفاظت د انسان د ګرمى نه كوى نو د يخنى نه ئې هم حفاظت كوى غالباً ﴿تَقِيكُم بَأْسَكُمْ﴾ مراد ترينه اسباب د حفاظت دى په وخت د جنګ كښې لكه زغرې وغيره شوې ، او دا دليل دې په دې چه انسان دپاره اسباب د حفاظت استعمالول پكار دى، او دا خلاف دتوكل نه دى، حضور ﷺ نه په متعددو رواياتو كښې د دې څيزونو استعمال اوامت ته د دې اهميت مروى دې ﴿كَذَٰلِكَ يُتِمُّ نِعْمَتَهُۥ﴾ مشار اليه د (ذلك) دپاره د انعم سابقه د ى ﴿نِعْمَتَهُۥ﴾ مراد ترينه جنس نعمت دې، كه نعمت دنياوى وى او كه دينى وى ﴿لَعَلَّكُمْ تُسْلِمُونَ﴾ (تسلمون) يا په معنى د (تؤمنون) سره دې چه د دې نعمتونو كښې سوچ اوفكر اوكړئ او ايمان راوړئ څكه چه په انعاماتو سره ، دمنعم حق اوپيژندلې شى، نوپه منعم عليه باندې لازم دې عقلا او نقلا چه د منعم شكريه ادا كرى ، او ايمان راوړ ى ((اى ارادة ان تنظروا فيما اسبغ عليكم من النعم فتعرفوا منعمها فتومنوا به تعالى وحده)) ، (روح) اوياترينه معنى لغوى مراد ده چه استسلام او انقياد دې ، ((اي لعلكم تسلمون له سبحانه وتنقادون لا مر عزوجل)) اومقصد د دې نه هم ايمان راوړل دى خو ذكر ئې كناية دې، او يا دسلامتئ نه دې په معنى د خلاصى ا و نجات سره ((اي تشكر فتسلمون من

العذاب)) (روح) ﴿ فَإِن تَوَلَّوۡاْ ﴾ په دې کښې دويمه تسلی ذکر کيږی حضور ﷺ ته . د غوره توجيه مطابق اوله فاء دپاره دتفريع ده او يا دپاره دعطف ده، او﴿ فَإِنَّمَا عَلَيۡكَ ٱلۡبَلَٰغُ ﴾ کښې فاء جزائيه ده . او دا جمله جزا اوجواب شرط ده صرف صورتًا اوحقيقةً جواب شرط محذوف دې اوهغه دادې چه ((اي فان تولو ا فانت معذور اذ اديتَ ما وجب عليك)) (بحر) نوسبب د عذر چه هغه بلاغ دې قائم کړې شو په مقام د مسبب چه هغه انت معذور دې دَ وجې د دلالت د دې سبب نه په هغه مسبب باندې او يا ورله جزا ((فلا تتبعه عليك)) ده يعنی که چرته دوئ انکار اوکړی نوپه تا باندې هيڅ قسم وبال نيشته دې، او يا تقدير د عبارت داسې دې ((فان تولوا فلست بقادر علی حق الايمان فی قلوبهم)) يعنی که چر ته دوئ اعراض اوکړو نو ته د دوئ په زړونو کښې ايمان ثابتولو باندې نه ئې قادر ، په تا باندې صرف بيان د احکاماتو دالله دې او دالله د اوامرو او منهياتو تبليغ دې (بحر) او دا آيت منسوخ دې په آيت السيف سره ﴿ يَعۡرِفُونَ نِعۡمَتَ ٱللَّهِ ﴾ په دې آيت کښې زجر ذکر کيږی، چه د الله نعمتونه پيژنئ او بيا يې انکار هم کوئ ، اومراد د انکار نه يا انکار عملی دې چه په دې باندې بنه پوهيږی چه دا د الله نعمتونه دی او هغه راکړی دی، خو عملا انکارکوی، چه دالله نه علاوه د نورچا عبادت کوی اوهغه ته دا نعمتونه منسوب کوی، (اي يعرفون الله هو الذی ليهم ذالك وهو المتفضل به عليهم ومع هذا ينکرون ذلك ويعبدون معه غيره ويسندون النصر والرزق الی غيره))، (ابن کثير) او يا د انکار نه مراد انکار لسانی دې چه معرفت ورته حاصل دې د الله دنعمتونو خو عناداً دا په ژبه باندې اقرار نه کوی بلکه انکار کوی، او د ﴿ نِعۡمَتَ ٱللَّهِ ﴾ نه يا دا مذکور نعمتونه مراد دی، او ياترينه د حضور صلی الله عليه وسلم ذات اقدس مراد دې ، ﴿ ثُمَّ ﴾ دپاره داستبعاد دې او د بعد رتبی لپاره دې ځکه چه د معرفت د نعمت نه روستو د هغې انکار کول مستبعد دی، بلکه د هغې اعتراف کولې کيږی ﴿ وَأَكۡثَرُهُمُ ٱلۡكَٰفِرُونَ ﴾ مراد ترينه معاند کافر دې اگر چه کافر دوئ تول دی ، او يا کافر نه مراد کافر عملا دې نو دبعض کسانو عملی انکار کفر ته رسيدونکې نه وی نو ددې وجه نه (اکثرهم) اوئيلې شو.

| وَيَوْمَ نَبْعَثُ مِن كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا ثُمَّ لَا يُؤْذَنُ |
|---|
| او كومه ورځ ⁽¹⁾ چه راپورته به كړو مونږ ده هر امت نه يو ګواهي كونكي (پيغمبر) بيا به اجازت نشي وركيدلې (د معذرت) |
| لِلَّذِينَ كَفَرُوا وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ ﴿٨٤﴾ وَإِذَا رَأَى الَّذِينَ ظَلَمُوا |
| هغه كسانو ته چه كفر ئې كړې وؤ او نه به د دوئ نه طلب د توبې اوكړې شي اوپه كوم وخت چه او وينې هغه كسان چه ظلم ئې كړې وؤ |
| الْعَذَابَ فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ ﴿٨٥﴾ وَإِذَا رَأَى الَّذِينَ |
| عذاب لره پس نه به شي سپك كيدې د دوئ نه اونه به دوئ له مهلت وركيدې شي اوپه كوم وخت چه او وينې هغه كسان |
| أَشْرَكُوا شُرَكَاءَهُمْ قَالُوا رَبَّنَا هَٰؤُلَاءِ شُرَكَاؤُنَا الَّذِينَ كُنَّا |
| چه شرك ئې كړې وؤ معبودانو خپلو لره نو اوبه وائي اې ربه زمونږ ! دا چه دي معبودان دي زمونږ هغه چه وؤ مونږ |
| نَدْعُوا مِن دُونِكَ ۖ فَأَلْقَوْا إِلَيْهِمُ الْقَوْلَ إِنَّكُمْ لَكَاذِبُونَ ﴿٨٦﴾ |
| مدد به مو غوختلو (د دوئ نه) سيوا ستا نه. پس اوبه غورځوي هغوئ دوئ ته جواب. چه بيشكه تاسو خامخا دروغژن يئ. |
| وَأَلْقَوْا إِلَى اللَّهِ يَوْمَئِذٍ السَّلَمَ ۖ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٨٧﴾ |
| او پيش به كړي دوئ الله ته په دغه ورځ كښ صلحه (انقياد) او ورك (غائب) به شي د دوئ نه هغه چه وؤ دوئ چه دروغ به ئې جوړول. |

﴿ وَيَوْمَ نَبْعَثُ ﴾ په دې آيتونو كښ تخويف اخروي ذكركيږي ، او (يوم) منصوب دې په ما اضمر على شريطة التفسير سره ﴿مِن كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا ﴾ مراد ترينه نبي دې چه هغه د مؤمنانو په ايمان او اطاعت سره .او د كفارو په كفر اومعصيت باندې ګواهي وركوي ، او دغه شانتې ذكر په سورة النساء كښ هم دې ﴿ثُمَّ لَا يُؤْذَنُ لِلَّذِينَ ﴾ يعني اذن او اجازت به ورته نشي وركولې دپاره د عذر كولو ، او دغه شانتې ذكر هم په سورة مرسلات كښ دې ، كه څوك اشكال اوكړي چه دا آيت معارض دې ، د نورو آيتونو سره څكه چه په سورة النحل كښ ذكر دى چه دوئ به عذر كوى او وائي به چه ((ماكنا نعمل من سوء)) ، (النحل : ۲۸) او دغه شان سورة مؤمن كښ ذكر دى چه دوئ به

---

۱ - تخويف اخروي.

وائی ((بل لم نکن ندعوا من قبل شیئا)) ، «مؤمن ، آیت : ۷۴» یو جواب ترینه دا شوې دې چه مواقف د حشر ډیر دې نو په یوځائ کښې به ابتداءً دوئ عذرونه پیش کړي، خو بیا به ورته اونیلې شی چه ((اخسئو فیها ولا تکلمون)) نو د دوئ عذرونه به منقطع شی، خبرې به ئې بندې کړې شی. صرف زفیر او شهیق به ورله باقی پاتې شی، دویم جواب ترینه دا کړې شوې دې. چه په دې آیت کښې نفی د هغه اعتذار ده چه په هغې کښې څه فائده وي، نو دفائده مند اعتذار اذن به ورته نشی ورکولې . او کوم عذرونه چه دوئ پیش کوي نو هغه به بلا فائده وي اوکوم شې چه بلا فائدې وي نو هغه په منزله د عدم وي ﴿ثُمَّ﴾ په دې ځائ کښې دپاره د تراخی رتبی دې ، او په دې کښې دلالت دې په دې خبره چه عدم اذن دپاره د اعتذار دا به ډیر سخت وي دپاره د شهادت د انبیاؤ نه په دوئ باندې ﴿وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ﴾ دا یا د عتاب نه ماخوذ دې . او استفعال په معنی دافعال سره دې چه د هغې یو خاصیت سلب ماخذ دې یعنی ازاله عتاب، نو معنی ئې داده چه د دوئ نه به دا طلب نشی کولې چه ازاله د عتاب د رب خپل اوکړئ یعنی هغه راضی کړئ، ((ای لایطلب منهم ان یزیلوا عتب ربهم ای غضبه بالتوبة والعمل الصالح اذالآخرة دار الجزاء لا دار العمل)) ، ((روح) او یا د عُتْبٰی نه ماخوذ دې په معنی د رضا سره ، او استفعال په خپله معنی سره دې لکه مشهور کهاوت دې ((یعاتب من ترجی عنده العتبی)) نو معنی ئې دا ده چه دوئ به مکلف نشی گرزولې چه خپل رب راضی کړي، ((والمعنی انهم لا یسترضون اي لا یتکلمون ان یرضوا ربهم لان الاخرة لیست بدار تکلیف ولا یترکوه الی رجوع الدنیا فیتوبون )) (فتح القدیر) . ﴿وَإِذَا رَءَا الَّذِينَ﴾ په دې کښې هم تخویف اخروی ذکر کیږی ﴿الَّذِينَ ظَلَمُوا﴾ مراد ترینه کافر دې، تعبیر ترینه په هغه وصف سره اوشو چه هغه موجب او علت دپاره د عذاب دې ، ﴿الْعَذَابَ﴾ دا به وروستو د شهادت د شهداؤ نه وي ، او جواب د «اذا» یا محذوف دې چه «لابسهم» دې «نظم الدرر» اویا مبتداء مقدره ده چه هغه «فهو» ده ((اي فهولا یخفف)) وجه داده چه کله جواب د اذا دپاره مضارع وي نو دهغې په جواب کښې فاء نه راځی که منفی وي اوکه مثبت وي ، دمثبت مثال لکه داقول د الله تعالی دې ﴿وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُنَا بَيِّنَٰتٍ تَعْرِفُ﴾ (الحج آیت :۷۲) او د منفی مثال لکه دا قول د عربو شو ((اذا جاء زید لا یکرمك ، فلا یخفف عنهم — الخ)) یعنی د جهنم په عذاب کښې به څه قسم تخفیف نه راځی، هره لمحه به د بلې لمحې نه سخته وي ﴿وَلَا

هُمْ يُنظَرُونَ ﴾ بعض مفسرينو ددې مقصد دا بیان کړې دې چه عذاب د جهنم به مسلسل وی او په مینځ کښې به څه قسم تخفیف او وقفه نه وی، او بعض مفسرین فرمائی چه دا کنایه ده د سرعت دخول نه چه کله دوئ ته جهنم څرګند کړې شی او دوئ جهنم اوګوری نو د کتلو نه پس به دوئ ته څه قسم مهلت نه ميلاويږی او دا جهنم به دوئ ځان ته راکاږی لکه څنګه چه یوه مرغئ او چر ګه دانه اوګوری اوفوراً ئی اوچته کړی، اوتیره ئې کړی، ﴿ وَإِذَا رَءَا الَّذِينَ ﴾ په دې آیت کښې هم تخویف اخروی دې ﴿شُرَكَآءَهُمْ﴾ مراد ترینه هر شریك دې چه دوئ جوړ کړې وو دالله سره ، او اضافت د شرکاء (هم) ضمیر ته چه هغه راجع دې مشرکینو ته د وجې د دوئ د اتخاذ نه دې. ﴿قَالُوا رَبَّنَا ﴾ مقصود به ئی په دې درخواست سره دا وی چه دا عذاب په معبودانو باندې راشی، او دوئ ترینه خلاص شی. او یا کم ازکم چه دا عذاب د دوئ او دمعبودانو په مینځ کښې تقسیم شی او د دوئ نه څه کمې راشی، په دې عذاب کښې ﴿إِنَّكُمْ لَكَٰذِبُونَ ﴾ یعنی معبودان به ورته په جواب کښې اوائی چه تاسو دروغ وایئ اوکه څوك اشکال اوکړی چه دوئ خو د دغې معبودانو عبادت کړې وو، نو څنګه به معبودان دوئ ته د کذب نسبت اوکړی، نو یو جواب ترې نه دادې چه د ((هولاء شرکاؤنا الذين)) مقصد دادې چه شرکاء مونږه ته حکم کړې وو، چه مونږه دالله سره په عبادت کښې شریکان یو، نو هغه معبودان به د اثبات د دې شرکت تکذیب اوکړی ((ان المراد من قولهم هولاء شرکائنا ای ان هولاء هم الذين كما يقول انهم شركآء الله في العبودية فالاصنام كذبوهم في اثبات هذه الشركة)) (اللباب) دویم جواب دادې چې دالله ﷻ نه غیر دمعبودانو عبادت کول دا په حقیقت کښې دخپلو خواهشاتو عبادت دې نو ددې وجې نه به هغوئ ددوی تکذیب کوی ، ((انهم ماعبدوهم حقيقتا وانما عبدوا اهوآئهم)) (بیضاوی) دریم جواب دادې چې ددې نه مراد معبودان صالحین دی خو قیامت کښې به هغوی انکار دعدم علم دوجې نه کوی لکه عیسی عليه السلام به عرض اوکړی، چې ((فلما توفيتني كنت انت الرقيب عليهم. — الخ )) (مائده ۱۱۷) اودغه رنګې سورة یونس آیت نمبر (۲۹) کښې ذکر دی. ﴿إِن كُنَّا عَنْ عِبَادَتِكُمْ لَغَٰفِلِينَ ﴾

﴿ وَأَلْقَوْا إِلَى اللَّهِ ﴾ په دې آیت کښې هم تخویف اخروی دې ﴿السَّلَمَ﴾ مرادترینه استسلام اوانقیاد دې، چې په دنیا کښې دتکبراو انکار نه پس چې کله په آخرت کښې دالله ﷻ دعذاب معاینه

اوکړی نو بیا به غاړه احکامانو منلوته کیږدی ﴿وَضَلَّ عَنْهُم﴾ یو مقصد دادې چې کوم دلائل به دوی ته شیاطینو بیانول دپاره دشرك وغیره نو هغه به ورنه هیر شی ((ذهب عنهم مازين لهم الشيطين من ان لله شريكا وصاحبة وولدا)) (کبیر) دویم مقصد دادې چې زائل به شی ددوی نه ددروغو امیدونه چې دا معبودان به زمونږه سفارش کوی، نو هغوی به ددوی نه برآئت اوکړی،اوددوی تکذیب به اوکړی(بطل ماكانوايأملون من الهتهم تشفع لهم عندالله))،(کبیر، قرطبی)

| ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَصَدُّوا۟ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ زِدْنَٰهُمْ عَذَابًا فَوْقَ ٱلْعَذَابِ |
|---|
| هغه کسان چه کفر ئې کړیدې اومنع کوی خلك د لارې د الله نه زیات به کړو مونږ دوئ ته یو عذاب دپاسه د بل عذاب نه |
| بِمَا كَانُوا۟ يُفْسِدُونَ ﴿٨٨﴾ وَيَوْمَ نَبْعَثُ فِى كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا |
| په سبب د دې چه وو دوئ چه فساد به ئې کولو په کومه ورځ چه راپورته به کړو مونږ په هر امت کښې یو شاهد (گواهی ورکونکې) |
| عَلَيْهِم مِّنْ أَنفُسِهِمْ ۖ وَجِئْنَا بِكَ شَهِيدًا عَلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ ۚ وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ |
| په دوئ باندې د جنس د دوئ نه اورابه ولو مونږ گواهی کوونکې پدې خلکو باندې، اونازل کړیدې مونږ په تا باندې |
| ٱلْكِتَٰبَ تِبْيَٰنًا لِّكُلِّ شَىْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً وَبُشْرَىٰ لِلْمُسْلِمِينَ ﴿٨٩﴾ |
| دا کتاب چه واضح بیانونکې دې د هر ضروری څیز او هدایت دې او رحمت دې او زیرې دې لپاره د مسلمانانو |

﴿ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟﴾ په دې آیت کښې هم تخویف اخروی دې خو ماقبل کښې چې کوم تخویف وو هغه خلقو ته وو چه پخپله گمراه وو، اوپه دې کښې تخویف هغه خلقوته دې چې په خپله هم گمراه وی اونور خلق هم دځان سره گمراه کوی ﴿وَصَدُّوا۟ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ یعنی نوروخلقولره هم منع کونکې وی داسلام نه ﴿زِدْنَٰهُمْ عَذَابًا﴾ ځنگه چې دوئ په خپله هم کفر اوکړو اوبیا دکفر دپاسه نور خلق دایمان نه منع کوی نودا په حقیقت کښې کفر علی الکفر دې، نو ددې وجې نه جهنم کښې به ورته عذاب فوق العذاب ملاویږی ((ای عذابا بکفرهم وعذابا بصدهم عن سبيل الله)) ، (مدارك) یعنی کوم عذاب کښې چې اَتباع ددو دی نودهغې په دوچنده عذاب به دوی ته ملاویږی، ((اتباعهم المااقتدوابهم فی الکفرفوجب ان يحصل لهم مثل عذاب اتباعهم)) ، (کبیر) اوبعض مفسرین فرمائی چې د ((زدناهم)) مقصد دادې چې د بختی اوښانو په شان ماران ،دخچرو په شان لړمان به ورته الله ﷻ

پیدا کړی ((تلك الزيادة اللتى وعدهم الله ان يزيدهموها عقارب وحيات)) (طبرى) ﴿ بِمَا كَانُوا يُفْسِدُونَ ﴾ مراد ترینه خلقوته دګمراهئ دعوت ورکول دی ﴿ وَيَوْمَ نَبْعَثُ ﴾ دا بیا اعاده د تخویف اخروی کیږی ﴿ كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا ﴾ دغوره توجیه مطابق مراد ترینه انبیاء کرام دی له وجې دمقابلې ﴿ وَجِئْنَا بِكَ شَهِيدًا ﴾ نه ﴿ عَلَيْهِم مِّنْ أَنفُسِهِمْ ﴾ یعنی من جنسهم څکه چې هر نبی دخپل قوم دجنس نه وی. او حضرت لوط ﷺ اګر چې حقیقةً دجنس او قوم دمبعوث الیهم نه نه وو. لیکن حکمًا وو. څکه چې په هغو کښې ئې سکونت اختیار کړې وو، نودهغوئ نه شمار کړي شو. ((ولوط لما تاهل فيهم وسكن فيما بينهم كان منهم)) (حقی) او په ﴿ عَلَيْهِم ﴾ کښې اشاره ده چه ددوئ خلاف ګواهی به ددوئ په حضور کښې وی ﴿ وَجِئْنَا بِكَ ﴾ ماضی له وجې دتحقق او تیقن نه ذکر شوه ﴿ وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ ﴾ واو استنافیه دې اودا استیناف دې اوپه ما قبل کښې داخل نه دې له وجې داختلاف دزمانینو نه. اودا دلیل وحی دې چې دا مسئله دتوحید حضور ﷺ دځان نه نه ده جوړه کړې بلکه په وحی سره ثابته ده، اوپه دې قرآن کښې سوچ اوفکر اوکړئ په دې کښې کل امورددین الله ﷻ په ښه وضاحت سره بیان کړي دی، چې بیا په قیامت کښې څه حجت اومعذرت باقی نه وی ﴿ تِبْيَانًا ﴾ مصدر دې بکسر التاء، تفعال کښې تا دپاره دمبالغې وی، معنی یې ده بیان، یعنی ښه پوره پوره بیانونکې دې اوقیاس په تفعال کښې فتح التاء ده، خو دوه بابونه په کښې خلاف القیاس په کسرې د تاء سره راغلیدی، یو تبیان او دویم تلقاء، او (کل) په دې مقام کښې دپاره داستغراق اضافی دې، استغراق حقیقی دپاره ندې، مراد ترینه امور د دین دی، تبيانا بيانا بليغا لكل شيء، اوقرآن ته تبیان لپاره دهر شی اوهر امر دین په دې اعتبار سره وئیلې شوی دی چې ځینې امور چې هغه اصول د دین دی هغه په کښې ذکر دی صراحتًا او دځینو امورو تصریح اوبیان ئې سنة (حدیث) ته پریښودې دې، او وې فرمائیل چې ﴿ وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا ﴾ اودغه شان ئې اوفرمائیل چې ﴿ وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ ۝ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ ۝ ﴾ اوځینی امور ئې اجماع دامت ته حواله کړل، اودهغې په باره کښې ئې اوفرمائیل چې ﴿ وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّىٰ ﴾ اودځینی امورو تصریح ئې اجتهاد دمجتهد اوقیاس ته حواله کړه، اود هغې باره کښې ئې اوفرمائل چې ﴿ فَاعْتَبِرُوا يَا أُولِي الْأَبْصَارِ ﴾ اوحضور ﷺ ارشاد اوفرمائلو ((اصحابي كالنجوم بايهم اقتديتم اهتديتم)) نو دصحابه

كرامو نه اجتهاد . قياس وغيره ټول ثابت دي، نو هر كله چې ثبوت دحجيت دحديث ،اجماع اوقياس اوشو،اوپه دې سره ثبوت داحكامو صحيح شونوګويا چې دغه ټول احكامات په قرآن سره ثابت شو، نوقرآن دټولو امورو د دين دپاره تبيان شو ﴿وَهُدًى وَرَحْمَةً﴾ قرآن ذريعه دهدايت او رحمت دهر چا دپاره دې اوحرمان دكفارو له وجې دتفريط دهغوئ نه دې ﴿وَبُشْرَىٰ لِلْمُسْلِمِينَ﴾ اوبشارت اوزيرې ئې خاص دې په مومنانو پورې. ځكه چې هغوئ ترينه نفع اخستې ده.

| إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيتَاءِ ذِي الْقُرْبَىٰ وَيَنْهَىٰ عَنِ الْفَحْشَاءِ |
|---|
| بيشكه الله حكم كوى دَ انصاف او دَ احسان او په وركړې «دحقوقو» سره خپلوانو ته اومنع كوى د بې حيائۍ نه |
| وَالْمُنكَرِ وَالْبَغْيِ ۚ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ۝ |
| او دبدوكارونو نه او د ظلم كولو نه، نصيحت «پوهه» دركوى تاسوته لپاره د دې چه تاسو نصيحت قبول كړئ |
| وَأَوْفُوا بِعَهْدِ اللَّهِ إِذَا عَاهَدتُّمْ وَلَا تَنقُضُوا الْأَيْمَانَ بَعْدَ تَوْكِيدِهَا |
| او پوره كړئ لوظ «وعده» د الله هركله چه وعده اوكړئ تاسو او مه ماتوئ تاسو قسمونه «وعدې» ورروستو د پوخوالى دهغې نه |
| وَقَدْ جَعَلْتُمُ اللَّهَ عَلَيْكُمْ كَفِيلًا ۚ إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا تَفْعَلُونَ ۝ |
| اوبه تحقيق ګرزولې دې تاسو الله لره په خپل ځان باندې ذمه وار . بيشكه الله پوهيږى په هغه څه چه تاسو كوئ |

﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ﴾ په دې آيت كښې امور دفعيه دعذاب بيانيږى اوپه دې كښې تفصيل دې دپاره د ﴿تِبْيَانًا لِكُلِّ شَيْءٍ﴾ . بعض علماء فرمائى كچرته قرآن پاك كښې نور آياتونه نه وې. نو د ﴿تِبْيَانًا لِكُلِّ شَيْءٍ﴾ دثبوت دپاره صرف دا آيت هم كافي وو، دا آيت ذريعه د دخول په اسلام كښې جوړه شوه دپار داكثم بن صيفي چې كله ئې دا آيت واوريدو نو خپل قوم ته ئې اوويئيل چې ((فكونوا في هذاالامر روساولا تكونوا فيه اذنابا)) (ابن كثير) اوددې آيت په باره كښې حضرت عثمان بن مظعون رضي الله عنه فرمائيلى دى چې ما اول اسلام صرف دحيا دوجې نه راوړې وو، خو ددې آيت د نزول نه وروستو ځما په زړه كښې ايمان مضبوط شو. اوحضور ﷺ سره مې محبت شديده پيدا شو، اوحضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمائلى دى چې دا آيت په قرآن كښې ډير ښه جمع كونكې دې، لپاره دخير او شر، اوحضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله خپل دور كښې خطيبانو ته حكم كړې وو، چې دا آيت دې په خطبو

کښې لولي. ځکه چې په دې آيت کښې دانسان ټول احوال اوټول احکام شرعيه جمع کړې شوی دی، هر چې دې جمع کونکې لپاره داحوالو د انسان نوهغه داسې دی، چې په انسان کښې الله ﷻ دخير اوشر لپاره درې قوتونه پيدا کړی دی ، (۱)قوة علمی (۲)قوة غضبی (۳) قوة شهوانی اوبيا په هر يو کښې درې مرتبې دی (الف) افراط، (ب) تفريط، (ج) : توسط، په قوة علمی کښې افراط درجې ته جربزه؟ وئيلې شی، چې هغه عبارت دې دچلولو دعقل نه په هر ځائ کښې که محل اولاره دعقل وی اويا نه وی، لکه حقيقت د ذات د باری ﷻ چې وراء العقل دې. نودا مرتبه مذموم ده، او تفريط درجې ته بلادت او غباوت وئيلې کيږی دا هم مذمومه ده،او د توسط درجې ته حکمت وئيلې شی چې دا ممدوحه ده، اوپه قوت غضبی کښې د افراط درجې ته تهوّر وئيلې کيږی ، چې په هر ځائ کښې غصه کوی اوپه خپلې غصې باندې يې قدرت نه وی اومرتبې دتفريط ته جبن وئيلې شی، او د توسط مرتبې ته شجاعت وئيلې شی، اوپه قوت شهوانی کښې مرتبې د افراط ته فجور وئيلې شی، چې محل نه ګوری اوخپل خواهشات پوره کوی، اومرتبې دتفريط ته خمود وئلې شی چې با الکل قادر نه وی،اومرتبې دتوسط ته عفت وئيلې شی، نوددې درې واړو قوتونو هغه توسط اوممدوح درجې چې کله جمع شی، يعنی حکمت، شجاعت ،عفت، نوعدالت ترينه جوړشی، چې هغه سراسر خير دې، او دا ټول کارونه په صحيح نيت اوخالص دالله ﷻ دپاره کولوته احسان وئيلې شی، لکه په حديث جبريل کښې ورته اشاره شوې ده، چې ((ان تعبدالله كانك تراه – الخ )) او د اهتمام شان دپاره ذکر د ﴿وَإِيتَآيِ ذِى ٱلْقُرْبَىٰ﴾ اوشو.

اوکه په قوة شهوانی کښې افراط راشی نو فحشاء ورته وئيلې شی، ددې وجې نه دابن عباس رضی الله عنه نه دفحشاء تفسير په زنا سره مروی دې، اوکه په قوت علمی کښې افراط راشی نو منکر ورته وئيلې کيږی، ددې وجې نه دابن عباس رضی الله عنه او مقاتل رحمه الله نه دمنکر تفسير په شرك سره مروی دې، ځکه چې مشرك هم داثبات دشرك دپاره صرف عقلی دليل وائی، او په امورو دشرع کښې هر ځائ کښې عقل چلوی،اوکه په قوت غضبی کښې افراط راشی نو بغی ورته وئيلې کيږی،او ددې وجې نه ابن عباس رضی الله عنه نه دبغی تفسير په ظلم سره مروی دې،اوابن جرير طبری فرمائی چې ((واصل البغی التعدی ومجاوزة القدروالحدمن کل شيء)) (طبری) او امام رازی وغيره فرمائی چې منکر وئيلې کيږی مرتبې دافراط ته په قوت غضبی کښې،او بغی د آثارُ دقوت وهميه شيطانی نه دې (کبير) نوپه دې آيت کښې الله ﷻ انسان ته دحکمت، شجاعت، عفت چې احوال ممدوحه دی دهغې حکم ورکړو. اوفحشاء منکر، بغی نه چې احوال او اوصاف ذميمه دی منع ئې کړه

اوهر چې دې جمع کونکې لپاره د احکام شرعيو نو هغه داسې دې چې احکام دشرع په دوه قسمه دی يو ته مامورات وئيلې کيږي، اوبل ته منهيات وئيلې کيږي، بيا مامورات په دوه قسمه دي يو حقوق الله دی اوبل حقوق العباد دی، بيا حقوق الله په دوه قسمه دی، يو عقائد اوعبادات دی اودوهم دهغې اوقات، مقدار او کيفيات دی، اومنهيات په دوه قسمه دی حقوق الله او حقوق العباد او بيا حقوق الله په دوه قسمه دی يو هغه چې دهغې قباحت به عقلا او شرعا معلوم وی چې هغه قبيح لعينه دی او دويم هغه دی چې دهغې قباحت به صرف شرعا معلوميږي، نو په ﴿بِالْعَدْلِ﴾ سره اشاره ده قسم اول ته په حقوق الله کښې چې هغه اعتقاديات او عبادات دی، هر چې دي اعتقاديات نو په هغې کښې عدل عبارت دې د ((لااله الاالله)) نه، او د ټولو اصولو ددين نه اوتشريع نی داده چې نفی د اله تعطيل محض دې، دا مرتبه دتفريط ده،او اثبات د اله اکثر د واحد نه تشريك او تشبيه ده، دا مرتبه دافراط ده،دا دواړه مذموم دی، او اثبات داله واحد عدل دې، چې هغه ((لااله الاالله)) دې، دغه شانته نفی د اله کول تعطيل محض دې مرتبه د تفريط ده او ثبوت دجسميت، جوهريت، ترکيب اوتخصيص په مکان پورې کول ، تشبيه محض مرتبه د افراط ده، ثبوت دوجود د اله په شرط ددې چې منزه وی ددې ټولو صفاتو مذکوره نه، مرتبه دعدل ده،دغه شان بنده نه نفی داختيار اومطلق قدرت کول مرتبه دجبر محض دې مرتبه دتفريط ده، بنده د لپاره خالقيت ثابتول په افعال کښې قدر محض دې، مرتبه دافراط ده،اوثبوت دکسب ورله کول عدل دې.

او هر چې دی عبادات نو ترك دتعبد بطالة دې مرتبه دتفريط ده، دنوروحقوقو نه غافله کيدل اوصرف عبادت کول ترهب دې مرتبه د افراط ده، او تعبد سره د اداء دټولو واجباتو مرتبه دعدل ده، دغه رنگې مال باالکل نه خرچ کول بخل دې مرتبه دتفريط ده، دحد نه زيات بې ځايه خرچ کول اسراف او تبذير دې، مرتبه دافراط ده،اوپه ځپل ځائ کښې استعمالول جود دې ، مرتبه دعدل ده،اوپه ﴿وَالْإِحْسَانِ﴾ سره حق دالله ﷻ قسم ثانی ذکر شو، چې هغه طريقه مقدار او وخت دعباداتو دې، ځکه احسان داعمالوعبارت دې ددېنه چې دا عبادات په داسې طريقې سره ادا کړې چې هغه لائقه وی ددې سره ((ای الاتيان بها علی الوجه اللائق)) (ابی سعود) امام رازی فرمائی چې احسان عبارت دې د زيادت نه په طاعاتو کښې ((والاحسان عبارة عن الزيادة فی تلك الطاعات)) (کبير) دا به يا په حسب دکيفيت سره وی چې دا عبادت په ښکه طريقې سره ادا کيږي، دې ته اشاره شوې ده په حديث جبرئيل کښې چې ((الاحسان ان تعبدالله کانك تراه فان لم تکن تراه فانه يراك))

.او یا په حسب د کمیة سره دي، چي هغه زیادت دي په فرضی او واجب عبادت باندي. لکه سنت او نوافل شو .او ﴿وَإِيتَآيِٕ ذِى ٱلْقُرْبَىٰ﴾ سره ذکر دحقوق العباد دي اومراد دقربی نه عام دي سببی وی یا نسبی وی، او مراد په اتیان سره دهغوئ حقوق پوره پوره اداکول دی، که هغه دنیوی حقوق وی یا دینی،دا دري ماموراث شو.

اوپه منهیاتو کښ قسم اول دحقوق الله ذکر شو په ﴿وَيَنْهَىٰ عَنِ ٱلْفَحْشَآءِ﴾ سره په دي کښ دقبیح لعینه ټول اقسام داخل دی، لکه شرك ،کفر،قتل،دروغ، زنا او غلا شو. اوقسم ثانی دحقوق الله ذکر شو په ﴿وَٱلْمُنكَرِ﴾ سره په دي کښ ټول قبیح لغیره منهیات داخل دی، لکه بدعات، په اوقات مکروهه کښ مونځ، او روژه شوه په ایامو دعیدینو اوتشریق کښ، اومنهیات په حقوق العباد کښ ذکر شو په ﴿وَٱلْبَغْىِ﴾ سره،چي تکبر دي اوظلم دي وغیره. نو معلومه شوه چي دا آیت ټولو احکامو ددین اوټولو احوالو دانسان لره جامع دي.

﴿يَعِظُكُمْ﴾ مراد ترینه تنبیه ده ﴿وَأَوْفُواْ بِعَهْدِ ٱللَّهِ﴾ په دي کښ ترغیب دي له پاره د ایفاء عهد اوعطف دي په مضمون د ماقبل آیت باندي، او مراد دعهد نه عهد د ((الست بربکم)) دي او یا ترینه مطلقا بیعت علی الاسلام مراد دي، او یا ترینه مطلقا عهد مراد دي چي واقع شی دجانبه دانسان نه عهد علی البیعة وی اوکه بل عهد وی، ((والظاهر العموم فی کل عهدیقع من الانسان من غیر فرق بالعهد البیعةوغیره)) (فتح القدیر ص ٢٥٨ ج٣) اوهر کله چي په عهدونو کښ دټولونه اولی باالعمل دالله ﷻ دبندګی اقرار او دالله ﷻ عبادت اودحضورﷺ په تعلیماتو باندي عمل کول وو، نوددي وجي نه اضافت دعهد الله ﷻ ته اوشو. ﴿وَلَا تَنقُضُواْ ٱلْأَيْمَٰنَ﴾ دغوره توجیه مطابق دا تخصیص بعد التعمیم دي، عهد عام دي دیمین نه ، ((وفیه دلیل علی ان المراد بالعهد غیر الیمین لانه اعم منها)) (خازن). ﴿بَعْدَ تَوْكِيدِهَا﴾ په دي سره یمین لغو خارج شو ،ځکه مراد دتوکید نه توکید بالعزم دي، یعنی باالعزم دالله ﷻ په نوم سره قسم مه ماتوئ، ﴿وَقَدْ جَعَلْتُمُ ٱللَّهَ﴾ واو حالیه دي اودا جمله حال واقع شوي ده دفاعل د ﴿وَلَا تَنقُضُواْ﴾ نه، ﴿كَفِيلًا﴾ کفیل وئیلي کیږی محافظ اونګرانی کونکی ته،اوهر کله چي قسم په الله ﷻ سره اوخوري شی په یو کار باندي نوګویا چي دي قسم کونکی په دي قسم سره الله ﷻ کفیل اوګرځولو په ایفاء ددي عهد باندي.

وَلَا تَكُونُوا كَالَّتِي نَقَضَتْ غَزْلَهَا مِنْ بَعْدِ قُوَّةٍ

او مه کیږئ[1] (په نقض د عهد کښ) په شان د هغه (لیونۍ) ښځې چه سپیړدل ئې سنړسن خپله وروسـو د مضبوط والی نه

أَنكَاثًا تَتَّخِذُونَ أَيْمَانَكُمْ دَخَلًا بَيْنَكُمْ أَن تَكُونَ أُمَّةٌ

ټکړې ټکړې. گرځوئ تاسو قسمونه خپل ذریعه د دهوکې (خیانت) په خپل مینځ کښ د وجې د دینه چه شته یو جماعت (د مشرکانو)

هِيَ أَرْبَىٰ مِنْ أُمَّةٍ ۚ إِنَّمَا يَبْلُوكُمُ اللَّهُ بِهِ ۚ وَلَيُبَيِّنَنَّ لَكُمْ

چه هغه د ډیرې فائدې والا دې د بل جماعت نه. بیشکه ازمائی تاسو الله پدې سره. او خامخا بیان به کړی تاسو ته

يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ۝ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَجَعَلَكُمْ

په ورځ د قیامت هغه څه چه تاسو په هغې کښ اختلاف کوئ. او کچرته خوښه شوې وې د الله نو خامخا گرځولی به ئې وئ تاسو

أُمَّةً وَاحِدَةً وَلَٰكِن يُضِلُّ مَن يَشَاءُ وَيَهْدِي مَن يَشَاءُ ۚ

ډله یوه (ټول مسلمانان) لیکن (الله) بې لارې کوی چا له چه اوغواړی او لاره ښائی (هدایت کوی) چاته چه اوغواړی

وَلَتُسْأَلُنَّ عَمَّا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ۝

او خامخا تپوس به کولې شی ستاسو نه دهغې عملونو چه تاسو ئې کوئ (په دنیا کښ)

﴿ وَلَا تَكُونُوا ﴾ په دې آیت کښ دنقض عهد کوونکو دپاره تمثیل بیانیږی. او یا مثال دې دپاره دنقض عهد. اومنع ده دنقض د عهد نه دمثال په ذریعه ﴿كَالَّتِي﴾ مراد دمشبه به نه. یا مخصوص زنانه ده. چې په مکه کښ اوسیدله چه په دماغو کښ ئې نقص وو. لیونۍ وه. نوم یې ریطة بنت عمرو وو. اولقب ئې حفراء وو. او یا یې نوم ریطه بنت سعد التیمی وو. چې هغې به دکپړې دجوړولو کار کولو. ټوله ورځ به ئې تارونه اوودل او بیا به ئې اوودلې شوی تارونه اوسپړدل. او یا ترینه غیر معینه زنانه اووصف مراد دې. تشبیه دحال ناقض ده دبل حال ناقض سره. اومقصود په تشبیه سره دادې چې نقض عهد دا دعقلاء کار نه دې. بلکه په دې سره ناقض داسې شی لکه چې زنانه وی اوکار هم دکپړې جوړولوکوی اولیونۍ هم وی. چې اوودلې شوی

---

[1] د نقض عهد لپاره مثال

تارونه دوباره اوسپړی، نو دالله ﷻ دعهد ماتونکي ددغې زنانه په شان بې عقله، بې شعوره او اخس کار کونکي اوځان ته نقصان رسونکي دي ﴿نَقَضَتْ غَزْلَهَا﴾ مصدر په معنی دمفعول سره دي، ((ای مغزولها)) اوودلې شوې ﴿تَتَّخِذُونَ أَيْمَـٰنَكُمْ﴾ دا جمله یا حال واقع شوې ده د ﴿وَلَا تَكُونُوا﴾ دفاعل نه اویا جمله مستانفه استفهامیه ده، اوهمزه داستفهام په کښې مقدره ده، او استفهام انکاری دي. ﴿دَخَلًا بَيْنَكُمْ﴾ دا مفعول ثانی دې لپاره د ((تتخذون)) او دخل په اصل کښې ونیلي کیږی چې یوشې په بل کښې داخل شی اودهغه نه، نه وی،اومراد ترینه یا فساد اوعداوت دي.اویا غدر اوخیانت دي یعنی تاسو خپل قسمونه ذریعه او سبب دَ دهوکې او خیانت مه ګرځوئ چه په قسمونو سره خلق په اعتماد کښې واخلئ او بیا ورسره خیانت اوکړئ ﴿أَن تَكُونَ﴾ با سببیه په کښې مقدر ده ((ای بسبب ان تکون امة)) (مدارك) ﴿هِيَ أَرْبَىٰ مِنْ أُمَّةٍ﴾ (اربی) اسم تفضیل دي (الربوا) نه دي په معنی دزیادت سره . ((ازید عددا واوفرمالا)) (مدارك) د اول اُمة نه مراد جماعت دمشرکینو دي او د اُمة ثانی نه مراد جماعت دمومنینو دي، مقصد دادي چې کفارو اومشرکینو ته اوګورئ او دهغوئ مال، دولت، آمدنی درته ډیره ښکاره شی نو دهغې دوجې نه خپل عهد او میثاق دعذر اوخیانت ذریعه مه ګرځوئ چې هغه مات کړئ بلکه دخپل عهد اومیثاق وفا کوئ ﴿إِنَّمَا يَبْلُوكُمُ اللَّهُ بِهِ﴾ کفارو ته دکثرت مال عطاء کولو حکمت بیانیږی، چې کفارو اوبې دینه خلقوته مالداری او ډیره آمدنی ورکولو کښې دمومنانو امتحان او ابتلاء اخستل مراد دی، چې څوك په خپل عهد باندې برقرار پاتې کیږی، اوڅوك ئې ماتوی . ﴿وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ﴾ په تیر شوی آیت کښې دنقض دعهد دوجې نه اختلاف پیدا کولو ته اشاره وه، په دې آیت کښې دا ذکر کیږی چې دا اختلاف هم دالله ﷻ په مشیت او په ارادې سره دي، اهل سنت والجماعت ددې مشیت نه مشیت اختیاری مراد کوی،اوهر چې دی معتزله نوهغوئ ددې مشیت نه مشیت الجائی اوقهری مراد کوی ﴿وَلَـٰكِن يُضِلُّ مَن يَشَاءُ﴾ دا تصریح ده په دې چې هدایت او ضلالت دواړه دالله دطرف نه دی، نودا رد دې په معتزلو باندې ﴿وَلَتُسْأَلُنَّ﴾ په دې کښې رد په مذهب د جبریه باندې دې،کچرته انسان مجبور محض وې نو بیا ترینه دعمل په باره کښې سوال کول نه وو پکار .

| وَلَا تَتَّخِذُوٓا أَيۡمَٰنَكُمۡ دَخَلَۢا بَيۡنَكُمۡ فَتَزِلَّ قَدَمُۢ |
|---|
| اومه نیسئ تاسو قسمونه خپل ذریعه د دهوکې (فریب ، خیانت) په خپل مینځ کښې پس اوبه خونیږی خپې (ستاسو) |
| بَعۡدَ ثُبُوتِهَا وَتَذُوقُوا ٱلسُّوٓءَ بِمَا صَدَدتُّمۡ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِۖ وَلَكُمۡ |
| وروستو د کلکوالی دهغې نه او اوبه څکئ تاسو عذاب په سبب دهغې چه منع کوئ تاسو (خلق) د لارې د الله نه اولپاره ستاسو |
| عَذَابٌ عَظِيمٞ ۝ وَلَا تَشۡتَرُوا بِعَهۡدِ ٱللَّهِ ثَمَنٗا قَلِيلًاۚ إِنَّمَا عِندَ ٱللَّهِ هُوَ خَيۡرٞ لَّكُمۡ |
| عذاب لوئ دې . اومه اخلئ تاسو په بدلې د عهد دالله قیمت لږ، بیشکه هغه څه (ثواب) چه الله سره دې هغه غوره دې تاسو لره |
| إِن كُنتُمۡ تَعۡلَمُونَ ۝ |
| که یئ تاسو چه پوهیږئ. |

﴿وَلَا تَتَّخِذُوٓا﴾ په دې آیت کښې مزید تاکید او اهتمام بیانیږی لپاره د ایفاء عهد سره دترتیب دامر زائد نه، نو داکثرو مفسرینو په نزد دا آیت خاص دې دماقبل آیت نه په دوو وجوهو سره : (۱) تخصیص په اعتبار د ناقضینو سره، چې په دې آیت سره مراد هغه خلق دی چې هغه مقتداء او علماء دی، چې دهغوئ نقض عهد نورو خلقو دگمراهئ ذریعه ده، (۲) تخصیص په اعتبار دعهد سره چې د دې عهد نه فقط بیعت علی الایمان مراد دې، اوعام عهد ندې مراد، ځکه چې دومره سخت وعید دنورو عهدونو په نقض باندې نشته دې، (وهذالوعیدانما هوفیمن نقض عهد رسول اللهﷺ من عاهده ثم نقض عهده خرج عن الایمان) (قرطبی صـ۱۲۶ ج۵)

﴿فَتَزِلَّ قَدَمُۢ﴾ زلت دقدم استعاره ده، دهغه مستقیم الحالة نه چې واقع شی په شیء عظیم کښې، ((وهذه استعارة للمستقیم الحال یقع فی شیء عظیم ویسقطیه)) (قرطبی) او دقدم نه یا قدمونه دمتبعینو مراد دی، اومقصد دادې چې په نقض عهد سره به یو نقصان تاسو ته دا اورسیږی چې په تاسو باندې به دعاموخلقو اعتماد ختم شی، بیا به تاسو قسمونه خورئ خو دخلقوبه درباندې اعتماد نه وی، او یا قدمونه دنقض کونکو مراد دی، چې نقض عهدد ایمان کول دایمان نه خارجیدل دی فتزل اقدامکم عن محجة الاسلام،(کشاف)

﴿وَتَذُوقُوا ٱلسُّوٓءَ﴾ دویم نقصان به دا اوشی چې تاسو به دخلقو دایمان نه راوړلو ذریعه اوگرځئ نوگویا چې دا خلق دایمان راوړلو نه تاسو منع کړل، نو ددې وجې نه به تاسو دیولوئ عذاب مستحق

اوګرځئ. ﴿ وَلَا تَشْتَرُوا ﴾ په دې آيت کښې منع ده دنقض عهد نه ددنيا دمال اوجاه په حرص سره. چې حق دين د دنيوی اموالو او اقتدار دلالچ اوطمعې دوجه نه مه پريږدئ. او دا داسې دی لکه چې تاسو د ايمان په شان عمده څيزخرچ کړئ او د دنيا والا خسيس شې پرې واخلئ ﴿ ثَمَنًا قَلِيلًا ﴾ اګر چې بنفسه به زياتې وی. خو د آخرت په نسبت دا ټوله دنيا ثمن قليل اومتاع قليل ده ﴿ إِنَّمَا عِندَ اللَّهِ ﴾ دا ترغيب دې جنت اوآخرت ته

| مَا | عِندَكُمْ | يَنفَدُ | وَمَا | عِندَ | اللَّهِ | بَاقٍ | وَلَنَجْزِيَنَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هغه څه چه | تاسو سره دی [1] | فنا به شی | اوهغه څه چه | | الله سره دی | باقی دی | او خامخا به بدله ورکړو مونږ |

| الَّذِينَ | صَبَرُوا | أَجْرَهُم | بِأَحْسَنِ | مَا | كَانُوا | يَعْمَلُونَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هغه کسانو ته چه صبر ئې کړيدې | اجر (ثوابونه) | دهغوئ | په بدلې دهغه ښه کارونو | کښې چه | وؤ | دوئ چه کول به ئې (په دنيا کښې) |

﴿ مَا عِندَكُمْ يَنفَدُ ﴾ په دې آيت کښې تزهيد فی الدنيا او تحقير د دنيا اوترغيب الی الا خرة ذکر کيږی. چې د ايفاء عهد اوصبر علی الدين په بدله کښې چې کوم اجر اوثواب تاسو ته ملاويږی. هغه دائمی دې. اوکومه فائده دنقض عهد چې په دې دنيا کښې تاسو ته ملاويږی. هغه حقيره اوختميدونکې ده. ﴿ وَلَنَجْزِيَنَّ الَّذِينَ صَبَرُوا ﴾ مراد ترينه صبر او استقامت علی عهد الاسلام والطاعات دې. ﴿ بِأَحْسَنِ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ مراد دعمل نه صبر دې ځکه چې صبر داعمال قلبيه نه دې. اوعبارت په حذف دمضاف سره دې.((ای لنجزينهم بجزآء صبرهم)) اولفظ دأحسَنُ يا ددې وجې نه استعمال شو چې ثواب صرف په احسن ملاويږی نه په حسن ځکه چې احسن هغه دې چې دهغې کولو ته ترجيح ملاوشوې وی په نه کولو باندې لکه فرائض واجبات، مستحبات شو. او يا دهغې نه کولو ته ترجيح ملاو شوې وی په کولو باندې، لکه محرمات، مکروهات شو اوحسن هغې ته وئيلې کيږی چې دهغې يو جانب ته ترجيح په بل جانب نه وی حاصله شوې . لکه مباح شو نوځکه احسن اووئيلې شو. اويا ذکر د احسن لپاره د ترغيب دې په عمل کښې اګر چې ثواب په حسن هم ملاويږی

---

[1] - تزهيد فی الدنيا، ترغيب الی الاخرة

مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهٗ حَيٰوةً طَيِّبَةً ۚ

هرچې څه عمل اوکړو نیك که نارینه وی یا زنانه وی اوحال دا چه دې مؤمن وی پس خامخا به ژوند ورکړو هغه ته ژوند د مزې

وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ اَجْرَهُمْ بِاَحْسَنِ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝

اوخامخا به بدله ورکړو مونږ دوئ ته اجر (ثواب) د دوئ په عوض دهغه ښه کارونو د دوئ کښې چه دوئ به کول

فَاِذَا قَرَاْتَ الْقُرْاٰنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ۝ اِنَّهٗ لَيْسَ لَهٗ

پس کله (چه اوغواړې ته) چه اولولې قرآن[١] پس اول پناه اونیسه په الله سره د شیطان رټلي شوی نه بیشکه نیشته ده لره

سُلْطٰنٌ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ۝ اِنَّمَا

قدرت (غلبه) د گمراه کولو په هغه کسانو باندې چه ایمان ئې راوړې دې او په خپل رب باندې توکل کوی بیشکه

سُلْطٰنُهٗ عَلَى الَّذِيْنَ يَتَوَلَّوْنَهٗ وَالَّذِيْنَ هُمْ بِهٖ مُشْرِكُوْنَ ۝

قدرت (غلبه دگمراه کولو) د ده په هغه کسانو ده چه دوستی کوی د ده سره اوپه هغه کسانو چه دوئ (الله) سره شریك کونکی دی

﴿ مَنْ عَمِلَ صَالِحًا ﴾ په دې آیت کښې بشارت دې دپاره د ایفاء کونکو دعهد ﴿ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى﴾ دا اگر چې په (من) کښې داخل وو خو بیا صراحة ذکر کول لپاره ددفع د توهم دتخصیص دی، چې څوك دا اونه وائی چې مراد د (من) به صرف مذکر وی، ﴿وَهُوَ مُؤْمِنٌ﴾ چې هغه مصدق وی دثواب په ایفاء دعهد باندې او د عقاب په نقض دعهد باندې، ((هومصدق بثواب الله الذی وعد اهل الطاعة وبوعید اهل معصیته علی المعصیة)) (طبری صــ۶۴۱ ج۷) ﴿فَلَنُحْيِيَنَّهٗ حَيٰوةً طَيِّبَةً﴾ مراد دحیات طیبه نه په دنیا کښې رزق حلال د اطمینان اوسکون زندگی ده، مومن موحد ته چه دالله ﷻ په عبادت اطاعت، صبر اوقناعت کښې کوم سکون او راحت ملاویږی، هغه سکون او راحت یو مشرك، فاسق بادشاه ته په تخت باندې نه وی حاصل، مال او دولت اسباب دراحت دی خو راحت نه دی. ددې وجې الله ﷻ فرمائی ﴿وَمَنْ اَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِيْ فَاِنَّ لَهٗ مَعِيْشَةً ضَنْكًا﴾ (طه آیت ۱۲۴) اویا

---

١. متعلق دې سره له دلیل دوحی نه «ای نزلنا علیك الکتاب – الخ».

سرینه حیات برزخی او قبر مراد دي اویا ترینه جنت مراد دي ، ﴿وَلَنَجۡزِيَنَّهُمۡ أَجۡرَهُم﴾ مراد ترینه جزاء اخرویه ده. ﴿فَإِذَا قَرَأۡتَ ٱلۡقُرۡءَانَ﴾ په دې آیت کښې ترغیب الی القرآن سره د آدابو ذکر کیږي.اودا آیت متعلق دې په دلیل وحی ﴿وَنَزَّلۡنَا عَلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَ﴾ پورې چې په تا باندې الله ﷻ کتاب نازل کړې دې. چې په هغې کښې دشرك اوظلم نه دځان بچ کولو اوداحسان کولو حکم دې،اوپه کښې تذکیر دعهددې دالله ﷻ نو چې کله هم ددې تلاوت شروع کوې نو استعاذه غواړه په الله سره دشیطان نه ځکه چې دې وسوسې اچونکې دې اوغافله کوونکې دې دعهد د الله ﷻ نه اومراد په ((فاذا قرات)) سره اراده دقراءة ده ﴿فَٱسۡتَعِذۡ﴾ امر دې په طلب دپناه غوښتلو سره دشیطان نه ، صاحب هدایه ((استعیذ باالله – الخ )) وئیلوته افضل وئیلی دی، نورو فقهاو ((اعوذ باالله)) ته افضل وئیلی دی. اوپه ځینو روایتونو کښې دلفظ دالله نه وروستو د ((السمیع العلیم)) اضافه هم راغلې ده بحث دتعوذ په ابتداء کښې تیر شوې دې، ﴿إِنَّهُۥ لَيۡسَ لَهُۥ﴾هرکله چې دتیر شوی آیت نه توهم دقدرت کیدو لپاره دشیطان په انسانانو باندې، نوپه دې آیت کښې ازاله ددغه توهم ده، او ضمیر د (انه) ضمیر شان دې ﴿سُلۡطَٰنٌ﴾غوره توجیه داده چې مراد په دې نفی دغلبې سره غلبه خاصه ده چې هغه قدرت اوتصرف په زړونو باندې دې او مراد ترینه داسې گناه ته لمسول (برانگیخته کول) دی چې هغه نه معاف کیږي لکه شرك شو . اویا دهغه گناه نه توبه نه اوباسی، لکه بدعات وغیره شو ، تفصیل په سورة حجر آیت ۴۲ اوسورة ابراهیم آیت ۲۲کښې تیر شوې دې، ﴿إِنَّمَا سُلۡطَٰنُهُۥ﴾ مراد ترینه هغه سلطان خاص دې چې مخکښې آیت کښې ئې نفی شوې وه، ﴿وَٱلَّذِينَ هُم بِهِۦ﴾ (با) دپاره دتعدیة ده اوضمیر راجع دې لفظ د (الله) ته ((ای اشرکوه فی عبادة الله)) (ابن کثیر) .

| وَإِذَا | بَدَّلۡنَآ | ءَايَةٗ | مَّكَانَ | ءَايَةٖ | وَٱللَّهُ | أَعۡلَمُ | بِمَا | يُنَزِّلُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوکله چه بدل راوړو مونږ [۱] یو آیت (ناسخ) په ځائ د بل ایت (منسوخ) او الله ښه پوه دې په هغه څه چه نازلوی ئې | | | | | | | | |

۱ - د مشرکینو سوال د دلیل وحی سره متعلق.

| |
|---|
| قَالُوٓا إِنَّمَآ أَنتَ مُفۡتَرٍۭ بَلۡ أَكۡثَرُهُمۡ لَا يَعۡلَمُونَ ۝ قُلۡ نَزَّلَهُۥ رُوحُ ٱلۡقُدُسِ |
| دوئ وائي چه بيشکه ته دروغ ترونکي يې. بلکه زيات د دوئ نه پوهيږي. او وايه ته نازل کړيدي [١] دا قرآن روح پاک (جبرئيل |
| مِن رَّبِّكَ بِٱلۡحَقِّ لِيُثَبِّتَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَهُدٗى وَبُشۡرَىٰ |
| د جانبه د رب ستا نه په حق سره لپاره د دې چه محکم کړی هغه کسان چه ايمان ئې راوړي دي او هدايت دې او زيري دې |
| لِلۡمُسۡلِمِينَ ۝ وَلَقَدۡ نَعۡلَمُ أَنَّهُمۡ يَقُولُونَ إِنَّمَا يُعَلِّمُهُۥ بَشَرٞۗ |
| لپاره د مسلمانانو. او په تحقيق سره پوهيږو مونږ [٢] چه بيشکه دوئ وائي چه بيشکه خودلي دې (قرآن) ده ته يو سړی |
| لِّسَانُ ٱلَّذِي يُلۡحِدُونَ إِلَيۡهِ أَعۡجَمِيّٞ وَهَٰذَا لِسَانٌ عَرَبِيّٞ مُّبِينٌ ۝ |
| ژبه دهغه سړي [٣] چه دوئ غلط نسبت کوی هغه ته عجمی ده او دا قرآن ژبه عربی ده واضحه |

﴿ وَإِذَا بَدَّلۡنَآ ﴾ په دې آيت کښې په مشرکينو باندې شکوی ذکر کيږی چې دشيطاني وسوسو دوجې نه دوئ په قرآن مجيد باندې بې ځايه اعتراضونه کوی، او دکفارو اول اعتراض ذکر کيږی په قرآن باندې چې دا دالله ﷻ کلام نه دې، بلکه افتراء ده په الله ﷻ باندې کچرته دا کلام دالله ﷻ وې نو په دې کښې به تبديلی اونسخ نه راتله. ﴿وَٱللَّهُ أَعۡلَمُ﴾ په دې کښې اشاره ده مصالحو دنسخ ته بطور جمله معترضه، چې په نسخه کښې دالله ﷻ ډير حکمتونه دی ﴿بَلۡ أَكۡثَرُهُمۡ لَا يَعۡلَمُونَ﴾ يعنی دوئ د فائدې اوحکمتونو دنسخې نه جاهل دی، نوځکه اعتراضونه کوی ﴿ قُلۡ نَزَّلَهُۥ ﴾ دا جواب دې د دغه اعتراض مذکوره نه چې دا قرآن افتراء نه ده، بلکه دا دالله ﷻ دطرفنه دروح القدس په واسطه نازل شوې دې،اود نسخ په ذريعه امتحان دمومنانو اخلی ،اودا ذريعه ګرځی د تثبت اومضبوطوالی په ايمان باندې او ذريعه دهدايت ګرځی اوذريعه دخوشحالئ ګرځی. ځکه چې کله هم يو آيت منسوخ شی نو مومنان خوشحاله شی اوايمان نور هم مضبوط شی چې اعتقاد ئې وی په دې چې دمنسوخ په ځائ ناسخ زمونږ په حق کښې زيات مفيد وی ،اوپه دې کښې به دالله ﷻ حکمت

---

١ - د ذکر شوی سوال جواب.

٢ - سوال او دويمه شکوی.

٣ - د ذکر شوی سوال جواب.

وی. ((ای لیبلوهم بالنسخ حتی اذا قالوافیه هو الحق من ربنا حکم لهم بثبات القدم فی الدین وصحة الیقین با ن الله حکم فلا یفعل الا ما هو حکمة وصواب)) (کبیر) ﴿وَلَقَدْ نَعْلَمُ﴾ په دې آیت کښې دمنکرینو ددویم سوال جواب ذکر کیږي، چې دوئ به وئیل چې دې پیغمبر ته یو رومي غلام دا قرآن ښائي اودا دالله ﷻ کلام نه دې. اوپه نوم دهغه کښې ډیر اقوال راغلی دی ﴿لِسَانُ الَّذِي﴾ داجواب ددې اعتراض دې چې دقرآن نسبت تاسو کوم بنده ته کوئ نو هغه خوعجمي دې. اودا قرآن خوپه فصیحه عربی کښې دې چې دهغې دمقابلې نه مشرکین مکه چې اهل لسان وو عاجزه وو. نوبنده عجمی به څنګه په دې معجز کلام باندې قادر شي ﴿يُلْحِدُونَ﴾ د الحاد خپله اصلی معنی میلان ده اودلته ترینه مراد نسبت کول دی ﴿أَعْجَمِيٌّ﴾ په ماده د (ع - ج - م) کښې معنی دابهام اواخفاء وی چې هغه ضد دبیان اوایضاح دې. نو اعجمی هر هغه چاته وئیلې کیږي چې هغه په فصاحت اووضاحت سره خبروکولو باندې قادرنه وی.

إِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ لَا يَهْدِيهِمُ اللَّهُ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝

بیشکه هغه کسان [1] چه ایمان نه لري په آیتونو د الله ، هدایت نه ورکوی دوئ ته الله او لپاره د دوئ عذاب دردناك دې

إِنَّمَا يَفْتَرِي الْكَذِبَ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْكَاذِبُونَ ۝

بیشکه جوړه وی دروغ (په الله باندې) هغه کسان چه ایمان نه لري په آیتونو دالله. او دغه کسان هم دوئ دروغژن دی

مَنْ كَفَرَ بِاللَّهِ مِنْ بَعْدِ إِيمَانِهِ إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُ

چا چه کفر اوکړو [2] په الله وروستو د ایمان راوړلو د ده نه سیوا د هغه چا نه چه زور پرې اوکړې شو او زړه دهغه

مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ وَلَٰكِن مَّن شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ مِّنَ اللَّهِ

مطمئن (کلك) وو په ایمان باندې لیکن هغه چا چه پرانستله ئ کفر قبلولوته سینه پس په دوئ باندې غضب دې دجانبه د الله نه

---

۱ - تخویف اخروی.

۲ - متعلق دې په ((فاذا قرأت)) پورې ، تخویف اخروی.

| |
|---|
| وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١٠٦﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمُ اسْتَحَبُّوا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا عَلَى الْآخِرَةِ |
| او لپاره د دوئ عذاب لوئ دي　دا (عذاب عظيم) د وجې د دېنه دي چه بيشك دوئ غوره كړيدي ژوند د دنيا په آخرت باندې |
| وَأَنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ ﴿١٠٧﴾ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ طَبَعَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ |
| (او پدې وجه) بيشكه الله هدايت نه كوي قوم كافرانو ته . دا هغه كسان دي چه مهر وهلې دې الله په زړونو د دوئ باندې |
| وَسَمْعِهِمْ وَأَبْصَارِهِمْ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ ﴿١٠٨﴾ |
| او په غوږونو د دوئ باندې او په سترګو د دوئ باندې اودغه كسان هم دوئ غفلت كوونكي دي (دآخرت نه) |
| لَا جَرَمَ أَنَّهُمْ فِي الْآخِرَةِ هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴿١٠٩﴾ ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ |
| حقه ده دا خبره چه بيشكه دوئ به په آخرت كښې هم دوئ تاوان والا وي　بيا بيشكه رب ستا [1] هغه كسانو لره |
| هَاجَرُوا مِنْ بَعْدِ مَا فُتِنُوا ثُمَّ جَاهَدُوا وَصَبَرُوا |
| چه هجرت ئې كړې دې وروستو دهغې نه چه تكليفونه ورته رسولې شوي وو بيا ئې جهاد كړيدي او صبر ئې كړيدې. |
| إِنَّ رَبَّكَ مِنْ بَعْدِهَا لَغَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿١١٠﴾ |
| بيشكه رب ستا وروستو د دې (كارونو نه) خامخا بخنه كوونكې ، مهربانه دې . |

﴿ إِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ په دې آيت كښې تخويف أخروي ذكر كيږي چې دغه معاندين چې د الله ﷻ په دې آيتونو باندې ايمان نه راوړي، نو الله ﷻ دوئ ته هايمان توفيق نه وركوي، او په آخرت كښې ورله سخت دردناك عذاب دې. ﴿ إِنَّمَا يَفْتَرِي الْكَذِبَ ﴾ داجواب دې ددوئ دقول چې دوئ به ونيل نبي ته چې ته افتراء كونكې ئې په الله ﷻ باندې نو الله تعالى فرمائى چه افتراء كونكې هغه خوك وي چه ايمان نه راوړي په الله تعالى باندې، ﴿ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْكَاذِبُونَ ﴾ داتصريح بعدالتعريض ده، په دې كښې دې ته اشاره ده چې دروغ ګوئي ددوئ عادت لازمه دې، اود دې وجې نه ذكر شو په جمله اسميه سره چې هغه دلالت كوي په دوام ثبوت باندې، ﴿ مَنْ كَفَرَ بِاللَّهِ ﴾ په دې

---

۱ . ثم لپاره د تعقيب دې، او دا ذكر د بيان د بشارت دې .

آیت کښې تخویف ذکر کیږي لپاره دنقض عهد کونکو په سبب د ارتداد سره، دا آیتونه نازل شوی دي په باره د عمارابن یاسر رضی الله عنه کښې چه دې او د ده پلار او مور حضرت سمیه رضی الله عنها کافرانو اونیول او ورته ئې اووئیل چه کلمه د کفر او وایئ ورنه مونږ مو قتلو، حضرت یاسر رضی الله عنه او سمیه رضی الله عنها انکار اوکړو نو کافرانو ظالمانو په ډیرې بې دردئ سره شهیدان کړل. عمار رضی الله عنه د مجبورئ نه ظاهراً په ژبه کلمه دکفر اووئیله، هغوئ پریخودلو، نو ډیر سخت پریشانه شو او د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو ، ژړل ئې. نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته په خپل څادر اوښکې پاکې کړې ، تپوس ئې ترینه اوکړو ، نو ده ورته خپله قصه اوکړه ، نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته او وئیل چه په دغه وخت کښې دې زړه څنګه وؤ. نو ده ورته اوئیل چه زړه م مطمئن وؤ په توحید او ایمان باندې ، نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته تسلی ورکړه چه (إن عادوا فعُد)، او دا آیتونه نازل شول.

ددې آیت په ترکیب کښې دمفسرینو ډیر اقوال مروی دیَ خو ډیر غوره قول په کښې دا دې چې (١)

﴿ مَن كَفَرَ ﴾دا شرط دې اوجزاء ورله محذوفه ده چې هغه ((فعليهم غضب من الله)) ده، په حذف باندې دلالت د ((من شرح — الخ)) جزا کړې ده چې هغه مذکور ((فعليهم غضب)) ده (٢) اویا ((من كفر)) مبتداء ده، او ((عليهم)) ورله خبر محذوف دې،او د دې دواړو صورتونو په اعتبار سره ﴿إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ ﴾مستثنی متصله ده اومستثنی منه ورله مضمون دجزا اویا خبر مقدر دې. مقصد ئې دادې چې په کافر باندې به غضب دالله ﷻ وی خو مګر هغه چا باندې غضب به نه وی چې هغه په زبردستی سره په کلمه د کفر وئیلو باندې مجبور کړې شی،اواستثناء دمکره دکافر نه «اګر چې دې کافر نه دې» څکه اوشوه ، چې دایمان نه وروستو دده نه هغه شې ظاهر شوې دې چې هغه دغیر اکراه په صورت کښې صرف دکافر نه ظاهریږی، ((وانما صح الاستثناء المكره من الكافر مع انه ليس بكافر لأنه ظهر منه بعدالايمان مالا يظهر الا من الكافرلولاالاكراه)) (فتح) او ﴿وَلَٰكِن مَّن شَرَحَ ﴾دا استدراك دې لپاره د دفع توهم چې د ماقبل استثناء نه پیدا کیږی، چې چا به وهم کولو چې په حالت داکراه کښې په ژبه باندې کلمه دکفر وئیل جائزدی اوکفر ورسره نه لازمیږی نو شاید چې په دې حالت کښې په زړه سره تصدیق علی الکفرباندې هم کفر نه لاومیږی، نوجواب ترینه اوشو چې په تصدیق علی الکفر سره کفر لازمیږی اوداسې خلقو باندې دالله ﷻ غضب وی، اولوئ عذاب ورله دې، (٣) اوداهم ممکنه ده چې ﴿ مَن كَفَرَ ﴾ دا ټوله جمله دې مبتداء شی، او ﴿فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ ﴾

دې ورله خبر شی، او ﴿إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ﴾ دې استثناء شی دمجموعې نه. مستثنی دې په منځ کښې راغلې وی لکه په قول دلبید کښې راغلي دی چې، «الا ما خلاالله باطل» او ﴿وَلَٰكِن مَّن شَرَحَ بِالْكُفْرِ﴾ دې استثناء نه پیدا شوی وهم نه استدراك وی، او جزاء د ((من شرح)) به ((ففیرٌ مستثنی من الحکم)) به شی. والله اعلم وعلمه اتم واحکم ﴿إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ﴾ مراد د اکراه نه دا دې چې دقتل کولو دباو پرې اوکړی. اویا دبعض اندام پرې کولو دباو پرې اوکړی. اوهغه دباو کونکې قدرت هم ددغه عمل لری، نوپه دې وخت کښې رخصت دادې چې ظاهراً په ژبه باندې دې کلمه دکفر اووائی لکه څنګه چې حضرت عمار ﷺ دوالدینو یعنی حضرت یاسر ﷺ او حضرت سمیه ﷺ دشهید کولو نه وروستو مجبوراً وئیلی وه. اوحضور ﷺ ورله تسلی ورکړه، او وې فرمائیل چې ((ان عادوا فعد)) ، دا رخصت د رخصت حقیقی دتولو نه اکمله نوعه ده. اوعزیمت دادې چې په کلمه دکفر باندې دې تلفظ هم اونکړی، اوشهید دې شی، او دا په شهادتونو کښې بهترین شهادت دې، لکه څنګه چې انکار کړې وو حضرت یاسر ﷺ حضرت سمیه اوحضرت خباب رضوان الله تعالی علیهم اجمعین ﴿وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ﴾ په دې کښې اشاره ده چې تصدیق قلبی جزء کامل دې دایمان لپاره، او په هیڅ حالت کښې هم نشی ساقط کیدې، ﴿شَرَحَ بِالْكُفْرِ﴾ مراد ترینه قبلول دکفردی بغیردشك او شبهې نه، ﴿فَعَلَيْهِمْ﴾ هرکله چې لفظ د (من) مفرد وو په اعتبار دلفظ سره او جمع وو په اعتبار دمعنی سره، نوځکه په کفر کښې ورته ضمیر د مفرد راجع شو، او دلته ورته ضمیر دجمع راجع شو، ﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمُ﴾ په دې آیت کښې سبب دکفر بعد الایمان اویا سبب دوعید مذکور بیانیږی، چې یو ترجیح ورکول دی ژوند د دنیا ته په ژوند دآخرت باندې، اوبل دا چې دعناد دوجې نه هدایت هم ورته دالله ﷻ دطرف نه، نه ملاویږی، ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ طَبَعَ اللَّهُ﴾ په دې آیت کښې دماقبل اسبابو نتیجه ذکر کیږی، په دنیا کښې چې هغه مهر جباریت لګول دی ددوئ په قوی مدرکه باندې، ﴿وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ﴾ یعنی کامل دی په غفلت کښې ﴿لَا جَرَمَ﴾ دا نتیجه دقبائحوپه آخرت کښې ذکر کیږی، چې په آخرت کښې به هم په کامله خساره کښې وی ، ﴿ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ﴾ په دې آیت کښې بشارت ذکر کیږی دپاره دمهاجرینو او مجاهدینو او طریقه ذکر کیږی دپاره دبچ کیدو داکراه نه. (ثم) لپاره دتعقیب ذکر دې ، ﴿مِن بَعْدِ مَا فُتِنُوا﴾ مراد ترینه تعذیب دې په اسلام باندې لپاره

نو حضورﷺ دوئ دپاره بددعا اوکړه،((اللهم اجعلها عليهم سنين كسنى يوسف عليه السلام)) (متفق عليه) نو سخت قحط پرې مسلط شو. چې مرداري اوزړې څرمنې اوهډوکي خوراك ئې شروع کړل. او د لوږې دوجې نه به ئې سترګو ته لوګي لوګي راتلل. نو بيا دحضورﷺ د دعا په برکت سره الله ﷻ دغه قحط ترينه اوچت کړو. او يا د ((قريه)) نه قريه د اولينو او سابقينو خلقو مراد ده. لکه قوم سبا وغيره شول. اويا ترينه قريه مفروضه مراد ده،او وجود دممثل په خارج کښې ضروري نه دې.

﴿ءَامِنَةً﴾ صفت اول د قرية دې ﴿مُّطْمَئِنَّةً﴾ صفت ثانى دې. ﴿يَأْتِيهَا رِزْقُهَا رَغَدًا﴾ داجمله صفت ثالث دې لپاره د قرية. ﴿فَكَفَرَتْ بِأَنْعُمِ اللَّهِ﴾ (انعم) جمع قلت ده دنعمت، په دې کښې اشاره ده چې کفران دنعم قليله موجب دعذاب ګرځي، نو دکثيره کفران په طريقه اولى سره موجب دعذاب وي.

﴿فَأَذَاقَهَا اللَّهُ﴾ اذاقت اولباس دواړه استعارې مکنيې دي، د جوع اوخوف دهغوی نه، اذاقت استعاره ده داصابت موثره نه، ځکه چې هرکله چاته سخت تکليف اورسيږي نوعرب اثر دضرر مشابه کوي دطعم اوذائقې دتريخ شي سره، لکه چې وائي (ذاق فلان البوس والضرر) نودا د باب داستعارې دمعقول دې دمحسوس سره، اوهر کله چې جوع اوخوف په دوی باندې من كل الجهات احاطه کړې وه په شان دلباس اويا دهغې اثرات په خارج کښې په دوی باندې ظاهر شوی وو لکه څنګه چې لباس ظاهر وي، نوځکه دويمه استعاره دلباس اوشوله دجوع اودخوف نه، اويا دا چې ((اذاقة)) کنايه ده داصابت موثره نه اوپه ﴿لِبَاسَ الْجُوعِ وَالْخَوْفِ﴾ کښې اضافت دمشبه به شوې دې مشبه ته اوتشبيه مقلوب ده، نو په اصل کښې داسې دې چې په ((اصابهم الله الجوع والخوف كاللباس)) وجه دشبه احاطه ده، ﴿بِمَا كَانُوا يَصْنَعُونَ﴾ مراد ترينه کفر دې په الله ﷻ او تکذيب دې دحضورﷺ، ﴿وَلَقَدْ جَاءَهُمْ﴾ په دې آيت کښې ذکر دهغه لوئ نعمت دې چې دهغې دکفران دوجې نه عذاب راغلې وو په اهل مکه باندې چې هغه ددوئ دجنس نه رسول راتلل دی. ﴿فَكَذَّبُوهُ﴾ تفسير دې ﴿فَكَفَرَتْ﴾ او ﴿فَأَخَذَهُمُ الْعَذَابُ﴾ تفسير دې د ﴿فَأَذَاقَهَا اللَّهُ﴾.

﴿فَكُلُوا مِمَّا﴾ دا دسورة دويمه حصه ذکر کيږي اوپه دې کښې دشرك فعلى د دوو شقونو رد کيږي چې تحريمات لغيرالله اونذر لغيرالله دی، اودا متعلق دې د ((ضرب الله مثلا)) سره .او د هغې په نتيجې باندې مفرع دې، چې هر کله تاسو ته ددغې قريې حال ظاهر شو. چې هغوی دالله

دنعمتونو ناشکری کړي وه چې حلال ئې په ځان حرام کړی وو. او د پیغمبر تکذیب ئې کړې وو. او دهغې دوجې نه په هغوی باندې عذابونه نازل شوی وو. نو تاسو خپل ځانونه دکفران نعمت اودتکذیب درسول الله ﷺ نه بچ اوساتئ. او حلال څیزونه حلال اوګڼئ. بحیرې اوسائبې مه جوړوئ، او حرام څیزونه حرام اوګڼئ اوځان ترینه اوساتئ. ﴿حَلَٰلًا طَيِّبًا﴾ دواړه حالین واقع شوی دی دمفعول مقدره نه چې ((رزقکم)) دې، ای فکلوا مما رزقکم الله حال کون رزقکم حلالا طیبا.

﴿وَٱشۡكُرُواْ نِعۡمَتَ ٱللَّهِ﴾ مراد ترینه رسالت دحضور ﷺ اوهغه ټول نعمتونه ددنیا دی چې دکومو تذکره په دې سورة کښې شوې ده، او دهغې شکریه داده چې حلال اوګڼلې شی. ﴿إِن كُنتُمۡ إِيَّاهُ تَعۡبُدُونَ﴾ دا بطور تنبیه دې چې کچرته تاسو په حقیقت کښې دالله فرمانبردار یئ او د هغه عبادت کوونکی یئ نودهغه دنعمتونو شکریه ادا کوئ، او ددې نه معلومه شوه چې دالله ﷻ د نعمتونو شکریه هم عبادت دې.

| إِنَّمَا | حَرَّمَ | عَلَيۡكُمُ | ٱلۡمَيۡتَةَ | وَٱلدَّمَ | وَلَحۡمَ | ٱلۡخِنزِيرِ | وَمَآ | أُهِلَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

بیشکه حرامه کړیده [۱] الله په تاسو باندې مرداره او وینه او غوښه د خنزیر او هرهغه څیز چه آواز کړې شوې وی

| لِغَيۡرِ | ٱللَّهِ | بِهِۦۖ | فَمَنِ | ٱضۡطُرَّ | غَيۡرَ | بَاغٖ | وَلَا | عَادٖ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

لپاره د نذر لغیر الله په هغې . پس هغه څوك چه مجبوره شی(د دې خوراك ته) نه وي طلبګار د مزې اونه تجاوز کوونکي وي د حد نه

| فَإِنَّ | ٱللَّهَ | غَفُورٞ | رَّحِيمٞ ﴿١١٥﴾ | وَلَا تَقُولُواْ | لِمَا | تَصِفُ | أَلۡسِنَتُكُمُ | ٱلۡكَذِبَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

پس الله بخنه کوونکي . رحم کوونکي دې . اومه وایئ تاسو [۲] په باره دهغې کښې چه بیانوی ئې ژبې ستاسو دروغ

هَٰذَا حَلَٰلٞ وَهَٰذَا حَرَامٞ لِّتَفۡتَرُواْ عَلَى ٱللَّهِ ٱلۡكَذِبَۚ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَفۡتَرُونَ عَلَى ٱللَّهِ ٱلۡكَذِبَ

چه دا حلال دې او دا حرام دې (عاقبت دا) چه تړئ تاسو په الله باندې دروغ. بیشکه هغه کسان [۳] چه تړی په الله باندې دروغ

---

[۱] - نفی د نذر لغیر الله.

[۲] - تفریع په ماقبل باندې په طریق د لف نشر غیر مرتب.

[۳] - تخویف اخروی.

لَا يُفْلِحُوْنَ ﴿١١٦﴾ مَتَاعٌ قَلِيْلٌ ۖ وَّلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿١١٧﴾

نشي بچ كيدلي (د عذاب نه) (دوئ لره) مزه لږه ده او دوئ لره عذاب دردناك دي

﴿إِنَّمَا حَرَّمَ﴾ په دې كښ رد دې په نذر لغيرالله باندې اوپه تحريم لغيرالله باندې چې سائبې اوبحيرې حرام نه دى بلكه حلال دى ،اوحرام څيزونه ميتة اوخنزير اوهغه شې چې په نوم دغيرالله سره نذر كړې شوى وى، او ددې آيت تفصيل په سورة بقره او په سورة مائده كښ په طريقه اتم سره شوې دې، ﴿وَلَا تَقُوْلُوْا﴾ په دې آيت كښ تفريع ذكر كيږى په ما قبل باندې په طريقې دلف نشر غير مرتبه سره پس د بيان دحكم دتحريم او نذر دغيرالله نه ، ﴿لِمَا تَصِفُ﴾ لام يا لام شانيه دې اوما موصوله ده، اوجمله ورله صله ده، اوعائد چې (فيه) دې له وجې دشهرت نه حذف كړې شوې دې.او ﴿الْكَذِبَ﴾ مفعول به دې،د ﴿وَلَا تَقُوْلُوْا﴾ دپاره (اى لا تقولوا فى شان الذى تصفه السنتكم الكذب من البهائم بالحل والحرمة)، (روح) او مراد د ﴿تَصِفُ اَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ﴾ نه مبالغه ده په كذب كښ چه قول ددوئ عين كذب او محض كذب دې لكه چې وئيلې كيږى وجهها يصف الجمال نومقصد ئى دادې چې (هى جميلة) يا وئيلې كيږى عينها تصف السحر اى هى ساحرة ،او ﴿هٰذَا حَلٰلٌ وَّهٰذَا حَرَامٌ﴾ بدل الكل دې د الكذب نه اويا لام تعليليه او اجليه دې، او ما مصدريه دې او الكذب مفعول به د (تصف) لپاره دې، او﴿هٰذَا حَلٰلٌ﴾ مقوله ده دقول له پاره، ((اى لاتقولوا هذا حلال وهذا حرام لاجل وصف السنتكم الكذب، (قرطبى) ﴿هٰذَا حَلٰلٌ﴾ مشار اليه د هذا دپاره ((ما اهل لغيرالله)) دې چې په (ما اهل لغير الله) باندې دحلال حكم لګول هم دروغ دى. نو دا په نذر لغيرالله باندې متفرع دې،او ﴿وَهٰذَا حَرَامٌ﴾ مشار اليه د هذا لپاره ﴿مِمَّا رَزَقَكُمُ اللهُ﴾ دې چې دې ته حرام وئيل دروغ دى ، دا په تحريمات دغير الله باندې متفرع دې ،﴿لِتَفْتَرُوْا عَلَى اللهِ﴾ هر كله چې په ماقبل جمله كښ بيان دنفس كذب وو ،اوافتراء اوكذب على الله صراحتا نه وو مذكور ددې وجې نه اعاده دهغو جملې سره ديوې فائدې زائدې اوشوه چې دخپل ځان نه تحليل اوتحريم كذب اوافتراء ده په الله ﷻ باندې، اولام په ﴿لِتَفْتَرُوْا﴾ كښ يا لام العاقبة دې لكه چې په ((ليكون لهم عدوا وحزنا) (القصص ٨) كښ لام العاقبة دې يعنى دخپل ځان نه تحليل اوتحريم انجام په الله ﷻ باندې افتراء ده. او يا لام

تعلیلیه دې چې معنی د غرض پکښې ملحوظ نه ده. او مقصد دادې چې کوم تحلیل او تحریم یعنی بحیره ،سائبه ، وصیله، حام وغیرذلك . چه تاسو د خپل خان نه جوړ کړی دی دا محض ستاسو کذب بیانی ده او افتراء ده په الله باندې ځکه چه د تحلیل او تحریم اختیار صرف الله سره دې ، ان التحلیل والتحریم انما هو لله عزوجل ولیس ان یقول اویصرح هذا فی عین الاعیان الا ان یکون تعالی یخبر بذالك (قرطبی) ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ يَفۡتَرُونَ﴾ دا تخویف اخروی ذکر کیږی چه کوم خلق د خپل خان نه تحلیلات او تحریمات کوی نو په آخرت کښې به فلاح بیا نه مومی بلکه دردناك عذاب به وی ورله او حافظ ابن کثیر رحمه الله فرمائی چه په دې تولو وعیدونو کښې هر هغه سړې هم داخل دې چه هغه بدعت کوی او محض د خپلې رائی او یاد نفسانی خواهش د وجې نه د الله حرام کړی څیزونو ته حلال او یا حلال کړی څیزونه ته حرام وائی.((ویدخل فی هذا کل من ابتداع بدعة لیس له فیها مستند شرعی)) (ابن کثیر ج ۲ ص۵۹۰) نو معلومه شوه چه بدعت کول افتراء ده. په الله باندې «اعاذنا الله» ﴿مَتَٰعٞ قَلِيلٞ﴾ دا هم تخویف اُخروی دې ، چه په افتراء سره کوم منفعت دنیوی تاسو حاصلوئ نو هغه ډیر کم دې او د دنیا مزې به زر ختمې شی او عذاب د آخرت ډیر دردناك دې . او «متاع قلیل» جمله مستانفه ده چه واقع شویده په سوال د سائل کښې ګویا چه سائل به سوال کولو چه څنګه دهغوئ دپاره فلاح نیشته دې . حالانکه دوئ ته ډیر لوئ لوئ نعمتونه ورکړې شوی دی . نو جواب ترینه اوشو چه (متاع قلیل) چه د دنیا مزې لږې دی ختمیږی . او «متاع قلیل» موصوف صفت یا خبر دې د مبتدا محذوفې دپاره چه «متاعهم» دې . او یا دا نکره مخصصه مبتدا ده. او خبر ئې محذوف دې چه «لهم» دې

| وَعَلَى | ٱلَّذِينَ | هَادُواْ | حَرَّمۡنَا | مَا | قَصَصۡنَا | عَلَيۡكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

او په هغه کسانو [۱] باندې چه یهودیان دی حرام کړی وو مونږ هغه څیزونه چه بیان کړیدی مونږ په تا باندې

| مِن | قَبۡلُ ۖ | وَمَا | ظَلَمۡنَٰهُمۡ | وَلَٰكِن | كَانُوٓاْ | أَنفُسَهُمۡ | يَظۡلِمُونَ ﴿١١٨﴾ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

مخکښې د دینه او ظلم نه وو کړې مونږ پدوئ باندې، لیکن وو دوئ چه په خپلو خانونو باندې ئې ظلم کولو

---

۱ جواب د سوال مقدر

ثُمَّ اِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِیْنَ عَمِلُوا السُّوْٓءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ

بیا بیشکه رب ستا [١] هغه کسانو لره چه کوی بد (گناه) کارونه په ناپوهۍ سره بیا توبه اوباسی وروستو د دینه (دغه عمل نه)

وَ اَصْلَحُوْٓا اِنَّ رَبَّكَ مِنْۢ بَعْدِهَا لَغَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ﴿۱۱۹﴾

او سم کړی خپل عملونه بیشکه رب ستا وروستو دهغې (توبې) نه خامخا بخښونکې مهربانه دې

﴿ وَعَلَى الَّذِيْنَ ﴾ په دې آيت کښې جواب دې د سوال مقدره، هر کله چه بحيره سائبه وصيله او حام وغيره حلال دی نو په يهوديانو باندې ولې حرام وو، څکه چه په يهوديانو باندې داوښ غوښه حرام وه، نو دا مذکور اشياهم اوښان دی نو جواب ترينه اوشو چه دا څيزونه په اصل کښې حلال وو. خو صرف په يهوديانو باندې بطور سزا د هغوئ د سرکشئ دوجه نه حرام کړې شوی وؤ . او ﴿ وَعَلَى الَّذِيْنَ ﴾ جار مجرور متعلق دې په (حرمنا) پورې نو د معمول تقديم په عامل باندې راغلې دې دپاره د حصر نو په دې کښې اشاره ده ، دیته چه اصل په څیزونو کښې حلت دې او تحريم ئې صرف اوصرف دپاره د يهوديانو دې بطور سزا ، ﴿ مَا قَصَصْنَا ﴾ په دې کښې اشاره ده د سورة الانعام آيت نمبر (١٤٦) ﴿ وَعَلَى الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِيْ ظُفُرٍ ﴾ ته ، ﴿ وَمَا ظَلَمْنٰهُمْ ﴾ يعنى په دې تحريم کښې په دوئ باندې مونږ څه قسم ظلم نه دې کړې . بلکه دا د دوئ د گناهونو نتيجه وه، ﴿ ثُمَّ اِنَّ رَبَّكَ ﴾ په دې کښې ترغيب الى التوبه او بشارت ذکر کيږی دپاره دتوبې کوونکو، او ((ثُمَّ)) دپاره د تعقيب ذکر دې، او دا متعلق دې په ((ضرب الله مثلاً)) پورې چه مشرکينو د الله د نعمتونو نه انکار اوکړو او عذاب راغې خو د الله تعالى احسان وؤ چه بالکليه ئې هلاك نکړل اوکه بيا هم دوئ توبه اوباسی او دخپلو عملونو اصلاح اوکړی نو الله به ورته مغفرت اوکړی ﴿ عَمِلُوا السُّوْٓءَ ﴾ الف لام جنسی دې او د ((السوء)) نه مراد هر قسم گناه ده، ﴿ بِجَهَالَةٍ ﴾ (باء) په جهالة کښې يا سببيه ده او مقصد دادې چه د دوئ جهالت سبب وی دپاره د دغې بد عمل کولو ، اوجهالت نه مراد په دې ځائ کښې هغه مشهوره او متعارفه معنى بين العوام نه ده چه هغه ضد د علم دې ، او نه ترې نه مصطلحه بين العلماء معنى مراد ده چه هغه قسم د علم تصديقى دې، چه جهل وئيلې کيږی اعتقاد جازمه ثابته غير مطابق

١ - بشارت. (ثم) لپاره د تعقيب ذکری.

للواقع نه بلکه د جهالت نه مراد په دې ځای کښې (ارتکاب مالا يليق بالعاقل وان كان مع العلم والعمد) معنی مراد ده ، او هم دا معنی مراد ده په هغه حدیث کښې چه حضور ﷺ پناه غوختلې ده چه ، ((اَللّٰهُمَّ اِنِّی اَعُوْذُبِكَ مِنَ اَنْ اَجْهَلَ او يُجهلَ عَلَیَّ)) لکه غیرت جاهلیت چه حامل دې د قتل دپاره . اویا جهالت نه مشهوره او متعارفه معنی مراد ده چه هغه ضد د علم دې ، او باء دپاره د ملابست ده، او جار مجرور حال واقع شوې دې په اعتبار د متعلق مقدر سره ((اي حال كونهم متلبسين بجهالة غير عارفين بالله تعالى وعقابه)) (روح ) يعنی د انجام د دې گناهونو نه خبر نه دی (نا عاقبت اندیش دي) له وجې د غلبې د شهوت نه. اویا د دنیا د حرص او لالچ نه . ﴿ثُمَّ تَابُوا مِنْ بَعْدِ ذَٰلِكَ﴾ د (ثم) دلالت اگر چه په (بعد ذالك) باندې دې ، خو صراحتا ذکر د «بعد ذالك» دپاره دتاکید او مبالغې دې . او ﴿وَأَصْلَحُوا﴾ يعنی گناهونه او شرك ئې ترك كړو او په توبې باندې ئې استقامت اوكړو ((اي اقلعو عما كانو فيه من المعاصي واقبلو على فعل الطاعات (ابن كثير ) الاستقامة على التوبة)) (روح) ﴿مِنْ بَعْدِهَا﴾ غوره توجيه داده چه (ها) ضمير په تاويل د خصلة سره توبې او اصلاح ته راجع دې او په دې کښې اشاره ده چه عمل صالح د مکملاتو د توبې نه دې، اوپه دې سره رحمت او مغفرت دواړه حاصلیږي .

إِنَّ إِبْرَاهِيمَ كَانَ أُمَّةً قَانِتًا لِلَّهِ حَنِيفًا ۖ وَلَمْ يَكُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿١٢٠﴾

بیشکه ابراهیم وو [۱] كامل پيشوا تابعداری کونکې خاص الله لره پوخ موحد وو اونه وو دې د مشركانو د جماعت نه

شَاكِرًا لِأَنْعُمِهِ ۚ اجْتَبَاهُ وَهَدَاهُ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ ﴿١٢١﴾

شكر كونكې وو د نعمتونو د الله لره غوره کړې وو ده لره (الله) او هدايت ئې کړې وو د ده . لارې نيغې ته

وَآتَيْنَاهُ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً ۖ وَإِنَّهُ فِي الْآخِرَةِ لَمِنَ الصَّالِحِينَ ﴿١٢٢﴾ ثُمَّ أَوْحَيْنَا

او ورکړې وو مونږ ده ته په دنیا کښې ژوند خائسته. او بیشکه دې په آخرت کښې خامخا د صالحینو نه دې. بیا وحی اوکړه مونږ [۲]

---

۱ - خاتمه. دليل نقلى له ابراهيم عليه السلام نه په دواړو مضمونونو باندې.

۲ - دليل وحيى لپاره د نفى د شرك اعتقادى او فعلى.

إِلَيْكَ أَنِ اتَّبِعْ مِلَّةَ إِبْرَٰهِيمَ حَنِيفًا ۖ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ۝

تاته د دې خبرې چه ته تابعداری کوه د ملت د ابراهیم چه پوخ موحد وو او نه وؤ دې د مشرکانونه

﴿ إِنَّ إِبْرَٰهِيمَ كَانَ أُمَّةً ﴾ د دې ځائ نه خاتمه دسورة شروع کیږی، دټولو نه اول په نفی د شرك باندې دلیل نقلی ذکر کیږی د ابراهیم ﷺ نه . او تخصیص د ابراهیم ﷺ د دې وجې نه اوشو چه دې د مشرکین مکه او د یهودو ، نصارئ د ټولو نیکه وو، او هر یو فریق به دعوی د هغه د اتباع کوله او خپل پیشوا به ئې منلو ، نو په ذکر د ابراهیم ﷺ سره ، په دوئ ټولو باندې رد راغې چه د کوم شخص تاسو اتباع کوئ او هغه د خپل ځان دپاره پیشوا گڼړئ ، نو هغه خو د شرك ، یهودیت او نصرانیت نه بیزاره او دین اسلام طرفته مائله وو. ﴿كَانَ أُمَّةً﴾ دا پنځه اوصاف د ابراهیم ﷺ ذکر کیږی. ‹امة› د ‹فُعْلَة› په وزن په معنی دمفعول ‹ماموما› سره دې . او تا دپاره د مبالغې ده. لکه دخلة او نخبة نو معنی ئې داده چه ټولو نه لوئ پیشوا وؤ. یا اُمة په معنی د جماعت سره دې . او ابراهیم ﷺ ته امة په دې اعتبارسره اوئیلو شو چه د هغه په ذات مبارکه کښې یواځې د پوره امة والا صفات حسنه او خیر موجود وو. معنی دا چه جامع دخیر کثیر وو. اویا د امة مقصد دادې چه په شانتې د امة وو. یا په خپل دور کښې یواځې مؤمن وو. او په ایمان باندې داسې مضبوط وو لکه پوره امة چه څومره مضبوط وی. ﴿قَانِتًا﴾ دا دویم صفت دې چه مطیع او ډیر فرمانبردار وو د الله ﷻ ﴿حَنِيفًا﴾ دا دریم صفت دې چه د هر باطل دین نه حق دین ته مائل وو. چا ئې ترجمه کړې ده چه مورزاده موحد وو. ﴿وَلَمْ يَكُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ﴾ داڅلورم صفت دې چه هیڅ قسم شرك کونکې نه وو. نه په اصولو کښې او نه په فروعو کښې د شرك فی التصرف او د شرك فعلی دواړو نه بیزاره وو.

﴿شَاكِرًا لِّأَنْعُمِهِ﴾ دا پنځم صفت دې د ابراهیم ﷺ چه د الله د نعمتونو قدر کونکې وو. ستاسو پشانتې ناشکری او نافرمانی کونکې نه وو. او ‹انعم› جمع قلت ده، په دې کښې اشاره ده دې خبرې ته چه د حضرت ابراهیم ﷺ د الله ﷻ د قلیل نعمتونو ناشکری کونکې نه وو. نو د ډیرو نعمتونو په طریق اولی سره نه وو. او ستاسو حال دادې چه د قلیل شکریه هم نه ادا کوئ لکه چه په تیر شوی آیت کښې ذکر وو. (فکفرت بانعم الله) هلته هم جمع قلت ذکر وه. ﴿اجْتَبَاهُ﴾ دا څلور احوال ذکر کیږی د حضرت ابراهیم ﷺ چه غوره کړو الله دپاره د نبوت ‹اجتبٰی› باب افتعال دې په اصل کښې اوبو جمع کولو ته وائی . جابیه حوض ته وئیلې کیږی. او اطلاق د دې په تخصیص د الله باندې

کیږی چه خپل یو بنده په فیض سره خاص کړی لکه انبیاء کرام ئی په نبوت سره خاص کړی دی. صحابه کرام ئی په صحابیت سره خاص کړی دی. او مونږه ئی خاص کړی یو په امة محمدیه ﷺ سره . چه په دې کښې د چاد کسب دخل نشته (۲) ﴿ وَهَدَىٰهُ ﴾ دتوحید لاره مو ورته ښودلې وه. او یا توحیدطرف ته ددعوت طریقه مونږ ورته ښودلې وه. (۳) ﴿ وَءَاتَيْنَٰهُ فِى ٱلدُّنْيَا حَسَنَةً ﴾ مراد ترینه لویه مرتبه ده، او ذکر خیر دې . چه د ده نه روستو د ده په نسل کښې ټول انبیاء کرام راغلیدی. او ددنیا هر قوم ئی خپل پیشوا منلو باندې فخر کوی (۴) ﴿ وَإِنَّهُۥ فِى ٱلْءَاخِرَةِ ﴾ په آخرت کښې هم د صالحینُ په اعلی طبقه کښې به شامل وی. چه هغه طبقه د انبیاء کرامو ده. ﴿ ثُمَّ أَوْحَيْنَآ ﴾ دا د لیل وحیی دې په نفی د دواړو قسمونو د شرك باندې چه ابراهیم ﷺ د شرك نه بیزاره او دین حنیف ته مائله وو. او ناته مونږ ددین حنیف د اتباع وحی کړې ده. (ثم) دپاره د تراخی رتبی دې په دې کښې دحضور ﷺ عظمت شان ته اشاره ده ځکه چه ثم دپاره د تراخی د معطوف رازی په زمانه کښې خو بیا ئی استعمال په تراخی د علو مرتبی د معطوف کښې هم کیږی چه دا معطوف د معطوف علیه نه په مرتبه کښې اعلی دې ، نوګویا چې الله ﷻ دابراهیم ﷺ مناقب ذکر کولو نه وروستودې ته اشاره اوکړه چې ددې نه هم لوئ منقبت اود ارفع درجاتو والاهغه خاتم الرسل سیدالبشر ﷺ دې، ددې وجې نه ابن کثیر ددې ترجمه په دې الفاظو سره کوی «ای ومن کمله وعظمته وصحة توحیده وطریقه انا اوحینا الیك یا خاتم الرسل وسیدالانبیاء ﷺ» (ابن کثیر) ﴿ أَنِ ٱتَّبِعْ مِلَّةَ إِبْرَٰهِيمَ ﴾: (ان) تفسیریه دې چې د «اوحینا» تفسیر کوی اویا مصدریه دې اومراد د اتباع دملت ابراهیمی په اعلان دبرائت کښې دې دمعبودان باطلو نه .اوپه اختیارولو ددین اسلام سره دې، امام رازی ﷫ فرمائی مراد په متابعت سره په کیفیت ددعوت کښې دې چې دابراهیم ﷺ دعوت په نرمی سره اوپه دلائلو سره وو. لکه څنګه چې وروستو آیت کښې دهغې ذکر دې ﴿ وَمَا كَانَ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴾ تقریرا اوتاکیدا اوئیلی شو.

| إِنَّمَا | جُعِلَ | ٱلسَّبْتُ | عَلَى | ٱلَّذِينَ | ٱخْتَلَفُوا۟ | فِيهِ ۚ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه مقرر شوې دې[1] (تعظیم) د ورځې د خالی (هفتې) په هغه کسانو چه اختلاف ئی کړې وؤ په دې کښې (په ورځې د تعظیم کښې) | | | | | | |

---

[1] جواب د سوا مقدر

وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا

او بیشکه رب ستا خامخا به فیصله اوکړي په مینځ د دوئ کښې په ورځ د قیامت په هغه څه کښې چه وو دوئ

فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ۝ ادْعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ

په هغې کښې به ئې اختلاف کولو دعوت ورکوه ته لارې[1] د رب خپل ته په حکمت (کلکې طریقې) سره او په وعظ ښائسته سره

وَجَادِلْهُم بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ ۚ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ

او جواب ورکوه د دوئ د خبرو په هغه طریقه سره چه هغه ډیره ښه وي . بیشکه رب ستا هغه ښه پوهه دې

بِمَن ضَلَّ عَن سَبِيلِهِ ۖ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ۝

په هغه چا چه گمراه شوې وي د لارې د هغه نه او هغه ښه پوهه دې په هدایت والو باندې

﴿ إِنَّمَا جُعِلَ السَّبْتُ ﴾ په دې آیت کښې دیو سوال جواب ذکر کیږي چې مشرکینو به وئیل کچرته نه دملت ابراهیمیه اتباع کونکې وې نو پکار وه چې تا دجمعې د ورځې په ځائې دخالی دورځې تعظیم کولې ځکه چې د ابراهیم ﷺ په دین کښې دخالی ورځې تعظیم ضروری وو نه دجمعې دورځې، نو جواب ترینه اوشو چې دخالی د ورځې تعظیم په ملت ابراهیمی کښې ضروری نه وو لکه ځنګه چې په دې ملت کښې ضروری نه دې بلکه په دین ابراهیمی کښې دجمعې دورځې تعظیم ضروری وو لکه ځنګه چې په دې دین محمدی کښې دې، او دخالی دورځې تعظیم په یهودیانو باندې ضروری کړې شوې وو له وجې داختلاف نه دحضرت موسی ﷺ سره، ګنې حضرت موسی ﷺ هم دجمعې دورځې تعظیم کولو ﴿ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ ﴾ مراد ترینه یهودیان دی چې اختلاف ئې کړې وو دحضرت موسی ﷺ سره په اختیارولو دجمعې د ورځې دپاره دعبادت، په صحیح حدیث دبخاری او مسلم کښې دحضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چې فرمائی قال رسول الله ﷺ نحن الاخرون السابقون یوم القیمة بید انهم اوتو الکتاب من قبلنا ، ثم هذا یومهم الذي فرض علیهم فاختلفو فیه فهدانا الله له فالناس لنا فیه تبع الیهود غدا والنصاری بعد غد ، (بخاری کتاب الجمعة ص ۱۲۰ ) او په دې کښې د محدثینو اومفسرینو رایه مختلفې دی . چه دوئ دا اختلاف کله

[1] - د دعوت او تعلیم د طریقې ذکر

کړي وو. آيا دوئ ته صراحتا د جمعې د ورځې تعظيم حکم ورکړې شوي وو. او دوئ د هغې حکم دمنلو نه انکار اوکړو او د خالي ورځ ئې خوخه کړه او يا دوئ نه رايه غوښتلې شوې وه او دوئ په رائې کښې خطا شوی وو، زيانه غوره خبره داده چه دوئ ته اختيار ورکړې شوې وو خو سره د دې نه چه الله ورته خپله رضا په ورځې د جمعې سره ظاهره کړه خو دوئ خپله مرضی د الله په مرضی باندې غالبه کړه او ځان له ئې د خالي ورځ خوخه کړه . او د موسی ﷺ سره ئې اختلاف اوکړو او بيا همدغه شان اختيار سره د اظهار د خپلې مرضی الله ﷻ نصرٰ ی ته هم ورکړو . نو هغوی د يهوديانو په ضد ځان دپاره د اتوار ورځ غوره کړه . او خپله مرضی ئې د الله په مرضی غالبه کړه . او د عيسی ﷺ سره ئې اختلاف اوکړو او بيا همدغه شان اختيار مسلمانانو له ورکړې شو او مسلمانو د الله مرضی غوره کړه او د ځان دپاره ئې د جمعې ورځ غوره کړه. او دغه انتخاب مبارك ته په حديث کښې الفاظ استعمال شوی دی چه فهدانا الله له ،﴿لَيَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَـٰمَةِ﴾ يعني الله ﷻ به فيصله اوکړی په بدلې ورکولو سره چه دوئ ته به د دوئ د اختلاف بدله ورکړی

﴿ ادْعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ ﴾ په دې آياتونو کښې طريقه د دعوت او تبليغ او تعليم ذکر کيږی دتوحيد پس د دلايلو نه چه په نفی د شرك باندې وو، او مراد د (سبيل ربك) نه توحيد او عقائد د دين اسلام دې . ﴿بِالْحِكْمَةِ﴾ دا بيان دې د طريقې د دعوت نو په دې آيت کښې درې طريقې د دعوت ذکر کيږی . اول طريقه حکمت ده، مراد د حکمت نه دلائل قطعيه دی، چه هغه قرآن او حديث دې . او دويمه طريقه ﴿وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ﴾ چه مراد ترينه بشارتونه او انعامات دی او تخويفونه اوزجرونه دی. او دريمه طريقه و﴿ وَجَـٰدِلْهُم بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ ﴾ ده ، خصم او منکر ته جواب ورکول دی. د هغه د اعتراضونو او بعض علماء فرمائی چه دې نه مراد درې صناعات دی، د صناعاتو خمسو نه چه برهان دې ، جدل دې . او خطابت دې . نو مراد په بالحکمت سره برهان دې . برهان هغه دليل ته وائی چه مرکب وی د مقدماتو يقينيو نه ، عقلی وی او که نقلی وی او دې نه تعبير په حکمت سره ځکه اوشو چه حکمت په معنی د اتقان العلم والعمل سره دې او برهان په ټولو صناعاتو کښې مضبوط او اعلی دې. دا شامل دې قران ته هم اوحديثو ته هم . او چاچه داوئيلی دی. چه اقوال د انبياؤ او احاديث د رسول الله ﷺ د قياس خطابی نه دی نو دا قو ل غلط دې. ځکه صاحب د سلم العلوم تصريح کړې ده ((ومن عد الماخوذات من الانبياء ﷺمن الخطابةِ قد غلط)) او مراد په ﴿وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ﴾ سره خطابة دې ، ځکه چه خطابة هغه قياس ته وئيلې کيږی چه مرکب وی د

مقدماتو مقبوله نه . او يا مركب وي د مقدمات مظنونه. نه چه په سبب د رجحان د عقل سره په هغه حكم او كړي شي لكه حدثيات . تجربيات . او هغه متواترات چه نه وي رسيدلي حد د جزم ته. او غرض په دې سره تحصيل د حكم نافعه وي . اومراد په ﴿وَجَٰدِلۡهُم بِٱلَّتِي﴾ سره قياس جدلي دې. خكه چه جدل هغه قياس ته وئيلې كيږي چه مركب وي د مقدمات مشهوره نه او يا د مقدمات مسلمه بين المتخاصمين نه اوعرض ترينه الزام الخصم وي. او قياس شعري اوقياس سفسطي چه مفيد د حكم دپاره نه دې او دليل شرعي نشي جوړيدې نو خكه ذكرنه شو. امام رازي رحمه الله فرمائي چه كله هم يو داعي دين طرفته دعوت وركوي نو ضروري ده چه د هغه دعوت مبني وي په حجت باندې او مقصود د مستدل په خپل دليل سره يا تقرير د اعتقاد د دغه دين وي د اوريدونكو په زړونو كښې اويا چپ كول د خصم وي كچرته مقصود تقرير د اعتقاد وي نو دا بيا خالي نه وي دا حجت به يا يقيني قطعي وي په دې شان چه احتمال د نقيض به نه لري ، او يا به دظن ظاهر او اقناع كامل فائده كوي. قسم اول چه هغه مفيد دې د عقائديقينيه دپاره، هغې ته حكمت وئيلې كيږي . قسم ثاني چه هغه دلائل اقناعيه وي. هغې ته موعظه حسنه وئيلې كيږي . او هر كله چه جدل په دوه قسمه وو يو هغه وو چه مركب وو د مقدمات مسلمه مشهوره نه ، دويم قسم هغه دې چه مركب وي د مركبات فاسده باطله نه . خو مستدل ئې په حيلو باطلو او په طرق فاسدو سره د اوريدونكو په زړه كښې رائج كړي . او كينوي ئې، قسم اول د جدل نه هغه دې چه هغه په طريقې احسن دې ، او لائق دې د اهل فضل سره . نو د دې وجې نه جدل مقيد شو په قيد د ﴿بِٱلَّتِي هِيَ أَحۡسَنُۚ﴾ سره ، او هر كله چه خلق په اعتبار د مراتبو د ذهن سره په دري قسمه دي خيني هغه خلق دي چه هغه كاملين دي. قوي الاستعداد دي. او علم يقيني حاصلونكي دي چه علماء دي نو دغه شان خلقو ته دعوت په حكمت سره وركولې كيږي دويم قسم هغه خلق دي چه دهغوي اذهان قاصر دي، او تعلق ئې د محسوساتو سره زيات وي، ليكن معاندين نه وي نو دغه شان خلقو ته به دعوت په «الموعظة الحسنة» په قياس خطابي سره وركولې كيږي . او دريم قسم هغه خلق دي چه هغه مجادلين دي دپاره دباطل او عقائد باطله ئې په زړونو كښې راسخ وي. نو هغوي دپاره طريقه د دعوت په ﴿وَجَٰدِلۡهُم بِٱلَّتِي﴾ سره ذكر شوه، امام رازي رحمه الله فرمائي چه اول دوه طريقې حكمت او موعظة الحسنه د اصولو د دعوت نه دي ليكن «وجادلهم» د اصولو ددعوت نه ندې بلكه مقصود په دې سره الزام او افهام د خصم دې . او ذكر ئې د دې دپاره اوشو . كه چرته څوك تاسو سره په دين كښې مناظره كول غواړي نو مناظره ورسره اوكړئ په احسن طريقې سره. او ددې وجې نه چه دا د اصولو د

دعوت نه ندي نو په دې قسم ثالث کښې تغیر په اصلوب د کلام کښې هم راغي کچرته دا د اصول د دعوت وې نو بیا به داسې وئیلې شوې وو ((والمجادلة الحسنة)) او دلته خو ﴿وَجَادِلْهُم﴾ وه وئیلې شو نو معلومه شوه چه دا قسم ثالث د اصولو د دعوت نه ندې. اګر چه بعض علماء فرمائی چه دا هم د اصولو د دعوت نه دې په شان د قسمین اولینو او هر کله چه دا صورت مکې دې نو د څلورمې طریقې ذکر چه هغه جهاد دې نو هغه دلته اونه شو. قرطبی فرمائی ((فهی محکمة فی جهة العصاة من الموحدین ومنسوخة بالقتال فی حق الکافرین)) (قرطبی) لیکن د جمهور علماؤ رایه داده چه دا آیت محکم دې . (والله اعلم بالصواب ) ﴿إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ﴾ په دې کښې اشاره ده عدم مکلف کیدو د انسان ته په نتیجې باندې چه ستاسو کار صرف دعوت ورکول دی . او د نتیجې یعنې د چا په ایمان راوړلو مکلف نه یئ .

| وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُم بِهِ ۖ وَلَئِن صَبَرْتُمْ |
|---|
| او کچرته بدله اخلئ تاسو نو پس بدله واخلئ په اندازې دهغې چه تکلیف درکړې شوې دې تاسو ته په هغې سره او که صبر اوکړو تاسو |
| لَهُوَ خَيْرٌ لِّلصَّابِرِينَ ﴿١٢٦﴾ وَاصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِاللَّهِ |
| نو دا «صبر» ډیر ښه دې لپاره د صبر کوونکو او صبرکوه ته [1] او ندې صبر ستا مګر په توفیق د الله سره دې |
| وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُ فِي ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُونَ ﴿١٢٧﴾ إِنَّ اللَّهَ |
| او مه غمژن کیږه [2] په دوئ باندې او مه کیږه په تنګسیا کښې [3] دهغې نه چه دوئ چلونه جوړه وی بیشکه الله |
| مَعَ الَّذِينَ اتَّقَوا وَّالَّذِينَ هُم مُّحْسِنُونَ ﴿١٢٨﴾ |
| ملګرې دې [4] دهغه کسانو چه تقوی لری او دهغه کسانو چه «ښائسته کارونه» نیکی کوونکی وی |

﴿وَإِنْ عَاقَبْتُمْ﴾ په دې کښې اشاره ده مصائبو د دعوت ته. په نزد د اکثر مفسرینو دا آیاتونه

١ - اوله تسلی حضور صلی الله علیه وسلم ته .

٢ - دویمه تسلی

٣ - دریمه تسلی

۴ - بشارت سره له شرائطو نه .

مدنی دی، اګر چه باقی نور ټول سورت مکی دې بلکه قرطبی فرمائی ((اطبق جمهور اهل التفسير ان هذه الاية مدنية)) ، او دا نازل شوې وو په هغه وخت کښې چه کله په جنګ احد کښې کفارو د حضرت حمزه ﷜ مثله اوکړه ، او ډیر ظلم ئی ورسره کړې وو. نو چه کله حضور ﷺ د هغه حالت اوکتلو نو وې فرمایل چه ((رحمة الله عليك فانى ما علمتك الا فعالا للخيرات وصولاً للرحم ولولا حزن من بعدك عليك لسرنى ان ادعك حتى تحشر من افواج شتى اما والله لان ظفرنى الله بهم لامثلن بسبعين منهم مكانك)) (فتح البارى ج ٧ ) او دغه شان ځینې مسلمانانو چه هم خپل شهیدان اوکتل چه د هغې ټولو مثله کړې شوې وه، سوا د حضرت حنظله بن راهب نه چه د هغه مثله نوه کړې شوې . نو مسلمانانو اوئیل چه که چرته مونږ ته په دوئ باندې غلبه حاصله شی. نو مونږ به هم د دوئ داسې مثله اوکړو چه هغه به چاهم په عربو کښې نه وی کړی ((لنمثلن بهم مثلة لم يفعلها احد من العرب باحد)) ، نو دا آیتونه نازل شو نو حضور ﷺ او صحابه کرام د خپلې هغه ارادې نه منع شول. نو په دې بنا دا آیت مدنی دې . او په نزد د بعضو مفسرینو دا آیت هم مکی دې، او د دې آیت تعلق دمثلې دحضرت حمزه ﷜ سره نشته بلکه په دې آیت کښې مصائبو او تکالیفوته اشاره ده، چه هغه د دعوت په سلسله کښې داعی ته پیش کیږی ، ځکه چه ځینې کسان چه هغوئ په خپلې باطلې عقیدې باندې ، ډیر مضبوط وی، کله د داعی دقتل کولو کوشش اوکړی، کله ئی اووهی او کله ورته سپکې سپورې اوائی ، نو په دې آیت کښې الله ﷻ داعې ته دهغه په باره کښې تعلیم ورکړو چه یا خو کچرته بدله اخلئ نو په مثل سره یې واخلئ او که صبر مو اوکړو نو دا ډیره غوره ده، او دې توجیه ته زیات او غوره وئیلې دی امام رازی رحمه الله.

﴿ وَإِنْ عَاقَبْتُمْ ﴾ په فعل د کفارو باندې د عقاب اطلاع صرف مشاکلة دې، لکه څنګه چه په سبب باندې کله کله د اسم د مسبب اطلاق اوشی لکه چه وئیلې کیږی، ((كما تدين تدان)) په لفظ د ((ان)) کښې اشاره ده چه انتقام نه اغستل ډیر بهتر دی ځکه استعمال د ((ان)) په هغه موضع کښې کیږی چه وقوع د فعل بالجزم او یقینی نه وی، لکه طبیب او ډاکټر مریض ته وائی چه ((ان كنت تاكل فاكهة فكل التفاح)) مطلب ئی دا نوی چه خامخا منړه اوخوره بلکه مقصد ئی دادې چه خوراك اولی نه دې اوکه خامخا خورې نو بیا منړه اوخوره. نو د دې وجې نه ثانیا الله ﷻ تعریض نه انتقال اوکړ و تصریح ته، او وې فرمایل ﴿ وَلَئِن صَبَرْتُمْ ﴾ خو مُصَدّر ئی کړو په ((ان)) سره، په دریم خل ئی په امر بالجزم سره ذکر کړو چه ﴿ وَاصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ ﴾ او په ﴿ بِمِثْلِ ﴾ سره اشاره ده دیته چه

په بدله اغستلو كښې مماثلت ضروري دې، برابره خبره ده چه هر قسم بدله اخستل وی. ددې وجې نه احناف فرمائی . چه قتل په داسې آلې سره چه په هغې كښې مماثلت نشي راتلی لكه قتل به كاټې سره وغيره شو چه په دې كښې مماثلت په اعتبار د شدت او ضعف ندې ممكن نو په دې كښې به قصاص بالسيف جاري كيږي، (والتفصيل فى الفقه) ﴿لَهُوَ خَيْرٌ﴾ ضمير د «هو» راجع دې صبر نه چه هغه مدلو دې د «صبرتم»

﴿وَٱصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ﴾ په دې آخرى آيتونو كښې درې تسلئ حضور ﷺ ته ذكر كيږي اوله تسلی دا ذكر كيږي چه ددوئ د طرف نه چه كوم تكاليف تاته رسيږي نو په هغې صبر كوه او هر كله چه صبر په داسې موقع كښې په نفس باندې ډير شاق وی نو ځكه ورپسې اونيلې شو ﴿وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِٱللَّهِ﴾ اي بتوفيق الله تعالى ومعونته،(رازى ، ) دويمه تسلی ذكر كيږي په ﴿وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ﴾ سره .او مراد ترينه اظهار د غم او افسوس دې ، په داسې طريقې سره چه د نورو كارونو نه غافل شې، او دريمه تسلی ذكر كيږي په ﴿وَلَا تَكُ فِى ضَيْقٍ مِّمَّا﴾ په دې كلام كښې استعاره ده چه ضيق ئی مشابه كړې دې د شئ محيط «به» سره لكه قميص وغيره شو ، مقصد ئی دادې چه د دوئ د مكرونو د وجې نه خپل كار مه پريږده بلكه استقامت اختيار كړه، الله ﷻ به دې نصرت كوي، ﴿إِنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلَّذِينَ﴾ په دې كښې بشارت سره د شرائطو ذكر كيږي دپاره دداعی چه هغه دوه څيزونه دی : يو تقوا او دويم اخلاص او مراد د معيت سره امداد دائمی او رحمت اوفضل دې په دارينو كښې او بيځ كو ل دی د خو ف او حزن نه په دنيا او آخر ت كښې او مراد په تقوی سره عقيده د توحيد ده، او د شرك نه ځان بيځ ساتل دی

﴿وَٱلَّذِينَ هُم مُّحْسِنُونَ﴾ د محسنون نه مراد عمل كونكی دی د طاعاتو او حقيقت د احسان وئيلې كيږي عمل كولو ته په وجه لائقې سر ه ((وحقيقة الاحسان بالاعما ل على وجه الائق)) (روح) اودې ته په حديث جبرئيل كښې اشاره شويده، ((ان تعبد الله كانك تراه)) او امام رازی فرمائی چه په دې آيت كښې اشاره ده عمل كولو ته په پوره دين باندې ځكه چه د پوره دين خلاصه دوه جملې دی .
(١) التعظيم لامرالله ، (٢) والشفقة على خلق الله ، نو په ﴿ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوا۟﴾ سره اشاره د ((التعظيم لامرالله)) ته چه په دې كښې عقائد ، اعمال وغيره ټو ل داخل دی ، د دې وجې نه علامه آلوسی رحمه الله فرمائی چه مراد په تقوی سره اعلی مرتبه د تقوی ده، ((المراد بها هنا اعلى مراتبها اعنى التنزه عن كل

ما يشغل السر عن الحق سبحانه والتبتل اليه تعالى بالكليه)) (روح ) او په ﴿وَّٱلَّذِينَ هُم مُّحۡسِنُونَ﴾ سره اشاره شفقت على خلق الله ته ده نو ګويا چه د سورة په آخر كښې په مكمل دين باندې د عمل كولو حكم اوشو . او هر كله چه انسان په پوره دين باندې عمل اوكړي نو دالله وعده دمعيت او امداد او نصرت ورسره وى. او دغه شان د سورة په ابتدا كښې كفار منع كړې شوى وو د جلدئ ګولو نه عذ اب نه. او د سورة په انتها كښې مسلمانانو ته د صبر. تقوى او احسان تعليم وركړې شو چه په دې سره به د الله نصرت راشى نو اسلام او مسلمانان به غالب شى او كفر ا و كافر به مغلوب شى او ذليل به شى

**فايده** حرم بن حبان ته د مرګ په وخت كښې اوئيلې شو چه مونږ ته وصيت اوكړه نو هغه اوفرمايل چه زما دپاره مال نشته چه دهغې وصيت اوكړم تاسو ته، ليكن زه وصيت كوم په آخرى آيتو نو د سورة النحل سره ((قرطبى او كبير)) .

تم تفسير سورة النحل بحمدالله ومنته وقد فرغت منه يوم الجمعة بعد صلوة المغرب بسبعة عشر من ذى قعدة سنه : ١٤٣٠هجرى عند اوان التدريس باربعة عشر كتبًا : من الصحاح الستة موطأ لامام مالك وكتاب الآثار وجلالين وهداية وشرح العقائد وسلم العلوم ونور الانوار مع قصور فهمى وقلة بضاعتى وعديم وسائلى وكثرة المشاغل الاخر، ولكن هذا من كرامة والدى رحمه الله رحمتا واسعة اللهم نور قبره وبرد مضجعه واغسل خطاياه بالماء والثلج والبرد، اللهم اجعل رفاقته ورفاقتنا مع النبيين والصديقين والصالحين اللهم اجعلنا من الصابرين المتقين المحسنين الذين لاخوف عليهم ولاهم يحزنون، آمين ثم آمين يارب العالمين .

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد وآله وصحبه اجمعين

# د مضامينو فهرست

**تمت بالخیر**

**تم فهرس الکتاب بعون الملک الوهاب**

**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وعلی اله وصحبه وسلم اجمعین برحمتک یا ارحم الراحمین**